بسم الله الرحمن الرحيم

(د مشكٰوة المصابيح پښتو شرحه)

# مظاهر حق

**تاليف:** نواب محمدقطب الدين خان دهلوي رحمة الله عليه

**ترتيب او تزئين:** مولاناعبدالله جاويد غازي پوري (فاضل ديوبند)


**خپرندوی:** صداقت خپرندويه ټولنه

**پښتو ژباړه:** محمد رسول سعيد

**تصحيح کوونکي:** بسم الله رحيمي، مولوي عبدالکريم کريمي، مولوي عبدالجبار

**لومړی چاپ:** ۱۳۹۲ش - ۲۰۱٤ ع.

**پنځم چاپ:** ۱۳۹۹ل. / ۲۰۲۰م.

د خپرونو لړ: ۱۸۳

چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

د تر لاسه کولو ځايونه:

**صداقت خپرندويه ټولنه**-کندهار

اوله ناحيه، نوی سړک- کريم اعتماد مارکېټ

Sadaqat.books@gmail.com / ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

**کندهار:** صداقت خپرندويه ټولنه- ارگ بازار- قلم او کتاب مارکېټ **۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴** .

**کابل:** صداقت خپرندويه ټولنه،کوټه سنگي مينه يار مارکېټ او **اکسوس کتاب پلورنځی**. **هلمند** :تاج منور خپرندويه ټولنه. **هرات:** صداقت کتاب پلورنځی- کوچه گدام. **جلال آباد:** مومند خپرندويه ټولنه.ننگرهار مارکېټ. **غزني:** نعماني کتاب پلورنځی. **پکتيکا:** مجاهد کتاب پلورنځی. **خوست:** اسلامي کتاب پلورنځی.

## د مظاهر حق نهم جلد فهرست

# بَابُ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ

## (د قیامت د نښو بیان)

(شرط)، د راء په ورغندي سره معنی يې د يو شي د بل شي سره يو ځای کول يا د يو شي لازمول دي لکه چي ويل کيږي که داسي وي نو داسي به وسي، جمع يې شروط ده، او (شَرَط) د راء په زور سره معنی يې د نښي ده يعني هغه شی چي يو پيښېدونکی شی ظاهر کړي، جمع يې اشراط ده نو دلته د اشراط څخه مراد هغه نښي دي چي د قيامت واقع کېدل څرګندوي، او په لغت کي د شرط معنی د يو شي د اول، د مال د زوال او لږ مال هم ليکلې ده.

(ساعة): د شپې او ورځي د برخو څخه يوې برخي ته هم وايي، دغه لفظ د اوسني وخت په معنی کي هم استعماليږي نو قيامت يا د قيامت راتلو ته ساعت ځکه ويل کيږي چي د هغه وخت معلوم نه دی او هر وخت راتللای سي تر دې چي راتلونکی هر وخت دا امکان لري چي هغه وخت قيامت نه راسي.

علماؤ وضاحت کړی دی چي د اشراط ساعت يعني د قيامت د نښو څخه مراد هغه نسبتا کوچني شيان دي چي د قيامت راتلو مخکي به واقع سي چي خلک به يې د قيامت نښي نه ګڼي، د مثال په توګه د مينځي د خپل بادار زېږول، لوړي ماڼۍ جوړول او په هغو فخر کول، د جهل، ناپوهۍ، زنا او شرابو زياتوب، د نارينوو کمي او د ښځو زياتوب، او داسي نوري خرابۍ چي د هغو يادونه به په دغه باب کي راسي.

د اشراط وضاحت په دغه معنی سره ځکه کيږي چي هغه لوی نښي د قيامت به قيامت ته نژدې څرګنده سي او د هغو يادونه به په راتلونکي باب کي راسي چي ددغه کوچنيو نښو څخه علاوه دي،

پاته سوه دا خبره چي خلک به د ذکر سوو شيانو د قيامت د نښو منلو څخه ولي انکار کوي، نو ددې وجه به دا وي چي داسي شيان به په دغه دنيا کي د تل څخه را روان وي نو خلک به دا ګڼي چي دغه شيان خو په دنيا کي د تل څخه را روان دي اوس په دې کي څه ځانګړتيا پيدا سوې ده چي د قيامت نښي ورته ويل کيږي، څرګنده دي وي چي د ذکر سوو شيانو محض وجود د قيامت نښي نه دي بلکه ددغه شيانو زياتوب او زيات واقع کېدل د قيامت نښي دي، يوه بله خبره هم ښودل ضروري ده چي په دې باب کي د حضرت امام مهدي عليه السلام د څرګندېدو يادونه هم

ده ، حال دا چي د هغه څرګندېدل د حضرت عیسی علیه السلام د نزول او د دجال د پیدا کېدو سره تعلق لري، نو په دې اړه څه اشکال واقع کېدل پکار نه دي ځکه چي په دغه باب کي د حضرت مهدي علیه السلام د څرګندېدو یادونه د جنګونو او فتنو د ذکر په څنګ کي سوې ده نه په ځانګړې توګه ، په دې اړه نور زیات وضاحت به په راتلونکي باب کي راسي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ . (لومړی فصل)

### د قیامت نښي

﴿۵۲۰۳﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه دا اوریدلي دي چي

مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يُرْفَعَ الْعِلْمُ وَيَكْثُرَ الْجَهْلُ وَيَكْثُرَ الزِّنَا وَيَكْثُرَ شُرْبُ

د قیامت نښي دادي : علم به پورته کړل سي ، جهالت به زیات سي ، زنا به ډیره کیږي، شراب به

الْخَمْرِ وَيَقِلَّ الرِّجَالُ وَتَكْثُرَ النِّسَاءُ حَتَّى يَكُونَ لِخَمْسِينَ امْرَأَةً الْقَيِّمُ الْوَاحِدُ، وفي رواية يقل العلم ويظهر الجهل . متفق عليه.

زیات څښل کیږي د نارینوو شمېر به کم سي د ښځو شمیر به زیات سي تر دې چي د پنځوسو ښځو خیر خواهي کونکی به یو سړی وي او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي علم به کم سي او جهالت به زیات سي . بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱\۱۷۸، رقم: ۸۰، ومسلم ۴\۲۰۵۶، رقم: ۹- ۲۶۷۱.

### د قیامت یوه خاص نښه

﴿۵۲۰۴﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ سَمِعْتُ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ كَذَّابِينَ فَاحْذَرُوهُمْ. رواه مسلم.

د حضرت جابر بن سمره رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي دي چي فرمایل یې د قیامت د راتلو څخه مخکي به ډیر درواغجن پیداسي تاسو د هغوئ څخه ځان

وساتئ . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۳\۱۴۵۴، رقم: ۱۰- ۱۸۲۲.

**تشريح**: د درواغجن څخه مراد يا خو هغه خلک دي چي د درواغو حديثونه جوړوي يا هغه خلک مراد دي چي د نبوت دروغجنه دعوه کوي او زيات هغه خلک مراد دي چي بدعتونه رواجوي د خپلو غلطو عقيدو او خيالاتو د صحيح او جائز ثابتولو لپاره د هغه نسبت صحابه کرامو او مخکنيو بزرګانو ته کوي.

ابن ملک رحمة الله عليه په شرح مشارق کي ليکلي دي چي د (فاحذروهم) جمله په صحيح مسلم کي ذکر سوې نه ده بلکه ځينو حضراتو ويلي دي چي دغه جمله په اصل حديث کي يعني د رسول الله ﷺ د ارشاد برخه نه ده بلکه د حضرت جابر رضي الله عنه خپل قول دی، او په جامع کي دغه روايت بعينه داسي منقول دی لکه څرنګه چي دلته په مشکوة کي نقل سوی دی، اوصاحب جامع ويلي دي چي دغه روايت امام احمد رحمة الله عليه او مسلم رحمة الله عليه د حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه څخه نقل کړی دی.

﴿۵۲۰۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُ إِذْ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ خبري کولې چي

جَاءَ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ مَتَى السَّاعَةُ قَالَ إِذَا ضُيِّعَتْ الْأَمَانَةُ فَانْتَظِرْ السَّاعَةَ قَالَ

يو صحرايي سړی راغلی او د رسول الله ﷺ څخه يې پوښتنه وکړه چي قيامت به کله راځي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل هر کله چي امانت ضائع سي بيا ته د قيامت انتظار کوه، هغه ويل

كَيْفَ إِضَاعَتُهَا قَالَ إِذَا وُسِّدَ الْأَمْرُ إِلَى غَيْرِ أَهْلِهِ فَانْتَظِرْ السَّاعَةَ. رواه البخاري

امانت به څنګه ضائع سي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هر کله چي حکومت نااهلو ته وسپارل سي نو ته د قيامت انتظار کوه. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۱۴۱، رقم: ۵۹.

**تشريح**. د امانت څخه مراد د شريعت له لوري عائد سوي ذمه دارۍ او د دين احکام دي، لکه چي په قرآن کريم کي د (انا عرضنا الامانة) همدغه مفهوم دی، يا د امانت څخه د خلکو حقوق او د هغوئ امانتونه مراد دي، خلاصه دا چي رسول الله ﷺ د هغه صحرايي په پوښتنه څرګنده کړل

چي د قيامت تاكل سوى وخت د عالم الغيوب څخه پرته بل هيچا ته معلوم نه دى او نه الله ﷻ چا ته هغه ذريعه ښودلې ده چي په هغه سره د قيامت تاكل سوى وخت و پېژندل سي، مګر داسي نښي يې تاكلي دي چي د قيامت څخه مخكي به څرګنده سي او دا به څرګنده سي چي اوس قيامت نژدې دى، نو د هغه نښو څخه يوه نښه د امانتونو ضائع كول دي چي خلک به په امانت كي خيانت كول پيل كړي.

د نااهل څخه مراد هغه خلک دي چي په ځان كي د حكومت او مشرتوب د شرطو نه لرلو په وجه د مشر كېدو حق نه لري لكه ښځي ، ماشومان، ناپوهان، فاسقان ، بخيل او داسي نور. همدارنګه كوم څوک چي په اصل قريشي نه وي هغه به هم په دغه باب كي د نااهل په ډله كي شمېرل كيږي كه څه هم هغه د پاچاهانو دنسل څخه وي مګر ددغه شرط تعلق يوازي د خلافت سره دى، د حديث ددغه برخي خلاصه داده كه ددين او دنيا د چارو نظم د داسي سړي لاس ته ورسي چي هغه د ذمه دارۍ پوره كولو اهل نه وي نو يقينا د هغه چارو په ښه توګه تر سره كول به ممكن نه وي او ډول ډول خرابۍ به پكښي پيدا سي چي د هغه نتيجه به دا وي چي د خلكو حقوق به ضائع او تر پښو لاندي كيږي او هر څوک به بې ارامه او پريشانه وي.

د (وسد) لفظ د مجهول په صيغه سره او د سين په شد سره يا بيله شده په اصل كي د و سادة څخه مشتق دى چي لغوي معنى يې د تكيې ده نو كوم چا ته چي يو كار وسپارل سي نو د هغه كار په اعتبار پر هغه سړي تكيه كيږي ؟

## د مال زياتوب د قيامت د نژدې كېدو نښه ده

﴿۵۲۰۶﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قيامت به را نه سي

حَتَّى يَكْثُرَ الْمَالُ وَيَفِيضَ حَتَّى يَخْرُجَ الرَّجُلُ زكَاةَ مَالِهِ فَلَا يَجِدُ أَحَدًا

تر څو پوري چي مال او دولت دومره زيات نه سي چي په څلورو خواوو كي به د اوبو په ډول بهيږي تر دې چي خلک د خپل مال زكات وباسي

يَقْبَلُهَا مِنْهُ وَحَتَّى تَعُودَ أَرْضُ الْعَرَبِ مُرُوجًا وَأَنْهَارًا. رواه مسلم وفي رواية له قال تبلغ المساكين اهاب او يهاب

نو هیڅوک به يې قبول نه کړي او تر هغه وخته پوري به قيامت نه راځي تر څو پوري چې د عربو مځکه شنه، باغونه او ويالو والا جوړه نه سي. مسلم او د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي قيامت به نه راځي تر څو پوري چې عمارتونه او آبادي آهاب يا بهاب ته نه رسيږي. (آهاب يا بهاب مدينې ته نژدې يو کلی دی).

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۷۰۱، رقم: ۶۰- ۱۵۷.

**د لغاتو حل**: يهاب: هي موضع قرب المدينة (مدينې منورې ته نژدې يو ځای)

**تشريح**: (ويفيض) دغه لفظ په اصل کي عطف تفسيري دی يعني د مال او دولت به داسي پراختيا وي چې د څلورو خواوو څخه به د اوبو په ډول بهيږي او خلک به د خپل ضرورت او اړتيا څخه د ډېر زيات مال او دولت څښتنان وي.

اهاب او يهاب (په يوه نسخه کي د ياء په زېر سره دی يعني يِهاب)، دغه دواړه لفظونه د سيمو نومان دي چې د مدينې شاوخوا واقع دي، په اهاب او يهاب کي د (او) حرف د تنويع لپاره دی، د دوهم روايت د الفاظو مراد دا څرګندول دي چي په آخره زمانه کي به دومره مانۍ جوړي سي چې د هغو لړۍ به د ښار شاوخوا سيمو ته ورسېږي.

شيخ عبدالحق رحمة الله عليه ليکلي دي چې د اهاب لفظ د الف په زور سره د سحاب پر وزن دی او دا له مدينې څخه پر څو ميله فاصله باندي واقع د يو کلي نوم دی او دغه لفظ د الف په زېر سره هم منقول سوی دی.

## د امام مهدي په اړه پيشګوئي

﴿۵۲۰۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكُونُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ خَلِيفَةٌ يَقْسِمُ الْمَالَ وَلَا يَعُدُّهُ. و في رواية قال يكون في آخر امتي خليفة يحثي المال حثيا ولا يعده عدا. رواه مسلم

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په آخري زمانه کي به يو خليفه وي (يعني امام مهدي عليه السلام چي مال به په خلکو کي ښه وويشي او د ځان سره به يې نه جمع کوي، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي زما د امت په آخر کي به يو خليفه وي چي ډکي لپي مال به ويشي او شميري به يې نه. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۲۲۳۵، رقم: ۶۹- ۲۹۱۴.

**تشریح**: د خلیفه څخه مراد حضرت امام مهدي علیه السلام دی چي په آخره زمانه کي به څرګند سي، دحدیث خلاصه داده چي د هغوئ د حکومت مالي حالت به ډېر ښه وي، د فتوحاتو او غنمیتو په ذریعه به د هغوئ د آمدني حساب نه وي.

مګر هغه به دغه مال او دولت د خپل شان او شوکت زیاتولو او د خپل ژوند په عیش کي کولو لپاره نه مصرفوي یا په جمع کولو سره به یې په خپلو خزانو کي نه جمع کوي لکه چي زموږ د زمانې د پاچاهانو رواج دی، بلکه هغه به د مسلمانانو د کامیابۍ او پرمختګ او د هغوئ د اړتیاوو په پوره کولو کي مصرفوي او د خپل طبعي سخاوت په وجه به د دواړو لاسونو په ډکولو سره په خلګو ویشي.

## د فرات سیند څخه د خزانې راوتلو پیشګوئي

﴿۵۲۰۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوشِكُ الْفُرَاتُ أَنْ يَحْسِرَ عَنْ كَنْزٍ مِنْ ذَهَبٍ فَمَنْ حَضَرَهُ فَلَا يَأْخُذْ مِنْهُ شَيْئًا. متفق علیه.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په نژدې وخت کي به د فرات رود وچ سي او تر هغه لاندي به د سرو زرو خزانه راووځي څوک چي هغه وخت موجود وي هغه دي ددې څخه هیڅ نه اخلي، بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۷۸، رقم: ۷۱۱۹، ومسلم ۴\۲۲۱۹، رقم: ۳۰– ۲۸۹۴.

**تشریح**: د هغه خزانې څخه د نه اخیستلو منع له دې کبله ده چي د هغه په وجه د جګړې او قتل و قتال صورت پیدا نسي لکه چي په مخکني حدیث کي وضاحت سوی دی، او ځینو حضراتو لیکلي دي چي د هغه خزانو څخه نه اخیستل ځکه منع دي چي په خاصه توګه د هغه خزانو څخه اخیستل به د آفاتو او مصیبتو د اثر سبب وي، او دا خبره د قدرت الهي د نښو څخه یوه نښه ده، او ځینو حضراتو دا لیکلي دي چي ددغه منع سبب دادی چي هغه خزانه به د مغضوب او مکروه مال په حکم کي وي لکه څرنګه چي د قارون خزانه وه نو د هغه خزانو څخه کټه اخیستل به حرام وي.

﴿۵۲۰۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : قیامت به نه راځي تر څو

حَتَّى يَحْسِرَ الْفُرَاتُ عَنْ جَبَلٍ مِنْ ذَهَبٍ يَقْتَتِلُ النَّاسُ عَلَيْهِ فَيُقْتَلُ مِنْ

پوري چي د فرات رود وچ نه سي او تر هغه لاندي د سرو زرو غر راووځي خلک به د هغه خزانې تر لاسه کولو لپاره جنګ کوي او په هغه جنګ کونکو کي به

كُلِّ مِائَةٍ تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ وَيَقُولُ كُلُّ رَجُلٍ مِنْهُمْ لَعَلِّي أَكُونُ أَنَا الَّذِي أَنْجُو.

رواه مسلم

۹۹فیصده ووژل سي او په هغوئ کي به هر څوک دا وایي چي شاید زه ژوندی پاته سم او پر دغه خزانه قبضه وکړم. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۲۲۱۹، رقم: ۲۹- ۲۸۹۴.

**تشریح**: په څرګنده دا معلومیږي چي یوه خبره په دوو مختلفو ځایو کي په مختلفو الفاظو بیان سوې ده نو د دواړو حدیثونو خلاصه دا ده چي د فرات سند لاندي به د سرو زرو یوه لویه خزانه راووځي چي د هغه اندازه به دغره برابر وي مګر دا هم کیدای سي چي دلته په حدیث کي د غره په اندازه د زرو د کومي خزانې ذکر چي سوی دی هغه ددغه خزانې څخه پرته ده چي د هغه یادونه په مخکني حدیث کي سوې ده او د زرو د غره څخه مراد د سرو زرو کان دی .

## کله چي مځکه خپل خزانې راوغورځوي

﴿۵۲۱۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَقِيءُ الْأَرْضُ أَفْلَاذَ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : مځکه به د خپل ځیګر

كَبِدِهَا أَمْثَالَ الْأُسْطُوَانِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ فَيَجِيءُ الْقَاتِلُ فَيَقُولُ فِي هَذَا

ټوټې د باندي راوغورځوي چي د سرو او سپینو زرو د میلانو په ډول به وي چا چي ددغه مال لپاره خلک قتل کړي وي هغه به راسي او وایي به ایا ددغه مال تر لاسه کولو لپاره

قَتَلْتُ وَيَجِيءُ الْقَاطِعُ فَيَقُولُ فِي هَذَا قَطَعْتُ رَحِمِي وَيَجِيءُ السَّارِقُ فَيَقُولُ فِي هَذَا قُطِعَتْ يَدِي ثُمَّ يَدَعُونَهُ فَلَا يَأْخُذُونَ مِنْهُ شَيْئًا. رواه مسلم.

ما خلک قتل کړي دي بيا به هغه کس راسي چي هغه د خپلوانو سره تعلق قطع کړی وي او وايي به د دغه مال لپاره ما د خپلوانو سره تعلق ختم کړی وو بيا به غل راسي او وايي به ايا د دغه مال لپاره زما لاس پريکړل سوی دی په هغوئ کي به هيڅوک هم د دغه مال څخه هيڅ وانخلي او همداسي به يې پر ځای پريږدي .مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\۲۲۳۱، رقم: ۵۴- ۱۵۷.

**تشريح**: (افلاذ)، په اصل کي د فلذة جمع ده چي معنی يې د هر هغه شي د ټوټې ده چي هغه په اوږدوالي کي پرې سوی وی، په قاموس کي ليکلي دي چي د فلذ معنی د اوښ د اينې ده او د فلذة معنی د ځيګر د ټوټې ، د سرو او سپينو زرو د ټوټې او د غوښو د ټوټې ده .

څرګنده دي وي چي د مځکي د ځيګر د ټوټې څخه مراد د مځکي لاندي پټي خزانې يعني معدنيات دي لکه د اوښ تر ټولو اصل شی چي د هغه ځيګر دی او معدنيات د مځکو په شيانو کي تر ټولو زيات د توجه وړ او تر ټولو زيات غوره شی دی لکه څرنګه چي په نس کي ځيګر (اينه) تر ټولو غوره شی دی .

په هر حال د حديث خلاصه داده چي په آخره زمانه کي به د مځکي سينه ډيره پراخه سي او دننه ټولي خزانې به دباندي راوباسي هري خوا ته به د معدنياتو کاروبار په زور سره جاري وي او په هر هيواد کي به د مختلفو ګټور او قيمتي شيانو کانونه را وايستل سي چي د هغو په ذريعه به انساني نسل د مال او دولت په پراختيا کي ډوب سي .

## د آخري زمانې په باره کي يو پيشګوئي

﴿۵۲۱۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتَّى يَمُرَّ الرَّجُلُ عَلَى الْقَبْرِ فَيَتَمَرَّغُ عَلَيْهِ وَيَقُولُ يَا لَيْتَنِي كُنْتُ مَكَانَ صَاحِبِ هَذَا الْقَبْرِ وَلَيْسَ بِهِ الدِّينُ إِلَّا الْبَلَاءُ. رواه مسلم.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په هغه ذات دي مي قسم وي د چا په لاس کي چي زما ساه ده دنيا به تر هغه وخته ختمه نه سي تر هغه چي يو سړی به پر يو قبر تېرېږي پر قبر به راوغورځيږي او وايي به چي کاشکي زه په دې قبر کي وای او هغه به دين دار نه وي بلکه په مصيبت کي به اخته وي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\۲۲۳۱، رقم: ۴۵- ۱۵۷.

**تشریح**: علماء کرامو د حدیث د آخري جملې (او دا به د هغه دین نه وي ...الخ) دوه مطلبه بیان کړي دي، یو خو دا چي د دین څخه مراد عادت دی او دین د عادت په معنی کي هم راځي ، نو مطلب دادی چي کوم څوک له قبر سره تېرېږي او بیا بېرته قبر ته راسي او د خپل ذکر سوي خواهش اظهار وکړي نو د هغه بېرته راتلل او د خواهش اظهار کول به د هغه د عادت په توګه نه وي بلکه د هغه فتنو او مصیبتو په وجه به وي چي په هغو کي دی اخته وي، دوهم مطلب دادی چي د دین څخه مراد د هغه مشهوري معنی دین او مذهب دی ، په دغه صورت کي د دغه جملې وضاحت دادی چي د هغه قبر ته راتلل او هلته د خپل ذکر سوي خواهش څرګندول به د یو مصیبت او فتنې په وجه نه وي چي د هغه دین او د هغه اُخروي چارو ته د تاوان رسنولو سبب وي بلکه د یو داسي مصیبت د اخته کېدو په وجه به وي چي هغه دده دنیا ته تاوان رسولی وي یا تباه کړې وي، ددغه دواړو وضاحتو څخه پرته یو بل وضاحت دا هم کیدای سي چي د هغه قبر ته بېرته راتلل او د ذکر سوي خواهش څرګندول به د مرګ خواهش کول وي کله چي د هغه فتنې او مصیبت په وجه د هغه دین ځي او هغه وخت به د هغه سره د هغه فتنې او مصیبت د مضرو اثراتو څخه پرته بل هیڅ نه وي .

## د یو اور په باره کي پشګوئي

﴿۵۲۱۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَخْرُجَ نَارٌ مِنْ أَرْضِ الْحِجَازِ تُضِيءُ أَعْنَاقَ الْإِبِلِ بِبُصْرٰى. متفق علیه

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : قیامت به تر هغه وخته پوري نه راځي تر څو چي د حجاز څخه یو اور راووځي چي د بصرې د اوښانو غاړي به روښانه کړي . بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۷۸، رقم: ۷۱۱۸، ومسلم ۱۴\۲۲۲۷، رقم: ۴۲- ۲۹۰۲.

**تشریح**: (بصری) د شام هیواد د یو ښار نوم دی چي د دمشق څخه پر درې پړاوه پروت دی، او حجاز د جزیرة العرب هغه سیمو ته وایي چي په هغو کي مکه او مدینه هم شامل دي، په دغه حدیث کي چي د کوم اور ذکر سوی دی د هغه په اړه په تواتر سره دا روایت بیانیږي چي د هغه اور د څرګندېدو پېښه رامنځته سوې ده او د هغه روایاتو څخه څرګندیږي چي که څه هم د هغه اور زیات اثر د مدینې منورې پر سیمه مشتمل وو مګر الله جل جلاله د رسول الله ﷺ د برکته د

مدينې ښارونه د هغه اور د آفت او تباهۍ څخه خوندي وساتل ، ويل کيږي چې په ۳ جمادي الثاني ۶۵۰ هـ ، د جمعې په ورځ هغه اور څرګند سو او تر ۲۷ رجب ۶۵۰ هـ د يکشنبې تر ورځې پوري يعني پرله پسې دوولس ورځو پوري څرګند وو ، راويانو د هغه کيفيت دا ليکلی دی چې ناڅاپه د حجاز له لوري هغه اور راڅرګند سو او داسې معلومېده چې د اوريو پوره ښار دی چې په هغه کې د قلعو او برجونو په ډول شيان موجود دي او د انسانانو رش دغه ښار راکښوي، د هغه اور لړۍ چې کوم غره ته رسيدل هغه به يې د شيشې او موم په ډول ويلي کوی ، د هغه اور په شغلو کې د برېښنا په ډول ګړزهاری او د رباب د موج په ډول جوش وو ، او دا محسوس کېده لکه په هغه اور کې دننه چې سره او شنه دريابونه وي، هغه اور په دغه کيفيت سره مدينې منورې ته راوسېدی مګر عجيبه خبره داده چې د هغه شغلو څخه کومه هواء مدينې منورې ته راتلل هغه يخه وه ، علماؤ ليکلي دي چې د هغه اور لمبو د مدينې ټول ځنګلونه منور کړي وه تر دې چې د حرم او مدينې په ټولو کورونو کې د لمر د رڼا په ډول خپرې سوې وې خلکو به د شپې د هغه په رڼا کې خپل ټول کارونه کول، بلکه په دغه ورځو کې پر ټوله سيمه باندي د لمر او سپوږمۍ رڼا معطل او بې ځلا پاته سوې وه ، د مکې مکرمې ځينو خلکو دا شاهدي ورکړل چې هغوئ دغه رڼا تر يمامه او بصری پوري ولېدل ، ددغه اور له عجيبه ځانګړتياوو څخه يوه خاص خبره داده چې په هغه کې به ډبري هم په سوځلو سره سکاره سول مګر پر درختو يې هيڅ اثر نه وو ، ويل کيږي چې په ځنګل کې يوه ډېره لويه ډبره پرته وه چې د هغې نيمه برخه د حرم مدينه په حدودو کښې وه او نيمه برخه د حرم د حدودو څخه دباندې وه ، اور د ډبري هغه برخه سکاره کړې وه کوم چې د حرم څخه دباندي وه مګر کله چې هغه نيمې برخې ته ورسېده چې په حرم کښې وه نو اور يخ سو او د ډبري هغه نيمه برخه بالکل خوندي پاته سوه. په هر حال دغه عجيب او غريب اور پر اهل مدينه باندي ډېره وېره خپره کړل خلکو په ژړا او زارۍ ددغه فتنې د دفع لپاره دعاوې کولې ، خپل عملي او ديني کوتاهيو ته متوجه سول د چا پر ذمه چې د چا حق وو د هغه ادا کول يې پيل کړل ، صدقه ، خيرات او غلامان ازادول يې پېل کړل ، د جمعې په شپه ټول د مدينې اوسېدونکي تر دې چې ښځې او ماشومان هم په حرم شريف کې جمع سول، ټول خلک د حجرې شريفي (روضې) څلورو خواوو ته سرتور ناست وه ژړا او زارۍ يې کولې او د الله ﷻ څخه يې د ساتنې او حفظ دعاوي غوښتلې نو الله ﷻ هغه اور د شمال په لور وګرځوی او مدينه منوره يې خوندي کړل ، علماؤ ليکلي دي چې د اور ظاهرېدل د قدرت الهي يوه عجيبه نښه وه ، په دغه کال کې په ټوله نړۍ کې د ډول ډول عجيبه او غريبو پېښو څرګندېدل وسول او د

هغه څخه لږ وخت وروسته په مختلفو سیمو کي د وژني او قتل و قتال پېښي رامنځته سوې چي د بغداد په ډول عظیم ښار یې برباد کړ او د تاتاریانو د فتنې په صورت کښي اسلامي نړۍ ته سخت تاوانونه ورسېدل.

## د قیامت لومړنۍ نښه

﴿۵۲۱۳﴾: وَعَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ نَارٌ تَحْشُرُ النَّاسَ مِنَ الْمَشْرِقِ إِلَى الْمَغْرِبِ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د قیامت د راتلو څخه اوله نښه هغه اور دی چي خلک به د مشرق څخه د مغرب طرف ته شړي. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۳۶۲/۱۶، رقم: ۳۳۲۹.

**تشریح**: مطلب دادی چي کومي نښي قیامت ته نژدې رامنځته کیږي په هغو کي به تر ټولو لومړۍ نښه هغه اور وي چي خلک به د لوېدیځ څخه ختیځ ته بوځي، څرګنده ده چي هغه اور د قیامت تر ټولو لومړۍ نښه څرنګه کیدای سي چي رسول الله ﷺ هغه اور هم د قیامت د نښو څخه شمېرلی دی چي د هغه یادونه په ذکر سوي حدیث کي وسول او د روایت سره سم په ۶۵۰ ه، کال کي څرګنده سوې هم وه.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

## د زمانې تېز رفتار د قیامت د نښو څخه دی

﴿۵۲۱۴﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: قیامت به نه قائمیږي

حَتَّى يَتَقَارَبَ الزَّمَانُ فَتَكُوْنُ السَّنَةُ كَالشَّهْرِ وَالشَّهْرُ كَالْجُمُعَةِ وَتَكُوْنُ

تر څو پوري چي زمانه به رانژدې سي (یعني د زمانې برخي به ژر ژر تیریږي) یعني کال به د میاشتي برابر سي، میاشت به د هفتې برابر

الْجُمُعَةُ كَالْيَوْمِ وَيَكُوْنُ الْيَوْمُ كَالسَّاعَةِ وَتَكُوْنُ السَّاعَةُ كَالضَّرَمَةِ بِالنَّارِ.

رواه الترمذي.

او هفته به دورځي برابر او هغه وخت به ورځ يو ساعت وي او ساعت به د اور د يوې شعلې برابر وي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۹۰، رقم: ۲۳۳۲.

**تشريح**: مطلب دادی چې په آخره زمانه کې به په ورځو او ساعتونو کې برکت کم سي، وخت به دومره تېز تيرېدل ځرګندېږي چې د هغه ګټور کېدل به ورک سي، او يا دا مراد دی چې په هغه زمانه کې به خلک په فکر او پريشانيو کې وي او د فتنو، مصيبتو او ډول ډول بوختياوو په وجه به د وخت د تېرېدو احساس نسي کولای او هغوئ ته به دا پېژندل ستونزمن سي چې کله ورځ تېره سول او کله شپه ختمه سول،

خطابي رحمة الله عليه ليکلي دي چې رسول الله ﷺ د زمانې او وخت د کومي تيزۍ يادونه فرمايلې ده د هغه ځرګندېدل به د حضرت عيسى عليه السلام او امام مهدي عليه السلام په زمانه کې وي.

## د مدينې څخه د دار الخلافت نقل کول

﴿۵۲۱۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَوَالَةَ قَالَ بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن حواله رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ موږ وليږلو د جهاد لپاره

لِنَغْنَمَ عَلَى أَقْدَامِنَا فَرَجَعْنَا فَلَمْ نَغْنَمْ شَيْئًا وَعَرَفَ الْجَهْدَ فِي وُجُوهِنَا

پر پښو چې موږ د غنيمت مال تر لاسه کړو موږ د جهاد څخه راغلو او د غنيمت د مال څخه موږ ته هيڅ په لاس نه راغلل، رسول الله ﷺ زموږ مخونه ليدلو سره زموږ د محنت او ستړيا حال

فَقَامَ فِينَا فَقَالَ اللَّهُمَّ لَا تَكِلْهُمْ إِلَيَّ فَأَضْعُفَ عَنْهُمْ وَلَا تَكِلْهُمْ إِلَى أَنْفُسِهِمْ

معلوم کړنو رسول الله ﷺ زموږ په منځ کې ودريدی او وه يې فرمايل: اې الله! د دغه خلکو امور ما ته حواله مه کړې

فَيَعْجِزُوا عَنْهَا وَلَا تَكِلْهُمْ إِلَى النَّاسِ فَيَسْتَأْثِرُوا عَلَيْهِمْ ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ عَلَى

چې زه به د دوئ د مرستي څخه تر شا پاته سم. او اې الله! مه دوئ د دوئ نفس ته حواله کړې چې د خپل نفس امور به سرته رسولو څخه عاجز سي او اې الله! مه دوئ د خلکو اړ کړې چې

خلک خپل ضرورتونه او اړتیاوي پر دوئ مقدم کړي، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ زما پر

رَأْسِي ثُمَّ قَالَ يَا ابْنَ حَوَالَةَ إِذَا رَأَيْتَ الْخِلَافَةَ قَدْ نَزَلَتْ أَرْضَ الْمُقَدَّسَةِ

سر لاس کېښېښود او وه یې فرمایل اې ابن حواله! هر کله چې ته ووینې چې خلافت مقدسې

فَقَدْ دَنَتِ الزَّلَازِلُ وَالْبَلَابِلُ وَالْأُمُورُ الْعِظَامُ وَالسَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنَ النَّاسِ مِنْ يَدِي هَذِهِ إِلَى رَأْسِكَ. رواه ابوداؤد.

مځکې ته ورسیدی نو پوه سه چې زلزلې، لوی لوی نښې او فتنې نژدې سوې دغه وخت به قیامت خلکو ته دومره نژدې سي لکه زما لاس چې ستا سر ته نژدې دی. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۴۱، رقم: ۲۵۳۵.

**د لغاتو حل**: البلابل: الهموم والاحزان.

**تشريح**: چې موږ ته د غنیمت مال تر لاسه سي: په ځرګنده دا معلومیږي چې د حضرت عبد الله ابن حواله ﷺ او د هغه د ملګرو مالي حالت ډېر تنګ وو، او هغوئ به سخت غریبان او مفلس وه، نو رسول الله ﷺ هغوئ د جهاد لپاره په خاصه توګه وتاکل چې په جهاد کې د غنیمت مال تر لاسه کړي، او د هغه مال په ذریعه به دغه خلک د خپل ژوند اړتیاوي پوره کړي، غالبا په دې وجه د غزا ځرګنده یادونه یې ونه کړل بلکه د غنیمت په یادونه یې اکتفاء وفرمایل.

دغه خلک ما ته مه سپاره: مطلب دا وو چې دغه خلک غریبان او مفلس دي او ما ددغه غربت او مفلسۍ په وجه دوئ جهاد ته لېږلي وه چې دجهاد فرض هم ادا کړي او د تر لاسه کېدونکي غنیمت په ذریعه دوئ ته د خپل اړتیا او مسکینۍ د لیرې کولو ذریعه هم په لاس ورسي، مګر د قسمت خبره ده چې په دغه جهاد کې دوئ ته د غنیمت مال هم تر لاسه نه سو، نو اې الله! اوس ته د دوئ د اړتیاوو د پوره کولو یوه بله ذریعه پیدا کړې، د دوئ ذمه داري زما پر سر مه اچوې ځکه زه د دوئ د غمخورۍ او خبر اخیستني د بار توان نه لرم، ځرګنده دي وي چې رسول الله ﷺ دغه خبره له دې کبله وفرمایل چې انسان د خپل ذات په اعتبار هیڅ توان او قوت نه لري که د الله ﷻ له لوري هغه ته وسائل او ذرائع تر لاسه نه وي نو هغه خپله د خپل ځان د خبر اخیستني څخه عاجز دی نو څه به د بل چا د خبر اخیستني باور پوره کړي، ځکه په یوه دعاء کې رسول الله ﷺ د الله ﷻ په دربار کې داسې عرض وکړ: (اللهم لاتكلني الى نفسي طرفة عين).

يعني اې الله! د سترګو د رپ په اندازه هم ما ځان ته مه سپارې، بلکه زما ساتنه او ضمانت ته په خپله وکړې، او همدارنګه د الله ﷻ ارشاد دی: (قل لا املک لنفسي نفعا ولا ضرا الا ماشاء الله)، يعني اې محمد (ﷺ) ووايه! چې د خپل ذات په اړه زه نه د ګټې څښتن يم او نه د تاوان پرته د هغه شي څخه چې الله ﷻ ته خوښه وي، له دې څخه څرګنده سوه چې د انسان د کمال عبديت تقاضا داده چې هغه خپل ځان عاجز وګڼي او دا اقرار وکړي چې د الله تعالی د مرستي او توفيق او د هغه د حکم او فيصلې څخه پرته هيڅ يو لوی سړی هم د يو کوچنۍ ذمه دارۍ پوره کولو توان او قدرت نه لري نو د توحيد کامل دا هغه سبق دی چې په (لاحول ولاقوة الابالله) کښې ذکر سوی دی، او هر بنده په خپله ژبه سره پر هغه د يقين درلودلو او ويلو پابند سي، ابن عدي رحمة الله عليه په کتاب کامل کې دا حديث نقل کړی دی چې حضرت الياس او حضرت خضر عليهما السلام هر کال په يو وخت کې يو ځای کيږي، کله چې د هغوئ د يو ځای کېدو وخت سي نو په هغوئ کې هر يو د بل پلټنه کوي او بيا د ليدني وروسته دواړه د دغه الفاظو په ويلو سره له يو بل څخه بېليږي: (بسم الله ماشاء الله لايسوق الخير الا الله ماشاء الله لا يصرف السوء الا الله ماشاء الله ما کان من نعمة فمن الله لاحول ولا قوة الا بالله).

د رسول الله ﷺ ذات مبارک د الله ﷻ په دربار کې تر ټولو زيات قرب لري ځکه رسول الله ﷺ د دغه خلکو د ذمه دارۍ نه سپارلو دعاء تر ټولو وړاندې د خپل ذات په اړه کړې ده، او له دې وروسته يې په دغه دعاء کې نور خلک هم شامل کړي دي چې څرنګه زه د خپلې کمزورۍ او عجز په وجه د هغوئ د خبر اخيستني ذمه داري سرته نه سم رسولای همدارنګه نور خلک خپله د خپل ذات ګټې او تاوان ته د ترجيح ورکولو په وجه د هغوئ خبر اخيستنه نه سي کولای، نو حقيقت هم دادی چې کوم کسان د ځان ځانۍ ښکار وي او يوازې د خپل ځان په ګټې او تاوان اخته وي نو هغوئ د بل چا ضرورت ته پر خپل کوچنې غوندې ضرورت باندې هم ترجيح نه ورکوي او که هغوئ ته يوه ذمه دارۍ سپارل سوې وي نو هغوئ د دغه ذمه دارۍ په سرته رسولو کښې په هر پړاو کې د خپل ځان ګټه مقدم کوي.

په هر حال د رسول الله ﷺ د دعاء خلاصه داوه چې اې پروردګاره! د دغه خلکو ذمه داري ما ته مه سپارې ځکه چې زه د دوئ د کفالت او ذمه دارۍ سرته رسولو توان او قدرت نه لرم او مه خپله دوئ د خپلو ځانو ذمه دار ګرځوې ځکه چې دا خلک د ذاتي وسائلو او ذرائعو نه درلودلو په وجه د خپل ذات د کفالت د بار وړلو زغم نه لري، دوهم دا چې کيدای سي دا خلک د خواهشاتو د زياتوب او بې لارۍ ښکار سي او د خپل ټولنيز ژوند د خوشحالۍ لپاره پر داسي

لارو روان سي چي د دوئ ددين او آخرت لپاره د تاوان سبب سي، همدارنگه اې پروردگاره! د دوئ ذمه داري نورو خلکو ته هم مه سپارې او مه دوئ د چا محتاجه کوې ځکه چي هغه نور خپل ذاتي مفاداتو ته د دوئ پر مفاداتو ترجيح ورکوي او د دوئ د ذمه دارۍ حق به ادا نه کړي چي په هغه سره به دوئ ته نور زيات تاوان ورسيږي نو اې الله! دا ستا بندگان او ستا د نوم اخيستونکي دي ته د وئ خپل محتاج کړې او له دوئ سره هغه معامله وکړې لکه څرنگه چي يو باداريې د خپلو غلامانو سره کوي.

له دغه څرگندوني څخه دا خبره معلومه سوه چي ددغه دعاء څخه د رسول الله ﷺ اصل مقصد امت ته ددې ښوونه او تقلين کول دي چي بنده ته پکار ده چي هغه خپل هر کار او خپله هره معامله الله تعالی ته وسپاري يعني خپل تدبير او سعي او ظاهري وسائلو باندي باور ونه کړي، د بل چا څخه اميد ونه لري ځکه چي کوم څوک يوازي پر الله تعالی باندي باور لري نو الله ﷻ يقينا د هغه هر کار سرته رسوي او د هغه هر کار چي ديني وي يا دنيوي په ښه توگه سرته رسوي، خپله الله ﷻ فرمايي : (ومن يتوكل على الله فهو حسبه) يعني کوم څوک چي په الله ﷻ باور وکړي نو الله ﷻ د هغه لپاره کافي دی،

د زلزله مطلب د مځکي ښوئيدل او زلزلې راتلل دي ، ځکه د بلبل څخه مراد مختلف ډول غمونه او پريشانۍ دي، او لکه دا شيان چي د قيامت تر ټولو لويو زلزلو د راتلو علامه او مقدمه بهٔ وي چي د هغه په نتيجه کي به دا ټول کائنات نيست و نابو د سي او ددنيا خاتمه به وسي چي د هغه خبر الله ﷻ په دغه الفاظو ورکړی دی: (اذا زلزلت الارض زلزالها)، څرگنده دي وي چي ذکر سوي خبري به په آخري زمانه کي واقع کيږي کله چي بيت المقدس فتح سي او پر هغه به د مسلمانانو واک وي.

د مشکوة شريف په اصل نسخه کښي د رواه څخه وروسته خالي ځای دی، مگر جزري رحمة الله عليه ددغه لفظ وروسته دغه عبارت راوړی دی (ابوداؤد واسناده حسن و رواه الحاكم في صحيحه) يعني دغه روايت ابوداؤد نقل کړی دی او اسناد يې حسن دی او دغه روايت حاکم هم په خپل صحيح کښي نقل کړی دی.

## د قيامت نښي

﴿۵۲۱۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اتُّخِذَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل : هر کله چي د غنيمت مال

الْفَيْءُ دِوَلاً وَالْأَمَانَةُ مَغْنَمًا وَالزَّكَاةُ مَغْرَمًا وَتُعُلِّمَ لِغَيْرِ الدِّيْنِ وَأَطَاعَ الرَّجُلُ

دولت وګرځول سي (يعني هر کله چي د غنيمت مال اميران او صاحب منصب خلک دولت وګرځوي او خپله يې اخلي) او ضعيفو خلکو ته په هغه کي برخه ورنه کړي، او هر کله چي د امانت مال غنيمت وګڼل سي او هر کله چي زکوة تاوان وګڼل سي ، او هر کله چي د علم د زده کړي څخه دين مقصد نه وي ، او هر کله چي سړی

امْرَأَتَهُ وَعَقَّ أُمَّهُ وَأَدْنٰى صَدِيْقَهُ وَأَقْصٰى أَبَاهُ وَظَهَرَتِ الْأَصْوَاتُ فِي الْمَسَاجِدِ

د ښځي اطاعت پيل کړي او هر کله چي زوی د مور نافرماني پيل کړي او هغې ته تکليف ورکوي ، او هر کله چي سړی دوست خپل ملګری جوړ کړي او پلار د ځان څخه ليري کړي، او هر کله چي په مسجد کي په زوره زوره خبري او شور پيل سي،

وَسَادَ الْقَبِيْلَةَ فَاسِقُهُمْ وَكَانَ زَعِيْمُ الْقَوْمِ أَرْذَلَهُمْ وَأُكْرِمَ الرَّجُلُ مَخَافَةَ

او هر کله چي د قوم سرداري يو فاسق سړی کوي، او هر کله چي د قوم پر کارونو د قوم مشر د قوم احمق سړی وي، او هر کله چي د يو سړي تعظيم د هغه د شر څخه د ځان ساتني لپاره وسي،

شَرِّهِ وَظَهَرَتِ الْقَيْنَاتُ وَالْمَعَازِفُ وَشُرِبَتِ الْخُمُوْرُ وَلَعَنَ آخِرُ هٰذِهِ الْأُمَّةِ

او هر کله چي سندري ويونکي ښځي ښکاره سي ، او هر کله چي سرودونه ښکاره سي ، او هر کله چي شراب څښل کيږي ، او هر کله چي ددې امت وروستني خلک

أَوَّلَهَا فَارْتَقِبُوْا عِنْدَ ذٰلِكَ رِيْحًا حَمْرَاءَ وَزَلْزَلَةً وَخَسْفًا وَّمَسْخًا وَقَذْفًا وَآيَاتٍ

تَتَابَعُ كَنِظَامٍ قُطِعَ سِلْكُهُ فَتَتَابَعَ . رواه الترمذي.

مخکنيو خلکو ته بد وايي او پر هغوئ لعنت کوي نو دغه وخت ته ددغه شيانو انتظار کوه : د سرې سيلۍ ، د زلزلو ، په مځکه کي د ننه ايستلو ، د شکلونو د مسخ کيدو ، د ډبرو د اوريدو ، او د هغه پرله پسې نښو چي د قيامت څخه به مخکي ظاهريږي ، لکه د ملغلرو اميل چي تناو يې پرې سي او يو په بل پسې راتوی سي . ترمذي.

**تخريج** : سنن الترمذي ۴\۴۲۸، رقم: ۲۲۱۱.

**د لغاتو حل**: دولا: ای غلبة في المداولة والمناولة. القينات: الاماء المغنيات.

**تشريح**: په دغه حديث کي د هغه خرابيو يادونه سوې ده چي که څه هم په دنيا کي شتون لري او هيڅ زمانه ددغه خرابيو څخه خالي سوې نه ده مګر کله چي په ټولنه کي دغه خرابۍ زياتي خپرې سي نو بايد پوه سو چي د الله ﷻ سخت عذاب که هغه په هر شکل او صورت کي وي پر هغه ټولنه نازلېدونکی دی او د دنيا د خاتمې وخت رانژدې سوی دی.

(دَوَل)، په اصل کي د دَولة يا دُولة جمع ده چي لغوي معنی يې د انقلابي زمانې ده او هر هغه شي ته هم دولت وايي چي کله له يو چا سره وي او کله له بل چا سره وي، ددغه لفظ اطلاق پر مال او اقتدار باندي هم کيږي، ځينو حضراتو ويلي دي چي د دولة لفظ د هر هغه شي نوم دی چي د مال د ډول څخه يو شی حاصل کړي، يعني د غنيمت مال، او د دال په زور سره يعني دَولة معنی يې د يوه حال څخه بل حال ته ګرځېدل دي، يعني د سختۍ، پريشانۍ او مفلسۍ حالت ختمېدل او د اطمينان، راحت او خوشحالۍ حالت راتلل، په هر حال د غنيمت د مال د دولت ګرځولو مطلب دادی چي د جهاد په ذريعه له دښمنانو څخه کوم مال تر لاسه کيږي او هغه ته د غنيمت مال ويل کيږي نو هغه په شرعي توګه د ټولو غازيانو او مجاهدينو ګډ حق دی، او د هغه مال پر ټولو حقدارانو باندي ويشل واجب دي، مګر د اسلامي لښکر او پاچاهۍ اهل طاقت او شتمنۍ والا خلک د غنيمت مال د شرعي حکم سره سم ټولو حقدارانو ته د ويشلو پر ځای په خپل منځ کي وويشي او محتاج، اړ او کمزوري خلک د هغه څخه محروم کړي، نو ددې به دا معنی وي چي هغوئ دغه د غنيمت مال د ټولو مجاهدينو مشترک حق نه ګڼي بلکه خپل ذاتي مال او دولت يې ګڼي.

د امانت د غنيمت ګڼلو څخه مقصد دادی چي د کومو خلکو سره امانتونه ساتل سوي وي هغوئ به خيانت پکښي کوي او د امانت مال به د غنيمت د مال په ډول خپل ذاتي مال ګڼي.

د زکوة تاوان ګڼل: مطلب دادی چي زکوة ادا کول به پر خلکو باندي داسي بار وي لکه چي د هغوئ څخه په زور اخيستل کيږي او لکه يو څوک چي د تاوان او جرمانې ادا کولو په وخت کي تنګي او پريشاني محسوس کوي.

علم د دين څخه پرته د بل مقصد لپاره د زده کولو او ښوولو مطلب دادی چي د علم ښوولو او خپرولو اصل مقصد په دين او شريعت عمل کول او د اخلاقو درست کول او د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ قرب او رضا تر لاسه کول دي بلکه ددې په ذريعه د دنيا عزت، مال، منصب او مشرتابه کښي لوړتيا تر لاسه کول مقصد وي.

نارینه لره د ښځي اطاعت کول: یعني دا چي خاوند د ښځي مرید سي او د ښځي هر حکم ومني او د هغې هره اړتیا پوره کوي چي د هغه په وجه د الله ﷻ د حکم او هدایت څرګند خلاف ورزي وي.

د مور نافرماني کول: مقصد دادی چي دمور د اطاعت او فرمانبرداری چي کوم حق دی هغه به له لاسه ورکړي او د یو شرعي وجه څخه پرته د هغې نافرماني کوي او هغې ته تکلیف رسوي، څرګنده دې وي چي دلته د مور خاصوالي په دې اعتبار دی چي د اولاد لپاره د پلار په نسبت مور زیاته مهربانه او تکلیف زغمونکې وي ځکه نو هغه پر اولاد زیات حق لري.

د ملګرو نژدې کولو او پلار لیري کولو څخه مراد دادی چي خپل وخت به د پلار په خدمت کي د حاضرېدو پر ځای د پالتو ملګرو سره ناسته ولاړه او له هغوئ سره په بازی کي تیروي او د خپلو کړنو څخه به داسي څرګندوي چي د هغه له ملګرو سره تر پلار زیات تعلق او محبت دی.

په مسجد کي د شور کولو څخه مراد دادی چي په مسجدونو کښي په زوره خبري کوي، د چغو او نعرو په ذریعه د مسجد په سکون کي خنډ اچول کیږي او د هغه د اداب او احترام څخه بې پرواهي وکړل سي، څرګنده دي وي چي ځینو علماؤ لیکلي دي چي په مسجد کي آواز لوړول حرام دي که څه هم د هغه تعلق د الله ﷻ له ذکر سره وي.

د یو قوم د مشر د هغه قوم د فاسق سړي کېدو څخه مراد دادی چي مشرتوب به داسي خلکو ته وسپارل سي چي بدعمله، بدمعاش او بې ایمانه به وي، نو دا خبره به د ټول قوم او ډلي لپاره د تباهی نښه وي، څرګنده دي وي چي د یو قوم په ډله کي ښار، کلی او سیمه هم شامل دي، همدارنګه که چیري د یو قوم مشران هغه خلک وګرځول سي چي د خپل قوم او ډلي بدعمله او رزیل خلک وي نو پوه سئ چي د هغه قوم او ډلي د تباهی وخت راغلی دی.

د سړي عزت د هغه د فتنې او شر له بیري څخه کول: مطلب دادی چي د یو سړي د عزت او احترام معیار به د هغه ذاتي فضیلت او عظمت نه وي بلکه د هغه د بدی او شر د بیري څخه به وي یعني د یو سړي عزت به د دې لپاره کیږي چي هغه نورو ته په تکلیف رسولو او تاوان رسولو طاقت لري لکه چي یو فاسق او بدعمله سړي ته طاقت او غلبه تر لاسه سي او خلک د هغه عزت او تعظیم کولو باندي مجبور وي.

د غزلو ویونکو ښځو څخه مراد سندري ویونکي او نڅا کوونکي ښځي دي، قینات د قینة جمع ده چي اصل معنی یې د غزل ویونکي مینځي ده، همدارنګه د سرود څخه مراد هر ډول د سرود سامان دی چي هغه ته د شریعت په اصطلاح کي مزامیر ویل کیږي لکه ډول، هارمونیم،

رباب، شپيلۍ او داسي نور.

د شراب په اړه د جمع صيغه استعمال سوې ده ځکه چي دلته د شرابو ټول انواع او هر ډول نشه يې شيان مراد دي.

کله چي د دغه امت وروستني خلک د مخکنيو خلکو بد ويل پيل کړي، دلته اشاره ده چي دغه خرابي له دغه امت سره خاص ده، په تېرو امتونو کي د دغه بدۍ رواج نه وو، په مسلمانانو کي روافض په دغه بدۍ اخته دي چي هغوئ د تېرو سوو بزرګانو او صحابه کرامو په اړه بد رد وايي چي الله ﷻ د هغوئ په اړه داسي فرمايي:

وَالسَّابِقُونَ الأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالأَنصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُم بِإِحْسَانٍ رَّضِيَ اللّهُ عَنْهُمْ،

ژباړه: کومو کسانو چي وړاندي والي وکړ (يعني تر ټولو وړاندي يې ايمان راوړ) له مهاجرينو څخه او له انصارو څخه او چا چي په نيکۍ سره د هغوئ پيروي وکړه نو الله ﷻ له هغوئ ټولو څخه راضي دی.

همدارنګه په بل آيت کريمه کي فرمايي:

لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ.

ژباړه: (اې محمد ﷺ!) کوم وخت چي مؤمنانو ستا سره تر درختي لاندي بيعت کوی نو الله ﷻ د هغوئ څخه راضي سو.

څومره د بدبختۍ خبره ده چي د کومو کسانو څخه الله ﷻ راضي سو د هغوئ څخه ناراضي څرګنده کړل سي او دهغوئ پر خلاف بد او رد وويل سي، د هغه بندګانو د مناقبو او فضائلو څخه قرآن او حديث ډک دي، د هغوئ پاک نفسونه داسي عظيم ذاتونه دي چي هغوئ تر ټولو مخکي دالله ﷻ دين قبول کړ، په سختو حالاتو کي يې د الله ﷻ د نبي ﷺ مرسته او حمايت وکړ، د الله ﷻ د دين د بيرغ لوړولو لپاره يې خپل سرونه قربان کړل، د جهاد په ذريعه يې د اسلام شان او شوکت زيات کړ، لوی لوی ښارونه او هيوادونه يې فتح کړل، د يو واسطې پرته يې د سيد الامام عليه الصلوة والسلام څخه د دين علم تر لاسه کړ، د شريعت احکام او مسائل يې زده کړل، د دين بنياد يعني قرآن کريم يې تر ټولو زيات و پېژندی او د مقدسو کسانو په اړه الله تعالی د قرآن کريم په ذريعه د امت ټولو خلکو ته دا تقلين وکړ چي د هغوئ په اړه داسي ووايي:

رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالإِيمَانِ.

ژباړه: اې پروردګاره! موږ و بخښې او زموږ هغه وروڼه و بخښې چې هغوئ په ایمان منلو کي پر موږ سبقت حاصل کړی دی.

مګر د رافضیانو هغه خلک چې یا خو یې د ایمان رڼا د لاسه ورکړې ده او یا لیونیان سوي دي ددغه مقدسو کسانو او د امت تر ټولو غوره خلکو په اړه یوازي دلعن او طعن ژبه په اوږدولو باندي اکتفاء نه کوي بلکه محض د خپلو خرابو خیالاتو او نظریاتو په وجه په دې ویلو سره هغه پاکو کسانو ته د کفر نسبت هم کوي چې ابوبکر، عمر، او عثمان رضي الله عنهم بېله استحقاقه پر خلافت قبضه وکړه ځکه چې د رسول الله ﷺ څخه وروسته د خلافت اصل مستحق حضرت علي رضي الله عنه وو، الله جل جلاله دي دغه د عقل ړندو ته د بصیرت سترګي ورکړي، دوئ په دې ولي نه پوهیږي چې ددغه امت مخکنیو او وروستنیو ټولو خلکو دا خبره غلطه او باطله ګرځولې ده، په قرآن او حدیث کي هیڅ داسي دلیل نسته چې د هغه څخه دا څرګندیږي چې د رسول الله ﷺ څخه وروسته لومړی خلیفه حضرت علي رضي الله عنه دی او په صحابه کرامو کي چې کومو خلکو د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي د هغوئ سره اختلاف وکړ نو هغوئ نعوذ باالله د یو بدغرض په وجه د حضرت علي رضي الله عنه مخالفت ونه کړ بلکه دهغوئ اختلاف د هغوئ د اجتهادي رايي سره سم وو، که دا وویل سي چې هغوئ په خطاء اجتهادي کي اخته سوي وه مګر ددې په وجه هم پر هغوئ بد ویل او دهغوئ په حق کي بې ادبي خبري د خولې څخه را ایستل ډېر ناروا بلکه څرګند زیاتوب دی، بلکه موږ دا وایو که دا هم ومنل سي چې په هغوئ کي چا د حضرت علي رضي الله عنه مخالفت د حق لاري څخه د لیري کېدو په وجه وکړ او هغوئ فسق وکړ نو هم هغوئ ته په کومه وجه بد او رد ویل کیدای سي چې هغوئ د مرګ څخه مخکي د خپلي غلطۍ توبه وکړه او که توبه یې نه وي کړې نو د الله جل جلاله څخه دا غالب ګمان درلودل پکار دي چې هغه به د خپل رحمت په صدقه د هغوئ د تېرو خدمتونو په بدله کي د هغوئ مغفرت وکړي.

ابن عساکر رحمة الله علیه د حضرت علي رضي الله عنه څخه دا مرفوع روایت نقل کړی دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: که چیري زما ځیني صحابه د لړزې ښکار سي نو الله جل جلاله دي هغوئ زما د ملګرتیا او زما سره د تعلق په برکت وبخښي، دا خبره داسي هم کیدای سي چې موږ زیات وختونه کوچني او لوی ګناهونه کوو مګر ددې سربېره دخپل پروردګار د رحمت او د رسول الله ﷺ د شفاعت امید لرو نو ایا هغه خلک چې ددغه امت تر ټولو افضل او بزرګ خلک وه ددې خبري مستحق نه دي چې دهغوئ په حق کي دا نیک ګمان وکړل سي، که چیري دهغوئ څخه یو خطا سوې وي نو یقینا الله جل جلاله به د هغوئ د درجې د عظمت او دهغوئ د صحابیت د شرف په برکت

هغوئ ته معافي وکړي.

د صحابيت د مرتبې د تقدس او شرف داغ کونکو ناپوهانو! فکر وکړئ چي تاسو د کومو مقدسو کسانو په شان کي په بې ادبي کولو سره خپله ژبه مرداروئ او ستاسو دغه عمل به رحمة للعالمين ﷺ ته څومره تکليف رسوي؟ ايا تاسو له دې څخه بې خبره ياست چي نيک بخته خلک هغه دي چي خپل عيبونه يې د بل د عيب ويني څخه منع کړي ايا تاسو د دغه نبوي فرمان د صداقت منکر ياست چي د خپلو مړو يادونه په بدي سره مه کوئ، ايا د رسول الله ﷺ ارشاد مبارک نه دی چي کله ستاسو په وړاندي زما د صحابوو يادونه وسي نو خپله ژبه په واک کي کړئ، که تاسو لږ هم د ايمان او عقل دعوه کوئ نو واورئ چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: د ابوبکر او عمر رضي الله عنهما مينه د ايمان ښاخ دی او له دوئ دواړو سره بغض او دښمني د کفر نښه ده، د انصارو مينه د ايمان يو ښاخ دی او له هغوئ سره بغض او عداوت کفر دی، د اهل عربو مينه د ايمان ښاخ دی او له هغوئ سره کينه او دښمني کفر دی، چا چي زما صحابه په بدو الفاظو ياد کړل نو هغه د الله ﷻ د لعنت وړ سو او چا چي د هغوئ په اړه زما د حکم خيال وساتئ نو زه به د قيامت په ورځ د هغه خيال وساتم، اې الله! ته دغه کسانو ته عقل سليم او د بصيرت سترګي ورکړې او هدايت ورپه برخه کړې، کوم چي د ناپوهۍ او تعصب په وجه ستا د محبوب ﷺ د صحابوو او ملګرو په اړه بې ادبي کوي او د هغوئ په اړه د بدويني ژبه اوږدوي او خپل ځان د دوږخ پيلوزي ګرځوي.

﴿۵۲۱۷﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا فَعَلَتْ أُمَّتِيْ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي زما امت هغه

خَمْسَ عَشَرَةَ خَصْلَةً حَلَّ بِهَا الْبَلاءُ وَعَدَّ هٰذِهِ الْخِصَالَ وَلَمْ يَذْكُرْ تُعَلِّمَ

پنځلس کارونه وکړي (کوم چي په پوتني حديث کي ذکر سوي دي) نو هغه بلا به پر نازله سي چي په پورته حديث کي د هغې بيان سوی دی، حضرت علي رضي الله عنه دغه پنځلس خبري وشميرلې مګر په هغو کي يې

لِغَيْرِ الدِّيْنِ قَالَ وَبَرَّ صَدِيْقَهُ وَجَفَا أَبَاهُ وَقَالَ شُرِبَ الْخَمْرُ وَلُبِسَ الْحَرِيْرُ.

رواه الترمذي.

علم د دین لپاره نه بلکه د دنیا تر لاسه کولو لپاره د زده کولو ذکر ونه کړ او هر کله چي سړی خپل دوست خپل ملګری جوړ کړي او خپل پلار د ځان څخه لیري کړي پر ځای دا الفاظ بیان کړي دي : چي د دوست سره احسان وکړي او پر پلار ظلم وکړي او چي شراب څښل کیږي ، پر ځای : چي ریښم به اغوستل کیږي الفاظ بیان کړل . ترمذي.

**تخریج** : سنن الترمذي ۴\۴۲۸، رقم: ۲۲۱۰.

**تشریح** : (وعد هذه الخصال) او بیا رسول الله ﷺ هغه پنځلس خبري وشمېرلې ، دغه الفاظ د صاحب مصابیح دي ، دلیل يې دادی چي ترمذي دواړه حدیثونه یو په بل پسې نقل کړي دي او په دواړو حدیثونو کي بېل بېل دغه پنځلس خبري نقل سوي دي .

صاحب مختصر لیکلي دي چي د حضرت علي رضی الله عنه په دغه روایت کي د (ولبس الحریر) یعني کله چي د ریشمو جامې اغوستل پیل سي ، دغه الفاظ کله چي علم د دین څخه پرته د بل مقصد لپاره ښودل پیل سي ، پر ځای نه دي بلکه هر کله چي د دغه امت وروستني خلک مخکنيو خلکو ته بد او رد ویل پیل کړي ، پر ځای منقول نه دي مګر دا خبره صحیح نه ده ځکه چي د حضرت علي رضی الله عنه په روایت کي (کله چي د دغه امت وروستني خلک ...) الفاظ راغلي دي نو صحیح داده چي حضرت علي رضی الله عنه د (ولبس الحریر الفاظ د تعلم لغیر الدین) پر ځای نقل کړي دي ، له دې سره سم د پنځلسو خبرو یادونه د دواړو روایتو متعلق صحیح کیږي ، دا چي امام طیبي رحمه الله علیه ویلي دي بالکل يې صحیح ویلي دي چي د ذکر سوو پنځلسو خبرو یادونه په دواړو روایتو کي په هر یوه کي ده او د صاحب مختصر دا قول صحیح نه دی چي د پنځلسو خبرو یادونه د ذکر مجموعي په توګه په دواړو روایتو کي دی ، مګر په لومړني حدیث کي د ذکر سوو خبرو شمېر پنځلس نه دی بلکه شپاړلس دی .

## د امام مهدي په باره کي پېشګوئي

﴿۵۲۱۸﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

لاَ تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتّٰى يَمْلِكَ الْعَرَبَ رَجُلٌ مِّنْ أَهْلِ بَيْتِيْ يُوَاطِئُ اِسْمُهُ

دنیا به تر هغه وخته پوري نه فنا کیږي تر څو پوري چي پر عربو باندي به یو سړی پاچا سي دا سړی به زما د خاندان څخه وي او د هغه نوم به

إِسْمِيْ .رواه الترمذي وأبو داود . وفي رواية له قال لو لم يبق من الدنيا إلا

زما په نامه وي، ترمذي، ابوداؤد، او د ابوداؤد په يو بل روايت كي داسي راغلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كه په دنيا فنا كيدو كي يوازي

يوم لطول الله ذلك اليوم حتى يبعث الله فيه رجلا مني أو من أهل بيتي

يوه ورځ باقي پاته سي نو الله تعالى به هغه ورځ اوږده كړي تر دې چي الله تعالى به زما د خاندان څخه يو سړى راوليږي چي

يواطئ اسمه اسمي واسم أبيه اسم أبي يملأ الأرض قسطا وعدلا كما ملئت ظلما وجورا .

د هغه نوم به زما په نامه وي چي د هغه د پلار نوم به زما د پلار په نامه وي هغه به مځكه په عدل او انصاف سره معموره كړي لكه څرنګه چي تر دې مخكي په ظلم او ستم سره معموره وه .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۷۳، رقم: ۴۲۸۲، والترمذي ۴\۴۳۸، رقم: ۲۲۳۰.

**تشريح**: په دغه حديث كي چي كوم چا ته اشاره سوې ده د هغه څخه مراد حضرت امام مهدي عليه السلام دى، د هغه اصل نوم به (محمد) وي او لقب به يې مهدي وي، د رسول الله ﷺ له كورنۍ سره به تعلق لري مګر په دې اړه اختلافي قولونه دي چي ايا هغه به د امام حسن رضي الله عنه له اولاد څخه وي كه د حضرت امام حسين رضي الله عنه د اولاد څخه، مګر په څرګنده دا خبره زياته قياس ته نژدې ده چي هغه به د پلار له خوا حسني وي او د مور له خوا به حسيني وي، د رسول الله ﷺ په ذكر سوي ارشاد كي دې ته هم اشاره ده چي د رسول الله ﷺ سره به د هغه تعلق يوازي نسبي او نسلي نه وي بلكه روحاني او شرعي به هم وي، يعني د هغه طريقه د هغه عادات او معمولات به د رسول الله ﷺ د طريقو او عاداتو سره سم وي.

څرګنده دي وي چي په حديث كي امام مهدي عليه السلام ته يوازي دعربو نسبت (چي د هغه قبضه به پر عربو وي) محض د هغه د نسلي او وطني عظمت او شرف په وجه دى كنه نو په نورو حديثو كي راغلي دي چي د هغه واك او قبضه به پر ټوله نړۍ وي كه هغه عرب وي يا غير عرب وي، مګر دا توجيه زياته مناسبه ده چي محض د عرب په يادونه اكتفاء كول له دې كبله دي چي د ټولي نړۍ مسلمانان په روحاني توګه د عربو تابع دي ، نو پر عربو باندي د هغه تسلط او اقتدار

په بالواسطه توګه سره د ټولي دنيا پر مسلمانانو باندي د تسلط او اقتدار مترادف دی، دلته دا خبره هم څرګنده سول چي د دنيا هر مسلمان په روحاني توګه سره عربي دی ، دلته يوه خاص خبره دا هم ښودل ضروري دي چي رسول الله ﷺ امام مهدي عليه السلام ته په اشاره کولو سره دا فرمايلي دي چي د هغه نوم به زما د نامه په ډول او د هغه د پلار نوم به زما د پلار د نامه په ډول وي نو په دې خبره سره د شيعه ګانو ترديد کيږي چي مهدي موعود قائم او منتظر دی او هغه د حسن عکري زوی محمد دی.

هغه به ټوله مځکه د عدل او انصاف څخه ډکه کړي: مطلب دادی چي هغه به تر خپل واک لاندي سيمو ټول خلک په پوره عدل او انصاف سره ونازوي او له هيچا سره به بې انصافي او بې عدلي نه کيږي، پوهېدل پکار دي چي يقسط او عدل د دواړو معنی تقريبا يوه ده لکه چي د ظلم او جور معنی يوه ده ، په صراح کي ليکلي دي چي د قسط معنی د انصاف او عدل ده.

همدارنګه د جود معنی ده يو چا ته داسي حکم ورکول چي پر هغه ظلم وي او د اصل په اعتبار جور دې ته وايي چي يو شی دهغه په غير محل کي کښېښودل سي نو په حديث کي په دواړو ځايو کي د يوې معنی حامل دوه لفظونه استعمالول محض د تاکيد او تکرار لپاره دي ، يا دا هم ويل کيږي چي رسول الله ﷺ دواړه لفظونه په بېلو بېلو معناوو کي استعمال کړي دي مثلا د قسط څخه مراد انصاف غوښتونکو ته انصاف ورکول دي او د عدل څخه مراد په حقوقو کي برابري او مساوات کول دي ، همدارنګه د ظلم څخه مراد د انصاف غوښتونکو ته انصاف تر لاسه کېدل دي او د جور څخه مراد په حقوق کي عدم مساوات او نابرابري ده.

**امام مهدي به د رسول الله ﷺ د اولاد څخه وي**

﴿٥٢١٩﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْمَهْدِيُّ مِنْ عِتْرَتِي مِنْ وَلَدِ فَاطِمَةَ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ام سلمه رضي الله عنها څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي فرمايل يې: مهدي به زما د عترت (اولاد) څخه وي يعني د بي بي فاطمې د اولاد څخه به وي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۴۷۴، رقم: ۴۲۸۴.

**تشريح**: د عترت معنی د نسل او نژدې قرابت ده، د يو سړي هغه نژدې قريب چي مخکي تېر سوي وي يا په وروسته کي پيدا کيږي په عترت سره تعبير کيږي ، په صراح کي دا هم ليکلي دي

چي عزت د يو سړي قريب او لواحقينو ته وايي، په نهايه كي ليكلي دي د عترت معنى د عزيز او قريبانو ده ، د رسول الله ﷺ د عترت څخه مراد د رسول الله ﷺ د نيكه عبد المطلب اولاد دى حال دا چي ځيني كسان د عترت اطلاق پر نژدې اهل بيتو باندي هم كوي .

ځيني علماء وايي چي ټول قريش د رسول الله ﷺ نسبت دى او مشهور قول دادى چي د عترت څخه مراد هغه خلك دي چي هغوئ ته د زكوة اخيستل حرام دي يعني د بني هاشم اولاد .

په هر حال د حديث خلاصه داده چي د حضرت مهدي عليه السلام نسلي تعلق به د رسول الله ﷺ سره وي او هغه به د بي بي فاطمې رضي الله عنها د اولاد څخه وي .

﴿۵۲۲۰﴾ : وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَهْدِيُّ مِنِّي أَجْلَى الْجَبْهَةِ أَقْنَى الْأَنْفِ يَمْلَأُ الْأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلًا كَمَا مُلِئَتْ جَوْرًا وَظُلْمًا يَمْلِكُ سَبْعَ سِنِينَ . رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : مهدي زما د اولاد څخه دى ، روښانه او پراخ تندي والا جګه پزه والا ، هغه به داسي د عدل او انصاف څخه مځكه ډكه كړي لكه څرنګه چي مخكي د ظلم او زور څخه ډكه وه هغه به اووه كاله د مځكي مالك وي . ابوداؤد

**تخريج** : سنن ابي داود ۴\ ۴۷۴، رقم: ۴۲۸۵.

**تشريح** : په دغه روايت كي د سبع سنين څخه وروسته او ثمان سنين او تسع سنين (يعني اته يا نهه كاله) الفاظ هم بيان سوي دي چي د راوي خپل الفاظ دي او د هغه شک ظاهروي، مګر دلته دغه الفاظ نقل سوي نه دي ځكه چي كيداى سي مصنف ته د اوو كالو پر لفظ يقين تر لاسه سوى وي لكه چي د بي بي ام سلمه رضي الله عنها څخه د ابوداؤد په روايت كي نقل سوي دي چي مخته به راسي، مګر دا هم كيداى سي چي د اوو او اتو كالو په منځ كي شک موجود وي مګر د مصنف په نزد زيات يقيني لفظ د اوو كالو وي ځكه هغه د شک ظاهرونكي الفاظ نقل كولو پر ځاى يوازي پر يقيني الفاظو باندي اكتفاء وكړه .

## د حضرت مهدي عليه السلام سخاوت

﴿۵۲۲۱﴾ : وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قِصَّةِ الْمَهْدِيِّ قَالَ فَيَجِيءُ

إِلَيْهِ رَجُلٌ فَيَقُولُ يَا مَهْدِيُّ أَعْطِنِي أَعْطِنِي قَالَ فَيَحْثِي لَهُ فِي ثَوْبِهِ مَا

اسْتَطَاعَ أَنْ يَحْمِلَهُ. رواه الترمذي.

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د مهدي د واقعې په لړ کي وفرمايل: مهدي ته به يو سړی راسي اووايي به ما ته راکړه، ما ته راکړه نبي کريم ﷺ وويل نو دده په کالو کي به په لپو مال ور واچول سي څومره چي دی وړلای سي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۳۹، رقم: ۲۲۳۲.

**تشريح**: حضرت مهدي عليه السلام به د سوال کوونکي د حرص په لېدو سره هغه ته بې شمېره روپۍ او مال ورکړي چي په راتلونکي کي هغه چا ته د سوال لاس و نه غزوي او په خپل زړه کي تنګي او غم محسوس نه کړي.

## د امام مهدي د ظهور پيشګوئي

﴿۵۲۲۲﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَكُونُ اخْتِلَافٌ

عِنْدَ مَوْتِ خَلِيفَةٍ فَيَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ هَارِبًا إِلَى مَكَّةَ فَيَأْتِيهِ

نَاسٌ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ فَيُخْرِجُونَهُ وَهُوَ كَارِهٌ فَيُبَايِعُونَهُ بَيْنَ الرُّكْنِ وَالْمَقَامِ

وَيُبْعَثُ إِلَيْهِ بَعْثٌ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ فَيُخْسَفُ بِهِمْ بِالْبَيْدَاءِ بَيْنَ مَكَّةَ

وَالْمَدِينَةِ فَإِذَا رَأَى النَّاسُ ذَلِكَ أَتَاهُ أَبْدَالُ الشَّامِ وَعَصَائِبُ أَهْلِ الْعِرَاقِ

د حضرت ام سلمه (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اختلاف به رامنځته سي د يو خليفه پر مړګ باندي بيا به يو سړی د مديني څخه راووځي او د مکې و طرف ته به وتښتي د مکې خلک به هغه ته راسي هغه به د کور څخه د هغه په ناخوښۍ د باندي وباسي او د حجر اسود او مقام ابراهيم په منځ کي به د هغه په لاس سره بيعت وکړي او هغه به خپل خليفه جوړ کړي حال دا چي هغه سړی به په دې خوشحاله نه وي (دا سړی به امام مهدي وي) بيا به د شام (د پاچا د لوري) څخه د هغه د مقابلې لپاره يو لښکر راوليږل سي چي

هغه به د مکې او مدينې په منځ کې په بيداء نامي ځای کې ژوندي خسف (ډوب) کړل سي ، هر کله چې خلک خبر سي او دا حال ورته معلوم سي نو د شام ابدال او د عراق ډېر خلک به د هغه په

فَيُبَايِعُونَهُ بَيْنَ الرُّكْنِ وَالْمَقَامِ ثُمَّ يَنْشَأُ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ أَخْوَالُهُ كَلْبٌ

خدمت کې حاضر سي او د هغه په لاس به بيعت وکړي بيا به د قريشو څخه يو بل سړی پيدا سي چې د هغه نيکونه به قبيله کلب وي ،

فَيَبْعَثُ إِلَيْهِمْ بَعْثًا فَيَظْهَرُونَ عَلَيْهِمْ وَذَلِكَ بَعْثُ كَلْبٍ وَيَعْمَلُ فِي النَّاسِ

دا سړی به هم د هغه سړي خلاف لښکر وليږي او پر هغه لښکر به د امام لښکر غالب سي او دا فتنه د کلب د لښکر فتنه ده ، امام به د خلکو په منځ کې

بِسُنَّةِ نَبِيِّهِمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيُلْقِي الْإِسْلَامُ بِجِرَانِهِ فِي الْأَرْضِ فَيَلْبَثُ سَبْعَ سِنِينَ ثُمَّ يُتَوَفَّى وَيُصَلِّي عَلَيْهِ الْمُسْلِمُونَ. رواه ابو داؤد.

د خپل پيغمبر (حضرت محمد ﷺ) د احکامو سره سم عمل کوي او اسلام ته به خپل غاړه پر مځکه کښيږدي امام به تر اووه کالو پوري قائم وي بيا به وفات سي او د هغه پر جنازه به مسلمانان لمونځ وکړي. ابو داؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۷۵، رقم: ۴۲۸۶.

**د لغاتو حل**: الابدال: قوم من الصالحين لاتخلو الدنيا منهم اذا مات واحد ابدل الله مکانه باخر. جرانه: ای مقدم عنقه. (د مخ غاړه)

**تشريح**: په حديث کې چې د چا په اړه يادونه سوې ده د هغه څخه مراد حضرت امام مهدي عليه السلام دی، دليل يې دادی چې ابو داؤد دغه روايت په باب المهدي کې نقل کړی دی ، له مدينې څخه مراد يا خو مدينه منوره ده يا هغه ښار مراد دی چيري چې ذکر سوی خليفه وفات سي او د خليفه پر ټاکلو باندي به د خلکو اختلاف پيدا سي په دغه وخت کې به د حضرت امام مهدي عليه السلام مکې ته تېښته د ذکر سوي اختلاف د فتنې څخه د ساتنې لپاره وي او د مکې تګ ته به ځکه ترجيح ورکړي چې هغه ښار به نه يوازي دا چې د هر چا لپاره د امن ځای وي بلکه په سکون او عافيت سره د الله جل جلاله په عبادت کې د بوختيا غوره ځای هم دی .

بيداء: په اصل کې ځنګل او هواري مځکې ته وايي او پر سرای باندي يې هم اطلاق کيږي

مگر دلته په حديث كي د بيداء څخه مراد يو ځاى دى چي د مكې او مدينې په منځ كي واقع دى.
د شام د لښكر څخه مراد سفياني لښكر دى او ددغه لښكر د امام مهدي پر خلاف راتلل به په اصل كي د سفياني حكومت پيدا سوې يوه فتنه وي چي د امام مهدي د ښكنديدو د نښنو څخه يوه نښنه ده، په دې اړه تقريبا په تواتر سره ډېر حديثونه منقول دي په هغو كي يو صحيح حديث هغه دى كوم چي امير المؤمنين حضرت علي رضي الله عنه داسي نقل كړى دى چي هغه سفياني به په نسلي توګه د خالد بن يزيد ابنِ معاويه سره تعلق لري هغه به د لوى سر او تپين مخ والا وي، د هغه په ستركه كي به يو سپين داغ وي د دمشق په لور به دهغه ظهور وي د هغه د تابعدارانو د ډلي به زيات د كلب د قبيلې سره تعلق لرونكي خلك وي، د خلكو وينه بيول به دهغوئ خاص عادت وي تر دې چي هغوئ به د حامله ښځو نس په ځيرلو سره ماشومان هم هلاك كړي هغوئ چي د حضرت امام مهدي عليه السلام د ظهور خبر واوري نو د هغه سره د جنګ كولو لپاره به يو لښكر وليږي چي ماته به وخوري، ددې څخه وروسته به هغه سفيان په خپله د يو لښكر په ايستلو سره د حضرت امام مهدي عليه السلام د مقابلې لپاره ولاړ سي مگر هغه به د بيداء په ځاى كي د خپل ټول لښكر سره په مځكه كي غرق سي او هيڅوك به پكښي ژوندى پاته نسي، يوازي يو سړى به پاته سي چي حضرت امام مهدي عليه السلام ته به د سفيان او د هغه د لښكر د ويرتناك حشر خبر وركړي.

(ابدال) : د اولياء الله يوې ډلي ته وايي چي د هغوئ له بركته الله جل جلاله ددغه كائناتو نظام هموار ساتلى دى، په دنيا كي د ټولو ابدالو شمېر اوويا دى چي شلوېښت يې په شام كي دي او ډېرش نور په نورو هيوادو كي دي، اولياء الله ته ابدال ځكه وايي چي د دوئ بدلي كيږي يعني كله چي په دوئ كي يو څوك وفات سي نو د هغه په بدله كي بل څوك وټاكل سي، او يا دوئ ته ابدال په دې اعتبار وايي چي هغوئ داسي مقدس كسان دي چي د عبادت او رياضت په ذريعه په ځان كي ټول خراب عادتونه او خصلتونه ختم كړي او د هغه په بدله كي نيك عادتونه او غوره اخلاق پيدا كړي، ددغه مقدسو ډلو په اړه په حديثو كي راغلي دي، كه څه هم سيوطي رحمة الله عليه د سنن ابوداؤد په تشريح كي ليكلي دي چي د ابدال يادونه په صحاح ستة كي نه ده راغلې پرته د ابوداؤد ددغه حديث څخه چي دلته نقل سوى دى، دغه حديث حاكم هم نقل كړى دى او صحيح يې ګرځولى دى، مگر سيوطي رحمة الله عليه د صحاح ستة څخه پرته د نورو مستندو او معتبرو كتابو څخه داسي ډېر احاديث په جمع الجواع كي نقل كړي دي، چي په هغو كي دابدال يادونه ده، په ډېرو حديثونو كي د شلوېښت شمېر راغلى دى او په ځينو كي د ډېرشو شمېر

راغلي دي، هغویٔ د حضرت علي رضی اللہ عنہ یو دا روایت هم نقل کړی دی چي ابدالو کومه لوړه درجه تر لاسه کړې ده نو هغه د ډېرو لمونځو او روژو په وجه نه ده او نه هغه د عبادتو په وجه ده بلکه هغویٔ دومره په لوړه کچه سخي، د زړه په سلامتیا او د مسلمانانو سره د خیرخواهۍ د درلودلو په وجه دغه لوړي درجې تر لاسه کړي دي، رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم وفرمایل: اې علي! زما په امت کي د داسي خلکو وجود چي د ابدالي د صفت درلودنکي وي ډېر زیات نادر دي، یعني ابدال هم کم وي او په یوه حدیث کي چي د حضرت معاذ بن جبل رضی اللہ عنہ څخه منقول دی، دا فرمایل سوی دي چي په کوم چا کي درې صفتونه یعني رضا، د ممنوعاتو څخه په پوره توګه پرهیز او د الله جل جلالہ د دین لپاره غصه کول وي، نو د هغه شمېر د ابدال په ډله کي کېږي، امام غزالي رحمۃ اللہ علیہ په احیاء العلوم کي نقل کړي دي چي کوم
څوک هره ورځ درې ځله دغه دعاء وایي نو د هغه لپاره د ابدال درجه لیکل کېږي، دعاء دا ده:

اللهم اغفر لامة محمد، اللهم ارحم امة محمد، اللهم تجاوز عن امة محمد.

ژباړه: اې الله! امت محمدي (صلی اللہ علیہ وسلم) ته بخښنه وکړې، اې الله! پر امت باندي رحم وکړې او اې الله! د امت محمدي ګناهونه معاف کړې.

خلاصه دا چي څوک د خپل ځان څخه ټولي انساني او اخلاقي خرابۍ لیري کړي، خپل ځان په پوره توګه پاک او مهذب جوړ کړي او د مخلوق خیر خواه سي نو د هغه شمېر د ابدالو په ډله کي کېږي.

عصائب: هم د اولیاء الله د یوې ډلي نوم دی لکه څرنګه چي ابدال دي، له حضرت علي رضی اللہ عنہ څخه منقول دي چي ابدال د شام په هیواد کي اوسېږي او عصائب د عراق په هیواد کي او نجباء د مصر په هیواد کي (د ابدال او عصائبو په ډول نجباء هم د اولیاء الله د ډولو څخه یو ډول دی) او ځینو حضراتو دا ویلي دي چي عصائب هغه خلکو ته وایي چي په خپله ټولنه کي تر ټولو زیات عابد، زاهد او نېک وي، دغه وضاحت غالبا د لغوي معنی په اعتبار دی ځکه چي په لغت کي عصب القوم د قوم نیکو خلکو ته وایي.

د کلب قبیلې لښکر جوړول او د هغویٔ له خوا قتل و قتال رامنځته کېدل به په آخره زمانه کي د یوې فتنې په توګه څرګندېږي، او دا فتنه هم د حضرت امام مهدي علیہ السلام د ظهور د نښو څخه یوه نښه ده او د مسلمانانو دین به پر خپل غاړه وي، مطلب دا دي چي دین اسلام به قائم سي د شریعت قوانین به په پوره سکون او اطمینان سره جاري سي او ټول مسلمانان به په ارامه او ډاډ سره ژوند تېروي، څرګنده دي وي چي (جران) د اوښ د غاړې هغه مخکنۍ برخي ته وایي چي د

ذبح د ځای څخه د نحر تر ځای پورې وي، کله چې او ښ په تللو سره و درېږي او د آرام کولو لپاره کښيني نو د خپلي غاړي هغه برخه پر مځکه اوږده کړي چې په دې سره هغه ته ډېر آرام تر لاسه کيږي، دلته د اوښ د غاړي سره د تشبيه ورکولو مقصد دادی چې د حضرت امام مهدي عليه السلام په زمانه کي به اسلام ته ثبات او قرار تر لاسه سي چې د مسلمانانو په منځ کي به مخالفت، مناقشت او د جنګ جګړو نوم او نښان نه وي، د دين او اسلام لوړتيا ، د احکام سنت پابندي او د ملي نظام د خوشحالۍ او استحکام دور به وي.

## د مهدويت د دروا غو دعوه کوونکو ترديد

دلته دا ښوول ضروري دي چې ډېرو خلکو د دې خبري دعوه کړې ده چې هغوئ مهدي دي، په هغوئ کي ځيني خلک هغه دي چې د مهدي لغوي معنی د هدايت کونکي اخلي او ځان ته مهدي وايي، څرګنده ده چې د داسي خلکو په اړه يو ترديدي خبره نه ويل کيږي ځکه که هغوئ په حقيقت کي د هدايت رڼا خپرونکي وي او د هغوئ په ذريعه مخلوق ته د دين او آخرت صحيح لارښوونه تر لاسه کيږي نو په لغوي توګه هغوئ ته مهدي ويل کيږي مګر هغه خلک چې محض د دنيا په فريب کي په اخته کېدو سره او د خپل شخصيت په لوړلو سره ځان ته مهدي وايي نو په دې کي شک نسته چې هغه بالکل دروا غجن او مکار دی، نو د داسي خلکو مکر او فريب د مسلمانانو د خطا ايستلو او هغوئ د ځان پيروان کولو لپاره وي ، او د هغوئ په ذريعه نه يوازي دا چې د مهدي کېدو دعوه کوي بلکه په ځينو ښارو او هيوادو کي يې فتنه او فساد خپور کړی وي ، او په پای کي د هغوئ انجام ډېر خراب سو .

صحيح العقيده مسلمانانو د هغوئ پوره دفع کړې ده او هغوئ ته د تبليغ کولو سره د هغوئ ښارونو او هيوادو خلکو ته يې د هغوئ د فتنې او فساد څخه خلاصون ورکړ ، زموږ په پاکستان او هندوستان کي د يو داسي ګمراه خلکو ډلي پيدا سوي دي چې ځان ته مهدويه وايي د دې ډلي خلک ډېر جاهل وه ، د دوئ عقيده وه چې مهدي موعود زموږ د پيشوا په صورت کي ظاهر سو او بيا وفات سو او د خراسان په يو ښار کي دفن سو ، د هغوئ د ګمراهيو څخه يوه لويه ګمراهي دا عقيده وه چې کوم څوک زموږ د نظر او خيال عقيده نه لري او زموږ له خبري سره متفق نه وي نو هغوئ کافر دي ، له دې کبله په دغه زمانه کي د مکې د څلورو مذهبو علماؤ په اتفاق سره دا فتوا ورکړې ده چې پر صاحب اقتدار مسلمانانو باندي واجب دي چې دا خلک قتل کړي او همدارنګه د شيعه دغه عقيده او قول هم بالکل فاسد دی چې مهدي موعود په

اصل کي محمد ابن احمد عسکري دی چي هغه وفات سوی نه دی بلکه هغه د نظرو څخه پټ سوی دی ، هغه د زمانې امام دی او پر خپل وخت باندي په ظاهرېدو سره د خپل امامت او حاکیمت اعلان کوي ، د اهل سنت والجماعت په نزد دا قول هم د سره غلط او باطل دی او ددې په تردید کي د علم کلام کتابونه د دلائلو څخه ډک دی ددې څخه پرته په عروة الوثقی کي په وضاحت سره لیکل سوي دي چي حضرت محمد ابن حسن عسکري وفات سوی دی .

﴿۵۲۲۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ ذَكَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلَاءً

د حضرت ابوسعید رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د یوې بلا ذکر وکړ

يُصِيْبُ هٰذِهِ الْأُمَّةَ حَتّٰى لَا يَجِدُ الرَّجُلُ مَلْجَأً يَلْجَأُ إِلَيْهِ مِنَ الظُّلْمِ فَيَبْعَثُ

چي پر دې امت به نازلیږي تر دې چي هیڅوک به د هغې بلا څخه د پناه تر لاسه کولو ځای تر لاسه نه کړي بیا به

اللّٰهُ رَجُلاً مِنْ عِتْرَتِيْ وَأَهْلِ بَيْتِيْ فَيَمْلَأُ بِهِ الْأَرْضَ قِسْطًا وَّعَدْلاً كَمَا مُلِئَتْ

الله تعالی یو سړی ږاکی چي زما د اولاد او کورنۍ څخه به وي هغه به مځکه د عدل او انصاف څخه داسي معموره کړي لکه څرنګه چي مځکي

ظُلْمًا وَجَوْرًا يَرْضٰى عَنْهُ سَاكِنُ السَّمَاءِ وَسَاكِنُ الْأَرْضِ لَا تَدَعُ السَّمَاءُ مِنْ

د ظلم او ستم څخه معموره وه په دې سره به د مځکي خلک هم خوشحاله سي او آسمان والا هم،

قَطْرِهَا شَيْئًا إِلَّا صَبَّتْهُ مِدْرَارًا وَلَا تَدَعُ الْأَرْضُ مِنْ نَبَاتِهَا شَيْئًا إِلَّا أَخْرَجَتْهُ

(د هغه په زمانه کي) به د آسمان د باران د څاڅکو څخه هیڅ باقي پرې نه ږدي یعني باران به ډیر وي او مځکه به د خپل شنکیاوو او وښو څخه هیڅ باقي پرې نه ږدي یعني هر څه به راشنه کوي

حَتّٰى يَتَمَنَّى الْأَحْيَاءُ الْأَمْوَاتَ يَعِيْشُ فِيْ ذٰلِكَ سَبْعَ سِنِيْنَ أَوْ ثَمَانَ سِنِيْنَ أَوْ تِسْعَ سِنِيْنَ. رواه حاكم.

تر دې چي ژوندي خلک به ددې خبري ارمان کوي چي مړه خلک په دغه ښه وخت کي ژوندي

واى ، دا سړى به داسي ژوندى وي دا سړى به همداسي ژوندى وي اووه كاله، يا اته كاله او يا نهه كاله به تير كړي . حاكم

**تخريج**: قال ملا علي القاري في مرقاة المفاتيح ۵\ ۱۸۴،

**تشريح**: آسمان به د خپل باران د څاڅكو...ترپايه: خلاصه داده چي د حضرت مهدي عليه السلام په زمانه كي به د خير او بركت دا حال وي چي باران به د وخت او ضرورت سره سم په پوره توګه اوري، كښتونه او د مځكي ځخه تر لاسه كېدونكي شيان به ډېر پراخه سي او همدارنګه هري خوا ته به خوشحالي او ارام وي، او خلک به ډېر خوشحاله ژوند تېروي،

ژوندي خلک به د مړو خواهش كوي: مطلب دادى چي د هغه زمانې خلک به دومره خوشحاله ژوند تېروي چي د مړو وجود او ژوند خواهش به كوي او دا به وايي چي ارمان هغه خلک زموږ په زمانه كي واى نو هغوئ ته به ددغه خوشحاله ژوند لېدل په برخه سوي واى، څرګنده دي وي چي ځينو كسانو د (احياء) لفظ د الف په زبر سره يعني مصدر ويلى دى چي معنى يې د ژوند كول دي، په دغه صورت كي به ددغه جملې مفهوم دا وي چي خپله مړي به دا خواهش كوي چي الله جل جلاله هغوئ ته دوهم ځل په ژوند وركولو سره دنيا ته راوليږي چي هغوئ هم د خوشحالۍ زمانه ووينې مګر دا خبره د مبالغې د اظهار لپاره د يو ناممكن شي د ممكن فرض كولو په توګه ده ، په شرط ددې چي احياء د الف په زبر سره ثابت وي كنه نو ددې خبري د يو احتمال څخه پرته بل هيڅ ارزښت نسته.

اته يا نهه كاله: دغه الفاظ يا خو د راوي د شک څرګندولو لپاره دي چي د روايت د نقل كولو په وخت كي راوي ته په صحيح توګه ياد نه وه چي رسول الله ﷺ دلته د اوو كالو شمېر ذكر كړ كه د اتو او كه د نهو ، يا دغه الفاظ خپله رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي مطب يې دادى چي ددغه حديث فرمايلو تر وخت پوري رسول الله ﷺ ته هم په مبهمه توګه سره معلوم وو چي رسول الله ﷺ د اوو ، اتو او يا نهو په ذريعه بيان وفرمايه مګر بيا وروسته د الله جل جلاله له خوا رسول الله ﷺ ته په يقين سره د اوو كالو وخت وښودل سو ، نو رسول الله ﷺ له هغه څخه وروسته په حديثو كي يوازي د اوو كلو يادونه فرمايلې ده .

د مشكوة په اصل نسخه كي د رواه څخه وروسته خالي ځاى دى مګر وروسته دا عبارت ليكل سوى دى (الحاكم في مستدركه وقال صحيح) يعني دغه روايت حاكم په خپل مستدرک كي نقل كړى دى او ويلي يې دي چي دا حديث صحيح دى .

## يوه پيشګوئي

﴿۵۲۲۴﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ رَجُلٌ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل: يو سړی به په دغه ښارونو کي

مِنْ وَرَاءِ النَّهْرِ يُقَالُ لَهُ الْحَارِثُ حَرَّاثٍ عَلَى مُقَدِّمَتِهِ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ مَنْصُورٌ

چي د ويالې (ماوراء النهر) ترشا واقع دي څرګند سي چي په حارث حراثه به بلل کيږي دده پر لومړني لښکر به يو سړی وي د هغه نوم به منصور وي ،

يُوَطِّئُ أَوْ يُمَكِّنُ لِاٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا مَكَّنَتْ قُرَيْشٌ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَبَ عَلَى كُلِّ مُؤْمِنٍ نَصْرُهُ أَوْ قَالَ إِجَابَتُهُ . رواه ابو داؤد.

دا حارث به د حضرت محمد ﷺ اولاد ته تم ځای ورکړي لکه څرنګه چي د قريشو هغه خلکو چي ايمان يې راوړی وو حضرت محمد ﷺ ته ځای ورکړی وو پر هر چا ددغه سړي مرسته واجب ده ، يا وه يې فرمايل چي قبلول يې واجب دي. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۷۷، رقم: ۴۲۹۰.

**د لغاتو حل**: مقدمته: اى مقدمة جيشه، يوطن: اي يقرر و يثبت الامر.

**تشريح** د ماوراء النهر معنی د هغه سيمي ده چي د ويالې شاته وي او ددې څخه مراد هغه خطه ده چي په هغه کي بخارا ، سمرقند او نور ښارونه واقع دي، په حارث حراث کي حارث اصلي نوم دی او حراث د هغه صفت دی يعني کښت کوونکی .

(يوطن او يمکن) يعني ځای به ورکړي، دلته د او حرف يا خو د راوي د شک څرګندولو لپاره دی او يا د او په معنی کي دی، په دغه صورت کي به د جملې مفهوم دا وي چي هغه سړی به د محمد ﷺ د اولاد له لوري مال ، اسباب ، وسله او روپۍ ورکوي د هغوئ حکومت او خلافت به مستحکم وي ، په مختلفو ذرائعو او طريقو به هغوئ ته تقويت رسوي او د خپل لښکر په ذريعه به د هغوئ مرسته کوي .

د محمد ﷺ د اولاد څخه مراد په عامه توګه ټوله کورنۍ او د رسول الله ﷺ اهل بيت دي، او په خاصه توګه د حضرت امام مهدي عليه السلام ذات مراد دی، دا هم ويل کيږي چي د دغه الفاظ (د محمد ﷺ اولاد) زائد دی او د محمد ﷺ څخه مراد حضرت امام مهدي عليه السلام دی .

له قريشو څخه مراد هغه خلک دي چې هغوئ ايمان قبول کړی وو او په هر څه سره يې د رسول الله ﷺ مرسته او اعانت کړی وو لکه حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه او داسي نور کسان، مګر رسول الله ﷺ ته په ځای ورکولو کي ابو طالب هم شامل دي که څه هم هغه ايمان نه وو قبول کړی ، يا دايې وفرمايل چي هغه سړي قبول کړئ ، دغه الفاظ د راوي له خوا د هغه د شک څرګندولو لپاره دي، رسول الله ﷺ دلته يا خو د نصره لفظ وفرمايه او يا د اجابته لفظ، ددغه حديث د سياق څخه او په دې اړه منقول نور حديثو د اسباق څخه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ د کوم چا د څرګنديدو وړاند وينه فرمايلې وه هغه به د خپل امامت او خلافت په دعوه سره څرګند سي يعني د هغه ظهور به د حکومت د مشرتابه په صورت کي وي او د هغه اطاعت او فرمانبرداري به پر مسلمانانو واجب دي، او منصور نامی سړی به د هغه د لښکر قومندان وي ، د ځينو کسانو دا وينا ده چي رسول الله ﷺ د منصور په فرمايلو سره اشاره وفرمايل چي د هغه څرګندونه سوې ده او هغه مشهور عالم حضرت ابو منصور ماتريدي وو چي د هغه درجه د حنفي فقه د اصول د مدون حيثيت سره په حنفيه کي امام ګڼل کيږي او د هغه ذات د حنفي اصول فقه مدار دی.

﴿۵۲۲۵﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُكَلِّمَ السِّبَاعُ الْإِنْسَ وَحَتَّى تُكَلِّمَ

په هغه ذات دي مي قسم وي د چا په واک کي چي زما روح ده قيامت به نه راځي تر څو پوري چي درندګان د خلکو سره خبري ونه کړي او تر څو پوري چي خبري ونه کړي

الرَّجُلَ عَذَبَةُ سَوْطِهِ وَشِرَاكُ نَعْلِهِ وَتُخْبِرَهُ فَخِذُهُ بِمَا أَحْدَثَ أَهْلُهُ بَعْدَهُ. رواه الترمذي

د سړي د دُرې تسمې او د څپليو تسمې د هغه سره تر دې چي سړي ته به خپل ورون ووايي چي هغه په نه شتون کي د هغه اهل او عيال څه څه کړي دي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۱۳، رقم: ۲۱۸۱.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د قيامت نښې به كله ظاهريږي

﴿۵۲۲۶﴾: عَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْآيَاتُ بَعْدَ الْمِائَتَيْنِ. رواه ابن ماجه.

د حضرت ابو قتاده ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: (د قيامت) نښې به دوه سوه كاله وروسته شروع سي. ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۳۴۸، رقم: ۴۰۵۷.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ دوينا مطلب دا وو چې كوم شيان او كومې خبرې د قيامت نښې ګرځول سوي دي د هغو څرګندېدل او پېښېدل به د دوو سوو كالو وروسته پيل سي، پاته سوه دا خبره چې دغه دوه سوه كاله له څه وخت څخه مراد دي نو د هجرت نبوي دوخت څخه يا د اسلام د رڼا د ظهور دوخت څخه او يا د رسول الله ﷺ د وفات د وخت څخه دوه سوه كاله وخت مراد دی، او دا هم كيدای سي چې پر المائتين باندې د لام حرف د عهد لپاره وي چې مطلب يې دادی چې د قيامت نښې به د دوو سوو كالو وروسته وي، د نور زيات وضاحت لپاره دا سې ويل كيږي چې د دوو سوو كالو څخه دوولس سوه كاله مراد دي او دا به هغه زمانه وي چې د قيامت كوچنۍ نښې به څرګنده سوي وي او لوی نښې لكه د حضرت مهدي عليه السلام څرګندېدل، دحضرت عيسى عليه السلام نزول، د دجال راوتل او نوري پرله پسې نښې څرګندېدل يعني لمر د ختيځ پر ځای د لوېديځ څخه راختل، د دابة الارض راوتل، او د ياجوج ماجوج وغيره څرګندېدو وخت رانژدې سي او اهل علم به محسوس كړي چې دنيا دخپل عمر اخري حدودو ته رسېدلې ده.

### يوه لارښوونه

﴿۵۲۲۷﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَأَيْتُمُ الرَّايَاتِ السُّودَ قَدْ جَاءَتْ مِنْ قبل خُرَاسَانَ فَأْتُوهَا فَإِنَّ فِيهَا خَلِيفَةَ اللّٰهِ الْمَهْدِيَّ. رواه احمد والبيهقي في دلائل النبوة.

د حضرت ثوبان ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چي تاسو د خراسان د لوري تور بيرغونه راتلل ووينئ نو هغه خوا متوجه سئ (يعني په هغه خلكو كي ګډ سئ) ځكه چي په هغه بيرغو كي به د الله ﷻ خليفه مهدي وي . احمد او بيهقي.

**تخريج** : مسند الامام احمد ۵\۲۷۷.

**تشريح**: د توري نښې څخه مراد حارث او د منصور لښكر دى چي د هغه په اړه په يو تير سوي يو حديث كي ذكر وسو ، او د متوه كېدو څخه مراد په هغه لښكر كي شامليدل او د راتلونكو اميرانو او حاكمانو اطاعت او فرمانبرداري كول دي .

د مهدي څخه مراد د هغه لغوي معنى ده يعني هغه خليفه او مشر چي يو معمولي سړى نه وي بلكه د الله ﷻ له خوا هدايت يافته وي او خلك به د هدايت پر لار بيايي چي د هغه مشرتوب قبلول او د هغه اطاعت كول به واجب وي .

په دغه ارشاد كي له مهدي څخه نه خو حضرت مهدي ﷺ مراد دى او نه ددې خبري تضاد معلوميږي چي د مهدي ظهور به د حرمين شريفين څخه كيږي .

## امام مهدي به د حضرت حسن ﷺ د اولاد څخه وي

﴿۵۲۲۸﴾ : وَعَنْ أَبِي إِسْحَقَ قَالَ قَالَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَنَظَرَ إِلَى ابْنِهِ الْحَسَنِ

د حضرت ابو اسحاق ﷺ څخه روايت دى چي حضرت علي ﷺ خپل زوى حسن ﷺ ته وكتل

وَقَالَ إِنَّ ابْنِي هٰذَا سَيِّدٌ كَمَا سَمَّاهُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَيَخْرُجُ

او ويې ويل : زما دا زوى څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي سردار دى ، ډير ژر به ددې د

مِنْ صُلْبِهِ رَجُلٌ يُسَمَّى بِاسْمِ نَبِيِّكُمْ يُشْبِهُهُ فِي الْخُلُقِ وَلَا يُشْبِهُهُ فِي الْخَلْقِ

ثُمَّ ذَكَرَ قِصَّةً يَمْلَأُ الْأَرْضَ عَدْلًا . رواه ابوداؤد ولم يذكر القصة.

ملا څخه يو سړى پيدا سي چي د هغه نوم به ستاسو د نبي په نامه وي ، په اخلاقو او عاداتو كي به د هغه ﷺ متشابه وي ، په صورت او شكل كي به مشابه نه وي ، ددې څخه وروسته حضرت علي ﷺ د هغه سړي د عدل او انصاف واقعه بيان كړل چي مځكه به دعول څخه ډكه كړي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۴۷، رقم: ۴۲۹۰.

**تشريح** لكه څرنګه چي رسول الله ﷺ د هغه په اړه فرمايلي دي ، ددغه قول په ذريعه حضرت

علي ﷺ د رسول الله ﷺ دغه ارشاد ته اشاره وفرمايل : ابني هذا سيد ولعل الله ان يصلح به بين فئتين عظيمتين من المسلمين ، يعني زما دغه زوی سيد (سردار) دی او اميد دی چي الله ﷻ به دده په ذريعه د مسلمانانو د دو ولويو ډلو په منځ كي صلح راولي .

په ظاهري شكل او صورت كي به د رسول الله ﷺ مشابه نه وي يعني حضرت مهدي ؑ به په ټولو شيانو كي او په هر اعتبار د رسول الله ﷺ د ظاهر شكل او صورت مشابه نه وي ، مګر په ځيني اعتبار سره د هغه له رسول الله ﷺ سره ظاهري مشابهت ثابت دی لكه چي مخكي بيان سول، دغه حديث ددې خبري دليل دی چي حضرت امام مهدي ؑ به د حضرت امام حسن ﷺ له اولاد څخه وي او حضرت امام حسن ﷺ ته د هغه نسبت به د مور له طرفه وي او په دې سره د شيعه ګانو ددغه قول ترديد كيږي چي امام مهدي ؑ په اصل كي محمد ابن حسن عسكري دی چي په دغه دنيا كي موجود دی، مګر د نظرونو څخه پټ سوی دی، او په خپل وخت به ظاهريږي، د شيعه ګانو دا قول ځكه صحيح نه دی چي محمد ابن حسن عسكري ﷺ په اتفاق سره حسيني دی هغه د حضرت امام حسن ﷺ د اولاد څخه نه دی كه دا وويل سي چي حضرت علي ﷺ د امام حسن ﷺ د اولاد څخه د يو سړي پيدا كېدو ته اشاره كړې ده ، كيدای سي ددې څخه مراد د امام مهدي ؑ څخه پرته بل څوك وي، نو دا خبره هم خلاف حقيقت وي ځكه چي مځكه د عدل او انصاف څخه ډكونكې خبره ددې ترديد كوي، نو په هيڅ روايت كي هم حسني يا حسيني ساداتو څخه د هيڅ داسي سړي ذكر نسته چي هغه ته د مځكي د عدل او انصاف څخه د ډكونكي خبري نسبت سوی وي پرته له دې څخه چي دغه صفت د مهدي ؑ په باره كي نقل كيږي .

## د ملخانو ختمېدل د قيامت د نښو څخه دی

﴿۵۲۲۹﴾ : وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ فُقِدَ الْجَرَادُ فِيْ سَنَةٍ مِّنْ سِنِيْ عُمَرَ

حضرت جابر بن عبدالله ﷺ وايي په كوم كال چي حضرت عمر ﷺ وفات سوی دی په هغه كال ملخان نه راغلل ، حضرت عمر ﷺ

الَّتِيْ تُوُفِّيَ فِيْهَا فَاهْتَمَّ بِذٰلِكَ هَمًّا شَدِيْدًا فَبَعَثَ إِلَى الْيَمَنِ رَاكِبًا وَرَاكِبًا إِلَى

دا په خاصه توګه محسوسه كړه او پر ملخانو نه راتلو باندي غمګين سو ، بيا يې د يمن په لوري يو

الْعِرَقِ وَرَاكِبًا إِلَى الشَّامِ يَسْأَلُ عَنِ الْجَرَادِ هَلْ أُرِيَ مِنْهُ شَيْئًا فَأَتَاهُ الرَّاكِبُ

سپور وليږی او د عراق په لوري يو سپور وليږي او د شام په لوري يو سپور وليږی چي هلته په رسيدو

سره د ملخانو په باره کي پوښتنه وکړي چي يو چا چيري ليدلي دي ، کوم سپور چي

الَّذِيْ مِنْ قِبَلِ الْيَمَنِ بِقَبْضَةٍ فَنَثَرَهَابَيْنَ يَدَيْهِ فَلَمَّا رَآهَا عُمَرُ كَبَّرَ وَقَالَ

يمن ته ليږل سوی وو هغه يو موټ ملخان راوړل او د حضرت عمر رضي الله عنه مخ ته يې ايله کړل د هغه

په ليدو سره حضرت عمر رضي الله عنه الله اکبر وو ايه ، بيا يې دا بيان وکړ چي

سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ خَلَقَ أَلْفَ

ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي الله تعالی زر امتونه پيدا کړي دي

أُمَّةٍ سِتُّمِائَةٍ مِنْهَا فِي الْبَحْرِ وَأَرْبَعمِائَةَ فِي الْبَرِّ فَإِنَّ أَوَّلَ هَلَاكِ هٰذِهِ الْأُمَّةِ

په دې کي شپږ سوه په درياب کي دي او څلور سوه په وچه کي دي ، په حيوانانو کي به تر ټولو

الْجَرَادُ فَإِذَا اَهْلَكَ الْجَرَادُ تَتَابَعَتِ الْأُمَمُ كَنِظَامِ السِّلْكِ . رواه البيهقي في

شعب الإيمان.

اول ملخان هلاک سي ، بيا به د حيوانانو نور ډولونه يو په بل پسې هلاکيږي لکه څرنګه چي د

ملغلرو تار خلاص سي او ملغلري يو په بل پسې ايله کيږي . بيهقي.

**تخريج** : البيهقي في شعب الايمان ۷\ ۲۳۴، رقم: ۱۰۱۳۲.

==============

# بَابُ الْعَلَامَاتِ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ وَذِكْرِ الدَّجَّالِ

## (د قيامت څخه مخکي د ښکاره کېدونکو نښو او د دجال يادونه)

په دغه باب کي د آخري زمانې د هغه نښو او علاماتو يادونه سوې ده چي قيامت ته نژدې به ښکاره کېږي لکه چي په تېر سوي باب کي د کوچنيو نښو يادونه وه.

بايد چي د حضرت امام مهدي عليه السلام د ښکاره کېدو يادونه هم په دغه باب کي سوې وای ځکه چي د هغه د وجود تعلق د حضرت عيسی عليه السلام او د دجال سره دی مګر د حضرت مهدي عليه السلام ذکر د تېرو بابو په هغه حديثو کي سوی دی چي په هغو کي د داسي فتنو او جګړو يادونه وه چي د امام مهدي عليه السلام د ښکاره کېدو څخه مخکي به واقع کيږي ، او د هغه د ظاهرېدو وروسته به ختم سي

ځکه په دغه باب کي د هغه یادونه ونه سول.

د قیامت څخه مخکي چي د کومو لسو نښو یادونه کیږي او د کتاب مؤلف دلته نقل کړي دي د هغو ظاهرېدل او واقع کېدو چي کوم ترتیب په حدیثو او روایاتو کي منقول دي په هغو کي اختلاف دی چي په ځینو حدیثو او روایتو کي په یوه ترتیب سره نقل سوي دي او په ځینو کي په بل ترتیب سره منقول دي، شارحینو د هغو په منځ کي مطابقت او موافقت پیدا کولو لپاره ډېر څه لیکلي دي چي د هغه یو څه برخه به د حدیثو د تشریح په څنګ کي ذکر کړل سي، مګر دا خبره باید په ذهن کي وي چي په دغه لسو نښو کي تر ټولو لویه او سخته نښه د دجال څرګندېدل دي چي د هغه په اړه ډېر زیات مشهور احادیث منقول دي.

## د دجال او مسیح معنی

د (دجال) لفظ د دجل څخه ایستل سوی دی چي معنی یې د غلط، مکر او د تلبیس ده، کله چي یو څوک یوه صحیح خبره د یوې غلطي خبري سره ګډوي او چمبازي کوي نو ویل کیږي چي دجل الحق بالباطل، یعني هغه حق د باطل سره ګډ وډ کړ، د دجل معنی د کذب یعني دروغو هم ده نو ددجال په ذات کي دغه دواړي معناوي تر لاسه کېدل بالکل څرګنده خبره ده، له دې څخه پرته په قاموس او نورو کتابو کي ددجال نوري د تسمیې وجهي هم ذکر سوي دي.

مسیح یو داسي مشترک نوم دی چي د حضرت عیسی عليه السلام او دجال دواړه لپاره استعمالیږي، مګر په عامه توګه سره دا کیږي چي کله دغه لفظ ددجال لپاره استعمالیږي نو هغه یوازي د دجال سره مقید کوي یعني مسیح دجال ورته وایي او کله چي د حضرت عیسی عليه السلام لپاره استعمالیږي نو دغه لفظ مطلق استعمالوي یعني یوازي مسیح ورته وایي، حضرت عیسی عليه السلام ته مسیح ځکه ویل کیږي چي هغه به یو ړوند یا پیس یا بل ناروغ باندي لاس راتېر کړ نو هغه به روغ سو، یا دا چي د حضرت عیسی عليه السلام پښه د عامو خلکو په ډول نه وه بلکه هواره وه ځکه حضرت عیسی عليه السلام ته مسیح ویل کیږي، یا دا چي حضرت عیسی عليه السلام د مور د نس څخه بالکل ممسوح یعني پاک پیدا سوی وو، د زېږېدو په وخت کي ماشوم چي د کومو شیانو سره د مور له نس څخه راوځي هغه خیري دده سره نه وي بالکل پاک د مور د نس څخه راغلی دی، په دې اعتبار ورته مسیح ویل کیږي، د ځینو علماوو په نزد د مسیح معنی د صدیق ده په دې اعتبار ورته مسیح ویل بالکل څرګنده خبره ده، یوه خبره دا هم کیږي چي حضرت عیسی عليه السلام به د مځکي فاصله ډېر ژر پرې کول نو د مساحت په مناسبت سره نو موړي ته مسیح ویل کیږي.

دجال ته هم د مسيح ويلو يوه وجه داوه چي هغه به تقريبا د ټولي مځکي تګ کوی او په ټوله دنيا کي به ګرځي او دغه ملعون ته د مسيح ويلو نوري وجهي هم دي يو خو دا چي د هغه يوه سترګه به غائبه وي او يوې خوا ته مخ به يې ممسوح وي ، دوهم دا چي هغه به يو داسي کس وي چي د هغه څخه خير او نيکي ليري کړل سوې ده لکه څرنګه چي د حضرت عيسى عليه السلام د ذات څخه بدي او خيري ليري کړل سوي دي، نو حضرت عيسى عليه السلام خو مسيح الله او دجال ملعون مسيح الضلالت دی، ځينو حضراتو ويلي دي چي ددجال لپاره د مسيح لفظ دی چي د هغه معنی د بد شکل او بد صورت ده او د حضرت عيسى عليه السلام لپاره د مسيح لفظ دی ، دا چي ځينو خلکو ويلي دي چي د دجال لپاره د مسخ لفظ دی نو دا خبره غلطه ده .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د قيامت د راتللو لس غټي نښي

﴿۵۲۳۰﴾: عَنْ حُذَيْفَةَ بْنِ أَسِيدٍ الغفاري قَالَ اِطَّلَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت حذيفه بن اسيد غفاري رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د قيامت ذکر کوی چي رسول الله

وَسَلَّمَ عَلَيْنَا وَنَحْنُ نَتَذَاكَرُ فَقَالَ مَاتَذَاكَرُونَ قَالُوا نَذْكُرُ السَّاعَةَ قَالَ إِنَّهَا

صلى الله عليه وسلم زموږ و طرف ته وکتل او وه يې فرمايل چي تاسو څه بحث کوئ ؟ موږ وويل چي د قيامت خبري کوو ، هغوئ وفرمايل چي قيامت به

لَنْ تَقُومَ حَتَّى تَرَوْنَ قَبْلَهَا عَشْرَ آيَاتٍ فَذَكَرَ الدُّخَانَ وَالدَّجَّالَ وَالدَّابَّةَ

تر هغه وخته پوري نه راځي تر څو پوري چي تاسو لس نښي وه نه وينئ، ددې څخه وروسته رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه نښو ذکر وکړ او وه يې فرمايل : دود چي په مشرق او مغرب کي به تر ځلوېښتو ورځو پوري خپرېږي، دجال، دابه (يعني د دابة الارض ظهور)، (دابة الارض يو حيوان دی چي شپيته ګزه اوږد د هغه سره به د حضرت موسى عليه السلام همسا او د حضرت سليمان عليه السلام ګوتمۍ وي، په ځغاسته کي به هيڅوک د هغه مقابله نه سي کولای هغه به پر مؤمن د موسى عليه السلام همسا ووهئ او د هغه پر مخ به مؤمن وليکل سي او د کافر پر مخ به مهر لګولو سره کافر وليکي)

وَطُلُوعَ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا وَنُزُولَ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ وَيَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ

د لمر د مغرب څخه راختل، د عيسى بن مريم عليه السلام نازليدل، ياجوج او ماجوج ،

وَثَلَاثَةَ خُسُوفٍ خَسْفٌ بِالْمَشْرِقِ وَخَسْفٌ بِالْمَغْرِبِ وَخَسْفٌ بِجَزِيرَةِ

پر درو ځايونو باندې د مځکې خسف يو په مشرق کې، دويم په مغرب کې او دريم په جزيره

الْعَرَبِ وَآخِرُ ذَلِكَ نَارٌ تَخْرُجُ مِنَ الْيَمَنِ تَطْرُدُ النَّاسَ إِلَى مَحْشَرِهِمْ . وفي

عرب کې ، هغه اور چې د عدن ددې غاړې څخه به وځي او خلک به د حشر په لور بيايي . . او په

رواية نَارٌ تَخْرُجُ مِنْ قُعْرَةِ عَدَنٍ تسوق النَّاسَ إِلَى الْمَحْشَر . وفي رواية في العاشرة وَرِيحٌ تُلْقِي النَّاسَ فِي الْبَحْرِ . رواه مسلم

يوه روايت کې لسمه نښه يوه هواء بيان سوې ده چې خلک به په درياب کې وغورځوي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\ ۲۲۲۵، رقم: ۳۹- ۲۹۰۱.

**تشريح**: په حديث کې چې د قيامت د کومو لسو لويو نښو يادونه سوې ده په هغو کې د لومړنۍ نښې په توګه د دود يادونه ده ، هغه به يو داسې لوی دود وي چې په څرګندېدو سره به له ختيځ څخه تر لوېديځ پورې په ټوله مځکه کې خپور سي او تر پرله پسې څلوېښتو ورځو پورې به خپور وي، ددې په وجه به ټول خلک سخت پريشان سي ، مسلمانان به يوازې د دماغ، حواسو او زکام په خرابۍ کې اخته سي او منافقين او کفار به بې هوشه سي او د هغوئ هوش او حواس به داسې خراب سي چې ځيني به تر شو ورځو پورې په هوش کې نه راځي، څرګنده دې وي چې په قرآن کريم دا فرمايل سوي دي : (فارتقب يوم تاتي السماء بدخان مبين) نو د حضرت حذيفه رضي الله عنه او د تابعينو د ټولو مطابق په دغه آيت کې هغه دود ته اشاره سوې ده مګر د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه او د هغه د تابعينو په نزد په دغه آيت کې د دود څخه مراد د غلې هغه وچ کالي ده کوم چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه کې د مکې پر قريشو نازل سوې وه او د هغه حقيقي سبب د رسول الله صلى الله عليه وسلم دغه ښېرا وه چې اې الله! ته پر دغه خلکو (چې سرکښ دي او د اسلام په دښمنۍ کې د حد څخه تيرې کوي) اووه کاله قحط نازل کړې، لکه څرنګه چې يو وړې سړی د ضعف او کمزورۍ د سختوالي په وجه تر سترګو تياره محسوس کوي او د فضاء څخه د که هوا ورته د

دود په ډول معلومېږي همدارنګه چي په يوه سيمه کي وچ کالي خپره سي نو د باران نه کېدو په وجه په ټول چاپيريال کي چي د کومي وچ کالۍ د غبار زياتوب سي نو هغه فضاء داسي چټله کړي چي څلورو خواوو ته د دود په صورت کي تياره معلومېږي.

د (دابة الارض) څخه مراد يو عجيب الخلقت او د نادر شکل حيوان دی چي په مسجد حرام کي به د صفا او مروه له مينځ څخه راوځي او د هغه يادونه په قرآن کريم کي هم په دغه الفاظو سوې ده (اخرجنالهم دابة من الارض)، علماوو ليکلي دي چي هغه حيوان به د درنده په شکل کي وي چي دهغه اوږدوالی به شپېته ګزه وي او ځينو ليکلي دي چي د هغه عجيب الخلقت حيوان شکل به داسي وي چي مخ به يې د انسانانو په ډول، پښې به يې د اوښ په ډول، غاړه به يې د آس په ډول، لکۍ به يې د شرموښ په ډول، کوناټي به يې د هوسۍ په ډول، لاسونه به يې د بېزو په ډول وي او د هغه د څرګندېدو صورت به دا وي چي د صفا غر به ناڅاپه په زلزلې سره وچوي او د هغه څخه به دغه حيوان راووځي، د هغه په يوه لاس کي به د حضرت موسی عليه السلام لکړه وي په دوهم لاس کي به د حضرت سليمان عليه السلام ګوتمۍ وي، په ټولو ښارو او سيمو کي به داسي تيز سفر کوي چي هيڅوک به يې لاندي کولای نسي او په ځغاسته کي به د هغه په مقابله کولو سره خلاصيدای نه سي، هر ځای چي ځي پر هغه سړي به نښه لګوي څوک چي صاحب ايمان وي او هغه به د حضرت موسی عليه السلام په لکړه سره کوي، او د هغه پر تندي به مؤمن ليکي او کوم چي کافر وي پر هغه به د حضرت سليمان عليه السلام په ګوتمۍ سره تور مهر وهي، او دهغه پر مخ به کافر ليکي، ځينو حضراتو دا ويلي دي چي دابة الارض به درې واره راوځي، يو ځل د امام مهدي عليه السلام په زمانه کي بيا د حضرت عيسی عليه السلام په زمانه کي او بيا په آخري ځل د لمر د لوېديځ له خوا راختلو څخه وروسته.

د لمر د لويديځ له خوا د راختلو په اړه وضاحت به د راتلونکي يو حديث په تشريح کي بيان سي، د آسمان څخه د حضرت عيسی عليه السلام نازلېدل به د حضرت امام مهدي عليه السلام د ظهور څخه وروسته وي نو هغه به يوه ورځ مابنام د آسمان څخه د دمشق د جامع مسجد پر مشرقي سپينه مناره باندي راکښته سي بيا به د دجال په پلټنه کولو سره هغه پر لد دروازه باندي قتل کړي، لد په شام کي د يو ځای نوم دی او ځينو حضراتو د فلسطين د يو ځای نوم ورته ويلي دي، څرګنده دي وي چي په دغه حديث کي د کومو لسو نښو يادونه سوې ده د هغه د ترتيب په باره کي دا خبره سوې ده چي په هغه کي به تر ټولو مخکي د کومي نښي ظهور وي هغه دود دی، د هغه څخه وروسته به دجال راوځي، بيا به حضرت عيسی عليه السلام د آسمان څخه راکښته کيږي بيا به

ياجوج او ماجوج راوځي بيا به دابة الارض راوځي بيا به لمر د لويديځ څخه راخيژي ، دا خبره ځکه کيږي چي د حضرت عيسى عليه السلام په زمانه کي به پر ټوله مځکه دمؤمنانو څخه پرته بل هيڅوک نه وي ځکه ټول کفار به مسلمانان سي او د هغوئ ايمان به مقبول سي ، ددې پر خلاف که چيري دا وويل سي چي د لويديځ څخه د لمر راختل به ددجال راوتلو او د حضرت عيسى عليه السلام د نازلېدو څخه مخکي وي، نو څرګنده ده چي کوم کفار د حضرت عيسى عليه السلام په زمانه کي مسلمانان سوي وي د هغوئ ايمان راوړل به مقبول ونه ګرځي ځکه چي لمر د لويديځ څخه راختلو وروسته د توبې دروازه بنديږي او هغه وخت د هيڅ کافر ايمان قبلېدل اعتبار نه لري، حال دا چي د حضرت عيسى عليه السلام په زمانه کي د ايمان قبلونکو ټولو خلکو ايمان به معتبر وي او هغوئ به مسلمانان منل کيږي نو په حديث کي چي ذکر سوي نښي په کوم ترتيب سره ذکر سوي دي د هغو نښو واقع کېدل په اصل ترتيب سره نه دي او نه دلته داصل ترتيب ذکر کول مراد دي بلکه اصل مقصد د هغه نښو يو ځای ذکر کول دي نو د ترتيب د لحاظ پرته هغه يو ځای ذکر کړل سول نو دا اشکال نه سي رامنځته کيدای چي کله د حضرت عيسى عليه السلام نزول د لمر د لويديځ څخه د راختلو د واقعې څخه مخکي به وي نو دلته د نزول عيسى عليه السلام د لمر څخه وروسته ولي ذکر وسو .

ياجوج او ماجوج په اصل کي د دوو قبيلو نومونه دي چي د يافث ابن نوح د اولاد څخه دي، دغه دواړي قبيلې ډيري وحشي مګر طاقتور دي د هغوئ خاص بوختيا غلاوي او پر مځکه باندي فتنه او فساد خپرول وو، دغه قبيلې چي په کوم ځای کي اوسېدلې هغه ذوالقرنين په يو داسي دېوال سره چي د هغه لوړوالی د هغه ځای د دواړو خواوو د غرونو څوکي تهرسيږي او پنډوالي يې شپېته ګزه دی، بند کړی وو چي خلک ددغه قبيلو د شر او فساد څخه خوندي پاته سي ، کله چي قيامت رانژدې سي او دياجوج اوماجوج د راتللو وخت سي نو دېوال به مات سي.

رسول الله ﷺ د درو خسوفو (لمر تورېدو) يادونه وکړل، په دې اړه ابن مالک رحمة الله عليه ويلي دي چي د عذاب الهي په توګه د مځکي غرقيدل په مختلفو زمانو کي او مختلفو سيمو کي واقع سوي دي مګر احتمال دی چي دلته په حديث کي د کوم درو خسوفو يادونه سوې ده هغه د مخکي څخه واقع کېدونکو خسوفو څخه پرته دي او تر هغه هم زيات سخت وي.

او خلک به په شړلو سره د حشر مځکي ته بيايي: دلته د حشر د مځکي څخه مراد د شام هغه سيمه ده چيري چي به يې هغه اور په شړلو سره پربږدي ، ځينو حضراتو ويلي دي چي صحيح خبره داده چي د هغه اور پيل به د شام له هيواد څخه کيږي يا دا چي د شام هيواد به دومره

وسيع او پراخ كړل سي چي د ټولي نړۍ خلک به په هغه كي جمع كړل سي ، په هر حال د حديث ددغه جملې مفهوم دا نه دی چي ددغه اور د خلكو شړل به د حشر څخه وروسته وي كه د حشر د مځكي څخه مراد د حُشر ميدان واخيستل سي نو يقينا دا مفهوم به پيدا كېدی او په دې به اعتراض هم واقع كيدی مګر كله چي دلته د حشر ميدان مراد نه دی نو بيا اعتراض هم نه پيدا كيږي، په يوه روايت كي دا منقول دي چي هغه اور به د حجاز د مځكي څخه څرګنديږي ، حال دا چي دلته په حديث كي د هغه د يمن له خوا څخه ښكاره كېدل ذكر سوي دي، نو قاضي عياض رحمة الله عليه ويلي دي چي كيدای سي د قيامت د نښو په توګه چي د كوم اور يادونه سوې ده هغه يو نه بلكه دوه وي او هغه دواړه د خلكو په شړلو سره د حشر مځكي ته بيايي يا دا چي هغه اور خو يو وي چي په پيل كي د يمن څخه راځي مګر د هغه ظهور به د حجاز څخه وي، دلته ددې خبري وضاحت هم ضروري دی چي په دې اړه د بخاري كوم روايت دی په هغه كي دا فرمايل سوي دي چي د قيامت د نښو څخه تر ټولو لومړنۍ نښه به هغه اور وي چي خلک به د ختيځ څخه په شړلو سره لويديځ ته بيايي، حال دا چي په حقيقت كي هغه اور به تر ټولو آخري نښه وي لكه چي دلته په حديث كي په ذكر سوي ترتيب سره څرګنديږي، نو دغه تقضاء ددغه تاويل په ذريعه ليري كيږي چي د اور تر ټولو آخري نښه كېدل خو د مذكوره نښو په اعتبار دي چي دلته په حديث كي د كومو نښو يادونه سوې ده په هغو كي تر ټولو آخري نښه به ذكر سوی اور وي، د بخاري په روايت كي اور چي تر ټولو لومړنۍ نښه ګرځول سوې ده نو هغه په دې اعتبار چي اور به د قيامت د نښو تر ټولو لومړنۍ نښه وي چي د هغه څخه وروسته به د دنيا د شيانو څخه هيڅ شی پاته نه سي بلكه ددغه نښو په واقع كېدو سره به شپيلۍ پوه كړل سي ددې پر خلاف دلته په حديث كي چي دكومو نښو يادونه سوې ده په هغو كي د هري نښي څخه وروسته به هم د دنيا شيان پاته وي.

د يوې داسي هواء يادونه سوې ده چي خلک به په درياب كي وغورځوي، دغه روايت په ظاهره د هغه روايت خلاف دی چي په هغه كي داور يادونه ده نو ددغه دواړو روايتونو په منځ كي مطابقت پيدا كولو لپاره دا ويل سوي دي چي په دغه دوهم روايت كي د (ناس) يعني خلكو څخه مراد كفار دي او دهغوئ شړونكی اور به په سخت باد سره يو ځای سوی وي چي د هغه كفارو په درياب كي د غورځولو عمل به په زياتي تيزي سره پوره سي، او ذكر سوی اور چي د هغه او به د اور په صورت كي سي د قرآن كريم په دغه الفاظو (و اذا البحار سجرت) كي دغه حقيقت ته اشاره سوې ده ، ددې پر خلاف د مؤمنانو لپاره چي كوم اور وي هغه به محض د

بېرولو لپاره وي او د دُرې په ډول به دهغه کار وي، چي هغوئ به په شړلو سره د حشر میدان او موقف اعظم ته بیایي.

## د قیامت هغه شپږ نښي چي د هغه د ظاهرېدو څخه مخکي زيات اعمال صالحه اختيار کړئ

﴿۵۲۳۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَادِرُوا بِالْأَعْمَالِ سِتًّا الدُّخَانَ وَالدَّجَّالَ وَدَابَّةَ الْأَرْضِ وَطُلُوعَ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا أَمْرَ الْعَامَّةِ وَخُوَيْصَةَ أَحَدِكُمْ. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: (د قيامت) ددغه شپږو نښو د ښکاره کېدو مخکي پر ښه اعمالو تلوار وکړئ (او هغه نښي دادي): دود، دجال، دابة الارض، د مغرب څخه دلمر ختل، عامه فتنه، خاصه فتنه، يعني هغه فتنه چي په تاسو کي د چا سره خاصه وي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۲۲۲۷، رقم: ۱۲۹- ۲۹۴۷.

**تشريح**: د شپږو شيانو په وجه...ترپايه: مطلب دادی چي د قيامت ددغه شپږو شيانو ظاهرېدو او دهغه د رارسېدو څخه مخکي چي څومره زيات کيدای سي نيک کارونه کوئ ځکه چي ددغه شيانو رامنځته کېدو وروسته به يا خو نيک کارونه کول مشکل سي او يادا که يو نيک کار وکړل سي نو د هغه اعتبار به نه وي.

د (امر عامه) څخه مراد د بدۍ او دين څخه د بېزارۍ هغه فتنه ده چي په اجتماعي توګه ټول خلک راګير کړي او ټوله ټولنه د هغه په غيږ کي راسي ، د خاص فتنې څخه مراد هغه مخصوص مسائل او آفات دي چي په انفرادي توګه به يو سړی دومره پريشانه کوي چي هغه د دين او آخرت معاملاتو ته زياته توجه ورکولو والا نه سي ، لکه خپل او خپل اهل وعيال او مال کي مختلف ډول پريشانۍ او بوختيا ، يو احتمال دا هم دی چي دلته د امر عامه څخه مراد قيامت او فتنه خاص څخه مراد مرګ وي ، په دغه صورت کي به ويل کيږي چي د حديث مقصد دخلکو د قيامت د نښو څخه ويرول دي ځکه ددغه نښو په څنګ کي خپله د قيامت او د قيامت صغرى (يعني مرګ) راتلو څخه هم بېرول سوي دي.

پاته دوو. څخه مخکي ذکر سوي دي حال دا چي د واقع کېدو په اعتبار لمر وروسته دی نو ددې وجه داده چي د ایمان نه قبلېدو اصل مدار پر دې دی، یعني د توبې او ایمان نه قبلېدل به هغه وخت وي کله چي لمر د لویدیځ څخه راوخیژي ځکه نو دا مخکي ذکر کړل سو، او له دې سره دوې نوري نښي یعني دجال او دابة الارض راوتل هم یو ځای کړل سول.

## کله چي د لمر د مغرب څخه د راختلو حکم وسي

﴿۵۲۳۴﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ غَرَبَتِ

د ابوذر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ما ته د لمر لویدو په وخت کي وفرمایل:

الشَّمْسُ أَتَدْرِي أَيْنَ تَذْهَبُ هٰذِهِ قُلْتُ اَللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّهَا تَذْهَبُ

تا ته معلومه ده چي لمر لویږي نو چیري ځي؟ ما عرض وکړ الله جل جلاله او د هغه رسول ﷺ ښه پوهیږي، رسول الله ﷺ وفرمایل: هغه ځي

حَتّٰى تَسْجُدَ تَحْتَ الْعَرْشِ فَتَسْتَأْذِنُ فَيُؤْذَنُ لَهَا وَيُوْشِكُ اَنْ تَسْجُدَ وَلاَ

تر دې چي د عرش لاندي ورسیږي سجده کوي بیا د رب العزت په حضور کي حاضري کولو سره اجازه غواړي هغه ته اجازه ورکول سي او حکم ورکول سي چي د مشرق په لور ولاړ سي او د هغه

يُقْبَلُ مِنْهَا وَتَسْتَأْذِنُ فَلاَ يُؤْذَنُ لَهَا وَيُقَالُ لَهَا ارْجِعِي مِنْ حَيْثُ جِئْتِ

ځای څخه راوخیژي او هغه وخت قریب دی چي هغه به سجده وکړي او د هغه سجده به قبوله نه سي او د حاضرۍ او راختلو اجازه به غواړي او اجازه به ورنه کړل سي او دا حکم به ورکړل سي د کومي خوا څخه چي راغلی یې هغې خوا ته بیرته ولاړ سه،

فَتَطْلَعُ مَنْ مَغْرِبِهَا فَذَالِكَ قَوْلُهُ تَعَالٰى وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا قَالَ وَ مُسْتَقَرُّهَا تَحْتَ الْعَرْشِ. رواه مسلم

نو هغه به د مغرب څخه راوخیژي او دا مراد دی د الله تعالی ددغه قول: (والشمس تجري لمستقر لها) یعني لمر په خپل مستقر یعني د قرار ځای ته ځي، رسول الله ﷺ د مستقر په اړه فرمایلي دي چي هغه د عرش الهي لاندي دی. مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٩٧، رقم: ٣١٩٩، ومسلم ١\١٣٨، رقم: ٢٥٠- ١٥٩.

**تشريح**: ځينو علماؤ ليكلي دي چي په دغه حديث كي د (فانها تذهب حتى تسجد تحت العرش) الفاظ د قرآن كريم د دغه آيت خلاف نه دي چي په هغه كي دا فرمايل سوي دي چي:

(حَتَّى إِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَغْرُبُ فِي عَيْنٍ حَمِئَةٍ)

ځكه چي د دغه آيت مطلب په اصل كي د حد نظر بيانول دي ، حال دا چي دلته په حديث كي دا بيان سوي دي چي د لمر لوېدو څخه وروسته د عرش لاندي رسېدو سره سجده كوي .

خطابي رحمة الله عليه دا احتمال بيان كړی دی چي تر عرش لاندي د رسېدو سره د لمر د سجدې كولو چي كومه خبره فرمايل سوې ده د هغه دا مراد هم كيدای سي چي لمر تر عرش لاندي په رسېدو سره مستقر كيږي، پاته سوه دا خبره چي د هغه د مستقيم كېدو كيفيت او حقيقت څه دی نو ددې ادراک او اظهار د انساني علم د احاطې څخه وتلی دی .

په (تستاذن) كي د استيذان څخه مراد د الله جل جلاله په حضور كي د حاضرۍ اجازه غوښتل دي مگر د دغه لفظ زيات واضح مفهوم دا كيدای سي چي لمر تر عرش لاندي د سجدې كولو څخه وروسته د خپل معمول سره سم د راختلو اجازه غواړي او هغه ته اجازه وركول كيږي .

د لمر مستقر تر عرش لاندي دی: مطلب دادی چي لمر د غروب كېدو وروسته تر عرش لاندي ځي او هلته سجده كوي بيا هغه اجازه غواړي نو هغه ته اجازه وركول كيږي ، څرگنده دي وي چي د ذكر سوي آيت (والشمس تجري لمستقر لها) په تفسير كي بيضاوي د مستقر څو معناوي بيان كړي دي، مگر عجيبه خبره داده چي هغوئ د مستقر د هغه وضاحت هيڅ ذكر نه دی كړی كوم چي د بخاري او مسلم په ذكر سوو حديثو كي د بيانولو په وجه تر ټولو زيات د باور وړ دی او د هغه څخه دا متعين كيږي چي د مستقر څخه څه مراد دی .

## د دجال د فتنې څخه لويه هيڅ فتنه نه سته

﴿۵۲۳۵﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ ابْنِ حُصَيْنٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ مَا بَيْنَ خَلْقِ آدَمَ إِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ اَمْرٌ اَكْبَرُ مِنَ الدَّجَّالِ. رواه مسلم.

د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې : د آدم عليه السلام د زېږېدني څخه تر قيامت قائميدو پوري د دجال څخه لويه فتنه بله نسته . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۴\۲۲۶۷، رقم: ۱۲۶- ۲۹۴۶.

## دجال یو سترگی دی

﴿۵۲۳۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَخْفَى عَلَيْكُمْ إِنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِأَعْوَرَ وَإِنَّ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ أَعْوَرُ عَيْنَ الْيُمْنَى كَأَنَّ عَيْنَهُ عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ. متفق عليه.

د حضرت عبد الله رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی پر تاسو مخفي نه دی (یعني تاسو د هغه د حقیقت څخه خبر یاست) هغه ړوند نه دی او مسیح دجال ړوند دی یعني د هغه راسته سترګه ړنده ده لکه هغه چي د انګور یوه پړسیدلې دانه ده. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۳۸۹، رقم: ۷۴۰۷، ومسلم ۱۴\۲۲۴۷، رقم: ۱۰۰- ۱۶۹.

**تشریح**. الله جل جلاله پر تاسو پټ نه دی، دغه جمله په اصل کي د مخکني عبارت (الله جل جلاله ړوند نه دی ...ترپایه) د تمهید په توګه ده، مطلب یې دادی چي د شریعت د بنوول سوو خبرو په رڼا کي تاسو د الله تعالی د حقیقت څخه خبر یاست او د هغه ذات تاسو د هغه په صفات کامله سره پېژندلی دی نو هر کله چي د دجال ظهور وسي او هغه د خپلو چمبازیو په ذریعه تاسو د خپل پرودرګار په دربار کي ګمراه کول غواړي نو تاسو مه ګمراه کیږئ.

الله جل جلاله یو سترګی نه دی... ترپایه: د دغه جملې په ذریعه د الله جل جلاله په ذات او صفاتو کي د یو نقصان او عیب نفي کول مراد دي، نه دا چي د هغه ذات لپاره د یو بدني اندام او د هغه اندام صحیح او سالم ثابتول مراد دي، یعني اصل مقصد دا څرګندول دي چي الله جل جلاله د انسان د جنس څخه نه دی او نه د هغه د خلکو په ډول سترګه ده چي هغه دي ړنده وي.

د طافیة لفظ دلته په یاء سره منقول دي، مګر په ځینو روایتو کي دغه لفظ په همزه سره هم منقول سوی دی، لغوي معنی یې د لوړه ده نو د عنبة طافیة مفهوم د انګور د پړسېدلي دانې ده، څرګنده دي وي چي د دجال د سترګي په اړه دا روایت د هغه روایت خلاف نه دی چي په هغه کي فرمایل سوي دي چي (انها لیت بناتئة ولاحجراء) یعني د هغه سترګه نه راپورته سوې او نه ډوبه سوې ده، د دغه دواړو روایتو په منځ کي منافات په دې اعتبار نه دی چي کیدای سي دغه دواړي خبري د هغه په سترګو کي موجود وي یعني د هغه یوه سترګه خو داسي وي لکه د انګور

پړسېدلې دانه او دوهمه سترګه يې داسي وي چي نه خو پړسېدلي وي او نه ننوتلې وي،

توربشتي رحمة الله عليه ويلي دي : د دجال د بدني حالت په خاصه توګه د سترګي په اړه چي کوم حديثونه نقل سوي دي په هغو ټولو کي زيات تضاد او تعارض دی او ډېر ځله په هغو کي مطابقت پيدا کول مشکل کيږي ، د مثال په توګه دلته چي کوم حديث نقل سوی دی په هغه کي خو دا بيان سوي دي چي د هغه سترګه به طافيه (راوتلې) وي لکه د انګور پړسېدلې دانه، په بل حديث کي دي چي هغه به جاحظ العين (يعني پړسېدلي سترګي والا) وي، او پړسېدلې سترګه به هم داسي وي لکه چي يو ستوری پکښي ايښودل سوی وي، او په بل روايت کي دي چي د هغه سترګه به نه پړسېدلي وي او نه به ننوتلې وي، نو په دغه ټولو روايتو کي د مطابقت لپاره دا ويل کيدای سي چي دهغه د سترګي چي مختلف صورتونه بيان سوي دي د هغه تعلق د دواړو سترګو د يوې د بلي ځخه مختلف کېدل دي يعني يوه سترګه به داسي وي او بله به هغسي، چي د هغه تائيد د عبدالله رضي الله عنه د ذکر سوي روايت ځخه هم کيږي چي په هغه کي د دجال پر راسته سترګه باندي د ړندوالي کېدل نقل سوي دي، په دې اړه چي کوم روايت د حضرت ابو حذيفه رضي الله عنه ځخه منقول دي په هغه کي دادي چي هغه به ممسوح العين يعني مسح کړل سوی سترګه والا وي او د هغه سترګه به غټه وي او په يوه روايت کي دا هم راغلي دي چي هغه به په چپه سترګه ړوند وي ، ددغه روايتو په منځ کي د مطابقت پيدا کولو لپاره دا هم ويل کيږي چي د هغه د سترګي د عيب دار کېدو چي کوم مختلف بيانونه سوي دي هغه بېل بېل د دواړو سترګو په اعتبار دي يعني د هغه يوه سترګه خو به بالکل غائبه وي او بله به هم عيب داره وي همدارنګه د هغه پر دواړو سترګو باندي د عور اطلاق کيدای سي ځکه چي د عور اصل معنی د عيب ده نو د هغه راسته سترګه به هم عيب لرونکې وي او چپه سترګه هم .

## هر نبي خپل امت د دجال ځخه بېرولی دی

﴿۵۲۳۷﴾ : وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا قد أَنْذَرَ اُمَّتَهُ الْأَعْوَرَ الْكَذَّابَ اَلَا إِنَّهُ أَعْوَرُ وَإِنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِأَعْوَرَ مَكْتُوبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ ك ف ر. متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : هيڅ يو نبي داسي نه دی تير سوی چي هغه خپل امت د درواغجن ړانده ځخه بيرولی نه وي ، خبردار! دجال ړوند دی او

ستاسو پروردګار ړوند نه دی او ددجال د دواړو سترګو په منځ کي ک ف ر (يعني کفر) ليکلي سوی دی. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۹۱، رقم: ۷۱۳۱، ومسلم ۴\۲۲۴۸، رقم: ۱۰۱- ۲۹۳۳.

**تشريح**: داسي هيڅ نبي نه دی تېر سوی ...ترپايه: دا خبره ښکاره ښکارندېږي چي الله ﷻ د دجال د ظاهرېدو هيڅ يو ټاکلی وخت نه دی فرمايلی، يوازي دومره ښکارنده ده چي هغه به دقيامت څخه مخکي ښکارندېږي او د قيامت د راتللو ټاکلی وخت هيچا ته معلوم نه دی ځکه نو ددجال د ظاهرېدو وخت هم چا ته معلوم نه دی.

ستاسو پروردګار ړوند نه دی: يعني الله ﷻ ددې څخه پاک دی چي دهغه په ذات او صفاتو کي دي يو عيب او نقص وي، ښکارنده دي وي چي رسول الله ﷺ دغه خبره د تکلم مع الناس على قدر عقولهم، سره سم د عامو خلکو د پوهېدو لپاره وفرمايل چي د هغوئ په عقل او فهم کي راسي چي عبادت او طاعت د هغه ذات کيدای سي چي هغه په خپل ذات او صفاتو کي د هرډول عيب او نقصان څخه پاک وي.

د (ک ف ر) څخه د کفر لفظ مراد دی، په مصابيح او د مشکوة په نسخه کي دغه درې سره حرفونه بېل بېل ليکل سوي دي او ددې څخه دا مفهوم اخيستل کيږي چي د دجال پر مخ به د کفر لفظ داسي ليکلی وي او ددې څخه دې ته اشاره ده چي دجال په اصل کي تباهی او هلاکت يعني کفر ته بلونکی او د کفر خپرولو باعث دی، نه د فلاح او کاميابی طرف ته بلونکی، نو د هغه څخه ځان ساتل او د هغه اطاعت نه کول واجب دي، په حقيقت کي دا د الله تعالی له لوري ددغه امت په حق کي يو لوی نعمت دی چي ددجال ددواړو سترګو په منځ کي به د کفر لفظ ښکارند وي چي د هغه څخه به هر صاحب ايمان ته د هغه د مکر او فريب څخه د ځان ساتني اساني وي.

## د دجال جنت او دوږخ

﴿۵۲۳۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا أُحَدِّثُكُمْ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا زه تاسو ته ددجال په

حَدِيثًا عَنِ الدَّجَّالِ مَا حَدَّثَ بِهِ نَبِيٌّ قَوْمَهُ إِنَّهُ أَعْوَرُ وَإِنَّهُ يَجِيءُ مَعَهُ بِمِثَالِ

باره کي هغه خبره ونه بنيم کومه چي هيڅ يو نبي خپل قوم ته نه ده کړې هغه به ړوند وي او د ځان

الْجَنَّةِ وَالنَّارِ فَالَّتِي يَقُولُ إِنَّهَا الْجَنَّةُ هِيَ النَّارُ وَإِنِّي أُنْذِرُكُمْ كَمَا أَنْذَرَ بِهِ نُوحٌ قَوْمَهُ. متفق عليه.

سره به د دوږخ او جنت په ډول دوه شيان راوړي كوم شي ته چي هغه جنت وايي هغه به په حقيقت كي دوږخ وي او كوم شي ته چي دوږخ وايي هغه به جنت وي) زه تاسو د هغه څخه بيروم لكه څرنګه چي نوح عليه السلام خپل قوم د هغه څخه بيرولی وو . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\ ٣٧٠، رقم: ٣٣٣٨، ومسلم ٤\ ٢٢٥٠، رقم: ١٠٩- ٢٩٣٦.

**تشريح**: مطلب دادی چي ددجال سره به ډېر طلسماني طاقت وي څكه هغه به د ځان سره يو ډېر لوی باغ او د اور بېرغ ګرځوي چي هغه به يې په خپل جنت او دوږخ سره تعبير كوي، يا د جنت څخه مراد د راحت او عيش سامان دی او له دوږخ څخه مراد د تكليف او غم شيان دی او د هغه تكليف رسول دي .

په حقيقت كي هغه به اور وي...ترپايه: ددغه جملې وضاحت يو شارح دا كړی دی چي د يو سړي ددجال په جنت كي داخلېدل او هغه قبلول په حقيقت كي په الهي عذاب كي اخته كېدل او دوږخ ته د تللو لار اختيارول، په دې قياس كولو سره نور اجزاء داسي بيانيږي چي د جال كوم شي ته دوږخ وايي په حقيقت كي هغه به جنت وي يعني كوم څوک چي د هغه اطاعت نه كوي او دهغه په وجه هغه په خپل دوږخ كي اچوي نو هغه سړی به په حقيقت كي ددجال د تكذيب كولو او د هغه په وړاندي د كښته كېدو څخه د انكار كولو په سبب په جنت كي داخليږي، يو وضاحت دادی، مګر زيات ښه مفهوم دا معلوميږي چي د جال كوم شي ته خپل جنت او كوم شي ته خپل دوږخ وايي او په هغه كي كوم خلک داخل كړي هغه دواړه به د هغوئ لپاره بالكل برعكس ثابتيږي او دهغوئ فعل به سرچپه سي يعني كوم خلک چي په تكليف كي اخته كولو سره په دوږخ كي واچوي نو دا به د هغوئ لپاره د تكليف پر ځای د اطمينان او راحت ځای جوړ سي او كومو خلكو ته چي د عيش په وركولو سره په جنت كي داخل كړي نو هغه به د هغوئ لپاره د عيش او راحت پر ځای د تكليف او غم ځای جوړ سي او دا داسي ده لكه چي فرمايل سوي دي: (القبر روضة من رياض الجنة او حفرة من حفر النيران) يعني قبر يا خو د جنت د باغچو څخه يوه باغچه ده او يا د دوږخ له كندو څخه يوه كنده ده، يعني دقبر ماحول او دهغه فعل د بندګانو په اعتبار مختلف وي د كوم بنده څخه چي الله تعالی ناراضه وي د هغه لپاره د هغه قبر د غم او

تکلیف ځای جوړ سي او د دې قبیل څخه د الله تعالی دغه ارشاد دی :

(یَا نَارُ کُونِي بَرْدًا وَسَلاَمًا عَلَی إِبْرَاهِیمَ)

اې اوره! ته د ابراهیم علیه السلام لپاره یخ او د سلامتیا سبب جوړ سه، او همدغه حال د دغه مکدر دنیا دی چي بندیخانه ورته ویل سوي دي، یعني دغه بندیخانه دخپلو ټولو سختیو سربېره د هغه عارفینو او اهل الله لپاره د جنت شکل اختیاروي کوم چي پر رضا باندي فائز وي او د الله جل جلاله د رضا لپاره د دغه ځای پر هره تنګي او تکلیف باندي صبر او عزیمت او په ښه زړه سره ګالي نو د هغه لپاره دوه جنتونه دي یو خو دادنیا د هغوئ لپاره جنت جوړیږي او یو جنت هغوئ ته په عقبی کي ورکول کیږي ځکه د عارفینو په نظر کي دنیا بالکل برعکس معلومیږي چي د هغوئ په نزد نعمت او راحت په حقیقت کي نقمت یعني عذاب وي او د دغه ځای نقممت په حقیقت کي نعمت وي .

څرګنده دي وي چي د حدیث اصل مقصد خلک د دجال د چمبازیو څخه بېرول دي ځکه چي دلته یوازي د لومړنی برخي یعني د دجال د جنت د حقیقت پر یادونه اکتفاء وسوه، که څه هم په ځینو نورو حدیثو کي د دویمي برخي ، یعني د هغه د دوږخ د حقیقت هم بیان سوی دی، نو دمفهوم په اعتبار دلته پوره عبارت به داسي وي ، هغه چي کوم شي ته جنت وایي هغه به په حقیقت کي اور وي او کوم شي ته چي دوږخ وایي هغه به په حقیقت کي جنت وي .

د دجال په اړه مخکي په عامه توګه د هر نبي ذکر کولو څخه وروسته بیا په پای کي په خاصه توګه د حضرت نوح علیه السلام ذکر کول له دې کبله دي چي په مشهورو نبیانو کي د هغه ذات مقدم دی.

## دجال چي کوم څوک په مصیبت کي واچوي هغه به په حقیقت کي راحت وي

﴿۵۲۳۹﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الدَّجَّالَ

د حضرت حذیفه رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : د جال به

يَخْرُجُ وَإِنَّ مَعَهُ مَاءً وَنَارًا فَأَمَّا الَّذِي يَرَاهُ النَّاسُ ماء فنار يحرق واما

د اوبو او اور سره راووځي ، هغه شی چي خلک یې او به ګڼي هغه به سوځونکي اور وي او کوم

الذي يراه الناس نَارًا فَمَاءٌ بَارِدٌ عَذْبٌ فَمَنْ أَدْرَكَ ذَلِكَ مِنْكُمْ فَلْيَقَعْ فِي

شی چي د اور خیال پر کیږي په حقیقت کي به هغه یخي او خوږې اوبه وي ، په تاسو کي چي

څوک دجال ترلاسه کړي نو هغه دي په هغه شي کي غورځيدل

الَّذِي يَرَاهُ نَارًا فَإِنَّهُ مَاءٌ عَذْبٌ طَيِّبٌ ، متفق عليه و زاد مسلم وَإِنَّ لدَّجَّالُ

خوبن کړي کوم چي په خپلو سترګو سره اورويني ځکه چي هغه اور په حقيقت کي خوږې او يخي اوبه دي. بخاري او مسلم ، د مسلم په يوه روايت کي ذا الفاظ زيات ليکلي دي چي د دجال

مَمْسُوحُ الْعَيْنِ عليها ظفرة غليظة مَكْتُوبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ كَافِرٌ يقرئه كل مؤمن كاتب وغير كاتب .

يوه سترګه به ناسته وي او په دويمه سترګه به غټه سرمن وي د هغه د سترګو په منځ کي به کافر ليکلي وي چي هغه به هر مؤمن که ويونکی وي او نا ويونکي وويلای سي .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٦\ ٤٩٤، رقم: ٣٤٥٠، ومسلم: ٤\ ٢٢٤٩، رقم: ١٠٥- ٢٩٣٤.

**د لغاتو حل**: ظفرة: اى لحمة غليظة او جلدة (پنډه غوښه يا پوست)

**تشريح**: د هغه سره به اوبه وي: دلته د اوبو څخه مراد د عيش او راحت هغه اسباب دي چي د هغو ظاهري تعلق د اوبو سره وي او د هغه په ذريعه هغه خلک خپل اتباع ته مائل کوي ، همدارنګه د اور څخه مراد هغه شی دی چي په ظاهره تکليف ورکوونکي وي کنه نو د حقيقت په اعتبار هغه به خلکو ته تکليف او اذيت نه سي ورکولای کوم چي دجال يې ګڼي، و د هغه د اتباع څخه انکار کوي .

خلک چي کوم شی اوبه ګڼي ...ترپايه: مطلب دادی چي دجال کوم شيان د خلکو په نظر کي د عيش او راحت شيان ښيي يا کوم شيان چي هغه تکليف رسوونکي ظاهروي هغه به د حقيقت په اعتبار برعکس وي ، دمثال په توګه څوک چي د خپل اتباع کولو په صلح کي هغه په اوبو سره ونازوي نو په پای کي به هغه خلک د تل لپاره په اور کي سوځي، همدارنګه هغه چي کومو خلکو ته د خپلي نافرمانۍ په سزا کي اور ته وسپاري نو هغه اور ته الله ﷻ يخ والی او راحت ورکولو لپاره د اوبو تاثير ورکړی دی، لکه چي د ابراهيم ؑ لپاره د غرو اوريې يخ او د راحت باعث وګرځوی، نو خلاصه دا سوه چي کوم شيان ددجال په ذريعه ظاهر سي او دفتنې باعث جوړ سي د هغه حقيقت به هغه نه وي کوم چي په ظاهره معلوميږي بلکه هغه طلسماني او خيالي شيان دي لکه چي طلسم والا خپل کړنه ښيي مګر څرنګه چي مخکي وښودل سول دا هم

كيداى سي چي د هغه په ذريعه ښوونكي شيان حقيقي وي مګر د الله تعالى دقدرت كامله په حكم سره د هغه تاثير به بدل كړل سي چي اوبه خوبه يې سوز وي او اور به ورته يخ والى رسوي ځكه چي هغه به ډيري خوږې او غوره اوبه وي يعني په ظاهره اور به معلوميږي يا خو به د حقيقت په اعتبار يا د ماهيت بدلېدو په اعتبار يا دمال په اعتبار به اوبه وي چي د يخ والي او راحت رسولو باعث به وي ، ښركنده دي وي چي په حديث كي دلته د اختصار څخه كار اخيستل سوى دى او يوازي د يوې برخي په يادونه اكتفاء سوې ده كنه په حقيقت كي د هغه دوهمي برخي مفهوم هم پټ دى، نو پكار ده چي هغه د اوبو يعني د هغه د عيش او راحت اسبابو ته په مائل كېدو سره د دجال تصديق او اتباع ونه كړي ځكه چي په حقيقت كي به هغه اوبه نه وي بلكه يو ډول عذاب او حجاب به وي .

دجال به ممسوح العين وي...ترپايه: په دې اړه ښرنګه چي د ژباړي په وخت كي وضاحت سوى دى دا خبره بايد په ذهن كي وي چي دحديث د ظاهري الفاظو څخه دا مفهوم اخيستل كيږي چي د ننوتلي تعلق د هغه ستركي سره وي چي هغه ته ممسوح العين فرمايل سوي دي حال دا چي دا خبره مناسب نه ده ځكه چي د ممسوح العين معنى داده چي د هغه د ستركي پر ځاى بالكل ستركه او ورځي نه وي بلكه هغه ځاى بالكل هوار وي نو كله چي ستركه نه وي نو هغه ته د ننوتلي ستركي ويل څه معنى لري، دا به ويل كيږي چي ننوتلې به هغه ستركه وي چي بلي خوا ته وي ، هو كه د ممسوح څخه مراد محض عيب واخيستل سي نو په دغه صورت كي د حديث الفاظ پر خپل ظاهري معنى باندي محمول كيداى سي .

## د دجال پېژندنه

﴿۵۲۴۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ الدَّجَّالُ أَعْوَرُ الْعَيْنِ الْيُسْرَى جُفَالُ الشَّعَرِ مَعَهُ جَنَّةٌ وَنَارٌ فَنَارُهُ جَنَّةٌ وَجَنَّتُهُ نَارٌ. رواه مسلم.

د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دجال په چپه ستركه ړوند دى وريښتان به يې ډېروي ده سره به جنت او اوروي ، دده اور به جنت او جنت به يې اور وي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\۲۲۴۸، رقم: ۱۰۴- ۲۹۳۴.

**د لغاتو حل**: جُفال: اى كثير الشعر المجتمعة (ببر سر)

**تشريح**: په دغه حديث شريف كي فرمايل سوي دي چي د دجال چپه ستركه به نه وي، حال دا

چي په دې اړه په مخکني حديث کي تېر سوي دي د هغه به راسته سترګه ړنده وي او د هغه يوه سترګه به بالکل غائبه وي، نو ددغه دواړو حديثونو په منځ کي چي کوم ظاهري تضاد دی د هغه ختمولو لپاره ويل کيږي چي د هغه سترګه به بالکل غائبه وي او بلي خوا ته سترګه به يې بالکل عيب داره وي، په دې اعتبار زيات صحيح خبره داده چي د هغه هري سترګي ته اعور ويل کيږي ځکه چي د اعور اصل معنی د عيب ده ، ځينو حضراتو ددغه حديثونو په منځ کي په دا ويلو سره د مطابقت پيدا کولو هڅه کړې ده چي د دجال اعور کېدل به د خلکو د فرق په نسبت سره وي يعني ځيني خلک به د هغه د چپه سترګي عيب ويني او ځيني خلک به د هغه د راسته سترګي عيب ويني او داسي به ځکه وي چي د هغه درواغجن کېدل بالکل ظاهر سي ځکه د ټولو خلکو په نظر کي که د هغه اصل حيثيت او حالت رانسي بلکه هغوئ د سترګو په اعتبار کله هغه يو ډول او کله بل ډول ويني نو خلک به دا ګڼي چي هغه جادوګر دی او دخپل جادو په ذريعه مختلف شکل اختياروي.

دا هم کيدای سي چي په دغه دواړو حديثو کي د يو حديث له راوي څخه سهوه سوې وي چي د هغه د راسته سترګي پر ځای يې چپه سترګه يا د چپه سترګي پر ځای يې راسته سترګه ذکر کړې وي.

## د دجال کارنامې او د ياجوج ماجوج ذکر

﴿۵۲۴۱﴾: وَعَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ قَالَ ذَكَرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د نواس بن سمعان رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د دجال د ذکر کولو سره وفرمايل:

الدَّجَّالَ فَقَالَ إِنْ يَخْرُجْ وَأَنَا فِيكُمْ فَأَنَا حَجِيجُهُ دُونَكُمْ وَإِنْ يَخْرُجْ وَلَسْتُ

که دجال خروج وکړي او زه په تاسو کي موجود يم نو زه به د هغه سره ستاسو په مخکي بحث او خبري وکړم (او پر هغه به غالب سم) او که هغه وخت راووځي چي زه په تاسو کي موجود نه يم

فِيكُمْ فَامْرُؤٌ حَجِيجُ نَفْسِهِ وَاللّٰهُ خَلِيفَتِي عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ إِنَّهُ شَابٌّ قَطَطٌ عَيْنُهُ

نو په تاسو کي به هر سړی د خپل لوري څخه د هغه سره بحث او خبري کونکي ياست (يعني د هغه د بدۍ د دفع کونکي او خپل ځان به د هغه څخه ساتونکي ياست) او پر مسلمانانو زما وکيل او خليفه الله تعالی دي ، دجال به ځوان وي آلوول وريښتان به يې وي او د هغه سترګه به

طَافِئَةٌ كَأَنِّي أُشَبِّهُهُ بِعَبْدِ الْعُزَّى بْنِ قَطَنٍ فَمَنْ أَدْرَكَهُ مِنْكُمْ فَلْيَقْرَأْ عَلَيْهِ فَوَاتِحَ

بو که راوتلې وي ګويا زه هغه ته د قطن د زوی عبدالعزی سره تشبیه ورکولای سم، په تاسو کي چي څوک هغه ووینی د هغه په مخکي دي

سُورَةِ الْكَهْفِ وفي رواية فليقرا عليه بفواتح سورة الكهف فانها جواركم من

د سورة کهف لومړني آیاتونه وو ايي ځکه چي دا آیاتونه به تاسو د دجال د فتنې څخه وساتي، او په یوه روایت کي راغلي دي چي د سورة کهف اول ایاتونه پر وایاست ځکه چي بېشکه دا

فتنته انه خَارِجٌ خَلَّةً بَيْنَ الشَّأْمِ وَالْعِرَاقِ فَعَاثَ يَمِينًا وَعَاثَ شِمَالًا يَا عِبَادَ اللهِ

ستاسو د امن سبب دی له فتنې دده څخه، دجال به پر هغه لار راځي چي د شام او عراق په منځ کي واقع ده او راسته او چپه خوا به فساد خپروي، اې د الله ﷻ بندګانو

فَاثْبُتُوا قُلْنَا يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا لَبْثُهُ فِي الْأَرْضِ قَالَ أَرْبَعُونَ يَوْمًا يَوْمٌ كَسَنَةٍ

خپل دین محکم کړئ، موږ عرض وکړ اې د الله رسوله ! هغه به تر څو پوري په مځکه کي وي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل څلوېښت ورځي، هغه یوه ورځ به د یوه کال برابر وي

وَيَوْمٌ كَشَهْرٍ وَيَوْمٌ كَجُمُعَةٍ وَسَائِرُ أَيَّامِهِ كَأَيَّامِكُمْ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللهِ فَذَلِكَ

او یوه ورځ به یې د یوې میاشتي برابر وي او یوه ورځ به یې د یوې هفتې برابر وي او پاته ورځي به یې زموږ د ورځو برابري وي، موږ عرض وکړ اې د الله رسوله !

الْيَوْمُ الَّذِي كَسَنَةٍ أَتَكْفِينَا فِيهِ صَلَاةُ يَوْمٍ قَالَ لَا اقْدُرُوا لَهُ قَدْرَهُ قُلْنَا يَا رَسُولَ

د هغه یوه ورځ چي د یوه کال برابر وي نو ایا په هغه ورځ به زموږ د یوې ورځي لمونځ کافي وي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل :یا، بلکه په هغه ورځ به د یوې ورځي اندازه کولو سره لمونځ کول وي (یعني یوه یوه ورځ به اندازه کولو سره لمونځ کوي ) موږ عرض وکړ اې د الله رسوله !

اللهِ وَمَا إِسْرَاعُهُ فِي الْأَرْضِ قَالَ كَالْغَيْثِ اسْتَدْبَرَتْهُ الرِّيحُ فَيَأْتِي عَلَى الْقَوْمِ

هغه به په مځکه کي څومره په تیزي سره ځي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : هغه به د باران په ډول تیز رفتاره وي چي په هغه پسي به هوا لګیدلې وي هغه به یو قوم ته ورسی

فَيَدْعُوهُمْ فَيُؤْمِنُونَ بِهِ فَيَأْمُرُ السَّمَاءَ فَتُمْطِرُ وَالْأَرْضَ فَتُنْبِتُ فَتَرُوحُ عَلَيْهِمْ

او هغوئ ته به خپل دعوت ورکړي خلک به پر هغه ایمان راوړي بیا به هغه آسمان ته د باران حکم ورکړي نو باران به و اوروي او مځکي ته به حکم ورکړي نو مځکه به شنه او زرغونه کړي

سَارِحَتُهُمْ أَطْوَلَ مَا كَانَتْ ذُرًا وَأَسْبَغَهُ ضُرُوعًا وَأَمَدَّهُ خَوَاصِرَ ثُمَّ يَأْتِي الْقَوْمَ

بیا به مانښام د هغه قوم حیوانان د څرند څخه راسي د هغوئ قبونه به غټ غټ سي غولانزي به يې غټي سي او د شیدو څخه به ډکي سي او اړخونه به يې ښه را وايستل سي بیا به دجال یو بل قوم

فَيَدْعُوهُمْ فَيَرُدُّونَ عَلَيْهِ قَوْلَهُ فَيَنْصَرِفُ عَنْهُمْ فَيُصْبِحُونَ مُمْحِلِينَ لَيْسَ

ته ورسیږي او هغوئ ته به خپل دعوت ورکړي هغه قوم به د هغه دعوت رد کړي نو هغوئ به پر ځای پریږدي د هغوئ څخه به ولاړ سي او هغوئ به قحط وهلي وي

بِأَيْدِيهِمْ شَيْءٌ مِنْ أَمْوَالِهِمْ وَيَمُرُّ بِالْخَرِبَةِ فَيَقُولُ لَهَا أَخْرِجِي كُنُوزَكِ فَتَتْبَعُهُ

د هغوئ د مال څخه به د هغوئ سره هیڅ پاته نه سي بیا به دجال په یوه کنډواله یا خرابه تیر سي او هغې ته به حکم ورکړي چي هغه خپلي خزانې راوباسي نو هغه خرابه به د هغه د حکم سره سم

كُنُوزُهَا كَيَعَاسِيبِ النَّحْلِ ثُمَّ يَدْعُو رَجُلًا مُمْتَلِئًا شَبَابًا فَيَضْرِبُهُ بِالسَّيْفِ

خزانې راوباسي او هغه خزانې به داسي پرله پسې وي لکه د شاتو د مچیو ملکې پسې چي موچې وي بیا به دجال یو سړی چي د ځوانۍ د جوش څخه به ډک وي هغه ته به خپل (د خدایي) دعوت ورکړي هغه زلمی به د دجال دعوت رد کړي دجال به ورته غضب ناک سي په توره به يې ووهي

فَيَقْطَعُهُ جَزْلَتَيْنِ رَمْيَةَ الْغَرَضِ ثُمَّ يَدْعُوهُ فَيُقْبِلُ وَيَتَهَلَّلُ وَجْهُهُ يَضْحَكُ

هغه زلمی به دوې ټوټې سي او هره ټوټه به د بلي څخه دومره لیري وغورځیږي چي د دواړو په منځ کي به د ویشتلي غشي برابر فاصله وي بیا به دجال هغه ټوټې راوبلي نو هغه زلمی به ژوندی راسي دغه وخت به د دجال مخ خوشحاله وي او هغه به د خپل الوهیت په دې کارنامه خاندي

فَبَيْنَمَا هُوَ كَذَلِكَ إِذْ بَعَثَ اللَّهُ الْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ فَيَنْزِلُ عِنْدَ الْمَنَارَةِ الْبَيْضَاءِ

غرض دجال به د غسي خپلو کارونو کي مشغول وي چي په دغه وخت کي به ناڅاپه الله تعالی

مسیح ابن مریم علیه السلام را ولیږي چي د دمشق په شرقي کي به پر سپینه مناره نازل سي

شَرْقِيَّ دِمَشْقَ بَيْنَ مَهْرُودَتَيْنِ وَاضِعًا كَفَّيْهِ عَلَى أَجْنِحَةِ مَلَكَيْنِ إِذَا طَأْطَأَ رَأْسَهُ

دغه وخت به حضرت عیسی علیه السلام دوې ژړي جامې اغوستي وي او خپل دواړه لاسونه به يې د ملائکو پر وزرو ایښي وي (یعني عیسی علیه السلام به د ملائکو پر وزرونو باندي لاسونه ایښي د آسمان څخه را کښته سي) هغه چي خپل سر کښته کړي

قَطَرَ وَإِذَا رَفَعَهُ تَحَدَّرَ مِنْهُ مثل جُمَانٌ كَاللُّؤْلُؤِ فَلَا يَحِلُّ لِكَافِرٍ يَجِدُ من رِيحَ

نو خوله به ځیني څاځي او چي سر پورته کړي نو د هغه د سر څخه به د سپینو زرو د دانو په ډول چي د غمیانو په ډول به وي څاڅکي بهیږي، کوم کافر چي د هغه د ساه هواء ووینې

نَفَسِهِ إِلَّا مَاتَ وَنَفَسُهُ يَنْتَهِي حَيْثُ يَنْتَهِي طَرْفُهُ فَيَطْلُبُهُ حَتَّى يُدْرِكَهُ بِبَابِ لُدٍّ

نو مړ به سي او د حضرت عیسی علیه السلام د ساه هوا به د نظر تر حده پوري ځي بیا به عیسی علیه السلام دجال ولټوي او هغه به په باب لد (چي په شام کي یو غر دی) تر لاسه کړي

فَيَقْتُلُهُ ثُمَّ يَأْتِي عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ الى قوم قد عصمهم الله مِنْهُ فَيَمْسَحُ عَنْ

او قتل به يې کړي، بیا به حضرت عیسی علیه السلام ته یو قوم راسي چي الله تعالی به د دجال د فتنې څخه محفوظ ساتلی وي، عیسی علیه السلام به د هغوئ د مخ څخه ګرد صاف کړي ا

وُجُوهِهِمْ وَيُحَدِّثُهُمْ بِدَرَجَاتِهِمْ فِي الْجَنَّةِ فَبَيْنَمَا هُوَ كَذَلِكَ إِذْ أَوْحَى اللَّهُ إِلَى

و د هغه درجو خوشخبري به ورکړي چي هغوئ ته په جنت کي حاصلي وي، حضرت عیسی علیه السلام به په دې حالت کي وي چي الله تعالی به هغه ته وحي را ولیږي

عِيسَى إِنِّي قَدْ أَخْرَجْتُ عِبَادًا لِي لَا يَدَانِ لِأَحَدٍ بِقِتَالِهِمْ فَحَرِّزْ عِبَادِي إِلَى الطُّورِ

او ورته وه به نښيي چي ما خپل ډیر بندګان داسي پیدا کړي دي چي د هغوئ سره د جنګ کولو طاقت د هیچا نه سته، ته زما بندګان کوه طور ته بوځه او هلته د هغوئ حفاظت کوه

وَيَبْعَثُ اللَّهُ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ وَهُمْ مِنْ كُلِّ حَدَبٍ يَنْسِلُونَ فَيَمُرُّ أَوَائِلُهُمْ عَلَى

بیا به الله تعالی یاجوج او ماجوج را ولیږي چي د هري لوړي ځمکي څخه به را کښته کیږي او

ځغلي به د دوئ لو مړی ډله به

بُحَيْرَةِ طَبَرِيَّةَ فَيَشْرَبُونَ مَا فِيهَا وَيَمُرُّ آخِرُهُمْ فَيَقُولُ لَقَدْ كَانَ بِهَذِهِ مَرَّةً مَاءٌ

د طبريه (په شام کي) بحيرې ته ورسيږي او د هغه ځای ټولي اوبه به وڅښني تر دوئ وروسته
چي هلته څوک تېرېږي هغه به دا فکر کوي چي دلته هيڅ وخت اوبه نه وې

ثُمَّ يَسِيرُونَ حَتَّى يَنْتَهُوا إِلَى جَبَلِ الْخَمَرِ وَهُوَ جَبَلُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ فَيَقُولُونَ

بيا به ياجوج ماجوج پر مخ ځي او جبل خمر ته به ورسيږي چي د بيت المقدس يو غر دی (دلته
چي تم سي نو وايي به)

لَقَدْ قَتَلْنَا مَنْ فِي الْأَرْضِ هَلُمَّ فَلْنَقْتُلْ مَنْ فِي السَّمَاءِ فَيَرْمُونَ بِنُشَّابِهِمْ إِلَى

پر مځکه چي کوم خلک وه هغوئ مو مړه کړل راځي چي اوس آسمان والا قتل کړو نو هغوئ به د
آسمان په لور غشي وولي

السَّمَاءِ فَيَرُدُّ اللَّهُ عَلَيْهِمْ نُشَّابَهُمْ مَخْضُوبَةً دَمًا وَيُحْصَرُ نَبِيُّ اللَّهِ وَأَصْحَابُهُ حَتَّى

او الله تعالى به هغه غشي په وينو لړلي راکښته کړې او د الله تعالى نبي او د هغه ملګري به په
کوه طور کي تم کړل سي تر دې چي

يَكُونَ رَأْسُ الثَّوْرِ لِأَحَدِهِمْ خَيْرًا مِنْ مِائَةِ دِينَارٍ لِأَحَدِكُمُ الْيَوْمَ فَيَرْغَبُ نَبِيُّ

د لوږي او غذا په اړتيا کي به د هغوئ حالت دې درجې ته ورسيږي چي په هغوئ کي به د هر
سړي په نزد د غوايي سر د سلو دينارو څخه غوره وي، د هغه دينارو څخه چي نن ستاسو په نزد
ډېر قيمتي دي (هر کله چي دا حالت سي) نو د الله تعالى نبي

اللَّهِ عِيسَى وَأَصْحَابُهُ فَيُرْسِلُ اللَّهُ عَلَيْهِمُ النَّغَفَ فِي رِقَابِهِمْ فَيُصْبِحُونَ فَرْسَى

عيسى عليه السلام او د هغه ملګري به د الله تعالى څخه دعا وغواړي چي هغه ياجوج ماجوج هلاک
کړي نو الله تعالى به د هغوئ په څټونو کي چينجي پيدا کړي او هغوئ به يو دم ټول مړه سي

كَمَوْتِ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ ثُمَّ يَهْبِطُ نَبِيُّ اللَّهِ عِيسَى وَأَصْحَابُهُ إِلَى الْأَرْضِ فَلَا يَجِدُونَ

بيا به عيسى عليه السلام او د هغه ملګري د غره څخه مځکي ته راکښته سي. او په مځکه کي به يوه

فِي الْأَرْضِ مَوْضِعَ شِبْرٍ إِلَّا مَلَأَهُ زَهَمُهُمْ وَنَتْنُهُمْ فَيَرْغَبُ نَبِيُّ اللَّهِ عِيسَى وَأَصْحَابُهُ

لويشت اندازه ځای تر لاسه نه کړي چې د یاجوج ماجوج د بوی د اثر څخه خوندي وي، عیسی علیه السلام او د هغه ملګري به الله تعالی ته سوال وکړي چې

إِلَى اللَّهِ فَيُرْسِلُ اللَّهُ طَيْرًا كَأَعْنَاقِ الْبُخْتِ فَتَحْمِلُهُمْ ... فتطرحهم حيث شاء

د دغه مصیبت څخه هغوئ خلاص کړي نو الله تعالی به داسي مرغان را ولیږي چې د هغوئ څټونه به د خراساني آسانو په ډول وي دا مرغان به د یاجوج ماجوج مړه بدنونه پورته کړي او چیري چې د الله جل جلاله مرضي وي هلته به یې وغورځوي

الله ، وفي رواية تَطْرَحُهُمْ بِالنَّهْبَلِ وَيَسْتَوْقِدُ الْمُسْلِمُونَ مِنْ قِسِيِّهِمْ وَنُشَّابِهِمْ

او په یوه روایت کي د االفاظ دي چې دغه مرغان به هغه جسدونه په نهبل کي وغورځوي (نهبل هغه ځای دی چې لمر ځیني راخیژي) مسلمانان به د یاجوج ماجوج لیندۍ، غشي او تیر کشان

وَجِعَابِهِمْ سَبْعَ سِنِينَ ثم يُرْسِلُ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مَطَرًا لَا يُكِنُّ مِنْهُ بَيْتُ وَبَرٍ وَلَا

تر اوو کالو پوري سوځوي ،بیا به الله تعالی یو لوی باران وکړي چې د هغه څخه به هیڅ یو داسي ابادي خالي پاته نه سي (چې هلته باران ونه سي)

مَدَرٍ فَيَغْسِلُ الْأَرْضَ حتي يَتْرُكَهَا كَالزَّلَفَةِ ثُمَّ يُقَالُ لِلْأَرْضِ انبتي ثَمَرَتَكِ

دا باران به مځکه پریولي صفا به یې کړي او هغه به د هوار کاڼي په ډول سي ، بیا به مځکي ته وویل سي چې خپلي میوې راوباسي

وَرُدِّي بَرَكَتَكِ فَيَوْمَئِذٍ تَأْكُلُ الْعِصَابَةُ مِنَ الرُّمَّانَةِ وَيَسْتَظِلُّونَ بِقَحْفِهَا وَيُبَارَكُ

او خپل برکت بیرته راوباسه ، نو په دغه ورځو کي به د لسو څخه تر څلوېښتو کسانو پوري یوه ډله په یوه انار مړیږي او د انار د پوستکي څخه به خلک د سایې کار اخلي ،

فِي الرِّسْلِ حَتَّى إِنَّ اللِّقْحَةَ مِنَ الْإِبِلِ لتكفي الفنام من الناس ولِلِّقْحة مِنَ

او په شیدو کي به برکت واچول سي تر دې چې د یوې اوښي شیدې به د یوې ډلي لپاره بس وي

الْبَقَرِ لتكفي القبيلة من الناس واللِّقحة مِنْ الْغَنَمِ لتكفي الفخذ من الناس

او لنګه غوا به د يوې ډلي بس کيږي او لنګه مېږه به د کوچنى ډلي بس کيږي ،

فَبَيْنَمَا هُمْ كَذَلِكَ إِذْ بَعَثَ اللَّهُ رِيحًا طيبة فتاخذهم تحت اباطهم فتقبض

خلک به په داسي خوشحالۍ او آرام سره ژوند تيروي چي الله تعالى به يوه خوشبوداره هواء راوليږي چي د هر مؤمن او مسلمان تر بغل لاندي به ورسيږي

رُوحَ كُلِّ مُؤْمِنٍ وكل مسلم وَيَبْقَى شرار النَّاسِ يَتَهَارَجُونَ فيها تهارج الحمر

او د مؤمن مسلمان روح به قبض کړي او په دنيا کي به يوازي شرير او خراب خلک باقي پاته سي چي په خپل منځ کي به د خرونو په ډول جګړې کوي

فَعَلَيْهِمْ تَقُومُ السَّاعَةُ. رواه مسلم الا الرواية الثانية وهو قوله تطرحهم بالنهبل الى قوله سبع سنين رواهما الترمذي.

او پر دغه خلکو به قيامت قائم سي ، دا مسلم روايت کړى دى خو دويم روايت يعني تطرحهم بالنهبل څخه تر سبع سنين پوري ترمذي روايت کړى دى .

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\ ۲۲۵۰، رقم: ۱۱۰- ۲۹۳۷.

**د لغاتو حل**: قطط: اى شديد جعودة الشعر. خلة: اى طريقا واقعا بين الشام والعراق. ذُري: جمع ذروة وهي اعلى السنام، واسبغة: اى اتم ما كانت. ممحلين: اى داخلين في المحل.

**تشريح**: (نو زه به د هغه سره ستاسو وړاندي...ترپايه) په دغه جمله کي اشاره ده که چيري دجال ښکاره سو نو رسول الله ﷺ به د دليل په ذريعه پر هغه باندي په غالب کېدو سره په خپل امت کي د يو چا د مرستي اړ نه وي، په هر حال د ذکر سوې جملې په وضاحت کي دا خبره بايد په ذهن کي وي چي دغه خبره خپله رسول الله ﷺ ته ښکاره نه وه چي د دجال ښکاره کېدل به زما څخه وروسته وي لکه چي په زيات يقين سره يې بيانولو او د هغه د ظهور د وخت مبهم کېدو ته په اشاره کولو او د کومو خلکو چي د دجال سره مخا مخ کېدل دي د هغوئ د هغه د فتنې څخه بېرول وو.

نو بيا په تاسو کي هر څوک د خپل ځان له لوري د هغه سره جګړه کوونکى...ترپايه: مطلب دادى چي د دجال د ښکاره کېدو په وخت کي چي کوم مسلمانان په دنيا کي موجود وي په هغوئ

كي به د هر يوه ذمه داري وي چي د هغه د شر څخه د ژغورني لپاره د شرعي، قطعي او عقلي دلائلو په ذريعه د هغه سره بحث او مباحثه وکړي او پر هغه غالب سي، مګر دا خبره د امکان ده چي دجال د هغوئ خبره واوري او وه يې مني، کنه نو د دغه جملې اصلي معنی به دا وي چي هغه وخت به د هر مؤمن دا ذمه داري وي چي هغه د دجال د تکذيب کولو ، د هغه د خبري منلو او هغه ته د تکليف او اذيت اختيارولو په ذريعه د هغه د شر څخه ځان وساتي .

زما وکيل او خليفه د هر مسلمان لپاره الله ﷻ دی، دلته په حقيقت کي دې ته اشاره ده چي زما څخه وروسته به الله تعالی د هر مؤمن او مسلمان حافظ او ناصر وي او د دجال د فتنې څخه په ساتنه کي به مرسته ورسره کوي، نو دا د دې خبري دليل دی چي کامل يقين لرونکی مؤمن به تل مرسته تر لاسه کوي که څه هم د هغوئ په منځ کي نبي او امام موجود نه وي، په دې اعتبار سره دغه حديث د اماميه ډلي خلاف يو ټينګ دليل دی.

دجال به زلمی وي: څرګنده سول چي پر ابن صياد باندي د دجال اطلاق کول صحيح نه دی لکه چي ځينو خلکو فکر کړی دی، په دغه الفاظو کي دې ته هم اشاره ده چي د سپينو وېښتانو په صورت کي چي يو سړي ته وقار تر لاسه کيږي د هغه څخه به دجال محروم وي .

عبد العزی ابن قطن د يو يهودي نوم وو ، په څرګنده دا معلوميږي چي هغه مشرک وو ځکه چي عزی د يو بت نوم دی او هغه ته د عبد يعني بنده نسبت کوونکي مشرک دی، د دې تائيد د ځينو حضراتو د دغه قول څخه هم کيږي چي عبدالعزی د خزاعه قبيلې يو سړی وو چي د جاهليت په زمانه کي مړ سوی دی، دا چي رسول الله ﷺ دجال ته د عبد العزی سره تشبيه ورکړل نو په دې کي يې د جزم اظهار ونه فرمايه بلکه د لکه لفظ د اظهار شک ذکر سوې تشبيه په انداز کي د بيانولو لپاره دی، ملا علي قاري رحمة الله عليه هم وضاحت کړی دی چي (کاني) يعني لکه لفظ د شک د اظهار لپاره نه دی بلکه اصل خبره داده چي له کوم چا سره تشبيه ورکړل سوې ده يعني عبد العزی د هغه تعارف رسول الله ﷺ ته په عالم کشف يا په خوب کي تر لاسه سوی وو ، ځکه نو د هغه سره د دجال د تشبيه په وخت کي رسول الله ﷺ د کاني لفظ استعمال کړ، لکه څرنګه چي د يو خوب بيانولو د دغه طرز معتبر وي .

د سورة کهف د لومړنيو آياتو څخه مراد د پيل څخه تر (ان يقولون الا کذبا) پوري آياتونه دي، د دغه آياتونو د دجال په وړاندي د ويلو حکم ځکه ورکړل سوی دی چي په دې کي کوم مضامين مذکور دي هغه د الله تعالی د ذات او صفات معرفت د هغه کتاب او د آيات بينات ثبوت د هغه د رسول د صداقت او د رسول پر هغه اعجازي شان باندي دلالت کوي چي د هغه په

بركت سره به د دجال محير العقول كړني برباد سي او د هغه اتباع كوونكي به د هلاكت او تباهي څخه پرته نور هيڅ تر لاسه نه كړي، طيبي رحمه الله دا مطلب بيان كړى دى چي د سورة كهف لومړني آياتونه دا خاصيت لري چي ددغه آياتو ويونكي به د دجال د فتنې څخه په امن كي وي لكه څرنګه چي اصحاب كهف د خپلي زمانې تر ټولو لوى طاقت د شر او فتنې څخه خلاصون تر لاسه كړى وو، څرګنده دي وي چي په ځينو احاديثو كي دغه آيتونه د شپې د بېده كېدو په وخت كي ويل هم منقول دي، د مسلم په بل روايت كي چي دا فرمايل سوي دي : (فانها جواركم من فتنة ) ځكه چي دغه آياتونه به تاسو ددجال دفتنې څخه خوندي وساتي، نو په زياتو صحيح نسخو كي د جوار لفظ د جيم په زېر سره او په پاى كي په راء سره دى چي د هغه معنى د امان وي، مګر په ځينو نسخو كي دغه لفظ د جيم په زېر او د پاى په زاء سره يعني جواز، منقول دى چي معنى يې د هغه پيروي ده چي دهغه پر بنياد باندي يو سړى سفر كوي او په لاره كي د هغه څوک بنديز نه كوي ، په ځينو شرحو كي د جوار لفظ د جيم په زېر او پېښ سره بيان سوى دى مګر حقيقت دادى چي دغه لفظ د جيم په زور سره زيات فصيح دى ، دلته دا فصاحت هم ضروري دي چي په حصن حصين كي د سورة كهف په اړه زيات روايتونه منقول دي ، د مثال په توګه په يوه روايت كي دادي چي كوم څوک سورة كهف ووايي نو هغه ته تر مكې پوري نورانيت تر لاسه كيږي، او كوم څوک چي ددغه سورت آخري لس آياتونه ووايي او بيا د هغه په زمانه كي دجال راووځي نو دجال به پر هغه واک ترلاسه نه كړي ، په بل روايت كي دي چي كوم څوک د سورة كهف لومړني لس آياتونه ياد كړي نو هغه به ددجال څخه خوندي وي، په بل روايت كي داسي فرمايل سوي دي چي كوم څوک د سورة كهف لومړني درې آياتونه ووايي نو هغه به د دجال څخه خوندي وي، په دغه درې سره روايتو كي د لسو آياتونو او درو آياتونو په صورت كي كوم چي ظاهر تضاد دى د هغه ختمولو لپاره ډېر اقوال دي، مګر زيات واضح قول دادى چي د سورة كهف كم تركمه برخه چي دهغه ويل ددجال د شر څخه ساتنه كوي درې آياتونه دي او ددغه درو آياتو يادول غوره دي، نو دا خبره پرزياته برخه يعني د لسو آياتونو يا د هغه يادولو خلاف نه ده .

او هغه به چېه خوا ته فساد خپروي: دلته په حقيقت كي دې ته اشاره كول مقصد دي چي دجال د كومو ښارو او سيمو سره تيريږي يوازي پر هغه ځايو باندي به فتنه او فساد نه خپروي بلكه هغه به خپل راسته او چپه خوا ته چيري چي تللاى نسي ، دخپل لښكر او دخپلو پيروانو ډلي به استوي همدا رنګه د هغه د فتنې او شر څخه به هيڅ مؤمن په امن كي نه وي او داسي هيڅ

ځای به پاته نه سي چيري چي د هغه فتنه و نه رسيږي.

اې دالله بندګانو! تاسو ثابت قدمه اوسئ، دغه خطاب هغه مؤمنانو ته دی چي د دجال په زمانه کي به وي، يا دا چي رسول الله ﷺ دغه خبره خپلو صحابه کرامو ته وفرمايل، که چيري تاسو د دجال زمانه تر لاسه کړئ نو هغه وخت پر دين باندي قائم اوسئ.

د څلوېښتو ورځو په اړه بايد دا په ذهن کي وي چي دلته د مسلم په روايت کي خو د دجال د قيام وخت څلوېښت ورځي فرمايل سوي دي، حال دا چي په راتلونکي يوه حديث کي دغه وخت څلوېښت کاله بيان سوی دی، بغوي رحمة الله عليه په شرح السنة کي ليکلي دي چي د څلوېښتو کالو حديث د صحت او اسناد په اعتبار د دې درجې نه دی چي هغه د مسلم د دغه روايت معارض وګرځول سي او که چيري هغه حديث صحيح ومنل سي نو دا به ويل کيږي چي په دغه دواړو حديثو کي چي بېل بېل وختونه بيان سوي دي په دې کي يو وخت خو هغه دی چي په هغو کي پر خلکو باندي د هغه ظهور نه کيږي بلکه په دغه دنيا کي به د هغه شتون غير معلوم وي او دوهم خاص وخت دی چي د هغه په دوران کي به هغه پر خلکو باندي ظاهر وي او هغوئ ته به په تعين سره د هغه د موجودتيا علم وي.

د لمونځ کولو لپاره به د يوې ورځي حساب لګول کيږي، مطلب دا دی چي د لمر راختلو څخه وروسته به دومره وخت تېر سي کوم چي د عامو ورځو په اعتبار د سهار او ماپښين په منځ کي وي نو هغه وخت دي د ماپښين لمونځ وکړل سي او هر کله چي د ماپښين د لمانځه څخه وروسته دومره وخت تېر سي چي په عامو ورځو کي د ماپښين او مازديګر په منځ کي وي نو هغه وخت دي د مازديګر لمونځ وکړل سي او د مازديګر څخه وروسته چي څومره وخت تېر سي چي په عامه توګه د مازديګر او ماښام په منځ کي وي نو د ماښام لمونځ دي وکړل سي، په دې حساب سره دي د ماخستن او سهار لمونځ وکړل سي، خلاصه دا چي پنځه سره لمونځونه به په دغه حساب سره کيږي تر دې چي هغه ورځ د يوه کال برابر کېدو سره تېره سي او دغه اندازه او حساب به په هغه ورځو کي اختياريږي کله چي يوه مياشت او يوه اونۍ برابر وي، څرګنده دي وي چي د ذکر سوو ورځو اوږدوالی ذکر سوی دی هغه به په حقيقت کي دومره اوږد وي او يقينا الله تعالی پر دې قادر دی چي هغه د شپې او ورځي ګردش مختصر او طويل کړي، دا چي ځينو علماوو ويلي دي چي هغه ورځي به په حقيقت کي دومره اوږدې نه وي بلکه د هجوم او تکليفونو د زياتوب په وجه به دومره اوږدې معلوميږي نو دا خبره بالکل صحيح نه ده، د دې تر ټولو لوی دليل د صحابه کرامو د رسول الله ﷺ څخه د ذکر سوي سوال کول دي او د رسول الله

ﷺ هغوئ ته دغه جواب ورکول دي چي د لمانځه کولو لپاره د يوې ورځي حساب لګول کيږي، او دا چي ځينو حضراتو دا اشکال ظاهر کړی دی چي لمونځ خو د وختونو يعني د لمر د راختلو او لوېدلو او نورو په اعتبار تړاکل سوی دی او کله چي ددغه راختلو او لوېدلو وغيره وخت نه وي نو لمونځونه به څرنګه کيږي، نو دغه اشکال بالکل لغو دی ، حقيقت دادی چي اصل شی د شارع حکم دی ، کله چي شارع د هغه خاصو ورځو لپاره ذکر سوی حکم فرمايلی دی نو دچا پوښتنه او اشکال به د څه لپاره وي، توربشتي رحمة الله عليه او نورو علماوو دلته نور جوابونه هم ليکلي دي ، اهل علم يې په مرقات کي کتلای سي .

د هغوئ بوکونه به لوی سي، دلته د بوکونو معنی د ذرې ده چي د زروه جمع ده او اصل معنی يې د لوړ ځای ده، په دې اعتبار سره د اوښ پر بوک باندي هم د ذروة اطلاق کيږي، ددغه جملې خلاصه داده چي کوم څاروي د څرلو لپاره ځنګل ته تللي وي هغه به په ډېر چاغېدو سره بېرته راسي .

بيا به هغه خلک د وچ کالی ښکار سي: ددغه جملې په ذريعه دې ته اشاره کول مقصد دي چي مؤمن به دد جال د خبري په منلو او د هغه د پيروی څخه انکار کوي ځکه هغوئ به دد جال له خوا په ډول ډول سختيو کي اخته کيږي مګر هغوئ به ټولي سختی او تکليفونه په صبر او شکر سره زغمي او خپل دين او عقيده به قائم اوسي او دا به له دې کبله وي چي الله تعالی به دخپل محبوب نبي ﷺ په برکت هغه مؤمنانو ته د اولياء کاملين صفات او خصوصيات ورکړي.

(فتتبعه کنوزها کيعا سبب النحل) هغه خزانې به داسي په هغه پسې وي لکه چي د عسلو موچی په خپل مشر پسې وي، يعاسيب په اصل کي د يعسوب جمع ده چي معنی يې د عسلو د موچيو د مشر ده، خلاصه دا چي څرنګه چي يعسوب مخکي وي او د عسلو موچی په هغه پسې وي همدارنګه به دد جال سره خزانې په هغه پسې وي او د مشر د تعلق په مناسبت سره د قوم او ډلي مشر ته هم يعسوب ويل کيږي لکه چي ديلمي رحمة الله عليه د حضرت علي رضي الله عنه په اړه دا مرفوع حديث نقل کړی دی چي : علي يعسوب المؤمنين والمال يعسوب المنافقين، يعني علي رضي الله عنه د مؤمنانو مشر دی او مال دمنافقانو مشر دی ، او همدارنګه د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په مدح کي منقول دي چي حضرت علي رضي الله عنه د هغه د رتبې په اړه فرمايلي وه: کنت للدين يعسوب، يعني اې ابوبکر ! تاسو ددين رئيس او مشر ياست.

چي ددمشق د لويديځي خواپر سپيني منارې به راکښته کيږي، ددغه روايت څخه دا معلوميږي چي حضرت عيسی عليه السلام به په دمشق کي راکښته کيږي مګر په يوه روايت کي دابيان

سوی دی چي د هغه په بیت المقدس کي او په یوه روایت کي د هغه راکښته کېدل په اُردن کي منقول دي، او په یوه روایت کي دادي چي د مسلمانانو په ټولن ځای کي به راکښته کیږي، څرګنده دي وي چي په کوم روایت کي دحضرت عیسی علیه السلام پر بیت المقدس باندي راکښته کېدل منقول دي هغه دابن ماجه روایت دی او هغه راجح ګرځول کیږي ځکه چي په حقیقت کي دغه روایت د نورو روایتو خلاف نه دی، په دې وجه چي بیت المقدس د دمشق په لویدیځ کي واقع دی، بیت المقدس د مسلمانانو ټولن ځای هم دی او بیت المقدس د اردن سیمه هم ده، یوازي یو شی پاته کیږي او هغه دا چي په بیت المقدس کي سپینه مناره نسته مګر په دې سره څه بدلون نه رامنځته کیږي ځکه چي د حضرت عیسی علیه السلام د راکښته کېدو څخه مخکي سپینه مناره هم جوړیدلای سي.

(بین مهزودتین) هغه وخت به حضرت عیسی علیه السلام ژړ کالي اغوستي وي ، دلته د مهزودتین لفظ په دال سره منقول دی او په ذال سره هم منقول سوی دی، ددغه جملې خلاصه داده چي د آسمان څخه د راکښته کېدو په وخت کي به د حضرت عیسی علیه السلام پر بدن اغوستلي جامې د زعفرانو یا ورس په رنګ سره رنګ سوي وي.

(واذا رفعه تحدر منه مثل جمان کالؤلؤ): او کله چي سر پورته کړي نو د هغه د وېښتانو څخه به د سپینو زرو ددانو په ډول څاڅکي راڅڅیږي چي دملغرو په ډول وي، مطلب دادی چي هغه څڅېدونکي څاڅکي به دومره سپین وي لکه د سپینو زرو د ملغلرو په ډول.

په نهایه کي لیکلي دي چي د جمان لفظ د عذاب پر وزن دی او معنی یې د سپینو زرو څخه جوړ سوي لوی لوی ملغلري دي، مفرد لفظ یې جمانة دی، طیبي رحمه الله ویلي دي: د حضرت عیسی علیه السلام د خولې څاڅکو ته مخکي خو په غټوالي کي په جمان سره تشبیه ورکړل سوه او بیا د پاکوالي په اعتبار جمان ته په ملغلري سره تشبیه ورکړل سوه، او ځینو حضراتو ویلي دي چي د جمان لفظ د میم په تشدید سره کوچنۍ ملغلري ته وایي او جمان د جیم د تشدید پرته هغه دانو ته وایي چي د سپینو زرو څخه جوړي سوي وي، دلته دغه دوهمه معنی مراد ده، خلاصه دا چي حضرت عیسی علیه السلام خپل سر کښته کړي نو د هغه د سر په وېښتانو کي به نوراني څاڅکي څرګند سي او کوم وخت چي هغه سر را پورته کړي نو هغه څاڅکي به ور څخه څاڅي، یعني دا د حضرت عیسی علیه السلام د ښکلا او جمال کنایه ده.

دا ناممکنه ده چي یو کافر ته د حضرت عیسی علیه السلام د ساه هواء ورسیږي او هغه مړ نسي، ددغه جملې څخه دا سوال پیدا کیږي چي په دغه حکم کي دی خپله دجال ولي نه شاملوي؟

جواب دادی چي دجال ددغه حکمت له کبله ددغه حکم څخه مستثنی سوی دی چي هغه د حضرت عیسی علیه السلام په لاس قتل سي او هغه دده په وینو لړلې خپل نیزه خلکو ته وښیي چي دمؤمنانو په ذهن کي ددجال د ساحر او چمباز کېدل یقیني سي او په خپلو سترګو سره د هغه د چمبازۍ پرده وشکوي او ویني یا دا هم ویل کیږي چي د حضرت عیسی علیه السلام د ساه په هواء سره د کافر مړ کېدل به د هغه یو داسي کرامت وي چي د هغه آسمان څخه د راکښته په وخت کي یا د هغه وخت څخه وروسته به څرګند وي، او بیا چي هغه دجال ته متوجه سي نو دغه کرامت به پورته کړل سي نو د یوه کرامت لپاره دا ضروري نه ده چي هغه دي تل او هر وخت څرګندوي او ځینو حضراتو ویلي دي چي دغه کرامت د هغه د معمول د هر راتلونکي ساه نه وي بلکه دده تعلق یوازي د هغه خاص ساه سره وي چي دهغه په ذریعه یو کافر هلاکول مقصد وي نو د حضرت عیسی علیه السلام د ساه په هواء سره به دجال په دې وجه نه مړ کیږي چي هغه به داسي وژل مقصد نه وي ، سبحان الله! د حضرت عیسی علیه السلام د اعجازي شان به څه وایو ، یو هغه وخت وو چي هغه به په خپل پوه سره مړي ژوندي کول او یو به هغه وخت وي چي د هغه د ساه په هواء سره به خلک د مرګ په کنده کي لویږي .

(لُد) د لام په پېښ او ددال په تشدید سره، د شام د یوه غره نوم دی او ځینو حضراتو ویلي دي چي لُد د بیت المقدس د یو کلي نوم دی او د ځینو په نزد د فلسطین د یو کلي نوم دی، حضرت عیسی علیه السلام به د هغه خلګو د موخانو څخه ګرد پاکوي کیدای سي چي د مخ څخه د ګرد پاکول یعني پر خپل ظاهري معنی باندي محمول دی چي په حقیقت کي حضرت عیسی علیه السلام د لطف او کرم له موخي د هغه خلکو مخونه دګرد څخه پاکوي یا ددغه جملې په ذریعه دې ته اشاره کول مقصد دي چي حضرت عیسی علیه السلام به د هغه خلکو د زړونو څخه د دجال بېره لیري کړي او هغوئ ته به دراحت او آرام په ورکولو سره دهغوئ تکلیف ختم کړي .

بحیره طبریه په اضافت سره دی او لفظ د بحیره په اصل کي د بحرة تصغیر دی چي معنی یې د هغه ځای ده چیري چي اوبه جمع کیږي لکه دریاب ، نو د بحیر معنی د کوچني دریاب یعني کاسې ده، بحیره طبریه هغه کاسې ته وایي چي لس کوسه اوږده وي او د شام سیمه په طبریه کي واقع ده .

جبل خمر د یو غره نوم دی ، خمر په اصل کي هغه مځکي ته وایي چي په درختو او خاشو کي پټه وي، پر دغه غره باندي درختي او خاشې ډیري دي ځکه دې ته جبل خمر وایي .

د هغوئ لپاره د غوایي سر به ستاسو د نن سل دینارو څخه غوره وي، ددغه جملې په ذریعه

دې ته اشاره کول مقصد دي چي د شيانو د لږوالي او ډيري ګراني په وجه به خلک داسي وي چي معمولي شی به په لوی قيمت باندي په مشکله تر لاسه کيږي د مثال په توګه د يو څاروي په ټولو برخو کي د سر غوښه تر ټولو ارزانه او معمولي ګڼل کيږي خو هغه وخت به د هغه خلکو په نزد د هغه سر غوښه هم په سل ديناره تر لاسه کول غنيمت ګڼي ، ددې څخه اندازه لګول کيږي چي دغوښو د نورو برخو ارزښت به د هغوئ په نزد څومره دي او هغه به څومره ګران بيه وي.

هغه مرغان به ددوئ مړي په نهبل کي وغورځوي: دغه لفظ د ها ء په جزم او دباء په زېر سره دی او د مشکوة په اکثرو نسخو کي داسي منقول دی، دغه لفظ په اصل کي د يو ځای نوم دی چي د بيت المقدس په سيمه کي واقع دی مګر په مجمع البحار کي د کرماني رحمة الله عليه څخه منقول دي چي دغه لفظ په ميم سره دی يعني منهل، او معنی يې د غره څخه د ايله کولو ليکلې ده او وايي چي ترمذي ددجال سره اړوند حديث کي (فتطرحهم بالنهاب) يعني د نهبل لفظ يې ويلی دی حال دا چي زيات صحيح په ميم سره يعني منهل دی .

چي د هغه څخه به هيڅ ځای که دخاورو وي يا د ډبرو وي او يا د وړيو وي ونه ساتل سي، دلته د خاورو يا ډبرو د ځايو څخه د ښار سيمي او د صوف (وړی) څخه د کلي سيمي مراد دي، خلاصه دا چي هغه باران به هر ځای او په هره سيمه کي اوريږي داسي هيڅ ځای به نه وي چيري چي د هغه باران او به ونه رسيږي او هيڅ ديوال او خيمه به هغه او به هيڅ يو ځای ته د رسېدو څخه منع نه کړلای سي ، څرګنده دي وي چي لفظ د لايکن د ياء په زور او د کاف په پېښ سره دی او ګن هم منقول دی ، او همدا رنګه د ياء په پېښ او د کاف په زور سره يعني کنان هم نقل سوی دی ، معنی ددواړو يوه ده يعني ساتنه او پټوالی .

او د هغه انارو د پوستکي څخه به خلک سايه تر لاسه کوي: په دې اړه يو شارح ويلي دي چي د پوستکي څخه مراد د آنار سربېره نيم پوست دی، قحف په اصل کي هغه ګردي هډوکي (يعني کوپړی) ته وايي چي پر دماغ سربېره وي او د لرګي پيالې ته هم قحف وايي، نو ددغه مشابهت په وجه په حديث کي د آنار پوستکی په قحف سره تعبير سوی دی .

(الفئام من الناس) د خلکو يوه لويه ډله، دلته د فئام لفظ د دجال پر وزن په همزه سره دی او په عامه اصطلاح کي همزه په ياء بدلوي په هر حال دغه لفظ د خلکو ډلي په معنی دی او دلته مراد د خلکو دومره لويه ډله ده چي پر هغوئ د قبيلې څخه د زياتو خلکو اطلاق وي لکه چي د قبيلې اطلاق د خلکو پر هغه ډلي کيږي چي د فخذ څخه زيات وي او فخذ دلته د فاء په زور او دخاء په جزم سره دی چي د هغه معنی يوازي د قريب او ډلي ده او ددې اطلاق د خلکو پر

هغه ډله باندي هم کيږي چي د بطن څخه کم وي او د بطن اطلاق د قبيلې څخه پر لږ ډلي باندي کيږي ، فخذ د خاء په زېر سره بلکه د خاء په جزم سره د ورانه په معنی دی.

او بيا به هغه هواء د هر مؤمن او مسلمان روح قبض کړي، دلته هواء ته د روح قبض کولو نسبت مجازي دي، په حقيقت کي د روح قبض کولو کار د ملک الموت (عزرائيل ﷺ) دی چي د الله ﷻ په حکم سره به روحونه قبض کوي، دا خبره پر خپل ځای بيان سوې ده چي مؤمن او مسلم دواړه يو دي ، څوک چي مؤمن وي هغه مسلمان دی او څوک چي مسلمان وي هغه مؤمن دی، مګر ددواړو په منځ کي چي کوم لږ فرق علماوو بيان کړی دی هغه دادی چي مؤمن خو د تصديق قلبي په اعتبار ورته وايي چي د هغه تعلق د باطن سره دی او مسلمان د ظاهري اعتبار او طاعت په اعتبار ورته وايي نو دلته ددغه دواړو الفاظو بيانولو څخه مراد تاکيد هم دی او تعميم هم دی، ددغه حکم ددائرې څخه يو هم وتلی نه دی .

چي په خپلو کي به دخرو په ډول ګډوډ سي، په دې اړه ځينو شارحينو ويلي دي چي دلته د اختلاط څخه مراد جماع کول دي يعني هغه خلک به په بې حياء کېدو سره په ډاګه د خلکو په وړاندي جماع کوي لکه چي خرونه يې کوي نو د هرج لفظ د جماع په معنی کي هم راځي .

او پر دغه خلکو به قيامت قائم سي: مطلب دادی چي کله قيامت راسي نو هغه وخت به په دغه دنيا کي يوازي هغه بدکاره او شرير خلک يعني کفار او فاجران پاته وي، ددوئ برعکس خلک يعني مؤمنان او صالحين به هغه وخت په دنيا کي موجود نه وي او نه به پر هغوئ قيامت راځي، مخته يو حديث راځي چي په هغه کي فرمايل سوي دي چي قيامت به تر هغه وخته پوري نه قائميږي تر څو چي د مځکي پر مخ د الله ، الله ويل بند نه سي يعني قيامت به هغه وخت راسي کله چي د مځکي پر مخ يو هم د الله نوم اخيستونکی پاته نسي .

## د دجال د کارنامو بيان

﴿۵۲۴۲﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد خدري ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

يَخْرُجُ الدَّجَّالُ فَيَتَوَجَّهُ قِبَلَهُ رَجُلٌ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فَيَلْقَاهُ الْمَسَالِحُ مَسَالِحُ

دجال به راووځي او يو مسلمان سړی به د هغه طرف ته متوجه سي (يعني حضرت خضر عليه السلام) او يو څو وسله لرونکي خلک به د دجال سره يو ځای سي

الدَّجَّالِ فَيَقُولُونَ لَهُ أَيْنَ تَعْمِدُ فَيَقُولُ أَعْمِدُ إِلَى هَذَا الَّذِي خَرَجَ قَالَ

چي د هغه محافظ به وي دا محافظ خلک به د هغه مسلمان سړي څخه پوښتنه کوي چي د کوم ځای اراده لرې ؟ هغه به ورته وايي زه هغه خوا ته ځم چي هغه خروج کړی دی (یعني د دجال په

فَيَقُولُونَ لَهُ أَوَ مَا تُؤْمِنُ بِرَبِّنَا فَيَقُولُ مَا بِرَبِّنَا خَفَاءٌ فَيَقُولُونَ اقْتُلُوهُ فَيَقُولُ

لور) ، رسول الله ﷺ وفرمایل: ددې اوریدو سره به د دجال محافظان هغه ته ووايي ته زموږ رب (یعني دجال) باندي ایمان ولي نه راوړې ؟ هغه سړی به وايي زموږ د پروردګار صفات پر هیچا پټ نه وي ، ددې اوریدو سره به د دجال خلک په خپل منځ کي ووايي چي دی قتل کړئ مګر

بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ أَلَيْسَ قَدْ نَهَاكُمْ رَبُّكُمْ أَنْ تَقْتُلُوا أَحَدًا دُونَهُ قَالَ فَيَنْطَلِقُونَ

ځيني به دا خبره څرګنده کړي چي ایا زموږ پروردګار (یعني دجال) موږ ته دا حکم نه دی راکړی چي د هغه د حکم څخه پرته به موږ څوک نه قتلوو ، غرض دا چي هغه به هغه سړی دجال ته بوځي

بِهِ إِلَى الدَّجَّالِ فَإِذَا رَآهُ الْمُؤْمِنُ قَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ هَذَا الدَّجَّالُ الَّذِي ذَكَرَ

کوم وخت چي دا مسلمان دجال ووینی نو خلک به مخاطب کړي ورته به وايي اې خلکو ! دا هغه دجال دی چي رسول الله ﷺ یې ذکر فرمایلی دی ،

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَيَأْمُرُ الدَّجَّالُ بِهِ فَيُشَبَّحُ فَيَقُولُ خُذُوهُ

ددې اوریدو سره به دجال د هغه مسلمان سړی د پړمو خی پرې ایستلو حکم ورکړي نو هغه به پرې ایستل سي بیا به دجال حکم ورکړي چي دی ونیسئ

وَشُجُّوهُ فَيُوسَعُ ظَهْرُهُ وَبَطْنُهُ ضَرْبًا قَالَ فَيَقُولُ أَوَ مَا تُؤْمِنُ بِي قَالَ فَيَقُولُ

سر یې ورمیده کړئ نو په ښه وهلو سره به د هغه شا او نس نرم کړل سي ، ددې څخه وروسته به دجال د هغه مسلمان سړي څخه پوښتنه وکړي ایا ته پر ما ایمان نه راوړې ؟ هغه مسلمان سړی به ورته په جواب کي ووايي چي

أَنْتَ الْمَسِيحُ الْكَذَّابُ قَالَ فَيُؤْمَرُ بِهِ فَيُؤْشَرُ بِالْمِئْشَارِ مِنْ مَفْرِقِهِ حَتَّى يُفَرَّقَ

ته دروا غجن مسيح يې بيا به د دجال په حکم سره هغه مسلمان سړی په اره سره څيري کړل سي او دوې ټوټې به کړل سي

بَيْنَ رِجْلَيْهِ قَالَ ثُمَّ يَمْشِي الدَّجَّالُ بَيْنَ الْقِطْعَتَيْنِ ثُمَّ يَقُولُ لَهُ قُمْ فَيَسْتَوِي

او هغه دواړې ټوټې به بيل بيل کښېښودل سي بيا به دجال د هغه دواړو ټوټو په منځ کي وګرځي او وه به وايي چي ودرېږه نو هغه مسلمان سړی به بالکل سيده ودرېږي

قَائِمًا قَالَ ثُمَّ يَقُولُ لَهُ أَتُؤْمِنُ بِي فَيَقُولُ مَا ازْدَدْتُ فِيكَ إِلَّا بَصِيرَةً قَالَ ثُمَّ

دجال به بيا هغه ته ووايي ته پر ما ايمان راوړې ؟ هغه مسلمان سړی به ورته ووايي اوس خو زما يقين او زما بصيرت نور هم زيات سوی دی يعني اوس خو زما پر دې خبره پوره يقين سوی دی چي ته دجال او دروا غجن مسيح يې ، ددې څخه وروسته به هغه مسلمان سړی خلک مخاطب

يَقُولُ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّهُ لَا يَفْعَلُ بَعْدِي بِأَحَدٍ مِنَ النَّاسِ قَالَ فَيَأْخُذُهُ

کړي ورته به ووايي اې خلکو ! دغه دجال چي زما سره څه وکړل اوس هغه د بل چا سره نه سي کولای ، ددې څخه وروسته به

الدَّجَّالُ لِيَذْبَحَهُ فَيُجْعَلَ مَا بَيْنَ رَقَبَتِهِ إِلَى تَرْقُوَتِهِ نُحَاسًا فَلَا يَسْتَطِيعُ

دجال هغه مسلمان د ذبح کولو لپاره ونسي مګر د هغه غاړه به د مسو څخه جوړه کړل سي (يعني الله تعالی به د هغه غاړه د مسو څخه جوړه کړي چي دجال يې ذبح کولای نه سي)

إِلَيْهِ سَبِيلًا قَالَ فَيَأْخُذُ بِيَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ فَيَقْذِفُ بِهِ فَيَحْسِبُ النَّاسُ أَنَّمَا

نو دجال به يې ذبح نه کړلای سي عاجزه به پاته سي نو د هغه لاسونه او پښې به ونيسي هغه به پورته کړي او وه به يې غورځوي ، خلک به دا خيال وکړي چي هغه يې

قَذَفَهُ إِلَى النَّارِ وَإِنَّمَا أُلْقِيَ فِي الْجَنَّةِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا أَعْظَمُ النَّاسِ شَهَادَةً عِنْدَ رَبِّ الْعَالَمِينَ . رواه مسلم .

په اور کي وغورځوی مګر په حقيقت کي به هغه په جنت کي غورځول سوی وي ، ددې بيان کولو

سره رسول الله ﷺ وفرمایل : دا سړی به د الله تعالی په نظر کي د شهادت د اعتبار د ډیري لوړی درجې سړی وي . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۲۲۵۶\۴، رقم: ۱۱۳– ۲۹۳۸.

**د لغاتو حل**: المسالح: جمع المسلحة وهو القوم ذوو السلاح یحفظون الثغور. ترقونه: العظم الذي بین النحر والعاتق.

**تشریح**: په مسلمانانو کي یو سړی، په دې اړه د ځینو حضراتو وینا ده چي هغه حضرت خضر علیه السلام دی، ددې څخه دا ثابته سول چي حضرت حضر علیه السلام ژوندی دی او په دغه دنیا کي موجود دی خو په دې اړه د علماوو اختلاف دی ، دفقهاوو او محدثینو اکثریت او د ځینو صوفیانو قول دادی چي هغه وفات سوی دی حال دا چي د صوفیانو اکثریت او ځیني فقهاء وایي چي هغه ژوندی دی او نووي رحمة الله علیه ویلي دي چي دا خبره صحیح ده .

د مسالح لفظ د میم په زور او دلام په زېر سره په اصل کي د مسلحة جمع ده ، چي لغوي معنی یې د سرحد وغیره ده ، په عامه اصطلاح کي ددغه لفظ اطلاق پر هغه وسله تړلو خلکو باندي کیږي چي دخپلو سرحدونو ساتنه کوي دلته دغه معنی مراد ده .

زموږ د پروردګار صفات دچا څخه پټ نه دي، مطلب دادی چي د هغه د رب کېدو دلیلونه بالکل ښکاره او واضح دي لکه پیدا کول، رزق ورکول او داسي نور، او هغه د ټولو کمالاتو صفات لري چي په هغه کي هیڅ ډول نقص او عیب نسته ، حال دا چي په دجال کي د نقص او عیب شیان وي او دهغه ناقص او عیب داره کېدل بالکل ښکاره دي نو په کوم ذات کي چي د ربوبیت او کمال واضح دلیلونه موجود وي د هغه شریک ناقص بنده.څرنګه کیدای سي او په دې اعتبار سره رب کېدل یوازي د هغه پاک ذات وړ دي، نه د بل چا لپاره .

(فیشج فیقول خذوه شجوه فیوسع ظهره و بطنه ضربا) نو هغه سړي به پرې ایستل سي...ترپایه، دلته د یوسع لفظ د واو په جزم او دسین په تخفیف سره د وسع څخه دی او په ځینو نسخو کي دغه لفظ د واو په زور او دسین په تشدید سره چي دتوسیع څخه مشتق کېدل یې صحیح ګرځول سوي دي ، همدارنګه د یشج لفظ د تشج څخه د مجهول صیغه ده چي معنی یې د یو شي پلن کول دي، په دې مناسبت سره ددې ژباړه پوړموخي پرې ایستل کیږي، او د شجوة لفظ د امر صیغه ده چي معنی یې د سر د زخمي کولو ده لکه چي د صحیح مسلم په تشریح کي ویل سوي دي، دغه قول زیات صحیح دی ، دوهم قول دادی چي څرنګه یشج د

تشبیج څخه مشتق دی همدارنګه شجوة هم ددغه باب څخه دامر صیغه ده او دریم قول دادی چي یشج او شجوه دواړه لفظونه د شج څخه مشتق دي چي معنی یې د سر د زخم ده.

له دې وروسته به دواړو پښو د مینځ څخه هغه دوې ټوټې کړل سي، یعني هغه د سر څخه تر پښو پوري په څېرلو سره ټول بدن به یې دوې ټوټې کړل سي، څرګنده دي وي چي د فیوشر په اړه احتمال دی چي په همزه سره وي او دوهم احتمال دادی چي په واو سره دی، او د میشار لفظ په همزه سره منقول دی او په یاء سره هم منقول دی، په دواړو صورتو کي یې معنی د ارې ده یعني هغه آله چي د هغه په ذریعه یو شی پرې کیږي، منشار یعني په نون سره هم نقل سوی دی.

بیا به د بل چا سره داسي نه سي کولای، دا ددې خبرتیا ده چي الله تعالی هغه ته د ملهت ورکولو لپاره چي هغه ته دومره زیات طاقت او قدرت ورکړی دی چي هغه څوک غواړي مړ کیږي او بیا دوهم ځل یې ژوندی کړي نو هغه طاقت او قدرت به د هغه څخه سلب کړل سوی وي نو اوس د هغه څخه چا ته د ببرېدو ضرورت نسته.

مګر په حقیقت کي به هغه په جنت کي واچول سي...تر پایه، دلته د جنت څخه مراد یا خو دنیوي او د بدني راحت او سکون ځای دی لکه یو باغچه یا بل ځای، یا دا مراد دی چي دجال به هغه سړی په اور کي واچوي کوم چي هغه د ځان سره ګرځوي مګر هغه اور به د هغه سړي لپاره یخ سي او د سلامتیا باعث به جوړ سي لکه چي د حضرت ابراهیم عليه السلام لپاره دنمرود اور یخ او د سلامتیا ذریعه ګرځېدلی وو. په هر حال مطلب دادی چي ددجال دلاسه به د هغه سړي مرګ دوهم ځل نه واقع کیږي که څه هم هغه هر څو مره کوښښ وکړي.

دغه سړی به د الله رب الغالمین په نزد د شهادت په اعتبار د ډیري لوړي درجې خاوند وي، دلته هغه سړي ته شهید د هغه د لومړني مرګ په اعتبار فرمایل سوي دي چي ددجال دلاسه واقع سي که څه هم وروسته به هغه ژوندی سي یا هغه به په دې اعتبار شهید وي چي دجال به د هغه د ذبح کولو قصد وکړي خو هغه به په خپل مقصد کي کامیاب نه سي او دا هم کیدای سي چي د شهادت څخه مراد د الله تعالی په نزد حاضرېدل او شاهدي ورکول دي.

## د دجال د بیري څخه به خلک غرونو ته وتښتي

﴿۵۴۴۳﴾: وَعَنْ أُمِّ شَرِيكٍ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيَفِرَّنَّ النَّاسُ مِنَ الدَّجَّالِ حتى يلحقوا بِالْجِبَالِ قَالَتْ أُمُّ شَرِيكٍ قلت يَا رَسُولَ

اللّٰهِ فَأَيْنَ الْعَرَبُ يَوْمَئِذٍ قَالَ هُمْ قَلِيلٌ . رواه مسلم

د حضرت ام شريک (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : خلک به د دجال (د چم او مکر او فتنې) څخه تښتي او په غرونو کي به پټيږي، ام شريک وايي د دې اوريدو سره ما پوښتنه وکړه اې د الله رسوله ! عرب به په دغه ورځو کي په کوم ځای کي وي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : عرب به په دغه زمانه کي لږ وي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲۲۶۶\۴، رقم: ۱۲۵- ۲۹۴۵.

**تشريح**: (فاين) دلته د فاء حرف د شرط محذوف بنياد دی، يعني پوره جمله داسي ده چي کله خلک د دجال د بيري څخه وتښتي او پټيږي نو هغه وخت به عرب چيري وي، چي د هغوئ کار د الله ﷻ په لاره کي جهاد کول او دين ته د تاوان رسونکي د هري فتنې او فساد دفع کول دي.

## د دجال تابعداري به يهوديان کوي

﴿۵۲۴۴﴾ : وَعَنْ اَنَسٍ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَتْبَعُ الدَّجَّالَ مِنْ يَهُودِ أَصْبَهَانَ سَبْعُونَ أَلْفًا عَلَيْهِمُ الطَّيَالِسَةُ . رواه مسلم

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د اصفهان اويا (۷۰) زره يهوديان به د دجال پيروي او اطاعت وکړي چي د هغوئ پر سرونو به طيالسي څادرونه پراته وي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲۲۶۶\۴، رقم: ۱۲۴- ۲۹۴۴.

**تشريح**: د يتبع لفظ د ياء په زور ، د تاء په جزم او د باء په زبر سره دی چي معنی يې د ملګرتيا ده، مګر يو شارح ويلي دي چي دغه لفظ اتباع يعني د تاء په تشديد سره دی چي معنی يې د پيروي کولو ده، اصفهان د الف په زور او زبر دواړو سره د يو مشهور ښار نوم دی چي په ايران کي واقع دی، په يوه روايت کي د اوويا زرو پر ځای د نيوي زرو الفاظ دي مګر د مشهور روايت مطابق صحيح د اوويا زره شمېر دی، طيالسة په اصل کي د طيلسان جمع ده چي په عربو کي د يوې مشهوري جامې نوم دی او د څادر په صورت کي وي، قاضي عياض رحمه الله دا نقل کړي دي چي د طيلسان لفظ معرب دی يعني په اصل کي دغه لفظ تالستان وو چي په عربي کي طيلسان کړل سو، څرګنده دي وي چي ځينو علماوو د دغه حديث څخه دا استدلال کړی دی چي

طیلسان یوه ناخوښه جامه ده ، دغه حضراتو د حضرت انس ﷛ دغه روایت هم دخپل قول په تائید کي وړاندي کړی دی چي هغوئ ځیني خلک د طیلسان جامي اغوستونکي ولیدل نو وه یې فرمایل چي دا خلک د خیبر دیهودیانو په ډول معلومیږي ، مګر حقیقت دادی چي په طیلسان کي څه خرابي نسته او استعمال یې پروا نه لري بلکه د سر په څادر سره د پټولو په توګه د طیلسان استعمال مسنون هم دی، په دې اړه د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو سره اړوند ډېر حدیثونه نقل سوي دي ، که څه هم دا کیدیا سي چي په یوه زمانه کي یوازي د یهودیانو د خاص جامې سره تعلق درلود او حضرت انس ﷛ په دې اعتبار سره د هغه استعمال یې په غوره نظر سره نه وي لیدلی یا هغه په دې سبب دخپلي ناخوښی اظهار کړی وي چي هغه خلکو هغه وخت کوم طیلسان استعمالوی د هغه رنګ ژړ وو ، دلته دا ښودل هم ضروري دي چي د طیلسان په اړه د علماؤ په منځ کي چي کوم اختلاف دی هغه یوازي د هغه څادر په توګه د داسي استعمالولو اړوند دی چي د هغه څوکه پر سر باندي واچول سي او د هغه غاړه پر اوږو واچول سي چي هغه ته تقنع او قناع هم ویل کیږي ، په هر حال کوم حضرات چي د طیلسان خلاف دي د هغوئ وینا ده چي د طیلسان د استعمالولو په اړه د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو څخه څه منقول دي د هغه تعلق د خاصو حالاتو او ضرورت سره دی چي رسول الله ﷺ او صحابه کرامو د یو خاص ضرورت په وجه هغه وخت د لمر د ګرمی څخه د ساتني لپاره پر خپل سر اچولی دی، مګر جمهور علماء د طیلسان استعمالول بېله کراهته مطلق جائز ګرځوي ، لکه چي په یو حدیث کي راغلي دي چي سر په طیلسان سره پټوئ ځکه چي د څادر استعمالول د عربو جامه ده او اقتناع (یعني طیلسان په ذکر سوې طریقه استعمالول) د اهل ایمان جامه ده، په یوه حدیث کي داسي راغلي دي چي په طیلسان سره سرپټول په ورځ کي نفقه ده او په شپه کي زینت، په یوه روایت کي د حضرت انس ﷛ څخه منقول دي چي رسول الله ﷺ به قناع زیات اختیاروی همدارنګه صحابه کرامو هم، او په دې اړه ډېر زیات آثار او اخبار ثابت دي .

## دجال په مدینه کي نه داخلیږي

﴿۵۲۴۵﴾ : وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي الدَّجَّالُ

د حضرت ابو سعید ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د جال به د مدینې په لور

وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْهِ أَنْ يَدْخُلَ نِقَابَ الْمَدِيْنَةِ فَيَنْزِلُ بَعْضَ السِّبَاخِ الَّتِي تَلِي

متوجه سي د الله تعالى په حکم سره به هغه د مدينې په لارو کي داخل نه سي آخر به هغه د مدينې

الْمَدِينَةَ فَيَخْرُجُ إِلَيْهِ يَوْمَئِذٍ رَجُلٌ وَهُوَ خَيْرُ النَّاسِ أَوْ مِنْ خِيَارِ النَّاسِ

منورې سره نژدې په يو مځکه کي تم سي ، ددې ځخه وروسته به يو سړى راسي چي د هغه زمانې د غوره خلکو ځخه به وي

فَيَقُولُ أَشْهَدُ أَنَّكَ الدَّجَّالُ الَّذِي حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او هغه (دجال) ته به ووايي زه شاهدي وايم چي ته دجال يې چي رسول الله ﷺ يې خبر راکړى دى

حَدِيثَهُ فَيَقُولُ الدَّجَّالُ أَرَأَيْتُمْ إِنْ قَتَلْتُ هَذَا ثُمَّ أَحْيَيْتُهُ هَلْ تَشُكُّونَ فِي

دجال به خپلو خلکو ته وايي که زه دا سړى قتل کړم دويم وار يې راژوندى کړم ايا بيا به هم زما

الْأَمْرِ فَيَقُولُونَ لَا فَيَقْتُلُهُ ثُمَّ يُحْيِيهِ فَيَقُولُ وَاللَّهِ مَا كُنْتُ فِيكَ أَشَدَّ

په باره کي شک کوئ هغوئ به وايي موږ به بيا هيڅ شک نه کوو نو دجال به هغه سړى قتل کړي او بيا به يې را ژوندى کړي بيا به د ژوندي کيدو ځخه وروسته هغه ورته ووايي قسم په خداى

بَصِيرَةً مِنِّي الْيَوْمَ فَيُرِيدُ الدَّجَّالُ أَنْ يَقْتُلَهُ فَلَا يُسَلَّطُ عَلَيْهِ . متفق عليه.

هغه وخت ستا په باره کي زما دومره يقين نه وو څومره چي مي اوس يقين دى بيا به دجال دويم وار د هغه د قتل کولو کوښښ کوي مګر پر هغه به واک ترلاسه نه کړي . بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۹۵\۱۴، رقم: ۱۸۸۲، ومسلم ۲۲۵۶\۴، رقم: ۱۱۲– ۲۹۳۸.

**د لغاتو حل** : نقاب: جمع نقب وهو الطريق بين الجبلين (د دوو غرونو په منځ کي لاره)

**تشريح** نو هغه خلک به جواب ورکړي چي بيا به موږ ته هيڅ شک او شبه نه وي، په دغه جمله کي د خلکو ځخه مراد که چيري هغه خلک وي کوم چي د دجال پيروان وي نو دغه جمله بالکل ځرګنده ده او پر خپل اصل معنى باندي محمول ده مګر که چيري د خلکو ځخه اهل ايمان هم مراد واخيستل سي نو بيا د دغه جملې تاويل به دا وي چي د هغه خلکو ذکر سوى جواب ورکول به په اصل کي د بيري په وجه وي ، دا هم کيداى سي چي له دې ځخه مراد د کنايې په توګه د دجال د دروغو او چمبازۍ شک او شبه نه کول وي .

خو هغه به پر هغه قادر نه سي: دلته ددې خبرې دليل دی چې دجال ته د مهلت ورکولو لپاره چې مافوق الفطرت طاقت او قدرت ورکول کيږي هغه به په پيل کې د څه وخت لپاره وي وروسته به هغه قدرت او طاقت سلب کړل سي چې د هغه نتيجه به دا وي چې هغه به خپل ځان پر هغه قادر نه ويني چې څه غواړي هغه وکړي.

﴿۵۲۴۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَأْتِي الْمَسِيحُ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ هِمَّتُهُ الْمَدِينَةَ حَتَّى يَنْزِلَ دُبُرَ أُحُدٍ ثُمَّ تَصْرِفُ الْمَلَائِكَةُ وَجْهَهُ قِبَلَ الشَّامِ وَهُنَالِكَ يَهْلِكُ. متفق عليه.

د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: مسيح دجال به د مشرق د طرف څخه راسي او د مدينې قصد به وکړي تر دې چې هغه به د احد شا ته ورسيږي بيا به ملائکې د هغه مخ د شام په لور وګرځوي او هغه به په شام کې هلاک سي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۲\۱۰۰۵، رقم: ۴۸۶- ۱۴۳۸۰. ولم نجده عند البخاري.

**تشريح**: ملائکې به د هغه مخ د شام په لور وګرځوي، دغه خبره ددجال د درواغجن ثابتولو لپاره يو لوی دليل دی او دهغه د عجز او نقصان نښه به وي او هغه به دخپل دومره طاقت او قدرت سربېره په مقدس ښار کې پر داخلېدو باندې قادر نسي چې په هغه کې سيدالوری ﷺ آرام فرما دی، ددې څخه دا هم ښکاره سوه چې دجال مدينې منورې ته داخلېدلای نه سي نو مکې ته په درجه اولی نه سي داخلېدلای.

﴿۵۲۴۷﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَدْخُلُ الْمَدِينَةَ رُعْبُ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ لَهَا يَوْمَئِذٍ سَبْعَةُ أَبْوَابٍ عَلَى كُلِّ بَابٍ مَلَكَانِ.

رواه البخاري.

د حضرت ابوبکره ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: په مدينه کې به د دجال رعب او خوف نه داخليږي، په دغه ورځو کې به دمدينې اووه دروازې وي او پر هره دروازه به دوې ملائکې ساتلي وي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹۵\۱۴، رقم: ۱۸۷۹.

**تشريح**: سيوطي رحمة الله عليه ويلي دي: دا چي په خلکو کي مشهوره ده چي د رسول الله ﷺ ددغه دنيا څخه د رخصتېدو وروسته د حضرت جبرائيل عليه السلام مځکي ته راتلل موقوف سوي دي نو دا بالکل بې اصله خبره ده، ددغه غلط خيال د ترديد لپاره هغه روايت کافي دي کوم چي طبراني رحمة الله عليه نقل کړی دی چي حضرت جبرائيل عليه السلام خو د هغه مؤمن د مرګ پر وخت تشريف راوړي کوم چي د طهارت او پاکۍ په حالت کي وي، په يوه روايت کي ابو نعيم رحمة الله عليه نقل کړي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي دجال مدينې ته نژدې سي نو هغه وخت به ناڅاپه د هغه مقابله د يوه ستر طاقت سره وسي، دجال به پوښتنه ځيني وکړي چي ته څوک يې، نو هغه به جواب ورکړي چي زه جبرائيل عليه السلام يم، الله جل جلاله زه ددې لپاره رالېږلی يم چي زه تا د هغه د رسول ﷺ د حرم څخه ليري کړم.

## د دجال ذکر

﴿۵۲۴۸﴾: وَعَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ قَالَتْ سَمِعْتُ مُنَادِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د بي بي فاطمې بنت قيس رضي الله عنها څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ د اعلان کونکي څخه دا

وَسَلَّمَ يُنَادِي الصَّلَاةَ جَامِعَةً فَخَرَجْتُ إِلَى الْمَسْجِدِ فَصَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى

اعلان واوريدی چي: الصلوة جامعة (يعني لمونځ کونکی دی يعني لمونځ تيار دی مسجد ته راسئ) نو زه مسجد ته ولاړم او د رسول الله ﷺ سره مي لمونځ وکړ،

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَهُوَ يَضْحَكُ قَالَ لِيَلْزَمْ كُلُّ

کله چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو نو منبر ته يې تشريف راوړ او په خندا يې وفرمايل: چا چي کوم ځای لمونځ کړی دی هلته دي ناست وي،

إِنْسَانٍ مُصَلَّاهُ ثُمَّ قَالَ هَلْ تَدْرُونَ لِمَ جَمَعْتُكُمْ قَالُوا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ إِنِّي

ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو ته معلومه ده چي ما ولي تاسو يو ځای کړي ياست؟ خلکو عرض وکړ الله تعالی او د هغه رسول ښه پوهيږي، رسول الله ﷺ وفرمايل:

وَاللَّهِ مَا جَمَعْتُكُمْ لِرَغْبَةٍ وَلَا لِرَهْبَةٍ وَلَكِنْ جَمَعْتُكُمْ لِأَنَّ تَمِيمَ الدَّارِيَّ كَانَ

قسم په الله جل جلاله! ما تاسو ددې لپاره نه ياست يو ځای کړي چي زه تاسو ته يو زيری درواوروم او نه مي

ددې لپاره يو ځای کړي ياست چي تاسو د يو دښمن څخه وبيروم بلکه ما تاسو د تميم داري د واقعې اوريدو لپاره يو ځای کړی ياست ،

رَجُلًا نَصْرَانِيًّا فَجَاءَ وَأَسْلَمَ وَحَدَّثَنِي حَدِيثًا وَافَقَ الَّذِي كُنْتُ أُحَدِّثُكُمْ بِهِ عَنِ

تميم داري يو مسيحي وو هغه راغلی او مسلمان سو او ما ته يې يو داسي خبر بيان کړ چي د هغه خبرو مشابه وو کوم چي ما د دجال په باره کي تاسو ته ويلي وه ،

الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ حَدَّثَنِي أَنَّهُ رَكِبَ فِي سَفِينَةٍ بَحْرِيَّةٍ مَعَ ثَلَاثِينَ رَجُلًا مِنْ لَخْمٍ

هغه بيان وکړ چي هغه د قبائل لخم او جذام ديرش کسانو سره د درياب په کښتۍ کي سپور سو ،

وَجُذَامَ فَلَعِبَ بِهِمُ الْمَوْجُ شَهْرًا فِي الْبَحْرِ فَأَرْفَئُوا إِلَى جَزِيرَةٍ حين تغرب

د درياب څپو د کښتۍ سره لوبي پيل کړې او تر يوې مياشتي پوري هغه کښتۍ آخوا دېخوا ګرځيدل، په پای کي څپو هغه کښتۍ د لمر د غروب په وخت کي يوې جزيرې ته بوتلل ،

الشَّمْسِ فَجَلَسُوا فِي أَقْرُبِ السَّفِينَةِ فَدَخَلُوا الْجَزِيرَةَ فَلَقِيَتْهُمْ دَابَّةٌ أَهْلَبُ

دوئ په کوچنيو کښتيو کي سپاره سول او جزيرې ته داخل سول هلته دوئ يو حيوانه وليدی چي

كَثِيرُ الشَّعَرِ لَا يَدْرُونَ مَا قُبُلُهُ مِنْ دُبُرِهِ مِنْ كَثْرَةِ الشَّعَرِ وَقَالُوا وَيْلَكِ مَا أَنْتِ

لوی لوی وريښتان يې وه او د هغه پر بدن دومره زيات وريښتان وه چي د هغې مخ او شا نه معلوميدل دوئ هغه ته وويل پر تا افسوس دی ته څوک يې ،

قَالَتْ أَنَا الْجَسَّاسَةُ قالوا ما الجساسة قالت ايها القوم انْطَلِقُوا إِلَى هَذَا الرَّجُلِ

هغې وويل جاسوسه يم، تاسو هغه سړي ته ورسئ چي په دير کي دی هغه ستاسو د خبرو اوريدو

فِي الدَّيْرِ فَإِنَّهُ إِلَى خَبَرِكُمْ بِالْأَشْوَاقِ قَالَ لَمَّا سَمَّتْ لَنَا رَجُلًا فَرِقْنَا مِنْهَا أَنْ تَكُونَ

ډير آرزومند دی ، د تميم داري بيان دی چي هغه حيواني د هغه سړي ذکر وکړ نو موږ د هغې څخه وبيريدو او خيال مو وکړ چي

شَيْطَانَةً قَالَ فَانْطَلَقْنَا سِرَاعًا حَتَّى دَخَلْنَا الدَّيْرَ فَإِذَا فِيهِ أَعْظَمُ إِنْسَانٍ رَأَيْنَاهُ

کیدای سي دا شیطان وي ، غرض دا چي موږ په تیزي سره مخکي سو او دیر ته چي ورسیدو هلته موږ ډیر لوی او خوفناک سړی ولیدی

قَطُّ خَلْقًا وَأَشَدُّهُ وِثَاقًا مَجْمُوعَةٌ يَدَاهُ إِلَى عُنُقِهِ مَا بَيْنَ رُكْبَتَيْهِ إِلَى كَعْبَيْهِ بِالْحَدِيدِ

چي داسي سړی تر ننه پوري موږ نه وو لیدلی ، هغه ډیر ټینګ تړل سوی وو د هغه لاس تر غاړي پوري او زنګونو نه تر بجلکو پوري په زنځیر کي وه

قُلْنَا وَيْلَكَ مَا أَنْتَ قَالَ قَدْ قَدَرْتُمْ عَلَى خَبَرِي فَأَخْبِرُونِي مَا أَنْتُمْ قَالُوا نَحْنُ

موږ د هغه څخه پوښتنه وکړه پر تا افسوس دی ته څوک یې؟ هغه راته وویل تاسو زه ولیدم او معلوم مو کړلم (نو اوس زه ستاسو څخه خپل حال نه پټوم) مګر مخکي تاسو دا وښیاست چي تاسو څوک یاست؟ موږ ورته وویل موږ

أُنَاسٌ مِنَ الْعَرَبِ رَكِبْنَا فِي سَفِينَةٍ بَحْرِيَّةٍ فَلَعِبَ بِنَا الْبَحْرِ شَهْرًا فَدَخَلْنَا الْجَزِيرَةَ

د عربو خلک یو ، په یوې کښتۍ کي سپاره سوې وو د دریاب څپو یوه میاشت پوري دربدره اخیستی وو آخر موږ یې دلته وغورځولو ، موږ په دغه جزیره کي داخل سوو

فَلَقِيَتْنَا دَابَّةٌ أَهْلَبُ فَقَالَتْ أَنَا الْجَسَّاسَةُ اعمدوا إِلَى هَذَا فِي الدَّيْرِ فَأَقْبَلْنَا إِلَيْكَ

نو موږ یو حیوانه ولیدل چي لوی لوی وریښتان یې وه هغې موږ ته وویل چي زه جاسوس یم ، تاسو هغه سړي ته ورسئ کوم چي په دیر کي دی بیا موږ ستا په خوا په منډه راغلو ،

سِرَاعًا وفزعنا منها ولم نامن ان تكون شيطانه فَقَالَ أَخْبِرُونِي عَنْ نَخْلِ

بیا هغه پوښتنه وکړه ایا هلته په بیبان کي د خرماوو درختي میوه کوي موږ ورته وویل هو ، میوه

بَيْسَانَ هَلْ تُثْمِرُ قُلْنَا نَعَمْ قَالَ أَمَا إِنَّهَا يُوشِكُ أَنْ لَا تُثْمِرَ قَالَ أَخْبِرُونِي عَنْ

کوي نو هغه وویل هغه زمانه نژدې راتلونکي ده چي دغه درختي به میوه نه کوي بیا هغه پوښتنه وکړه دا راته وښیاست چي

بُحَيْرَةِ الطَّبَرِيَّةِ هَلْ فِيهَا مَاءٌ قُلْنَا هِيَ كَثِيرَةُ الْمَاءِ قَالَ إِنَّ مَاءَهَا يُوشِكُ أَنْ

په بحیره طبریه کي اوبه سته که نه؟ موږ ورته وویل په هغه کي اوبه ډیري دي نو هغه وویل ډیر

ژر په هغه کې به اوبه وچې سي

يَذْهَبَ قَالَ أَخْبِرُونِي عَنْ عَيْنِ زُغَرَ قالوا وعن اي شانها تستخبر قال هَلْ فِي

بیا هغه پوښتنه وکړه د زغر د چینې څه حال دی ؟ ایا په هغه چینې کې اوبه سته او ایا د هغې

الْعَيْنِ مَاءٌ وَهَلْ يَزْرَعُ أَهْلُهَا بِمَاءِ الْعَيْنِ قُلْنَا لَهُ نَعَمْ هِيَ كَثِيرَةُ الْمَاءِ وَأَهْلُهَا

چینې نژدې خلک د هغه چینې په اوبو سره کښت کوي ؟ موږ ورته وویل چې هو هلته اوبه ډیرې دي او د هغه ځای خلک

يَزْرَعُونَ مِنْ مَائِهَا قَالَ أَخْبِرُونِي عَنْ نَبِيِّ الْأُمِّيِّينَ مَا فَعَلَ قلنا قَدْ خَرَجَ مِنْ

کښت کري په اوبوددې بیا هغه وویل د امیانو د نبي (یعني د عربو د ناویونکو خلکو دنبي ) په اړه راته ووایاست چې هغه څه وکړل ؟ موږ ورته وویل : هغه د مکې څخه مدینې ته په

مَكَّةَ وَنَزَلَ يَثْرِبَ قَالَ أَقَاتَلَهُ الْعَرَبُ قُلْنَا نَعَمْ قَالَ كَيْفَ صَنَعَ بِهِمْ فَأَخْبَرْنَاهُ

هجرت تشریف وړی دی ، هغه پوښتنه وکړه ایا هغه عرب د هغه سره جنګیدلي دي ؟ موږ ورته وویل هو ، هغه پوښتنه وکړه هغه عربو سره څه معامله وکړه ؟ موږ د ټولو پېښو څخه هغه خبر کړ

أَنَّهُ قَدْ ظَهَرَ عَلَى مَنْ يَلِيهِ مِنَ الْعَرَبِ وَأَطَاعُوهُ قَالَ لهم قد كان ذالك قلنا نعم

او ورته مو وښودل چې په عربو کې چې کوم خلک د هغه نژدې وه پر هغوئ هغه غلبه حاصله

أَمَا إِنَّ ذَاكَ خَيْرٌ أَنْ يُطِيعُوهُ وَإِنِّي مُخْبِرُكُمْ عَنِّي إِنِّي أَنَا الْمَسِيحُ وَإِنِّي أُوشِكُ أَنْ

کړې ده او هغوئ د هغه اطاعت اختیار کړی دی نو هغه وویل تاسو ته دي معلومه وي چې د هغه اطاعت کول د هغوئ لپاره غوره دی ښه ده اوس درته زه خپل حال بیانوم چې زه مسیح دجال یم،

يُؤْذَنَ لِي فِي الْأَرْضِ فَلَا أَدَعَ قَرْيَةً إِلَّا هَبَطْتُهَا فِي أَرْبَعِينَ لَيْلَةً غَيْرَ مَكَّةَ وَطَيْبَةَ

ډیر ژر ما ته به د وتلو حکم راکړل سي زه به د باندې ووځم او ګرځم به تر دې چې هیڅ آبادي به داسې پرې نه بږدم چې هغې ته داخل نه سم ، څلوېښت شپې به برابر ګښت کوم مګر مکې او مدینې ته به نه ځم

هُمَا مُحَرَّمَتَانِ عَلَيَّ كِلْتَاهُمَا كُلَّمَا أَرَدْتُ أَنْ أَدْخُلَ وَاحِدَةً او واحد مِنْهُمَا

هلته د ورتلو زما منع سوې ده هر کله چي زه دغه ښارونو کي يو ښار ته د داخليدو اراده وکړم نو

اسْتَقْبَلَنِي مَلَكٌ بِيَدِهِ السَّيْفُ صَلْتًا يَصُدُّنِي عَنْهَا وَإِنَّ عَلَى كُلِّ نَقْبٍ مِنْهَا مَلَائِكَةً

يوه ملائکه چي د هغې په لاس کي به لڅه توره وي ما به د داخليدو څخه منع کړي او په دغه ښارونو کي به د هريو ښار پر لار ملائکي ټاکلي وي

يَحْرُسُونَهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَطَعَنَ بِمِخْصَرَتِهِ فِي

چي د لاري ساتنه به کوي ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ خپل عصا پر منبر وهلو سره

الْمِنْبَرِ هَذِهِ طَيْبَةُ هَذِهِ طَيْبَةُ هَذِهِ طَيْبَةُ يَعْنِي الْمَدِينَةَ أَلَا هَلْ كُنْتُ حَدَّثْتُكُمْ

وفرمايل : دا ده طيبه ، داده طيبه داده طيبه يعني مدينه بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : خبردار ايا ما به تاسو ته دا نه ښودل ؟

فَقَالَ النَّاسُ نَعَمْ فانه اعجبني حديث تميم انه وافق الذي كنت احدثكم

خلکو عرض وکړ چي هو ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل خبردار سئ ! چي دجال په بحيره شام کي

عنه وعن المدينة ومكة أَلَا إِنَّهُ فِي بَحْرِ الشَّأْمِ وَبَحْرِ الْيَمَنِ لَا بَلْ مِنْ قِبَلِ

الْمَشْرِقِ مَا هُوَ وَأَوْمَأَ بِيَدِهِ إِلَى الْمَشْرِقِ. رواه مسلم.

دی يا په درياب يمن کي ، نه بلکه هغه به د مشرق د لوري څخه راوځي دا يې وفرمايل چي رسول الله ﷺ په خپل لاس مبارک سره د مشرق لور ته اشاره وکړل . مسلم

**تخريج** : صحيح مسلم: ١٤\ ٢٢٦١، رقم: ١١٩ - ٢٩٤٢،

**د لغاتو حل** فارقووا : اى قربوا السفينة. اهلب: ما غلظ من الشعر وقيل ما كثر. بيسان: وهي قرية في الشام قريبة من الادن (شام ته نژدې يو کلی). زغر : بلدة بالشام (په شام کي يو ښار)

**تشريح** الصلوة جامعة، دغه جمله د خلکو متوجه کولو لپاره او لمانځه ته د رابللو لپاره ده چي خلک ددې په اوريدو سره يو ځای ته راسي او جمع سي، لکه څرنګه چي به د نبي کريم ﷺ په زمانه کي د کسوف او خسوف د لمانځه لپاره د خلکو د جمع لپاره د دغه جملې په ذريعه رابلل کيدل. سفينه ته د بحريه په اضافت کولو سره له دې څخه پرهيز کول دي چي ذهن د وچي کښتۍ

يعني اوبن ته متوجه نه سي ځكه چي اوبن ته سفينة البر (يعني دوچي كښتۍ) ويل كيږي، ځينو حضراتو ويلي دي چي د سفينه بحريه څخه مراد لويه دريابي كښتۍ ده چي هغه ته داوبو بېړۍ هم ويل كيږي.

د اقرب لفظ په اصل كي د قارب جمع ده او قارب هغه كوچنۍ كښتۍ ته وايي چي په لوی كښتۍ كي وي او ساحل ته د تللو راتللو لپاره پكاريږي،

هغه عجيب الخلقت حيوان خپل نوم د جساسه يعني جاسوسي كوونكي په دې اعتبار وښودی چي هغه به دجال ته خبرونه او معلومات رسول، څرګنده دي وي چي په قرآن كريم كي د كوم دابة الارض يادونه راغلې ده هغه دغه حيوان دی.

(دَير) په اصل كي دعيسايانو د عبادت ځای ته وايي، د لغت په كتابو كي هم دا ليكلي دي چي دير د راهبانو د اوسېدو ځای ته وايي، په هر حال دلته په حديث كي ددير څخه مراد هغه لويه ماڼۍ ده چي په هغه كي دجال وو.

بيسان د شام په هيواد كي د يو كلي نوم دی، او يا په يمامه كي د يو ځای نوم دی مګر په مشارق الانوار كي ليكلي دي چي په حديث جسار كي (كوم چي دلته نقل سوی دی) ذكر سوی بيسان د حجاز د يو ښار نوم دی او بل بيسان د شام په سيمه كي واقع دی، چي مخكي يو ځای بيان سوی دی، بحيره په اصل كي د بحر تصغير دی يعني كوچنۍ درياب، او طبريه په اردن كي د يو كلي نوم دی، د حديث مشهور امام طبراني رحمة الله عليه ددغه كلي اوسېدونكی وو.

زغر د يو ښار نوم دی چي د شام په هيواد كي واقع دی، په دغه سيمه كي شنګيا كمه كيږي، ما ته داميانو يعني عربو د نبي په اړه وښيه، دلته دجال د رسول الله ﷺ په نسبت يوازي عربو ته د طنز له موخي چي هغه په خاصه توګه دعربو نبي دی يعني ددغه جملې په ذريعه د هغه ملعون دجال د هغه باطل خيال ترجماني مقصد وه چي رسول الله ﷺ د ناپوهانو نبي دی.

د هغه خلكو دده اطاعت كول دهغوئ لپاره ددجال د ژبي څخه ددې خبري ايستل ګويا د هغه له خوا د رسول الله ﷺ د فضيلت او عظمت اظهار وو، كه څه هم دغه اقرار اضطرارا هم وو او په دې سبب هم وو چي هغه وخت د كفر د اظهار او ددين څخه دانكار يو مقصد هم د هغه وړاندي نه وو نو هغه د خپل كفر او عناد پټ ساتل مناسب ونه ګڼل، يا داهم ويل كيږي چي په دغه جمله كي د غوره والي څخه د هغه مراد دنياوي خير او سلامتيا وي.

لابل من قبل المشرق ماهو : نه، بلكه هغه به د لويديځ څخه راوځي، دلته د ما حرف د نفي لپاره نه دی بلكه زائد دی، ددغه جملې وضاحت دادی چي د قيامت د راتللو وخت الله جل جلاله پټ

کړی دی او په تاکنه سره یې نه دی ښودلی چې قیامت به کله راځي بلکه د قیامت نښي او دنښو د ښرګندېدو وختونه یې هم نه دي ټاکلي ځکه رسول الله ﷺ هم په ټاکلې توګه هغه ځایونه نه دي ښودلي چیري چې به دجال مقید وي یوازي د تردد او ابهام په توګه ذکر سوو درو ځایو ته یې اشاره وفرمایل ، مګر اخري ځای یې د غالب ګمان په ذریعه ښرګند کړ مګر هغه یې هم متعین نه کړ ، پرته له دې چې د یو خاص ځای او سیمي د تعین ښخه پرته هغه خوا ته په اشاره کولو سره یې پرېښود ، نو د ذکر سوي جملې ښخه مخکي د دوو احتمالو نفي او د دریم احتمال وجود ثابتیږي هغه دا معنی ده ، یوه خبره دا هم کیدای سي چي رسول الله ﷺ د لومړنیو دوو ځایو په یادونه کولو سره بیا دهغه نفي وفرمایل نو دهغه سبب دا وو چي د دجال بندیخانه به د یو ځای ښخه بل ځای ته نقل کیږي ، توربشتي رحمة الله عليه ویلي دي ددغه جملې ( بلکه هغه به د لویدیځ له خوا ښخه راوځي) په وضاحت کي ویلي دي چي کیدای سي دغه جمله د خبر ورکولو لپاره وي یعني دجال به د لویدیځ ښخه راوځي، او اشرف رحمة الله عليه ویلي دي چي دا هم کیدای سي چي رسول الله ﷺ ددجال د بندیخانې د ځای په ټاکنه کي شک درلودی، د رسول الله ﷺ په ګمان کي وو چي هغه په دغه ځایونو کي په یو ځای کي بندي دی ، کله چي رسول الله ﷺ د خپل دغه شک په وجه د شام د دریاب او دیمن ددریاب ذکر وکړ نو هغه وخت دوحي په ذریعه رسول الله ﷺ ته په یقین سره ښرګنده سوه یا دا چي د رسول الله ﷺ غالب ګمان وو چي د هغه بندیخانه د لویدیځ په خوا کي یو ځای واقع ده ، له دې کبله رسول الله ﷺ د مخکني دوو ځایو نفي وکړه او د هغه ښخه په مخ ګرځولو یې دریم ځای یعني د لویدیځ د خوا اثبات وکړ .

## د دجال حلیه (شکل)

﴿۵۲۴۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ښخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

رايتني اللَّيْلَةَ عِنْدَ الْكَعْبَةِ فَرَأَيْتُ رَجُلًا آدَمَ كَأَحْسَنِ مَا أَنْتَ رَاءٍ مِنْ أُدْمِ

ما خپل ځان (په خوب کي) د کعبې سره ولیدی هلته ما ته یو غنم رنګی سړی په نظر راغلی چي دده رنګ د غنم رنګو خلکو ښخه وو

الرِّجَالِ لَهُ لِمَّةٌ كَأَحْسَنِ مَا أَنْتَ رَاءٍ مِنَ اللِّمَمِ قَدْ رَجَّلَهَا فَهِيَ تَقْطُرُ مَاءً

د هغه د سر ترا وږو پوري وريښتان وه او د دغه ډول وريښتانو ساتونکو کي هغه ډير غوره وريښتان وه ، وريښتان يې ږمنځ کړي وه او تر وريښتانو يې اوبه څڅېدلې ،

مُتَّكِئًا عَلَى عَوَاتِقِ رَجُلَيْنِ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ فَسَأَلْتُ مَنْ هَذَا فَقَالُوا هذا الْمَسِيحُ

هغه سړي د دوو خلکو پر اوږو لاس ايښی د خانه کعبې طواف يې کوی ، ما پوښتنه وکړه چي دا څوک دي ؟ خلکو راته وويل دا مسيح

ابْنُ مَرْيَمَ قال ثم إِذَا أَنَا بِرَجُلٍ جَعْدٍ قَطَطٍ أَعْوَرِ الْعَيْنِ الْيُمْنَى كَأن عينه

ابن مريم عليه السلام دی ، د دې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : بيا زه پر يو بل سړي تير سوم چي د هغه وريښتان گڼ وه وه راسته ستر گه يې ړنده وه

عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ كَأَشْبَهِ مَنْ رَأَيْتُ مِنَ النَّاسِ بِابْنِ قَطَنٍ وَاضِعًا يَدَيْهِ عَلَى مَنْكِبَيْ

لکه گه د پړسيدلي انگور دانه ، کوم خلک چي ما ليدلي دي په هغوئ کي دا سړی ابن قطن سره زيات مشابه وو دغه سړي د دوو خلکو پر اوږو لاس ايښی

رَجُلَيْنِ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ فسالت من هذا فقالوا هَذَا الْمَسِيحُ الدَّجَّالُ متفق

د بيت الله طواف يې کوی ما پوښتنه وکړه دا څوک دی ؟ خلکو وويل دا مسيح دجال دی .
بخاري او مسلم ،

عليه وفي رواية قال في الدجال رَجُلٌ أَحْمَرُ جَسِيمٌ جَعْدُ الرَّأْسِ أَعْوَرُ عَيْنِ

په يوه روايت کي د دجال په اړه دا الفاظ دي چي هغه يو غټ بدن والا سور رنگی سړی دی د سر وريښتان يې گڼ وه وي راسته ستر گه يې ړنده ده ،

الْيُمْنَى أَقْرَبُ النَّاسِ بِهِ شَبَهًا ابْنُ قَطَنٍ . وذكر حديث ابي هريرة لا تقوم

په خلکو کي ابن قطن د هغه زيات مشابه دی ، د ابو هريره حديث : لاتقوم الساعة الخ . په باب

الساعة حتي تطلع الشمس من مغربها في باب الملاحم وسنذكر حديث

الملاحم کي بيان سوی دی او ډير ژر به د ابن عمر ﷺ حديث : قام رسول الله الخ . به د ابن صياد

ابن عمر قام رسول الله صلى الله عليه وسلم في الناس في باب القصة ابن صياد ان شاء الله تعالى.

په قصه کي بيان سي . د کعبې څخه مراد په دغه ځای کي اسلام دی د عيسى عليه السلام د طواف معنی داده چي دی به د اسلام ساتنه کوي او ددجال د طواف معنی داده چي دی به د اسلام په بربادۍ او خرابۍ پسي شاوخوا ټوله دنيا وګرځيږي خو مکې او مدينې منورې ته نه سي داخليدلای.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٤٧٧، رقم: ٣٤٤٠، ومسلم ١\ ١٥٤، رقم: ٢٧٣- ١٦٩.

**تشريح**: د وېښتانو څخه د اوبو څاڅکي څڅېدلې، دلته د اوبو څخه مراد يا خو هغه اوبه دي چي د لمبېدلو څخه وروسته په وېښتانو کي وي او د ژمونځ کولو څخه وروسته د وېښتانو څخه څڅېږي، او هغه اوبه هم مراد کېدای سي چي په هغه کي د ژمونځي په لندولو سره وېښتان سموي، يا د اوبو د څاڅکو څڅېدو څخه مراد د حضرت عيسى عليه السلام ډېره پاکي او تازګي مراد ده .

د هغه سترګه لکه د انګورو پړسېدلې دانه داسي ده، په دې اړه قاضي عياض رحمه الله ليکلي دي چي ددجال راسته سترګه به بالکل هواره وي چي د هغه پر ځای به د سترګي نوم او نښان هم نه وي او چپه سترګه به يې موجود وي مګر هغه به هم د پړسېدلي دانې په ډول وي .

د ابطن قطن څخه مراد عبدالعزی ابن قطن يهودي دی چي د هغه په اړه مخکي هم بيان سوی دی، د (کاشبه) په لفظ کي کاف زائد دی چي د مبالغې د اظهار لپاره استعمال سوی دی .

دجال ته د ابن قطن سره د تشبيه وجه داده چي کيدای سي د ابن قطن بدني حليه داسي وه لکه د دجال، يا په دې اعتبار تشبيه ورکړل سوې ده چي د هغه په سترګه کي به هم دانه وي .

دجال چي د کومو دوو کسانو پر اوږو باندي په لاس نيولو سره طواف کوونکی څرګند سوی دی په ظاهره د هغوئ څخه هغه دوه کسان مراد دي چي ددجال ملګري به وي لکه چي د هغه دوو کسانو څخه مراد چي د هغه پر اوږو به حضرت عيسى رحمه الله لاس نيولی طواف کوونکی معلوميږي ، دا هغه دوه کسان دي چي د حق په لاره کي به د حضرت عيسى عليه السلام مرسته کوونکي وي او کېدای سي هغه دوه کسان حضرت حضر او حضرت مهدي عليهما السلام وي، دلته دا اشکال پيدا کيږي چي دجال کافر دی نو د هغه د طواف په حالت کي لېدل څه معنی لري؟ ددې جواب علماؤ دا ورکړی دی چي ذکر سوې پېښه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مکاشفاتو څخه ده چي د

هغه تعلق د خوب سره دی او تعبیر یې دادی چې رسول الله ﷺ ته په هغه خوب کې دا وښودل سول چې یوه ورځ به راسي چې عیسی علیه السلام به د دین چاپیره وي چې دین به قائم ساتي او د فتنې او فساد څخه به د هغه ساتنه وکړي او د جال به هم د دین د مرکز چاپیره ګرځي چې د موقع په تر لاسه کولو سره به دین ته تاوان ورسوي او په فتنه خپرولو کې کامیاب سي، ځینو حضراتو دا جواب ورکړی دی چې پر مکه مکرمه باندې د اسلام د غلبې تر لاسه کولو او د مشرکانو مسجد حرام ته د نژدې تللو مخالفت نافذ کېدو څخه مخکې په هر حال کافر او مشرکان به هم د کعبې طواف کوی که دجال هم طواف کوي نو په دې کې د اشکال څه خبره ده، یوه خبره دا هم ده چې د رسول الله ﷺ د دغه مکاشفې یا خوب څخه د موجوداتو په دنیا کې د یو کافر طواف کول هیڅ کله نه لازمیږي، کله چې د کفارو او مشرکینو لپاره د کعبې د طواف د ممانعت تعلق د موجوداتو د دغه دنیا څخه دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د دجال ذکر

﴿۵۲۵۰﴾: عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ فِي حديث تميم الداري قالت قال فَإِذَا أَنَا

حضرت بي بي فاطمه بنت قیس رضی الله عنها د تمیم داري د حدیث په لړه کې بیان کوي چې کله تمیم داري دا بیان وکړ چې په جزیره کې داخل سوم نو

بِامْرَأَةٍ تَجُرُّ شَعْرَهَا قَالَ مَا أَنْتِ قَالَتْ أَنَا الْجَسَّاسَةُ اذْهَبْ إِلَى ذَلِكَ الْقَصْرِ

ما یوه ښځه ولیدل چې د خپل سر وریښتان یې پسي ښکیدل، تمیم داري ورته وویل ته څوک یې هغه ښځي وویل زه جاسوسه یم ته د دغه محل په لور ورسه،

فَأَتَيْتُهُ فَإِذَا رَجُلٌ يَجُرُّ شَعْرَهُ مُسَلْسَلٌ فِي الْأَغْلَالِ يَنْزُو فِيمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ فَقُلْتُ مَنْ أَنْتَ قَالَ أَنَا الدَّجَّالُ. رواه ابوداؤد.

د تمیم داري بیان دی چې زه په هغه محل کې داخل سوم نو هلته مې یو سړی ولیدی چې خپل وریښتان یې راښکول په زنځیرونو کې تړلی دی او طوقونه ور باندې پراته دي او د آسمان او مځکې په منځ کې ټوپونه وهي ما پوښتنه وکړه ته څوک یې؟ نو هغه راته وویل زه دجال یم. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۵۹۹، رقم: ۴۳۲۵.

**تشريح**: د روايت د برخي خلاصه داده چي تميم داري ﷺ د ذكر سوي پېښي په اړه چي كوم حديث د بي بي فاطمې ﷺ څخه نقل كړى دى او مخكي تېر سوى دى په هغه كي دغه الفاظ دي چي كله تميم داري ﷺ او د هغه ملګري جزيرې ته داخل سول نو (فلقيتهم الدابة) يعني هلته له هغوئ سره يو حيوان يو ځاى سو مګر د فاطمې ﷺ روايت چي ابوداؤد نقل كړى دى په هغه كي د حيوان پر ځاى د يوې ښځي سره د يو ځاى كېدو يادونه ده، نو په دغه دواړو روايتو كي دا تضاد پيدا سو چي د مسلم په روايت كي جساسه په دابة سره تعبير سوى دى چي په عامه اصطلاح كي ورته حيوان وايي او دلته دابوداؤد په روايت كي ښځه ورته ويل سوي دي ، ددغه تضاد ليري كولو لپاره ويل كيږي چي كېداى سي ددجال دوه جاسوسان وي يو دابة او بل ښځه ، يا دا چي ددابه اصل لغوي معنى د تلونكي وي ددغه لفظ اطلاق چي يوازي پر حيوان كيږي هغه د عامي اصطلاح په اعتبار دى، په قرآن كريم كي ددابه لفظ زيات استعمال د هغه پر اصل معنى سوى دى لكه (وما من دابة في الأرض الا على الله رزقها) يعني نسته د مځكي پر مخ يو تلونكى شى مګر د هغه رزق د الله ﷻ پر ذمه دى، نو په دغه معنى كي ددابه اطلاق پر ښځي باندي هم كيداى سي ، د مسلم په روايت كي چي د دابه لفظ دى د هغه څخه ښځه مراد ده ، يوه خبره دا هم كيږي چي جساسه يعني جاسوسي كوونكي په اصل كي شيطان وو ، چي كله ددابه په صورت كي ښكاره سو او كله د ښځي په صورت كي، دغه خبره قياس ته ډېره نژدې ده او مناسب هم ده، ځكه چي د جاسوسۍ اصل مقصد يعني د ټولي نړۍ خبرونه جمع كول او دجال ته رسول د دابه يا د ښځي د ذات څخه ليري دى مګر دا چي د جاسوسۍ او دخبرونو تر لاسه كولو تعلق د ټولي نړۍ سره نه وي بلكه يوازي د هغه كښتيو سره وي چي د هغه جزيرې شاوخوا تيريږي .

ددغه دواړو روايتو په منځ كي د يو بل سره تضاد ښكاريږي هغه دا چي د مسلم په روايت كي د سائل او مخاطب په توګه د شخص واحد نه بلكه د پوره ډلي يادونه ده ، حال دا چي دابوداؤد په روايت كي سوال او جواب د شخص واحد يعني تميم داري ﷺ سره خاص سوى دى، ددې جواب دادى چي سائل او مخاطب يوه ډله وه مګر په هغه ډلي كي تميم داري ﷺ هم وو ځكه د سوال او جواب نسبت يوازي هغوئ ته كول هم صحيح دي ، يا دا چي سوال او جواب كوونكي يوازي تميم داري ﷺ وي مګر هغه دغه سوال او جواب د پوره ډلي د ترجمان په حيثيت كړى دى ځكه ددغه سوال او جواب نسبت ټولي ډلي ته كول هم صحيح دي، په عامه

اصطلاح کي دا رواج دي چي کله د يوې ډلي د يو سړي يو کار وي نو کله د هغه نسبت يوازي هغه سړي ته کيږي او کله ټولي ډلي ته کيږي د مثال په توګه ويل کيږي چي فلانۍ ډلي فلانی سړی ووژی نو که څه هم وژونکی يو سړی وي مګر د هغه نسبت ټولي ډلي ته کيږي.

## د دجال حيله

﴿۵۲۵۱﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت عبادة بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

إِنِّي حَدَّثْتُكُمْ عَنِ الدَّجَّالِ حَتَّى خَشِيتُ أَنْ لَا تَعْقِلُوا إِنَّ مَسِيحَ الدَّجَّالِ

ما تاسو ته د دجال حال په وار وار دديې انديښني له کبله بيان کړی دی چي هغه ستاسو څخه هير نه سي، د هغه د حقيقت څخه تاسو مه نا خبر کيږئ، مسيح دجال

قَصِيرٌ أَفْحَجُ جَعْدٌ أَعْوَرُ مَطْمُوسُ الْعَيْنِ لَيْسَ بِنَاتِئَةٍ وَلَا حَجْرَاءَ فَإِنْ أُلْبِسَ عَلَيْكُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِأَعْوَرَ. رواه ابوداؤد.

لنډ قدی دی د هغه پښې لاندي ځي او پوندي يې ليري ليري دي، وريښتان يې تاو راتاو دي په يوه سترګه دی (يعني راسته سترګه يې ړنده ده) دويمه سترګه يې اواره ده يعني نه لوړه ده او نه ننوتلې ده بيا هم که تاسو په شبه کي ولويږي نو دومره خبره ياد ساتئ چي ستاسو پروردګار ړوند نه دی. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۹۵، رقم: ۴۳۲۰.

**د لغاتو حل**: الفحج: تباعد بين الفخذين. حجراء: اى ولا غائرة

**تشريح**: چي تاسو په پوه نه سئ: مطلب دادی چي زه په وار وار په مختلف انداز کي د دجال حال تاسو ته بيانوم نو د هغه وجه داده چي د دجال حيثيت او حقيقت ستاسو په ذهنو کي په ښه ډول پوخ سي، داسي نه وي چي دجال څرګند سي او تاسو دا خبري هيري کړي وي چي د هغه په اړه ما تاسو ته ښودلي دي، يا ستاسو زړه او دماغ د هغه د حقيقت څخه ناخبره پاته سي، طيبي رحمة الله عليه ويلي دي چي: په (اني حدثتكم عن الدجال حتى خشيت ...الخ) دلته لفظ د حتى په اصل کي د حدثتكم غايت دی، مطلب دا چي ما د دجال په اړه دومره زيات او په بېلابېلو طريقو سره

حديثونه بيان کړي دي چي زما سره دا ېره پيدا سوې ده چي تاسو د ماتي ښکار نه سئ او ستاسو ذهن داسي نه سي چي د دجال حيثيت او حقيقت او دهغه تفصيل ستاسو د فهم او ادراک څخه ووځي نو پر تاسو باندي لازمه ده چي د دجال په حالاتو ښه پوه سئ او خپل ځان په دې اړه د شک او شبهو څخه وساتئ.

د جال لنډی دی، دغه خبره د هغه روايت خلاف ده چي په هغه کي د جال ته تر ټولو لوی ويل سوي دي مګر په حقيقت کي که چيري دا وکتل سي نو د دواړو خبرو په منځ کي تضاد نسته ځکه چي لنډی کېدل د غټېدو خلاف نه وي ، کېدای سي چي دجال لنډی هم وي او د غټ بدن والا هم وي ، او دا خبره د هغه د دومره لوی فتنې رامنځته کېدو په اعتبار د هغه د فطرت او حقيقت مطابق هم ده او ځينو حضراتو ويلي دي چي کيدای سي الله تعالی دهغه د خروج په وخت کي هغه متغير کړي يعني اوس خو هغه ډېر غټ وي مګر دهغه د ظاهرېدو په وخت کي چي راپورته سي نو دهغه قد به لنډ ی سي.

د هغه پښې لاندي ځي، داد افحج ترجمه ده ، يعني داسي سړی يا حيوان چي د هغه د ګرځېدو انداز داسي وي چي دپښو په سرو ځي مګر دواړي پوندي يې د يوې بلي څخه ليري وي، په نهايه کي ليکلي دي چي د افحج معنی داده چي ددواړو ورنو په منځ کي د معمول څخه زياته فاصله وي، د هغه سترګه به پړسېدلي نه وي او نه به ننوتلې وي ، دغه جمله منفيه مؤکده ده، مقصددا څرګندول دي چي د هغه يوه سترګه به بالکل هواره وي ، نو دا د هغه خبري خلاف نه ده چي د هغه بله سترګه به د انګور ددانې په ډول پړسېدلې وي ددې وضاحت مخکي تېر سوی دی.

دا خبره په ياد لرئ چي ستاسو پروردګار ړوند نه دی، يعني د يو مسلمان او مؤمن په حيثيت سره پر تاسو باندي د صفات ربوبيت څخه چي د کوم شي تر ټولو مخکي پېژندل واجب دي هغه دادي چي ستاسو رب د حدوث او غيوب او په خاصه توګه د ظاهري نقصاناتو څخه بالکل پاک دی ، که چيري دغه بنيادي عقيده ستاسو په زړه او دماغ کي حاضره وي نو تاسو به د دجال په ړوند لېدلو سره سمدستي پوه سئ چي دغه عيب لرونکی ذات هيڅکله خدای کېدای نه سي که څه هم هغه تاسو په شک اچولو کي هر څومره مافوق الفطرت کارنامې وښيي.

## پر ايمان باندي ثابت قدمه به د دجال څخه نه ېريږي

﴿۵۲۵۲﴾: وَعَنْ عُبَيْدَةَ بْنِ الْجَرَّاحِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو عبيده بن جراح ﷺ څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي

وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّهُ لَمْ يَكُنْ نَبِيٌّ بَعْدَ نُوحٍ إِلَّا قَدْ أَنْذَرَ الدَّجَّالَ قَوْمَهُ وَإِنِّي

د نوح عليه السلام څخه وروسته هيڅ يو نبي داسي نه دی تير سوی چي هغه خپل قوم د دجال څخه نه وي بيرولی ، زه هم

أُنْذِرُكُمُوهُ فَوَصَفَهُ لَنَا قَالَ لَعَلَّهُ سَيُدْرِكُهُ بَعْضُ مَنْ رَآنِي أَوْ سَمِعَ كَلَامِي

تاسو د هغه څخه بيروم او د هغه حقيقت درته بيانوم، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د دجال کيفيت بيان کړ بيا يې وفرمايل : شايد په تاسو کي يو سړی چي هغه زه ليدلی يم يا زما خبري يې اوريدلي دي هغه ووينې ،

قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ فَكَيْفَ قُلُوبُنَا يَوْمَئِذٍ قَالَ مِثْلُهَا يَعْنِي الْيَوْمَ أَوْ خَيْرٌ. رواه الترمذي وابوداؤد.

صحابه کرامو وويل: اې د الله رسوله ! په دغه ورځو کي به زموږ د زړونو څه حالت وي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : بلکل داسي لکه څرنګه چي نن دي يا ددې څخه هم غوره . ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج** : سنن الترمذي: ۴\۴۴۰، رقم: ۲۲۳۴، وابوداود ۵\۱۱۷، رقم: ۴۷۵۶.

**تشريح**: دا خبره مخکي تېره سوې ده چي حضرت نوح عليه السلام هم خپل قوم د دجال څخه بيرولی وو، نو د نوح عليه السلام څخه وروسته دا مراد دی چي حضرت نوح عليه السلام هم بيرول او د هغه څخه وروسته انبياوو هم خپل امتونه بيرول.

د هغه خلکو څخه چا چي زه ليدلی يم ...الخ: دا خبره رسول الله ﷺ ددې لپاره وفرمايل که چيري د دجال ظهور ژر وسي او ځينو خلکو د دغه جملې مشار اليه حضرت خضر عليه السلام ګرځولی دی او وايي چي دا د خضر عليه السلام په دغه دنيا کي د موجود تيا دليل دی.

يا زما کلام يې اورېدلی وي: په دغه حکم کي هر هغه مؤمن راځي چا ته چي د دجال په باره کي د رسول الله ﷺ حديثونه ورسيږي که څه هم د هغه زمانه د رسول الله ﷺ د زمانې څخه هر څومره وروسته وي، په هر حال د دغه پوره جملې مطلب دادی چي د دجال وجود او د هغه ظاهرېدل يقيني خبره ده مګر د هغه تهاکلی وخت معلوم نه دی چي هغه به کله څرګنديږي، که

داسي وي چي زما په صحابهٔ كرامو كې څوک هغه زمانه تر لاسه كړي نو ښه خبره ده كنه نو كوم مؤمنان چي وروسته راځي هغوئ به ددجال زمانه تر لاسه كړي ، هغوئ ته به زما حديثونه رسيدلي وي او ما چي ددجال په اړه څه بيان كړي دي هغوئ به يې اوري ، ځكه هغوئ ته پكار ده چي هغوئ هم پر يقين باندي قائم اوسي او ددجال په دوكه كي رانسي ،

لكه چي نن ورځ ده يا تر دې هم غوره، مطلب دادی چي كوم سړی (يعني مؤمن) پر خپل ايمان او عقيده باندي قائم اوسي د هغه زړه به هم پر خپل ځای ټينګ وي چي ددجال څخه به هيڅ نه بيريږي او دهغه په دوكه كي به هيڅكله رانسي ، لكه څرنګه چي مؤمنان دغه وخت ددجال منكر او مخالف دي همدارنګه به هغه وخت هم منكر او مخالف وي، بلكه د هغه احوال او چمبازي به په خپلو سترګو د لېدو په سبب د هغه په انكار او مخالفت كي نور هم زياتوب وسي.

## دجال به د خراسان څخه راووځي

﴿۵۲۵۳﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ قَالَ حَدَّثَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الدَّجَّالُ يَخْرُجُ مِنْ أَرْضٍ بِالْمَشْرِقِ يُقَالُ لَهَا خُرَاسَانُ يَتْبَعُهُ أَقْوَامٌ كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ . رواه الترمذي

حضرت عمرو بن حريث رضي الله عنه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه څخه روايت كوي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم موږ ته بيان وكړ چي دجال به د مشرق د يوې ځمكي څخه راوځي چي د هغه نوم به خراسان وي ، ډير قومونه چي د هغوئ مخونه به د سپر په ډول غبرګ پړسيدلي وي د هغه اطاعت اختيار كړي . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۴۱، رقم: ۲۲۳۷.

**د لغاتو حل**: المجان: جمع المجن وهو الترس.

**تشريح**: خراسان يو مشهور ښار دی چي د ماوراء النهر په سيمه كي واقع دی او د ايران په هيواد كي شامل دی او د هغه خلكو مخونه ....الخ: مطلب دادی چي د هغوئ مخونه به پلن او باړخوګان به يې د سپر په ډول را پورته سوي وي ، د مطرقة وضاحت په كتاب الفتن كي په وضاحت سره بيان سوی دی .

## د دجال څخه د ليري اوسيدو ټينګار

﴿۵۲۵۴﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَمِعَ بِالدَّجَّالِ فَلْيَنْأَ عَنْهُ فَوَاللّٰهِ إِنَّ الرَّجُلَ لَيَأْتِيهِ وَهُوَ يَحْسِبُ أَنَّهُ مُؤْمِنٌ فَيَتَّبِعُهُ مِمَّا يَبْعَثُ بِهِ مِنَ الشُّبُهَاتِ. رواه ابوداؤد

د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل: څوک چي د دجال د راوتلو خبر واوري هغه ته پکار ده چي د هغه څخه ليري اوسي، قسم په خداى څوک چي دجال ته راسي او هغه ځان مؤمن ګڼي مګر بيا به هم د هغه اطاعت قبول کړي ځکه چي هغه ته هغه شيان ورکړل سوي دي چي د هغه سره به په شبهاتو کي ولويږي. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود: ۴\۱۴۹۵، رقم: ۴۳۱۹.

**تشريح**: هغه ته پکار ده چي د هغه څخه ليري اوسي: خلاصه دا چي بدۍ ته نژدې کېدل د خطرې او بيرې څخه خالي نه وي حال دا چي دهغه څخه ليري اوسېدل د خير او ښېګڼې ضامن دی، الله جل جلاله فرمايي:

(وَلاَ تَرْكَنُواْ إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُواْ فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ)

کله چي دجال ښکاره سي نو هغه وخت چي څوک مؤمنان وي هغه ته پکار ده چي هغه د دجال څخه ليري اوسي.

## د دجال پر مځکه باندي اوسيدو وخت

﴿۵۲۵۵﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ بْنِ السَّكَنِ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت اسماء بنت يزيد بن السكن (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ و فرمايل:

وَسَلَّمَ يَمْكُثُ الدَّجَّالُ فِي الْأَرْضِ أَرْبَعِينَ سَنَةً اَلسَّنَةُ كَالشَّهْرِ وَالشَّهْرُ كَالْجُمُعَةِ

دجال به څلوېښت کاله په مځکه کي ګرځي، کال به د مياشتي برابر وي، مياشت به د اونۍ او

وَالْجُمُعَةُ كَالْيَوْمِ وَالْيَوْمُ كَاضْطِرَامِ السَّعْفَةِ فِي النَّارِ. رواه في شرح السنة.

اونۍ به د يوې ورځي برابر وي، او يوه ورځ به دومره وخت وي په څومره وخت کي چي د خرما

وچه ځانګه سوځي . شرح السنه .

**تخريج** : اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۵\ ۶۲، رقم: ۴۲۶۴.

**د لغاتو حل** : السعفة: واحدة السعف وهو غصن النخل اي كسرعة التهاب النار بورق النخل.

**تشريح**: مخكي يو حديث تېر سوی دی چي په هغه كي د دجال پر مخكه ګرځېدو ځلوښت شپې بيان سوي دي او دلته ځلوښت كاله بيان سوي دي، ددغه دواړو حديثو په منځ كي د مطابقت پيدا كولو لپاره ويل كيږي چي په لومړي حديث كي چي كوم وخت بيان سوی دی د هغه ځخه خاص وخت مراد دی چي د هغه په دوران كي به هغه د ځمكي پر مخ فتنه او فساد خپروي او خلک به ګمراه كوي او دلته چي كوم وخت بيان سوی دی ددې ځخه مطلق هغه وخت مراد دی چي په هغه كي به دجال د ځمكي پر مخ اوسيږي .

كال به د مياشتي په اندازه وي....الخ: ددغه جملې ځخه مراد د وخت د تيزۍ ځرګندول دي چي هغه وخت به د ورځي ډېر تېز رفتار وي ، پاته سوه د هغه حديث خبره چي په هغه كي دا فرمايل سوي دي چي هغه وخت به مياشت د كال برابر وي نو ددې ځخه مراد تعلق او شدت بيانول دي چي هغه وخت به د فتنې او فساد د زياتوب په وجه او ددیني او دنياوي تكليفو د زياتوب په وجه داسي معلوميږي لكه چي د زمانې رفتار سست سوی وي او ورځ د غره په شان تيريږي مګر په حقيقت كي به هغه ورځي په تيزي سره تيريږي .

او يوه ورځ به دومره وخت وي ....الخ: مطلب دادی چي ځرنګه يوه وچه پاڼه په اور كي سوځي نو هغه اور سمدستي په بلېدو سره يخ سي .

## د دجال پيروان

﴿۵۲۵۶﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتْبعُ الدَّجَّالَ مِنْ أُمَّتِيْ سَبْعُوْنَ أَلْفًا عَلَيْهِمُ السِّيْجَانُ . رواه في شرح السنة

د حضرت ابو سعيد خدري ﷛ ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما د امت اويا زره خلک چي د هغوئ پر سرو به شنه ځادرونه وي د دجال اطاعت قبول كړي . شرح السنه .

**تخريج** البغوي في شرح السنة ۱۵\ ۶۲، رقم: ۴۲۶۵.

**د لغاتو حل** السيجان: جمع ساج كتيجان وتاج وهو الطيلسان الاخضر وقيل المنقوش ينسج.

**تشريح** سيجان په اصل کي د ساج جمع ده لکه چي تاج د تيجان جمع ده، ساج هم د طيلسان په ډول شنه يا تور څادر ته وايي.
زما په امت کي، دلته د امت څخه مراد ملت اسلاميه هم کيداى سي او امت دعوت يعني کافران هم کيداى سي مګر صحيح خبره آخري خبره ده يعني د کافرانو ډله، لکه چي په مخکني يو حديث کي هم بيان سوى دى چي دد جال طاعت کوونکي به اوويا زره خلک د اصفهان يهوديان وي.

## دجال اووچ کالي

﴿۵۲۵۷﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت اسماء بنت يزيد ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ زما په کور کي وو، چي

فِي بَيْتِي فَذَكَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ إِنَّ بَيْنَ يَدَيْهِ ثَلَاثَ سِنِينَ سَنَةٌ تُمْسِكُ السَّمَاءُ

د دجال ذکرېي وکړاو وه يې فرمال: د دجال د راتلو څخه مخکي به درې کاله داسي راسي چي په هغه کي به په دغه کال کي آسمان

ثُلُثَ قَطْرِهَا وَالْأَرْضُ ثُلُثَ نَبَاتِهَا وَالثَّانِيَةُ تُمْسِكُ السَّمَاءُ ثُلُثَيْ قَطْرِهَا

دريمه حصه باران او مځکه دريمه حصه حاصلات بند کړي او په دوهم کال به آسمان دوې حصې

وَالْأَرْضُ ثُلُثَيْ نَبَاتِهَا وَالثَّالِثَةُ تُمْسِكُ السَّمَاءُ قَطْرَهَا كُلَّهُ وَالْأَرْضُ نَبَاتَهَا كُلَّهُ

باران بند کړي او مځکه به دوې حصې حاصلات بند کړي او په دريم کال به نه باران وي نه حاصلات

فَلَا يَبْقَى ذَاتُ ظِلْفٍ وَلَا ذَاتُ ضِرْسٍ مِنَ الْبَهَائِمِ إِلَّا هَلَكَتْ وَإِنَّ أَشَدَّ فِتْنَتِهِ

بيا به نه يو نوک والا حيوان پاته سي او نه غاښو والا ټول به مړه سي، او دد جال تر ټولو لويه

أَنْ يَأْتِيَ الْأَعْرَابِيَّ فَيَقُولُ أَرَأَيْتَ إِنْ أَحْيَيْتُ لَكَ إِبِلَكَ أَلَسْتَ تَعْلَمُ أَنِّي رَبُّكَ

فتنه به دا وي چي هغه به يو ساده صحرايي ته ورسي ورته به وايي که زه ستا هغه اوښ را ژوندى کړم کوم چي مړ سوى دى نو ايا ته به ما خپل پروردګار و بولي؟

فَيَقُولُ بَلَى فَيُمَثِّلُ الشَّيَاطِينُ لَهُ نَحْوَ إِبِلِهِ كَأَحْسَنِ مَا يَكُونُ خروعا وَأَعْظَمِهِ

هغه صحرايي به ورته وايي :هو، نو دجال به د اوښ په ډول صورتونه جوړ کړي چي د صحرائي تر اوښانو به يې غلانزي ډکي وي او قوبونه به يې غټ وي،

أَسْنِمَةً قَالَ وَيَأْتِي الرَّجُلَ قَدْ مَاتَ أَخُوهُ وَمَاتَ أَبُوهُ فَيَقُولُ أَرَأَيْتَ إِنْ أَحْيَيْتُ

ويلي دي رسول الله ﷺ بيا به دجال يو بل سړي ته ورسي چي د هغه پلار او ورور به مړه سوي وي او هغه ته به وايي كه زه ستا پلار او ورور راژوندي كړم

لَكَ أَبَاكَ وَأَحْيَيْتُ لَكَ أَخَاكَ أَلَسْتَ تَعْلَمُ أَنِّي رَبُّكَ فَيَقُولُ بَلَى فيمثل لَهُ

نو ته به ما ومنې چي زه ستا رب يم ؟ هغه به ورته و وايي هو، نو دجال به شيطانان د هغه د پلار او

الشَّيَاطِينُ نَحْوَ أَبِيهِ وَنَحْوَ أَخِيهِ قَالَتْ ثُمَّ خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

ورور په شكل كي جوړ كړي، بي بي اسماء بنت يزيد وايي ددې فرمايلو سره رسول الله ﷺ د يو

وَسَلَّمَ لِحَاجَةٍ ثُمَّ رَجَعَ وَالْقَوْمُ فِي اهْتِمَامٍ وَغَمٍّ مِمَّا حَدَّثَهُمْ قَالَتْ فَأَخَذَ

ضرورت لپاره تشريف يووړ او لږ وخت وروسته راغلی ، د دجال د ذكر اوريدو سره خلک په فكر او شک كي ناست وه ، رسول الله ﷺ د دروازې

بِلُجْمَتَيِ الْبَابِ فَقَالَ مَهْيَمْ أَسْمَاءُ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَقَدْ خَلَعْتَ

دواړې پلې ونيولې او وه يې فرمايل : اې اسماء څه حال دی؟ ما عرض وكړ اې د الله رسوله ! د دجال د ذكر كولو سره تاسو

أَفْئِدَتَنَا بِذِكْرِ الدَّجَّالِ قَالَ وَإِنْ يَخْرُجْ وَأَنَا حَيٌّ فَأَنَا حَجِيجُهُ وَإِلَّا فَإِنَّ رَبِّي

زموږ زړونه دباندي را وايستل (يعني په بيره كي سوو) رسول الله ﷺ وفرمايل كه هغه زما په ژوند كي راووتی نو زه به په خپلو دلائلو سره هغه دفع كړم او كه زما په ژوند كي نه راغلی نو زما

خَلِيفَتِي عَلَى كُلِّ مُؤْمِنٍ فقلت يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا وَاللَّهِ لَنَعْجِنُ عَجِينَتَنَا فَمَا

پروردګار د هر مؤمن لپاره زما وكيل او خليفه دی ، ما عرض وكړ اې د الله رسوله ! موږ خپل

نَخْتَبِزُهَا حَتَّى نَجُوعَ فَكَيْفَ بِالْمُؤْمِنِينَ يَوْمَئِذٍ قَالَ يَجْزِيهِمْ مَا يَجْزِي

أَهْلَ السَّمَاءِ مِنَ التَّسْبِيحِ وَالتَّقْدِيسِ. رواه احمد وابو داؤد.

اوږه اغړلو او ډوډۍ پخولو څخه فارغ سوي نه یو چي د لوږي څخه بې ارامه سو نو په هغه وچ کالي کي به د مؤمنانو څه حال وي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : د هغوئ د لوږي دفع کولو لپاره به هغه شی کافي وي کوم چي د آسمان والاوو لپاره کافي دی یعني تسبیح او تقدیس. احمد، او ابوداؤد.

**تخریج** الامام احمد في مسنده ٦\٤٥٣.

**د لغاتو حل** : ظلف: هي البقرة والشاة والظي. مهيم: ای ما حالک وما شانک وما وراءک.

**تشریح** (فاخذ بلحمتي الباب)، رسول الله ﷺ د دروازې دواړي پلې ونیولې، دلته د لحمة لفظ دمشکوة او مصابیح په ټولو نسخو کي د لام په زور او د حاء په جزم سره منقول دی چي د طرف په معنی کي اخیستل سوی دی مګر په صحاح او قاموس کي دغه لفظ په ذکر سوې معنی کي نه دی ، طیبي رحمة الله علیه ویلي دي دغه الفاظ په اصل کي (ملجفتي الباب) دي ، یعني د حاء پر ځای جیم دی او د میم پر ځای فاء ده، چي معنی یې د دروازې د څوکو ده، یعني ځینو شارحینو دطیبي رحمة الله علیه ددغه خبري سره په اتفاق نه کولو ویلي دي چي دمشکوة او مصابیح په ټولو نسخو کي دغه لفظ همداسي منقول دی لکه چي دلته په حدیث کي نقل سوی دی نو لازمه ده چي بلحمتی الباب صحیح ومنل سي، او په معنی کي یې دا تاویل وکړل سي چي په قاموس کي د لحمه معنی د غوښي د ټوټې لیکل سوې ده ځکه ددغه معنی څخه یوازي ټوټه دي اختیار کړل سي او دا دي وویل سي چي د بلحمتی الباب معنی د دواړو ټوټو ده،

او په دې اعتبار ورته ټوټې ویل کیږي چي هغه بېلي وي کله چي د دروازې بندېدو په صورت کي په یو ځای کېدو سره یو سي او کله د دروازې خلاصېدو په صورت کي د یو بل څخه بېل سي، دغه تاویل یقینا تر دې خبري زیات غوره او مناسب دی چي د حدیث په الفاظو کي د کتابت غلطي یا د روایت د سهو احتمال را وایستل سي . د هغوئ لپاره به هغه څه کافي وي ...الخ: مطلب دادی چي په هغه زمانه کي به الله جل جلاله مؤمنانو ته دومره صبر او استقامت ورکړي چي هغوئ ته به د خوراک او څښناک اړتیا نه محسوس کیږي لکه چي ملائکي د خوراک او څښناک اړ نه دي او دهغوئ اصل غذا به تسبیح وي لکه چي د ملائکو اصل غزا تسبیح او تقدیس ده.

څرګنده دي وي چي ځینو حضراتو د بي بي اسماء رضي الله عنها دغه الفاظ (اې دالله رسوله! تاسو خو زموږ زړونه وایستل ...الخ) دا معنی بیان کړې ده چي ددجال زمانه خو موږ تر لاسه کړې نه

ده یوازي دهغه په یادونه کولو سره زموږ دا حالت دی چي موږ د دوډۍ پخولو لپاره اوړه اغږو او څرنګه چي د دجال د خبرو یاد راسي چي تاسو موږ ته کړي دي او زموږ زړونه راوباسي نو د بیري او فکر په وجه موږ دوډۍ پخول پرېږدو او اوږي پاته سو نو د هغه خلکو به څه حال وي چي د هغه زمانې د سختو حالاتو سره مخامخ سي او هغوئ د دجال زمانه تر لاسه کړي مګر طیبي رحمة الله علیه دا معنی د حقیقت څخه لیري ګرځولې ده ، که بیا هم دا معنی واخیستل سي نو په دغه صورت کي د رسول الله ﷺ د جواب خلاصه داده چي الله جل جلاله به د تسبیح او تقدیس د برکته هغوئ ته صبر او استقامت او د هغه حالاتو د مقابلې کولو توان او طاقت ورکړي ، او دا هم کېدای سي چي بي بي اسماء رضي الله عنها به دغه خبره د هغه مجلس څخه وروسته په بل وخت کي کړې وي ، د (فقلت) په لفظ کي فاء دې ته اشاره کوي چي هغې دغه خبره په هغه مجلس کي د دجال د یادوني په اورېدو سره کړې ده او د هغې الفاظ چي د اوړو اغږلو او لوږي یادونه پکښې دي ، دغه الفاظ يې د راتلونکي زمانې په اعتبار ویلي وي.

د مشکوٰة په اصل نسخه کي د رواه څخه وروسته خالي ځای دی مګر بیا وروسته یو چا د احمد او ابوداؤد او الطیالسي الفاظ لیکلي دي او ځینو حضراتو ویلي دي چي : رواه احمد عن عبد الرزاق عن معمر عن قتادة عن شهر بن حوشب عنها وانفرد به عنها .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### اهل ایمان ته د دجال څخه د بېرېدو ضرورت نه سته

﴿۵۲۵۸﴾ : عَنِ الْمُغِيرَةَ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ مَا سَأَلَ أَحَدٌ عَنِ رسول الله صَلَّى اللَّهُ

د حضرت مغیره بن شعبه رضي الله عنه څخه روایت دی چي د دجال په اړه چي څومره ما د رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الدَّجَّالِ أَكْثَرَ مَا سَأَلْتُهُ وَإِنَّهُ قَالَ لِي مَا يَضُرُّكَ قُلْتُ انهم

څخه پوښتني کړي دي دومره بل چا پوښتني نه دي کړي ، رسول الله ﷺ یو وار ما ته وفرمایل: دجال تا ته څه تاوان نه سي رسولای، ما عرض وکړ

يَقُولُونَ إِنَّ مَعَهُ جَبَلَ خُبْزٍ وَنَهَرَ مَاءٍ قَالَ هُوَ أَهْوَنُ عَلَى اللَّهِ مِنْ ذَلِكَ. متفق علیه

خلک داسي وایي چي د هغه سره به د دوډیو غر او د اوبو دریاب وي ، رسول الله ﷺ وفرمایل : د الله تعالی په نزد دجال د دې څخه هم زیات ذلیل دی . بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۸۹، رقم: ۷۱۲۲، ومسلم ۴\۲۳۵۸، رقم: ۱۱۵- ۲۹۳۹.

**د لغاتو حل** اقمر: اى شديد البياض (تک سپين). باعا: وهو طول ذراعي الانسان وما بينهما.

**تشريح** تر دې زيات ذليل دى، مطلب دادى چي دجال د خپل طاقت او قوت كومي ځرګندوني وړاندي كړي هغه به ټول بې حقيقته وي چي د هغه شيانو حيثيت به د چمبازۍ او نظر بندۍ څخه زيات نور هيڅ نه وي، هغه د الله ﷻ په نزد دومره ذليل او بې حيثيته دى چي د حقيقت په اعتبار هغه ته دومره زيات طاقت او قدرت ورکول کېداى نه سي او هغه پر دې قادر کېداى نه سي چي پر عقيده او عمل باندي په ټينګه سره قائم اوسېدونكي مؤمنان ګمراه كړي، نو مؤمنان به د دجال د مافوق الفطرت طاقت په لېدو سره چي يوازي په ظاهركي طاقت معلومېږي او په حقيقت كي د دوكې څخه پرته نور هيڅ نه دي، هيڅكله په ويره كي نه سي بلكه هغوئ به د هغه د محير العقول كړنو په لېدو سره د هغه پر چم او درواغو باندي خپل يقين نور زيات پوخ كړي.

## د دجال سپرلۍ به خر وي

﴿۵۲۵۹﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَخْرُجُ الدَّجَّالُ عَلٰى حِمَارٍ أَقْمَرَ مَا بَيْنَ أُذُنَيْهِ سَبْعُوْنَ بَاعًا. رواه البيهقي في كتاب البعث والنشور

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دجال به پر يو سپين خره باندي سپور راووځي چي د هغه د دواړو غوږونو منځنۍ برخه به اويا باعه پلنه وي. بيهقي.

**تخريج** رواه البيهقي في كتاب البعث والنشور.

**تشريح** (باع) د دوو لاسونو غزولو اندازې ته وايي، خلاصه دا چي د دجال د سپرلۍ خر به دومره لوى وي چي د هغه د دواړو غوږو په منځ كي فاصله به د دواړو لاسونو د اوويا ځله غزولو په اندازه وي.

=========

# بَابُ قِصَّةِ ابْنِ صَيَّادِ

## (د ابن صياد قصه)

د مشكوة په زياتو باوري نسخو كي پر دغه ځاى د ابن ضياد لفظ ليكلى دى مګر په ځينو نسخو كي د ابن الصياد الفاظ هم نقل سوي دي.

## د ابن صياد حقيقت

د ابن صياد اصل نوم (صاف) وو او ځينو حضراتو ورته عبدالله ويلي دي، هغه يو يهودي وو، د مديني اوسېدونكى وو يا دا چي په اصل كي د بل ځاى اوسېدونكي وو مګر مديني ته په راتللو سره د هغه ځاى په يهوديانو كي شامل سوى وو، ابن صياد د سحر او جادو زيات ماهر وو او په دې وجه د هغه شخصيت ډېر لوړ سوى وو، د اسلام او مسلمانانو سره د هغه حقيقت په لنډه توګه داسي ښرګندېداى سي چي هغه يوه لويه فتنه وه چي په هغه كي مسلمانان په اخته كېدو سره د هغوئ امتحان واخيستل سو، د هغه حالات ډېر مختلف وه او په دې وجه د صحابه كرامو په منځ كي د هغه د حيثيت په تعين كي اختلاف وو، د ځينو صحابه كرامو خيال وو چي ابن صياد هغه دجال دى كوم چي دهغه په اړه خبر وركړل سوى دى چي هغه به په دنيا كي ښرګنديږي او مؤمنان به ګمراه كړي، مګر د اكثرو حضراتو دا وينا وه چي ابن صياد هغه لوى دجال خو نه دى مګر د هغه كوچنيو دجالانو څخه ضرور دى چي په مختلفو زمانو كي پيدا كيږي او د هغوئ اصل مقصد د فتنې او فساد خپرول او دخلكو ګمراه كول دي، لكه چي په يو روايت كي فرمايل سوي دي چي په دغه امت كي به دجال پيدا كيږي چي خپله به هم ګمراه وي او نور به هم ګمراه كوي، د اخر الذكر حضراتو دليل دادى چي ابن صياد كه څه هم مخكي كافر او كاهن وو مګر په پاى كي مسلمان سوى وو بيا هغه حج هم وكړ او د مسلمانانو سره يې په جهاد كي ګډون وكړ، د هغه اولادونه هم پيدا سول او هغه به په مدينه او مكه كي اوسېدى، ځكه دجال به كافر وي او دكفر په حالت كي به قتل كړل سي او د هغه اولادونه به نه وي او همدارنګه هغه مكې او مدينې ته نه سي داخلېداى، د حضرت تميم داري هغه حديث هم ددغه حضراتو پوره دليل ګرځېداى سي كوم چي دد جال په اړه مخكي تېر سوى دى، په هر حال د ابن صياد حيثيت او حقيقت مبهم وو، د هغه په اړه په تعين او يقين سره څه ويل مشكل دي، خپله پر رسول الله ﷺ باندي هم د هغه په اړه وحي نه دي نازل سوي ځكه رسول الله ﷺ هم د هغه د اصل حيثيت څخه

پرده پورته نه کړل بلکه مبهم يې وساتی، لکه چي د دغه باب په نقل سوو حديثونو کي به څرګند سي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د ابن صياد سره يوه واقعه

﴿۵۲۶۰﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ انْطَلَقَ مَعَ رسول الله صَلَّى

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَهْطٍ من اصحابه قِبَلَ ابْنِ صَيَّادٍ حَتَّى وَجَدُوهُ يَلْعَبُ مَعَ

د صحابه کرامو په يوه ډله کي د ابن صياد په لور ورغلی، رسول الله ﷺ هغه د يهودي قبيلې بني مغاله قلعه کي د کوچنيانو سره په لوبو کولو وليدی،

الصِّبْيَانِ فِي أُطُمِ بَنِي مَغَالَةَ وَقَدْ قَارَبَ ابْنُ صَيَّادٍ يَوْمَئِذٍ الْحُلُمَ فَلَمْ يَشْعُرْ حَتَّى

دغه وخت ابن صياد بلوغ ته نژدې سوی وو، ابن صياد ته زموږ راتلل معلوم نه سول، تر دې چي

ضَرَبَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ظَهْرَهُ بِيَدِهِ ثُمَّ قَالَ أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ

رسول الله ﷺ هغه ته نژدې ورغلی د هغه پر ملا يې لاس را تير کړ او ورته وه يې فرمايل: ايا ته ددې امر شاهدي کوې چي زه د الله رسول يم،

اللّٰهِ فَنَظَرَ إِلَيْهِ فَقَالَ أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ الْأُمِّيِّينَ ثُمَّ قَالَ ابْنُ صَيَّادٍ أَتَشْهَدُ أَنِّي

ابن صياد د رسول الله ﷺ په لور وکتل او وه يې ويل زه ددې شاهدي ورکوم چي ته د نا ويونکو (اميانو) خلکو رسول يې، ددې څخه وروسته ابن صياد وويل ايا ته ددې خبري شاهدي ورکوي

رَسُولُ اللّٰهِ فَرَصه النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ آمَنْتُ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهِ ثُمَّ

چي زه د الله رسول يم؟ رسول الله ﷺ هغه ونيوی او په ښه زور سره يې دباو کړ بيا يې وفرمايل: ما پر الله جل جلاله او د هغه پر رسولانو ايمان راوړی دی، ددې څخه وروسته يې

قَالَ لِابْنِ صَيَّادٍ مَاذَا تَرَى قَالَ يَأْتِينِي صَادِقٌ وَكَاذِبٌ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

ابن صیاد ته وویل ته دغیبي شیانو څخه څه وینې ؟ هغه وویل : کله ریښتني او کله دروغ (خبري)، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُلِّطَ عَلَيْكَ الْأَمْرُ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي خَبَأْتُ

پر تا امور مشتبه کړل سوي دي ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ما په زړه کي

لَكَ خَبِيئًا وخباله يوم تاتي السماء بدخان مبين فقَالَ هُوَ الدُّخُّ قَالَ اخْسَأْ

یوه خبره پټه کړې ده ته وو ایه چي هغه څه ده ؟ او د رسول الله ﷺ په زړه کي دا آیت وو (یوم تاتي السماء بدخان مبین) هغه وویل هغه خبره (الدخ) ده ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چغه سه

فَلَنْ تَعْدُوَ قَدْرَكَ قَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَتَأْذَنُ لِي فِيهِ ان أَضْرِبُ عُنُقَهُ قَالَ

ته د خپل حیثیت څخه وړاندي نه سي تللای، عمر رضی الله عنه عرض وکړ اې دالله رسوله ! ما ته اجازه راکړه چي زه یې غاړه پرې کړم، رسول الله ﷺ وفرمایل :

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ يَكُنْ هُوَ لَا تُسَلَّطُ عَلَيْهِ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ هُوَ فَلَا

که دا هغه دجال وي (د کوم چي ما خبر درکړی دی) نو ته به پر ده واک نه سي تر لاسه کولای او که دی هغه نه وي

خَيْرَ لَكَ فِي قَتْلِهِ قَالَ بن عُمَرَ انْطَلَقَ بَعْدَ ذٰلِكَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نو دده په وژلو کي ستاسو لپاره څه خیر نه سته، ابن عمر رضی الله عنه وایي تر دې وروسته بل وخت رسول الله ﷺ

وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ الْأَنْصَارِيُّ يَؤُمَّانِ النَّخْلَ الَّتِي فِيهَا ابْنُ صَيَّادٍ فَطَفِقَ رَسُولُ اللّٰهِ

او ابی بن کعب انصاري رضی الله عنه د خرماوو هغه درختو ته ورسېدل په کوم ځای کي چي ابن صیاد وو ، رسول الله ﷺ د درختو په بناخونو کي پټ ددې څخه مخکي چي هغه (یعني ابن صیاد)

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَّقِي بِجُذُوعِ النَّخْلِ وَهُوَ يَخْتِلُ أَنْ يَسْمَعَ مِنِ ابْنِ صَيَّادٍ

رسول الله ﷺ ووینې د هغه خبري یې اوریدل غوښتل چي هغه ته دا معلومه سي چي دلته څوک

شَيْئًا قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ وَابْنُ صَيَّادٍ مُضْطَجِعٌ عَلَى فِرَاشِهِ فِي قَطِيفَةٍ لَهُ فِيهَا زَمْزَمَةٌ

نه سته نو په آزادي سره به خبري وکړي، ابن صیاد څادر اغوستی پر بستره پروت وو او د هغه د څادر څخه داسي آواز راتلی چي په پوهه کي نه راتلی،

فَرَأَتْ أُمُّ ابْنِ صَيَّادٍ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَتَّقِي بِجُذُوعِ النَّخْلِ فَقَالَتْ

د ابن صیاد مور رسول الله ﷺ د خرماوو په بناخونو کي پټ سوی ولیدی نو وه یې ویل

أَيْ صَافِ وَهُوَ اسْمُهُ هَذَا مُحَمَّدٌ فَتَنَاهَى ابْنُ صَيَّادٍ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

اې صاف (دا د ابن صیاد نوم دی) دا مخته محمد ﷺ ولاړ دی، ددې په اوریدو سره ابن صیاد پته خوله سو، رسول الله ﷺ وفرمایل:

وَسَلَّمَ لَوْ تَرَكَتْهُ بَيَّنَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بن عمر قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

که دده مور دی پر خپل حال پرې ایښی وای نو دده یو حال به معلوم سوی وای، ابن عمر رضي الله عنه وایي رسول الله ﷺ د خلکو په منځ کي ودریدی

فِي النَّاسِ فَأَثْنَى عَلَى اللَّهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ ذَكَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ إِنِّي أُنْذِرُكُمُوهُ وَمَا مِنْ

د الله تعالی حمد او ثناء یې بیان کړه چي د هغې هغه مستحق دی، بیا یې د دجال ذکر وکړ او وه

نَبِيٍّ إِلَّا وَقَدْ أَنْذَرَهُ قَوْمَهُ لَقَدْ أَنْذَرَهُ نُوحٌ قَوْمَهُ وَلَكِنِّي سَأَقُولُ لَكُمْ فِيهِ قَوْلًا لَمْ

یې فرمایل: زه تاسو د دجال څخه بیروم او هیڅ یو نبي داسي نه دی تیر سوی چي هغه خپل قوم د دجال څخه نه وي بیرولی البته تر ټولو مخکي حضرت نوح عليه السلام خپل قوم د هغه څخه بیرولی وو مګر زه د دجال په اړه تاسو ته هغه خبره کوم

يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهِ تَعْلَمُونَ أَنَّهُ أَعْوَرُ وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِأَعْوَرَ. متفق عليه.

چي هیڅ یو نبي تر ننه پوري خپل قوم ته نه ده کړې (او هغه دا چي) تاسو خبردار اوسئ چي دجال یو سترګی دی او الله تعالی یو سترګی نه دی. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۲۱۸، رقم: ۱۳۵۴، ومسلم ۱۴\۲۲۴۴، رقم: ۹۵ - ۲۹۳۰.

**د لغاتو حل** اُطم: القصر و كل حصن مبني بحجارة وكل بيت مربع مسطح الجمع. (د ډبرو څخه جوړ). مغالة: قبيله. فرصه: اى ضغطه حتى ضم بعضه الى بعض. يختل: وهو طلب الشيء بحيلة (په چمبازي يو شی تر لاسه کول). قطيفة: اى دثار مخمل وقيل لحاف صغير (کوچنی تلتک).

**تشریح**: د امیانو څخه مراد عرب وه ځکه چي په هغه زمانه کي اکثر عرب په لیک او لوست نه پوهېدل، او اصل خبره داده چي په یهودیانو کي د یوې ډلي عقیده هم داوه چي هغوئ د رسول الله ﷺ د رسالت منکر نه وه مګر رسول الله ﷺ يې یوازي د عربو رسول منی، په هر حال دا خبره (یعني د ابن صیاد د رسول الله ﷺ داسي شاهدي ورکول) د هغه د لغو او باطل خبرو څخه یوه خبره وه چي شیطان يې کاهنانو ته په زړه کي ور اچوي، په منطقي توګه هم د هغه دغه القاء د سخت تضاد او تناقض حامل وو، ځکه چي نبي کریم ﷺ په هر حال کي رېښتونی وي ، او کله چي رسول الله ﷺ د خپل نبوت عام اعلان وکړ او ټول انسانیت ته يې د خپل رسالت بلنه ورکړل نو د رسول الله ﷺ نبوت یوازي د عربو خاصول باطل وګرځېدی ، رسول الله ﷺ هغه په ښه زور سره ونیوی ، د رص لفظ د راء په زور سره دی او اصل معنی يې دوو شیانو هوارول او یو ځای کول دي ځکه ټینګ او هوار بنیاد ته مرصوص ویل کیږي، خلاصه دا چي رسول الله ﷺ د ابن صیاد د اندامو په نیولو سره زور ورکړ، نووي رحمة الله عليه لیکلي دي چي زموږ په سیمه کي د کتاب کومي نسخې دي په هغو کي دغه لفظ (فرفصه) دی، یعني په فاء او صاد سره، چي د رفص څخه دی او معنی يې د پرېښودلو ده، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي رسول الله ﷺ د هغه د سوال او جواب څخه صرف نظر وکړ .

ما په الله ﷻ او دهغه په رسولانو ایمان راوړ: مطلب دادی چي ما یقینا د الله ﷻ په رسولانو او نبیانو باندي ایمان راوړی دی او دا هم یقیني ده چي ته د هغوئ څخه نه يې ، مګر که چیري بالفرض ته هم دهغوئ څخه وې نو ما به پر تا باندي هم ایمان راوړی وای مګر دا فرضي خبره به په هغه صورت کي جائز وي کله چي دا وویل سي چي رسول الله ﷺ دغه خبره د خپل خاتم النبیین کېدو د علم څخه مخکي کړې وه که هغه وخت د رسول الله ﷺ خاتم النبیین کېدل د رسول الله ﷺ په علم کي وای نو دا به فرض محال خبره مراد نسي اخیستل کېدای، ددغه مسئلې د نزاکت اندازه ددې څخه لګول کیږي که یو سړی د نبوت دعوه وکړي او بل سړی د هغه څخه د معجزې د مطالبې کولو سربېره هغه قتل نه کړي ددې لپاره چي اول خو هغه د لږ عمر وو او د لږ عمر والا قتلول د رسول الله ﷺ لپاره منع وو، دوهم دا چي یهودیان په هغه ورځو کي ذمیان وه او رسول الله ﷺ د هغوئ سره پر دې خبره صلح کړې وه چي هغوئ به پر خپل حال پرېښودل کیږي او څرګنده ده چي ابن صیاد هم د یهودیانو یو کس وو او دهغوئ د حلیفو څخه وو ځکه هغه يې ووژلای نه سو .

کله ما ته ریښتونی خبر راځي او کله د دروغو خبر، په دې اړه ځینو شارحینو ویلي دي چي

د ابن صیاد څخه د رسول الله ﷺ د سوال مقصد دا وو چي کوم څوک تا ته راځي هغه تا ته څه وايي او د هغه کړي خبري ستا لپاره څرنګه ثابتيږي، ابن صیاد د ذکر سوي جملې په ذریعه د هغه سوال چي کوم جواب ورکړ د هغه خلاصه دا وه چي یو راتلونکي ما ته یوه خبره ښیي چي په هغه کي یوه خبره رښتيا کيږي او یوه خبره دروغ سي، نو د کاهنانو دا حال وي چي شیطان پر هغوئ د دروغو او رښتيا هر ډول خبرو القاء کوي (یعني په زړه کي يې وراچوي).

ستا معامله ګډه وډه سول: مطلب دا چي ستا سره د کومو شیانو او خبرونو ذخیره وه هغه ټوله بېکاره ده ځکه چي په هغو کي رښتيا خبري هم د دروغو خبرو په یو ځای کېدو د باور وړ نه سوې یا دا مطلب وو چي ستا حیثیت او ستا حال د باور وړ نه دی ځکه چي تا ته خو شیطان راځي چي تا ته د دروغو او رښتيا خبري اوروي ، ددغه خبري په ذریعه رسول الله ﷺ د هغه د رسالت دعوه دروغ وګرځول ځکه چي هیڅ رسول ته دروغ خبرونه نه راځي حال دا چي هغه په خپله ژبه اقرار وکړ ، نو رسول الله ﷺ څرګنده کړه چي ته یوازي کاهن يې او د کاهنانو دا حال وي نو رسول او نبي هیڅ کله نه سي کېدای .

ما په زړه کي ستا لپاره یوه خبره پټه کړې ده، یعني که چیري ستا دعوه وي چي پر تا باندي خدايي راز منکشف کیږي او یو سړی په راتلو سره تا ته د غیب خبري ښيي نو دا وښیه چي دا وخت زما په زړه کي څه دي ، ما ستا په اړه یوه خبره په زړه کي اېښې ده د هغه خبري په ذریعه رسول الله ﷺ دابن صیاد امتحان واخیست چي صحابه کرامو ته د هغه حقیقت څرګند کړل سي او هغوئ پوه سي چي دی کاهن دی او شیطان ورته راځي او د دروغو او رښتيا خبري ورته ښيي.

هغه پټه خبره دخ ده، دُخ د دال په پېښ او د خاء په تشدید سره د دود په معنی دی ، ابن صیاد د پوره آیت په ښودلو کي کامیاب نه سو کوم چي رسول الله ﷺ په زړه کي نیولی وو مګر هغه د یو آیت ناقص لفظ وښودی ، ددې څخه هم د هغه کاهن کېدل ثابت سوّل ځکه چي په کهانت کي دا وي چي شیطان د یوې خبري نیمګړی او ناقص شیان راوړي او د هغه کاهنانو په زړو کي يې اچوي او دا هم کېدای سي چي رسول الله ﷺ هغه وخت په پټه صحابه کرامو ته ښودلې وي چي ما دغه آیت په زړه کي نیولی دی او شیطان هم دا خبره اورېدلې وي او بیا يې هغه ابن صیاد ته ښودلې وي .

لیري سه، ته د خپل حد څخه هیڅکله وړاندي کېدای نه سې، لیري سه ، دا د اخساء ژباړه ده چي د هغه په ذریعه د اهانت او حقارت اظهار کیږي او په عامه توګه د سپي او خنزیر د شړلو او لیري کولو لپاره دغه لفظ ویل کیږي، په هر حال کوم وخت چي د ابن صیاد حقیقت څرګند سو

چي د هغه حال هغه دی کوم چي د کاهنانو وي چي هغه د شیطان په القاء کولو سره نیمګړي خبري معلوموي او د هغه پر بنیاد باندي د خپل غیب ویني دعوه کوي، نو رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل: لیري سه ستا حد معلوم سو ته یوازي کاهن يې او کاهن به يې، تر دې وړاندي ته هیڅ نه سې تللای په خپل حد کي اوسه، او په راتلونکي کي د رسالت د دعوې کولو جرئت مه کوه چي هغه زما مقام دی.

د هغه په وژنه کي ستا خیر نسته، مطلب دا وو چي هغه ذمي دی او د هغه یهودیانو څخه دی چي اهل ذمه دی، له دې څخه پرته هغه نابالغ او د لږ عمر والا هم دی ځکه دده قتلول ګټه نه کوي، ځیني قرائن د ابن صیاد پر دجال کېدو باندي دلالت کوي ځکه رسول الله ﷺ د شک په توګه دا خبره وفرمایل که چیري هغه واقعي دجال وي نو ته دده په قتلولو قادر کېدای نه سې او که دجال نه وي نو بیا دده په وژنه کي هیڅ خیر نسته.

او یقینا الله ﷻ ړوند نه دی، یعني هغه خو د ړوندوالي څخه پاک دی څرګنده دي وي چي رسول الله ﷺ دا وفرمایل چي هیڅ نبي خپل قوم ته دا نه دي ښودلي چي دجال ړوند دی نو په دې اړه دا کېدای سي چي د رسول الله ﷺ څخه پرته بل هیڅ نبي ته ددجال د احوالو دومره تفصیلي علم نه وو چي دجال به ړوند وي یا داسي به وي یا دا چي دا علم خو هر نبي ته وو مګر هیڅ یو نبي خپل قوم ته دا نه وه ښودلي چي دجال به ړوند وي.

## ابن صیاد کاهن وو

﴿۵۲۶۱﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخدري قَالَ لَقِيَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ

وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ يعني ابن صياد فِي بَعْضِ طُرُقِ الْمَدِينَةِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ

او حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه د مدینې په یوه لاره د ابن صیاد سره یو ځای سول نو رسول الله ﷺ هغه (ابن صیاد) ته وفرمایل:

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللّٰهِ فَقَالَ هُوَ أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللّٰهِ

ایا ته ددې خبري شاهدي کوې چي زه د الله ﷻ رسول یم؟ هغه ورته وویل ایا تاسو داسي شاهدي کوئ چي زه د الله ﷻ رسول یم؟

فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آمَنْتُ بِاللّٰهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَ رسوله

رسول الله ﷺ وفرمایل ما پر الله تعالی، د هغه پر ملائکو د هغه پر کتابونو او د هغه پر رسولانو ایمان راوړی دی،

مَا ذَا تَرَى قَالَ أَرَى عَرْشًا عَلَى الْمَاءِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د هغه څخه پوښتنه وکړه ته څه شی وینې؟ هغه وویل زه پر اوبو یو تخت وینم، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:

تَرَى عَرْشَ إِبْلِيسَ عَلَى الْبَحْرِ وَمَا تَرَى قَالَ أَرَى صَادِقَيْنِ وَكَاذِبًا أَوْ كَاذِبَيْنِ

ته د ابلیس تخت د اوبو سربیره وینې، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د هغه څخه پوښتنه وکړه ته نور څه وینې؟ هغه وویل دوې ملائکي وینم (چي رښتیا خبرونه راوړي) او یو درواغجن وینم (چي درواغ خبرونه راوړي) یا هغه دا وویل چي زه دوه درواغجن

وَصَادِقًا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لُبِسَ عَلَيْهِ فَدَعُوهُ. رواه مسلم.

او یو ریښتوني وینم، رسول الله ﷺ وفرمایل: پر ده امر مشتبه کړل سوی دی (یعني کاهن ترویتي دی) او کهانتي په ترویت توب کي دی اشتباه یعني په شک او شبه کي غورځول سوی دی له دې کبله دی پریږدئ. مسلم.

**تخریج** صحیح مسلم: ۴\۲۲۴۱، رقم: ۸۷- ۲۹۲۵.

**تشریح** ته د ابلیس تخت وینې پر دریاب، ددغه جملې په ذریعه رسول الله ﷺ دغه حقیقت ته اشاره وفرمایل چي ابلیس د اوبو سربېره د خپل تخت په غوړولو سره پر هغه خپل دربار لګوي او د هغه ځای څخه د خپلو ملګرو ټولی په دنیا کي د فتنې او فساد خپرولو او د خلکو د ګمراه کولو لپاره استوي، په دې اړه یادونه د کتاب په پیل کي په باب الوسوسه کي تېره سوې ده.

یا دوه درواغجن وینم او یو رېښتوني، دغه الفاظ یا د راوي شک ظاهروي چي دلته د روایت الفاظ داسي دي یا داسي، یا دا چي خپله ابن صیاد په دغه شک سره بیان کړی دی چي زه یا خو دوه ریښتوني او یو درواغجن وینم یا دوه درواغجن او یو رېښتونی وینم او دا خبره زیاته صحیح معلومیږي ځکه چي د هغه معامله څرنګه ګډه وډه او په احتمالاتو کي راګیر سوې ده او د هغه احوال چي څرنګه د نظم او استقلال څخه خالي وه نو دهغه تقاضا دا وه چي هغه ته په

هیڅ صورت کي هم یقین تر لاسه نه سو نو هغه به کله داسي کتل او کله هسي .

## د جنت په باره کي د رسول الله ﷺ څخه د ابن صیاد سوال

﴿۵۲۶۲﴾: وَعَنْهُ أَنَّ ابْنَ صَيَّادٍ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ تُرْبَةِ الْجَنَّةِ فَقَالَ دَرْمَكَةٌ بَيْضَاءُ مِسْكٌ خَالِصٌ. رواه مسلم.

د حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چي ابن صیاد د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي د جنت خاوره څنګه ده ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل هغه د میدې په ډول سپینه او د خاصو مشکو په ډول خوشبوداره ده . مسلم.

**تخریج** : صحیح مسلم: ۴\۲۲۴۳، رقم: ۹۳-۲۹۲۸.

**د لغاتو حل** : درمکة: دقیق الحواري والتراب الناعم (ترمیده اوړه یا پسته خاوره)

## د دجال په باره کي پیشګوئي

﴿۵۲۶۳﴾: وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ لَقِيَ ابْنُ عُمَرَ ابْنَ صَائِدٍ فِي بَعْضِ طُرُقِ الْمَدِينَةِ

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روایت دی چي ابن عمر رضي الله عنه د مدینې په یوه لاره کي د ابن صیاد سره

فَقَالَ لَهُ قَوْلًا أَغْضَبَهُ فَانْتَفَخَ حَتَّى مَلَأَ السِّكَّةَ فَدَخَلَ ابْنُ عُمَرَ عَلَى حَفْصَةَ

ملاقات وکړ ، ابن عمر رضي الله عنه هغه ته یو داسي خبره وکړه چي په هغه سره هغه (ابن صیاد) په غضب کي سو ، او د هغه رګونه وپړسیدل تر داسي حده چي ټوله کوڅه یې ډکه کړل ، د هغه څخه وروسته حضرت ابن عمر رضي الله عنه خپل خور بي بي حفصې ته ورغلی

وَقَدْ بَلَغَهَا فَقَالَتْ لَهُ رَحِمَكَ اللّٰهُ مَا أَرَدْتَ مِنِ ابْنِ صَائِدٍ أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا يَخْرُجُ مِنْ غَضْبَةٍ يَغْضَبُهَا . رواه مسلم.

هغې ته د پېښي خبر رسیدلی وو هغې ورته وفرمایل : اې ابن عمر ! الله تعالی دي پر تا رحم وکړي ته د ابن صیاد څخه څه غواړې ؟ ایا تا ته معلومه نه ده چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي چي دجال به پر یو خبره غضبناک سوی دباندي راووځي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲۲۴۶\۴، رقم: ۹۸- ۲۹۳۲.

**تشريح** يعني دجال به پر يوه خبره غصه سي او هغه غصه به هغه دومره وپاروي چي هغه به راوځي او د نبوت يا خدايي دعوه به وكړي نو اې ابن عمر ! ته ابن صياد مه په غضب كوه او د هغه سره هيڅ خبره مه كوه چي هغه خروج ونه كړي او نړيوال د هغه د فتنې څخه خوندي وي، بي بي حفصې ﷝ ، حضرت عمر ﷛ همدا رنگه منع كړ ، په څرگنده ددې وجه دا معلوميږي چي هغه دا فكر كړى وي چي كېداى سي ابن صياد دجال وي او د رسول الله ﷺ د وړاند ويني سره سم ابن عمر ﷛ د هغه د خروج ظاهري سبب ونه گرځي بلكه دا هم كېداى سي چي بي بي حفصې ﷝ د هغه د دجال كېدو يقين درلود .

### د ابن صياد د دجال كېدو څخه انكار

﴿۵۲۶۴﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ صَحِبْتُ ابْنَ صَائِدٍ إِلَى مَكَّةَ فَقَالَ لِي

د حضرت ابو سعيد خدري ﷛ څخه روايت دى چي زه او ابن صياد د مكې په سفر كي يو ځاى سوو ، ابن صياد ما ته د هغه تكليف ذكر وكړ

مَا لَقِيتُ مِنَ النَّاسِ يَزْعُمُونَ أَنِّي الدَّجَّالُ أَلَسْتَ سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

چي د خلكو څخه هغه ته رسيدلى وو بيا يې وويل خلك پر ما د دجال خيال كوي ايا تاسو د رسول الله ﷺ دا خبره نه ده اوريدلې

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّهُ لَا يُولَدُ لَهُ وَقَدْ وُلِدَ لِي أَلَيْسَ قد قال وهو كافر وانا

چي دجال به بې اولاده وي او زما اولاد سته او رسول الله ﷺ ويلي دي چي دجال به كافر وي او زه

مسلم او ليس قد قال لا يدخل المدينة ولا مكة وقد اقبلت من المدينة

مسلمان يم ، رسول الله ﷺ دا نه دي فرمايلي چي دجال به په مكه او مدينه كي نه داخليږي او زه د مدينې څخه را روان يم

وانا اريد مكة ثُمَّ قَالَ لِي فِي آخِرِ قَوْلِهِ أَمَا وَاللَّهِ إِنِّي لَأَعْلَمُ مَوْلِدَهُ وَمَكَانَهُ

او د مكې په لور ځم ، بيا يې ما ته په آخره كي وويل چي قسم په الله زه د هغه د زېږېدو او سيدو

وَأَيْنَ هُوَ واعرف اباه وامه قَالَ فَلَبَسَنِي قال قلت له تبالك سائر اليوم قال

ابو سعید ﷺ وایي یو سړي د ملګرو څخه هغه ته وویل ایا ته په دې خوشحاله کېږې چي ته خپله دجال سې ؟ ابن صیاد وویل که ما ته هغه صفات راکړي سي کوم چي په دجال کي دي نو زه یې بد نه ګڼم . مسلم.

و قيل له ايسرك انك ذاك الرجل قال فقال لو عرض علي ما كرهت . رواه مسلم

ځای پیژنم او دا هم پیژنم چي پلار او موریې ثوک دي ، ابو سعید وایي د ابن صیاد آخري الفاظو زه په شبه کي واچولم نو ما هغه ته وویل ته د همېشه لپاره هلاک سې ،

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\ ۲۲۴۲، رقم: ۸۹- ۲۹۲۷،

**تشريح**: زه په شک کي سوم، د دغه جملې په ذریعه ابو سعید ﷺ دا بیان وکړ چي مخکي خو ما دا یقین درلود چي ابن صیاد دجال دی مګر اوس چي هغه د خپل دجال کېدو څخه انکار وکړ نو زه په شک کي سوم چي هغه دي دجال وګڼل سي که نه، یا دا چي مخکي خو هغه په دلائلو سره دا ثابته کړه چي زه خپله دجال نه یم مګر هغه چي په پای کي دا وویل چي زه د دجال مولد او مسکن څخه خبر یم نو داسي نه وي چي هغه دغه خبره د تعرض په توګه کړې وي او د دغه آخري خبرو څخه مراد خپله د هغه ذات وي چي زه به یې بد نه ګڼم ، د دغه په ذریعه ابن صیاد دا قرار وکړ چي په داسي صورت کي د جال جوړېدل به زه قبول کړم او راضي به سم نو دا خبره د هغه د کفر څرګند دلیل دی .

## د ابن صیاد ذکر

﴿۵۲۶۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَقِيتُهُ وَقَدْ نَفَرَتْ عَيْنُهُ فَقُلْتُ مَتَى فَعَلَتْ عَيْنُكَ مَا أَرَى قَالَ لَا أَدْرِي قُلْتُ لَا تَدْرِي وَهِيَ فِي رَأْسِكَ قَالَ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ خَلَقَهَا فِي عَصَاكَ قَالَ فَنَخَرَ كَأَشَدِّ نَخِيرِ حِمَارٍ سَمِعْتُ. رواه مسلم.

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي کله د ابن صیاد سترګه نوجنه وه نو زه د هغه سره یو ځای سوم ما ورته وویل : ستا سترګه د څه وخت څخه نوجنه ده ، هغه وویل ما ته نه ده معلومه چي د څه وخت څخه ده ، ما ورته وویل تا ته معلومه نه ده حال دا چي سترګه ستا په سر کي ده ،

هغه وويل : كه الله ﷻ غواړي نو ستركه به ستا په لكړه كي پيدا كړي ، ابن عمر رضي الله عنه وايي ددې څخه وروسته ابن صياد د پزي څخه د خره په ډول يو سخت اواز وايستى او داسي آواز ما هيڅكله نه وو اوريدلى . مسلم.

**تخريج** : صحيح مسلم ۴\۲۲۴۶، رقم: ۹۹- ۲۹۳۲.

**تخريج** : فنخر : اى صوت صوتا منكرا.

**تشريح** ستركه به ستا په لكړه كي پيدا كړي: ددغه جملې څخه د ابن صياد مطلب دا وو چي ځرنگه الله ﷻ پر دې قادر دى چي هغه په جماد كي ستركه ولگوي او بيا په هغه ستركه كي درد پيدا سي نو هغه شي ته نه د ستركي احساس وي او نه د ستركي درد ، نو داسي عين ممكن ده چي د يو انسان په ستركو كي د تكليف يوه نښه پيدا سي چي هر وخت په بدني توكه په هغه سره بوخت وي نو هغه ته د زيات بوختيا او هجوم په وجه د هغه د درد او تكليف احساس نه وي.

## ابن صياد دجال دى

﴿۵۲۶۶﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ رَأَيْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَحْلِفُ

د حضرت محمد بن المنكدر رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما جابر بن عبد الله رضي الله عنه وليدى هغه په قسم

بِاللّٰهِ أَنَّ ابْنَ الصَّائِدِ الدَّجَّالُ قُلْتُ تَحْلِفُ بِاللّٰهِ قَالَ إِنِّي سَمِعْتُ عُمَرَ يَحْلِفُ

سره دا وويل چي ابن صياد دجال دى ما هغه ته وويل : ايا ته په قسم خوړلو سره وايې ؟ هغه وويل : ما د عمر رضي الله عنه څخه دا اوريدلي دي چي هغه به

عَلَى ذٰلِكَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يُنْكِرْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . متفق عليه.

د رسول الله ﷺ په شتون كي په دې قسم اخيستى او نبي ﷺ ددې څخه انكار نه دى فرمايلى . بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۳۲۳، رقم: ۷۳۵۵، ومسلم ۴\۲۲۴۳، رقم: ۹۴- ۲۹۲۹.

**تشريح** كېداى سي چي د حضرت جابر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه قسم كول ددې لپاره وي چي ابن صياد هغه دجالانو يعني درواغجنانو او چمبازانو څخه يو وي كوم چي وخت په وخت په

دغه امت کي پيدا کيږي او د خپل نبوت په دعوه کولو سره خلک گمراه کوي او په شک او شبهو کي يې اخته کوي ، يعني د دغه دواړو د قسم تعلق د دې خبري سره نه وو چي ابن صياد په حقيقت کي دجال دی ځکه چي رسول الله ﷺ د ابن صياد معامله مبهم پرېښودل او مطلب دا دی چي هغه په يقيني توگه دجال نه دی مگر د روايتو په الفاظو کي د مطلق دجال ذکر دی د هغه څخه دا خبره څرگنديږي چي د دغه دواړو حضراتو په نزد دجال معهود مراد وو ، په دغه صورت کي د دواړو قسم کول به د غالب گمان په وخت کي د قسم کولو په جواز محمول کيږي او مخته په دوهم فصل کي چي د حضرت ابن عمر رضي الله عنه کوم روايت راځي په هغه کي په صراحت سره بيان سوی دی چي ابن صياد دجال معهود وو نو کيدای سي چي د ابن عمر رضي الله عنه مذهب هم دا وي ، په هر حال دا خبره مخکي بيان سوې ده چي د ابن صياد په اړه د صحابه کرامو په منځ کي اختلاف وو .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ابن عمر په نزد ابن صياد دجال وو

﴿۵۲٦۷﴾: عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُولُ وَاللّٰهِ مَا أَشُكُّ أَنَّ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ ابْنُ صَيَّادٍ . رواه ابو داؤد والبيهقي في كتاب البعث والنشور .

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روايت دی چي ابن عمر رضي الله عنه به ويل ما ته په دې کي بلکل شک نه سته چي مسيح دجال ابن صياد دی . بيهقي

**تخريج** : سنن ابي داود ۴\۵۰٦، رقم: ۴۳۳۰.

### ابن صياد د حره د واقعې په ورځ غائب سوی وو

﴿۵۲٦۸﴾ : وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ فَقَدْنَا ابْنَ صَيَّادٍ يَوْمَ الْحَرَّةِ . رواه ابو داؤد.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د حرة په پېښه کي ابن صياد ورک کړ . ابو داؤد.

**تخريج** سنن ابي داود : ۴\۵۰٦، رقم: ۴۳۳۲.

**تشريح**: که چيري د حديث د الفاظو ظاهري معنی مراد وي نو مطلب به دا وي چي ابن صياد د حره په پېښه کي غائب سو ، او داسي غائب سو چي بيا هيڅ ته څرگند نه سو چي هغه چيري ولاړی. او د هغه څه پای سو ، په دغه صورت کي به دغه روايت د هغه خلاف وي چي په هغه کي

دا بیان سوي دي چي په مدینه کي هغه مړ سو او د هغه د جنازې لمونځ وکړل سو او که په دغه حدیث کي د غائب شخه مراد د هغه عام مفهوم وي چي په هغه کي مرګ هم شامل دی نو بیا د دواړو روایتو په منځ کي تضاد نه پاته کیږي په دغه صورت کي به مقصد دا وي چي دغائب کېدو شخه مراد د هغه مړ کېدل دي یعني هغه د حره په پېښه کي مړ سوی دی.

د حره د ورځي شخه مراد هغه ورځ ده چي کله د ابن معاویه لښکر پر مدینې حمله وکړه او ډېري وینې یې توی کړلې او د ځانو او مالو سخت تاوان یې ورسوی.

## ابن صیاد او دجال

﴿۵۲۶۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْكُثُ أَبُوي

د حضرت ابوبکره رضی الله عنه شخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمایل: د دجال مور او پلار به تر

الدَّجَّالِ ثَلَاثِينَ عَامًا لَا يُولَدُ لَهُمَا وَلَدٌ ثُمَّ يُولَدُ لَهُمَا غُلَامٌ أَعْوَرُ أَضَرُّ وَأَقَلُّهُ

دیرش کاله پوري بې اولاده وي، بیا به د هغوئ یو سترګی زوی پیدا سي چي د هغه غاښونه به لوی لوی وي او د هغه شخه به ډیره کمه

مَنْفَعَةً تَنَامُ عَيْنَاهُ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهُ ثُمَّ نَعَتَ لَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ګټه وي، د هغه سترګي به بیدې وي مګر زړه به یې بیده نه وي، ددې شخه وروسته رسول الله ﷺ د هغه د مور او پلار حال بیانولو کي و فرمایل:

أَبَوَيْهِ فَقَالَ أَبُوهُ طِوَالٌ ضَرْبُ اللَّحْمِ كَأَنَّ أَنْفَهُ مِنْقَارٌ وَأُمُّهُ امراة فِرْضَاخِيَّةٌ

د هغه پلار به اوږد او نری وي د هغه پزه به داسي وي ګویا چي یوه مشوکه د مرغۍ ده او د هغه مور به غټه تازه

طَوِيلَةُ الْيَدَيْنِ فَقَالَ أَبُو بَكْرَةَ فَسَمِعْنَا بِمَوْلُودٍ فِي الْيَهُودِ بِالْمَدِينَةِ فَذَهَبْتُ

او اوږدو لاسونو والا وي، ابوبکره رضی الله عنه وایي موږ د مدینې په یهودو کي د یو داسي ماشوم د پیدا کیدو خبر واوریدی،

أَنَا وَالزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ حَتَّى دَخَلْنَا عَلَى أَبَوَيْهِ فَإِذَا نَعْتُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

او زه او زبير بن عوام د هغه مور او پلار ته ورغلو نو موږ وليدل چي هغوئ دواړه داسي وه لكه څرنګه چي رسول الله ﷺ د هغوئ په اړه فرمايلي وه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهِمَا فَقُلْنَا هَلْ لَكُمَا وَلَدٌ فَقَالَا مَكَثْنَا ثَلَاثِينَ عَامًا لَا يُولَدُ لَنَا

موږ د هغوئ څخه وپوښتل ايا ستاسو زوی سته ، هغوئ وويل ديرش كاله پوري موږ بې اولاده وو

وَلَدٌ ثُمَّ وُلِدَ لَنَا غُلَامٌ أَعْوَرُ أَضْرَس وَأَقَلُّهُ مَنْفَعَةً تَنَامُ عَيْنَاهُ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهُ

بيا مو يو ستركي زوی پيدا سو چي د هغه څخه موږ ته هيڅ ګټه نه رسيږي د هغه ستركي بيدې دي او زړه يې بيده نه دی ،

قَالَ فَخَرَجْنَا مِنْ عِنْدِهِمَا فَإِذَا هُوَ مُنْجَدِلٌ فِي الشَّمْسِ فِي قَطِيفَةٍ لَهُ وَلَهُ

ابوبكره ﷺ وايي موږ د هغوئ څخه را روان سوو چي ناڅاپه موږ هغه هلك وليدی چي په لمر كي څادر اغوستی پروت وو او د ځان سره ګډ وو

هَمْهَمَةٌ فَتَكَشَّفَ عَنْ رَأْسِهِ فَقَالَ مَا قُلْتُمَا قُلْنَا وَهَلْ سَمِعْتَ مَا قُلْنَا قَالَ

نَعَمْ تَنَامُ عَيْنَايَ وَلَا يَنَامُ قَلْبِي. رواه الترمذي.

چي په پوهه كي نه راتلل ، هغه (يعني ابن صياد) د سر څخه څادر ليري كړ او موږ ته يې وويل تاسو څه وويل ؟ موږ ورته وويل څه چي موږ وويل هغه تا واوريدل ؟ هغه وويل : هو ، زما ستركي بيدې دي او زړه مي بيده نه وي، ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۴۹، رقم: ۲۲۴۸.

**د لغاتو حل**: اضرس: ای عظيم الضرس وهو السن والمراد به الناب. طوال: مبالغة طويل. فرضاخية: ای ضخمة عظيمة، منجدل: ای ملقی علی وجه الارض.

**تشريح**: مګر د هغه زړه نه بيديږي، مطلب دادی چي د وسوسو د زياتوب او د فاسده فكرونو د راتلو په وجه د ښده كېدو په وخت كي هم د هغه څخه فاسد فكرونه نه بېليږي، په دې توګه چي شيطان هغه ته القاء كوي لكه چي د افكار صالحه زياتوب او وحي راتلو په وجه د رسول الله ﷺ زړه مبارک به د خوب په حالت كي هم نه ښده كيدی .

## ايا رسول الله ﷺ هم ابن صياد دجال گنهی

﴿۵۲۷۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أن امرأة من اليهود بالمدينة ولدت غلاما ممسوحة

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دی چي د مدينې د يوې يهودی ښځي يو ماشوم پيدا سو چي د هغه يوه سترګه پټه وه (يعني نه ننوتلې وه او نه وتلې وه)

عينه طالعة نابه فأشفق رسول الله ﷺ أن يكون الدجال فوجده تحت

او غاښونه يې دباندي راوتلې وه ، د رسول الله ﷺ سره بيره پيدا سوه چي دا دجال نه وي (يوه ورځ رسول الله ﷺ د هغه د ليدو لپاره تشريف يوړ)

قطيفة يهمهم . فآذنته أمه فقالت : يا عبد الله هذا أبو القاسم فخرج

هغه (ابن صياد) يو څادر اغوستی وو او كرار كرار يې يو څه ويل چي په پوهه كي نه راتلل (يعني مورږ نه پوهيدو چي هغه څه وايي) د هغه مور هغه ته وويل اې عبدالله ! دا ابو القاسم ﷺ

من القطيفة فقال رسول الله ﷺ: ما لها قاتلها الله ؟ لو تركته لبين " فذكر

ولاړ دی نو هغه سر د څادر څخه را وايستی ، رسول الله ﷺ وفرمايل : دغه ښځي ته څه سوي دي الله تعالی دي دا هلاكه كړي (چي هغې ابن صياد خبر كړ) كه هغه يې پر خپل حال پرې ايښی

مثل معنى حديث ابن عمر فقال عمر بن الخطاب ائذن لي يا رسول الله

وای نو هغه به خپل حال ظاهر كړی وای ، ددې څخه وروسته جابر رضی الله عنه د حضرت عمر رضی الله عنه د حديث په ډول حديث بيان كړ يعني حضرت عمر رضی الله عنه عرض وكړ اې دالله رسوله ! كه تاسو اجازه

فأقتله فقال رسول الله ﷺ: " إن يكن هو فليست صاحبه إنما صاحبه

راكړئ نو زه يې قتلوم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل كه دا هغه دجال وي نو ته دده قاتل نه يې

عيسى بن مريم وإلا يكن هو فليس لك أتقتل رجلا من أهل العهد " .

فلم يزل رسول الله ﷺ مشفقا أنه هو الدجال . رواه في شرح السنة

بلكه دده قاتل به عيسى بن مريم عليه السلام وي او كه دی هغه دجال نه وي نو تا ته دداسي

سړي وژل روا نه دي کوم چي زموږ په ذمه کي دی ، رسول الله ﷺ به همېشه په دغه بیره کي وو چي دا ابن صیاد خو به دجال نه وي . شرح السنه

**تخریج** البغوي في شرح السنة ۱۵\۷۸، رقم: ۴۲۷۴.

**تشریح** په حدیث کي د ابن صیاد په اړه چي د کومي پېښي ذکر سوی دی دا د هغه وخت ده کله چي هغه مسلمان سوی نه وو او په عامه توګه خلکو د هغه په اړه ډول ډول بیري درلودلې ځکه حضرت عمر رضی الله عنه د هغه د وژني اجازه غوښتې وه ، که څه هم هغه وروسته مسلمان سوی دی مګر د اسلام راوړلو څخه وروسته هغه د خپل فاسدو خیالاتو څخه ګرځېدلی نه وو لکه چي د ابو سعید خدري رضی الله عنه په روایت کي تېر سول چي هغه د مکې د سفر په دوران کي دا اقرار کړی وو که چیري زه دجال سم نو زه به خوشحاله سم او ثرګنده ده چي دا کفر دی او د هغه ددغه خبري څخه دا اندازه لګول کیږي چي هغه به د کومي درجې مسلمان وي .

ځینو محققینو ویلي دي چي د ابن صیاد په اړه چي حدیثونه او روایتونه منقول دي که څه هم د هغو په منځ کي اختلافات دي او د هغو په اړه د علماوو متفقه فیصله نسته مګر په دغه حدیث کي د رسول الله ﷺ د تعلق سره چي دا بیان سوي دي چي رسول الله ﷺ د ابن صیاد ددجال کېدو په بېره کي وو ، ددې دا توجیه او تاویل ضروري دی چي تر څو پوري رسول الله ﷺ ابن صیاد دجال ګڼی مګر کله چي د تمیم داري رضی الله عنه د پېښي څخه او د وحي په ذریعه هم رسول الله ﷺ ته دا یقین تر لاسه سو چي دجال به څوک وي او رسول الله ﷺ ته دا خبره ثرګنده سوه چي ابن صیاد هغه ذات یعني دجال نه دی کوم چي ګڼل کیږي ، ددې تائید د حضرت ابو سعید خدري رضی الله عنه ددغه حدیث څخه هم کیږي چي په هغه کي د مکې د سفر په دوران کي د ابن صیاد د هغه د لیدني او خبرو ذکر دی ، پاته سوه دا خبره چي رسول الله ﷺ د دجال د مور او پلار په اړه څه ښوولي وه . هغه د ابن صیاد پر مور او پلار صادق راغلل نو له دې څخه دا نه ثابتیږي چي ابن صیاد دجال وو ځکه چي په دوو بېلو کسانو کي تر لاسه کېدونکي اوصاف او خاصیتونه په خپلو کي یو ډول کېدل د هغه دواړو سره یو کېدل نه لازموي ، همدارنګه د حضرت عمر رضی الله عنه او نورو قسم کول چي ابن صیاد دجال دی او د رسول الله ﷺ منع نه کول د هغه وخت خبره ده کله چي ددجال حالات په تفصیل سره معلوم نه وه او په دجال کي ځیني خبري داسي وې چي د بیري سبب ګرځېدای سوې ځکه رسول الله ﷺ هغه وخت د خپل امت په اړه د احتیاط له موخي وهم کوی چي ابن صیاد خو به دجال نه وي او زما د امت خلک په فتنه او فساد کي اخته نه کړي .

وهذا الباب خال عن الفصل الثالث. (په دغه باب کي دریم فصل نه سته)

# بَابُ نُزُوْلِ عِيْسٰى عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ

## (د حضرت عيسى علیہ السلام د راكښته كېدو بيان)

د حضرت عيسى علیہ السلام د راكښته كېدو څخه مراد د هغه د آسمان څخه مځكي ته راكښته كېدل دي، دا خبره د صحيح حديثونو په ذريعه په تحقيق سره ثابته ده چي قيامت ته نژدې به حضرت عيسى علیہ السلام د آسمان څخه مځكي ته په راكښته كېدو سره دنيا ته راسي او د حضرت محمد ﷺ د دين پيروي به كوي او خپل ټول احكام به د شريعت محمدي مطابق عملي كوي ، او كوم چي ددې خبري تعلق دى چي حضرت عيسى علیہ السلام به ځيني داسي احكام هم جاري كوي چي په شريعت محمدي كي به نه وي لكه محصول پورته كول او داسي نور، نو هغه بيان د وخت د قبيل څخه دى لكه چي د نسخ مسئله ده او په دې اعتبار سره به په هغه زمانه كي دغه احكام د شريعت محمدي يوه برخه وي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د عيسى علیہ السلام د نازلېدو ذكر

﴿۵۲۷۱﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي

د حضرت ابو هريره رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قسم په هغه ذات چي د

نَفْسِي بِيَدِهِ لَيُوشِكَنَّ أَنْ يَنْزِلَ فِيكُمُ ابْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا عَدْلًا فَيَكْسِرَ

هغه په واك كي زما روح ده ډير ژر په تاسو كي به ابن مريم نازل سي چي يو عادل حاكم به وي ،

الصَّلِيبَ وَيَقْتُلَ الْخِنْزِيرَ وَيَضَعَ الْجِزْيَةَ وَيَفِيضَ الْمَالُ حَتّٰى لَا يَقْبَلَهُ أَحَدٌ

صليب به مات كړي خنزير به قتل كړي ، جزيه به پورته كړي مال به زيات كړي تر دې چي هيڅوك به يې خواهشمند پاته نه سي

حَتّٰى تَكُونَ السَّجْدَةُ الْوَاحِدَةُ خَيْرًا مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا ثُمَّ يَقُولُ أَبُو هُرَيْرَةَ

او يوه سجده كول به هغه وخت د دنيا او د د هغه د ټولو شيانو څخه غوره وي ، ددې څخه وروسته ابو هريره رضی اللہ عنہ وويل (كه تاسو ته په دې كي څه شك وي)

فَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ وَإِنْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ الاية .

متفق عليه.

نو دا آيت ووایاست (وان من ا هل الكتاب الا ليؤمنن به قبل موته ...الخ) ، (هيڅ) اهل کتاب به داسي پاته نه سي چي د حضرت عيسى عليه السلام د وفات څخه مخکي ايمان را نه وړي.
بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\ ۴۱۴، رقم: ۲۲۲۲، ومسلم ۱\ ۱۳۵، رقم: ۲۴۲- ۱۵۵.

**تشريح**: صليب په اصل کي د دوو مثلث لرګيو نوم دى چي د جمع په شکل کي وي او دا شکل ښکاروي چي يو سړى چي په دار زړول سوى وي ، دعيسايانو عقيده ده چي حضرت عيسى عليه السلام په دار سوى دى او بيا الله جل جلاله په ژوندي كولو سره آسمان ته وغوښتى ځکه هغوئ د دار دغه شکل خپل مذهبي نښه ګرځولې ده او دغه مذهبي نښه د هغوئ په هر شي کي څرګنده وي ، څرنګه چي اهل هنود په خپلو غاړو کي زنار اچوي همدارنګه عيسايان هم د دار دغه نښه په خپلو غاړو کي اچوي ، ځينو کسانو پر دغه نښه د حضرت عيسى عليه السلام عکس جوړ کړى وي چي دهغوئ د عقيدې سره سم د حضرت عيسى عليه السلام د دار ځړولو يادونه په بشپړ صورت کي پاته سي نو هغوئ به صليب مات کړي، ددې څخه مراد دادى چي حضرت عيسى عليه السلام به نصرانيت (يعني عيسايي مذهب) باطل او كالعدم وګرځوي او شريعت محمدي به جاري او نافذ دين وګرځوي چي د هغوئ هر حکم او فيصله به د ملت حنيفه مطابق وي .

محصول به پورته کړي، مطلب دا چي د اسلامي حکومت او شرعي رواج يو اصل دادى چي د هغه په حدودو کي که يو کافر اوسېدل غواړي نو هغه به يو خاص محصول چي هغه ته جزيه وايي ادا کوي او هغه ته ذمي ويل کيږي، نو عيسى عليه السلام به د محصول دغه اصل ختم کړي او دا قانون به نافذ کړي چي د اسلامي هيوادو اوسېدونکي يوازي مسلمان کېداى سي نو هغه به حکم وکړي چي څومره ذميان وي هغوئ دي ټول مسلمانان سي ، د هغه حکومت به د هيچا څخه هم د حق دين پرته بل څه قبول نه کړي او هغه وخت به د حضرت عيسى عليه السلام د برکته د هر سړي ذهن او فکر خير ته مائل وي ځکه چي ټول کافران به ايمان راوړي نو ددغه جملې اصلي مطلب دادى چي هغه به عيسائيت او د هغه ټول احکام او آثار بالکل ختم کړي او يوازي اسلامي شريعت به جاري او نافذ وګرځوي ، ځينو حضراتو ويلي دي چي حضرت عيسى عليه السلام به

د ذميانو څخه محصول ددې لپاره پورته کړي چي په هغه زمانه کي به مال او دولت دومره پراخ وي چي د هغه څخه د محصول اخيستونکی به څوک نه وي ، ددغه مطلب تائيد د مخکني عبارت څخه هم کيږي .

حتی لايقبله احد حتی تکون السجدة ...الخ: په دغه جمله کي لومړنی حتی د يفيض المال سره متعلق دی او دوهم حتی د هغه ټولو مضامينو سره متعلق دی کوم چي مخکي ذکر سوي دي ، يعني دصليب ماتول او داسي نور ، مطلب دا چي اسلام به داسي خپور سي او د اطاعت او عبادت په ذريعه به په خپلو کي داسي محبت پيدا سي چي يوه سجده به د دنيا تر ټول مال او سامان غوره او قيمتي ګڼل کيږي ، هسي په هره زمانه کي او هر وخت کي يوه سجده د دنيا او د دنيا د ټولو شيانو څخه غوره ده او دا يوازي د حضرت عيسی عليه السلام د زمانې ځانګړتيا نه ده، مګر دا خبره په ځانګړې توګه ځکه سوې ده چي په هغه زمانه کي به عبادت او طاعت د انسان د طبيعت جز او د نفس تقاضا وګرځي او خلک به په طبعي توګه سره يوه سجده د دنيا تر ټول مال او سامان خوښوي مګر دا هم کېدای سي چي دوهم حتی هم د يفيض سره متعلق وي ، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي هغه وخت به د مال او دولت دومره پراخي وي او هر سړی به دومره مستغني او بې نيازه سي چي د هيچا به مال او دولت ته خواهش نه وي او کله چي دا صورت حال وي نو دمال مصرف کولو فضيلت او غوره والی به هم ولاړ سي او اصل ذوق او شوق به د لمانځه سره پاته سي چي خلک به په يوه سجده کي کوم کيف او خير محسوسوي هغه به ددنيا په هيڅ شي کي نه تر لاسه کوي .

حضرت ابو هريره رضي الله عنه چي د کوم آيت يادونه وکړه د هغه مطلب دا دی چي په آخره زمانه کي به د حضرت عيسی عليه السلام د نازلېدو وروسته کله چي د يو ملت او يو دين دور سي او د ټولو خلکو په منځ کي به ديني او مذهبي اختلاف او منافات ختم سي نو د يهودو او نصارا هغه اختلاف او نفرت به هم ختم سي کوم چي هغوئ د حضرت عيسی عليه السلام په اړه لري او يهود او نصارا به هم دا ايمان او عقيده ولري کوم چي د مسلمانانو ده چي حضرت عيسی عليه السلام د الله جل جلاله بنده او د هغه رسول دی او د هغه د يوې مينځي زوی دی، څرګنده دې وي چي اهل کتاب يعني يهود او نصارا څخه مراد هغه يهود او نصارا دي چي د هغه زمانې به وي ، ددغه آيت يو تفسير دا هم دی چي بيان کړل سو او حضرت ابو هريره رضي الله عنه په دې اعتبار دغه آيت د حديث د مضمون دليل ګرځولی دی ، دوهم تفسير دا بيانيږي چي په اهل کتابو کي هيڅوک داسي نسته چي د خپل مرګ څخه مخکي ايمان نه راوړي مګر هغه وخت د هغه ايمان راوړل اعتبار نه لري ، ددغه تفسير په رڼا

کي یو احتمال دا هم کېدای سي چي په (الا لیؤمنن به) کي د به ضمیر رسول الله ﷺ یا الله جل جلاله ته راجع دی که د آیت د تفسیر دغه مراد واخیستل سي نو بیا مطلب دا کیږي چي هر کافر به د مړ کېدو څخه مخکي د زکندن په حالت کي په اضطراري توګه ایمان راوړي مګر دهغه وخت ایمان به هیڅ ګټه نه ورسوي ځکه نو پکار ده چي هغه کافر د وخت څخه مخکي په قصد او اختیار سره د ایمان په قبلولو اماده سي.

## د حضرت عیسی علیه السلام د زماني برکتونه

﴿۵۲۷۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ لَيَنْزِلَنَّ ابْنُ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په الله تعالی دي مي قسم

مَرْيَمَ حَكَمًا عَادِلًا فَلَيَكْسِرَنَّ الصَّلِيبَ وَلَيَقْتُلَنَّ الْخِنْزِيرَ وَلَيَضَعَنَّ الْجِزْيَةَ

وي یقینا ابن مریم به نازلیږي هغه به یو عادل حاکم وي هغه به صلیب مات کړي، خنزیر به قتل کړي جزیه به پورته کړي

وَلَتُتْرَكَنَّ الْقِلَاصُ فَلَا يُسْعَى عَلَيْهَا وَلَتَذْهَبَنَّ الشَّحْنَاءُ وَالتَّبَاغُضُ وَالتَّحَاسُدُ

ځواني اوښي به پرېښودل سي یعني د هغو څخه د سپرلۍ او بار وړلو کار به نه اخیستل کیږي د خلکو د زړونو څخه به کینه، بغض او حسد ولاړ سي

وَلَيَدْعُوَنَّ إِلَى الْمَالِ فَلَا يَقْبَلُهُ أَحَدٌ. رواه مسلم و في رواية لهما قال كيف انتم اذا انزل ابن مريم فيكم وامامكم منكم.

او حضرت عیسی علیه السلام به خلک د مال او دولت اخستلو ته را بولي مګر د مال او دولت د کثرت په سبب به یې هیڅوک نه قبلوي. مسلم.

**تخریج** صحیح مسلم: ۱۳۶/۱، رقم: ۲۴۳، - ۱۵۵.

**تشریح** ځواني اوښي به پرېښودل سي: مطلب دا چي هغه وخت به د سپرلۍ او بار وړلو لپاره داسي تېز او پر مختللي شیان پیدا سي او هغه به دومره زیات وي چي د نقل او حمل د مقاصدو لپاره به چا ته د اوښانو اړتیا نه وي، ددغه جملې دا معنی ده چي حضرت عیسی علیه السلام به چا ته دا حکم نه ورکوي چي هغه په زکوة کي د ورکولو لپاره خپلي اوښي هغه ته د راوستلو تکلیف

وکړي ځکه چي په هغه زمانه کي به زکوة اخستونکی نه وي او دا هم ویل کیږي چي دغه جمله په اصل کي ددې خبري کنایه ده چي په هغه زمانه کي به خلک د خپل معاشي اړتیاوو څخه دومره بې پروا وي چي د ضروري شیانو او مال تر لاسه کولو لپاره به په مځکه کي سفر کول او داسي نور تکلیفونه ګالل موقوف سي.

هغه وخت به ستاسو څه حال وي...الخ: ددغه جملې مطلب علماوو په دوو صورتو کي بیان کړی دی، یو خو دا چي د عیسی علیه السلام د نازلېدو څخه وروسته به هم ستاسو د لمونځو امام ستاسو څخه یو کس وي او هغه امام مهدي علیه السلام دی او خپله حضرت عیسی علیه السلام به هم د هغه اقتداء کوي، دغه خبره به ددغه امت محمدي د تعظیم او تکریم له کبله وي لکه چي په مخکني حدیث کي وضاحت سوی دی، نو په هغه زمانه کي به حاکم او خلیفه او دخیر د تعلیم او تقلین کولو ذمه دار حضرت عیسی علیه السلام وي مګر د لمانځه د امامت شرف به حضرت امام مهدي علیه السلام ته تر لاسه وي، مګر په ځینو روایتو کي دا منقول دي چي کله حضرت عیسی علیه السلام د آسمان څخه راکښته سي نو حضرت امام مهدي علیه السلام به د مسلمانانو سره د لمانځه په حالت کي وي او غواړي به چي د امامت د مصلی څخه تر شا سي چي حضرت عیسی علیه السلام امامت وکړي، مګر حضرت عیسی علیه السلام به د هغه وخت د امامت لمونځ نه ورکوي بلکه خپله به په حضرت امام مهدي علیه السلام پسي لمونځ کوي مګر دهغه وخت د لمانځه څخه وروسته به حضرت عیسی علیه السلام امامت کوي ځکه چي هغه به په هر حال د حضرت امام مهدي علیه السلام څخه افضل وي.

په دوهم صورت کي ددغه جملې مطلب دادی چي (او ستاسو امام به ستاسو څخه وي) دلته د امام څخه مراد خپله حضرت عیسی علیه السلام دی یعني حضرت عیسی علیه السلام به د مسلمانانو د شریعت مطابق حکم جاري کوي نه دا چي د انجیل د تعلیماتو مطابق، بلکه د هغه ټول نظام به د قرآن کریم او احادیث نبوي پر طریقه وي او د هغه ټول معاملات به د مسلمانانو د دین او ملت مطابق وي لکه چي په روایت کي منقول دي چي حضرت عیسی علیه السلام به ستاسو د پروردګار د کتاب (قرآن کریم) او ستاسو د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د سنت مطابق ستاسو امامت کوي، په دې اعتبار به هغه د مسلمانانو د ملت یو فرد وي او هغه چي مسلمانانو ته لمونځ ورکوي نو ددې دا مطلب دی چي د هغوئ څخه یو کس د هغوئ امام دی.

## د حضرت عیسی علیه السلام د امامت څخه انکار

﴿۵۲۷۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زما په امت کي به یو ډله تل

مِنْ أُمَّتِي يُقَاتِلُونَ عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ قَالَ فَيَنْزِلُ عِيسَى

د حق لپاره جنګ کوي او تر قیامته پوري به دد ښمنانو پر ملک غلبه تر لاسه کوي ، بیا به

ابْنُ مَرْيَمَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُولُ أَمِيرُهُمْ تَعَالَ صَلِّ لَنَا فَيَقُولُ لَا إِنَّ

بَعْضَكُمْ عَلَى بَعْضٍ أُمَرَاءُ تَكْرِمَةَ اللهِ هَذِهِ الْأُمَّةَ. رواه مسلم.

عیسی ﷵ نازل سي او زما د امت امیر به هغه ته وایي راځئ موږ ته لمونځ راکړئ حضرت عیسی ﷵ به ورته وایي زه امامت نه کوم ځکه چي په تاسو کي ځیني خلک به پر ځینو امام او امیر وي او الله تعالی دا امت بزرګ او غوره ګڼي . مسلم.

**تخریج** : صحیح مسلم: ۱\۱۳۷، رقم: ۲۴۷-۱۵۶.

وهذا الباب خال عن الفصل الثاني. په دې باب کي دویم فصل نسته

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### حضرت عیسی ﷵ به د رسول الله ﷺ په روضې مبارکي کي دفن کړل سي

﴿۵۲۷۴﴾: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمر ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

يَنْزِلُ عِيسَى بْنُ مَرْيَمَ إِلَى الْأَرْضِ فَيَتَزَوَّجُ وَيُولَدُ لَهُ وَيَمْكُثُ خَمْسًا وَّأَرْبَعِينَ

عیسی بن مریم علیهما السلام به پر مځکه نازل سي نکاح به وکړي اولاد به یې پیدا سي هغه به (۴۵) کاله په دنیا کي وي

سَنَةً ثُمَّ يَمُوتُ فَيُدْفَنُ مَعِيَ فِي قَبْرِي فَأَقُومُ أَنَا وَعِيسَى بْنُ مَرْيَمَ فِي قَبْرٍ

وَّاحِدٍ بَيْنَ أَبِي بَكْرٍ وَّعُمَرُ . رواه ابن الجوزي في كتاب الوفاء.

بیا به وفات سي او زما په مقبره کي به دفن کړل سي د قیامت په ورځ به زه او عیسی ﷵ د یوې

مقبرې ځخه د ابوبکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه په مینځ کي ولاړ (راپورته) سو ، ابن جوزي.

**تشريح**: د هغه د اوسېدني وخت به پنځه ځلوېښت کاله وي، دا خبره په څرګنده د هغه قول خلاف ده چي د هغه ځخه دا څرګندیږي چي کله حضرت عیسی علیه السلام آسمان ته پورته کړل سو نو د هغه عمر درو دیرش (۳۳) کاله وو او بیا د آسمان ځخه مځکي ته د راکښته کېدو وروسته به هغه اووه کاله په دنیا کي وي، همدارنګه په دنیا کي د هغه ټول وخت به ځلوېښت کاله کیږي، څرګنده دي وي چي د آسمان ځخه د راکښته کېدو وروسته په دنیا کي د حضرت عیسی علیه السلام د اوسېدو وخت اووه کاله مسلم نقل کړی دی نو دا یوه خبره خو فیصله ده چي په ذکر سوي حدیث کي د پنځه ځلوېښت کالو وخت نقل سوی دی نو هغه په دنیا کي د هغه مجموعي وخت دی چي په دغه وخت کي د هغه آسمان ته د ختلو ځخه مخکي د قیام وخت هم شامل دی او د آسمان ځخه د راکښته کېدو وروسته هم ، د ځلوېښت یا پنځه ځلوېښتو کالو د فرق په اړه یا خو دا ویل کیږي چي د ځلوېښت کالو والا قول کي کسور یعني د پنځه په حذف کولو سره وخت مراد اخیستل سوی دی یا دا چي هغه روایت راجح وګرځول سي کوم چي په صحیح مسلم کي منقول دی.

د ابوبکر او عمر رضي الله عنهما په منځ کي به پاځو ، له دې ځخه دا خبره ثابتیږي چي په حدیث کي د قبر ځخه مراد مقبره یعني روضه مطهره ده ، د روایاتو ځخه معلومیږي چي د رسول الله ﷺ په روضه اقدس کي د یو قبر ځای خالي دی او هغه ځای هیڅا ته هم تر لاسه نه سو ، امام حسن رضی الله عنه وفات سو نو خلکو وغوښتل چي د هغه قبر په هغه خالي ځای کي جوړ کړل سي او بي بي عائشه رضی الله عنها چي د هغې سرای وو د هغه لپاره راضي سوې هم وه مګر د بنو امیه د سخت مخالفت په وجه حضرت حسن رضی الله عنه په روضه اقدس کي ښخ نه کړل سو ، بیا په هغه ځای کي د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه د دفن کولو لپاره هم بي بي عائشه رضی الله عنها راضي سوې وه خو د هغه قبر هم هلته جوړ نه کړل سو تر دې چي خپله بي بي عائشې رضی الله عنها ته هم خلکو وویل چي دا ستا کور دی مورې به تا دلته دفن کړو ، مګر هغې وویل: زما خوښه دا نه ده ، تاسو ما خپلو بنو ته نژدې په جنت البقیع کي دفن کړئ، له دې ځخه څرګنده سوه چي هغه خالي ځای د هیڅا په برخه نه سو ددې لپاره چي د قدرت دا حکمت وو چي هلته به د حضرت عیسی علیه السلام قبر جوړیږي.

==========

# بَابُ قُرْبِ السَّاعَةِ وَإِنَّ مَنْ مَاتَ فَقَدْ قَامَتْ قِيَامَتُهُ

## (د قيامت نژدې کېدل او ددې خبرې بيان چې څوک مړ سي نو پر هغه قيامت قائم سو)

زياته صحيح خبره داده چې د قيامت نژدې کېدل په دې معنی دي چې الله ﷻ د دغه کائناتو د بقاء او وجود چې کوم وخت ټاکلی دی د هغه زياته برخه تېره سوې ده او اوس چې کومه برخه پاته سوې ده هغه ډېره کمه ده.

دغه جمله (وان من مات فقد قامت قيامته)، څوک چې مړ سي نو پر هغه قيامت قائم سو، دغه جمله په اصل کي د يو حديث الفاظ دي چې د کتاب مؤلف د باب عنوان ګرځولي دي.

د دغه عبارت مطلب دادی چې کوم څوک مړ سي نو پر هغه باندي د هغه حالاتو او پړاوو څيني برخي تېري سي کوم چې د قيامت په ورځ پېښېدونکي دي.

## د قيامت ډولونه

توريشتي رحمة الله عليه ويلي دي: قيامت پر درې ډوله دی يو قيامت کبری، کله چې ټول کائنات ختم کړل سي او بيا ټول خلک د جزا او سزا لپاره دوهم ځل راژوندي کړل سي، دوهم قيامت وسطی، يعني د يو نسل پاڅېدل او د هغه پر ځای د بل نسل راتلل چې قران ورته وايي، يعني د عهد داسي بدلېدل چې د يو نسل ټول هم عمره خلک وفات سي، دريم قيامت صغری، چې د يوه سړي مړ کېدل دي او دلته (وان من مات فقد قامت قيامته) کي دغه آخري ډول قيامت مراد دی، مګر د ساعة په اړه څرګنده خبره داده چې ددې څخه مراد قيامت کبری دی که د هغه تعلق د لومړني قيامت (يعني لومړنۍ شپيلۍ پوه کولو سره او ددغه کائناتو د ختمېدو) سره وي لکه چې د دغه ارشاد (لا تقوم الساعة الا علی اشرار الناس) څخه ثابته ده، او که د هغه تعلق د دوهم قيامت (يعني په دوهم وار شپيلۍ وهلو سره او د ټولو خلکو په دوهم ځل را ژوندي کولو سره د حشر په ميدان کي جمع کېدل او داسي نورو) سره وي چې هغه په طامة کبری سره هم تعبير کيږي، د ذکر سوي باب د لومړني حديث په الفاظو (بعثت انا والساعة کهاتين) کي د ساعة لفظ د قيامت ددغه دواړو معناوو احتمال لري مګر وروسته چې د بي بي عائشې ﷺ کوم روايت راځي په هغه کي د ساعة څخه مراد قيامت وسطی دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د قيامت د قرب ذکر

﴿۵۲۷۵﴾: وَعَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

شعبه رضي الله عنه د حضرت قتاده او انس (رضي الله عنهما) څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ بعثت انا والساعة كهاتين قال شعبة وَسَمِعْتُ قَتَادَةَ يَقُولُ فِي

وفرمايل: زه او قيامت دداسي دوو ګوتو په ډول (يوځای) رالیږل سوی يو، شعبه رضي الله عنه بيان وکړ
چي ما د قتاده رضي الله عنه څخه د حديث شرح کولو سره دا واوريدل

قَصَصِهِ كَفَضْلِ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى فَلَا أَدْرِي أَذْكَرَهُ عَنْ أَنَسٍ أَوْ قَالَهُ
قَتَادَةُ. متفق عليه.

لکه څرنګه چي د منځ ګوته د شهادت د ګوتي څخه لږ لويه ده داسي قيامت به زما څخه وروسته
ددې مناسب سره راځي زه دا نه سم ويلای چي دا شرح د قتاده ده يا دانس څخه هغه اوريدلې ده.
بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۴۷، رقم: ۶۵۰۴، ومسلم ۴\۲۲۶۸ - ۲۲۶۹.

### د قيامت وخت هيچا ته معلوم نه دی

﴿۵۲۷۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ قَبْلَ ان

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه د هغه د وفات څخه يوه مياشت

يموت بِشَهْرٍ تسئلوني عن الساعة وانما علمها عند الله واقسم بالله ما على

مخکي اوريدلي دي چي فرمايل يې: تاسو زما څخه د قيامت د قائميدو د وخت پوښتني کولې
نو ددې علم خو يوازي الله تعالى ته دی مګر زه په الله تعالى قسم خورم چي

الارض مِنْ نَفْسٍ مَنْفُوسَةٍ يَأْتِي عَلَيْهَا مِائَةُ سَنَةٍ وَهِيَ حَيَّةٌ يَوْمَئِذٍ. رواه مسلم

پر مځکه دا وخت کوم نفس موجود دی یا کوم چې پیدا کړل سوی دی داسې نه دی چې پر هغه سل کاله تیر سي او هغه دې موجود وي (یعني په دنیا کې دا وخت چې کوم خلک موجود دې یا کوم چې نن سبا پیدا سوي دي پر دوئ به سل کاله نه وي تیر سوي بلکه په سل کاله کې دننه به مړ سي) . مسلم.

**تخریج** : صحیح مسلم ۴\۱۹۶۶، رقم: ۲۱۸- ۲۵۳۸.

**د لغاتو حل** : منفوسة: صفة نفس، والمعنى ما من نفس مولودة اليوم.

**تشریح** : د هغه ټاکلی وخت د الله ﷻ په علم کې دی، ددغه جملې په ذریعه رسول الله ﷺ څرګنده کړل چې تاسو خلک د قیامت کبری د راتلو د وخت پوښتنه مه کوئ ، ما ته خپله د هغه ټاکل سوی وخت معلوم نه دی او هیڅوک یې په دې اړه خبر کړی نه دی یوازې هغه پوهیږي چې قیامت به کله راځي ، مګر د قیامت صغری او وسطی په اړه څه چې ما ته معلوم دي هغه تاسو ته بنیم ، له دې وروسته رسول الله ﷺ په دې اړه خبرداری ورفرمایه.

دا وخت د مځکې پر مخ باندې داسې هیڅوک موجود نه دی ...الخ: ددغه جملې په ذریعه رسول الله ﷺ قیامت وسطی ته اشاره وفرمایل چې دغه وخت زما په زمانه کې چې کوم خلک موجود دي او کوم نسل زموږ په وړاندې دی ددې خاتمه به د سلو کالو په وخت کې وسي له دې وروسته به په هغوئ کې هیڅوک ژوندی پاته نه سي ددغه نسل په خاتمې سره به یو عهد ختم سي او د یو نوي عهد (قران) پیل به وسي چې راتلونکی عهد (زمانه) به وي نو د پخواني نسل او پخواني عهد خاتمه او د هغه وروسته د نوي عهد او نوي نسل ابتدا قیامت وسطی دی او همدارنګه د هر انسان مرګ د هغه په اعتبار قیامت صغری دی، څرګنده دې وي چې رسول الله ﷺ د خپل عهد د نسل د خاتمې په ذریعه د صحابهٔ کرامو ژوند ته اشاره وفرمایل چې زما صحابه به د سلو کالو په دننه کې وفات سي مګر رسول الله ﷺ دا خبره د اکثر او غالب په اعتبار فرمایلې ده کنه نو ځیني صحابه کرام لکه حضرت انس رضی الله عنه او حضرت سلمان رضی الله عنه او داسې نور تر سلو کالو هم زیات ژوندی وه او که دا وویل سي چې صحیح هم دا وي چې رسول الله ﷺ د کومو سلو کالو د وخت یادونه فرمایلې ده د هغه پیل د رسول الله ﷺ د هغه ارشاد د وخت څخه منل پکار دي لکه څرنګه چې په راتلونکي یو حدیث کې هم دلالت کوي نو په دې اعتبار سره د اکثر و غالب د قید اړتیا نه پاته کیږي نو ځینو حضراتو خپل دا تحقیق بیان کړی دی چې د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په وخت کې څومره ژوندي وه یا په هغه زمانه کې نور اولیاء الله پیدا

سول هغوئ ټول د هغه وخت څخه تر سلو کلو مځکي وفات سوي دي.

## حضرت خضر علیه السلام په دنیا کي ژوندی دی که یا؟

ځینو علماوو د دغه حدیث څخه د حضرت خضر علیه السلام په مرګ استدلال کړی دی، د هغوئ وینا ده چي د دغه ارشاد په وخت کي د مځکي پر مخ باندي کوم خلک چي موجود او ژوندي وه په هغوئ کي حضرت خضر علیه السلام هم وو نو د مخبر صادق ﷺ د دغه ارشاد مطابق دا ضروري ده چي هغه د دوه سوه کاله وروسته په دنیا کي ژوندی نه وو پاته سوی او وفات سوی دی مګر نور علماء د دې جواب ورکوي چي د حضرت خضر علیه السلام پېښه بالکل ځانګړې ده او د هغه ذات د ذکر سوي ارشاد څخه وتلی دی ځکه رسول الله ﷺ خو د خپل امت په اړه دا خبر ورکړی دی چي زما د امت هغه خلک کوم چي دا وخت موجود او ژوندي دي په سلو کالو کي دننه به وفات سي او څرګنده ده چي د حضرت خضر علیه السلام تعلق د دې امت سره نه دی ځکه چي هیڅ نبي د بل نبي د امت څخه نه وي، ځینو حضراتو دا هم ویلي دي چي په دغه ارشاد کي د علی الارض د قید څخه د حضرت خضر او حضرت الیاس علیهما السلام د ذکر سوي مفهوم د دائري څخه وتلي دي ځکه چي دغه دواړه هغه وخت پر مځکه نه وه بلکه پر اوبو باندي وه.

امام بغوي رحمة الله علیه په تفسیر معالم التنزیل کي لیکلي دي چي په انبیاوو کي هم څلور کسان ژوندي دي په هغوئ کي دوه یعني حضرت خضر او حضرت الیاس علیهما السلام د مځکي پر مخ باندي دي او دوه کسان یعني حضرت ادریس او حضرت عیسی علیهما السلام په آسمان کي دي، دا خبره باید په ذهن کي وي چي د مشائخو څخه په تواتر داسي واقعې منقول دي چي د هغه څخه ثابتیږي چي حضرت خضر علیه السلام په دغه دنیا کي ژوندی موجود دی، که څه هم ځینو حضراتو دا تاویل کړی دی چي خضر په اصل کي یو منصب دی چي په هغه په هره زمانه کي څه نا څه فائز کیږي او د هغه په فرائضو کي مخلوق ته ګټه او مرسته رسول شامل دي مګر د اولیاء کاملین منقولات او حالاتو څخه د هغه خضر ژوندي موجود کېدل ثابتیږي کوم چي د بني اسرائیلو څخه یو نبي او د حضرت موسی علیه السلام مصاحب او ملګري وو.

### د رسول الله ﷺ یو پشګوئي

﴿۵۲۷۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَأْتِي مِائَةُ سَنَةٍ وَعَلَى الْأَرْضِ نَفْسٌ مَنْفُوسَةٌ الْيَوْمَ. رواه مسلم.

د حضرت ابو سعيد رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د سل كاله تيريدو څخه مخكي چي كوم خلك دا وخت پر مځكه موجود دي ټول به مړه سي. مسلم

**تخريج** : صحيح مسلم ۴\۱۹۶۷، رقم: ۲۱۹- ۲۵۳۹.

## د قيامت په باره كي يو سوال او د هغه جواب

﴿۵۲۷۸﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رِجَالٌ مِنَ الْأَعْرَابِ يَأْتُونَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دی چي ډير خلك به د نبي كريم ﷺ په خدمت كي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَسْأَلُونَهُ عن السَّاعَةُ فَكَانَ يَنْظُرُ إِلَى أَصْغَرِهِمْ فَيَقُولُ إِنْ يَعِشْ هَذَا لَا يُدْرِكُهُ الْهَرَمُ حَتَّى تَقُومَ عَلَيْكُمْ سَاعَتُكُمْ . متفق عليه.

حاضريدل او د قيامت پوښتنه به يې كول ، رسول الله ﷺ به په هغوئ كي د كم عمر ماشوم ته وكتل او فرمايل به يې كه دا هلك ژوندی پاته سو نو دده د سپين ږيرتوب د وخت راتلو څخه مخكي به پر تاسو ستاسو قيامت (يعني ستاسو مرګ) قائم سي . بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۳۶۱، رقم: ۶۵۱۱، ومسلم ۴\ ۲۲۶۹، رقم: ۱۳۶- ۲۹۵۲.

**تشريح** كه دغه ماشوم ژوندی پاته سو... الخ: مطلب دادی چي د دغه ماشوم د سپين ږيرتوب عمر ته د رسېدو څخه مخكي به تاسو ټول وفات سئ ، همدارنګه رسول الله ﷺ د ذكر سوي وخت څخه وروسته د يو نسل د خاتمې او د يو قران يعني عهد ختمېدو ته اشاره وكړه او دا د يو پوره نسل ختمېدو او د يوې زمانې خپل وخت ته رسېدو سره ختمېدل يو ډول قيامت دی ځكه رسول الله ﷺ دا حقيقت (ساعتكم) يعني ستاسو قيامت سره تعبير كړ ، د دغه حديث په اړه ځرګنده خبره دا معلومېږي چي پوښتنه كونكو د قيامت كبرى په اړه پوښتنه وكړل او د هغوئ دغه سوال داسي وو چي د هغه صحيح جواب وركول ممكن نه وو ځكه رسول الله ﷺ په حكيمانه انداز كي ذكر سوی جواب وركړ .

ساعتكم، يعني ستاسو قيامت، ددې څخه مراد د ځينو حضراتو په نزد قيامت صغرى يعني د پوښتنه كونكو مړ كېدل دي او ځينو شارحينو ددې څخه قيامت وسطى مراد اخيستی دی مطلب يې د هغوئ په ډول د عمر لرونكو ټولو خلكو مړ كېدل دي او دا فيصله ده چي دا خبره داكثر او غالب په اعتبار فرمايل سوې ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د قرب قيامت ذكر

﴿۵۲۷۹﴾: عَنِ الْمُسْتَوْرِ بْنِ شَدَّادٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بُعِثْتُ فِي نَفَسِ السَّاعَةِ فَسَبَقْتُهَا كَمَا سَبَقَتْ هَذِهِ هَذِهِ واشار بِاُصْبُعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى. رواه الترمذي.

د حضرت مستورد بن شداد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه د قيامت په اول سر کي راليږل سوی يم بيا زه د قيامت څخه دومره را مخکي سوم څومره چي دا گوته يعني منځني گوته دد غه مسواکي گوتي څخه مخکي ده، دديٍ فرمايلو سره رسول الله ﷺ درميانه او د شهادت گوتي طرف ته اشاره وکړل. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۲۹، رقم: ۲۲۱۳.

**د لغاتو حل**: المستورد بن شداد: يقال كان غلاما يوم قبض النبي ﷺ ولكنه سمع منه و روى عنه جماعة.

**تشريح**: مطلب دا چي څرنگه منځنۍ گوته د شهادت د گوتي څخه لږ مخکي ده همدارنگه زما د پيغمبرۍ زمانه د قيامت د راتلو د وخت څخه لږ مخکي ده، زه لږ مخکي راغلی يم او قيامت په ما پسې را روان دی.

### په دنيا کي د امت محمدي د اوسيدو وخت

﴿۵۲۸۰﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ لَا تَعْجِزَ أُمَّتِي عِنْدَ رَبِّهَا أَنْ يُؤَخِّرَهُمْ نِصْفَ يَوْمٍ قِيلَ لِسَعْدٍ وَكَمْ نِصْفُ الْيَوْمِ قَالَ خَمْسُ مِائَةِ سَنَةٍ. رواه ابوداؤد.

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه اميد لرم چي زما امت د خپل پروردگار په نظر کي دومره عاجزه نه دی چي د دوئ پروردگار ورته د نيمي ورځي مهلت ورکړي د سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه پوښتنه وسول چي نيمه ورځ څومره وي، هغه ورته وويل پنځه سوه کاله (ديٍ آيت ته اشاره ده: وان يوما عند ربک کالف سنة مما

تعدون) يعني د الله په نزد يوه ورځ دومره ده څومره چي ستاسو په نظر کي زر کاله وي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵۱۷\۴، رقم: ۴۳۵۰.

**تشريح**: د نيمي ورځي اندازه د پنځه سوه کالو ګرځول ددغه آيت له موخي ده (وان يوما عندربک کالف سنة مما تعدون) يعني دالله ﷻ په نزد يوه ورځ دومره وي چي ستاسو په حساب سره زر کاله وي، نو کله چي هغه ورځ زموږ د شپې او ورځي مطابق د زرو کالو برابر وي نو نيمه ورځ به يقينا پنځه سوه کاله وي،

په هر حال د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد مطلب چي دغه امتږ د الله تعالی په نزد څومره قرب او لوړه مرتبه لري هغه ددې خبري د يقين درلودلو لپاره کافي دي چي الله تعالی به دغه امت کم از کم پنځه سوه کاله ضرور په امت کي ولري دا به نه هلاکوي او په دنيا کي د دوئ د بقاء او قيامت وخت به تر دې نه کموي، تر دې چي زيات غواړي هغومره يې وکړي ، ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ دې ته اشاره وفرمايل چي تر اوس پنځه سوه کاله مخکي به قيامت راسي او ددغه امت خاتمه به نه کيږي مګر ددغه وخت وروسته چي الله تعالی څه غواړي هغه به وکړي.

او ځينو حضراتو ددغه ارشاد مراد دا بيان کړی دی چي الله ﷻ به کم از کم تر پنځه سوه کالو پوري دغه امت د سختيو او تکليفو څخه سلامت وساتي او هغه به په داسي آفاتو کي نه اخته کوي چي په هغه سره به ټول امت هلاک او ختم سي .

دلته دا خبره کول ضروري دي چي حضرت شيخ جلال الدين سيوطي رحمه الله په خپلو ځينو کتابو کي ثابت کړي دي چي په دنيا کي د امت بقاء او قيام د رسول الله ﷺ د وصال څخه زر کاله وروسته د پنځه سوه کالو څخه مخکي به متجاوز نه وي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د قرب قيامت مثال

﴿۵۲۸۱﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ هٰذِهِ الدُّنْيَا مَثَلُ ثَوْبٍ شُقَّ مِنْ أَوَّلِهِ إِلٰى آخِرِهِ فَبَقِيَ مُتَعَلِّقًا بِخَيْطٍ فِي آخِرِهِ فَيُوْشِكُ ذٰلِكَ الْخَيْطُ أَنْ يَّنْقَطِعَ . رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ددې دنيا مثال د هغه جامې په

ډول دی چي د هغه د پیل څخه تر پای پوري پرې سوې وي او يوازي په يوه تار کي د جامې دواړې ټوټې موښتي وي او نژدې ده چي هغه تار هم ژر پرې سي. بيهقي.

**تخريج** : رواه البيهقي في شعب الايمان ١٧\٢٦٠، رقم: ١٠٢٤٠.

========

# بَابُ لَاتَقُوْمُ السَّاعَةُ اِلاَّ عَلٰى شِرَارِ النَّاسِ

## (قيامت به يوازي پر خرابو خلکو قائم سي)

په دغه باب کي چي کوم حديثونه نقل کيږي د هغو څخه به دا څرگنده سي چي کله قيامت نژدې سي نو په دنيا کي چي څومره نيک خلک وي هغوئ ټول به مړه سي ، يوازي بدکاره خلک به پاته سي او بيا به پر هغوئ قيامت قائم سي نو تر څو چي په دنيا کي نيک خلک موجود وي قيامت به نه قائميږي لکه چي مخکي تېر سوي دي، د حضرت عيسى عليه السلام د زمانې د ختمېدو څخه وروسته به يوه خوشبويي لرونکې هوا وچليږي چي په هغه سره به ټول مسلمانان او مؤمنان مړه سي او په دنيا کي به يوازي بدکاره خلک پاته سي چي د خرو په ډول به په خپلو کي اختلاط کوي او بيا به پر دغه بدکاره خلکو باندي قيامت قائم سي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### تر څو چي پر مځکه يو د الله جل جلاله نوم اخيستونکی موجود وي نو قيامت به نه راځي

﴿٥٢٨٢﴾ : عَنْ أَنَسٍ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حتى لا يقال في الارض الله الله وفي رواية قال لَا تَقُومُ السَّاعَةُ عَلَى أَحَدٍ يَقُولُ اللّٰهُ اللّٰهُ. رواه مسلم.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : قيامت به هغه وخت راځي چي پر مځکه هيڅوک الله الله ويونکي پاته نه سي، او په يوه روايت کي داسي دي چي قيامت به پر هغه چا نه قائميږي څوک چي الله الله کوي. مسلم

**تخريج** صحيح مسلم: ١\١٣١، رقم: ٢٣٤ - ١٤٨.

**تشريح**: مطلب دادی چي کله قيامت راسي نو هغه وخت به د ځمکي پر مخ داسي کس نه وي چي د الله ﷻ نوم اخيستونکی او د هغه عبادت کوونکی وي بلکه ټول به کافران او د بتانو بندګي کوونکي وي، له دې څخه څرګنده سول چي ددغه کائناتو وجود او بقاء په حقيقت کي د باعمله علماء، ذاکرينو او صالحينو د وجود په برکت ده، کله چي هغوئ له دنيا څخه پورته کړل سي نو دنيا به هم پاته نه سي.

## قيامت يوازي پر بدو خلکو راځي

﴿۵۲۸۳﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ إِلَّا عَلَى شِرَارِ الْخَلْقِ. رواه مسلم.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: قيامت به پر شريرو او بدو خلکو قائميږي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\۲۲۶۸، رقم: ۱۳۱- ۲۹۴۹.

**تشريح**: د خلق يعني مخلوق څخه مراد انسان دی او د شرار يعني بدکاره څخه مراد ګناه کاره وي او څرګنده ده چي د ګناه او معصيت تعلق يوازي د انسان سره دی نه د ټول مخلوق سره.

که چيري دلته دا سوال پيدا سي چي په دغه حديث شريف او د تېر سوي حديث په منځ کي يعني (لايزال طائفة من امتي حتى يقاتلون الحق ظاهرين الى يوم القيامة) مطابقت څرنګه کېدای سي، ځکه چي له دغه حديث څخه څرګندېږي چي د قيامت قائمېدو څخه مخکي به يوه زمانه داسي وي چي په هغه کي به پر دغه ځمکه باندي د الله ﷻ نوم اخيستونکي هم موجود نه وي بلکه ټول خلک به بدکاره وي او پر هغوئ به قيامت قائم سي، او په لومړني حديث کي د (لايزال بنا طائفة) څخه دا څرګندېږي چي تر قيامته پوري به تل وي، نو ددې جواب دادی چي د لومړي حديث (لايزال طائفة ....الخ) تعين د ټولو ژبو سره دی چي پر ځمکه باندي تر څو د اسلام د مرسته کوونکو وجود وي په هغوئ کي به څه ناڅه خلک تل د حق د لوړتيا لپاره جنګ کوي ددې پر خلاف دلته په نقل سوي حديث کي د (لاتقوم الساعة...الخ) تعلق يوازي د هغه خاص زمانې سره دی کله چي قيامت راتلونکی وي او له دې دنيا څخه د الله ﷻ ټول نوم اخيستونکي پورته کړل سي.

## يوه پيشگوئي

﴿۵۲۸۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُوْمُ

د حضرت ابوهريره ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قيامت به نه راځي

السَّاعَةُ حَتَّى تَضْطَرِبَ اَلْيَاتُ نِسَاءِ دَوْسٍ حول ذِي الْخَلَصَةِ وَذُو الْخَلَصَةِ طَاغِيَةُ دَوْسٍ الَّتِي كَانُوا يَعْبُدُونَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ. متفق عليه.

تر هغه وخته پوري چي د قبيله دوس د ښځو کوناټي د ذوالخلصه څخه شاوخوا حرکت وکړي او ذوالخلصه د دوس قبيلې بت دی چي د جاهليت په زمانه کي به يې د هغه عبادت کوی . (مطلب دادی چي دا قبيله به مرتده سي ، بت پرستي به کوي او د هغوئ ښځي به دبت خانې طواف کوي) . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۷۶، رقم: ۷۱۱۶، ومسلم ۱۴\۲۲۳۰، رقم: ۵۱- ۲۹۰۶.

**تشريح**: (دوس) د يمن د يوې قبيلې نوم دی او ذوالخلصه په يمن کي د يوې بت خانې نوم دی ، په دغه بت خانه کي يو بت وو چي د هغه نوم خاص وو ، د اسلام څخه مخکي د يمن قبيلو ، اوس، خثعم او بجيله به د دغه بت عبادت کوی ، کله چي د اسلام زمانه راغلل نو رسول الله ﷺ حضرت جرير بن عبدالله بجلي ﷛ يمن ته ولېږی او هغه بت خانه يې تباه کړل، په هر حال د حديث مطلب دادی چي په آخره زمانه کي به بيا د دغه قبيلې خلک بت پرسته سي او دهغوئ ښځي به د دغه بت خانې شاوخوا طواف کول پيل کړي .

## د قيامت څخه مخکي به بيا د لات او عزی عبادت شروع سي

﴿۵۲۸۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د عائشې (رض) څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې :

لَا يَذْهَبُ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ حَتَّى تُعْبَدَ اللَّاتُ وَالْعُزّٰى فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنْ

د شپې او ورځي د فنا کيدو څخه مخکي به د لات او عزٰی عبادت کيږي (لات او عزی د مکې معظمي د دوو مشهورو بتانو نومونه دي چي د جاهليت په زمانه کي يې عبادت کيدی) ما عرض وکړ اې د الله رسوله !

كُنْتُ لَأَظُنُّ حِينَ أَنْزَلَ اللّٰهُ { هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ

هر کله چي دا آيت نازل سو : (هو الذي ارسل رسوله بالهدى و دين الحق ليظهره على الدين كله ولو كره المشركون) : هغه الله ﷻ چي هغه خپل رسول د هدايت او دين سره راوليږي

لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ أَنَّ ذٰلِكَ تَامًّا قَالَ إِنَّهُ سَيَكُونُ

چي پر ټولو دينونو باندي يې غالب کړي که څه هم مشرکان يې بد ګڼي.....، نو ما دا خيال کړی وو چي د بتانو د عبادت خاتمه کيدونکې ده

مِنْ ذٰلِكَ مَا شَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ يَبْعَثُ اللّٰهُ رِيحًا طَيِّبَةً فَتَوَفَّى كُلَّ مَنْ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ

(او دا چي په راتلونکې کي به هيڅکله د بتانو عبادت نه وي) رسول الله ﷺ وفرمايل : همداسي به وي تر څو پوري چي د الله تعالی خوښه وي بيا به الله تعالی يوه خوشبوداره هواء راوليږي چي هر هغه سړی به فنا کړي د چا په زړه کي

حَبَّةِ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ فَيَبْقَى مَنْ لَا خَيْرَ فِيهِ فَيَرْجِعُونَ إِلَى دِينِ آبَائِهِمْ .

رواه مسلم.

چي د سپلني ددانې برابر هم ايمان وي او يوازي هغه خلک به پاته سي چي په هغوئ کي به څه نيکي نه وي آخر دغه خلک به د خپلو پلرونو او نيکونو دين ته واوړي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱ ۲۲۳۰، رقم: ۵۲- ۲۹۰۷.

**تشريح**: خلاصه دا چي د الهي حکمت سره سم به په آخره زمانه کي ايمان او اسلام بالکل پورته کړل سي او پر ټوله مځکه به يوازي د کفر ، شرک او بت پرستۍ کړني پاته سي چي قيامت به د کبر و جلال الهي د ظهور موقع او محل وي يوازي پر بد کارو باندي قائم سي نه پر نيکانو.

## د قيامت څخه مخکي به څه وي ؟

﴿۵۲۸۶﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

يَخْرُجُ الدَّجَّالُ فَيَمْكُثُ أَرْبَعِينَ لَا أَدْرِي أَرْبَعِينَ يَوْمًا أَوْ عَامًا فَيَبْعَثُ اللّٰهُ عِيسَى

دجال به راووځي او تر څلوېښتو ورځو پوري به وي، د عبدالله بن عمرو رضي الله عنه بیان دی چي ما ته
دا په یاد نه دي چي رسول الله ﷺ څلوېښت ورځي څلوېښت میاشتي که څلوېښت کاله
وفرمایل، بیا به الله تعالی عیسی بن مریم علیه السلام راولیږي

ابْنَ مَرْيَمَ كَأَنَّهُ عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُودٍ فَيَطْلُبُهُ فَيُهْلِكُهُ ثُمَّ يَمْكُثُ فِي النَّاسِ سَبْعَ

ګویا چي هغه عروه بن مسعود رضي الله عنه دی (یعني د حضرت عیسی علیه السلام شکل او صورت به د عروه
بن مسعود رضي الله عنه سره زیات ورته وي) هغه به دجال ولټوي او هغه به مړ کړي بیا به تر اووه کالو
پوري حضرت عیسی علیه السلام پر مځکه اوسیږي

سِنِينَ لَيْسَ بَيْنَ اثْنَيْنِ عَدَاوَةٌ ثُمَّ يُرْسِلُ اللَّهُ رِيحًا بَارِدَةً مِنْ قِبَلِ الشَّأْمِ فَلَا

او په دغه کلونو کي به د دوو خلکو په منځ کي هم عداوت نه وي بیا به الله تعالی د شام د خوا
څخه یخه هوا راولیږي

يَبْقَى عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ أَحَدٌ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِنْ خَيْرٍ أَوْ إِيمَانٍ إِلَّا قَبَضَتْهُ

او پر مځکه به په هغه خلکو کي یو هم پاته نه سي د چا په زړه کي چي د ذرې برابر هم نیکي یا

حَتَّى لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ دَخَلَ فِي كَبِدِ جَبَلٍ لَدَخَلَتْهُ عَلَيْهِ حَتَّى تَقْبِضَهُ قَالَ فَيَبْقَى

ایمان وي تر دې که په تاسو کي یو څوک په غره کي دننه هم پټ سي نو هواء به هلته ور داخله
سي او د هغه روح به قبض کړي بیا به

شِرَارُ النَّاسِ فِي خِفَّةِ الطَّيْرِ وَأَحْلَامِ السِّبَاعِ لَا يَعْرِفُونَ مَعْرُوفًا وَلَا يُنْكِرُونَ

یوازي شریر او بدکاره خلک پاته سي چي په فسق او فجور کي به د مرغانو په ډول سپک او تیز
وي او په ظلم او وینې تویولو کي به د حیوانانو په ډول سخت وي هغوئ به نیکي نیکي نه ګڼي

مُنْكَرًا فَيَتَمَثَّلُ لَهُمُ الشَّيْطَانُ فَيَقُولُ أَلَا تَسْتَجِيبُونَ فَيَقُولُونَ فَمَا تَأْمُرُنَا

او بدي به بدي نه ګڼي، نو شیطان به په یو شکل کي هغوئ ته راسي ورته وایي به تاسو ته شرم
او حیا نه درځي (چي فسق او فجور کي اخته یاست) هغوئ به ورته په جواب کي وایي ته موږ
ته څه حکم راکوې؟

فَيَأْمُرُهُمْ بِعِبَادَةِ الْأَوْثَانِ وَهُمْ فِي ذٰلِكَ دَارٌّ رِزْقُهُمْ حَسَنٌ عَيْشُهُمْ ثُمَّ يُنْفَخُ فِي

شیطان به هغوئ ته د بت پرستي حکم ورکړي او په دغه حالت کي به د هغوئ په رزق کي غیر معمولي زیاتوب وسي او هغوئ به په عیش او عشرت کي ژوند تیروي بیا به شپیلۍ ووهل سي

الصُّورِ فَلَا يَسْمَعُهُ أَحَدٌ إِلَّا أَصْغَى لِيتًا وَرَفَعَ لِيتًا قَالَ وَأَوَّلُ مَنْ يَسْمَعُهُ رَجُلٌ

او څوک چي د هغه اواز واوري هغه به یوې خوا ته خپل غاړه ټیټه کړي او بل جانب ته به یې پورته کړي د ټولو څخه وړاندي به د شپیلۍ اواز هغه سړی واوري

يَلُوطُ حَوْضَ إِبِلِهِ قَالَ فَيَصْعَقُ وَيَصْعَقُ النَّاسُ ثُمَّ يُرْسِلُ اللّٰهُ مَطَرًا كَأَنَّهُ الطَّلُّ

چي د خپلو اوښانو د اوبو څښلو ځای به سموي ، هغه سړی به په کار کولو کي مړ سي او نور ټول خلک به هم داسي مړه سي بیا به الله تعالی باران واوروي داسي ګویا چي هغه شبنم دی

فَتَنْبُتُ مِنْهُ أَجْسَادُ النَّاسِ ثُمَّ يُنْفَخُ فِيهِ أُخْرَى فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنْظُرُونَ ثُمَّ

(یعني ډیر نری باران به وي) په هغه باران سره به د هغه خلکو بدنونه راووځي (کوم چي په قبرونو کي خاوري سوي دي) بیا به په دویم وار شپیلۍ ووهل سي چي د هغه په اوریدو سره به ټول خلک ودریږي او د قیامت خوفناک منظر به ویني بیا به

يُقَالُ يَا أَيُّهَا النَّاسُ هَلُمَّ إِلَى رَبِّكُمْ وَقِفُوهُمْ إِنَّهُمْ مَسْئُولُونَ فَيُقَالُ أَخْرِجُوا

خلکو ته وویل سي اې خلکو ! د خپل پروردګار په لور راسئ بیا به الله تعالی ملائکو ته حکم ورکړي دوئ تم کړئ د دوئ څخه به حساب واخیستل سي ،

بَعْثَ النَّارِ فَيُقَالُ مِنْ كَمْ كَمْ فَيُقَالُ مِنْ كُلِّ أَلْفٍ تِسْعَ مِائَةٍ تِسْعَةً وَتِسْعِينَ

بیا به ملائکو ته وویل سي هغه خلک راوکاږئ چي د دوږخ د اور لښکر دي ملائکي به د الله تعالی څخه پوښتنه وکړي څومره خلک د دوږخ څخه راوکاږو الله تعالی به حکم ورکړي په هرو زرو کسانو کي یو کم زر (۹۹۹) کسان راوکاږئ ،

قَالَ فَذَاكَ يَوْمَ يَجْعَلُ الْوِلْدَانَ شِيبًا وَذٰلِكَ يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ. رواه مسلم ، وذكر حديث معوية لا تنقطع الهجرة في باب التوبة.

رسول الله ﷺ وفرمايل : دا هغه ورځ ده چي ماشوم به سپين ږيرى كړي او دا هغه ورځ ده چي د سختي بيري څخه به پنډۍ ښكاره سي . مسلم او د معاويه حديث لاتنقطع الهجرة د توبي په باب كي بيان سوى دى .

**تخريج** : صحيح مسلم ۴\ ۲۲۵۸، رقم: ۱۱۶- ۲۹۴۰.

**د لغاتو حل** : ليتا : والمراد منه هنا ان السامع يصعق فيصغى ليتا ويرفع ليتا اي يصير راسه هكذا وكذلك شان من يصيبه صيحة فيشق قلبه فاول ما يظهر منه سقوط راسه الى احد الشقين. رجل يلوط : اي يطين ويصلح. الطل: اي المطر الضعيف الصغير القطر (ميده باران).

**تشريح** : ما ته معلومه نه ده چي هغه وخت د څلوېښت څخه د رسول الله ﷺ څه مراد وو ...الخ، په دې اړه په لنډه توګه دا ښودل كافي دي چي څرنګه مخكي تېر سوي دي چي دجال د اوسېدو وخت په ځينو روايتو كي څلوېښت كاله او په ځينو كي څلوېښت ورځي يا څلوېښت شپې راغلي دي او هلته دا وضاحت هم سوى دى چي په هغه روايتو كي د مطابق صورت څه دى.

د دوو كسانو په منځ كي به هيڅ دښمني نه وي، ددغه جملې په ذريعه دې ته اشاره كول مقصد دي چي په دنيا كي به د حضرت عيسى عليه السلام زمانه د وروركلوۍ ، ميني او يووالي څخه ډكه وي هغه وخت به ټول خلك د ايمان او كامل اخلاقو خاوندانو وي او ټوله ټولنه به د اعلى انساني اخلاقو څخه ډكه وي چي هيڅوک به د چا دښمن نه وي او نه به چا ته په تكليف وركولو پسې وي، د هيچا په زړه كي به كينه، حسد او بغض نه وي بلكه ټول خلك به ملګري او خيرخواه وي ، څرګنده دي وي چي هغه د دجال د وژنې څخه وروسته په دغه دنيا كي د هغوئ د اوسېدو وخت دى كنه نو مخكي دا بيان سوي دي چي په دنيا كي د هغه اوسېدو ټول وخت به پنځه څلوېښت كاله وي .

چي د مرغانو په ډول به تېز وي...الخ: مطلب دا چي هغه خلک به د بدۍ په كارونو كي او دجنسي خواهشاتو په پوره كولو كي داسي تېز وي لكه مرغان چي وي، د ظلم او سختۍ فتنې او د خلكو د ځان او مال په بربادولو كي به داسي سخت زړه او سخت مزاجه وي لكه چارپايان چي دي ، نو په دغه جمله كي دې ته اشاره ده چي هغه خلک به د علم، پوهي، حلم او نورو انساني اخلاقو څخه بالكل خالي وي بلكه د هغوئ پر زړه او دماغ به د ظلم سختي او وحشت غلبه كړې وي .

هغه به خپله غاړه كښته كړي...الخ: مطلب دا چي د هغه شپيلۍ آواز به دومره زيات خطرناک او بيرونكي وي چي د هغه په دهشت سره به د خلكو زړونه وچوي او بدني قوت به معطل او بېكاره سي چي دهغه اثر به پر غاړه لويږي او هغه به داسي سي لكه څرنګه چي د بيري

په وخت کي کيږي چي سر به يې داسي يوې خوا ته چي غاړه به يې کښته سي او د هغه مقابل دوهمه خوا به پورته سي.

د هرو زرو څخه نهه سوه نهه نيوي خلک ...الخ: له دې څخه معلومه سوه چي په زرو کسانو کي به يو سړی جنت ته ځي او پاته ټول به په دوږخ کي اچول کيږي، يعني جنت ته د تلونکو تناسب به په زرو کي يو سړی وي، صحيح خبره داده چي په زرو کي د نهه سوه نهه نيوي خلکو څخه مراد کفار دي چي تل به په دوږخ کي وي، وړاندي په باب الحشر کي د حضرت ابو سعيد خدري ﷺ روايت راځي چي په هغه کي فرمايل سوي دي چي د دوږخيانو دغه ډله به پر ياجوج او ماجوج باندي مشتمل وي.

دا هغه ورځ ده چي ماشومان به سپين ږيري سي، دغه جمله په اصل کي د قيامت د ورځي د اوږدوالي او د هغه ورځي د سختۍ څخه کنايه ده، لکه څرنګه چي د مصيبتو او سختيو په زمانه کي سپين ږيرتوب ژر راځي همدارنګه دا هغه ورځ ده چي په هغه کي به امر عظيم ظاهر کړل سي دا هم د سختي بيري او سختۍ څخه کنايه ده، څرګنده دي وي چي کشف ساق چي د هغه ژباړه د امر عظيم ښودل سوې ده ددې معنی په عربو کي دا مشهوره ده او ددې اصل دادی چي کله پر يو سړي باندي سختي او پريشاني راسي او هغه د پريشانۍ د خلاصون تر لاسه کولو لپاره ډيري هڅي کوي نو هغه د پنډيو څخه خپل قميس، لمن او پايڅې را پورته کوي چي د هغه په وجه د هغه پنډۍ خلاصي سي، په دې اعتبار سره کشف ساق د عربو يوه محاوره ګرځېدلې ده چي د يو کار د ازربنت او د هغه کار په اړه رامنځته کېدونکي تکليفونو ته اشاره کول دي، دا خبره بايد په ذهن کي وي چي د (يوما يكشف عن ساق) الفاظ په قرآن کريم کي هم راغلي دي او په حديث کي د ذکر سوي جملې په صورت کي د قرآن دغه الفاظ وړاندي کړل سوي دي نو ددغه آيت د تفسير په اړه ډېر څه ليکل سوي دي مګر د اکثرو حضراتو په نزد صحيح تاويل دادی کوم چي مخکي ذکر سو.

==========

# كِتَابُ اَحْوَالِ الْقِيَامَةِ وَبَدءِ الْخَلْق

## بَابُ النَّفْخِ فِي الصُّوْرِ

## (د شپیلۍ وهلو بیان)

صور په اصل کي شپیلۍ ته وايي چي د هغه په وهلو سره يو آواز پيدا كيږي او دلته هغه خاص شپیلۍ مراد ده چي حضرت اسرافیل علیه السلام به يې وهي، د حضرت اسرافيل علیه السلام دغه شپیلۍ وهل به دوه واره وي، يو وار خو هغه وخت كله چي قيامت نژدې سي او د هغه شپیلۍ په اواز سره به ټول خلک مړه سي او دوهم وار د بیا ژوندي کولو لپاره، نو ددغه شپیلۍ په آواز سره به ټول خلک په ژوندي کېدو سره د حشر په میدان کي راجمع سي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د دواړو نفخو په مينځ کي به څومره وقفه وي

﴿۵۲۸۷﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَيْنَ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د دوو نفخو (يعني دواړو

النَّفْخَتَيْنِ أَرْبَعُونَ قَالوا يا اباهريرة أَرْبَعُونَ يَوْمًا قَالَ أَبَيْتُ قَالوا يا اباهريرة

شپیلیو وهلو) په مينځ کي زمانه به څلوېښت وي، خلکو پوښتنه وکړه اې ابوهريره! ايا

أَرْبَعُونَ يوما قَالَ أَبَيْتُ قَالوا أَرْبَعُونَ شهرا قَالَ أَبَيْتُ قَالوا ثُمَّ يُنْزِلُ اللّٰهُ

څلوېښت ورځي؟ ابوهريره رضي الله عنه وويل زه نه پوهېږم، بیا خلکو پوښتنه وکړه ايا څلوېښت مياشتي؟ ابوهريره رضي الله عنه وويل ما ته نه ده معلومه، بیا يې پوښتنه وکړه ايا څلوېښت کاله، ابوهريره رضي الله عنه وويل ما ته نه ده معلومه ددې څخه وروسته ابوهريره رضي الله عنه بيان وکړ چي رسول الله

مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَيَنْبُتُونَ كَمَا يَنْبُتُ الْبَقْلُ قال لَيْسَ مِنَ الْإِنْسَانِ شَيْءٌ

ﷺ وفرمايل بیا به الله تعالى د آسمان څخه اوبه را واوروي او ددغه اوبو سره به خلک داسي

راوځي لکه څرنګه چي شنګيا راوځي، رسول الله ﷺ وفرمايل: په انسان کي هيڅ داسي شی

إِلَّا يَبْلَى إِلَّا عَظْمًا وَاحِدًا وَهُوَ عَجْبُ الذَّنَبِ وَمِنْهُ يُرَكَّبُ الْخَلْقُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

نه سته چي نه زړېږي مګر يو هډوکی چي د هغه نوم (عجيب الذنب) دی د ملا لاندي هډوکی
د دغه هډوکي څخه به د قيامت په ورځ ټول اندامونه مرکب کيږي.

متفق عليه و في رواية لمسلم قَالَ كُلُّ ابْنِ آدَمَ يَأْكُلُهُ التُّرَابُ إِلَّا عَجْبَ الذَّنَبِ مِنْهُ خُلِقَ وَفِيهِ يُرَكَّبُ.

بخاري او مسلم.او په يو روايت د مسلم کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل د بنده ټول صورت خاوري خوري مګر عجب الذنب نه خوري له هغه پيدا کړل سوي دي او له هغه به يې ترکيب وي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۵۵۱، رقم: ۴۸۱۴، ومسلم ۴\۲۲۷۰، رقم: ۱۴۱– ۲۹۵۵.

**تشريح**: د حضرت ابو هريره رضي الله عنه دغه جواب ورکول چي ما ته معلومه نه ده، له دې کبله وو چي هغه د رسول الله ﷺ څخه دغه حديث همدارنګه مجمل اورېدلی وو، يا دا چي اورېدلی يې مفصل وو مګر د هغه څخه دا هېر سوي وه چي رسول الله ﷺ د څلوېښت وروسته څه فرمايلي دي نو هغه د خپل ذکر سوي جواب په ذريعه دا څرګنده کړه چي زه په يقين سره نسم ويلای چي څلوېښت کاله، په هر حال په دغه حديث کي د څلوېښت لفظ مجمل نقل سوی دی حال دا چي په يو بل حديث کي دغه لفظ په تفصيل سره دی او په هغه کي څلوېښت کاله دي نو د دواړو نفخو (شپېليو) په منځ کي وقفه به د څلوېښتو کالو په اندازه وي.

عجب الذنب هغه هډوکي ته وايي چي د ملا د تېر لاندي د دواړو ټوټو په منځ کي وي چيري چي د حيوان لکۍ وي او په عامه توګه هغه د ملا په تېر سره تعبير کيږي، په ځينو روايتو کي د عجب الذنب پر ځای د عجم لفظ دی چي معنی يې يوه ده، يعني اصل او بنياد، او د ذنب معنی د لکۍ ده، ذکر سوی هډوکي هغه ځای وي چيري چي د لکۍ بنياد وي ځکه ددې نوم عجب الذنب يا عجم الذنب دی، خلاصه دا چي د ملا تېر د انسان تخم دی چي د هغه څخه ابتدائي تخليق کيږي او د قيامت په ورځ به دوهم ځل ددغه هډوکي په ذريعه ټول اندامونه د سره ترتيب کيږي مګر د مرګ وروسته انسان يا حيوان په خرابېدو سره نيستي کيږي او د هغه

ټول بدن خاوره وخوري مگر د ملا تیر نه خرابيږي او نه يې خاوره خوري، څرګنده دي وي چي دا د هغه خلکو د حالت بيان دی چي د هغوئ بدن خرابيږي، پيغمبران له دې څخه مستثنی دي ځکه چي د هغوئ ټول بدن خوندي وي او الله ﷻ پر مځکه د انبیاوو بدنونه حرام کړي دي ، دا خبره دهغه خلکو په اړه هم ويل کيږي چي په دې باره کي د انبياء په حکم کي وي يعني شهيدان او اولياء الله او هغه مؤذن چي خاص د الله ﷻ د رضا لپاره اذان کوي نو دا ټول خلک په خپلو قبرو کي ژوندي وي لکه څرنګه چي په دنيا کي ژوندي خلک دي .

## د قيامت په ورځ د الله ﷻ د کبريائي او جبروت اظهار

﴿۵۲۸۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْبِضُ اللَّهُ الْأَرْضَ يوم القيامة وَيَطْوِي السَّمٰوَاتِ بِيَمِينِهِ ثُمَّ يَقُولُ أَنَا الْمَلِكُ أَيْنَ مُلُوكُ الْأَرْضِ. متفق عليه.

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ به الله تعالی مځکه په خپل مُوټ کي واخلي او آسمان به په خپل راسته لاس کي راونغاړي بيا به وفرمايي زه پاچا يم چيري دي پاچهان د مځکي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۵۵۱، رقم: ۴۸۱۲، ومسلم ۴\۲۱۴۸، رقم: ۲۳- ۲۷۸۷.

**تشريح**: د مځکي په خپل ورغوي کي اخيستلو او د آسمانونو په لاس کي د رانغښتلو څخه مراد کېدای سي د الله ﷻ د دواړو تبديلول وي لکه چي الله ﷻ فرمايي: (يوم تبدل الارض غير الارض والسموات) يا دا چي دغه الفاظ په اصل کي د الله ﷻ د عظمت او لويي کنايه ده او دې ته اشاره کول دي چي هغه عظيمي کارنامې او افعال چي د هغه په وړاندي ټول کائنات انساني عقلونه حيران دي د الله ﷻ په نظر کي بالکل حقير او بې وقعته دي، او ټوله نړۍ په يوه ساعت کي نيستي کول او د آسمان او مځکي تباه کول د هغه د قدرت په وړاندي بالکل اسان کار دی او آسمان ته د مځکي په نسبت زيات شرف او عظمت حاصل دی ځکه هغه يې په راسته لاس سره مخصوص کړ چي تر څو په لاس زيات شرف او فضيلت لري، نو پروردګار به مځکه په ورغوي کي واخلي او آسمانونه به په راسته لاس کي .

﴿۵۲۸۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

يَطْوِي اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ السَّمَاوَاتِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ يَأْخُذُهُنَّ بِيَدِهِ الْيُمْنَى ثُمَّ

د قيامت په ورځ به الله تعالى آسمانونه راونغاړي هغه به په خپل راسته لاس كي واخلي

يَقُولُ أَنَا الْمَلِكُ أَيْنَ الْجَبَّارُونَ أَيْنَ الْمُتَكَبِّرُونَ ثُمَّ يَطْوِي الْأَرَضِينَ بِشِمَالِهِ

وايي به زه پاچا يم چيري دي زوروران او چيري دي متكبران او بيا به په خپل بل لاس كي مځكي

وفي رواية يأخذهن بيده الاخرى ثُمَّ يَقُولُ أَنَا الْمَلِكُ أَيْنَ الْجَبَّارُونَ أَيْنَ الْمُتَكَبِّرُونَ . رواه مسلم.

راونغاړي ، او په يوه روايت كي داسي دي چي بيا به مځكه په دويم لاس كي واخلي او وايي به چي زه پاچا يم ظلم كونكي او غرور او تكبر كونكي چيري دي . مسلم.

**تخريج** : صحيح مسلم ۴\۲۱۴۸، رقم: ۲۴- ۲۷۸۸.

## د قيامت دورځي يو څو خبري د يهودي عالم په ژبه

﴿۵۲۹۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ جَاءَ حَبْرٌ مِنَ اليهود إِلَى النبي صَلَّى

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چي يو يهودي عالم د رسول الله ﷺ په خدمت

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ أَنَّ اللّٰهَ يمسك السَّمٰوَاتِ يوم القيامة عَلَى

كي حاضر سو او عرض يې وكړ اې محمد (ﷺ)! د قيامت په ورځ به الله تعالى آسمانونه په يوه

إِصْبَعِ وَالْأَرَضِينَ عَلَى إِصْبَعِ والجبال وَالشَّجَرَ عَلَى إِصْبَعِ وماء والتراب على

ګوته ، مځكي په بله ګوته ، غرونه او درختي په بله ګوته او د اوبو او مځكي دننه خاوره په يوه

اصبع وَسَائِرَ الْخَلْقِ عَلَى إِصْبَعِ ثم يهزهن فَيَقُولُ أَنَا الْمَلِكُ انا الله فَضَحِكَ

ګوته او ټول مخلوق په بله ګوته کښيږدي او ګوتو ته په ښور ورکولو سره به وفرمايي زه پاچا او زه الله يم، رسول الله ﷺ ددې اوريدو سره په خندا سو

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تعجبا مما قال الحبر تصديقا له ثُمَّ قَرَأَ

او د تعجب اظهار يې وکړ ځکه چې د هغه دا بيان د رسول الله ﷺ د بيان پر تصديق مبني وو، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت کړ :

وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ وَالْأَرْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَالسَّمٰوَاتُ مَطْوِيَّاتٌ بِيَمِينِهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى عَمَّا يُشْرِكُونَ. متفق عليه.

(وما قدرو الله ......) .: مشرکانو دالله تعالی قدر ونه پيژندی د قيامت په ورځ به ټوله مځکه د هغه په موټ کي وي او آسمانونه به يې په راسته لاس کي نغښتي وي ، الله تعالى د هغه شی څخه پاک دی چي مشرکان خلک يې د هغه سره شريک جوړوي . بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۸\۵۵۰، رقم: ۴۸۱۱، ومسلم ۴\۲۱۴۷، رقم: ۱۹- ۲۷۸۶.

**تشريح**: او الله ﷻ به آسمانونه پر يوه ګوته او پاته ټول مخلوقات به په بله ګوته کښېږدي او د هغه ګوتو په ښورولو سره به فرمايي، دغه ټول الفاظ د کنايې په توګه دي او د الله تعالى د قدرت جليله او عظمت کامله د غلبې او اظهار دپاره دي نه دا چي دګوتو او دګوتو دښورولو حقيقي معنی مقصد ده ، ددې نظير دعربو اسلوب بيان دی چي د مثال په توګه هغوئ د يو سړي د سخا صفت کول غواړي نو وايي چي د هغه سړي دواړه لاسونه پراخه ذي که څه هم هغه سړی د خپلو دواړو لاسو څخه محروم وي يا پيدائشي بې لاسو وي، همدارنګه کله چي د يو چا د سلطنت او حکومت صفت کول غواړي نو داسي وايي چي فلانی پر تخت باندي کښېنست که څه هم د هغه د ناستي لپاره هيڅ تخت يا بل شی نه وي نو که د عربو دغه محاورو او اسلوب ته نظر وکړل سي نو بيا د قرآن او حديث د مشابهت پوهېدل ډېر اسانه کيږي چي په هغو کي الله ﷻ ته د لاس ، ګوتو ، پنډۍ ، تخت او داسي نورو شيانو نسبت سوی دی او دا ويل کيدای سي چي د لاس څخه دا مراد دی او د تخت څخه دا مراد دی ، د هغه يهودي عالم د ذکر سوي خبرې په اوريدو سره د رسول الله ﷺ تعجب کول او خندل د هغه د تکذيب لپاره نه وو بلکه د هغه د تصديق لپاره او د هغه صحيح ګڼلو لپاره وو نو رسول الله ﷺ وروسته ذکر سوی آيت تلاوت کړ

، ددې لپاره چې يهودي څه ويلي دي د هغه تفصيلي وضاحت وسي.

## د قيامت په ورځ د ځمکې او اسمان د تبديلۍ په اړه د ايت معنی

﴿۵۲۹۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمَاوَاتُ فَأَيْنَ يَكُونُ النَّاسُ يَوْمَئِذٍ قَالَ عَلَى الصِّرَاطِ. رواه مسلم.

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چې ما د رسول الله ﷺ څخه د دغه آيت په اړه (يوم تبدل الارض غير الارض والسموات) يعني په هغه ورځ چې ځمکه به په بلې ځمکې کې بدله کړل سي او آسمانونه به په نورو آسمانونو کې، دا پوښتنه وکړه چې خلک به په دغه ورځ په کوم ځای کې وي، رسول الله ﷺ وفرمایل: په دغه ورځ به خلک پر پل صراط وي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\ ۲۱۵۰، رقم: ۲۹- ۲۷۹۱.

**تشريح**: د صراط لفظ اصل معنی د لاري ده او دلته په حديث کې د صراط څخه مراد پل صراط دی يعني هغه پل چې د هغه په اړه شارع خبر ورکړی دی چې هغه د دوږخ پر شا جوړ سوی دی چې تر وېښته ډېر نری او تر توري تېره دی او دا هم کېدای سي چې د پل صراط پر ځای بل پل مراد وي.

د قيامت په ورځ د ځمکې د بدلېدو څخه څه مراد دی، په دې اړه د علماوو اختلاف دی چې په هغو کې يو قول دادی چې د قيامت په ورځ به ځمکه په سپينه ډوډۍ بدله کړل سي نو مؤمنان به د حشر په ميدان کې د حساب تر فارغه کېدو پوري د خپلو قدمونو لاندي د ډوډۍ په شکولو سره خوري، د دغه قول تائيد د هغه حديث څخه هم کيږي چې د راتلونکي باب الحشر په لومړني حديث کې دي او د آسمان د بدلون څخه مراد دادی چې ستوري به په ماتېدو سره را ولويږي او سپوږمۍ او لمر به د تندري نيولو په صورت کې بېکاره کړل سي، طيبي رحمة الله عليه ويلي دي چې د يو شي تبديلي په دوو صورتو کې کيږي يو خو د ذات تبديلي لکه چې يو سړی داسي ووايي چې ما سره زر په سپينو زرو بدل کړل يعني د سرو زرو په ورکولو سره مې سپين زر واخيستل او دوهم صورت د صفاتو تبديلي ده لکه يو سړی داسي ووايي چې ما چله په ګوتمۍ بدله کړل يعني د چلې په ويلي کولو سره مې د هغه څخه ګوتمۍ جوړه کړه، په دغه صورت کې ذات خو

يو دى مگر دهغه حقيقت او صفت بدليږي نو د مځكي او اسمان په بل مځكي او اسمان كي د بدلېدو خبره ددغه دواړو صورتو احتمال لري چي د اصل مځكي او آسمان تبديلي هم مراد كېداى سي او دصفاتو يعني دهيئت او صورت تبديلي هم مراد كيداى سي مگر د سلفو زيات قولونه دادى چي د صفاتو تبديلي مراد ده نو حضرت ابن عباس رضي الله عنه وفرمايل چي مځكه خو به دغه مځكه وي مگر په صفاتو كي به يې تغير راسي همدارنگه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه ارشاد دى چي مځكه به داسي پراخه كړل سي چي په هغه كي به هيڅ لوړوالى او ژوروالى پاته نسي ، خو ددې مطلب دا نه دى چي د ذات تبديلي بالكل ناممكن ده ، يقينا الله جل جلاله په دې قادر دى چي د مځكي او آسمان پر ځاى بله مځكه او آسمان پيدا كړي لكه چي ځيني قولونه پر دې هم دلالت كوي، د امير المؤمنين حضرت علي رضي الله عنه څخه نقل سوي دي چي الله جل جلاله به يوه نوې مځكه پيدا كړي چي د سپينو زرو به وي او كوم آسمان چي پيدا كړي هغه به د سرو زرو وي، همدارنگه د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چي الله جل جلاله به يوه داسي مځكه پيدا كړي چي سپينه او پاكه به وي او پر هغه به هيڅ گناه نه وي كړې ، خپله د حديث دظاهر څخه هم دا څرگنديږي چي د تبديلۍ څخه د ذات تغير مراد دى لكه څرنگه چي د بي بي عائشې رضي الله عنها سوال كول او د رسول الله صلى الله عليه وسلم جواب وركول پر دې دليل دى .

## د قيامت په ورځ به سپوږمۍ او لمر بې نوره سي

﴿۵۲۹۲﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ مُكَوَّرَانِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه البخاري.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : لمر او سپوږمۍ به د قيامت په ورځ پټ كړل سي . بخاري.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۲۹۷\۶، رقم: ۳۲۰۰.

**د لغاتو حل** : مكوران: التكوير معناه اللف، وفي بعض طرق الحديث (مكوران في النار) فيكون تكويرهما فيها ليعذب بها اهل النار.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### حضرت اسرافيل علیه السلام د شپیلۍ پوه کولو لپاره هروخت تیار دئ

﴿۵۲۹۳﴾: عَنْ أَبِي سَعِيد الخدري قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل :

كَيْفَ أَنْعَمُ وَصَاحِبُ الصور قَدْ الْتَقَمَه واصغى سمعه وحنى جبهته فينتظر

زه څنګه په آرام او سکون سره کښينم حال دادی چي شپیلۍ پوه کوونکی (اسرافيل علیه السلام) شپیلۍ په خوله کي نیولې ده (د حکم اوریدو لپاره یې) غوږ نیولی دی، تندی یې کښته ټیټ

مَتَى يُؤْمَرُ بِالنَّفْخِ فقالوا يا رسول الله وما تامرنا قَالَ قُولُوا حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ؟ رواه الترمذي.

کړی دی او انتظار کي دی چي کله ورته د شپیلۍ پوه کولو حکم ورکول کیږي ، صحابه کرامو عرض وکړ اې دالله رسوله ! (هر کله چي دا حالت دی نو) تاسو موږ ته څه حکم راکوی ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل : (حسبنا الله ونعم الوكيل) بس دی موږ ته خدای جل جلاله او ښه وکيل ، واياست. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۳۶، رقم: ۲۴۳۱.

**د لغاتو حل**: التقمه: ای وضع طرف الصور في فمه. (په خوله کي نیول)

**تشريح**: (حسبنا الله ونعم الوكيل) دغه الفاظو ویل یو داسي عمل دی چي د هغه په برکت الله جل جلاله لوی آفت او مصیبت دفع کوي او سلامتیا ورکوي، کله چي ابراهيم علیه السلام د نمرود په اور کي واچول سو نو د نومړي پر ژبه دغه مبارک الفاظ وه همدارنګه د یوې غزا په موقع کي ځیني خلکو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وویل چي (ان الناس قد جمعوا لكم فاخشوهم) یعني دښمنان ستاسو په مقابله کي راجمع سوي دي او تاسو د هغوئ څخه وویریږئ، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه مبارک الفاظ وویل (حسبنا الله و نعم الوكيل) .

## شپیلۍ څه شي ده؟

﴿۵۲۹۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الصُّورُ قَرْنٌ يُنْفَخُ فِيهِ. رواه الترمذي وابوداؤد والدارمي.

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: صور (شپیلۍ) یو ښکر دی چي هغه به پوه کول کیږي. ترمذي، ابوداؤد او دارمي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۳۶، رقم: ۲۴۳۰، وابوداود ۵\ ۱۰۷، رقم: ۴۷۴۲، والدارمي ۲\ ۴۱۸، رقم: ۲۷۹۸.

**تشريح**: چي وهل کیږي به، مطلب دا چي هغه به حضرت اسرافیل علیه السلام د الله جل جلاله په حکم سره دوه واره ووهي، یو وار خو د ټولو د وژلو لپاره او دوهم وار د ټولو د را ژوندي کولو لپاره.
ځینو حضراتو ویلي دي چي هغه ښکر یعني شپیلۍ حضرت اسرافیل علیه السلام په خوله کي نیولې ده او تیار ناست دی، هغه شپیلۍ ګردې ده او اوږدوالی یې د مځکي او آسمانو په اندازه دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د ناقور، راجفه او رادفه معناوي

﴿۵۲۹۵﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُوْرِ اَلصُّوْرُ قَالَ وَالرَّاجِفَةُ اَلنَّفْخَةُ الْأُوْلٰى وَالرَّادِفَةُ اَلثَّانِيَةُ. رواه البخاري في ترجمة باب.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي د الله تعالی ددغه قول: (فاذا نقر في الناقور) کي د ناقور څخه مراد صور (شپیلۍ) ده او (یوم ترجف الراجفة) کي د راجفه څخه مراد لومړنی شپیلۍ پوه کول دي او رادفه څخه مراد دویم وار پوکل دی. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) معلقا: ۱۱\ ۳۶۷،

**تشريح**: دوه آیاتونه د ژباړي سره داسي دي:

(فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ، فَذَلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ)

ژباړه: بیا کله چي شپیلۍ ووهل سي نو هغه وخت به پر کافرانو یوه سخته ورځ وي.

يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ ، تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ

ژباړه: په کومه ورځ چې ښورېدونکي شيان (مځکه، غرونه او ټول شيان) لیري کړي چې د هغه وروسته به يو راتلونکي راسي.

راجفة په اصل کي د رجف څخه ایستل سوی دی چې معنی يې د ښورېدو او لړزېدو ده او د رادفة لفظ د ردف څخه ایستل سوی دی چې معنی یې د یو شي په یو شي پسي رسېدل دي.

## د شپیلۍ پوه کولو پر وخت به ....

﴿۵۲۹۶﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ ذَكَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَاحِبَ الصُّوْرِ وَقَالَ عَنْ يَّمِيْنِهِ جِبْرِيْلُ وَعَنْ يَسَارِهِ مِيْكَائِيْلُ.

د حضرت ابو سعید رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د شپیلۍ وهونکي ذکر وفرمایه چې د هغه راسته خوا ته به جبرائیل عليه السلام وي او چپه خوا ته به يې میکائیل عليه السلام وي.

**تخریج**: رواه رزين.

## د بیا ژوندي کولو ذکر

﴿۵۲۹۷﴾: وَعَنْ أَبِيْ رَزِيْنِ الْعُقَيْلِيِّ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ كَيْفَ يُعِيْدُ اللهُ

د حضرت ابن رزین عقیلي رضي الله عنه څخه روایت دی چې ما عرض وکړ اې د الله رسوله! هر کله چې مخلوق خاوري سي نو الله تعالی به يې دويم وار څنګه را ژوندي کړي؟

الْخَلْقَ وَمَا آيَةُ ذٰلِكَ فِيْ خَلْقِهِ قَالَ أَمَا مَرَرْتَ بِوَادِيْ قَوْمِكَ جَدْبًا ثُمَّ مَرَرْتَ

او د اوسني مخلوق څخه به په کومه نښي سره د هغوئ ثبوت تر لاسه سي، رسول الله ﷺ وفرمايل: ایا ته د وچ کالۍ په زمانه کي د خپل قوم د ځنګل سره تیر سوی يې چې هلته د شنګیا درک نه وي بیا د باران کیدو څخه وروسته هر کله چې ته هلته ورسې

بِهِ يَهْتَزُّ خَضِرًا قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَتِلْكَ آيَةُ اللهِ فِيْ خَلْقِهِ كَذٰلِكَ يُحْيِي اللهُ الْمَوْتٰى. رواهما رزين.

نو شنګیا به په هواء سره خپریدونکي ووینې، ما عرض وکړ هو، همداسي وي، نو رسول الله ﷺ وفرمایل بس په مخلوق کي د الله تعالی دغه نښه ده او همداسي الله تعالی مړي را ژوندي کوي. رزین.

**تخريج** : رواه رزين.

==========

## بَابُ الْحَشْرِ (د حشر بيان)

د حشر اصل معنی د جمع کولو ده، د قیامت ورځي ته یوم الحشر په دې اعتبار وایي چي په هغه ورځ به ټول مړي د خپلو قبرونو څخه په ژوندي کولو سره راپورته سي او ټول به په هغه ځای کي جمع سي کوم چي محشر ورته وایي.

څرګنده دي وي چي حشر دوه دي، یو خو په ذکر سوې معنی د قیامت د بعثت څخه وروسته او د دوهم حشر تعلق د قیامت څخه مخکي د قیامت د نښو دی چي د هغه یادونه مخکي تېره سوي ده، او یو اور به د ختیځ له خوا څخه ظاهر سي چي خلک به په راچاپېره کولو سره د شام هیواد ته بوځي او هلته به یې یو ځای کړي، دلته د باب په عنوان کي د حشر لومړنۍ معنی مراد ده که څه هم په باب کي ځیني داسي حدیثونه نقل سوي دي چي په ظاهره د دواړو معنی احتمال لري ځکه د علماوو په دې اړه اختلاف دی، ځینو حضراتو پر دواړو معناوو باندي محمول کړي دي او ځینو ددې خلاف ویلي دي، صحیح خبره داده چي د دغه حدیثونو محمول لومړنۍ معنی ده.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د حشر میدان

﴿۵۲۹۸﴾: عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى أَرْضٍ بَيْضَاءَ عَفْرَاءَ كَقُرْصَةِ النَّقِيِّ لَيْسَ فِيهَا عَلَمٌ لِأَحَدٍ. متفق علیه

د حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د قیامت په ورځ به

خلک داسي سرخي مائل سپيني مځکي کي جمع کړل سي لکه څرنګه چي د چڼ سوو اوړو ډوډۍ وي او په هغه مځکه کي به نه د چا سرای وي او نه عمارت. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۳۷۲، رقم: ۶۵۲۱، ومسلم ۴\ ۲۱۵۰، رقم: ۲۸- ۲۷۹۰.

**د لغاتو حل**: عفراء: اي غير شديدة البياض (لږ سپين). كقرصة: اى الرغيف

## د جنتيانو اول خوراک

﴿۵۲۹۹﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

تَكُونُ الْأَرْضُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ خُبْزَةً وَاحِدَةً يَتَكَفَّؤُهَا الْجَبَّارُ بِيَدِهِ كَمَا يَكْفَأُ

د قيامت په ورځ به ټوله مځکه د يوې ډوډۍ په ډول وي چي الله تعالى جبار به يې په خپل لاس باندي اړوي را اړوي لکه څرنګه چي

أَحَدُكُمْ خُبْزَتَهُ فِي السَّفَرِ نُزُلًا لِأَهْلِ الْجَنَّةِ فَأَتَى رَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ فَقَالَ

تاسو خلک په سفر کي ډوډۍ لاندي باندي کوئ او دا ډوډۍ به د جنتيانو ميلمستيا وي، رسول الله ﷺ چي دا وفرمايل نو يو يهودي حاضر سو عرض يې وکړ

بَارَكَ الرَّحْمَنُ عَلَيْكَ يَا أَبَا الْقَاسِمِ أَلَا أُخْبِرُكَ بِنُزُلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

اې ابو القاسم (ﷺ) الله تعالى رحمان دي تا ته برکت درکړي ايا زه درته ونښيم چي د قيامت په ورځ به د جنتيانو خوراک څه شي وي؟

قَالَ بَلَى قَالَ تَكُونُ الْأَرْضُ خُبْزَةً وَاحِدَةً كَمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هو، نو هغه يهودي وويل مځکه به يوه ډوډۍ سي لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمايلي وه،

فَنَظَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْنَا ثُمَّ ضَحِكَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ ثُمَّ

ددې اوريدو سره رسول الله ﷺ موږ ته وکتل او په مسکا سو تر دې چي د رسول الله ﷺ مخکي

غاښونه مبارک څرګند سول، بیا

قَالَ اَلَا أُخْبِرُكَ بِإِدَامِهِمْ بَالَامٌ وَنُونٌ قَالُوا وَمَا هَذَا قَالَ ثَوْرٌ وَنُونٌ يَأْكُلُ مِنْ زَائِدَةِ كَبِدِهِمَا سَبْعُونَ أَلْفًا. متفق عليه.

هغه يهودي وويل ايا زه تاسو ته د جنتيانو كتغ وښيم هغه بالام او نون دي ، صحابه كرامو پوښتنه وكړه چي دا څه شي دي ؟ هغه يهودي ورته وويل غوايي او ماهی دی چي ددې دواړو د غوښو د هغه ټوټې څخه چي ځيګر باندي ده ، اويا زره كسان به يې خوري. (يهودي په تورات كي دا خبري ليدلي وې) . بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۷۲، رقم: ۶۵۲۰، ومسلم ۴\۲۱۵۱، رقم: ۳۰- ۲۷۹۲.

**د لغاتو حل** : خبزة واحدة: ای كخبزة واحدة فهو تشبيه. بالام: ای ثور. والنون: ای السمک (ماهی)

**تشريح**: په خپلو لاسونو سره داسي اړوي را اړوي، ددغه جملې په ذريعه دې ته شاره ده چي څرنګه د ډوډۍ پخوونكی هغه د يوه لاس څخه بل ته اړوي را اړوي او بيا يې پر تاوده تبخي يا تنور باندي په اړولو را اړولو سره پخوي همدا رنګه دغه مځكه به هم اړول او را اړول كيږي او د ډوډۍ په ډول به وي، څرګنده دي وي چي د حديث د ظاهري الفاظو څخه دا معلوميږي چي د قيامت په ورځ به دغه مځكه ډوډۍ سي او جنت ته د تلونكو خوراک به وګرځي چي هغوئ به جنت ته د تللو په وخت كي دغه خوري، ځينو حضراتو د حديث الفاظ پر ظاهري معنی محمول كړي دي او حقيقت دادی چي دا خبره د الله تعالی د قدرت څخه ليري نه ده هغه پر دې قادر دی چي دا مځكه ډوډۍ وګرځوي او جنتيانو ته يې د خوراک لپاره وركړي ، نو صحيح خبره داده چي د حديث دغه ظاهري مفهوم مراد واخيستل سي او په دې اړه چا ته د شک او شبهې كولو موقع ور نه كړل سي ، ځيني حضراتو دحديث د ذكر سوو الفاظو د هغه پر ظاهري معنی نه حمل كولو سره د تاويل او توجيه لار اختيار كړې ده مګر دهغوئ ددغه تاويلاتو او توجيهاتو د اوږدوالي د بيري نه ذكر كيږي .

رسول الله ﷺ موږ ته وكتل او وې خندل، هغه يهودي عالم چي څه بيان كړل هغه يې د تورات څخه بيان كړي وه او د هغه خبره د رسول الله ﷺ د ښودل سوو خبرو تصديق كوی ، له دې پرته هغه خبري د صحابه كرامو په يقين او ايمان كي د زياتوب سبب هم سوې ځكه رسول الله ﷺ پر هغه د اطمينان د اظهار دپاره وخندل او داسي يې وخندل چي د رسول الله ﷺ د مخ

غابنونه مبارک ښکاره سول.

د اوویا زرو کسانو څخه مراد هغه خاص بندګان دي چي د حساب او مؤاخذې د پړاو تېرېدو څخه پرته به جنت ته ځي او د هغوئ مخونه به د څلورلسمي شپې د سپوږمۍ په ډول ځلانده وي او کیدای سي چي د اوویا زره کسانو څخه خاص شمېر مراد نه وي بلکه محض زیاتوب مراد وي.

زائده کبد، یعني د ځیګر زیاته برخه، دغه لفظ په اصل کي د ځیګر هغه کوچنۍ ټوټې ته وایي چي یوې خوا ته وي، دغه برخه ډېره غوره ګڼل کیږي، یو احتمال دادی چي د صحابه کرامو په پوښتنه د بالام چي کومه معنی بیان سوې ده هغه یهودي عالم نه بلکه خپله رسول الله ﷺ بیان کړې ده او صحابه کرامو ددغه لفظ په معنی پوه نه سول او هغوئ په دې اړه پوښتنه وکړل نو تر دې مخکي چي یهودي عالم جواب ورکړي رسول الله ﷺ ته دوحي په ذریعه ددغه عبراني لفظ معنی وښودل سول او رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته بیان کړل.

## د حشر ذکر

﴿۵۳۰۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحْشَرُ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: خلک به را جمع کړل سي

النَّاسُ عَلَى ثَلَاثِ طَرَائِقَ رَاغِبِينَ رَاهِبِينَ وَاثْنَانِ عَلَى بَعِيرٍ وَثَلَاثَةٌ عَلَى بَعِيرٍ

پر درو ډلو: یو خو هغه چي د جنت خواهشمند وي، دویم هغه چي د دوږخ څخه بیرېږي، په دوئ کي د هر ډول خلک به د خپلو مرتبو په لحاظ پر اوښانو سپاره وي دوه تنه به پر یوه اوښ سپاره وي او درې تنه پر یوه اوښ

وَأَرْبَعَةٌ عَلَى بَعِيرٍ وَعَشَرَةٌ عَلَى بَعِيرٍ و تحشرو بَقِيَّتَهُمُ النَّارُ تَقِيلُ مَعَهُمْ

او څلور تنه پر یوه اوښ او لس تنه به پر یوه اوښ سپاره وي اور به هغوئ را جمع کړي چي هلته به هغوئ قیلوله (د غرمې آرام) کوي، اور به هم د هغوئ سره قیلوله کوي

حَيْثُ قَالُوا وَتَبِيتُ مَعَهُمْ حَيْثُ بَاتُوا وَتُصْبِحُ مَعَهُمْ حَيْثُ أَصْبَحُوا وَتُمْسِي مَعَهُمْ حَيْثُ أَمْسَوْا. متفق عليه.

په كوم ځای كي چي هغوئ شپه تيروي اور به هم ورسره هلته شپه تيروي په كوم ځای كي چي هغوئ سهار كوي اور به هم ورسره هلته سهار كوي په كوم ځای كي چي هغوئ مابنام كوي اور به هم ورسره هلته مابنام كوي غرض دا چي په كوم ځای كي چي هغوئ وي هلته به اور هم ورسره وي . بخاري اومسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۳۷۷، رقم: ۶۵۲۲، ومسلم ۴\ ۲۱۹۳، رقم: ۵۹- ۲۸۶۱.

**تشريح**: د ملا علي قاري رحمه الله مطابق په درو ډولو كي يو يعني لومړني ډول خلک به سپاره وي او پاته دوه ډوله خلک به پر پښو او پوړموخي تلونكي وي لكه چي د راتلونكي دوهم فصل د حديث څخه به څرګنده سي مګر ځينو شارحينو ويلي دي چي مخكي دواړه ډوله خلک به سپاره وي او پاته ټول خلک به پر پښو وي او هغوئ ويلي دي چي د اوښ د سپرو د ذكر سوو شمېر په اصل كي د هغه دواړو ډولو خلكو د مراتبو تفصيل د كنايې او تمثيل بيانولو لپاره دی چي كوم څوک څومره زيات د لوړي مرتبې خاوند وي هغومره به زيات راحت، اسانتيا او په تيزي سره ميدان حشر ته رسيږي .

د لومړنيو دوو ډولو خلكو تعلق د مؤمنانو سره دی چي د هغوئ څخه يو به هغه خلک وي چي په دنيا كي د الله تعالى د فضل او كرم اميد لرونكي وه او هغه چي د خپلو نيكو بندګانو لپاره د جنت او د هغه د نعمتونو وعده كړې ده د هغه شوق پر هغوئ غالب وي او دا هغه خاص بندګان دي چي د هغوئ په اړه فرمايل سوي دي (لا خوف عليهم ولا هم يحزنون) او دوهم هغه خلک دي چي د هغه د عذاب څخه په بيره كي دي او د دوږخ د اور د بيري پوره غلبه ورباندي وي ، له دې څخه معلومه سوه چي د الله تعالى د فضل او كرم په اميد او شوق كي كېدونكي طاعت او عبادت د هغه طاعت او عبادت څخه افضل دی كوم چي د الله تعالى د بيري او خوف څخه وكړل سي .

څلور پر يوه اوښ باندي او لس پر يوه اوښ باندي وي. د څلورو او لسو په منځ كي د دوهم عدد ذكر ځكه ونه كړل سو چي هغه پر ذكر سوو اعدادو باندي په قياس كولو سره فهمول كيږي همدا رنګه پر يوه اوښ باندي د يوه سړي سپرېدل ذكر سوي نه دي حال دا چي په يقيني توګه سره په محشر كي راتلونكي به داسي هم وي چي پر خپل خپل اوښ باندي به يوازي وي او دهغوئ په سپرلۍ كي به د هغوئ سره څوک شريک نه وي، نو اصل خبره داده چي هغه د انبياوو او رسولانو مرتبه ده او دلته د انبياوو او رسولانو حشر نه دی بلكه د خلكو د حشر ذكر كول مقصد

دي ، يوه خبره دا هم ضروري ده چي پر يوه يوه اوبن باندي به تر دوو د زياتو کسانو سپرېدل پر دوارو صورتو محتمل کيداى سي يا خو به داسي وي چي يو اوبن به د څو خلکو د سپرلۍ دپاره متعين وي ، هغه ټول خلک به په هغه يو ځاى کي کښيني او يا به داسي وي چي د وار په ټاکلو سره به پرې کښيني چي هر سړى به په وار وار پر سپرېږي

په پاى کي په دې خبره پوه سئ چي په دې اړه د علماؤ اختلاف دى ، دلته په حديث کي د خلکو په محشر کي د جمع کولو چي کوم ذکر دى د هغه تعلق د کوم وخت سره دى، ځينو حضراتو ويلي دي چي دا د هغه حشر ذکر دى چي د قيامت په ورځ به په آخرت کي را پورته کيږي او هر سړى به په دوهم وار را ژوندي کېدو سره محشرته راوستل سي ، حال دا چي د ځينو نورو علماوو وينا ده چي دا د آخرت د حشر ذکر نه دى بلکه هغه حشر مراد دى چي قيامت ته نژدې به واقع کيږي چي خلک به د ټولو سيمو څخه په راجمع کولو سره د شام هيواد ته يو ځاى چي هغه ته محشر ويل کيږي، راجمع کړل سي او هغه د قيامت د نښو څخه دى، ددغه حضراتو دليل دادى چي په آخرت کي چي کوم محشر دى په هغه کي به ټول خلک پر پښو وي لکه چي په يو بل حديث کي بيان سوي دي او ځينو حضراتو ويلي دي چي په آخرت کي به څو محشره وي يو خو د قبر څخه د راوتلو وخت او د ټولو خلکو د دوهم وار را ژوندې کېدو څخه سمدستي وروسته او دوهم حشر به ددې وروسته وي په دې کي به ځينو ته سپرلۍ تر لاسه کيږئ او ځيني به پر پښو وي او ځيني به پوړموخي راځي ، په هر حال صحيح قول دا معلوميږي چي د آخرت حشر مراد دى.

## د حشر په ميدان کي ......

﴿۵۳۰۱﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّكُمْ

د حضرت ابن عباس ﷠ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تاسو به د قيامت په ورځ

مَحْشُورُونَ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا ثُمَّ قَرَأَ كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا

په داسي حال کي راجمع کړل سئ چي تاسو به لوڅي پښې لوڅ بدن او نا سنته ياست ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دا تلاوت کړ : (کما بدانا اول خلق......) يعني لکه څرنګه چي موږ د زېږيدنې په وخت کي پيدا کړي وه همداسي به يې بيا پيدا کړو دا وعده پر موږ لازم ده او

إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ وَأَوَّلُ مَنْ يُكْسَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِبْرَاهِيمُ وَإِنَّ أُنَاسًا مِنْ

موږ همداسي کوونکي يو ، او رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ به تر ټولو مخکی حضرت

ابراهیم علیه السلام ته جامه واغوستل سي

أَصْحَابِي يُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ فَأَقُولُ أَصْحَابِي أَصْحَابِي فَيَقُولُ إِنَّهُمْ لَمْ

او زما په ملګرو کي څه خلک دي چي هغوئ به چپه خوا ته (يعني د دوږخ په لور) بوتلل سي، زه به (ددې په ليدو سره) ووايم دا خو زما ملګري دي دا خو زما ملګري دي، الله تعالی به

يَزَالُوا مُرْتَدِّينَ عَلَى أَعْقَابِهِمْ مُنْذُ فَارَقْتَهُمْ فَأَقُولُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ

وفرمايي د کوم وخت چي څخه ته د دوئ څخه بيل سوې دوئ به همېشه د دين څخه ليري ګرځيدل نو زه به هغه (خبره) وکړم کومه چي صالح بنده (يعني حضرت عيسی علیه السلام) کړې وه يعني دا چي

وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ إِلَى قَوْلِهِ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ . متفق عليه

(وکنت عليهم شهيدا .....) يعني تر څو پوري چي زه په هغوئ کي وم د هغوئ د حال څخه خبر وم خو هر کله چي زه تا د هغوئ څخه پورته کړم نو ته د هغوئ ساتونکی او نګران وې، بخاري او مسلم.

**تخریج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٨٦، رقم: ٣٣٤٩، ومسلم ٤\٢١٩٤، رقم: ٥٨- ٢٨٦٠.

**د لغاتو حل** : غُرلا : جمع الارغل، اى غير مختونين (ناسنته).

**تشريح** : او ناسنته به وي، دلته دې ته اشاره ده چي د قيامت په ورځ کله چي مړي د خپلو قبرو څخه راپاځي نو د هغوئ بدن او د بدن ټول اندامونه به يو ځای سي او ټول بدن به داسي سي لکه څرنګه چي په دنيا کي وو، ددې دليل دادی چي دختنه (سنت کېدو) هغه پوست چي په پرېکولو سره غورځول کيږي چي په دنيا کي د ضائع کولو قابل دی هغه به د قيامت په ورځ خپل ځای ته (يعني د سنتېدو ځای ته) په راتللو سره د هغه د بدن برخه وګرځي، نو نور اجزاء لکه وېښتان ، نوکان او داسي نور به هم داسي پيدا سي او پر خپل ځای به ولګيږي نو دا حقيقت نه يوازي دا چي د الله تعالی د کمال علم او کائناتو پر يوه يوه جزا و کل باندي د هغه د محيط کېدو دليل دی بلکه د ممکناتو تعلق سره د هغه د قدرت کامله علامه هم ده .

تر ټولو وړاندي چي چا ته جامې ور واغوستل سي هغه به حضرت ابراهيم علیه السلام وي، حضرت ابراهيم علیه السلام ته به دا فضيلت ځکه تر لاسه وي چي هغه په دغه خلکو کي تر ټولو لومړنی کس دی چي فقيرانو او اړو کسانو ته به يې جامې ور اغوستلې او د هغوئ ستر به يې پټېوی، يا دا چي حضرت ابراهيم علیه السلام تر ټولو لومړنی سړی دی چي هغه د الله جل جلاله په لاره کي بې جامو کړل

سو، کله چي نمرود هغه په اور کي اچولی وو، نو د هغه دغه خاص فضیلت زموږ پر رسول الله ﷺ باندي د هغه افضلیت نه ثابتوي بلکه حقیقت خو دادی چي حضرت ابراهیم علیہ السلام ته تر ټولو لومړنۍ جامه اغوستل به د هغه د اکرام په توګه وي چي هغه د رسول الله ﷺ روحاني او دیني پلار دی، له دې څخه پرته دا هم کتل پکار دي چي حضرت ابراهیم علیہ السلام ته به کوم اولیت حاصل وي هغه حقیقي دی که اضافي، په ظاهره دا معلومیږي چي د هغه دغه اولیت حقیقي نه دی بلکه اضافي دی یعني هغه به د رسول الله ﷺ څخه پرته په نورو ټولو خلکو کي تر ټولو مخکي جامې واغوندي، ددې تائید ددغه روایت څخه هم کیږي چي په هغه کي دا نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ په کومو جامو کي دفن سوی دی د قیامت په ورځ به په هغه جامو کي راپاڅي او د حشر میدان ته به راځي، په جامع صغیر کي د حضرت ابو هریره رضی اللہ عنہ څخه د ترمذي دا روایت نقل سوی دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

انا اول من ینشق عنه الارض فاکسي حلة من حلل الجنة ثم اقوم عن یمین العرش لیس احد من الخلائق یقوم ذلک المقام غیري.

ژباړه: د قیامت په ورځ زه تر ټولو مخکي د مځکي په چاودلو سره راپاڅم او جنت جامه به اغوندم، بیا به د عرش راسته خوا ته ودریږم او دا ځای به په مخلوقاتو کي زما څخه پرته بل چا ته په برخه نه وي.

زه به هغه وایم کوم چي صالح بنده حضرت عیسی علیہ السلام ویلي وه...الخ: یعني څرنګه چي حضرت عیسی علیہ السلام به د قیامت په ورځ د خپل قوم د ګمراهۍ او بدعملۍ څخه دخپلي بېزارۍ اظهار کوي او دخپل ګمراه قوم معامله به د الله تعالی په عدل او انصاف پرېږدي همدارنګه زه به هم دا وایم چي پروردګاره زما د امت دا هغه خلک دي چي په دنیا کي زما د شتون په دوران کي د ایمان او عمل پر سېده لاره روان وه او زه د دوئ ساتونکی او ذمه دار وم، مګر کله چي زه د دنیا څخه ولاړم نو دوئ د خپل نفس او شیطان په دوکه کي په اخته کېدو سره ګمراهي اختیار کړل، اوس د دوئ معامله پر تا باندي موقوف ده، ستا عادل او منصف دربار د دوئ په اړه چي څه غواړي فیصله وکړې او هغه به عادلانه او منصفانه وي، رسول الله ﷺ د خپلي دغه خبري د ظاهرولو لپاره د حضرت عیسی علیہ السلام د تعلق سره د قرآن کریم دغه آیت ووایه:

وَكُنتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَّا دُمْتُ فِيهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنتَ أَنتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ وَأَنتَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ، إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ

يعني د قيامت په ورځ چي الله تعالى نصارا ته د اورولو او دهغوئ د شرمنده كولو لپاره حضرت عيسى عليه السلام ته وفرمايي ايا تا خپل قوم ته عقيده تثليث يعني د درو خدايانو منلو تلقين او تبليغ كړى وو نو حضرت عيسى عليه السلام به دخپل برائت اظهار وكړي او وايي چي ما خو دوئ ته يوازي ستا د بندګى تلقين او تبليغ كړى دى او ترڅو چي زه د دوئ په منځ كي وم په دوئ خبر وم او د دوئ ساتنه مي كول چي دا خلك د صحيح عقيدې د رڼا څخه بې لاري نه سي مګر كله چي تا زه ددغه دنيا څخه پورته كړم او د دوئ څخه دي زما ساتنه پورته كړل نو بيا يوازي ته د دوئ په حال خبر يې او ته په هر شي پوره خبر يې ، او كه د دوئ د بدعملى په وجه ته دوئ ته سزا وركوې نو دا ستا بندګان دي او كه معاف يې كړې نو بېشكه ته د حكمت والا يې .

څرګنده دي وي چي دلته په حديث كي د صحابه څخه مراد هغه صحابه نه دي چي هغوئ د رسول الله ﷺ په ژوند كي هم او د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته هم د رسول الله ﷺ د نسبت خاوندان وه او هغوئ ته په حقيقت كي صحابهٔ ويل كيږي لكه څرنګه چي دهغوئ په اړه دا په يقيني توګه معلومه ده چي درسول الله ﷺ څخه وروسته په هغوئ كي هيڅ صحابي مرتد سوى نه دى او نه يو چا د عقيدې او عمل څخه داسي ګمراهي اختيار كړه چي د هغه په وجه هغه ته دوږخي وويل سي نو د صحابه څخه مراد هغه صحرايان دي چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي په اسلام مشرف سول مګر د رسول الله ﷺ د وفات وروسته د مسيلمه كذاب، اسود او داسي نورو كسانو د پيروى په سبب مرتد سوي دي .

## د حشر په ميدان كي به ټول خلك لوڅ وي

﴿۵۳۰۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي چي د

يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ الرِّجَالُ وَ

قيامت په ورځ به خلك لوڅي پښې ، لوڅ بدن او نا سنته راجمع كيږي ، ما عرض وكړ اې دالله رسوله! خلك او

النِّسَاءُ جَمِيعًا يَنْظُرُ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ فَقَالَ يَا عَائِشَةُ الْأَمْرُ أَشَدُّ مِنْ أَنْ يَنْظُرَ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ . متفق عليه.

ښځي ټول به په هغوئ کي يو بل ته ګوري، رسول الله ﷺ وفرمايل: اې عائشې! دغه موقع به ددې څخه ډيره زياته هولناکه وي چي خلک دي يو بل ته وګوري. بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۷۷، رقم: ۶۵۲۷، ومسلم ۴\۲۱۹۴، رقم: ۵۶-۲۸۵۹.

**تشريح**: مطلب دادی چي د قيامت په ورځ به د حشر په ميدان کي که څه هم ټول خلک لوڅ راوځي مګر د هر سړي (او ښځي) د لوڅوالي څخه به د يو بل نظر پټ وي او هيڅوک به بل څوک لوڅ نه ويني ځکه چي د هغه ورځي معامله به داسي وي چي هر څوک به په خپل خپل فکر کي ډوب وي، هري خوا ته به اعمال نامه خپره سوې وي او خلک به د حساب او مؤاخذې په مراحلو او د قيامت په سختيو کي داسي اخته وي چي هيچا ته به د چا خبر نه وي چي څوک په کوم حال کي دی او چا ته به د نظر کولو موقع هم نه وي لکه چي په قرآن کريم کي فرمايل سوي دي.

## دوږخيان به پړمخي د حشر ميدان ته راځي

﴿۵۳۰۳﴾: وَعَنْ اَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ كَيْفَ يُحْشَرُ الْكَافِرُ عَلَى وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ أَلَيْسَ الَّذِي أَمْشَاهُ عَلَى الرِّجْلَيْنِ فِي الدُّنْيَا قَادِرًا عَلَى أَنْ يُمْشِيَهُ عَلَى وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړي عرض وکړ اې دالله رسوله! د قيامت په ورځ به کافر ولي پړمخي يوځای کړل سي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: چا چي په پښو سره په دنيا کي خلک روان کړي دي ايا هغه پر دې قادر نه دی چي د قيامت په ورځ کافر پړمخي روان کړي. بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۴۹۲، رقم: ۴۷۶۰، ومسلم ۴\۲۱۶۱، رقم: ۵۴-۲۸۰۶.

## د ابراهيم عليه السلام د پلار حشر

﴿۵۳۰۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

يَلْقَى إِبْرَاهِيمُ أَبَاهُ آزَرَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَعَلَى وَجْهِ آزَرَ قَتَرَةٌ وَغَبَرَةٌ فَيَقُولُ لَهُ

د قيامت په ورځ به ابراهيم عليه السلام د خپل پلار آذر سره ملاقات وکړي په داسي حال کي چي د آذر مخ به د غم څخه تور وي، ابراهيم عليه السلام به هغه ته وايي

إِبْرَاهِيمُ أَلَمْ أَقُلْ لَكَ لَا تَعْصِنِي فَيَقُولُ أَبُوهُ فَالْيَوْمَ لَا أَعْصِيكَ فَيَقُولُ

ايا ما به تا ته دا نه ويل چي زما نافرماني مه کوه؟ آذر به ابراهيم عليه السلام ته وايي نن به زه ستا نافرماني نه کوم، ابراهيم عليه السلام به وايي

إِبْرَاهِيمُ يَا رَبِّ إِنَّكَ وَعَدْتَنِي أَنْ لَا تُخْزِيَنِي يَوْمَ يُبْعَثُونَ فَأَيُّ خِزْيٍ أَخْزَى

اې پروردګاره! تا زما سره وعده کړې وه چي ته به ما په هغه ورځ ذليل او خوار کوې نه په کومه ورځ چي خلک پاڅول کيږي او س د دې څخه زيات ته بله کومه رسوايي ده چي

مِنْ أَبِي الْأَبْعَدِ فَيَقُولُ اللهُ تَعَالَى إِنِّي حَرَّمْتُ الْجَنَّةَ عَلَى الْكَافِرِينَ ثُمَّ يُقَالُ يَا

زما پلار د الله جل جلاله د رحمت څخه ليري دی الله تعالی به ورته فرمايي ما جنت پر کافرانو حرام کړی دی بيا به حضرت ابراهيم عليه السلام ته وويل سي چي اې ابراهيم!

إِبْرَاهِيمُ مَا تَحْتَ رِجْلَيْكَ فَيَنْظُرُ فَإِذَا هُوَ بِذِيخٍ مُلْتَطِخٍ فَيُؤْخَذُ بِقَوَائِمِهِ فَيُلْقَى فِي النَّارِ. رواه البخاري.

هغه شی ووينه چي ستا د پلار تر پښنو لاندي دی، ابراهيم عليه السلام به وګوري نو آذر به د يو کوږ په صورت کي وي چي په خاورو کي به لړلی وي آخر هغه به د پښنو څخه نيولی په دوږخ کي وغورځول سي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٨٧، رقم: ٣٣٥٠.

**د لغاتو حل**: قترة: ای سواد من الكابة والحزن (د غم څخه تور کېدل). غبرة: ای غبار معه سواد. بذيخ: ذكر الضبع الكثير الشعر. (کوږ\ يږ)

**تشريح**: د حضرت ابراهيم عليه السلام د پلار آذر صورت به د کوږ په شکل ځکه بدل کړل سي چي د ابراهيم عليه السلام د زړه څخه د هغه پلرنی مينه ليري کړل سي او د هغه څخه بېل سي يا د دې لپاره چي د هغه سپکاوی ونسي چي د هغه پلار په دوږخ کي اچول کيږي.

علماؤ ليکلي دي که څه هم حضرت ابراهيم رحمه الله په دنيا کي د خپل پلار څخه بېزاره سوی

دي او د هغه څخه يې د خپلي بېزارۍ اظهار کړی دي مګر کله چي د قيامت په ورځ د حشر په ميدان کي هغه ويني نو بې اختياره به پلرنۍ مينه پيدا سي نو د هغه لپاره به د بخښني او خلاصون خواهش وکړي چي کيدای سي د هغه خواست او شفاعت قبول سي مګر کله چي د هغه خواست او شفاعت قبول نه سي او خپل پلار د يو حقير حيوان په شکل کي ويني نو نا اميده به سي او د هغه څخه به د تل لپاره د خپلي بېزارۍ اظهار وکړي او ځينو حضراتو ليکلي دي چي حضرت ابراهيم عليه السلام ته يقين نه وو چي د هغه پلار آذر د کفر په حالت کي مړ سوی دی ، د هغه ګمان وو چي کيدای سي هغه په پټه توګه ايمان راوړی وي او ما ته د هغه خبر نه وي رارسېدلی او کيدای سي هغه د قيامت په ورځ د خپل د دغه ګمان په وجه د هغه په اړه شفاعت وکړي ، مګر په ظاهري توګه هغه د کفر په حالت کي وو ځکه هغه په دنيا کي د ظاهري احوالو په اعتبار کولو سره د هغه څخه د خپلي بېزارۍ اظهار وکړ او بيا کله چي په قيامت کي د هغه د کفر په حالت کي مړ کېدل ويني نو د خپل پلار څخه به هغه بېزاري چي په دنيا کي يې ظاهره کړې وي د تل لپاره سي.

## د حشر په ميدان کي بهېدونکي خوله

﴿۵۳۰۵﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْرَقُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يَذْهَبَ عَرَقُهُمْ فِي الْأَرْضِ سَبْعِينَ ذِرَاعًا وَيُلْجِمُهُمْ حَتَّى يَبْلُغَ آذَانَهُمْ . متفق عليه.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : د قيامت په ورځ به پر خلکو خوله راسي تر دې چي د هغوئ خوله به په مځکه کي اويا ګزه پوري ولاړه سي او دا خولې ته به واکي ور واچول سي تر داسي حده چي د دوئ تر غوږونو پوري به ورسيږي .بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۹۲، رقم: ۶۵۳۲، ومسلم ۴\۲۱۹۶، رقم: ۶۱- ۲۸۶۳.

**د لغاتو حل** : يلجمهم: اى الى افواهم. (تر خولې پوري).

**تشريح** : د خلکو څخه مراد ټول خلک دي ، او په دې کي پيريان هم شامل دي چي هغوئ ته په طريقه اولی خوله راځي او بهيږي، نو د پيريانو نه ذکر کول د اکتفاء په توګه دي يعني ظاهره ده چي انبياء او اولياء به د دغه خلکو څخه مستثنی وي ، څرګنده دي وي چي د خولې په دومره سختي سره راتلل او بهېدل به له دې کبله وي چي هغه وخت به سخته ګېره وي، د اعمال نامو په

خلاصولو باندي به د حياء، شرمندګۍ، او ملامتيا غلبه وي د لمر ګرمي او د اور تاو به ډېر زيات وي.

دا چي فرمايل سوي دي چي پر خلکو به دومره زياته خوله راځي چي د هغوئ لپاره ب زولنې وګرځي نو په دې اړه وضاحت به په راتلونکي حديث کي وسي او دهغه څخه به څرګند سي چي د خولې د زياتوب به مختلف احوال دي چي د هغه سره به خلک د خپلي خپلي مرتبې او اعمالو په اعتبار مخامخ وي.

## د حشر په ميدان کي د لمر نژدېوالی

﴿۵۳۰۶﴾: وَعَنِ الْمِقْدَادِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ تُدْنَ

د حضرت مقداد ﷛ څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ څخه مي اوريدلي دي چي ويل يې

الشَّمْسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الْخَلْقِ حَتّٰى تَكُوْنَ مِنْهُمْ كَمِقْدَارِ مِيْلٍ فَيَكُوْ

د قيامت په ورځ به لمر را نژدې سي خلکو ته تر داسي حده چي د يوه ميل په اندازه به وي، نو

النَّاسُ عَلٰى قَدْرِ اَعْمَالِهِمْ فِي الْعِرْقِ فَمِنْهُمْ مَنْ يَّكُوْنُ اِلٰى كَعْبَيْهِ وَمِنْهُمْ مَنْ

خلک به د خپلو عملونو سره په خولو کي ډوب وي ځيني له دوئ څخه به هغه وي چي خولې يې
تر بجلکو پوري وي او ځيني له دوئ څخه به هغه وي چي خولې يې

يَّكُوْنُ اِلٰى رُكْبَتَيْهِ وَمِنْهُمْ مَنْ يَّكُوْنُ اِلٰى حَقْوَيْهِ وَمِنْهُمْ مَنْ يَّلْجِمُهُمُ الْجَا

وَاَشَارَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ اِلٰى فَمِهٖ. رواه مسلم.

تر زنګنو پوري وي او ځيني له دوئ څخه به هغه وي چي خولې يې تر هغه ځايه وي پر کوم ځا چي پرتوګ ابن تړل کيږي او ځيني له دوئ څخه به هغه وي چي خولې يې د د خولې لپاره قيزه س او اشاره وکړه رسول الله ﷺ په لاس مبارک سره خولې مبارکي ته. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲۱۹۶\۴، رقم: ۶۲- ۲۸۶۴.

**د لغاتو حل**: حقويه: الخصر، ومشد الازر. (د پرتوګ ابن تړلو ځای)

**تشريح**: ميل په عربي کي کوس (يعني ۷۶۰ ګزه) فاصلې ته هم وايي او د رائجو سلايي ته وايي، ځينو حضراتو د يوه ميل فاصلې پاته کېدو څخه د يوه کوس په اندازه فاصله م

اخیستې ده او ځینو حضراتو دا معنی بیان کړې ده چې په هغه ورځ به لمر د رانجو د سلائي په اندازه وي، په هر حال اصل مقصد دا ظاهرول دي چې د حشر په میدان کي به لمر خلکو ته ډېر زیات رانژدې وي.

د حدیث خلاصه داده چې په هغه ورځ چې خلکو ته به خوله راځي هغه به د دوئ د اعمالو د مرتبو په اندازه وي، تر ټولو کمه خوله چې کومو خلکو ته راځي هغه خلک به وي چې د هغوئ اعمال به ډېر زیات ښه وي او هغه خلک به تر بجلکو پوري په خوله کي وي، پر همدې باندي نور هم قیاس کېدای سي چې د کوم سړي نیک اعمال څومره کم او خراب وي هغه په هم دومره زیات په خوله کي ډوب وي.

## دوه سوالونه او د هغو جوابونه

په دغه حدیث شریف کي دوه سواله پیدا کیږي یو خو دا چې دغه وخت لمر زموږ څخه په کروړونو میله فاصله کېدو سربېره دومره زیات حرارت لري چې د هغه ګرمي د انسان لپاره د زغملو وړ نه وي، او کله چې د حشر په میدان کي لمر یوازي د یو میل پر فاصله باندي وي نو دهغه حرارت او ګرمي به نه یوازي دا چې د زغملو وړ نه وي بلکه د هغه په ضد کي راتلونکي خلک به څرنګه ژوندي پاته کیږي، ددې جواب دادی چې د اخرت اجسام به د دنیا د اجسامو په ډول نه وي ځکه د هغه ځای پر بدنو باندي تېرېدونکي احوال ددغه دنیا پر بدنو باندي د تېرېدونکو احوالو قادر نه دي، ددې څخه پرته په اخرت کي به مرګ نه وي ځکه هلته به خلک سخت او ستونزمن مشکلات تېروي.

دوهم سوال دا پیدا کیږي چې کله خوله د دریاب د څپو په ډول د ځینو خلکو خولو ته ورسیږي نو دا څرنګه ممکن ده چې د نورو خلکو تر ښنګلو پوري ودرېږي، ددې جواب دادی چې د الله ﷻ قدرت کامله به د هر سړي خوله د هغه د عمل په تناسب سره ودروي چې د چا خوله د هغه تر خولې پوري رسیږي او څوک به په خپله خوله کي تر بجلکو پوري ډوب وي لکه چې ددې لېدنه په دنیا کي هم سوې ده چې د الله ﷻ په حکم سره د نیل سند هغه څپې چې نور یې غرق کړي وه د حضرت موسی علیه السلام او د هغه د قوم لپاره ساکن او جامد سوی وه، له دې پرته دا خبره هم کېدای سي چې د آخرت معامله به د دنیا د معاملې څخه بېله وي، او هغه دلته د دنیا پر حالاتو قیاس کېدای نه سي، دهغه ځای ټولي چاري د دنیاوي نظام خلاف دي، ایا داسي نه کیږي چې په یوه قبر کي دوه مړي وي او پر دواړو باندي بېل بېل حالات وي چې په هغوئ کي یو

په عذاب كي وي او بل په راحت كي وي او دواړه د يو بل د حالت څخه ناخبره وي، او په دې دنيا كي يې مثال دادى چي دوه كسان په يو ډول خوب بېده وي او دواړه بېل بېل خوبونه ويني په هغوئ كي يو خو د روغتيا او خوشحالى په حالت كي او دوهم د ناروغى او تكليف په حالت كي وي.

## د جنتيانو تر ټولو زيات شمېر به د امت محمدي وي

﴿۵۳۰۷﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت ابوسعيدخدري ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى يَا آدَمُ فَيَقُولُ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ فِي يَدَيْكَ فَيَقُولُ

د قيامت په ورځ به الله تعالى آدم ﷺ ته وفرمايي اې آدمه ! آدم ﷺ به عرض وكړ زه په خدمت كي حاضر يم او ټول خير ستا په لاس كي دى ، الله تعالى به ورته وفرمايي

أَخْرِجْ بَعْثَ النَّارِ قَالَ وَمَا بَعْثُ النَّارِ قَالَ مِنْ كُلِّ أَلْفٍ تِسْعَ مِائَةٍ وَتِسْعَةً

د دوږخ لښكري وكاږه (يعني د خپل اولاد څخه دوږخيان وباسه) آدم ﷺ به پوښتنه وكړي د دوږخ د لښكرو شمير څومره دى ؟ الله تعالى به ورته فرمايي په يو زر كي يو كم زر (۹۹۹) دى،

وَتِسْعِينَ فَعِنْدَهُ يَشِيبُ الصَّغِيرُ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى النَّاسَ

د الله تعالى د دغه حكم اوريدو سره به ماشوم د بيري له امله سپين ږيرى سي ، د حاملې ښځي حمل به ساقط سي او ته به خلك وويني

سُكَارَى وَمَا هُمْ بِسُكَارَى وَلَكِنَّ عَذَابَ اللَّهِ شَدِيدٌ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ وَأَيُّنَا

چي په نشه كي مست دي، حال دا چي هغوئ به مست او بې خوده نه وي مګر د الله ﷻ عذاب به سخت وي ، صحابه كرامو پوښتنه وكړه اې د الله رسوله ! هغه يو (چي په زرو) كي به جنت ته

ذَلِكَ الْوَاحِدُ قَالَ أَبْشِرُوا فَإِنَّ مِنْكُمْ رَجُلًا وَمِنْ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ أَلْفًا ثُمَّ

ځي په موږ كي څوك دى؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : خوشحاله سئ چي يو سړى به په تاسو كي وي او زر د ياجوج ماجوج څخه،

قَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنِّي أَرْجُو أَنْ تَكُونُوا رُبُعَ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَكَبَّرْنَا فَقَالَ

رسول الله ﷺ بیا وفرمایل: په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په لاس کي زما ساه ده زما امید دی چي په جنتیانو کي به ستاسو څلورمه برخه شمیر وي ددې اوریدو سره موږ الله اکبر وویل بیا رسول الله ﷺ وفرمایل:

أَرْجُو أَنْ تَكُونُوا ثُلُثَ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَكَبَّرْنَا فَقَالَ أَرْجُو أَنْ تَكُونُوا نِصْفَ أَهْلِ

زه امید لرم چي په جنتیانو کي به ستاسو دریمه برخه شمیر وي موږ بیا د الله اکبر ناره وکړه، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: زه امید لرم چي په جنتیانو کي به ستاسو نیم شمیر وي،

الْجَنَّةِ فَكَبَّرْنَا فَقَالَ مَا أَنْتُمْ فِي النَّاسِ إِلَّا كَالشَّعَرَةِ السَّوْدَاءِ فِي جِلْدِ ثَوْرٍ أَبْيَضَ أَوْ كَشَعَرَةٍ بَيْضَاءَ فِي جِلْدِ ثَوْرٍ أَسْوَدَ. متفق علیه.

موږ بیا د الله اکبر نعره وکړه، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: ستاسو شمیر به دومره وي لکه څرنګه چي سپین غوایي کي یو تور وریښته یا په تور غوایي کي یو سپین وریښته. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۶\۳۸۲، رقم: ۳۳۴۸، ومسلم ۱\۲۰۱، رقم: ۳۷۹- ۲۲۲.

**تشریح**: په زرو (۱۰۰۰) کي نه سوه نه نیوي، ددغه الفاظو په اعتبار د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نقل سوی حدیث ددې مخالف دی چي په هغه کي فرمایل سوي دي چي په هرو سلو کي به نه نیوي خلک دوږخیان وي، کرماني رحمة الله علیه ددې تاویل کړی دی چي په دواړو روایتو کي خاص شمېر مراد نه دی بلکه اصل مقصد د مؤمنانو د شمېر کمېدو او د کافرانو د زیاتوب بیانول دي او دا هم ویل کیږي چي د اور والا لښکر څخه کافران مراد وي او دوږخ ته د تلونکو څخه ګناه کار مراد وي، نو دلته په زرو کي د نه سوه نه نیوي تناسب چي بیان سوی دی هغه د کافرانو په اعتبار دی او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په روایت کي په سلو کي د نه نیوي چي کوم تناسب بیان سوی دی هغه د ګناه کارو په اعتبار دی، ابن حجر رحمة الله علیه لیکلي دي چي دا هم کیدای سي چي د حضرت ابوسعید رضی الله عنه د روایت سوي حدیث مفهوم د حضرت آدم علیه السلام پر ټوله اولاده باندي محمول کړل سي یعني دلته په حدیث کي د دوږخیانو لپاره په هر زرو کي د نه سوه نه نیوي چي کوم تناسب بیان سوی دی هغه د اول څخه تر پایه پوري د ټولو انسانانو په اعتبار دی او د حضرت ابوهریره

ﷺ په روايت کي د دوږخيانو لپاره په سلو کي د نه نيوي تناسب د ياجوج او ماجوج څخه پرته پر نورو خلکو باندي محمول کړل سي او ددې قرينه داده چي د ياجوج وماجوج يادونه د حضرت ابوسعيد ﷺ په روايت کي ده نه د حضرت ابوهريره ﷺ په روايت کي، يا دا چي د حضرت ابوسعيد ﷺ د روايت تعلق د ټول مخلوق سره دی او دحضرت ابوهريره ﷺ په روايت کي د دوږخيانو د لښکر څخه مراد ټول کفار او ټول ګناه کار دي، حال دا چي د حضرت ابوهريره ﷺ په روايت کي د دوږخيانو د لښکر څخه مراد يوازي مسلمان ګناه کار دی ، په هر حال په دغه تاويلاتو او توجيهاتو سره د دواړو روايتو په منځ کي څه تضاد نه پاته کيږي .

او هره حامله به خپل حمل ضائع کړي، په دې اړه صحيح خبره داده چي دغه خبره د مثال په توګه بيان سوې ده، مفهوم يې دادی که چيري بالفرض هغه وخت ځوک کشر وي نو هغه به د هيبت او الهي فيصلې د صورت او بيري څخه سپين ږيری سي، همدارنګه که چيري هغه وخت يوه ښځه حامله وي نو د هيبت او بيري څخه به د هغې د نس څخه حمل نقصان سي او ځينو حضراتو دا احتمال بيان کړی دی چي کومي ښځي د حمل په حالت کي مړې سوي وي هغوئ به د خپل حمل په پاڅېدو سره د حشر ميدان ته راسي او هغه وخت به هغوئ د الهي حکم په اورېدو سره د ډېر هيبت او بيري څخه حمل وغورځوي ، همدارنګه د لږ عمر والا به په راپاڅېدو سره د حشر ميدان ته راسي او هغوئ به د بيري څخه سپين ږيري سي ، دا بېله خبره ده چي هغوئ به جنت ته د تللو په وخت کي زلميان وي .

مطمئن اوسئ، غم مه کوئ...الخ: ددغه الفاظو په ذريعه رسول الله ﷺ د صحابه کرامو خوف او بېره ليري کړه چي په اصل کي د ياجوج وماجوج د قوم خلک به دومره زيات وي که ستاسو او دهغوئ د شمېر تناسب وايستل سي نو هغه به داسي وي چي په هغوئ کي به زر کسان وي او ستاسو څخه به يوازي يو سړی وي او په دغه صورت کي به د جنتيانو شمېر کم نه وي بلکه ډېر به وي نو تاسو ته بېره کول نه دي پکار چي جنت ته د تلونکو تناسب به دوږخ د تلونکو په تناسب دومره کم وي، نو په موږ کي به ډېر کم خلک جنت ځي .

له دغه خبري څخه دا څرګنديږي چي په مجموعي توګه دوږخ ته د تلونکو شمېر به زيات وي او جنت ته د تلونکو شمېر به کم وي، مګر که چيري په جنتيانو کي ملائکي او حوري هم شامل کړل سي نو کيدای سي د جنتيانو شمېر به د دوږخيانو تر شمېر زيات سي او په دغه صورت کي به حديث قدسي : (غلبت رحمتي علی غضبي) يعني زما رحمت زما پر غضب غالب سو ، معنی به هم صحيح وي .

څرګنده دي وي چي رسول الله ﷺ په جنتيانو کي د امت محمدي کوم تناسب بيان کړ هغه يې په تدريج بيان کړ او په يو ځل يې بيان نه کړ چي د صحابه کرامو زړونه د خوشحالۍ څخه ونه چوي، يا ځکه يې په تدريج بيان کړ چي کيداى سي د امت محمدي خلک په څو مرحلو کي په هغه تناسب سره جنت ته ولاړ سي يعني په لومړۍ مرحله کي چي کوم خلک جنت ته ځي هغه به د جنتيانو د مجموعي شمېر څلورمه برخه وي، له دې وروسته چي کوم خلک داخليږي د هغوئ په يو ځاى کولو سره به د جنتيانو مجموعي شمېر دريمه برخه سي تر دې چي ټول خلک جنت ته ورسيږي نو بيا د امت محمدي خلک به د جنتيانو د مجموعي شمېر نيمه برخه سي، يا دا چي په دې اړه به پر رسول الله ﷺ باندي په درې واره وحي نازل سوي وي او ذکر سوى تناسب يې په تدريج سره وښودى، نو کله چي وحي نازل سوې او په هغه کي د کوم تناسب ذکر وو نو رسول الله ﷺ به صحابه کرامو ته د زيري ورکولو لپاره هغه بيانوى، په هر حال دغه احتمالات د ذکر سوي تناسب په تدريجي توګه بيانولو کي دى کوم چي اصل خبره ده هغه داده چي ددغه حديث څخه څرګنديږي چي د امت محدي خلک به د جنتيانو د مجموعي شمېر څخه نيمه برخه وي، حال دا چي صحيح خبره داده چي په جنت کي به د امت محمدي شمېر دوه پر درې وي نو دا ثابته ده چي د جنتيانو به يوسل او شل صفونه وي چي په هغو کي به اتيا صفونه د رسول الله ﷺ د امت وي، او پاته څلوېښت صفونه به د نورو ټولو امتو وي، نو کيداى سي چي رسول الله ﷺ دغه حديث وفرمايله، نو هغه وخت رسول الله ﷺ ته دا معلومه سوې نه وه چي امت محمدي به د جنتيانو د ټول شمېر دريمه برخه وي او دا هم کيداى سي چي رسول الله ﷺ نيمه برخه والا خبره په لومړۍ مرحله کي جنت ته د تلونکو د تناسب په اعتبار فرمايلې وي.

## دريا پر کارو باندي وعيد

﴿۵۳۰۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَكْشِفُ رَبُّنَا

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې: (د قيامت په ورځ به) زمونږ پروردګار څرګند کړي

عَنْ سَاقِهِ فَيَسْجُدُ لَهُ كُلُّ مُؤْمِنٍ وَمُؤْمِنَةٍ وَيَبْقَى كُلُّ مَنْ كَانَ يَسْجُدُ فِي الدُّنْيَا

خپل ساق نو هر مؤمن سړى او ښځه به د هغه مخته پر سجده پريوځي مګر چا چي په دنيا کي د

رِيَاءً وَسُمْعَةً فَيَذْهَبُ لِيَسْجُدَ فَيَعُودُ ظَهْرُهُ طَبَقًا وَاحِدًا. متفق عليه.

ښودني او اورولو لپاره سجدې کړي وي هغه به سجده ونه کړلای سي هغه به د سجدې اراده کوي مګر د هغه ملا به د تختې په ډول سي او هغه به ښکته کېدلای نه سي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ٦٦۴، رقم: ۴۹۱۹

**د لغاتو حل**: طبقا واحدا: اى عظما بلا مفصل بحيث لاينثني عند الرفع والخفض.

**تشريح**: لکه چې مخکې هم بيان سوی دی چې د کشف ساق يعني پنډۍ لوڅول په اصل کې د عربي يوه محاوره ده چې د هغه په ذريعه د غم، فکر او سختۍ بيانول مقصد دي او د هغه ظاهري صورت داوي چې په داسي وخت کې سړی خپل لمن يا پايڅې د پنډيو څخه را پورته کوي نو الله ﷻ به خپل پنډۍ لوڅې کړي که ددې څخه دا مراد واخيستل چې پروردګار به د خپلو بندګانو په منځ کې داسي صورت حال ظاهر کړي چې په هغه سره به هغوئ په سخت غم او فکر کې ولوېږي ، ځينو حضرات ددغه جملې تاويل نه کوي او وايي چې څرنګه نور ډېر مشابهات دي او دهغه حکم دادی چې د هغه حقيقي مراد او مفهوم دي نه لټوي ، بلکه دا عقيده دي ولري چې ددې حقيقي مطلب الله ﷻ ته معلوم دی، همدارنګه د الله ﷻ پنډۍ لوڅول يوه داسي خبره ده چې دهغه حقيقي مراد د الله ﷻ په علم کې دی او موږ ته د هغه په لټون کې لګېدل نه دي پکار دا د احتياط لاره ده .

نو ټول مؤمنان ، نارينه او ښځينه به هغه ته سجده کوي، مطلب دادی چې هغه وخت به ټول مؤمنان د صورت حال د سختۍ څخه په بې تابه کېدو سره د الله ﷻ په دربار کې پر سجده پرېوځئ چې ددغه قربت په ذريعه د هغه وخت د سختۍ او تکليفو څخه خلاصون تر لاسه کړي او د مؤمن څخه مراد مخلص مؤمن دی او په ځينو ضعيفو روايتو کې راغلي دي چې يو لوی نور به ښکاره سي چې د هغه په ليدو سره به خلک پر سجده ولوېږي .

## د انسان حيثيت

﴿۵۳۰۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي الرَّجُلُ الْعَظِيمُ السَّمِينُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا يَزِنُ عِنْدَ اللّٰهِ جَنَاحَ بَعُوضَةٍ وَقَالَ اقْرَءُوا فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا. متفق عليه.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ به يو ډير

غټ سړی راسي مگر د الله تعالی په نظر کي به هغه د غوماشي په اندازه هم نه وي بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: دا آیت تلاوت کړئ: (فلا نقیم لهم یوم القیامة وزنا..) بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۳۲٦، رقم: ۴۷۲۹، ومسلم ۴\ ۲۱۴۷، رقم: ۱۸- ۲۷۸۵.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د قیامت په ورځ د مځکي شاهدي

﴿۵۳۱۰﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هذه الاية

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ دغه آیت تلاوت کړ:

يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا قَالَ أَتَدْرُونَ مَا أَخْبَارُهَا قَالُوا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ

(یومئذ تحدث اخبارها) او رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو ته معلومه ده چي د مځکي خبرونه څه دي؟ صحابه کرامو عرض وکړ الله جل جلاله او د هغه رسول ښه پوهیږي،

قَالَ فَإِنَّ أَخْبَارَهَا أَنْ تَشْهَدَ عَلَى كُلِّ عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ بِمَا عَمِلَ عَلَى ظَهْرِهَا أَنْ

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: د مځکي خبرونه دادي چي مځکه د هر سړي او ښځي په اړه شاهدي ورکړي چي هغوئ ددې پر شا کوم کوم کارونه کړي دي

تَقُولَ عَمِلَ كَذَا وَكَذَا يَوْمَ كَذَا وَكَذَا قَالَ فَهٰذِهِ أَخْبَارُهَا. رواه احمد والترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح غريب.

یعني هغه به داسي وایي چي هغوئ فلانی کار او دا او دا په فلانۍ ورځ وکړ او دا د مځکي خبرونه دي. احمد او ترمذي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\ ۳۷۴، والترمذي ۴\ ۵۳۵، رقم: ۲۴۲۹.

### هر مړ کیدونکي پښیمانه وي

﴿۵۳۱۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ أَحَدٍ يَمُوتُ

إِلَّا نَدِمَ قَالُوا وَمَا نَدَامَتُهُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ إِنْ كَانَ مُحْسِنًا نَدِمَ أَنْ لَا يَكُونَ ازْدَادَ وَإِنْ كَانَ مُسِيئًا نَدِمَ أَنْ لَا يَكُونَ نَزَعَ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو کي چي ځوک مړ کيږي هغه نادم او پريشانه وي، صحابه کرامو عرض وکړ اې دالله رسوله! د ندامت سبب څه دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: که نيک دی نو په دې وجه به نادم او پښيمانه وي چي نيکی کي يې زياتوالي ونه کړ او که بدکاره وي نو په دې سبب به پښيمانه وي چي هغه خپل ځان ولي دبدۍ څخه منع نه کړ. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۲۲، رقم: ۲۴۰۳.

**د لغاتو حل**: نزع: اى كف نفسه عن الاساءة.

## د حشر په ميدان کي به درې ډوله خلک راځي

﴿۵۳۱۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به خلک

الْقِيَامَةِ ثَلَاثَةَ أَصْنَافٍ صِنْفًا مُشَاةً وَصِنْفًا رُكْبَانًا وَصِنْفًا عَلَى وُجُوهِهِمْ قِيلَ

درې ډوله راجمع کړل سي: يو پر پښو، دويم سپاره، او دريم پوړ مخي تلونکي، پوښتنه وسول

يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَكَيْفَ يَمْشُونَ عَلَى وُجُوهِهِمْ قَالَ إِنَّ الَّذِي أَمْشَاهُمْ عَلَى

اې دالله رسوله! پړمخي به خلک څنګه ځي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم ذات چي هغوئ پر

أَقْدَامِهِمْ قَادِرٌ عَلَى أَنْ يُمْشِيَهُمْ عَلَى وُجُوهِهِمْ أَمَا إِنَّهُمْ يَتَّقُونَ بِوُجُوهِهِمْ كُلَّ حَدَبٍ وَشَوْكٍ. روه الترمذي.

پښو روان کړي دي هغه يې پر پړمخي روانولو هم قادر دی، تاسو په ياد لرئ چي خلک به پړمخي تلو کي په خپل مخ سره ځان د لوړوالی او ازغو څخه ساتي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۸۵، رقم: ۳۱۴۲.

**د لغاتو حل**: حدب: اى مكان مرتفع (لوړ ځای).

**تشریح**: لومړۍ ډول خلک به هغه مؤمنان وي چي دهغوئ په اعمالو کي نیک او بد دواړه ډوله اعمال وي او هغوئ به د بیري او امید په منځ کي د شک په حالت کي د الله ﷻ د رحمت امېد لرونکي وي، دوهم ډول خلک هغه كامل الايمان وي چي په نیکو اعمالو کي هڅه کوي او دریم ډول به کافران او مشرکان وي.

د حدیث د آخري الفاظو مطلب دادی چي څرنګه په دنیا کي انسانان پر خپلو پښو ګرځي نو هغه د لاري د خنډونو او تکلیف رسونکو شیانو څخه د لاسو او پښو په ذریعه ځان ژغوري همدارنګه دریم ډول خلک به د قیامت په ورځ پوړموخي راځي نو د هغوئ مخونه به هغه څه کوي کوم چي په لاسو او پښو سره کیږي او دخپل مخ په ذریعه به د لاري د تکلیفو څخه ځان ساتي او په هغه ورځ به د هغوئ پوړموخي تلل ددې اعلان وي چي دغه خلکو په دنیا کي د اطاعت سجده ونه کړل او د الله ﷻ په فرمانبرداری کي یې خپله غاړه کښته نه کړل ځکه الله ﷻ دوئ په پوړموخي تللو سره ذليل او خوار کړي دي.

## که په دنیا کي د قیامت دوزخي احوال لېدل غواړئ!

﴿۵۳۱۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُ رَأْيُ عَيْنٍ فَلْيَقْرَأْ إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ وَإِذَا السَّمَاءُ انْفَطَرَتْ وَإِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ. رواه احمد والترمذي.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي په دنیا کي په خپلو سترګو سره قیامت لیدل خوښوي نو هغه دي سورة اذ الشمس کورت او اذا السماء انفطرت او سورة اذا السماء انشقت وايي. احمد او ترمذي.

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۲\۲۷، رقم: ۳۳۳۳.

**تشریح**: په دغه سورتونو کي د قیامت د حالاتو تفصیلي یادونه ده، نو که چیري ویونکي دغه سورتونه د زړه په اخلاص سره ووايي او په معنی کي یې فکر وکړي نو دغه سورتونه د قیامت د حالاتو داسي مستحضر دي لکه هغه حالات چي په سترګو ويني.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دریم فصل)

### خلک به د حشر میدان ته څرنګه راوستل سي؟

﴿۵۳۱۴﴾: عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ إِنَّ الصَّادِقَ الْمَصْدُوقَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَنِي

د حضرت ابوذر رضی الله عنه څخه روايت دی چي صادق او مصدوق نبي کريم ﷺ ما ته وفرمايل :

أَنَّ النَّاسَ يُحْشَرُونَ ثَلَاثَةَ أَفْوَاجٍ فَوْجٌ رَاكِبِينَ طَاعِمِينَ كَاسِينَ وَفَوْجٌ

د قيامت په ورځ به خلک په درو ډلو کي جمع کړل سي يوه ډله به د سپرو، د خوړونکو او څکونکو وي، او دويمه ډله به هغه وي

تَسْحَبُهُمُ الْمَلَائِكَةُ عَلَى وُجُوهِهِمْ وَتَحْشُرُهُمُ النَّارُ وَفَوْجٌ يَمْشُونَ وَيَسْعَوْنَ

چي ملائکي به يې پړمو خی د دوږخ و طرف ته بوځي، او دريمه ډله به پر پښو تلونکو او ځغستونکو وي، کومه ډله چي د سپرو وي

يُلْقِي اللّٰهُ الْآفَةَ عَلَى الظَّهْرِ فَلَا يَبْقَى حَتَّى إِنَّ الرَّجُلَ لَتَكُونُ لَهُ الْحَدِيقَةُ يُعْطِيهَا بِذَاتِ الْقَتَبِ لَا يَقْدِرُ عَلَيْهَا. رواه النسائي.

الله تعالی به د هغوئ د سپرلو پر شا آفت او مصيبت نازل کړي تر دې چي هيڅ سپرلی به پاته نه سي او د چا سره چي يو باغ وي هغه به په باغ ورکولو سره د هغه په بدله کي اوښ اخيستل غواړي مګر حاصل به يې نه کړلای سي. نسائي

**تخريج**: سنن النسائي ۴\۱۱۶، رقم: ۲۰۸۶.

**د لغاتو حل**: طاعمين: ای مرفهين. القتب: ای بعوضها وبدلها. (په بدله کي)

**تشريح**: لومړنۍ ډله به هغه مؤمنان وي چي هغوئ به په دنيا کي د نيکۍ او خېر په چارو کي هڅه کول، دوهمه ډله به د کفارو او مشرکانو وي او دريمه ډله به د هغه مسلمانانو وي چي هغوئ ګناه کړې وي.

څرګنده دې وي چي د حديث سياق او د غه حديث په د غه باب کي ذکر کول ددې دليل دی چي دلته د کوم حشر يادونه سوې ده دا هغه حشر دی چي د قيامت په ورځ به واقع کيږي او خلک

به په دوهم وار ژوندي کېدو سره محشر ته راځي مګر د حديث اخري الفاظ او الله ﷻ به د هغه سپرو پر شا آفت او مصيبت نازل کړي...الخ: له دې څخه دا خبره ثابتيږي چي هغه حشر مراد نه دی کوم چي په قيامت کي واقع کيږي.

همدارنګه د (خوړونکو او څښونکو) الفاظ هم ددې خبري تائيد کوي، ځينو حضراتو ويلي دي چي دلته د ذکر سوي حشر څخه د قيامت ورځ مراد نه ده بلکه هغه حشر مراد دی چي هغه د قيامت د نښو څخه ذکر سوی دی، په دغه صورت کي به ويل کيږي چي دغه حديث دلته په باب الحشر کي نقل کول تبعا دی، ددې پر خلاف ملا علي قاري رحمة الله عليه د توربشتي رحمة الله عليه قول نقل کړی دی چي په هغه کي يې د آياتو او حديثو څخه استدلال کړی دی او دې خبري ته يې ترجيح ورکړې ده چي دا هغه حشر دی چي د قيامت په ورځ به وي او هغه ليکلي دي: دا چي خطابي رحمة الله عليه ويلي دي چي د قيامت څخه مخکي حشر مراد دی نو د هغه دغه قول پر خطا محمول دی، صحيح قول د توربشتي رحمة الله عليه دی.

اصل خبره داده چي په دغه حديث کي د حشر د مراد په تعين کي چي دا ټول بحث را پيدا سوی دی هغه له دې کبله دی چي حضرت ابوذر رضي الله عنه دغه حديث روايت کړی دی نو په هغه کي ګډوالی سوی دی نو په بنيادي توګه ضروري ده چي دغه ګډوالی ليري کړل سي او هغه داسي چي وويل سي په دغه حديث کي د دوو مختلفو حديثونو بېل بېل اجزاء يو ځای سوي دي چي له کبله يې په مفهوم کي تضاد پيدا سوی دی په دغه صورت کي به هيڅ شک او مشکل نه پيدا کيږي.

===========

# بَابُ الْحِسَابِ وَالْقِصَاصِ وَالْمِيْزَانِ

## (د حساب، قصاص او مېزان بيان)

د حساب معنی د شمېرلو ده او دلته مراد د قيامت په ورځ د بندګانو د اعمالو او کړنو حساب کول او د هغه شمېرل دي، ځرګنده دي وي چي الله ﷻ عليم او خبير ذات ته هر څه معلوم دي او بنده چي په دنيا کي څه عمل کوي هغه ته ځرګند او روښانه دي مګر د قيامت په ورځ به د بندګانو د اعمالو او کړنو حساب ځکه کيږي چي پر هغوئ حجت قائم سي او ټول مخلوق ته ځرګند سي چي په دنيا کي چا څه کړي دي او څوک د کومي درجې دی، نو د قيامت په ورځ دغه حساب د قرآن کريم او صحيح حديثونو څخه ثابت دی او دغه عقيده درلودل واجب دي.

د قصاص معنى د بدلې او مكافات ده يعني كوم څوك چي څرنګه كړنه وكړي د هغه سره به هم هغه كيږي د مثال په توګه يو سړي يو څوك ووژني نو د هغه په بدله كي هغه هم وژل كيږي او كه يو څوك زخمي كړل سي نو د هغه په بدله كي هغه هم ژوبل كيږي او دې ته قصاص وايي، د قيامت په ورځ به د ځان بدله ځان، د زخم او تكليف بدله زخم او تكليف وي او په دنيا كي چي د چا سره څه سوي وي كه هغه يې په تكليف كړى وي يا بل څه وي كه څه هم هغه پسه او مچ وي نو د قيامت په ورځ به هغه ته د هغه بدله وركول كيږي كه څه هم هغه مكلف نه وي، ټول حيوانان به هم د قيامت په ورځ د دې لپاره را پاڅول كيږي چي هغوئ ته هم د يو بل بدله وركړل سي د مثال په توګه كه يوه ښكروره بزه بله بې ښكره بزه ووهي نو د هغه څخه به هم قصاص يعني بدله اخيستل كيږي.

مېزان هغه شي ته وايي چي د هغه په ذريعه د بندګانو د اعمالو شمېر او حيثيت معلوميږي او د جمهورو علماوو قول دى چي هغه شى د مېزان يعني ترازو په شكل كي وي چي د هغه دوې پلې وي او يوه ژبه يې وي او د دوو پلو په منځ كي د لويديځ او ختيځ په اندازه فاصله وي، ددغه ترازو په ذريعه د بندګانو اعمال تلل كيږي يعني په يوه پله كي د نيكو اعمالو او په بل كي د بدو اعمالو تلل كيږي او ځينو حضراتو ويلي دي چي حسنات يعني نېک اعمال په ښه صورتو كي او سيات يعني خراب اعمال به په خرابو صورتو كي اچول كيږي او دواړه به تلل كيږي، مګر په ځينو روايتو كي لومړى قول صحيح معلوميږي او په دې اړه چي كوم نصوص دي د هغو ظاهري مفهوم پر همدې دلالت كوي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### اسان حساب او سخت حساب

﴿۵۳۱۵﴾: عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ أَحَدٌ يُحَاسَبُ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ چي د

يوم القيامة الا هلك قلت او ليس يقول الله تعالى فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا

چا څخه حساب واخيستل سي هغه هلاک سو، ما غرض وكړ ايا الله تعالى دا نه دي فرمايلي چي (فسوق يحاسب حسابا يسير) يعني

يَسِيرًا فَقَالَ إِنَّمَا ذَلِكِ الْعَرْضُ وَلَكِنْ مَنْ نُوقِشَ الْحِسَابَ فِي يَهْلِكْ. متفق عليه

آسان حساب به ورسره وکړل سي، رسول الله ﷺ وفرمايل : دا آسان حساب يوازي بيان دی چي په دې کي به يو ډول سختي نه وي مګر د چا سره چي په حساب کي سختي وسي هغه هلاک سو. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۱۹٦، رقم: ۱۰۳، ومسلم ۴\۲۲۰۴، رقم: ۷۹- ۲۸۷٦.

**تشريح**: اسانه حساب يوازي وړاندي کول او بيان محض دی، مطلب دادی چي په قرآن کريم کي دا فرمايل سوي دي چي نژدې ده چي دهغه حساب اسان سي نو د اسانه حساب ځخه دا مراد دی چي د هغه نيک او خراب اعمال به هغه ته وښودل سي د مثال په توګه هغه ته به وښودل سي چي تا دا کړي ، هغه دي کړي دي او پر خرابو اعمالو باندي به نيوکه کيږي مګر د کوم سړي په حساب کي چي د پوښتني دخل راسي نو د هغه ځخه به د يو ه يوه شي او هر کوچني او لوی شي په اړه پوښتنه کيږي او پر هغه به د محاسبې او مؤاخذې سخته کړنه نافذ کړل سي د هغه سړي د عذاب ځخه ساتل به ممکن نه وي نو هغه بهٔ تباه سي او په حقيقت کي حساب دادی .

دغه خبره په بل ډول داسي بيانيږي چي رسول الله ﷺ په ذکر سوي حديث کي فرمايلي دي نو هغه دا کليه ظاهروي چي کوم سړی د حساب د مرحلې ځخه تېر سي نو هغه به يقينا په عذاب کي اخته کيږئ مګر د قرآن کريم په ذکر سوي آيت چي فرمايل سوي دي د هغه ځخه دا ثابتيږي چي د حساب دمرحلو د تېرېدونکو ځخه بهٔ ځيني خلک په عذاب کي نه اخته کيږي همدارنګه د قرآن کريم آيت او د رسول الله ﷺ ذکر سوي ارشاد کي په ظاهره مخالفت معلوميږي نو ددغه مخالفت دفع کولو لپاره خپله رسول الله ﷺ وفرمايل چي په دغه آيت کي د حساب ځخه مراد يعني د هغه خلکو وړاندي چي هغوئ خلاصون تر لاسه کوونکي دي مقصد دی د هغوئ د اعمالو د فهرست په خلاصولو سره به کښېښودل سي نو چا چي خراب اعمال کړي وي هغه به د خپلو خرابو اعمالو اقرار وکړي او الله ﷻ به په خپل فضل او کرم ظاهرولو سره د هغه سره د عفو معامله وکړي ، ددې پر خلاف که چيري په حديث کي د حساب ځخه مراد واقعي محاسبه او نيوکه واخيستل سي چي هغه حساب په مناقشې سره تعبير سوی دی او ددغه محاسبې بنياد به د عدل اظهار وي .

بزاز او نورو علماوو دغه روايت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په کوم سړي کي چي دغه درې خبري وي د هغه ځخه به الله ﷻ اسانه حساب واخلي او په خپل رحمت سره به

يې ونازوي او هغه درې شيان دادي چې :

۱. تاسو هغه چا ته (اخلاقي، بدني او مالي مرسته ورسوئ) كوم چې تاسو د خپل مرستې څخه محروم كړي ياست .

۲. تاسو د هغه چا سره د معافۍ كړنه وكړئ كوم چې پر تاسو ظلم كړي وي .

۳. او تاسو د هغه سړي سره ښه چلن وكړئ كوم چې ستاسو سره مقاطعه كوي .

## د قيامت په ورځ به الله ﷻ بېله واسطې د هر چا سره كلام كوي

﴿۵۳۱۶﴾: وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا

د حضرت عدي بن حاتم ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا سَيُكَلِّمُهُ رَبُّهُ لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ تُرْجُمَانٌ وَلَا حِجَابٌ

په تاسو كي به هيڅوك داسي نه وي چې د هغه سره به الله تعالى بې ترجمانه او بې حجابه خبري

يَحْجُبُهُ فَيَنْظُرُ أَيْمَنَ مِنْهُ فَلَا يَرَى إِلَّا مَا قَدَّمَ مِنْ عَمَلِهِ وَيَنْظُرُ أَشْأَمَ مِنْهُ

ونه كړي ، بنده چې راسته طرف ته نظر واچوي نو هغه شی به په نظر ورسي چې هغه د خپلو اعمالو مخكي ليږلي وي او چپه خوا ته چې وګوري نو هغه شی به ويني چې

فَلَا يَرَى إِلَّا مَا قَدَّمَ وَيَنْظُرُ بَيْنَ يَدَيْهِ فَلَا يَرَى إِلَّا النَّارَ تِلْقَاءَ وَجْهِهِ فَاتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ. متفق عليه.

هغه مخكي ليږلي وى ، مخته چې وګوري نو اور به ويني چې د هغه مخته به مخامخ وي ، اې خلكو ! له تاو د اور څخه خپل ځان وساتئ كه څه هم چې د خرما د يوې ټوټې په خيرات كولو سره وي . بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۴۰۰، رقم: ۶۵۳۹، ومسلم ۲\ ۷۰۳، رقم: ۶۷– ۱۰۱۶.

**د لغاتو حل** : اشام: اى في الجانب الذي في شماله (د شمال لوري ته).

**تشريح**: كله چې بنده خپل راسته خوا ته وګوري...الخ: يعني دا قاعده ده چې كله يو څوك د يوې سختۍ سره مخامخ سي او په مشكل كي ولويږي نو راسته او چپه خوا ته ګوري، نو هغه وخت به هر بنده ته يو سخت پړاو رامنځته وي ځكه هغه به راسته او چپه خوا ته ګوري او راسته

خوا ته به هغه نیک اعمال ویني کوم چي هغه په دنیا کي کړي دي او چپه خوا ته به د هغه بد اعمال وي او مخته به يې اور وي نو که یو سړی غواړي چي هغه وخت خپلو نیکو اعمالو ته په کتلو سره اطمینان او سکون تر لاسه کړي او مخته لېدونکي اور څخه خلاصون تر لاسه کړي نو هغه باید په دنیا کي زیات نېک کارونه وکړي او د بدو اعمالو څخه ځان وساتي.

که څه هم د خرما په یوې ټوټې سره وي: ددغه جملې دوې معناوي کېدای سي یو دا چي خپل ځان له دوږخ څخه وساتي او پر چا باندي ظلم ونه کړي که څه هم هغه ظلم د خرما د یوې ټوټې په صورت کي یا دهغه په اندازه وي ، دوهمه معنی داده چي د دوږخ د اور څخه ځان ژغورل غواړي نو د اړو او مسکینانو خلکو په مرسته او د الله ﷻ په لاره کي دي مصرف کوي که څه هم تاسو د یوې خرما ورکولو توان ولرئ ځکه چي د الله ﷻ په لاره کي مصرفول یعني صدقه او خیرات به ستاسو او د اور په منځ کي پرده وګرځول سي.

## د قیامت په ورځ پر مؤمن باندي رحمت

﴿۵۳۱۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ

د حضرت عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : (د قیامت په ورځ به) الله

يُدْنِي الْمُؤْمِنَ فَيَضَعُ عَلَيْهِ كَنَفَهُ وَيَسْتُرُهُ فَيَقُولُ أَتَعْرِفُ ذَنْبَ كَذَا أَتَعْرِفُ

تعالی مؤمن ځان ته نژدې کړي او بیا د خپل حفاظت څادر اچولو سره به هغه پټ کړي لپاره ددې چي هغه رسوا نه سي بیا به الله تعالی د مؤمن څخه پوښتنه وکړي ته فلانی ګناه پیژنې ایا ته د

ذَنْبَ كَذَا فَيَقُولُ نَعَمْ أَيْ رَبِّ حَتّٰى قَرَّرَهُ بِذُنُوبِهِ وَرَأَى فِي نَفْسِهِ أَنَّهُ قَدْ

فلانی ګناه څخه خبر یې ؟ مؤمن بنده به وایي هو اې پروردګاره هو زه خبر یم، تر دې چي الله تعالی به د ټولو ګناهونو اقرار په وکړي او هغه به په زړه کي وایي چي زه خو اوس د ګناهونو په

هَلَكَ قَالَ سَتَرْتُهَا عَلَيْكَ فِي الدُّنْيَا وَأَنَا أَغْفِرُهَا لَكَ الْيَوْمَ فَيُعْطَى كِتَابَ

بدله کي هلاک سوم بیا به الله تعالی ورته فرمایي : ما په دنیا کي ستا پر عیبونو او ګناهونو پرده اچولې ده او نن دي هم زه بخښم، غرض دا چي هغه ته به د هغه د نیکو اعمالنامه ورکړل سي

حَسَنَاتِهِ وَأَمَّا الْكَافِرُ وَالْمُنَافِقُونَ فينادي بهم على رئس الخلائق هٰؤُلَاءِ

اَلَّذِينَ كَذَبُوا عَلَى رَبِّهِمْ أَلَا لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الظَّالِمِينَ. متفق عليه.

، كافران او منافقان خلک به د خلکو په مخکي راوغواړي او په زوره به وويل سي دا هغه خلک دي چي پر خپل پروردګار باندي يې دروغ ويلي وه ، خبردار سئ پر ظالمانو د الله ﷻ لعنت دی. بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۹٦\۵، رقم: ۲۴۴۱، ومسلم ۴\۲۱۲۰، رقم: ۵۲-۲۷٦۸.

**د لغاتو حل** : كنفه: اى يحفظه (ساتي يې).

**تشريح**: د مؤمن لفظ یا خو نکره دی چي په غير متعين توګه سره د يو مؤمن په اړه دا زيری ورکړل سوی دی او دا هم ليري خبره نه ده چي د مؤمن څخه جنس مؤمن مراد وي يعني د ټولو مؤمنانو سره به الله ﷻ د خپل فضل او کرم دغه معامله کوي او ځينو ويلي دي چي دغه زيری د هغه مؤمنانو په اړه دی چي په دنيا کي د چا غيبت نه کوي، پر چا باندي غيب نه لګوي، څوک ذليل او رسوا نه کوي د مسلمان په بې عزتۍ سره نه خوشحاله کيږي بلکه د الله ﷻ د نيکو بندګانو پرده پټوي او په خلکو کي د چا د بې عزتۍ سبب نه جوړيږي نو الله ﷻ د هغوئ د اوصافو د جزا په توګه د قيامت په ورځ به د هغوئ پرده پټه کړئ او هغوئ به د خپل ساتني او رحمت په سايه کي پټ کړي.

## د مسلمانانو دښمن به د هغوئ لپاره د دوږخ څخه د خلاصون عوض وي

﴿۵۳۱۸﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ دَفَعَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ إِلَى كُلِّ مُسْلِمٍ يَهُودِيًّا أَوْ نَصْرَانِيًّا فَيَقُولُ هَذَا فِكَاكُكَ مِنَ النَّارِ. رواه مسلم.

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي د قيامت ورځ سي نو الله تعالی به هر مسلمان ته يو يهودي يا نصراني ورکړي او ورته به ووايي دا ستاسو د خلاصي بدله ده (يعني په دې ورکولو سره تاسو د دوږخ څخه خلاصون حاصل کړئ) او پر خپل ځای دی ولیږئ. مسلم.

**تخريج** : صحيح مسلم ۴\۲۱۱۹، رقم: ۴۹- ۲۷٦۷.

**د لغاتو حل** : فكاكک: اى خلاصک (ستا ژغورل)

**تشریح**: د فک معنی د ګرو سوي شي د پټولو ده او له دې څخه د فکاک لفظ دی چې معنی یې د هغه شي ده چې د هغه په ذریعه ګرو سوی شي خلاص کړل سي نو دا سړی ستا فکاک یعني خلاصون دی، مطلب دا سو چې مسلمان د دوږخ په اور کي ترلی دی او د قیامت په ورځ به هغه یهودي یا نصراني د هغه مسلمان په بدله کي په اور کي په اچولو سره د هغه اور څخه خلاص کړل سي، او ددې خبري به دا تاویل وي چې الله ﷻ هم د مکلف لپاره که هغه کافر وي یا مؤمن وي په جنت او دوږخ کي یو ځای ټاکلی دی نو کوم څوک چې د دنیا څخه د ایمان سره رخصت سي د هغه ځای چې په دوږخ کي وو د هغه سړیٔ ځای سره چې په جنت کي وي بدل کړل سي او کوم څوک چې د ایمان سره له دنیا څخه رخصت نه سي د هغه معامله به ددې برعکس وي، نو په دې اعتبار سره به دغه کافر د دوږخ د اور څخه دمؤمنانو د خلاصون سبب وي،له دې څخه څرګنده سوه چې د ذکر سوي جملې دا مراد نه دی چې کافر به د مؤمنانو د ګناهو په بدله کي دوږخ ته وسپارل سي ځکه چې الله ﷻ دا فیصله کړې ده چې (ولاتزر وازرة وزر اخرى) ، ځرګنده دي وي چې د یهود او نصارا تخصیص محض علامتي دی یعني دلته اصلي مراد فکاک دی او د یهود او نصارا یادونه یوازي له دې کبله سوې ده چې د مسلمانانو سره د هغوئ دښمني زیاته مشهوره ده .

## د قیامت په ورځ به امت محمدي د حضرت نوح علیه السلام شاهدان وي

﴿۵۳۱۹﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُجَاءُ

د حضرت ابو سعید خدري رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د قیامت په ورځ به

بِنُوحٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُقَالُ لَهُ هَلْ بَلَّغْتَ فَيَقُولُ نَعَمْ يَا رَبِّ فَتُسْأَلُ أُمَّتُهُ

حضرت نوح علیه السلام راوبلل سي ، الله تعالی به د هغه څخه پوښتنه وکړي ایا تا زما امر او نهي رسولي وه هغه به وایي هو اې پروردګاره ما ستا احکام رسولي وه ، بیا به د نوح علیه السلام د

هَلْ بَلَّغَكُمْ فَيَقُولُونَ مَا جَاءَنَا مِنْ نَذِيرٍ فَيقال مَنْ شُهُودُكَ فَيَقُولُ مُحَمَّدٌ

امت څخه پوښتنه وسي ایا نوح علیه السلام تاسو ته زما احکام در رسولي وه هغه خلک به وایي موږ ته خو یو څوک بیرونکي نه وو راغلی الله تعالی به د نوح علیه السلام څخه پوښتنه وکړي ستا شاهدان څوک دي ؟ نوح علیه السلام به وایي زما شاهد محمد ﷺ

وَأُمَّتُهُ فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم فَيُجَاءُ بِكُمْ فَتَشْهَدُونَ انه قد

او د هغوئ امت دی ، ددې ځخه وروسته رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وفرمايل : چي تاسو به راوستل سئ او تاسو به دا شاهدي ورکوئ چي نوح عليه السلام خپل امت ته ستا احکام رسولي

بلغ ثُمَّ قَرَأَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا. رواه البخاري.

وه ، ددې ځخه وروسته رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت کړ : (و كذالک جعلنكم امة وسطا.......) او همداسي موږ تاسو يو منځني امت جوړ کړلاست چي تاسو پر خلکو شاهدان ياست او رسول به پر تاسو شاهد جوړ سي. بخاري.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۷۱\٦، رقم: ۳۳۳۹.

**تشريح** د حضرت نوح عليه السلام دا ويل چي بېشکه اې پروردګاره! ما ستا احکام د خپل امت خلکو ته رسولي وه ، د قرآن کريم ددغه آيت خلاف نه دی چي په هغه کي داسي دي:

(يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ فَيَقُولُ مَاذَا أُجِبْتُمْ قَالُواْ لاَ عِلْمَ لَنَا إِنَّكَ أَنتَ عَلاَّمُ الْغُيُوبِ).

ژباړه: په هغه ورځ به د حشر په ميدان کي الله جل جلاله رسولان راجمع کړي او بيا به د هغوئ ځخه پوښتنه وکړي چي تاسو ته (ستا د امت له خوا ستا د دعوت په اړه) څه جواب درکړل سو ، نو هغوئ به وايي چي موږ ته علم نسته بېله شکه ته په پټو خبرو ښه پوهېدونکی يې .

ځکه چي ددغه آيت مراد خو دادی چي د غه اجابت به سوال وي چي د هغه په اړه به هغه رسولان خپله ناخبري ښکاره کړي ، حال دا چي دلته په حديث کي د حضرت نوح عليه السلام ځخه چي دکوم سوال ذکر دی هغه به د دعوت په اړه وي او ظاهره ده چي اجابت او دعوت دوه بېل بېل شيان دي .

حضرت نوح عليه السلام به وايي چي زما شاهد حضرت محمد ﷺ او دهغه د امت خلک دي يعني اصل شاهدان خو د امت محمدي خلک دي چي د حضرت نوح عليه السلام ددعوې شاهدي به هغوئ ورکوي او حضرت محمد ﷺ به د هغوئ مشر وي، په دغه صورت کي به ويل کيږي چي اصل شاهد يعني د امت محمدي د خلکو ځخه مخکي يعني د رسول الله ﷺ يادونه کول به د رسول الله ﷺ د تعظيم او عزت د ښکندوني لپاره وي او دا هم ليري خبره نه ده چي خپله رسول الله ﷺ

هم د نوح علیه السلام شاهدي ورکړي ځکه چې هغه وخت او ځای به داسي وي چې د زياتي مرستي رسولو اړتيا به وي.

رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وفرمايل چې بيا به تاسو وړاندي کړل سئ، ددغه الفاظو اسلوب دا ښيي چې کله د الله جل جلاله په دربار کي ټول خلک را جمع سي چې هغه وخت به حاضر او ناظر وي يعني رسول الله ﷺ به په دغه ټولو کي حاضر وي او شاهد به وي، کله چې د انبياوو او رسولانو جمع کول وي نو د ټولو څخه به مخکي حضرت نوح علیه السلام وړاندي کړل سي او بيا د هغه شاهدان يعني د امت محمدي خلک به راوستل سي.

او تاسو به دا شاهدي ورکوئ...الخ: يعني دحضرت نوح علیه السلام د وينا سره سم تاسو به د هغوئ شاهدي ورکوي او ستاسو نبي به ستاسو مزکي (پاکوونکي) وي يا دا چې تاسو به شاهدي ورکوئ او ستاسو سره به نبي هم شاهدي ورکوي.

په دغه آيت کريمه کي (وکذالک جعلنکم امة وسطا) فرمايل سوي دي چې مسلمانان به د قيامت په ورځ د تېرو امتونو په اړه شاهدي ورکوي او دهغه مسلمانانو شاهدي به د هغوئ پيغمبر ﷺ ورکوي د هغه تېرو خلکو په اړه د مسلمانانو د شاهدي مثال خو داسي دی چې هغه مسلمانان به د حضرت نوح علیه السلام په اړه شاهدي ورکوي چې هغوئ دخپل امت خلکو ته د الله جل جلاله احکام رسولي دي او د هغه مسلمانانو په اړه د هغوئ د پيغمبر ﷺ له خوا د شاهدي صورت به دا وي چې په يو حديث کي فرمايل سوي دي چې کله د قيامت په ورځ د تېرو انبياؤ او رسولانو امتونه په انکار کولو سره وايي چې موږ ته هيڅ نبي څه نه دي را رسولي او موږ ته يې د الله جل جلاله احکام نه دي ښودلي نو هغه رسولان او انبياء به د امت محمدي خلک خپل شاهدان وګرځوي او کله چې مسلمانان د هغوئ شاهدي ورکړي نو د هغوئ څخه به پوښتنه وسي چې تاسو خو د هغه امتونو څخه وروسته دنيا ته راغلي واست نو تاسو ته څرنګه معلومه سوه چې هغه انبياؤ د خپل امت خلکو ته د الله جل جلاله احکام رسولي وه او تاسو دا شاهدي په کومه وجه ورکوئ نو هغه مسلمان به جواب ورکړي چې په دې اړه موږ کتاب الله ناطق تر لاسه کوو او د هغه په وجه موږ دا شاهدي ادا کوو.

تر دې وروسته به دهغه رسولانو د امتونو خلک د مسلمانانو د صداقت او عدالت يعني د هغوئ د معتبر کېدو په اړه جرح کوي بيا به رسول الله ﷺ د مسلمانانو رېښتوني کېدل ثابتوي او شاهدي به ورکوي چې يقينا دا خلک د باور وړ او په خپله خبره کي رېښتوني دي نو دخپل امت په اړه د رسول الله ﷺ د شاهدي ورکولو دا معنی ده او په دې اعتبار رسول الله ﷺ ته د

خپل امت شاهد ويل سوي دي ، کله چي رسول الله ﷺ خپل امت ريښتوني او د تېرو امتونو په اړه د هغوئ شاهدي د باور ثابته کړي نو لکه رسول الله ﷺ چي شاهدي ورکړل نو له دې کبله به حضرت نوح علیہ السلام وايي چي زما شاهد حضرت محمد ﷺ او دهغه د امت خلک دي .

## د قيامت په ورځ د بدن اندامونه شاهدي ورکوي

﴿۵۳۲۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَحِكَ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره وو چي رسول الله ﷺ وخندل

فَقَالَ هَلْ تَدْرُونَ مِمَّ أَضْحَكُ قَالَ قُلْنَا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ مِنْ مُخَاطَبَةِ

بيا يې وفرمايل: تاسو ته معلومه ده چي زه ولي خاندم ؟ موږ عرض وکړ الله جل جلالہ او د هغه رسول بنه پوهيږي ، رسول الله ﷺ وفرمايل :ما د الله جل جلالہ او بنده په منيځ کي مخ په مخ د خبرو کولو

الْعَبْدِ رَبَّهُ يَقُولُ يَا رَبِّ أَلَمْ تُجِرْنِي مِنَ الظُّلْمِ قَالَ يَقُولُ بَلَى قَالَ فَيَقُولُ فَإِنِّي

(په خيال) وخندل، د قيامت په ورځ به بنده خپل رب ته وايي اې ربه ! ايا تا ما ته د ظلم څخه پناه نه ده راکړې لکه چي تا فرمايلي دي : (لا يظلم ربک احدا) ستا رب پر چا ظلم نه کوي، (يعني د

لَا أُجِيزُ عَلَى نَفْسِي إِلَّا شَاهِدًا مِنِّي قَالَ فَيَقُولُ كَفَى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ

بل چا شاهدي معتبره نه گڼم) اې الله ! زه نه روا کوم پر خپل ځان باندي مگر شاهد له ما څخه ، نبي کريم ﷺ ويلي دي چي الله تعالى به ورته و فرمايي نن ورځ خپله ستا ذات پر تا شاهد بس

شَهِيدًا وَبِالْكِرَامِ الْكَاتِبِينَ شُهُودًا قَالَ فَيُخْتَمُ عَلَى فِيهِ فَيُقَالُ لِأَرْكَانِهِ

دی او کرام کاتبين ملائکي پر تا باندي شاهدان دي ، ددې څخه وروسته به د الله تعالى په حکم سره د بنده پر خوله مهر ولگول سي او د هغه د بدن اندامو ته به وويل سي او د هغه د بدن اعضاء به د هغه اعمال بيان کړي او بيا هغه مهر چي د هغه پر خوله لگيدلی وي هغه به مات کړل

انْطِقِي قَالَ فَتَنْطِقُ بِأَعْمَالِهِ قَالَ ثُمَّ يُخَلَّى بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْكَلَامِ قَالَ فَيَقُولُ

بُعْدًا لَكُنَّ وَسُحْقًا فَعَنْكُنَّ كُنْتُ أُنَاضِلُ. رواه مسلم.

سي بنده به د مخکي په ډول بيرته خبري کوي نو خپلو اندامونو ته به وايي ليري سئ او هلاک سئ زه خو ستاسو لپاره (د الله سره) په جګړه وم. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\ ۲۲۸۰، رقم: ۱۷ - ۲۹۶۹.

**تشريح**: زما په اړه شاهدي ورکوونکي دي زما څخه وي، يعني ما ته دا د منلو وړ نه ده چي زما د اعمالو او کړنو په اړه بل څوک شاهدي ورکوي زه خو يوازي هغه شاهد منم چي زما د ذات څخه پيدا وي، يعني بنده خو به دا خيال کوي چي زما په ذات کي د ننه شاهدي ورکوونکي نسته ځکه هيڅوک خپل ځان ته د تاوان رسولو لپاره شاهدي نه ورکوي مګر هغه ته به دا خيال نه وي چي الله ﷻ پر دې قادر دی چي هغه د هغه بنده د ذات څخه داسي شاهد پيدا کړي چي د هغه پر خلاف شاهدي ورکړي او هغه ته به د الله ﷻ د حکم خلاف د انکار کولو امکان نه وي نو د رسول الله ﷺ د خندلو سبب دا وو چي د الله ﷻ په وړاندي د بنده داسي کلام کول چي خپله په خپل جال کي و موښلي د هغه د کومي درجې مضحکه حرکت به وي يا دا چي د الله ﷻ د خپل بنده په خوله مهر لګول د هغه اندامونه د اعمالو په اړه شاهدي ورکول چي د هغه په ذريعه هغه اعمال کړي دي او بيا د هغه بنده د خپلي ناپوهۍ په وجه هغه اندامونو ته بد ويل او هغوئ ته د ښېرا کولو عجيبه خيال کولو سره و خندل.

خپله د بنده د غوښتني او خواهش مطابق خپله د هغه اندامو په باره کي د شاهد جوړولو څخه وروسته بيا د اعمال ليکونکي ملائکي هم شاهد جوړول به د مقصد څخه زيات ته خبره وي او د دې سبب به دا وي چي اندامونه شاهدي ورکوي د هغه تصديق او توثيق وسي او بنده ته د دې ويلو امکان پاته نسي چي د بدن اندامونه صحيح شاهدي نه ورکوي او که الله ﷻ يوازي ملائکي شاهدي کړي نو دا خبره به د هغه د اقرار خلاف وي چي د هغه او د بنده په منځ کي فيصله سوي دي خلاصه دا چي اصل شاهد خو به د بنده د بدن اندامونه وي چي هغه به خپله د بنده د غوښتني مطابق شاهد جوړ کړل سي او د هغه اندامو شاهدي ثابتولو لپاره د اعمال نامه ليکونکي ملائکي به د تاکيدي شاهدي په توګه وي نو دا اعتراض بايد ونه سي چي کله الله ﷻ د بنده عرض او خواهش منلو سره سم د هغه د ذات يعني اندامو شاهد جوړ کړي نو د ملائکو د شاهد جوړولو څه ضرورت دی.

ليري سئ بدبختو او هلاک سئ....الخ: يعني کله چي هغه بنده ووينې چي دا زما د بدن اندامونه زما پر خلاف شاهدي ورکوي، او بلي خوا ته د هغه د اندامو د هغه پر خلاف شاهد

کېدل خپله د هغه د غوښتني او خواهش مطابق وي نو هغه به په دغه صورت لېدو سره خپل اندامونو ته بد رد ویل پیل کړي چي بدبختو ما خو ستاسو لپاره جګړه کول چي تاسو د اعمالو بده سزا تر لاسه نه کړئ مګر پر خپل ځان تاسو خپله شاهدي ورکړل او خپل ځان مو په عذاب کي واچوئ، یا دا چي زه په دنیا کي ستاسو په وجه د خلکو سره جنګېدم ستاسو د تاوان او ضرر څخه د ساتني لپاره نورو ته مي تاوان رسوی ستاسو راحت او ستاسو د کار په وجه به مي فلانی فلانی عمل کوو، هر وخت به ستاسو په ساتنه او مرسته کي بوخت وم او تاسو مي خپل غم خوار او دوست ګڼلاست، مګر په پای کي تاسو زما دښمن او زما بدخواه سواست او زما د عذاب سبب وګرځېدلاست، په حدیث کي د هغه اندامو جواب نه دی ذکر سوی چي هغه په پای کي د بنده دا خبره اورېدو سره کوي مګر د قرآن په یوه آیت کي د هغوئ هغه جواب ته اشاره سوې ده:

وَقَالُوا لِجُلُودِهِمْ لِمَ شَهِدتُّمْ عَلَيْنَا قَالُوا أَنطَقَنَا اللَّهُ الَّذِي أَنطَقَ كُلَّ شَيْءٍ وَهُوَ خَلَقَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ.

ژباړه: او هغوئ به خپل اندامو ته وایي چي تاسو زموږ پر خلاف ولي شاهدي ورکړه نو هغوئ به وایي چي موږ هغه الله ﷻ بللي یو چي هغه هر شی بللی دی او هغه تاسو په لومړي ځل پیدا کړلاست او هغه ته به بېرته ګرځېدل وي.

## د قیامت په ورځ د خدای ﷻ دیدار

﴿۵۳۲۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ هَلْ نَرَى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله رسوله! ایا د قیامت په ورځ به موږ خپل رب په خپلو سترګو سره وینو؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:

هَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ فِي الظَّهِيرَةِ لَيْسَتْ فِي سَحَابَةٍ قَالُوا لَا قَالَ فَهَلْ

ایا د غرمې په وخت چي وریځ نه وي تاسو په لمر لیدو کي څه شک کوئ؟ صحابه کرامو عرض وکړ: نه، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: ایا تاسو

تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ لَيْسَ فِي سَحَابَةٍ قَالُوا لَا قَالَ فَوَالَّذِي نَفْسِي

(په آسمان) چي وریځ موجوده نه وي د څوارلسمي شپې سپوږمۍ لیدو کي څه شک کوئ؟ صحابه کرامو عرض وکړیا، رسول الله ﷺ وفرمایل په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په

بِيَدِهِ لَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ رَبِّكُمْ إِلَّا كَمَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ أَحَدِهِمَا قَالَ فَيَلْقَى

لاس كي زما ساه ده لكه ځرنګه چي تاسو د سپوږمۍ او لمر په ليدو كي څه شک نه کوئ همداسي به تاسو د خپل رب په ليدو كي هم څه شک نه کوئ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي بندګان خپل رب ويني

الْعَبْدَ فَيَقُولُ أَيْ فُلْ أَلَمْ أُكْرِمْكَ وَأُسَوِّدْكَ وَأُزَوِّجْكَ وَأُسَخِّرْ لَكَ الْخَيْلَ وَالْإِبِلَ

نو پروردګار به هغوئ مخاطب کړي او د يو بنده څخه به پوښتنه وکړي اې فلانيه! ايا ما تاته پر ټول مخلوق شرافت او بزرګي نه وه درکړې ايا ما ته پر يو لوی قوم سردار نه وې جوړ کړی ايا ما تاته ستا ښځه نه وه درکړې؟ ايا ما ستا لپاره آسان او اوښان تابع کړي نه وه؟

وَأَذَرْكَ تَرْأَسُ وَتَرْبَعُ فَيَقُولُ بَلَى قَالَ فَيَقُولُ أَفَظَنَنْتَ أَنَّكَ مُلَاقِيَّ فَيَقُولُ لَا

ايا ما ته ددې لپاره نه وې پرې ايښی چي د خپل قوم سرداري حاصله کړې؟ او د هغوئ څخه څلورمه مال د غنيمت واخلې؟ بنده به عرض وکړ: هو ربه! تا داسي کړي وه، بيا به ورته الله تعالى فرمايي: ايا ستا دا خيال هم وو چي يوه ورځ به ته زما سره ملاقات کوې؟ بنده به وايي دا خيال خو هيڅ کله زما په زړه کي پيدا سوی نه وو،

فَيَقُولُ فَإِنِّي قد أَنْسَاكَ كَمَا نَسِيتَنِي ثُمَّ يَلْقَى الثَّانِي فذكر مثله ثُمَّ يَلْقَى الثَّالِثَ

الله تعالى به ورته فرمايي لکه ځرنګه چي تا زه هير کړی وم نن دي زه هم هيروم، ددې څخه وروسته به الله تعالى دويم بنده سره ملاقات وکړي همداسي سوال او جواب به وي بيا به ددريم

فَيَقُولُ لَهُ مِثْلَ ذَلِكَ فَيَقُولُ يَا رَبِّ آمَنْتُ بِكَ وَبِكِتَابِكَ وَبِرُسُلِكَ وَصَلَّيْتُ

بنده سره ملاقات وکړي د هغه څخه به هم داسي پوښتني وکړي هغه به په جواب کي دا وايي اې ربه! ما پر تا ستا پر کتابونو او ستا پر رسولانو ايمان راوړ، ما لمونځ وکړ،

وَصُمْتُ وَتَصَدَّقْتُ وَيُثْنِي بِخَيْرٍ مَا اسْتَطَاعَ فَيَقُولُ هَاهُنَا إِذًا ثُمَّ يُقَالُ الْآنَ

روژه مي ونيول، صدقه مي ورکړه، او څومره چي ممکن وي هغه به د خپلو نيکيو تعريف کوي، الله تعالى به ورته وفرمايي ته دلته تم سه

نَبْعَثُ شَاهِدَنَا عَلَيْكَ وَيَتَفَكَّرُ فِي نَفْسِهِ مَنْ ذَا الَّذِي يَشْهَدُ عَلَيَّ فَيُخْتَمُ عَلَى

چي زه د شاهدانو څخه شاهدي واخلم، او اوس ستا شاهدان رابلل کيږي، ددې اوريدو سره به بنده په خپل زړه کي وايي زما پر خلاف به دلته څوک شاهدي ورکړي، بيا به د الله تعالى په حکم سره د هغه پر خوله مهر ولګول سي

فِيهِ وَيُقَالُ لِفَخِذِهِ وَلَحْمِهِ وَعِظَامِهِ انْطِقِي فَتَنْطِقُ فَخِذُهُ وَلَحْمُهُ وَعِظَامُهُ بِعَمَلِهِ

او د هغه ورون به ويل وکړي چي ووايه نو د هغه ورون به د هغه غوښه، د هغه هډوکي به د هغه

وَذَلِكَ لِيُعْذِرَ مِنْ نَفْسِهِ وَذَلِكَ الْمُنَافِقُ وَذَلِكَ الَّذِي سَخِطَهُ اللهُ عَلَيْهِ. رواه مسلم. وذكر حديث ابي هريرة يدخل من امتي الجنة في باب التوكل برواية ابن عباس

اعمال ښيي او دا هر څه (يعني سوال او جواب او مهر لګول د جسم د اعضاوو شاهدي به ځکه وي) چي بنده ته يو عذر وړاندي نه سي او دا بنده (د چا چي ذکر کيږي) به منافق وي او دا هغه بنده دی چي پر هغه به الله تعالى په غضب کي وي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۲۷۹، رقم: ۱۶- ۲۹۶۸.

**د لغاتو حل**: ‌فُل: اى فلان. تراس وتربع: اى تكون رئيسا على قومك وتاخذ ربع الغنيمة.

**تشريح**: همدارنګه تاسو به د خپل پروردګار په ليدو کي څه شک او شبه نه کوئ، مطلب دا چي څرنګه تاسو د لمر او سپوږمۍ په ليدو کي څه تکليف نه وينئ همدارنګه به د قيامت په ورځ خپل پروردګار هم بېله تکليفه وينئ، څرګنده دي وي چي لفظ د تضارون د تاء په پېښ او د راء په تشديد سره او د راء د تشديد څخه پرته هم نقل سوی دی او که چيري دغه لفظ د راء په تشديد سره وي نو اصل به يې مضارت وي چي د هغه معنى د ضرر او تاوان ده او که دغه لفظ د راء د تشديد څخه پرته وي نو بيا ددې اصل به ضير وي او معنى ئې هم د ضرر او تاوان ده نو د لفظي ترجمې په اعتبار د لاتضارون معنى به دا وي چي د پروردګار د ديدار په وخت کي به تاسو په خپلو کي د جنګ، مخالفت او موافقت په ذريعه يو بل ته تاوان او تکليف نه رسوئ ځکه چي د هغه ديدار به داسي څرګنده او د هر يوه دپاره عام وي چي هر سړی به يې په اساني او اطمينان سره ويني، ځينو حضراتو دا معنى بيان کړې ده چي د هغه د ديدار په وخت کي به په تاسو کي هيڅوک هم د يو بل دپاره پرده او خنډ نه ياست، په مجمع البحرين کي دا ليکلي دي

چي د تضارون لفظ د مضارت څخه دی او د مضارت معنی د چا د دیدار په وخت کي اجتماع او رش کېدل او د هغه په وجه یو بل ته تکلیف او پریشاني رسول مراد دي همدارنګه قاضي عیاض مالکي ویلي دي چي د مضارت معنی مطابقت یعني په خپلو کي یو بل په تنګولو سره اطلاق د یو داسي شی د لېدو په موقع دي چي بالکل مخصوص او محدود ځای باندي وي او د مجمع په دې وجه هر سړی یې په اساني سره نسي لیدلای نو په دغه صورت کي د لاتضارون مطلب به دا وي چي تاسو به د پروردګار د دېدار په وخت کي د یو بل سره په تنګی کي نه اخته کیږي څرنګه چي په محدود ځای کي د مجمع او رش په وخت د یو شي دلېدو په صورت کي کیږي بلکه څرنګه چي تاسو ټول پر خپل ځای باندي د اطمینان او فراغت سره لمر او سپوږمۍ وینی همدارنګه به د قیامت په ورځ تاسو ټول په خپل ځای په فراغت سره د خپل پروردګار دیدار کوئ.

په یوه روایت کي دغه لفظ د تضارون پر ځای تضامون دی یعني د راء پر ځای میم دی بیا د تضامون لفظ هم په دوه ډوله منقول دی یعني د تاء په پېښ او د میم په تشدید سره هم راغلی دی او د میم د تشدید څخه پرته هم د تشدید په صورت کي دغه لفظ د ضم څخه مشتق دی او پرته د تشدید په صورت کي د ضیم څخه ضم اجتماع او رش معنی کي دی او ضیم د ظلم او زیاتوب په معنی کي دی مګر په دواړو صورتو کي مفهوم هغه دی کوم چي د تضارون په صورت کی دی.

نو زه به هم تا هېر کړم، ددې خلاصه داده چي کله ما ته په دنیا کي خپله په دغه انعامو سره ونازول سم او په تا مي دومره لوی لوی احسانات وکړل نو ستا فرض وو چي تا زما اطاعت او عبادت او زما د احکامو اتباع او پیروي په ذریعه زما شکر ادا کولای او زما د دیدار امید دي درلودلای نو تا ته به مي نور زیات انعامونه او جزا درکړي وای او د دنیا په ډول نن ورځ به هم ته سرلوړی ګړی وای مګر کله چي تا په دنیا کي زما د دغه نعمتونو او احساناتو سربېره زه هېر کړم او زما له خوا غافل سوی وې نو اوس زه هم احسان او ښه چلن کولو سره ستا سره هغه معامله وکړم کوم چي یو غافل او احسان هېرونکي سړي سره کیږي او همدارنګه زه تا د خپل رحمت څخه لیري کوم، څرګنده دي وي چي دغه مضمون په دغه آیت کریمه کي هم بیان سوی دی:

قَالَ كَذَٰلِكَ أَتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا وَكَذَٰلِكَ الْيَوْمَ تُنسَىٰ

ژباړه: الله ﷻ به فرمایي چي همدارنګه تا ته (په دنیا کي) زموږ آیاتونه راغلي وه مګر تا هېر کړل همدارنګه نن (دلته د قیامت په ورځ) موږ تا هېروو.

نو د هغه ورون، د هغه غوښه او د هغه هډوکي ...الخ: په دې اړه دا ښودل ضروري دي چي په قرآن کریم د لاسو، پښو، ژبي او پوست خبري کول او د بنده د اعمالو په اړه شاهدي ورکول

ذکر سوي دي ، حال دا چي دلته د ورون ، غوږني او هډوکي خبري کولو او شاهدي ورکولو یادونه ده نو صحیح خبره داده چي د حدیث ددغه جملې اصل مقصد هم دا بیانول دي چي د بنده ټول اندامونه به د بدن ویونکي سي او د هغه د اعمالو په اړه به شاهدي ورکوي چي په هغو کي لاسونه، پښې او نور هم شامل دي څرنګه چي مخکي د حضرت انس رضي الله عنه په روایت کي تېر سول.

او د حضرت ابوهریره رضي الله عنه د روایت ...الخ: مطلب دادی چي صاحب مصابیح یدخله من امتي ...الخ، حدیث د حضرت ابوهریره رضي الله عنه د روایت څخه دلته په دې باب کي نقل سوی وو مګر صاحب مشکوة دغه حدیث د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه نقل کړی دی او ددې باب پر ځای یې باب التوکل ذکر کړی دی مګر څرګنده دي وي چي دغه حدیث د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه په دغه الفاظو کي منقول دي ، یدخل الجنة من امتی سبعون الفا بغیر حساب هو الذین لایستوفون ولایتطیرون وعلی ربهم یتوکلون، نو صحیح خبره داده چي دلته یدخل من امتي الجنة...الخ، پر ځای داسي ویل سوي دي چي: یدخل الجنة من متي ...الخ.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په امت محمدي کي د بې حسابه جنت ته تلونکو شمېر

﴿۵۳۲۲﴾: عَنْ اَبِيْ اَمَامَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت ابوامامه رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي دي چي فرمایل

وَعَدَنِي رَبِّي أَنْ يُدْخِلَ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي سَبْعِينَ أَلْفًا لَا حِسَابَ عَلَيْهِمْ وَلَا

یې : زما پروردګار زما سره دا وعده کړې ده چي هغه به زما د امت اویا زره کسان په جنت کي داخل کړي چي د هغوئ به نه حساب وي ، نه میزان او نه

عَذَابَ مَعَ كُلِّ أَلْفٍ سَبْعُونَ أَلْفًا وَثَلَاثُ حَثَيَاتٍ مِنْ حَثَيَاتِهِ ربي . رواه احمد والترمذي وابن ماجه.

عذاب ، او په هغوئ کي به په هر زر پسې اویا زره نور او درې لپې د پروردګار هم وي. احمد، ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج** الامام احمد في مسنده ۵\۲۶۸، رقم: ۲۴۳۷، وابن ماجه ۲\۱۴۳۳، رقم: ۴۲۸۶.

**د لغاتو حل** : حثيات: جمع حثية، كناية عن المبالغة والكثرة (د مبالغې او ډېرښت څخه كنايه)

**تشريح**: د حساب او عذاب څخه پرته...الخ: مطلب دادى چې دغه خلكو ته به سخت عذاب نه وركول كيږي، او د هرو زرو سره به اوويا زره...الخ: ددې مطلب دادى چې دغه اويا زره خلك خو به د حساب او عذاب څخه پرته جنت ته ولاړ سي مګر د دوئ څخه هم په هرو زرو كي به نور اوويا زره خلك وي او بيا به الله ﷻ د خپلو درو لوپو په ډكولو سره نور خلك له دوئ سره كړي اوس پاته سوه دا خبره چې د اويا زره څخه څه مراد دى، نو كېداى سي چې دغه خاص شمېر مراد وي يا دا چې د دغه شمېر څخه زياتوب مراد دي او د درو لپو الفاظ هم د زياتوب او مبالغې لپاره وي، نو خلاصه دا سوه چې الله ﷻ به زما د امت دومره زيات خلك چې شمېر يې كيداى نه سي د حساب او عذاب څخه پرته په جنت كي داخل كړي.

## د قيامت په ورځ به د الله ﷻ په عدالت كي درې واره خلك راځي

﴿۵۳۲۳﴾: وَعَنِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

حضرت حسن رضي الله عنه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د

وَسَلَّمَ يُعْرَضُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثَلَاثَ عَرْضَاتٍ فَأَمَّا عَرْضَتَانِ فَجِدَالٌ

قيامت په ورځ به د الله تعالى په حضور كي خلك درې واره وړاندي كړل سي دوه واره خو به مناقشه او عذر وي (يعني يو وار خو به خلك جګړه كوي چې موږ ته احكام نه دي را رسول سوي يا دا چې موږ په احكامو نه يو پوه كړل سوي او په دويم وار به اعتراف پر ګناه وكړي او

وَمَعَاذِيرُ وَأَمَّا الْعَرْضَةُ الثَّالِثَةُ فَعِنْدَ ذٰلِكَ تَطِيرُ الصُّحُفُ فِي الْأَيْدِي فَآخِذٌ

عذر به كوي، او په دريم وار به عمل نامې په لاسونو كي وركړل سي، د ځينو په راسته لاس كي

بِيَمِينِهِ وَآخِذٌ بِشِمَالِهِ. رواه احمد والترمذي و قال لا يصح هذا الحديث من قبل ان الحسن لم يسمع من ابي هريرة و قد رواه بعضهم عن الحسن عن ابي موسى.

به عمل نامه وي او د ځينو په چپه لاس كي، ترمذي وايي دا روايت صحيح نه دى ځكه چې حضرت حسن بصري د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه نه دي اوريدلي، دځينو څخه دا د عن حسن عن ابى موسى په سند سره بيان سوى دى.

**تخريج** : احمد في مسنده ۴\ ۴۱۴، سنن الترمذي ۴\ ۵۳۳، رقم: ۲۴۲۵.

**د لغاتو حل** : معاذير: جمع معذرة، اى يعتذورن (عذورنه كوي)

**تشريح**: دوه ځله به بحث او جرح وي. مطلب دا چي كله خلك په لومړي ځل وړاندي سي نو هغه وخت به هغوئ دخپلو ګناهو او دخپلو بدو عملو اقرار نه كوي او خپل ځان به د عذاب څخه د ساتلو هڅه كوي يعني د الله ﷻ په مخكي به بحث او مباحثه كوي او وايي به چي موږ ته هيڅ نبي ستا احكام نه دي رارسولي او نه موږ ته چا دا ويلي دي چي زموږ كوم عمل صحيح دی او كوم عمل صحيح نه دی، او كله چي موږ ته هدايت را رسېدلی نه دی او زموږ په وړاندي د نيكۍ او بدۍ لاري څرګنده سوي نه دي نو پر موږ دي د بدو عملو او ګناهو سزا ولي عائد كړل سي مګر كله چي الله ﷻ د مختلفو دلائلو او شاهدانو په ذريعه دا ثابته كړي چي هغوئ ته د هدايت پيغام رسېدلی وو او په مختلفو زمانو كي هغه پيغمبرانو او رسولانو د الله ﷻ احكام رسولي وه چي هغوئ يا خو قبول نه كړه يا په هغه يې په صحيح توګه عمل ونه كړ نو په دوهم ځل د وړاندي كېدو په وخت كي به هغوئ دخپلو ګناهو او خپلو بدو عملو اقرار وكړي او بيا به عذر كول پيل كړي د مثال په توګه څوک به وايي چي ما د خطا او سهو له كبله د ګناهو لار اختيار كړې وه او څوک به وايي چي زه د جهالت او غفلت په تيارو كي لوېدلی وم او د هغه په وجه د هدايت پر لار روان نه سوم او څوک به داسي وايي چي زه ستا د رحمت په اميد د غفلت او بې پرواهۍ ښكار وم، خلاصه دا چي هر يو به داسي عذر بيانوي او بيا په دريم ځل چي د خلكو ټول معاملات د هغوئ مخته راسي او دهر يوه د عقيدې او عمل څارنه پوره سي نو بيا به آخري فيصله څرګنده سي او د ټولو مخكي به د اهل هدايت او اهل ضلالت په منځ كي فرق او امتياز بالكل څرګند سي د هغه صورت به دا وي چي كوم خلک د جنت په سعادت سره ونازول سي د هغوئ اعمال نامه به په راسته لاس وي او څوک چي په دوږخ كي اچول كيږي دهغوئ اعمال نامه به په چپه لاس وركړل سي.

ددغه حديث په اړه د ترمذي د وينا خلاصه داده چي د حضرت ابو هريره ﷺ څخه د حضرت حسن بصري رحمة الله عليه حديث اورېدل ثابت نه دي ځكه د حضرت ابو هريره ﷺ څخه د هغه ددغه روايت سند منقطع او غير متصل سو چي د هغه په وجه دغه حديث ته مذكوره سند او روايت سره صحيح نسي ويل كيدای مګر جزري په تصحيح المصابيح كي ويلي دي چي بخاري رحمة الله عليه په خپل صحيح بخاري كي د حضرت حسن بصري رحمة الله عليه داسي درې حديثونه نقل كړي دي كوم

چي حسن بصري رحمة الله عليه د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت کړي دي مګر په صحيح مسلم کي د حسن بصري رحمة الله عليه داسي روايت منقول نه دی چي هغه د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه نقل کړی وي، په هر حال که د جزري څخه قطع نظر وکړل سي نو هم د حديث پرصحيح والي باندي اثر نه لوېږي ځکه چي ځينو محدثينو دغه روايت د حسن بصري څخه او هغه د حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه څخه نقل کړی دی او په دغه طريقه سره ددغه روايت سند به متصل وي چي د هغه څخه داصل حديث صحيح کېدل ثابتېږي ، ځينو حضراتو ويلي دي چي حسن بصري رحمة الله عليه دغه حديث د ډېرو صحابه کرامو لکه حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه ، حضرت انس ابن مالک رضي الله عنه او حضرت ابن عباس رضي الله عنه او داسي نورو څخه روايت کړی دی .

## د الله جل جلاله د نامه برکت

﴿۵۳۲۴﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : د قيامت په ورځ به

اللهَ سَيُخَلِّصُ رَجُلًا مِنْ أُمَّتِي عَلَى رُءُوسِ الْخَلَائِقِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَنْشُرُ عَلَيْهِ

الله تعالی زما د امت څخه يو کس د خلکو په مخ کي را وغواړي او د هغه په مخکي به يو کم سل

تِسْعَةً وَتِسْعِينَ سِجِلًّا كُلُّ سِجِلٍّ مِثْلُ مَدِّ الْبَصَرِ ثُمَّ يَقُولُ أَتُنْكِرُ مِنْ هَذَا شَيْئًا

دفترونه کښېږدي چي په هغه کي به هر دفتر د نظر تر حده پوري وي بيا به د هغه څخه پوښتنه وکړي ايا ته په دې کي د يو خبري څخه انکار کوې،

أَظَلَمَكَ كَتَبَتِي الْحَافِظُونَ فَيَقُولُ لَا يَا رَبِّ فَيَقُولُ أَفَلَكَ عُذْرٌ قَالَ لَا يَا رَبِّ

ايا زما ليکونکو پر تا زياتي کړې ده ؟ هغه کس به عرض وکړي : يا زما ربه بيا به ځيني پوښتنه وکړي ايا ستا يو عذر سته؟ هغه به ووايي يا زما پروردګاره زما هيڅ عذر نسته ،

فَيَقُولُ بَلَى إِنَّ لَكَ عِنْدَنَا حَسَنَةً فَإِنَّهُ لَا ظُلْمَ عَلَيْكَ الْيَوْمَ فَتَخْرُجُ بِطَاقَةٌ فِيهَا

الله تعالی به ورته وفرمايي او زموږ سره ستا يو نيکي سته او نن به پر تا هيڅ زياتي نه کيږي بيا به يو پرزه را وايستل سي چي په هغه کي به

أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ فَيَقُولُ احْضُرْ وَزْنَكَ

(اشهد ان لااله الاالله و ان محمدًا عبده ورسوله) ليكلى وي او الله تعالى به فرمايي داعمالو د وزن په وخت ته پر ميزان حاضر سه ،

فَيَقُولُ يَا رَبِّ مَا هَذِهِ الْبِطَاقَةُ مَعَ هَذِهِ السِّجِلَّاتِ فيقول إِنَّكَ لَا تُظْلَمُ قَالَ

هغه كس به عرض وكړاي ربه ددې پارچې د هغه دفترونو په مقابله كي څه طاقت دى؟ الله پاک به ورته وفرمايي پر تا به ظلم نه كيږي، رسول الله ﷺ وفرمايل :

فَتُوضَعُ السِّجِلَّاتُ فِي كَفَّةٍ وَالْبِطَاقَةُ فِي كَفَّةٍ فَطَاشَتْ السِّجِلَّاتُ وَثَقُلَتْ الْبِطَاقَةُ فَلَا يَثْقُلُ مَعَ اسْمِ اللَّهِ شَيْءٌ. رواه الترمذي وابن ماجة.

هغه دفترونه به د پلې په يوې خوا كي كښېښودل سي او هغه پارچه به د ترازو په بله پله كي كښېښودل سي نو د دفترونو هغه پله به پورته (يعني سپكه) سي او د پارچي هغه پله به درنه سي ، مختصر دا چي هيڅ شى د الله تعالى د نامه څخه دروند نه دى . ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج** : سنن ابن ماجه ۲\ ۱۴۳۰، رقم: ۴۲۷۷، واحمد في مسنده ۴\ ۴۱۴.

**تشريح** : د (سجل) لفظ چي عامه ژباړه يې د ثبت سوي ده او اصل معنى يې د وسيع او ضخيم كتاب ده، او ځينو حضراتو ليكلي دي چي سجل په اصل كي طومار ته وايي يعني د ډېرو كاغذو چي په پيچلو سره پر هغه ليكنه كوي او ځينو ويلي دي چي سجل د ملائكي نوم دى چي د بندګانو اعمال ليكي، په هر حال دلته په حديث كي د سجل څخه مراد هغه كتاب يا ثبت سوى شى يا طومار دى چي په هغه كي د بندګانو اعمال ليكل كيږي .

بيا به يو كاغذ را وكښل سي چي په هغه كي به اشهد ان لااله الاالله وان محمدا عبده ورسوله، ليكل سوى وي په دې كي يو احتمال خو دادى چي دغه كلمه به هغه وي چي هغه په دنيا كي په لومړني ځل د خپلي ژبي څخه ادا كړې وي او دوهم احتمال دادى چي هغه په بل وار دغه كلمه ويلي وي چي د الله ﷻ په دربار كي مقبوله سوې وي او دغه احتمال زيات صحيح معلوميږي .

## د قيامت دوزخي درې واقعې

﴿۵۳۲۵﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا ذَكَرَتْ النَّارَ فَبَكَتْ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دى چي ما ته د دوږخ اور را ياد سو نو زه په ژړا سوم ،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يُبْكِيكِ قَالَتْ ذَكَرْتُ النَّارَ فَبَكَيْتُ فَهَلْ تَذْكُرُونَ أَهْلِيكُمْ

رسول الله ﷺ را څخه پوښتنه وکړه ولي ژاړې؟ ما عرض وکړ د دوږخ اور را ته یاد سو، نو زه په ژړا سوم، ایا د قیامت په ورځ به تاسو خپل اهل او عیال یاد ساتي،

يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَّا فِي ثَلَاثَةِ مَوَاطِنَ فَلَا

رسول الله ﷺ وفرمایل: درې ځایونه داسي دي چي هلته به یو نفر بل نفر نه یادوي یو خو په

يَذْكُرُ أَحَدٌ أَحَدًا عِنْدَ الْمِيزَانِ حَتَّى يَعْلَمَ أَيَخِفُّ مِيزَانُهُ أَوْ يَثْقُلُ وَعِنْدَ

وخت کي د میزان تر څو پوري چي دا معلومه نه سي چي د هغه حساب سپک سو او که درونډ سو، دویم: عمل نامه په لاس کي د ورکولو په وخت کي

الْكِتَابِ حِينَ يُقَالُ هَاؤُمُ اقْرَءُوا كِتَابِيَهْ حَتَّى يَعْلَمَ أَيْنَ يَقَعُ كِتَابُهُ أَفِي

تر څو پوري چي دا معلومه نه سي چي عملنامه په راسته کي ورکړل سوه که په چپه لاس کي یاد

يَمِينِهِ أَمْ فِي شِمَالِهِ أَمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهِ وَعِنْدَ الصِّرَاطِ إِذَا وُضِعَ بَيْنَ ظَهْرَيْ جَهَنَّمَ. رواه ابوداؤد.

شا د لوري، او تر څو چي په راسته لاس کي علمنامه اخیستونکي دا ونه وایي چي راسئ زما عملنامه وګورئ، دریم د پل صراط نژدې هر کله چي پل صراط د جهنم پر شا کښېښودل سي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۱٦، رقم: ۴۷۵۵.

**تشريح**: بي بي عائشي ﷺ ته د رسول الله ﷺ د جواب خلاصه داده چي د قیامت په ورځ به په خاصه توګه درې داسي ځایونه وي چي د هغه هیبت او بیره به یې داسي حیران کړي چي چا ته به د هیچا خبر نه وي او نه به څوک د چا د یادوني او د هغه په حال د خبرېدو وخت تر لاسه کړي، هر څوک به په خپل فکر کي وي او هر وخت به ورسره دا فکر وي چي معلومه نه ده زما به څه حشر سي او زما به څه پای کیږي.

لکه چي مخکي هم وښودل سول او دلته د ژباړي په دوران کي هم څرګنده سوې ده چي کله د هر سړي دا فکر او عقیده او د اعمالو او کړنو شارنه وسي، په میزان کي اعمال نامې وتلل سي

او د الله ﷻ په دربار کي د هر سړي د سعادت او شقاوت فيصله وسي نو د ټولو اعمال نامې به د هغوئ لاسو ته ورسيږي د چا اعمال نامه چي په راسته لاس ورکړل سي نو هغوئ به خلاصون تر لاسه کوونکي وي . او د چا اعمال نامې چي په چپه لاس ورکړل سي نو هغوئ به د عذاب وړ وي ، د خلکو لاسو ته د اعمال نامو د رسېدو صورت به دا وي چي په راسته کي په ورکولو سره به د شا د خوا را وايستل سي او چپه لاس د بغل لاندي څخه په را ايستلو سره شاته بوتلل سي او بيا د شا د خوا په لاسونو کي اعمال نامې به ورکړل سي .

پل صراط به تر وېښته زيات نرى او تر تورى زيات تېره وي ، دا به د جهنم پر شا يعني د هغه پر غاړه قائم کړل سي او بيا هر يوه ته په پر هغه د تېرېدو حکم وکړل سي ، مؤمنان به د خپلو اعمالو او مرتبو په اعتبار پر هغه تېر سي او جنت ته به ورسېږي او کافران چي د عذاب وړ وي د هغه څخه را ايله کيږي او په دوږخ کي به لويږي، عافانا الله الکريم .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د حساب او کتاب بېره

﴿۵۳۲۶﴾ : عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ جَاءَ رَجُلٌ فَقَعَدَ بَيْنَ يَدَيْ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دى چي يو سړى د رسول الله ﷺ مخته کښېنستى او

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ لِي مَمْلُوكِينَ يُكَذِّبُونَنِي وَيَخُونُونَنِي

عرض يې وکړ اې د الله رسوله ! زما سره غلامان دي دوئ ما ته دروا غ وايي ، زما په مال کي خيانت کوي

وَيَعْصُونَنِي وَأَشْتُمُهُمْ وَأَضْرِبُهُمْ فَكَيْفَ أَنَا مِنْهُمْ فقال رسول الله صلى الله

او زما د احکامو نافرماني کوي او زه هغوئ ته د ادب لپاره بد او رد وايم او هغوئ وهم، (د قيامت په ورځ به) د هغوئ په سبب زما څه حال وي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

عليه وسلم من اذا كان يوم القيامة يُحْسَبُ مَا خَانُوكَ وَعَصَوْكَ وَكَذَّبُوكَ

کله چي د قيامت ورځ راسي نو د غلامانو خيانت، نافرماني او درواغ او کومه سزا چي تا هغوئ ته ورکړې وي د هغې حساب به ورکول کيږي ،

وَعِقَابُكَ إِيَّاهُمْ فَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ بِقَدْرِ ذُنُوبِهِمْ كَانَ كَفَافًا لَا لَكَ وَلَا

كه ستا سزا د هغوئ د ګناهونو برابر وي نو معامله به برابر وي او كه ستا سزاګاني د هغوئ د

عَلَيْكَ وَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ دُونَ ذُنُوبِهِمْ كَانَ فَضْلًا لَكَ وَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ

ګناهونو ځخه كمي وي نو د هغوئ د ګناهونو د زياتي په وجه به تا ته اجر ورسيږي او كه ستا

إِيَّاهُمْ فَوْقَ ذُنُوبِهِمْ اقْتُصَّ لَهُمْ مِنْكَ الْفَضْلُ قَالَ فَتَنَحَّى الرَّجُلُ وَجَعَلَ

سزا د هغوئ د جرمونو ځخه زياته وي نو تا ته به د هغه غلامانو لپاره بدله اخيستل كيږي، ددې اوريدو سره هغه سړی

يَهْتِفُ وَ يَبْكِي فَقَالَ له رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَا تَقْرَأُ اقول اللَّهِ

بيل كنبښستی او ژړاوي يې پيل كړې، رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل: ايا تا د الله تعالى دا ارشاد نه دی ويلی:

وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا وَإِنْ كَانَ

(و تضع الموازين القسط ........) (موږ به د قيامت په ورځ د انصاف ترازو ودروو بيا به پر هيچا زياتي نه كيږي كه څه هم د هغه عمل

مِثْقَالَ حبة من خردل اتبنا بها وكفى بنا حاسبين فَقَالَ الرَّجُلُ يَا رَسُولَ

د سپلني د دانې برابر وي موږ به هغه حاضر كړو او موږ حساب كونكي كافي يو)، هغه سړی وويل: اې دالله رسوله!

اللَّهِ وَاللَّهِ مَا أَجِدُ لِي وَلِهَؤُلَاءِ شَيْئًا خَيْرًا مِنْ مُفَارَقَتِهِمْ أُشْهِدُكَ أَنَّهُمْ كُلُّهُمْ أَحْرَارٌ. رواه الترمذي.

زه دغه خپلو غلامانو لپاره تر دې غوره خبره نه وينم چي دوئ آزاد كړم نو تا زه شاهد كوم چي دوئ ټول آزاد دي. ترمذي.

**تخريج** سنن الترمذي ۱۵/۳۰۰، رقم: ۳۱۶۵.

**د لغاتو حل**: اقتص: اي اخذ بمثله.

**تشريح**: زما سره غلامان دي، په دې اړه احتمال دی چې د هغه سړي سره به غلامان او مينځې دواړه وه نو دلته يوازې د غلام ذکر کول تغليبا دي.

کان کفافا، نو ستاسو معامله به برابر برابر وي، په اصل کې کفاف هغه شي ته وايي چې د ضرورت او اړتيا په اندازه وي نو ددغه جملې مطلب دادی که چيري تا هغه غلامانو ته د هغوئ د کوتاهيو په اندازه سزا ورکړې وي نو ستا او د هغه غلامانو معامله به برابر په برابر وي چې د قيامت په ورځ به نه پر هغه غلامانو باندې ستا څه حق واجب وي او نه به پر تا باندې د هغه غلامانو حق وي.

کان فضلا لک، نو هغه به ستا حق وي، فضل په اصل کې هغه شي ته وايي چې د واجب حق څخه زيات وي، نو ددغه جملې مطلب دادی چې ستا هغه غلامانو ته د هغوئ د کوتاهيو څخه کمه سزا ورکول به د قيامت په ورځ ستا په حق کې يوه داسې ښېګڼه وي که ته غواړې نو تا ته به د هغه اجر او انعام تر لاسه سي مګر څرګنده دې وي چې د اجر او انعام څخه مراد ثواب او د درجې لوړوالی دی، نه د نفس فعل جزاء ځکه چې ځيني ښېګڼې يا داسې به ووايو چې ځيني ريښتوني عمل د اجر او ثواب حسن او زياتوب او د درجې لوړوالی په اعتبار خو ګټور وي مګر د نفس د فعل په اعتبار څه نه واجبوي چې هغه عمل اختيارونکی که غوښتونکی وي يا نه وي هغه ته به په هر صورت اجر او ثواب ورکول کيږي نو د هغه سړي خپلو غلامانو ته د هغوئ د کوتاهيو څخه کمه سزا ورکول د هغه د درجو ښېګڼه ده که هغه غواړي نو د هغه ښېګڼه به د هغه په اجر او ثواب کې د ښه والي او زياتوب او د هغه د درجو د لوړوالي سبب وګرځي.

ددغه حديث په ذريعه د بادار او غلام، د مخدوم او خادم يو تر بله تعلق او د هغوئ په منځ کې د معاملاتو په ښه ډول اندازه کيږي چې کوم خلک د خپلو غلامانو او مزدورانو سره د حيوانانو په ډول چلن کوي، د هغوئ پر کوچنيو او معمولي کوتاهيو باندې لوی لوی سزاوې ورکوي او د هغوئ د کمزورۍ څخه ناجائزه ګټه پورته کوي او روحاني تکليف ورکوي، هغوئ په حقيقت کې په خپل حق کې ازغي کري، هغوئ بايد په ياد ولري چې هغه ورځ يقينا راتلونکې ده کله چې د احکم الحاکمين په دربار کې هغوئ ته د خپلو غلامانو او مزدورانو سره د خپل يوه يوه عمل او د يوې يوې زياتونې جواب ورکول وي او د سخت حساب او نيوکې سره به مخامخ سي.

پاته سوه د هغه صحابي خبره چې هغه ددغه حديث په اورېدو سره او د قرآن کريم د آيت په اورېدو سره په خپل حق کې دا غوره وګڼل چې هغه دومره د نياوي تاوان وزغمي او خپل غلامان

ازاد کړي نو د هغه تقوای او د الله ﷻ څخه ېره چي کمال عبدیت دادی چي انسان د هغه شي د سایې څخه هم پرهیز وکړي چي په یوه درجه کي د الله ﷻ د ناراضۍ او د آخرت د تاوان وهم پکښې وي.

## آسان حساب او سخت حساب

﴿۵۳۲۷﴾: وَ عَنْهَا قَالَتْ سَمِعْتُ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي بَعْضِ صَلَاتِهِ اللَّهُمَّ حَاسِبْنِي حِسَابًا يَسِيرًا قَالَ قلت يا نبي الله ما الحساب اليسير قال أَنْ يَنْظُرَ فِي كِتَابِهِ فَيَتَجَاوَزَ عَنْه إِنَّهُ مَنْ نُوقِشَ الْحِسَابَ يَوْمَئِذٍ يَا عَائِشَةُ هَلَكَ. رواه احمد.

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه په یو لمانځه کي واوریدل: اې الله! زما څخه زما د اعمالو حساب اسان واخلې، ما عرض وکړ اې د الله رسوله! آسان حساب څه شی دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: د هغه پر عملنامه به نظر واچول سي بیا به د هغه څخه عفوه وکړل سي، اې عائشې! په دغه ورځ چي د چا پوره حساب وسو او پوره پوره حساب ځیني واخیستل سو نو هغه هلاک سو. احمد.

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۴۸\۶.

**تشریح**: د ځیني لمونځ څخه یا خو دا مراد دی چي رسول الله ﷺ دغه دعاء په لمانځه کي غوښتې وه او هغه د فرض لمانځه څخه یو لمونځ وو یا د نفلو څخه وو، یا دا چي رسول الله ﷺ دغه دعاء د لمانځه په یوه برخه کي یعني د قیام یا رکوع په پیل کي یا په قومه کي یا په سجده کي او یا په قعده کي غوښتې وه.

د رسول الله ﷺ ذکر سوې دعاء غوښتل یا خو د امت د ښوونې لپاره وو چي باید مسلمانان د الله ﷻ څخه د اسانه حساب دعاء وغواړي چي د اصل حساب د سختیو او نیوکي څخه وژغورل سي او پر هغوئ د الله ﷻ فضل او احسان وسي یا دغه دعاء یې د خلکو د غفلت د خوب څخه د وېښېدو لپاره غوښتې وي چي د ارام او اطمینان د څادر په اچولو سره مه بېدېږي، د هغه ورځي فکر وکړئ کله چي د اعمالو سره د الله ﷻ په دربار کي وړاندي کېدل وي که هلته په سخته نیوکه اخته سو است نو بیا الهي عدل به مو په هیڅ حالت کي معاف نه کړي بلکه په

عذاب به مو اخته كړي، نو غوره داده چي د اوس څخه د خپلو اعمالو دنيا ښكلي كړئ ، دومره خو وكړئ چي د يو څه په اخيستلو سره د هغه په دربار كي حاضر سئ او دهغه د فضل او احسان مستحق وګرځئ ، او دا هم ويل كيږي چي پر رسول الله ﷺ باندي د الهي بيري غلبه سوې وي، د قيامت د حالاتو او حساب د هيبت خيال د حيثيت الهي څخه زړه په لړزه سوى وي ځكه رسول الله ﷺ دغه دعاء غوښتل .

د مناقشه معنى په پلټنه سره د حساب اخيستلو ده ، د ذرې ذرې جګړه كول، نو په حساب كي مناقشه كول دادي چي د يوه يوه عمل او د هر عمل د هري برخي پوره پلټنه وكړل سي د هر فعل په ښه ډول معلومات وسي او د ذرې ذرې حساب واخيستل سي ، څرګنده ده چي اصل حساب دادى او په دغه حساب كي هيڅ بنده پوره كامياب كېداى نه سي ، څوك چي په دغه وخت كي د الله ﷻ د فضل او كرم څخه محروم سو او هغه د اسان حساب پر ځاى د سخت حساب سره مخامخ سو نو هغه په عذاب كي د اخته كېدو څخه پرته پاته كېداى نسي .

بنده به خپل عمل نامه ويني...الخ: يعني كوم بندګان چي د الله ﷻ د فضل او كرم په سايه كي وي د هغوئ سره به دحساب صورت دا وي چي دهغوئ په وړاندي به دهغوئ د عمل نامې په خلاصولو سره كنبېنبودل سي او هغه ته به وښودل سي چي وګوره تا دغه فلانى او فلانى ګناه كړې ده نو بنده به په پښيماني او شرمندګى سره د خپلو ګناهو اعتراف او اقرار وكړي، بيا به الله ﷻ د هغه ټول ګناهونه معاف كړي او په خپلي مهربانى سره به د بخښني او مغفرت تحفه وركړي او كه د لفظ ينظر ضمير الله تعالى ته راجع كړل سي نو په هغه صورت كي به دا معنى وي چي الله ﷻ به د هغه عمل نامه يو ځل وګوري او بيا به هغه ته معافي وكړي .

## پر مؤمن باندي د قيامت ورځ اسانه ده

﴿۵۳۲۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّهُ اَتَى رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعيد خدري ﷺ څخه روايت دى چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سوم

فَقَالَ أَخْبِرْنِيْ مَنْ يَّقْوٰى عَلَى الْقِيَامِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِيْ قَالَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ

پوښتنه مي وكړه چي د قيامت ورځ چي د هغې په شان كي الله تعالى دا فرمايي :

يَوْمَ يَقُوْمُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِيْنَ فَقَالَ يُخَفَّفُ عَلَى الْمُؤْمِنِ حَتّٰى يَكُوْنَ عَلَيْهِ

كَالصَّلاَةِ الْمَكْتُوْبَةِ.

(یوم یقوم الناس لرب العالمین) (په کومه ورځ چې خلک د خپل رب په مخکې ودرېږي)، نو ما خبر کړه چې څوک به د الله تعالی په مخکې د درېدو طاقت ولري، رسول الله ﷺ وفرمایل: د قیامت ورځ به پر مؤمن اسانه کړل سي تر دې چې هغه ورځ به د فرض لمانځه برابر کړل سي. بیهقي.

**تخريج**: رواه البیهقي في کتاب البعث والنشور.

**تشريح**: حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه چې د رسول الله ﷺ څخه په پوښتنه کولو سره د قرآن کریم د کومو الفاظو حواله ورکړل هغه په اصل کې د عم پارې د سورة تطفیف (ویل للمطففین) په یو کوچني آیت کې دی، په دغه صورت کې د قیامت د ورځې احوال او د هغه ورځې د اعمالو او د جزاء او سزا ورکولو یادونه ده او هغه ورځ دالله جل جلاله د عدل او انصاف د اظهار ورځ ده، په دغه مناسبت سره په دغه سورت کې په خاصه توګه پر ځینو هغه اعمالو باندې وعید (عذاب) ذکر سوی دی چې د حقوق العباد سره تعلق لري او په ټولنیز ژوند کې ډېر د نفرت وړ ګڼل کیږي، لکه په تللو او اندازه کولو کې کمې کونکې ته په دغه الفاظو کې تهدید سوی دی:

أَلاَ يَظُنُّ أُولَئِكَ أَنَّهُم مَّبْعُوثُونَ ، لِيَوْمٍ عَظِيمٍ ، يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ

ایا دغه خلکو ته (چې په تللو او اندازه کولو کې کمې کوي) دا یقین نسته چې هغوئ به په یوه سخته ورځ کې په ژوندي کولو سره راپاڅول کیږي، په کومه ورځ چې ټول خلک به د پروردګار په مخکې ودرېږي، نو د هغه ورځې څخه بېرېدل پکار دي او د هرې بدۍ څخه پرهیز کول پکار دي چې د هغه سره د بندګانو پر حقوقو باندې اثر لوېږي او خلکو ته تاوان رسیږي او د هغه سره ټولنیز ژوند د اطمینان او باور څخه محروم کیږي لکه په وزن کې کمې کول، نقل سوي دي چې حضرت ابن عمر رضی الله عنه د دغه سورت تلاوت پیل کړ، کله چې د دغه آیت (یوم یقوم الناس لرب العالمین) ته راوسېدی نو د بیرې څخه بې حاله سو او ژړا پر راغلل او بیا داسې یې وژړل چې د هغه څخه وروسته د آیاتونو پر تلاوت جاري ساتلو باندې قادر نه سو.

په هر حال د حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه د سوال خلاصه دا وه چې یو خو د قیامت ورځ خپله په خپل ځان کې ډېره بېره او پریشاني لري او بیا د خپلو اعمالو سره د الله جل جلاله په دربار کې وړاندې کېدل وي، د هغه د عدل او انصاف هیبت د هغه عدالت او د هغه په دربار کې درېدل وي نو رسول الله ﷺ دغه زیری ورکړ چې مسلمانانان باید په هر حال کې مطمئن وي چې هغه ورځ

به د ټولو بيرو او پريشانيو سربېره دهغوئ په اړه يوه اسانه ورځ وي ، هغوئ به د الله ﷻ د رحمت او د هغه د فضل او کرم په سايه کي وي ځکه د قيامت هغه ورځ به په دومره وخت کي تېره سي په څومره وخت کي چي يو سړی فرض لمونځ کوي، په دې اړه بايد دا خبره په ذهن کي وي چي د مسلمان څخه مراد کامل مسلمان دی يعني د عقيدې او فکر په اعتبار صالح ، د اعمالو او کردار پاک او متقي او د الله ﷻ په اطاعت او عبادت کي کامل، همدارنګه د فرض لمانځه د اندازې څخه مراد هغه وخت دی چي په هغه کي فرض لمونځ چي زيات تر زيات څلور رکعته وي، ادا کيږي . يا دا چي د فرض لمونځ ټول وخت مراد دی يعني تر څومره وخت پوري چي د يوه فرض لمانځه ادا کولو وخت وي په هغومره وخت کي به د قيامت يوه ورځ تېره سي، پاته سوه دا خبره چي د مسلمانانو په اړه به د قيامت ورځ په حقيقت کي پر دومره لنډ وخت محيط وي يا دا مراد دی چي هغه ورځ خو به اوږده وي مګر مسلمانانو ته به هغه دومره لږ محسوس سي لکه د يوه فرض لمانځه د وخت په اندازه، نو په دې اړه دغه دوهم اړخ مراد دی يعني هغه ورځ به د دومره اوږدوالي او سختۍ سربېره د مسلمانانو لپاره دومره اسانه سي چي هغوئ ته به هغه ورځ د يوه فرض لمانځه د لنډ وخت په اندازه معلومه سي ، حال دا چي د کافرانو په اړه به ددې برعکس وي نو دا خو په دغه دنيا کي هم په عامه توګه ليدل کيږي چي د وخت او مقدار په اعتبار د شپې او ورځي ګرځېدل د هر سړي لپاره يو ډول وي مګر کوم خلک چي په راحت او خوشحالي کي وي د هغوئ لپاره به د څلېرويشت ساعتو هغه ورځ او شپه د لمحو په اندزه تېرېدل محسوس کيږي ، او کوم خلک چي په تکليفو او سختيو کي اخته وي نو د هغوئ لپاره دغه يوه ورځ د کال برابر معلوميږي، له دې څخه دا هم څرګنده سوه چي د قيامت په ورځ به د مسلمانانو په اړه اسانه او لنډېدل يو ډول نه وي بلکه د هر مسلمان د عقيدې او عمل د مرتبو په اعتبار به بېل بېل نوعيت لري ، څوک چي په دنيا کي د خپلي عقيدې او عمل په اعتبار زيات کامل وي هغه به دغه ورځ او د هغه احوال زيات اسان محسوس کړي او په دنيا کي چي د چا عقيده او عمل څومره زيات کمزوري وي هغه به دغه ورځ هغومره کم اسانه محسوس کوي تر دې چي کفارو ته به هغه ورځ د پنځوس زرو کالو په اندازه معلوميږي.

د قرآن کريم په دغه الفاظو کي دې ته اشاره ده :

تَعْرُجُ الْمَلَائِكَةُ وَالرُّوحُ إِلَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ فَاصْبِرْ صَبْرًا جَمِيلًا إِنَّهُمْ يَرَوْنَهُ بَعِيدًا وَنَرَاهُ قَرِيبًا.

ملائکي او د مؤمنانو روحونه هغه ته خيژي او هغه عذاب به په داسي ورځ وي چي د هغه اندازه به ددنيا د پنځوس زره کالو په اندازه وي او اې پيغمبره! (د کافرانو پر مخالفت) صبر کوه او صبر هم داسي چي په هغه کي د شکايت نوم هم نه وي، دغه کافران به هغه ورځ د بدي عقيدې په وجه د واقع کېدو څخه ليري ګڼي او موږ هغه واقع کېدو ته نژدې وينو .

نو په دغه آيت کي د هغه ورځي څخه مراد د قيامت ورځ ده چي د خپل اوږدوالي او سختۍ په اعتبار به کفارو ته ډېره اوږده معلومېږي او څرنګه چي د مؤمنانو په مرتبو کي د فرق کېدو په وجه په مؤمنانو کي ځينو خلکو ته ډېره اسانه معلومېږي او ځينو ته لږ اسانه معلومېږي په دې اعتبار په دغه آيت کي هغه ورځي ته د زرو کالو په اندازه فرمايل سوي دي ، نو ځينو کافرانو ته د زرو کالو په اندازه او ځينو ته د پنځوس زره کالو په اندازه معلومېږي .

د الله ﷻ ددغه ارشاد څخه هم ددې خبري تائيد کيږي :

فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ فَذَلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ عَلَى الْكَافِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ

بيا کله چي په شپيلۍ کي پوه کړل سي نو هغه ورځ به پر کافرانو باندي يوه سخته ورځ وي چي په هغه کي به يوه ذره اساني نه وي . په نورو الفاظو به ددې مفهوم دا وي چي پر مؤمنانو باندي به ډېره اسانه وي او دهغه اسانه کېدل به د هغوئ د ايمان او عمل په اعتبار فرق ولري .

په هر حال په دغه حديث کي د مسلمانانو لپاره په څرګنده دا لارښوونه ده که چيري هغوئ د قيامت په ورځ په خپل حق کي زياته اساني غواړي نو هغوئ بايد خپل ايمان او عقيده په زيات طاعت او عبادت کي ماموره کړي .

---

﴿۵۳۲۹﴾ : وَعَنْهُ قَالَ سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ څخه د هغه ورځي په اړه پوښتنه وسول چي د هغې اندازه

خَمْسِيْنَ أَلْفَ سَنَةٍ مَا طُوْلُ هٰذَا الْيَوْمِ فَقَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ إِنَّهُ لَيُخَفَّفُ

پنځوس زره کاله وي او د هغې اوږدوالی څه دی (يعني د هغې په اوږدوالي کي به د خلکو څه حال وي؟) رسول الله ﷺ وفرمايل : په هغه ذات مي دي قسم وي چي د هغه په واک کي زما ساه

عَلَى الْمُؤْمِنِ حَتّٰى يَكُوْنَ أَهْوَنَ عَلَيْهِ مِنَ الصَّلَاةِ الْمَكْتُوْبَةِ يُصَلِّيْهَا فِي الدُّنْيَا .

رواهما البيهقي في كتاب البعث والنشور.

ده هغه ورځ به پر مؤمن اسانه کړل سي تر دې چې د مؤمن لپاره به د هغې اوږدوالي د هغه فرض لمانځه په اندازه پاته سي چې هغه په دنیا کي ادا کوی. بیهقي.

**تخريج**: رواه البيهقي في كتاب البعث والنشور.

**تشريح**: دغه حدیث هم د تېر سوي حدیث په ډول دمؤمنانو په حق کي زیری دی که هغوئ د کامل ایمان خاوندان وي او د هغوئ دنیاوي ژوند د اعمال صالحه څخه ډک وي نو هغوئ ته د قیامت د ورځي د اوږدوالي او سختۍ څخه د پریشانه کېدو اړتیا نسته ،هغوئ به د الله ﷻ د بې پایه رحمتونو په سایه کي وي او هغه ورځ به د خپل اوږدوالي او سختۍ سربېره دهغوئ لپاره داسي تېره سي لکه څرنګه چې هغوئ یو فرض لمونځ کړي وي.

## بې حسابه جنت ته تلونکي کسان

﴿۵۳۳۰﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيْدٍ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت اسماء بنت یزید (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

يُحْشَرُ النَّاسُ فِيْ صَعِيْدٍ وَّاحِدٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُنَادِيْ مُنَادٍ فَيَقُوْلُ أَيْنَ

د قیامت په ورځ به خلک په یو میدان کي جمع کړل سي بیا به یو اعلان کونکي اعلان وکړي چي

الَّذِيْنَ كَانَتْ تَتَجَافٰى جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ فَيَقُوْمُوْنَ وَهُمْ قَلِيْلٌ

هغه خلک چیري دي چي د هغوئ اړخونه د بسترو او د خوب د ځایونو څخه بیل وه ، ددې په اورید و سره به خلک د میدان څخه راپاځي .

فَيَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابٍ ثُمَّ يُؤْمَرُ لِسَائِرِ النَّاسِ إِلَى الْحِسَابِ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

او بې حسابه به جنت ته ځي، بیا به پاته خلکو ته د حساب اخیستلو حکم وسي. بیهقي.

**تخريج**: لم نجده في شعب الايمان.

**د لغاتو حل**: صعید : ای مکان (ځای)

**تشریح**: (تتجافی جنوبهم عن المضاجع): چي د هغوئ بغلونه به د بسترو څخه بېل وه، ددې څخه مراد یا خو د الله ﷻ هغه بندګان دي چي د شپې د راحت او سکون خوب پرېښودو سره د خپل خالق په دربار کي حاضر وي او د تهجد لمونځ کوي او دا هم ویل سوي دي چي کیدای سي هغه خلک مراد وي چي صلوة اوابین (د ماښام څخه وروسته شپږ رکعته) لمونځ کوي لږ دا هم کیدای سي چي ددې څخه هغه خلک مراد وي چي د ماخستن او سهار لمونځ کوي، په هر حال د حدیث دد غه الفاظو څخه د قرآن کریم د غه آیاتو ته اشاره مقصد ده چي په هغه کي الله ﷻ د خپل عبادت کونکي او پاک بندګان داسي متعارف کړي دي چي:

إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا الَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِهَا خَرُّوا سُجَّدًا وَسَبَّحُوا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لاَ يَسْتَكْبِرُونَ ، تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ ، فَلاَ تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاء بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ.

ژباړه: نو زموږ په ایاتونو باندي هغه خلک ایمان راوړي چي کله هغوئ ته هغه آیاتونه وریاد کړل سي نو هغوئ پر سجده لوېږي او د خپل رب تسبیح او تحمید کول پیل کړي او هغه خلک (د ایمان راوړلو او د الله ﷻ د احکامو منلو څخه) تکبر نه کوي لکه چي کافران یې کوي او د کبر له موخي د الله ﷻ د حکم منلو څخه انکار کوي او د شپې د هغوئ بغلونه د بسترو څخه بېل وي بلکه هغوئ د خپل رب د ثواب په امید او د عذاب د بیري څخه الله ﷻ یادوي او زموږ ورکړل سوو شیانو څخه مصرف کوي نو هیڅوک خبر نه دی چي د سترګو یخولو کوم کوم سامان دداسي خلکو لپاره د غیب په خزانه کي موجود دی، دا د هغوئ دنیکو اعمالو بدله ده.

نو په دغه آیت کي د هغه صفاتو او ښېګڼو یادونه ده چي د مؤمنانو د ایمان خاصه ده او په هغه کي ځیني صفات خو داسي دي چي پر هغه خپله ایمان موقوف وي او ځیني صفات داسي دي چي پر هغه د ایمان کامل کېدل موقوف دي او د ذکر سوي حدیث څخه څرګنده سوه چي د ایمان او عمل کمال لرونکي بندګان خاص به د قیامت په ورځ د حساب د پړاو څخه خوندي وي او پر هغوئ به هیڅ سختي نه وي او نه به نیوکه ځیني کیږي او هغوئ به د خپل رب د مهربانیو او رحمتونو په سایه کي وي او بې حسابه او بې کتابه به جنت ته ولاړ سي.

(ډېر لږ خلک) په دغه الفاظو کي دې ته اشاره ده چي په دنیا کي د مؤمنانو شمېر تر کافرانو کم دی او د خرابو خلکو په مقابله کي نیک خلک کم وي، نو په آخرت کي هم په هغه ورځ دداسي خلکو شمېر چي د حساب او کتاب څخه پرته په جنت کي داخلیږي او د سعات وړ

وي ، نسبتا کم به وي نو دا خبره د قرآن کریم څخه هم ثابته ده چي اهل حق او نیک خلک تل په اقلیت کي وي او باطل او بدکاره خلک اکثریت وي لکه څنګه چي په یو ځای کي فرمایل سوي دي:

إِلاَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَقَلِيلٌ مَّا هُمْ.

ژباړه: مګر کوم کسان چي ایمان لري او نیک کارونه کوي او داسي خلک ډېر کم دي.
او په بل ځای کي داسي فرمایي :

وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُورُ

ژباړه: او زما په بندګانو کي (د فرمانبردارۍ او عبادت په ذریعه) شکر ادا کونکي کم دي.

ددې څخه څرګنده سوه چي د مؤمنانو او اهل حق کم کېدل او د هغوئ دکمېدو په وجه مختلف ټولنیز او سیاسي تکلیفو کي اخته کېدل او ډول ډول ظلم زغمل د هغوئ لپاره داسي خبره نه ده چي د هغه سره د زړه د تنګۍ او نا امیدۍ ښکار سي بلکه په حقیقت کي د الله ﷻ له خوا د هغوئ لپاره یو سعادت دی او په پای کي د هغه صله هغوئ ته د تل راحتونو او نعمتونو په صورت کي تر لاسه کېدونکي ده ، د الله ﷻ دغه خاص بندګان یعني د ایمان او عمل کمال لرونکي به دحساب او کتاب څخه پرته په جنت کي ځکه داخلیږي چي هغوئ په دنیا کي د هدایت لار اختیار کړه ،د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ د احکامو فرمانبرداري یې وکړه، ددین په لاره کي په استقامت او استقلال سره ولاړل ، دالله ﷻ د رضا لپاره یې د طاعت او عبادت سختۍ وزغملې، ددنیا خوندونه او راحتونه یې پرېښودل او همدارنګه د صبر مقام یې اختیار کړ نو بیا د هغوئ د الله ﷻ په نزد د سعادتونو او بې پایه راحتونو مستحق کېدل دي او داسي خلک په مخاطب کولو سره الله ﷻ په خپل کتاب کي داسي زیری ورکوي چي :

قُلْ يَا عِبَادِ الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا رَبَّكُمْ لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هَذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ وَأَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةٌ إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُم بِغَيْرِ حِسَابٍ

ژباړه: (اې محمد ﷺ!) ته مؤمنانو ته زما له خوا ووایه چي اې زما مؤمنانو بندګانو! تاسو د خپل پروردګار څخه بېره کوئ ، یعني پر فرمانبردارۍ باندي همېشتوب او د ګناهو څخه پرهېز کوئ ، کوم خلک چي په دغه دنیا کي نیکي کوي د هغوئ لپاره نیکه بدله ده او د الله ﷻ مځکه پراخه ده یعني که تاسو ته د دین په لاره کي د خپل وطن پرېښودل واقع سي نو ددې څخه هم مخ مه اړوئ او د هجرت په کولو سره بل ځای ته ولاړ سئ او موږ وعده درسره کوو چي د دین په لاره کي استقلال اختیارونکو ته به د هغوئ بې حسابه بدله تر لاسه کیږي.

# د مېزان او پل صراط په اړه يو څو خبري

د اهل سنتو عقيده ده چي الله ﷻ به د قيامت په ورځ د حشر په ميدان کي ترازو ودروي چي د هغه به دوې پلې وي او يوه څوکه به يې وي او د هغه ترازو په ذريعه به د بندګانو نيک او بد اعمال تلل کيږي، د معتزلوو، مرجيه وو او فارخيه ډلو خلکو د ترازو د وجود څخه انکار کړی دی هغوئ وايي چي د ترازو څخه مراد د عدل ميزان دی، د اعمالو تلل او وزن کول مراد نه دي مګر د قرآن کريم او حديثو له موخي دغه خلک درواغجن دي، خپله الله ﷻ فرمايي :

وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلاَ تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا وَكَفَى بِنَا حَاسِبِينَ.

ژباړه: او هلته به موږ د قيامت په ورځ د عدل دپاره ترازو کښېږدو او د ټولو اعمال به وزن کړو، نو پر چا باندي به هيڅ ظلم نه کيږي که د ذرې په اندازه د چا نيکي وي نو هغه ته به ورکړل سي او موږ د حساب لپاره کافي يو .

يو بل ځای داسي فرمايي :

فَأَمَّا مَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ

ژباړه: بيا د اعمالو د وزن کولو څخه وروسته د کوم چا د ايمان او عمل پله چي درنه سي نو هغه به تل په عيش او راحت کي وي او د کوم چا د ايمان او عمل پله چي سپکه سي نو هغه به دوږخ ته ځي .

نو د عدل تعريف د اظهار عدل دپاره په حقيقت کي په ترازو کي د اعمالو وزن کول مراد دي او علماؤ ليکلي دي چي دغه ترازو به د الله ﷻ په خپل قدرت کي وي ځکه چي د بندګانو حساب الله ﷻ په خپل لاس کي ساتلی دی ، په يوه روايت کي راغلي دي چي د قيامت په ورځ به د الله ﷻ په لاس کي ترازو وي، يوه ډله به الله ﷻ لوړه کړي او يوه به کښته کړي .

ويل کيږي چي د بندګانو نيکۍ به د ذرو او د کوچني مېږيانو برابر وي چي ډېر ښکلي به وي، هغوئ به د نور په پله کي واچول سي ، د الله ﷻ د رحمت سره به دغه پله درنه سي ، د بديو شکل به ډېر خراب وي او هغه د ظلمت په پله کي واچول سي او د الله ﷻ په حکم سره به دغه پله سپکه سي .

د اعمالو په تللو کي د خلکو حال به پر درې ډوله وي، ځيني به هغه وي چي د هغوئ د نيکو اعمالو پله به د بدو اعمالو د پلې په نسبت درنه وي ، داسي خلک به جنت ته ځي ، دوهمه ډله به د هغه خلکو وي چي د هغوئ د نيکو اعمالو په نسبت به د خرابو اعمالو پله درنه وي ، داسي

خلک به دوږخ ته ځي، دريمه ډله به هغه خلک وي چي د هغوئ د نيکو اعمالو او بدو اعمالو دواړي پلې به برابري وي ، داسي خلک به اعراف (د دوږخ او جنت منځته) ته ورسول سي، او بيا به د شفاعت په وجه د سزا څخه مخکي يا د سزا څخه وروسته هغوئ هم په جنت کي داخل کړل سي.

د اهل سنتو په نزد پر پل صراط باندي ايمان راوړل هم واجب دي، دا هغه پل دی چي د دوږخ پر شا به پروت وي چي د وېښته څخه به نری وي او ترا ور به زيات تود او تر توري به زيات تېره وي، د قيامت په ورځ به ټول مخلوق پر دغه پل تيرېږي، څوک چي د جنت وړ وي نو هغه به د خپل ايمان او عمل د مرتبو سره سم په اسانۍ يا پريشانۍ سره پر پل باندي په تېرېدو سره جنت ته ولاړ سي او څوک چي د دوږخ وړ وي ، هغوئ به پر دغه پل باندي په لوېدو سره په دوږخ کي ولوېږي، مؤمنانو ته به د هغوئ د عمل سره سم نور ورکړل سي چي د هغه په رڼا کي به پر هغه پل تيرېږي، په هغوئ کي ځيني به په سپرېدو سره او د ځغاستي په ډول تير سي ، ځيني به د ګونډو په زور او ځيني به د کناټو په زور تېر سي، د پل صراط مسافت د آخرت د کلونو په حساب سره درې زره کاله دی، په يوه روايت کي دا بيان سوي دي چي پر دوږخ باندي اووه پلونه دي او دهر پل په منځ کي د اويا کاله د مسافت فاصله ده ، او هر پل د توري په ډول تېره دی، پر دغه پله باندي تېرېدونکو ډلو کي لومړۍ ډله به د سترګو په رپ تېره سي ، دوهمه ډله به د برېښنا په ډول تېره سي ، دريمه ډله به د تېزي هواء په ډول تېره سي، څلورمه ډله به د مرغانو په ډول په تېزي سره تېره سي او پنځمه ډله به د اسونو د ځغاستي په ډول تېره سي، شپږمه ډله به د ځغاستي په ډول تېره سي ، اومه ډله به د پياده تلونکو په ډول تېره سي، تر دې ټولو وروسته په پای کي به يوه ډله پاته سي کله چي هغوئ ته د تېرېدو لپاره وويل سي نو هغوئ به خپلي پښې پر پل صراط باندي کښېږدي مګر د هغوئ پښې به رپېږي نو هغوئ به د ګونډو په زور ځي، د دوږخ د اور بڅرکي به د هغوئ پښو او پوست ته رسيږي ، بيا به دا خلک د نس په زور تېر سي بيا به د لاسونو په زور پر پل صراط باندي يو ځای سي اور به هم د هغوئ سره يو ځای سي بيا به د اور څخه د خلاصون تر لاسه کولو لپاره د نس په زور را تېر سي تر دې چي د دوږخ څخه به تېر سي، د تېرېدو څخه وروسته د وږخ ته چي وګوري نو وايي به چي کوم الله ﷻ موږ د دغه دوږخ څخه تېر کړو هغه پاک دی بېله شکه هغه په خپل لطف او کرم سره زما پر حال مهرباني وفرمايل، تر ننه پوري د ازل څخه تر پای پوري هغه زما څخه پرته پر بل چا فضل نه دی کړی ما ته يې په خپل فضل سره د پل صراط د لوېدو څخه خلاصون راکړ.

# بَابُ الْحَوْضِ وَالشَّفَاعَةِ

## (د حوض او شفاعت بيان)

**د حوض معنى**: په لغت كي د حوض معنى د اوبو جمع كېدو او بهېدو ده ځكه كومه ناپاكه وينه چي ښځو ته هره مياشت راځي هغه ته حيض وايي او د غه لفظ هم د حوض څخه مشتق دی، دلته د حوض څخه هغه حوض (ويالہ) مراد ده چي د قيامت په ورځ به د رسول الله ﷺ لپاره خاص وي او د هغه صفات او ځانګړتياوي به په دغه باب كي د نقل سوو حديثو څخه څرګند سي. قرطبي رحمة الله عليه ليكلي دي چي د رسول الله ﷺ لپاره به دوه حوضونه وي، يو حوض به د حشر په ميدان كي د پل صراط څخه مخكي وركول كيږي او دوهم حوض به په جنت كي وي او د دواړو نوم به كوثر وي، څرګنده دي وي چي په عربي كي د كوثر معنى د خير كثير يعني ډېر خير او نعمتو ده، نو صحيح داده چي د حشر په ميدان كي كوم حوض وركول كيږي هغه به د مېزان د پړاو څخه مخكي وي نو كوم خلك چي د قبرونو څخه د تندي په حالت كي راوځي لومړی به حوض ته راسي ، ددې وروسته به دميزان پړاو ته وړاندي سي، همدارنګه د حشر په ميدان كي به د هر پيغمبر خپل حوض وي چي هغه ته به د هغه امت راځي ، هغه وخت به ټول پيغمبران په خپلو كي د فخر اظهار كوي، او ګوري به چي د چا حوض ته زيات خلك راځي ، زموږ پيغمبر ﷺ فرمايلي دي: زه اميد لرم چي زما حوض ته به د راتلونكو شمېر تر ټولو زيات وي .

**د شفاعت معنى**: د شفاعت مطلب دادی چي د ګناهونو د بخښني سفارش كول، حضرت محمد ﷺ به د قيامت په ورځ د الله جل جلاله په دربار كي د ګناه كارانو بندګانو د ګناهو او كوتاهيو د بخښني غوښتنه وړاندي كړي ځكه په عامه توګه د شفاعت لفظ ددغه مفهوم لپاره استعماليږي، په اصل كي د شفاعت لفظ د شفع څخه اخيستل سوی دی چي اصل معنى يې د جوړه كولو ، يو شی د بل شي سره يو ځای كولو ده، د وتر په مقابله كي شفع لفظ استعماليږي او هغه په دې اعتبار دی، په مځكي يا سرای كي د همسايتوب په وجه چي د رانيولو حق تر لاسه كيږي هغه ته هم شفعه ددغه معنى په مناسبت ورته ويل كيږي نو په شفاعت كي هم دا معنى په دغه اعتبار موجود ده چي شفاعت كونكی د جرم او ګناه والا د معافی درخواست وړاندي كوي يعني ځان د هغه ګناه كار سره يو ځای كوي .

**د شفاعت ډولونه**: كومو خلكو چي په دغه دنيا كي لوی او كوچني ګناهونه كړي وي، د

هغوئ په حق کي د رسول الله ﷺ د شفاعت قبلېدل او پر دې ايمان راوړل واجب دي، څرګنده دي وي چي د شفاعت مختلف ډولونه دي او هغه ټول ډولونه د رسول الله ﷺ لپاره ثابت دي، په هغو کي ځيني داسي دي چي يوازي د رسول الله ﷺ د ذات مبارک سره مخصوص دي او ځيني داسي دي چي په هغه کي به د نورو سره مشارکت وي مګر د شفاعت دروازه به تر ټولو مخکي رسول الله ﷺ خلاصه کړي ځکه په حقيقت کي ټول شفاعتونه په رد کېدو سره رسول الله ﷺ ته منسوب دي او على الاطلاق د ټولو شفاعتو والي رسول الله ﷺ دی.

د شفاعت تر ټولو لومړی ډول شفاعت عظمى دی، او دا هغه شفاعت دی چي د ټول مخلوق په حق کي به وي او د دغه شفاعت شرف به يوازي زموږ حضرت محمد ﷺ ته تر لاسه وي، په نبيانو کي به هيچا ته د دغه شفاعت جرئت نه وي او د دغه شفاعت عظمى څخه مراد د ټولو محشر خلکو ته راحت ورکول، د وقوف طوالت او شدت ختمول، د حساب او کتاب آخري فيصلې څرګندولو او ټولو خلکو ته د محشر د سختيو څخه د خلاصون ورکولو شفاعت کول دي، د دې تفصيل به د احاديثو څخه معلوم سي، د سنفاعت دوهم ډول هغه دی چي د هغه په ذريعه يوه ډله به بېله حساب او کتاب جنت ته رسول مقصد وي، د رسول الله ﷺ د ذات مبارک لپاره د دغه شفاعت ثبوت هم منقول دی بلکه د ځينو حضراتو په نزد دا شفاعت هم د رسول الله ﷺ د ذات لپاره مخصوص دی، د شفاعت دريم ډول هغه دی چي د هغه په مرسته به د هغه خلکو جنت ته رسول مقصد وي چي د هغوئ په عمل نامه کي ثواب او ګناه برابر وي.

د شفاعت څلورم ډول هغه دی چي د هغه په ذريعه به هغه خلک جنت ته رسول مقصد وي چي د خپلو ګناهو او جرمونو د سزا تر لاسه کولو لپاره د دوږخ مستحق دي، رسول الله ﷺ به د دغه خلکو په حق کي سفارش کوي او هغوئ به په جنت کي داخل کړل سي ، د شفاعت پنځم ډول هغه دی چي د هغه په ذريعه به د خلکو درجې او مرتبې او د هغوئ په اکرام کي پرمختګ او زياتوب کول مقصد وي، د شفاعت شپږم ډول هغه دی چي د هغه ګناه کارو په حق کي به وي چي هغوئ به په دوږخ کي اچول کيږي او هغوئ به د دغه شفاعت وروسته د هغه ځای څخه په را ايستلو سره جنت ته رسول کيږي، د دغه شفاعت حق به مشترکه وي يعني د رسول الله ﷺ څخه پرته نور انبياء، ملائکي او شهيدان به هم په خپل خپل توګه او خپلو خپلو خلکو لپاره د دغه شفاعت کوي، د شفاعت اووم ډول هغه دی چي د هغه په ذريعه به د هغه خلکو په عذاب کي کمي کول مقصد وي چي د تل لپاره په دوږخ کي د عذاب مستحق ګرځول سوي وي ، د شفاعت نهم ډول هغه دی چي د امتياز او اختصاص په توګه به يوازي د هغه خلکو شفاعت کيږي چي

هغوئ د رسول الله ﷺ د روضه اقدس د زیارت شرف تر لاسه کړي وي.
علماؤ ویلي دي چي د شفاعت به ډېر مواقع او محلونه وي، د شفاعت تر ټولو لومړی موقع به هغه وي کله چي خلک د الله جل جلاله په دربار کي د وړاندي کولو لپاره د حشر په میدان کي ودرول سي، هغه وخت به خلک د بیري او شرمندګۍ په خوله کي ډوب وي، پر هر یوه به هیبت او بېره خپره وي هر سړی به د مؤاخذې او عذاب څخه په لړزه وي، نو هغه وخت به شفیع المذنبین ﷺ شفاعت کوي چي خلکو ته اطمینان او راحت تر لاسه سي، او هغوئ په ناسته سره ساه واخلي، بیا کله چي د الله جل جلاله له خوا حکم وسي چي دا ټول دي بوتلل سي او حساب دي ځیني واخیستل سي نو هغه وخت به هم رسول الله ﷺ غوښتنه وکړي چي دوئ دي د حساب څخه مستثنی کړل سي او معاف دي کړل سي او که د ټولو څخه حساب اخیستل ضروري وي نو سرسري حساب دي واخیستل سي او په حساب کي سختي دي نه کیږي ځکه که چیري یو څوک د سخت حساب سره مخامخ سي نو د هغه د عذاب څخه ژغورل به ممکن نه وي، بیا د حساب څخه وروسته چي کوم خلک د عذاب مستحق وګرځول سي هغوئ به دوږخ ته واستول سي نو دا موقع به هم د شفاعت وي تر دې چي هغوئ به دوږخ ته واستول سي نو رسول الله ﷺ به شفاعت کوي او هغوئ به د دوږخ څخه په را ایستلو سره جنت ته ورسول سي، خلاصه دا چي په دغه سختو وختو کي د ډېیل څخه تر پایه پوري به د رسول مختار ﷺ شفاعت او د غفار و کریم پروردګار د رحمت او عفو ډېر امید ساتل پکار دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د حوض کوثر پر دواړو غاړو به د جواهرو ګنبدي وي

﴿۵۳۳۱﴾: عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا اَنَا أَسِيرُ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د معراج په شپه زه ګرځیدم

فِي الْجَنَّةِ إِذَا أَنَا بِنَهرٍ حَافَتَاهُ قِبَابُ الدُّرِّ الْمُجَوَّفِ قُلْتُ مَا هٰذَا يَا جِبْرِيلُ قَالَ

په جنت کي چي زه پر یوې ویالې تیر سوم چي د هغې پر دواړو خواوو د خالي غمیانو دوې ګمبدي وې ما پوښتنه وکړه اې جبرائیل! دا څه دي؟ هغه راته وویل:

هٰذَا الْكَوْثَرُ الَّذِي أَعْطَاكَ رَبُّكَ فَإِذَا طِينُهُ أَوْ طِيبُهُ مِسْكٌ أَذْفَرُ. رواه البخاري.

دا حوض کوثر دی، هغه کوثر چي ستاسو رب تا ته عطا کړی دی، ما ولیدل چي د هغې خاوره تیزه خوشبوداره ده. بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۶۴، رقم: ۶۵۸۱.

**د لغاتو حل**: قباب: جمع قُبة: اي خیم اللؤلؤ (د ملغلرو خېمه). اذفر: اي شدید الرائحة (ډېر بوی لرونکی)

**تشریح**: د غمیانو د گنبدي څخه مراد دادی چي د حوض کوثر پر دواړو غاړو باندي چي کومي گنبدي دي هغه به د خښتو، ډېرو، چونې او خټو په ډول شیانو څخه جوړي سوي نه وي بلکه هره گنبده به په اصل کي یو لوی غمی وي چي د ننه به خالي وي او په هغه کي به د ناستي او اوسېدلو ټولي اسانتیاوي موجود وي.

چي رسول الله ﷺ ته خپل پروردگار ورکړي دي: د دغه جملې په ذریعه دغه آیت کریمه (انا اعطیناک الکوثر) ته اشاره ده چي د هغه په تفسیر کي ډېرو مفسرینو ویلي دي چي په دغه آیت کریمه کي د کوثر څخه مراد خیر کثیر یعني د بې شمېره خیرو او نعمتو زیاتوب دی چي پروردگار رسول الله ﷺ ته ورکړي دي، په دې کي نبوت او رسالت، قرآن کریم او د علم او حکمت نعمتونه هم شامل دي او د امت زیاتوب او د هغه ټول مراتب عالیه هم شامل دي چي په هغه کي یو ډېر لوی نعمت رسول الله ﷺ ته په آخرت کي مقام محمود او د ذکر سوي حوض ورکول دي، په دې اعتبار سره په دې اړه اختلاف نسته چي د کوثر څخه مراد حوض کوثر دی یا د خېر کثیر مراد کېدو په صورت کي د حوض کوثر په شمول ټول نعمتونه او خیرونه پکښې شامل دي، همدارنگه د حضرت جبرائیل علیه السلام د ذکر سوي جواب حاصل دادی چي الله جل جلاله رسول الله ﷺ ته چي کوم کوثر ورکړی دی په هغه کي یو شی دغه حوض کوثر دی ځینو مفسرینو د کوثر څخه مراد د امت علماء اخیستی دی، مگر دا قول هم د خیر کثیر خلاف نه دی ځکه چي دغه دواړه شیان هم په خیر کثیر کي داخل دي.

## د حوض کوثر فضیلت

﴿۵۳۳۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

حَوْضِي مَسِيرَةُ شَهْرٍ و زواياه سواء وَمَاؤُهُ أَبْيَضُ مِنَ اللَّبَنِ وَرِيحُهُ أَطْيَبُ

زما حوض (یعني حوض کوثر) د یوې میاشتي د فاصلې اوږدوالي لري د هغه زاویې

(کونجونه) برابر دي د هغه اوبه تر شیدو زیاتي سپیني دي، خوشبويي يې

مِنْ الْمِسْكِ وَكِيزَانُهُ كَنُجُومِ السَّمَاءِ مَنْ شَرِبَ مِنْهَا فَلَا يَظْمَأُ أَبَدًا. متفق عليه.

د مشکو څخه زیاته ده او د هغه کوزې (گلاسونه) د آسمان د ستورو په ډول دي څوک چي د دغه څخه اوبه وڅښي هغه به بیا هیڅکله نه تږی کیږي، بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۴۷۳، رقم: ۶۵۷۹، ومسلم ۴\ ۱۷۹۳، رقم: ۲۷- ۲۲۹۲.

**د لغاتو حل**: وکیزانه: جمع کوز. (کوزه)

**تشریح**: هغه به هیڅکله نه تږی کیږي، له دې څخه ثرګنده سوه چي په جنت کي به اوبه یا د بل څښناک څښل د تندي په وجه نه وي بلکه د خوند تر لاسه کولو لپاره به وي ځکه چي په جنت کي د یو شي خوړل د لوږي په وجه نه وي بلکه د خوند اخیستلو په وجه وي ځکه چي جنت خو هغه ځای دی چي هلته نه لوږه وي او نه تنده، په قرآن کریم کي دغه حقیقت ته داسي اشاره فرمایل سوې ده:

إِنَّ لَكَ أَلاَّ تَجُوعَ فِيهَا وَلاَ تَعْرَى وَأَنَّكَ لاَ تَظْمَأُ فِيهَا وَلاَ تَضْحَى

یعني دلته په جنت کي ستاسو لپاره (ارام) دی چي نه به وږي کېږئ، نه به لوڅېږئ، بیله شکه تاسو به دلته نه تږي کیږئ او نه به په لمر کي ګرمیږئ.

## د حوض کوثر اوږدوالی او د هغه ځانګړتیا

﴿۵۳۳۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ حَوْضِي

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زما د حوض پراخوالی

أَبْعَدُ مِنْ أَيْلَةَ مِنْ عَدَنٍ لَهُوَ أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ الثَّلْجِ وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ بِاللَّبَنِ

دومره دی لکه څومره چي د مقام ایله او عدن په منځ کي فاصله ده بلکه د دې څخه هم زیات، د دې اوبه تر واوري زیاتي سپیني او تر شاتو زیاتي خوږې دي چي په هغه کي شیدې ګډې سوي

وَلَآنِيَتُهُ أَكْثَرُ مِنْ عَدَدِ النُّجُومِ وَإِنِّي لَأَصُدُّ النَّاسَ عَنْهُ كَمَا يَصُدُّ الرَّجُلُ إِبِلَ

دي او د دې د څښلو لوښي د آسمان د ستورو څخه زیات دي او زه به د غیر امتونو خلک خپل

حوض کوثر ته د راتلو څخه داسي منع کوم لکه څرنګه چي يو سړي د خپلو اوښانو حوض ته د

النَّاسِ عَنْ حَوْضِهِ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَتَعْرِفُنَا يَوْمَئِذٍ قَالَ نَعَمْ لَكُمْ سِيمَا

نورو اوښانو راتلو څخه منع کوي، صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې د الله رسوله ! په دغه ورځ به تاسو موږ پيژنئ ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : هو، ستاسو لپاره به يوه نښه وي

لَيْسَتْ لِأَحَدٍ مِنَ الْأُمَمِ تَرِدُونَ عَلَيَّ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنْ أَثَرِ الْوُضُوءِ. رواه

چي د بل امت لپاره به نه وي ، تاسو به ما ته په داسي حال کي راځي چي ستاسو مخونه او لاسونه او پښې به د اوداسه په وجه روښانه او ځلانده وي،

مسلم وفي رواية له عن انس قَالَ تُرَى فِيهِ أَبَارِيقُ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ كَعَدَدِ

مسلم او د مسلم په يو بل روايت کي د حضرت انس څخه دا الفاظ دي چي د رسول الله ﷺ دا ارشاد وفرمايه چي په حوض کي به د سرو او سپينو زرو لوښي وي دومره لکه څومره چي د

نُجُومِ السَّمَاءِ، وفي اخرى له عن ثوبان قال سُئِلَ عَنْ شَرَابِهِ فَقَالَ أَشَدُّ بَيَاضًا

آسمان ستوري دي او د مسلم په يو بل روايت کي چي د ثوبان څخه نقل دی دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ څخه د حوض کوثر د اوبو په اړه پوښتنه وسول ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل : اوبه

مِنَ اللَّبَنِ وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ يَغُتُّ فِيهِ مِيزَابَانِ يَمُدَّانِهِ مِنَ الْجَنَّةِ أَحَدُهُمَا مِنْ ذَهَبٍ وَالْآخَرُ مِنْ وَرِقٍ .

يې د شيدو څخه زياتي سپيني او د شاتو څخه زياتي خوږې دي هغه ته د اوبو دوې ناوې را بهيږي چي حوض کوثر به د اوبو څخه ډک ساتي او دا اوبه د جنت څخه راځي په هغه کي يوه ناوه د سرو زرو ده او دويمه د سپينو زرو ده .

**تخريج** : صحيح مسلم: ۱\۲۱۷، رقم: ۳۶- ۲۴۷.

**د لغاتو حل** : ايلة: وهي بلدة على السال من آخر بلاد الشام مما يلي بحر اليمن. سيماء: وهو العلامة. محجلين: جمع محجل وهو الذي في يديه ورجليه بياض .

**تشريح** : (ايله) د يو ښار نوم دی چي د شام هيواد يوه ساحلي سيمه ده او نن سبا د اسرائيلو په حدود کي واقع او دهغوئ يو بندرګاه ده چي اوسنی نوم يې ايلات دی، دغه ښار د بحر احمر په

شمال کي واقع دی او د عدن د بحر احمر جنوب سره واقع دی د یو مشهور جزیره نما نوم دی چي یو وخت د یمن یو ښار او د هغه بندرګاه وه ، د رسول الله ﷺ د وینا خلاصه داده چي د ایله او عدن په منځ کي څومره فاصله ده ، هغومره فاصله به زما د حوض د یوه سر څخه تر دوهم سر پوري وي، څرګنده دي وي چي په دې اړه کوم روایات منقول دي په هغو کي رسول الله ﷺ د خپل حوض د دواړو سرونو د درمیانه فاصلې څرګندولو لپاره د ښارونو او سیمي ذکر وکړ، د مثال په توګه په دغه حدیث کي د ایله او عدن په منځ کي ذکر کړی دی حال دا چي په راتلونکي حدیث کي د عدن او عمان په منځ کي ذکر کړی دی همدارنګه په یو بل حدیث کي د صنعاء او مدینې د منځ ذکر دی نو په دغه ټولو حدیثونو کي د مفهوم د مطابقت پیدا کولو لپاره به ویل کیږي چي د ذکر سوو ښارونو درمیاني فاصلو په ذریعه د حوض کوثر دواړو سرونو درمیاني فاصله او د هغه اوږدوالی څرګندول تحدیدا نه دي بلکه د تمثیل په توګه دي ، مطلب دا چي رسول الله ﷺ د ټاکل سوي حد بندي په توګه دا ونه فرمایل چي زما د حوض عرض او طول دومره دی څومره چي د فلاني دوو ښارونو په منځ کي مسافت دی بلکه رسول الله ﷺ په دې اړه چي کوم حدیث وفرمایه او کوم اشخاص چي هغه وخت د رسول الله ﷺ مخاطب وه د هغوئ د پوهي او د هغوئ د ذاتي معلوماتو په لحاظ ساتلو سره د هغوئ په مخکي محض د تمثیل په توګه بیان کړ چي زما د حوض د دواړو سرونو درمیانه فاصله تقریبا دومره ده څومره چي د فلاني دوو ښارونو درمیاني فاصله ده .

## مرتد به د حوض کوثر څخه لیري وي

﴿۵۳۳۴﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زه به

فَرَطكم عَلَى الْحَوْضِ مَنْ مَرَّ عَلَيَّ شَرِبَ وَمَنْ شَرِبَ لَمْ يَظْمَأْ أَبَدًا لَيَرِدَنَّ عَلَيَّ

پر حوض کوثر ستاسو بندوبست کونکی یم ، څوک چي زما په خوا کي تیریږي او به به څښي او څوک چي یې وڅیښي هغه به هیڅکله تږی نه سي البته ما ته به ډیر

أَقْوَامٌ أَعْرِفُهُمْ وَيَعْرِفُونِي ثُمَّ يُحَالُ بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ فَأَقُولُ إِنَّهُمْ مِنِّي فَيُقَالُ

قومونه راځي زه به هغوئ پیژنم او هغوئ به ما پیژني بیا به زما او د هغوئ په منځ کي یو شی

حائل کړل سي زه به وايم دا خلک زما د امت څخه دي يا زما پر طريقه دي ددې په جواب کي به

إِنَّكَ لَا تَدْرِي مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ فَأَقُولُ سُحْقًا سُحْقًا لِمَنْ غَيَّرَ بَعْدِي. متفق عليه

وويل سي تاسو ته معلومه نه ده چي دوئ ستاسو څخه وروسته څه څه نوي خبري پيدا کړي دي (د دې اوريدو سره) به زه وايم دا خلک دي زما څخه ليري سي د الله ﷻ د رحمت څخه دي ليري سي چي زما څخه وروسته يې په دين کي تبديلي کړې ده. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۴۶۴، رقم: ۶۵۸۳، ومسلم ۴\ ۱۷۹۳، رقم: ۲۶- ۲۲۹۰.

**د لغاتو حل**: فرطكم: اى سابقكم ومقدمكم (وړاندي كس)

**تشريح**: په حديث كي چي دكومو خلكو يادونه سوې ده چي هغوئ به حوض كوثر ته راځي مگر هغوئ به له رسول الله ﷺ او حوض كوثر څخه ليري كړل سي د دوئ په اړه دا وضاحت نسته چي هغه به كوم خلك وي په ظاهره دا معلوميږي چي ددې څخه هغه خلك مراد دي چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي مسلمانان سوي وه او تر څو چي رسول الله ﷺ په دغه دنيا كي وو هغوئ مسلمانان وه مگر د رسول الله ﷺ دوفات څخه وروسته هغوئ د مختلفو گمراه كوونكو تحريكونو لكه د مسلمه كذاب د درواغو دعوه نبوت او داسي نورو ښكار كېدو سره د اسلام څخه وگرځېدل او مرتد سول نو دحديث مضمون د تېر باب په باب الحشر كي د څلورم حديث چي د حضرت ابن عباس ﷺ څخه منقول دي، د مضمون په ډول دى چي په هغه كي رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي د قيامت په ورځ به د حشر په ميدان كي زه داسي خلك دوږخ ته تلونكي وينم نو وايم به چي دا خو زما صحابه دي مگر بيا به ما ته وښودل سي چي دا هغه خلك دي چي ستاسو مخكي خو مسلمانان وه مگر ستاسو څخه وروسته د اسلام څخه گرځېدلي وه نو ددغه حديث په ضمن كي چي كومه تشريح او تاويل سوى دى دلته هم هغه په نظر كي ساتل پكار دي.

يو احتمال دا هم كيداى سي چي په دغه حديث كي د ذكر سوو خلكو څخه مراد اهل بدعت دي چي په دين كي نوي نوي خبري راوباسي مگر دا خبره ثابته ده چي ددغه امت هيڅ گناه كار هم كه د هغه گناه څومره لويه وي حوض كوثر ته د راتلو څخه او د هغه اوبو څښلو څخه به نه منع كيږي ځكه دا احتمال رد كيږي مگر كه د بدعت تعلق په دين او ملت كي د يو نوي خبري په پيدا كولو سره وي چي هغه د سره په اصول دين كي نفي كيږي او نبوت او شريعت باندي داسي اثر لويږي چي پر هغه د كفر اطلاق وسي نو ددغه درجې اهل بدعت ته به يقينا مرتد ويل كيږي او هغه خلك ددغه حديث محمول گرځول كيداى سي.

## د شفاعت څخه د ټولو نبيانو انکار

﴿۵۳۳۵﴾: وَعَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُحْبَسُ الْمُؤْمِنُونَ يَوْمَ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مسلمانان به بند کړل سي په ورځ

الْقِيَامَةِ حَتَّى يُهِمُّوا بِذَلِكَ فَيَقُولُونَ لَوِ اسْتَشْفَعْنَا إِلَى رَبِّنَا فَيُرِيحُنَا مِنْ مَكَانِنَا

د قيامت تر دې چي هغوئ به فکر او تردد کي ولويږي او په خپل منځ کي به وايي کاش چي موږ يو څوک د سفارش لپاره تيار کړي چي زموږ رب ته زموږ شفاعت وکړي او موږ د دغه تکليف څخه خلاص کړي،

فَيَأْتُونَ آدَمَ فَيَقُولُونَ أَنْتَ آدَمُ أَبُو النَّاسِ خَلَقَكَ اللّٰهُ بِيَدِهِ وَأَسْكَنَكَ جَنَّتَهُ

هغوئ به (په دغه خيال) آدم عليه السلام ته ورسي ورته و به وايي ته د ټولو خلکو پلار يې الله تعالى ته په خپل لاس سره جوړ کړي يې په خپل جنت کي يې ساتی يې

وَأَسْجَدَ لَكَ مَلَائِكَتَهُ وَعَلَّمَكَ أَسْمَاءَ كُلِّ شَيْءٍ و اشفع لَنَا عِنْدَ رَبِّكَ حَتَّى يُرِيحَنَا

په خپلو ملائکو باندي يې درته سجده کړې ده او د هر شي نومونه يې درته ښودلي دي ته خپل رب ته زموږ سفارش وکړه چي د دغه ځای څخه مو وباسي او راحت او اطمينان راکړي،

مِنْ مَكَانِنَا هَذَا قَالَ فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَيَذْكُرُ خَطِيئَتَهُ الَّتِي أَصَابَ أَكْلَهُ مِنَ

حضرت آدم عليه السلام به ورته وايي څرنګه چي ستاسو خيال دی زه د هغې درجي څخه نه يم (يعني زه د شفاعت درجه نه لرم) بيا به آدم عليه السلام د خپلي هغه خطا ذکر وکړي چي هغه د

الشَّجَرَةِ وَقَدْ نُهِيَ عَنْهَا وَلَكِنِ ائْتُوا نُوحًا أَوَّلَ نَبِيٍّ بَعَثَهُ اللّٰهُ إِلَى أَهْلِ الْأَرْضِ

الله تعالى د منع کړل سوي درختي څخه خوراک کړی وو ليکن تاسو نوح عليه السلام ته ورسئ کوم چي لومړنی نبي دی چي الله تعالى د مځکي خلکو ته ليږلی وو

فَيَأْتُونَ نُوحًا فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَيَذْكُرُ خَطِيئَتَهُ الَّتِي أَصَابَ سُؤَالَهُ رَبَّهُ بِغَيْرِ

نو هغوئ به نوح عليه السلام ته ورسي نوح عليه السلام به ورته وايي زه د شفاعت اهل نه يم او د خپلي هغه خطا ذکر به وکړي چي هغه بې علمه کړې وه (يعني د الله څخه د خپل زوی د غرق

كيدو څخه د ساتني خواست )

عِلْمٍ وَلَكِنْ ائْتُوا إِبْرَاهِيمَ خَلِيلَ الرَّحْمَنِ قَالَ فَيَأْتُونَ إِبْرَاهِيمَ فَيَقُولُ إِنِّي

او بيا به وايي تاسو حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام ته ورسئ، ويلي دي نبي كريم ﷺ چي هغوئ به ابراهيم عليه السلام ته راسي هغه به ورته وايي چي زه

لَسْتُ هُنَاكُمْ وَيَذْكُرُ ثَلَاثَ كذبات كَذَبَهُنَّ وَلَكِنْ ائْتُوا مُوسَى عَبْدًا آتَاهُ اللَّهُ

ددې كار لائق نه يم او په دنيا كي د درې واره درواغ ويلو ذكر به وكړي چي ده ويلي وه ليكن تاسو موسى عليه السلام ته ورسئ هغه د الله تعالى داسي بنده دى چي الله تعالى

التَّوْرَاةَ وَكَلَّمَهُ وَقَرَّبَهُ نَجِيًّا قَالَ فَيَأْتُونَ مُوسَى فَيَقُولُ إِنِّي لَسْتُ هُنَاكُمْ وَيَذْكُرُ

تورات باندي نازل كړى دى او الله تعالى ورسره خبري كړي دي او نژدې كړى يې وو لپاره د خبرو كولو د (راز)، ويلي دي نبي كريم ﷺ چي هغوئ به حضرت موسى عليه السلام ته راسي هغه به ورته وايي زه ددې كار لائق نه يم او د خپلي هغه خطا ذكر به وكړي

خَطِيئَتَهُ الَّتِي أَصَابَ قَتْلَهُ النَّفْسَ وَلَكِنْ ائْتُوا عِيسَى عَبْدَ اللَّهِ وَرَسُولَهُ وَرُوحَ اللَّهِ

چي د قبطي د وژلو په اړه يې كړې وه ، ليكن تاسو حضرت عيسى عليه السلام ته ورسئ چي د الله تعالى بنده او رسول دى د الله تعالى روح دى

وَكَلِمَتَهُ قَالَ فَيَأْتُونَ عِيسَى فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ وَلَكِنْ ائْتُوا مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ

او د الله تعالى كلمه ده نو حضرت عيسى عليه السلام ته به ورسئ، حضرت عيسى عليه السلام به ورته وايي زه ددې كار اهل نه يم تاسو حضرت محمد ﷺ ته ورسئ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدًا غَفَرَ اللَّهُ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ فَيَأْتُونِي فَأَسْتَأْذِنُ

هغه د الله تعالى داسي بنده دى چي د هغه مخكني او وروستني ټول ګناهونه معاف سوي دي، رسول الله ﷺ وفرمايل : بيا به خلک ما ته راسي او زه به د الله تعالى په حضور كي د حاضرۍ

عَلَى رَبِّي فِي دَارِهِ فَيُؤْذَنُ لِي عَلَيْهِ فَإِذَا رَأَيْتُهُ وَقَعْتُ سَاجِدًا فَيَدَعُنِي مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ

اجازه وغواړم ، الله تعالى به ما ته اجازه راكړي زه چي الله تعالى ووينم نو پر سجده به ورته

پريوځم او الله تعالی چې تر څو مره وخته پوري مناسب ګڼي ما به پر سجده لري

يَدَعَنِي فَيَقُولُ ارْفَعْ مُحَمَّدُ وَقُلْ تُسْمَعْ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ وَسَلْ تُعْطَ قَالَ فَأَرْفَعُ

بيا به فرمايي اې محمد ! سر پورته کړه ستا خبره به واوريدل سي او شفاعت کوه شفاعت به دي قبول سي او سوال کوه څه چي ويل غواړې زه به يې درکړم، رسول الله ﷺ وفرمايل ددې اوريدو

رَأْسِي فَأُثْنِي عَلَى رَبِّي بِثَنَاءٍ وَتَحْمِيدٍ يُعَلِّمُنِيهِ ثُمَّ أَشْفَعُ فَيَحُدُّ لِي حَدًّا فَأَخْرُجُ

سره به زه سر پورته کړم او د خپل رب تعريف او ثناء به په هغه الفاظو کي وکړم چي الله تعالی به يې ما ته وښيي بيا به زه شفاعت کوم او زما لپاره به د شفاعت يو حد وټاکل سي بيا د رب العزت

فَأُخْرِجُهُمْ مِنَ النَّارِ وَأُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ ثُمَّ أَعُودُ الثَّانِيَةَ فَأَسْتَأْذِنُ عَلَى رَبِّي فِي دَارِهِ

د درګاه څخه د باندي راوتلو سره به زه هغه خلک (چي د چا په حق کي سفارش قبول سوی وي) د دوږخ څخه د باندي راوباسم او په جنت کي به يې داخل کړم او بيا به د رب العزت په دربار کي د حاضرۍ اجازه وغواړم

فَيُؤْذَنُ لِي عَلَيْهِ فَإِذَا رَأَيْتُهُ وَقَعْتُ سَاجِدًا فَيَدَعُنِي مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَدَعَنِي ثُمَّ

ما ته به اجازه راکړل سي او زه به د پروردګار په ليدو سره پر سجده پريوځم تر څو پوري چي الله تعالی غواړي زه به پر سجده پروت يم بيا به

يَقُولُ ارْفَعْ مُحَمَّدُ وَقُلْ تُسْمَعْ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ وَسَلْ تُعْطَ قَالَ فَأَرْفَعُ رَأْسِي فَأُثْنِي

الله تعالی وفرمايي اې محمد ! خپل سر پورته کړه څه چي ويل غواړې زه به يې واورم، شفاعت کوه زه به يې قبلوم، غواړه زه به يې درکوم نو زه به خپل سر پورته کړم او په هغه الفاظو کي به د

عَلَى رَبِّي بِثَنَاءٍ وَتَحْمِيدٍ يُعَلِّمُنِيهِ قَالَ ثُمَّ أَشْفَعُ فَيَحُدُّ لِي حَدًّا فَأُخْرِجُهُمْ

الله تعالی حمد او ثناء بيان کړم چي الله تعالی به ما ته ښودلي وي، بيا به زه شفاعت کوم او زما لپاره به د شفاعت يو حد وټاکل سي بيا به زه د باندي راووځم هغه خلک به

مِنَ النَّارِ وَأُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ ثُمَّ أَعُودُ الثَّالِثَةَ فَأَسْتَأْذِنُ عَلَى رَبِّي فِي دَارِهِ فَيُؤْذَنُ لِي

د دوږخ څخه راباسم او په جنت کي به يې داخل کړم، بيا به زه په دريم وار د رب العزت په دربار

كي حاضر سم او الله تعالى به ما ته اجازه راكړي

عَلَيْهِ فَإِذَا رَأَيْتُهُ وَقَعْتُ سَاجِدًا فَيَدَعُنِي مَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَدَعَنِي ثُمَّ يَقُولُ ارْفَعْ

هر كله چي زه الله تعالى ووينم نو پر سجده به ورته پريوځم او تر څو پوري چي الله تعالى ته منظوره وي زه به ورته پر سجده پروت يم بيا به الله تعالى وفرمايي اې محمد ! سر پورته كړه

مُحَمَّدُ وَقُلْ تُسْمَعْ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ وَسَلْ تُعْطَهُ قَالَ فَأَرْفَعُ رَأْسِي فَأُثْنِي عَلَى رَبِّي

وايه څه ويل غواړې ، وايه زه به يې واورم ، شفاعت كوه زه به يې قبلوم ، غواړه زه به يې دركوم ، نو زه به خپل سر پورته كړم او په هغه الفاظو كي به د الله تعالى حمد او ثناء وكړم

بِثَنَاءٍ وَتَحْمِيدٍ يُعَلِّمُنِيهِ قَالَ ثُمَّ أَشْفَعُ فَيَحُدُّ لِي حَدًّا فَأَخْرُجُ فَأُخْرِجُهُمْ مِنَ

چي الله تعالى به ما ته ښودلي وي بيا به زه شفاعت كوم او زما لپاره به د شفاعت يو حد وټاكل سي بيا به زه د باندي راووځم هغه خلك به د دوږخ څخه راوباسم

النَّارِ وَأُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ حَتَّى مَا يَبْقَى فِي النَّارِ إِلَّا مَنْ حَبَسَهُ الْقُرْآنُ أَيْ وَجَبَ

او په جنت كي به يې داخل كړم تر دې چي په دوږخ كي به يوازي هغه خلك پاته سي چي د قرآن د

عَلَيْهِ الْخُلُودُ قَالَ ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ عَسَى أَنْ يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَحْمُودًا قَالَ

حكم د مخي به هغوئ همېشه او همېشه په دوږخ كي وي بيا رسول الله ﷺ دغه آيت تلاوت كړ : (عسى ان يبعثك ربک مقاما محمودا) ، (نژدې ده چي ستا رب تا پر مقام محمود ودروي) او رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَهَذَا الْمَقَامُ الْمَحْمُودُ الَّذِي وُعِدَهُ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . متفق عليه.

دا هغه مقام محمود دی چي د هغه وعده الله تعالى ستاسو د نبي سره كړې ده . بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۱۷، رقم: ۶۵۶۵، ومسلم ۱\۱۸۰، رقم: ۳۲۲- ۱۹۳.

**د لغاتو حل** : يهموا : اي يحزنوا (غمجن كيږي).

**تشريح** هغه لومړنى نبي دى چي الله ﷻ .... الخ: دلته دا سوال پيدا كيداى سي چي د حضرت نوح عليه السلام څخه مخكي درې نبيان، حضرت ادم عليه السلام ، حضرت شيث عليه السلام او حضرت ادريس عليه السلام

دنیا ته راغلي دي نو بیا حضرت نوح علیه السلام لومړنی نبي څرنګه سو، ددې څرګنده جواب دادی چي لومړني درې نبیان چي دنیا ته راغلل نو ټوله مځکه یوازي د کافرانو ځای نه وو بلکه په دنیا کي مؤمنان هم موجود وه او دغه درې سره نبیانو مخاطب مؤمنان او کافران دواړه دي، د دوئ پر خلاف کله چي حضرت نوح علیه السلام دنیا ته راغلی نو پر ټوله مځکه باندي یوازي کافران وه او د مؤمنانو وجود نه وو، په دې اعتبار حضرت نوح علیه السلام دنیا ته لومړنی راتلونکی نبي دی چي دهغه واسطه یوازي د کافرانو سره وه، ددغه سوال نور جوابونه هم علماؤ لیکلي دي مګر هغه زیات ټینګ نه دي.

دلته یو خاص نکتې ته اشاره کول ضروري دي دا چي فرمایل سوي دي چي کله ټول خلک په پیل کي حضرت ادم علیه السلام ته او بیا به یو په بل پسې یو یو نبي ته راځي تر دې چي په پای کي به زموږ د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په خدمت کي په حاضرېدو سره د شفاعت غوښتنه کوي او رسول الله صلی الله علیه وسلم به د هغوئ غوښتنه ومني، نو سوال دادی چي کله هر څه د الله جل جلاله له خوا دی چي هغه به د خلکو په زړونو کي د چا شفاعت کونکي ته د ورتلو خیال اچوي او لومړنی خیال به د حضرت ادم علیه السلام په اړه وي چي هغه د خلکو په زړونو کي د رسول الله صلی الله علیه وسلم خیال واچوي او هغوئ به یوه یوه نبي ته د ورتلو پر ځای یوازي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کي ورسیږي نو ددې جواب دادی چي په دغه اوږده عمل کي به د الله جل جلاله یو لوی حکمت پټ وي او هغه دا چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر ټولو افضل کېدل ټول مخلوق ته څرګند سي که داسي وي نو خلک به په لومړي پړاو کي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په رسېدو سره د شفاعت غوښتنه وکړي او رسول الله صلی الله علیه وسلم به د هغوئ شفاعت وکړي نو دا احتمال پاته کیږي چي نورو به هم د شفاعت جرئت کولای او که بل نبي ته هم د شفاعت غوښتنه کېدل نو هغه به هم شفاعت کولای مګر کله چي هغه خلک یوه یوه نبي ته په ورتلو سره هغوئ ته د شفاعت درخواست کوي او هر یو د شفاعت څخه انکار کوي او بیا په پای کي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته غوښتنه کوي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم یې په قبلولو سره د هغوئ مقصد پوره کوي نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر ټولو لوړ مرتبه کېدل او په الهي دربار کي د کمال قرب درلودل په څرګنده ثابتیږي او هر یوه ته به دا څرګند سي چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مرتبې او درجې برابر بل څوک نسته نو ددې څخه ثابته سوه چي زموږ حضرت محمد صلی الله علیه وسلم پر ټول مخلوق تر دې چي پر انسانانو، ملائکو او ټولو نبیانو علیهم السلام باندي فضیلت لري ځکه چي شفاعت دومره ارزښتناکه او د لوی درجې کار دی چي هیڅوک هم د هغه جرئت نه کوي، یوازي رسول الله صلی الله علیه وسلم به یې کوي.

حضرت نوح علیه السلام چي د خپل کومي خطا یادونه وکړل د هغه خلاصه داده چي د نوح علیه السلام پر له

پسې دروا غجن ګڼل او د الله ﷻ د احکامو د نافرمانۍ په سزا کې پر نړېوالو باندې د اوبو عذاب نازل سو او پر ټوله مځکه باندې هلاکونکې اوبه خپرې سوې نو د الله ﷻ په حکم سره حضرت نوح علیه السلام د خپلې کورنۍ او دخپلو منونکو یو مختصر شمېر په یوه کښتۍ کې کښېنوی چې هغوئ ټول د طوفان د هلاکت څخه خوندي سي نو هغه وخت هغه خپل زوی چې د کافرانو ملګری وو راوغوښتی او ورته یې وویل چې ته د کافرانو ملګرتیا پرېږده اوس هم ایمان راوړه او زموږ سره په کښتۍ کې سپور سه خو د هغه زوی ونه منل او په پای کې د نورو ټولو خلکو سره هغه هم په اوبو کې غرق سو ، په دغه وخت کې حضرت نوح علیه السلام د خپل زوی په اړه د غرقېدو څخه د خلاصون دعاء وغوښتل او د الله ﷻ په دربار کې یې داسې عرض وکړ :

رَبِّ إِنَّ ابُنِي مِنْ أَهْلِي وَإِنَّ وَعْدَكَ الحَقُّ وَأَنتَ أَحْكَمُ الْحَاكِمِينَ

ژباړه: اې زما پروردګاره! زما زوی زما د کورنۍ څخه دی (ده ته خلاصون ورکړې) بېله شکه ستا وعده رښتونې ده او ته احکم الحاکمین ذات یې .

الله ﷻ د حضرت نوح علیه السلام دغه غوښتنه چې یو داسې امر وو چې هغه بېله پوهې ظاهر کړی وو او ددې پلټنه یې نه وه کړې چې ما لره د الله ﷻ څخه دا ډول دعاء غوښتل پکار دي که نه، ځکه پر هغه د الله ﷻ له خوا ملامتیا نازله سوه چې اې نوح! زموږ څخه هغه څه مه غواړه چې د هغه د حقیقت علم تا ته نه وي او دهغه په اړه تا ته معلومه نه ده چې هغه شی غوښتل پکار دي که یا . او هغه به په دنیا کې د درې واره درواغ ویلو یادونه وکړي، حضرت ابراهیم علیه السلام چې کومې خبرې په درواغ سره تعبیر کړې په حقیقت کې پر هغو د درواغو اطلاق نه کیږي که څه هم د ظاهري حیثیت په اعتبار د درواغو صورت لري مګر انبیاء چې د کومې لوړې مرتبې خاوندان وي او هغوئ چې څومره لوړ مقام لري د هغه سره سم د هغوئ داسې خبرې هم چې د هغه د مقام څخه کښته وي د الله ﷻ په دربار کې نېوکه پرې کیږي ، ځکه دا ویل سوي دي چې (حسنات الابرابر سیئات المقربین) یعني ځینې خبرې دنیکانو په اړه نیکي ده مګر دمقربینو په اړه بدي وي، پاته سوه دا خبره چې هغه درې خبرې څه وې چې حضرت ابراهیم علیه السلام به یې د درواغو په توګه خطا ښیي نو په هغو کې یوه خبره داده چې یوه ورځ د حضرت ابراهیم علیه السلام قوم د یوې میلې لپاره د ښار څخه دباندې ووتل نو حضرت ابراهیم علیه السلام اراده وکړل چې زه د دغه خلکو سره نه ځم او کله چې دا ټول خلک ولاړ سي نو دهغوئ په نه شتون کې به د هغوئ بتان مات کړم کوم چې هغوئ یې عبادت کوي او زما د وار وار ویلو سربېره د بت پرستۍ څخه نه منع کیږي نو خپل قوم

ته یې وویل که تاسو ځئ نو ولاړ سئ زه ستاسو سره نسم تللای ځکه چي زه ناروغ یم ، څرګنده ده چي هغه په لیدو کي ناروغ نه وو او د هغه دغه وینا چي زه ناروغ یم په ظاهره درواغ ګڼل کیږي مګر که حقیقت ته وکتل سي نو دهغه دغه خبره په درواغو کي نه شمېرل کیږي ځکه چي د هغه په زړه کي داوه چي ستاسو د کفر، شرک او غلطو کړنو په وجه زما زړه زهیر سوی دی او زه ستاسو په غم کي ناروغ یم.

دوهمه خبره داوه چي د قوم د خلکو د میلې څخه د راتلو وروسته حضرت ابراهیم علیه السلام د هغوئ بتان مات کړل او کله چي هغوئ بېرته راغلل نو خپل بتان یې مات ولېدل نو د حضرت ابراهیم علیه السلام دغه جواب هم په خپل ظاهري حیثیت سره درواغ معلومیږي چي دغه کار غټ بت کړی دی مګر دلته هم دا صورت حال دی چي دحضرت ابراهیم علیه السلام ددغه خبري مراد دا وو چي تاسو ددغه غټ بت عبادت او تعظیم کوئ نو دده وجود ددې خبري باعث جوړ سو چي کوچني بتان یې مات کړل ، ددې خبري څخه د حضرت ابراهیم علیه السلام اصل مقصد د هغه خلکو درواغجن ثابتول او دهغوئ شرمنده کول وو چي کوم بت تاسو تر ټولو لوی منئ او تر ټولو زیات د هغه عبادت کوئ د هغه د لاچارۍ دا حالت دی چي دهغه ملګري بتان مات سوي دي مګر هغه هیڅ یو بت ونه ژغوریٔ ، په داسي صورت کي ایا دا بت ستاسو د عبادت وړ ګرځېدای سي ، ددې مثال داسي دي لکه یو سړی چي ډېر زیات ښه لیکونکی وي او د هغه په مقابله کي یو بل سړی ډېر خراب خط لیکي او هغه د خراب خط والا سړی د هغه ښه لیکوال د لیکني په لېدو سره ووایي چي ایا دغه خط تا لیکلی دی او ښه لیکوال ورته وایي چي نه، دا خو تا لیکلی دی، څرګنده ده چي ددغه جواب په ذریعه هغه دا څرګندوي چي ته خو دومره ښه خط هیڅکله نه سې لیکلای بیا دلته زما څخه پرته بل څوک داسي خط لیکلای سي.

دریمه خبره داوه چي هغه خپله ښځه یعني بي بي ساره علیها السلام د یو بدکار کافر دلاسه د ژغورني لپاره ویلي وه چي دغه ښځه زما خور ده ، دا خبره په ظاهره د درواغو په دائره کي راځي مګر که حقیقت ته وکتل سي چي د یو مؤمن یوه مؤمنه ښځه په هر حال دیني خور وي او ددې خبري کولو څخه دحضرت ابراهیم علیه السلام مراد هم دا وو چي دغه ښځه زما دیني خور ده نو پر دې باندي د درواغو اطلاق څرنګه کیدای سي ، دا هم باید په ذهن کي وي چي بي بي ساره علیها السلام ته خور ویل درواغ نه وه.

اوس د حضرت عیسی علیه السلام په لور راسئ، د نورو انبیاوو پر خلاف حضرت عیسی علیه السلام به دشفاعت په اخستلو سره د راتلونکو په وړاندي څه عذر نه بیانوي او نه به دخپلي خطا یادونه

کوي ، ددې وجه علماؤ دا لیکلي ده چي حضرت عیسی علیہ السلام به هغه وخت د خپل یو عذر په بیانولو کي توقف ځکه کوي چي هغه به د هغه عظمت په وجه چي د عیسایانو له خوا هغه ته د الله جل جلالہ د زوی ویلو په صورت کي پر هغه باندي تپل سوی دی ، نو هغه به په دغه درجې سره شرمنده او نادم وي چي هغه به خپل سکوت عذر وګرځوي، په ځینو روایتو کي د هغه عذر هم نقل سوی دی ، په هر حال اصل خبره داده چي د شفاعت درجه به یوازي حضرت محمد ﷺ ته تر لاسه وي چي سیدالمرسلین او امام النبیین دی، د رسول الله ﷺ څخه پرته نور ټول نبیان او رسولان علیهم السلام د شفاعت پر مقام باندي د الله جل جلالہ په دربادر کي د شفاعت کولو څخه عاجزه او قاصر دي، هغوئ ته دغه لوړه درجه او مرتبه نه ده ورکړل سوې نو دشفاعت د غوښتني په اخیستلو د راتلونکو په وړاندي هیڅ عذر بیانولو ضرورت به نه وي که هغوئ ټول په هغوئ کي ځیني نبیان یو عذر بیان کړي نو د هغه تعلق به یوازي په ظاهري توګه د خپل صوابدید څخه وي ځکه په نورو حدیثو کي راغلي دي چي ټول انبیاء به د یو عذر بیانولو څخه پرته یوازي دا وایي چي موږ د دغه لوړ کار اهل نه یو .

چي دهغوئ مخکني او وروستني ګناهونه الله جل جلالہ بخښلي دي: ددغه جملې په اړه دي څرګنده وي چي ټول انبیاء معصوم عن الخطاء یعني دګناهو څخه پاک دي لکه څرنګه چي د رسول الله ﷺ ذات پاک دی، نو دا سوال پیدا کیږي چي د رسول الله ﷺ په اړه دا ویل چي د هغه ټول مخکني او وروستني ګناهونه الله جل جلالہ بخښلي دي، څه معنی لري؟، په دې اړه علماؤ مختلفي خبري کړي دي او ددغه جملې ډېر تایلونه منقول دي مګر زیات صحیح تاویل دادی چي دغه جمله په اصل کي د الله جل جلالہ له خوا د سید المرسلین اکرام او د رسول الله جل جلالہ د فضیلت د اظهار ذریعه ده، قطع نظر ددې څخه چي د رسول الله ﷺ څخه ګناه سوې وي او هغه وبخښل سي، ددې مثال دادی چي کله یو آمر مطلق پاچا خپل خاص مصاحب په هر حال کي خپل مطیع او فرمانبردار وګرځوي او په دې وجه د هغه څخه ډېر زیات خوشحاله وي نو دخپلو نورو مصاحبو او د رعایت د خلکو په منځ کي د هغه خاص مصاحب د امتیازي او خاص حیثیت څرګندولو لپاره هغه ته ووایي چي موږ ته معاف کړلې، که تا هر څه کړي وي او په راتلونکي کي چي ته هر څه کوې د هغه هم در څخه نیو که نسته .

او زه د الله جل جلالہ دربار ته په رسېدو سره د هغه په دربار کي د وړاندي کېدو اجازه غواړم: دغه جمله د حدیث ددغه عبارت ترجمه ده که ددغه عبارت لفظي ترجمه وکړل سي نو هغه به داسي وي چي زه به د خپل پروردګار څخه د هغه په ځای کي دداخلېدو اجازه وغواړم، په دغه

صورت کي به ویل کیږي چي د هغه د ځای څخه مراد هغه له خوا د ورکول کېدونکي اجر او ثواب ځای یعني جنت دی، مګر دا پیچېده دی، زیات واضح تاویل هغه دی چي توربشتي رحمة الله علیه بیا کړی دی، هغه لیکلي دي چي د پروردګار سره د هغه په مکان کي د داخلېدو اجازې غوښتلو څخه مراد دادی چي رسول الله ﷺ به د الله جل جلاله څخه دا اجازه وغواړي چي په هغه مقام کي دداخلېدو اجازه ورکړي، چي هلته هیچا ته د داخلېدو اجازه نه وي، هلته په رسېدو سره چي څه وکړل سي د هغه قبلېدل به یقیني وي او هلته په رسېدو سره د درېدونکي او پروردګار په منځ کي هیڅ حجاب حائل نه وي او دا هغه مقام دی چي په مقام محمود سره تعبیر کیږي او هغه ته مقام شفاعت هم وایي، پاته سوه دا خبره چي پروردګار خو د مکان او لامکان د قید څخه پاک دی، هغه چي هر ځای یاد کړل سي او په کوم ځای کي هغه ته عرض وکړل سي نو هغه هلته موجود دی او هلته اوري اوویني، نو بیا ددې څه ضرورت دی چي رسول الله ﷺ به د حشر په میدان کي چیري چي د خلکو د شفاعت غوښتنه قبلوي هلته په تللو سره هغه خاص مقام ته د وړاندي کېدو اجازه غواړي، او بیا به عرض او معروض کوي،

ددې جواب دادی چي موقف (یعني د حشر میدان چیري چي خلک ولاړ وي) په اصل کي د یو داسي نظام په ډول به وي کوم چي د یو باقاعده او مهذب حکومت لاندي وي چیري چي د هر سړي د مرتبې او درجې سره سم کار او دنظم اعمل اجرا کیږي نو هغه وخت به رسول الله ﷺ د شافع حیثیت لري او د شافع دا حق دی چي هغه د عزت او اکرام ځای ته په راتللو سره ودرېږي نو الله جل جلاله به د رسول الله ﷺ په زړه کي دا خبره واچوي چي هغه دی ددغه ځای څخه په تللو سره چي بېره او خوف پکښې وي، هغه ځای ته راسي چي د رسول الله ﷺ د عزت او اکرام ځای دی چي هلته په اطمینان او ارامه سره عرض او معروض وکړل سي.

او په هغه حمد او ثناء سره چي پروردګار به یې ما ته وښیي...الخ: رسول الله ﷺ دې ته اشاره وفرمایل چي هغه وخت زه کوم الفاظ په کوم طرز د الله جل جلاله د تعریف او توصیف لپاره بیانوم هغه به څه وي دا وخت د هغه علم ما ته هم نسته هغه هر څه به ما ته هغه وخت وښودل سي او څرګنده ده چي د الله جل جلاله حمد او تعریف به په هغه وخت کي او د هغه مقام په مناسبت سره څومره وسعت او ژوروالی لري د هغه ادراک دلته بیانېدلای نسي، په دې اعتبار هغه مقام ته مقام حمد او مقام محمود وایي، د حدیث ددغه برخي څخه دا خبره ثابته سوه چي کوم څوک د چا شفاعت کوي نو هغه باید تر هر څه وړاندي د شفاعت قبلونکي تعریف او توصیف وکړي چي د هغه قرب او توجه تر لاسه کړل سي او په شفاعت منلو سره ونازول سي.

بيا به زه شفاعت كوم : په دې اړه قاضي رحمه الله ليكلي دي چي د حضرت انس رضي الله عنه او حضرت ابوهريره رضي الله عنه په يوه روايت كي دا منقول دي چي رسول الله ﷺ به د سجدې څخه د سر را پورته كولو وروسته د الله جل جلاله بنه حمد او ثناء بيان كړي او بيا د هغه حمد او ثناء وروسته د شفاعت د اجازې په تر لاسه كولو سره د امتي امتي ويل پيل كړي.

او زما لپاره به د شفاعت يو حد وټاكل سي: مطلب دادى چي الله جل جلاله به زما په وړاندې دا وټاكي چي د داسي او داسي ګناه كارو شفاعت وكړه، د مثال په توګه هغه به وفرمايي چي د خپل امت د هغه خلكو شفاعت وكړم كوم چي زنا كار وه ، يا بې لمانځه وه، يا شراب څښونكى وه، نو زه به د ټاكل سوي شفاعت سره سم شفاعت كوم او الله جل جلاله به فرمايي چي ما د زناكارو په اړه ستا شفاعت قبول كړ ، بيا به فرمايي چي ما د بې لمانځو په اړه ستا شفاعت قبول كړ ، پر همدې باندي نوري ډلي هم قياس كېداى سي.

او هغه ډله به د دوږخ څخه په را ايستلو سره په جنت كي داخل كړم: دلته دا سوال پيدا كيږي چي د حديث په پيل كي خو دا ذكر سوي دي چي د شفاعت كونكي به هغه خلك وي كوم چي د حشر په ميدان كي بندي كړل سوي وي او د هغه ځاى د تنګى او سختى څخه په تنګ راتللو سره به د رسول الله ﷺ شفاعت غواړي چي رسول الله ﷺ هغوئ ته د هغه ځاى د پريشانيو څخه خلاصون وركړي مګر دلته د حديث په دغه برخه كي كله چي د الله جل جلاله په دربار كي د رسول الله ﷺ د شفاعت كولو او د رسول الله ﷺ د شفاعت قبلولو يادونه راغلل نو رسول الله ﷺ وفرمايل چي زه به هغه ډله د دوږخ څخه په را ايستلو سره، چي هغوئ به دوږخ ته استول سوي وي ، ددې دوه جوابه دي، يو خو دا چي كيداى سي د مؤمنانو دوې ډلي وي يوه ډله به د حشر په ميدان كي د بندي كولو څخه پرته دوږخ ته واستول سي او دغه ډله به رسول الله ﷺ ته د شفاعت غوښتنه وكړي نو رسول الله ﷺ به د شفاعت په ذريعه هغه ډله د هغه بد حال څخه راوباسي او جنت ته به يې ورسوي او بيا ددې څخه وروسته به رسول الله ﷺ د هغه ډلي په حق كي په ډله ډله كولو سره شفاعت وكړي چي په دوږخ كي به اچول سوي وي او څو واره به هغوئ د دوږخ څخه په را ايستلو سره په جنت كي داخل كړي، ددې جواب خلاصه دا سوه چي رسول الله ﷺ په دغه حديث كي يوازې د دغه ډلي يادونه وكړه او د كلام د اختصار په توګه د دوهمي ډلي يادونه يې حذف كړل ځكه چي دغه ډلي ته د خلاصون وركولو يادونه دوهمي ډلي ته خلاصون وركول په طريقه اولى مفهوم كيږي، دوهم جواب دادى چي په حديث كي د نار، يعني اور لفظ منقول دى چي د هغه ترجمه د دوږخ سوې ده مګر كيداى سي چي د نار يعني اور څخه مراد دوږخ نه وي

بلکه هغه سخت جنس او ګرمي مراد وي چي د حشر په میدان کي لمر ته د ډېر نژدېوالي په وجه
به هلته محسوس کیږي نو ددې څخه مراد د هغه سخت توبښ او ګرمۍ څخه خلکو ته خلاصون
ورکول دي ، په دغه صورت کي دحدیث د عبارت (فاخرجهم من النار وادخلهم الجنة) به دا
مفهوم وي چي زه به د شفاعت قبلېدو څخه وروسته د الله ﷻ د دربار څخه دباندي راووځم او
خلکو ته به د سخت توبښ او ګرمۍ څخه په خلاصون ورکولو سره جنت ته ورسوم،

دغه جواب که څه هم یو داسي وضاحت دی چي پر دې د مجازي طرز اطلاق کېدای سي نو په
دې کي څه شک نسته چي دغه جواب حقیقت ته ډېر نژدې دی او د حدیث اصل موضوع ډېر
مناسب دی ځکه چي په دغه ارشاد کي دکوم شفاعت یادونه کیږي د هغه څخه شفاعت عظمی
مراد دی چي د رسول الله ﷺ د یو ارشاد (ادم ومن دونه تحت لوائي یوم القیامة) په موجب مقام
محمود او لوائي ممدود سره تعبیر کیږي او ددې شفاعت عظمی اصل مقصد ټول مخلوق ته د
حشر دمیدان د پریشانیو او سختیو څخه خلاصون ورکول دي چیري چي هغوئ به د حساب په
انتظار کي ولاړ وي او د هغوئ حساب ژر کول وي او دا هغه شفاعت دی چي یوازي د رسول الله
ﷺ لپاره مخصوص دی ، ددې څخه وروسته به بیا خپله رسول الله ﷺ ، نور انبیاء، اولیاء،
علماء، صلحاء، شهیدان، او فقیرانو له خوا زیات شفاعتونه وي چي دهغو تفصیل د باب په پیل
کي بیان سوی دی.

دا هغه مقام محمو دی ...الخ: مطلب دا چي الله ﷻ د قرآن کریم په دغه آیت کي د رسول
الله ﷺ لپاره چي دکوم مقام محمود وعده کړې ده هغه ددغه شفاعت عظمی ځای دی چي د
رسول الله ﷺ څخه پرته بل هیچا ته نه ورکول کیږي.

څرګنده دي وي چي ددغه مقام صفت د محمود په لفظ سره یا خو په دې اعتبار دی چي پر
دغه مقام باندي درېدونکی به د هغه تعریف کوي او هغه به پېژني، یا په دې اعتبار دی چي
رسول الله ﷺ پر دغه ځای باندي په درېدو سره د الله ﷻ حمد او ثناء بیان کړي ، یا په دې اعتبار
دی چي د هغه ځای د ورکول کېدو په وجه د رسول الله ﷺ تعریف او توصیف به د ټول اولین او
آخرین مخلوق په ژبه وي.

## د رسول الله ﷺ شفاعت

﴿۵۳۳۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي د قیامت ورځ سي

مَاجَ النَّاسُ بَعْضُهُمْ فِي بَعْضٍ فَيَأْتُونَ آدَمَ فَيَقُولُونَ اشْفَعْ إِلَى رَبِّكَ فَيَقُولُ

خلک به پریشان وي او د آدم علیه السلام په خدمت کي به حاضر سي عرض به وکړي چي خپل رب ته زموږ سفارش وکړه هغه به ورته وایي

لَسْتُ لَهَا وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِإِبْرَاهِيمَ فَإِنَّهُ خَلِيلُ الرَّحْمَنِ فَيَأْتُونَ إِبْرَاهِيمَ فَيَقُولُ

زه د شفاعت اهل نه یم تاسو ابراهیم علیه السلام ته ورسئ هغه د الله تعالی دوست دی هغوئ به ابراهیم علیه السلام ته ورسي هغه به ورته وایي

لَسْتُ لَهَا وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِمُوسَى فَإِنَّهُ كَلِيمُ اللهِ فَيَأْتُونَ مُوسَى فَيَقُولُ لَسْتُ لَهَا

په ما کي د شفاعت لیاقت او قدرت نه سته تاسو موسی علیه السلام ته ورسئ هغه کلیم الله دی هغوئ به موسی علیه السلام ته ورسي هغه به ورته وایي زه د شفاعت اهل نه یم

وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِعِيسَى فَإِنَّهُ رُوحُ اللهِ وَكَلِمَتُهُ فَيَأْتُونَ عِيسَى فَيَقُولُ لَسْتُ لَهَا

تاسو عیسی علیه السلام ته ورسئ هغه د الله تعالی روح او کلمه ده ، هغوئ به حضرت عیسی علیه السلام ته ورسي هغه به ورته وایي زه د شفاعت اهل نه یم

وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَأْتُونِي فَأَقُولُ أَنَا لَهَا فَأَسْتَأْذِنُ عَلَى

تاسو حضرت محمد ﷺ ته ورسئ ، رسول الله ﷺ فرمایي بیا به هغوئ ما ته راسي زه به ورته وایم زه د شفاعت اهل یم او ستاسو سفارش به کوم بیا به زه د الله تعالی په حضور کي د حاضری

رَبِّي فَيُؤْذَنُ لِي وَيُلْهِمُنِي مَحَامِدَ أَحْمَدُهُ بِهَا لَا تَحْضُرُنِي الْآنَ فَأَحْمَدُهُ بِتِلْكَ

اجازه وغوارم ، الله تعالی به ما ته اجازه راکړي او زما په زړه کي به د خپل حمد او ثناء الفاظ واچوي چي هغه حمد و نه اوس ما ته حاضر نه دي چي زه به په هغه الفاظو سره د الله تعالی حمد

الْمَحَامِدِ وَأَخِرُّ لَهُ سَاجِدًا فيقال يَا مُحَمَّدُ ارْفَعْ رَأْسَكَ وَقُلْ تُسْمَعْ وَسَلْ تعطه

او ثناء وکړم او الله تعالی ته به پر سجده پریوځم ، بیا به ما ته وویل سي ای محمد ! خپل سر پورته کړه وو وایه څه چي ویل غواړې زه به یې واورم، وغواړه څه چي غواړې در به کول سي ،

وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ فَأَقُولُ يَا رَبِّ أُمَّتِي أُمَّتِي فَيقال انْطَلِقْ فَأَخْرِجْ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ

شفاعت کوه شفاعت به دي قبول سي ، زه به وايم اې ربه ! زما امت وبخښې ، پروردګاره ! زما امت وبخښې ، الله تعالی به فرمايي ورسه او د دوږخ څخه هغه خلک راوباسه چې د هغوئ په

مِثْقَالُ شَعِيرَةٍ مِنْ إِيمَانٍ فَأَنْطَلِقُ فَأَفْعَلُ ثُمَّ أَعُودُ فَأَحْمَدُهُ بِتِلْكَ الْمَحَامِدِ ثُمَّ

زړه کې د اوربشي په اندازه هم ايمان وي ، زه به ولاړ سم او د رب د حکم سره سم به عمل وکړم ددې څخه وروسته به درب العزت په دربار کې دويم وار حاضري وکړم او هغه الفاظو کې به د

أَخِرُّ لَهُ سَاجِدًا فَيُقَالُ يَا مُحَمَّدُ ارْفَعْ رَأْسَكَ وَقُلْ تُسْمَعْ وَسَلْ تُعْطَه وَاشْفَعْ

الله تعالی حمد او ثناء وکړم چې الله تعالی به يې ما ته وښيي بيا به زه الله تعالی ته پر سجده پريوځم او وه به ويل سي اې محمد ! خپل سر پورته کړه وايه څه چې ويل غواړې اوريدل به سي ، غواړه څه چې غوښتل غواړې در به کړل سي ، شفاعت کوه

تُشَفَّعْ فَأَقُولُ يَا رَبِّ أُمَّتِي أُمَّتِي فَيقال انْطَلِقْ فَأَخْرِجْ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ

ستا شفاعت به قبول سي ، زه به عرض وکړم اې ربه ! زه د خپل امت شفاعت کوم زه د خپل امت شفاعت کوم ، وه به ويل سي ولاړ سه او د چا په زړه کې چې د ذرې په اندازه يا د سپلنې د دانې

ذَرَّةٍ أَوْ خَرْدَلَةٍ مِنْ إِيمَانٍ فَأَنْطَلِقُ فَأَفْعَلُ ثُمَّ أَعُودُ فَأَحْمَدُهُ بِتِلْكَ الْمَحَامِدِ ثُمَّ

په اندازه هم ايمان وي هغه د دوږخ څخه راوباسه ، نو زه به ولاړ سم او د الله تعالی د حکم سره سم به عمل وکړم بيا به راسم او د خدای ﷻ حمد به په هغسې طريقه ووايم چې خدای ﷻ ما ته

أَخِرُّ لَهُ سَاجِدًا فَيقال يَا مُحَمَّدُ ارْفَعْ رَأْسَكَ وَقُلْ تُسْمَعْ وَسَلْ تُعْطَه وَاشْفَعْ

ښودلی وي بيا به خدای ﷻ ته پر سجده پريوځم نو وه به ويل سي اې محمد ﷺ ! سر را پورته کړه او ووايه اورېدل کيږي به او سوال کوه درکول کيږي به او شفاعت کوه

تُشَفَّعْ فَأَقُولُ يَا رَبِّ أُمَّتِي أُمَّتِي فَيقال انْطَلِقْ فَأَخْرِجْ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ أَدْنَى أَدْنَى

قبلول کيږي به نو زه محمد ﷺ به ووايم اې زما ربه ! زما امت وبخښه زما امت و بخښه نو راته وه به ويل سي ولاړ سه او هغه څوک راوباسه چې په زړه کې يې د ادنی ادنی ادنی

أَدْنَى مِثْقَالِ حَبَّةِ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ فَأَخْرِجْهُ مِنَ النَّارِ فَأَنْطَلِقُ فَأَفْعَلُ ثُمَّ أَعُودُ

د سپلني د دانې په اندازه ايمان وي نو زه به ولاړ سم دا كار به وكړم د دې څخه وروسته به بيا زه
څلورم وار د رب العزت په حضور كي اجازه وغواړم،

الرَّابِعَةَ فَأَحْمَدُهُ بِتِلْكَ الْمَحَامِدِ ثُمَّ أَخِرُّ لَهُ سَاجِدًا فَيُقَالُ يَا مُحَمَّدُ ارْفَعْ رَأْسَكَ

د الله تعالى په حضور كي د حاضريدو سره به په هغه الفاظو كي د الله تعالى حمد او ثناء بيان
كړم كوم چي راته الله تعالى وښيي، بيا به ورته پر سجده پريوځم نو وه به ويل سي اې محمد!
خپل سر پورته كړه

وَقُلْ تُسْمَعْ وَسَلْ تُعْطَهْ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ فَأَقُولُ يَا رَبِّ ائْذَنْ لِي فِيمَنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا

ووايه څه چي ويل غواړې وا به وريدل سي، غواړه در به كړل سي، شفاعت كوه قبول به سي، زه
به عرض وكړم اې ربه! د هغه خلكو د دوږخ څخه په ايستلو اجازه راته راكړه چا چي لااله الاالله

اللّٰهُ قَالَ لَيْسَ ذَالِكَ لَكَ وَلَكِنْ وَعِزَّتِي وَجَلَالِي وَكِبْرِيَائِي وَعَظَمَتِي لَأُخْرِجَنَّ مِنْهَا
مَنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ. متفق عليه.

ويلي وي (او هيڅ عمل يې نه وي كړى) الله تعالى به فرمايي د دغه خلكو سفارش ستا حق نه
دى زما دي په خپل عزت، جلال، ذاتي او صفاتي عظمت قسم وي هغه خلک به زه د دوږخ څخه
راوباسم چا چي لااله الاالله ويلي وي. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۴۷۳، رقم: ۷۵۱۰، ومسلم ۱\۱۸۲، رقم: ۳۲۶-۱۹۳.

**تشريح** د چا په زړه كي چي د اوربشي په اندازه ايمان وي: څرګنده دي وي چي د دغه ډول
جملو يعني د اوربشي په اندازه ايمان وي، يا د ذرې په اندازه ايمان وي، د دغه الفاظو د تشريح
او تاويل په اړه د علماؤ مختلف قولونه دي او دغه اختلاف پر اقوالو مبني دى چي د اصل
ايمان د بحث په اړه د هغوئ په منځ كي تر لاسه كيږي، دا يو اوږد بحث دى او په كتاب الايمان
او نورو ځايو كي تېر سوي دي، دلته يوازي دا ښودل ضروري دي چي په ذكر سوي جمله كي
كوم شي ته د اوربشي يا د ذرې په اندازه فرمايل سوي دي د هغه څخه حقيقي ايمان مراد نه دى
بلكه د خپل ډول خير او ښېګڼې هغه شى مراد دى چي د ايمان د ثمراتو او نتائجو او عرفان د نور

ځخه په زړه کي پیدا کیږي ، پر دغه شي د حقیقي ایمان اطلاق ځکه نه سي کیدای چي اصل ایمان د تصدیق قلبي او همدارنګه د اقرار لساني نوم دی ، یو داسي جوهر دی چي هغه په اجزاؤ او برخو کي ویشل کېدای نه سي او نه پر هغه د کمي او زیاتوب اجراء کېدای سي، مطلب دا سو چي اصل ایمان د تصدیق قلبي نه خو کمیږي او نه زیاتیږي او نه هغه پر ټاکلو برخه ویشل کیږي، نو کوم علماء چي وایي چي ایمان کمیږي او زیاتیږي او په هغه کي د کمي او زیاتوب اطلاق کېدای سي که د هغوئ دغه قول د ښه او خرابو اعمالو په اعتبار د ایمان په ثمرانو او درجو کي پر کمي او زیاتوب باندي محمول کړي نو په دغه صورت کي به ځرګنده سي چي په ذکر سوې مسئله سره د متعلق علماؤ په منځ کي څه اختلاف نسته بلکه د هغوئ اختلافي اقوال محض لفظي اختلاف او صوري نزاع ده .

د چا په زړه کي چي د ذرې په اندازه ایمان هم وي، دا په اصل کي د الله ﷻ له طرفه د ډېر فضل او کرم اظهار دی چي هغه سړی هم د دوږخ ځخه راوباسي چي د ادنا ځخه ادنا درجې مؤمن وي،

چا چي لااله الاالله ، وویل، مطلب دا چي زه د هغه خلکو هم شفاعت کول غواړم چي د هغوئ په عمل نامه کي د دغه کلمې ځخه پرته نور هیڅ نیکي نه وي او د ملا علي قاري رحمه الله د وضاحت سره سم که څه هم هغوئ د خپل ایمان په حالت کي یاد ایمان راوړلو ځخه وروسته په خپل ټول ژوند کي کلمه طیبه یوازي یو وار په ژبه سره ادا کړې وي ، خلاصه دا چي رسول الله ﷺ به په آخري ځل د کومو خلکو شفاعت کوي هغوئ به د دغه درجې مؤمنان وي چي د هغوئ په عمل نامه کي به هیڅ نیکي او ښه کار نه وي، پرته د دې ځخه چي هغه به په خپل ټول ژوند کي کله نا کله د خپلي ژبي ځخه کلمه طیبه ادا کړې وي، بلکه ځیني به داسي هم وي چي د هغوئ پر ژبه به په ټول عمر کي یوازي یو وار دغه کلمه راغلې وي او د هغوئ په اړه به دا شفاعت هم رسول الله ﷺ په دې امید کوي چي په ژبه سره د لااله الاالله ، ویل هم په هر حال یوه نیکي ده او الله ﷻ هیڅ نیکي که څه هم کوچنی او د کمي درجې وي، نه ضائع کوي، بلکه په پیل یا په آخر کي د هغه اجر ضرور ورکوي ځرنګه چي په یو حدیث کي داسي فرمایل سوي دي چي: من قال لااله الاالله دخل الجنة، یعني چا چي لا اله الاالله وویل هغه به جنت ته ځي ، طیبي رحمه الله ویلي دي : دې ځخه دا خبره هم ثابتیږي چي په دغه حدیث کي د اوربشو د دانې او داسي نورو اندازو په ذریعه کوم شي ته چي اشاره سوې ده د دې ځخه هغه اصل ایمان مراد نه دی کوم چي په تصدیق قلبي سره تعبیر کیږي بلکه د هغه ایمان ځخه پرته بل څه مراد دی او هغه د نیکۍ او خیر

هغه شی دی چي د ایمان د ثمرې په توګه په زړه کي پیدا کیږي.

نه، ددې ستا سره هیڅ تعلق نسته...الخ: ددې یو مطلب دا کیدای سي چي د کوم چا په عمل نامه کي د لااله الاالله، ویلو څخه پرته بله هیڅ نیکي نه وي د هغه د دوږخ څخه د ایستلو د شفاعت حق که څه هم رسول الله ﷺ ته حاصل وي او رسول الله ﷺ په شوق سره د داسي سړي شفاعت هم وکړي، موږ به هغه قبول کړو، مګر حقیقت دادی چي د هغه د دوږخ څخه ایستل د رسول الله ﷺ پر ذمه نه دي، او دوهم مطلب دادی چي بېله شکه موږ به هغه سړی هم د دوږخ څخه راوباسو نو داسي به موږ د شفاعت په وجه نه کوو بلکه په دې وجه به یې کوو چي دخپل فضل او کرم ظاهرولو لپاره موږ د هغه د دوږخ څخه را ایستل خوښوو، ددې څخه دا څرګنده سوه چي د هغه مؤمن د دوږخ څخه د را ایستلو معامله چي هغه په خپل ټول عمر کي هیڅ نیکي هم نه ده کړې د شفاعت د دائرې څخه به وتلی وي بلکه هغه به محض د الله ﷻ په فضل او کرم سره متعلق وي، په دغه صورت کي دا سوال پیدا کیدای سي چي مخکي د حضرت ابوهریره رضي الله عنه کوم روایت: (اسعد الناس ...الخ) راغي، نو دهغه څه مفهوم دی، او د ذکر سوي مراد اخیستلو په صورت کي ددغه روایت او ددغه حدیث په منځ کي تطبیق به څه وي؟ ددې جواب دادی که دلته لومړی مطلب واخیستل سي نو د دواړو روایتو په منځ کي به اختلاف پاته نسي ځکه چي ذکر سوی سړی به الله ﷻ د رسول الله ﷺ د شفاعت په سبب د دوږخ څخه راوباسي او که دوهم مطلب واخیستل سي نو بیا به دا ویل کیږي چي دلته په حدیث کي کوم سړي چي لااله الاالله، ویلي وي، ددې څخه مراد هغه خلک دي چي پر خپل نبي باندي خو ایمان راوړی وو مګر د خیر کارونه یې نه کول او د خپلو بدو عملو په وجه د دوږخ مستحق ګرځول سوی وي او په راتلونکي د حضرت ابوهریره رضي الله عنه په روایت کي د رسول الله ﷺ د امت څخه هغه خلک مراد دي چي د هغوئ خپل نیک اعمال د خپلو بدو اعمالو سره داسي ګډ وډ کړي وي چي د هغوئ نیکۍ سپکي او بدۍ یې درنې سوي وي او هغوئ د دوږخ مستحق ګرځول سوي وي.

**خوشبخته سړی**

﴿۵۳۳۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ خَالِصًا مِنْ قَلْبِهِ أَوْ نَفْسِهِ. رواه البخاري.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به چي زه د کومو خلکو شفاعت کوم په هغوئ کي به زيات بختور هغه څوک وي چي هغه په صفا زړه سره لااله الاالله ويلي وي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\١٩٣، رقم: ٩٩.

**تشريح**: په (من قلبه او من نفسه) کي د او حرف په ذريعه راوي دخپل شک اظهار کړی دی چي رسول الله ﷺ دلته د من قلبه الفاظ وفرمايل او که د نفسه، په هر حال د دواړو معنی يوه ده ځکه چي د نفس څخه مراد هم زړه دی او خالصا من قلبه، ترکيب تائيدي دي ځکه چي دخلوص ځای زړه دی نه نور څه، او په دې اعتبار د زړه د کومي دوهم نوم خلوص دی نو خلوص ته د زړه د اخلاصه ويل داسي دي څرنګه چي ويل کيږي، ما فلانی شی په خپلو سترګو سره ليدلی دی يا ما فلانی خبره په خپلو غوږو سره اوريدلې ده.

په حديث کي د اسعد لفظ د سعيد په معنی کي دی او دې ته اشاره ده چي کوم څوک د اهل توحيد څخه نه وي هغه د رسول الله ﷺ په شفاعت نه برخمن کيږي، يا د من قال څخه مراد هغه څوک دی چي د هغه په عمل نامه کي داسي هيڅ عمل نه وي چي د هغه په سبب هغه د رحمت مستحق وګرځول سي او د دوزخ څخه د خلاصون تر لاسه کولو وړ سي، په دغه صورت کي ظاهره ده چي د شفاعت به تر ټولو زيات اړ هغه څوک وي او شفاعت به هغه ته تر ټولو زيات ګټه رسوي.

## د رسول الله ﷺ د شفاعت ذکر

﴿٥٣٣٨﴾: وَعَنْهُ قَالَ أُتِيَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَحْمٍ فَرُفِعَ إِلَيْهِ الذِّرَاعُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ته غوښه راوړل سوه او په هغه کي رسول الله ﷺ ته د ورانه غوښه راوړل سول

وَكَانَتْ تُعْجِبُهُ فَنَهَسَ مِنْهَا نَهْسَةً ثم قَالَ أَنَا سَيِّدُ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يوم

چي د رسول الله ﷺ ډيره خوښه وه، رسول الله ﷺ د هغه څخه په غاښونو غوښه پريکول او خوړل يې، بيا يې وفرمايل: د قيامت په ورځ به زه به د خلکو سردار يم

يقوم الناس لرب العالمين وَتَدْنُو الشَّمْسُ فَيَبْلُغُ النَّاسَ مِنَ الْغَمِّ وَالْكَرْبِ مَا

ټول خلک د جهانونو د پروردګار په مخکي ودريږي په دغه ورځ به لمر ډير نژدې وي او د خلکو حالت

به (د گرمۍ د زياتوالي، فکر او غم او د قيامت د هيبت په وجه) د بيان وړ نه وي

لَا يُطِيقُونَ فَيَقُولُ الناس أَلَا تَنْظُرُونَ مَنْ يَشْفَعُ لَكُمْ إِلَى رَبِّكُمْ فياتون آدم و

او د صبر او استقامت څخه به همت و بايلي په خپل منځ کي به وايي تاسو يو داسي سړي و لټوئ چي ستاسو پرورد گار ته ستاسو سفارش وکړي نو خلک به آدم علیہ السلام ته راسي،

ذكر حديث الشفاعة وَقَالَ فَأَنْطَلِقُ فَآتِي تَحْتَ الْعَرْشِ فَأَقَعُ سَاجِدًا لِرَبِّي ثُمَّ

ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ يا ابو هريره رضی اللہ عنہ د شفاعت حديث بيان کړ (يعني هغه حديث چي مخکي د هغه ذکر سوی دی) بيا يې وفرمايل چي زه به د الله تعالی په حضور کي د حاضريدو په اراده ولاړ سم او د عرش الهي لاندي رسيدو سره به پر سجده پريوځم بيا به

يَفْتَحُ اللهُ عَلَيَّ مِنْ مَحَامِدِهِ وَحُسْنِ الثَّنَاءِ عَلَيْهِ شَيْئًا لَمْ يَفْتَحْهُ لِأَحَدٍ قَبْلِي

الله جل جلالہ زما په زړه کي د خپل حمد او ثناء الفاظ واچوي چي د هغه وخت څخه مخکي به يې د هيچا په زړه کي نه وي اچولي،

ثُمَّ قال يَا مُحَمَّدُ ارْفَعْ رَأْسَكَ سَلْ تُعْطَهُ اشْفَعْ تُشَفَّعْ فَأَرْفَعُ رَأْسِي فَأَقُولُ يَا رَبِّ

بيا به الله تعالی فرمايي اې محمد! خپل سر پورته کړه، وغواړه څه چي غوښتل غواړې در به کړل سي، شفاعت کوه قبول به کړل سي، نو زه به خپل سر پورته کړم او وايم به اې پروردگاره!

أُمَّتِي أُمَّتِي فَيُقَالُ يَا مُحَمَّدُ أَدْخِلِ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِكَ مَنْ لَا حِسَابَ عَلَيْهِم مِنَ

زما امت وبخښې اې پروردگاره! زما امت وبخښې، وه به ويل سي اې محمد! ته د خپل امت څخه هغه خلک چي د هغوئ څخه به حساب نه سي اخيستل کيدلای

الْبَابِ الْأَيْمَنِ مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ وَهُمْ شُرَكَاءُ النَّاسِ فِيمَا سِوَى ذٰلِكَ مِنَ الْأَبْوَابِ

د جنت په راسته خوا دروازه جنت ته داخل کړه او دا خلک به ددې دروازې څخه پرته په نورو دروازو هم د خلکو سره په جنت کي داخليږي، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: په

وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ إِنَّ مَا بَيْنَ الْمِصْرَاعَيْنِ مِنْ مَصَارِيعِ الْجَنَّةِ لَكَمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَهَجَرٍ. متفق عليه.

هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په لاس کي زما ساه ده د جنت دروازې به دومره پراخه وي چي په هغو کي د دوو تنبو په منځ کي به دومره فاصله وي څومره چي د مکې او هجر په منځ کي ده (هجر په بحرين کي يو ځای دی). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۳۹۵، رقم: ۴۷۱۲، ومسلم ۱\ ۱۸۴، رقم: ۳۲۷- ۱۹۴.

**د لغاتو حل**: فنهس: اي فاخذ بمقدم اسنانه. هجر: هي قرية من قرى البحرين (د بحرين يو کلی)

**تشريح**: زه به دقيامت په ورځ د ټولو خلکو سردار يم، دلته د خلکو اطلاق پر ټول انسانيت باندي دی چي په هغه کي انبياء هم شامل دي، ددې تائيد ددغه حديث څخه هم کيږي چي په هغه کي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: انا سيد ولد ادم يوم القيامة...الخ، يعني د قيامت په ورځ به زه د آدم علیه السلام د ټولي اولادې سردار يم، او دا خبره رسول الله ﷺ په دې اعتبار وفرمايل چي د هغه عزت په وجه چي رسول الله ﷺ ته د الله جل جلاله په دربار کي تر ټولو زيات قرب او محبوبيت په وجه حاصل دی په هغه ورځ به هر يو د رسول الله ﷺ د شفاعت محتاج وي ، کله چي ټول خلک ډېر پريشانه او په تکليف وي نو په پای کي به رسول الله ﷺ ته د شفاعت په غوښتنه سره راسي او يوازي رسول الله ﷺ به د هغوئ د شفاعت جرئت وکړي .

تر عرش الهي لاندي به راسم، دغه جمله د حضرت انس رضی الله عنه څخه دنقل کېدونکي هغه حديث خلاف ده چي په هغه کي د خپل پروردګار کور ته د راتللو الفاظ دي، نو ددواړو په منځ کي تطبيق داسي دی چي د الله جل جلاله کور جنت دی او جنت تر عرش الهي لاندي دی نو ددغه دواړو په الفاظو کي د مفهوم په اعتبار هيڅ اختلاف نسته .

اې زما پروردګاره! زما امت وبخښې . دغه الفاظ درې واره وفرمايل، يا د خپل عرض د زيات ارزښتناکه ګرځولو لپاره دي، څرنګه چي يو سړی د خپل حاکم او بادار څخه د يو ارزښتناک مقصد پوره کول غواړي نو هغه خپل عرض د هغه په مخکي په وار وار وړاندي کوي يا هغه الفاظ په وار وار ويلو سره د ګناه کارو ډلو ته اشاره کول مقصد دي لکه چي په تېر حديث کي بيان سول چي رسول الله ﷺ يو وار شفاعت به د يوې ډلي سره مختص وي او بيا به دوهم وار شفاعت د دوهمي ډلي سره او همدارنګه په ډېر واره کي به د ټولو شفاعت پوره سي .

د جنت د راسته دروازې څخه ....الخ: يعني ددغه خلکو د عزت او تکريم لپاره د الله جل جلاله له خوا د مهرباني له موخي راسته دروازه به د هغه خلکو لپاره خاص وي ، د دوئ څخه پرته د بل چا لپاره به پر دغه دروازې د ننوتلو اجازه نه وي، ددغه دروازې څخه پرته نوري څو دروازې دي

هغه به د نورو ټولو خلکو لپاره مشترک وي او ذکر سوي خلک به هم د هغه دروازو د استعمالولو حق لري.

هجر د یو ځای نوم دی چي د جزیره عرب پر ختیځ ساحل باندي په هغه سیمه کي واقع دی چي هغه ته اوس احساد ویل کیږي، په مخکي زمانه کي دغه سیمي ته بحرین ویل کېدل، په هر حال د جملې مقصد د جنت د دروازو پلنوالی او پراخي بیانول دي چي د جنت دهري دروازې پلنوالی به دومره اندازه وي کوم چي د مکې او هجر تر منځ دی مګر ددې څخه مراد تحدید او تعین هیڅکله نه دی بلکه دا تخمینا فرمایل سوي دي چي خلکو ته په اسانی سره د جنت د دروازو د پلنوالی او اوږدوالی اندازه وسي او حقیقت بل څه دی.

## د امانت او قرابت کولو اهمیت

﴿۵۳۳۹﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ فِيْ حَدِيْثِ الشَّفَاعَةِ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَتُرْسَلُ الْأَمَانَةُ وَالرَّحِمُ فَتَقُوْمَانِ جَنَبَتَيِ الصِّرَاطِ يَمِيْنًا وَشِمَالًا. رواه مسلم.

حضرت حذیفه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه د شفاعت حدیث نقل کولو سره وایي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: امانت او رحم (خپلوي) به راولیږل سي او دواړه به د پل صراط پر راسته او چپه طرف ودریږي. مسلم.

**تخریج** صحیح مسلم: ۱۸۶/۱، رقم: ۳۲۹-۱۹۵.

**تشریح** امانت یعني د خلکو د مال او سامان او د حقوقو ساتنه کول او رحم یعني قرابت ساتل چي هغه ته قرابت هم وایي، دغه دواړي خبري ډېر ارزښت او فضیلت لري او په دې وجه ددې پابندي کول او رعایت کول پر بندګانو لازم دي ځکه د قیامت په ورځ دوئ ته په صورت ورکولو سره د پل صراط دواړو خواوو ته به ودرول سي چي داد امانت دار او خائن، قرابت ساتونکي او قرابت ماتونکي په حق کي شاهدي ورکړي او د هغه پر خلاف احتجاج وکړي، نو کوم څوک چي په خپل دنیاوي ژوند کي د امانت په ادا کولو کي کوتاهي نه وي کړې او د قریبانو ټول حقوق یې پوره ادا کړي وي دغه دواړه به د هغه په حق کي مظاهره کوي او هغه په نیکی به شاهدي ورکوي او کوم چا چي د امانت په ادا کولو کي کوتاهي کړې وي او د قریبانو حق یې نه وي ادا

کړی دغه دواړه به دهغه پر خلاف احتجاج کوي او دهغه د بدی شاهدي به ادا کوي، چي دغه دواړه ډوله خلکو په منځ کي امتیاز وکړل سي او هر سړی په اسانۍ سره و پېژندل سي چي هغه ددغه دواړو په اړه څه عمل کړی وو نو په دغه حدیث کي دداسي کار ترغیب دی چي ددغه دواړو دحقوقو ادا کول او دهغوئ هر صورت د لحاظ ساتلو پوره پوره پابندي کول پکار دي.

**د رسول الله ﷺ د شفاعت قبلولو الهي وعده**

﴿۵۳۴۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبد الله بن عمرو بن عاص رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د الله تعالی دا

تَلَا قَوْلَ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ فِي إِبْرَاهِيمَ رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِنَ النَّاسِ فَمَنْ

ارشاد تلاوت کړ کوم چي د حضرت ابراهیم علیه السلام په باره کي دی : (رب الهن اضلنن کثیرا......) اې پروردګاره ! دغه بتانو ډېر خلک ګمراه کړي دي

تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي الْآيَةَ وَقَالَ عِيسَى عَلَيْهِ السَّلَام إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ

نو په دوئ کي چي کومو خلکو زما اطاعت قبول کړی دی هغوئ زما د تابعینو څخه دي او چا چي نافرماني کړې ده نو ته معاف کونکی او رحم کونکی یې، بیا رسول الله ﷺ د حضرت عیسی علیه السلام د خواست په اړه دا آیت تلاوت کړ : (ان تعذبهم فانهم عبادک)، (اې پروردګاره! که ته دوئ ته عذاب ورکوي نو دا ستا بندګان دي)،

فَرَفَعَ يَدَيْهِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ أُمَّتِي أُمَّتِي وَبَكَى فَقَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ يَا جِبْرِيلُ

ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ خپل دواړه لاسونه مبارک پورته کړل او وه یې فرمایل : اې الله ! زما امت وبخښې ، زما امت وبخښې (آمین) ددې ویلو سره رسول الله ﷺ په ژړا سو ، نو الله تعالی جبرائیل علیه السلام ته وفرمایل : اې جبرائیل !

اذْهَبْ إِلَى مُحَمَّدٍ وَرَبُّكَ أَعْلَمُ فَسَلْهُ مَا يُبْكِيكَ فَأَتَاهُ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَام

محمد ﷺ ته ورسه او خدای جل جلاله بنه پوهیږي او پوښتنه ځیني وکړه چي ولې ژاړې؟ جبرائیل علیه السلام د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو

فَسَأَلَهُ فَأَخْبَرَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا قَالَ فَقَالَ اللّٰهُ يَا جِبْرِيلُ

اذْهَبْ إِلَى مُحَمَّدٍ فَقُلْ إِنَّا سَنُرْضِيكَ فِي أُمَّتِكَ وَلَا نَسُوءُكَ. رواه مسلم.

او پوښتنه يې ځيني وکړه ، رسول الله ﷺ چي څه ويل غوښتل هغه يې وويل او الله تعالی د رسول الله ﷺ د پيغام اوريدو سره حکم وکړ اې جبرائيل ! محمد (ﷺ) ته ورسه او ورته ووايه چي موږ به تا ستا د امت په معامله کي راضي کړو او تا به خفه نه کړو. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۹۱/۱، رقم: ۳۴۶-۲۰۲.

**تشريح**: ددغه دعاء په کولو سره رسول الله ﷺ په ژړا سو ، يعني رسول الله ﷺ د خپل امت په حق کي د حضرت ابراهيم عليه السلام او حضرت عيسی عليه السلام شفاعت ياد کړ او د هغه يادونه يې وکړل ، نو بيا سمدستي رسول الله ﷺ ته د خپل امت فکر پيدا سو او بېره پر خپره سول چي څرګندنه ده زما د امت د خلکو به څه حشر وي ، داسي نه وي چي هغوئ په الهي عذاب کي اخته نه سي نو رسول الله ﷺ د خپل امت د بخښني دعاء وکړل .

تا به دخپل امت په حق کي راضي او خوشحاله کړو او ته به راضي او خوشحاله په کوم صورت کي يې؟ په دې اړه په ځينو روايتو کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه به تر هغه وخته پوري راضي او خوشحاله نه يم تر څو چي الله جل جلاله زما د امت يو يو کس ونه بخښي، سبحان الله ، ددغه امت لپاره تر دې لويه خوشبختي څه کېدای سي ، ضرورت دادی چي په حقيقت کي د رسول الله ﷺ امتي جوړ سو ، د رسول الله ﷺ سره ايمان او عقيده په هر حال کي صحيح کېدل پکار دي ، يوازي همدغه مشکل دی نور څه نه دی .

خاک او باش باد شاهي کن　　　　آن او باش هر چه خواهي کن

ددغه حديث څخه ځو ارزښتناکه خبري څرګنديږي يو خو دا چي د رسول الله ﷺ دخپل امت سره ځومره تعلق دی او رسول الله ﷺ پر خپل امت باندي ځومره شفيق او مهربانه دی او رسول الله ﷺ د خپل امت دخلکو اصلاح او کاميابۍ ته ځومره متوجه وو ، دوهمه او تر ټولو ارزښتناکه خبره ددغه امت لپاره لوی زيری دی چي الله جل جلاله د رسول الله ﷺ سره وعده کړې ده چي موږ به تا ستا د امت په اړه راضي او خوشحاله کړو او دريمه خبره د رسول الله ﷺ لويه مرتبه څرګندول دي.

## د قيامت په ورځ د شفاعت او داسي نورو شيانو په اړه يو ځو خبري

﴿۵۳۴۱﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيّ اَنَّ نَاسًا قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ هَلْ نَرَى رَبَّنَا يَوْمَ

د حضرت ابو سعيد خدري ﷺ څخه روايت دی چي يو څو کسانو عرض وکړ اې د الله رسوله ! ايا د قيامت په ورځ به موږ خپل رب وينو ؟

الْقِيَامَةِ قَالَ رسول الله صلى الله عليه وسلم نعم هَلْ تُضَارُونَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هو، ايا تاسو د غرمې په وخت کي چي آسمان صفا وي لمر ته په کتلو کي څه شک لرئ؟

بالظهيرة صَحْوًا لَيْسَ مَعَهَا سَحَابٌ وَهَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ

او ايا د څوارلسمې شپې سپوږمۍ ليدو کي تاسو د شپې چي آسمان صفا وي څه شکويني ،

صَحْوًا لَيْسَ فِيهَا سَحَابٌ قَالُوا لَا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ مَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ اللَّهِ

صحابه کرامو عرض وکړ نه، نو رسول الله ﷺ وفرمايل : لکه څرنګه چي تاسو ته د لمر او سپوږمۍ په ليدو کي څه تکليف نه وي همداسي به د الله تعالى په ليدو کي هم تاسو ته څه

تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا كَمَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ أَحَدِهِمَا إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ

تکليف نه وي، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي قيامت سي نو يو اعلان

أَذَّنَ مُؤَذِّنٌ لِيَتَّبِعْ كُلُّ أُمَّةٍ مَا كَانَتْ تَعْبُدُ فَلَا يَبْقَى أَحَدٌ كَانَ يَعْبُدُ غَيْرَ اللَّهِ

کونکی به اعلان وکړي چي کوم امت د چا عبادت کوی نو په هغه پسي دي روان سي ،. نو کوم خلکو چي د الله ﷻ څخه پرته د نورو شيانو يعني

سُبْحَانَهُ مِنَ الْأَصْنَامِ وَالْأَنْصَابِ إِلَّا يَتَسَاقَطُونَ فِي النَّارِ حَتَّى إِذَا لَمْ يَبْقَ إِلَّا

بتانو او ډبرو عبادت کوی په هغوئ کي به يو هم پاته نه سي او ټول به په دوږخ کي واچول سي تر دې چي د هغه خلکو څخه پرته به هيڅوک پاته نه سي

مَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللَّهَ مِنْ بَرٍّ وَفَاجِرٍ اتاهم رب العالمين قال فماذا تنظرون يتبع

کومو چي د الله تعالى عبادت کوی که هغه نيک وي يا بد، نو الله تعالى به هغوئ ته راسي او ورته وه به فرمايي تاسو د چا په انتظار کي ياست، هره ډله په خپل معبود پسي روان دي (تاسو

كل أمة ما كانت تعبد . قالوا : يا ربنا فارقنا الناس في الدنيا أفقر ما كنا إليهم

هم ولاړ سئ) هغوئ به وايي اې زموږ پروردګاره ! موږ په دنيا کي د هغه خلکو څخه بيلوالی اختيار کړی وو حال دا چي موږ د هغوئ محتاج وو

ولم نصاحبهم. وفي رواية ابي هريرة فيقولون هذا مكاننا حتي يأتينا ربنا فاذا

او هيڅکله هغوئ سره ناست نه وو، او د ابو هريرة ﷺ په روايت کي دا الفاظ دي چي هغه خلک به وو وايي چي زموږ ځای دادی موږ به تر هغه وخته پوري د دغه ځای څخه نه ځو تر څو پوري چي

جاء ربنا عرفناه وفي رواية ابي سعيد فيقول هل بينكم و بينه آية تَعْرِفُونَهُ

زموږ پروردګار موږ ته رانه سي او کله چي زموږ پروردګار راسي موږ به هغه و پيژنو او د ابو سعيد په روايت کي دا الفاظ دي چي الله تعالی به د هغوئ څخه پوښتنه وکړي ايا ستاسو او ستاسو د پروردګار په منځ کي يو داسي نښه سته چي په هغه سره تاسو هغه وپيژنئ؟

فَيَقُولُونَ نَعَمْ فَيُكْشِفُ عَنْ سَاقٍ فلا يَبْقَى مَنْ كَانَ يَسْجُدُ لِلّٰهِ تعالى من تلقاء

هغوئ به وايي هو، نو د الله تعالی پنډۍ به ښکاره سي نو چا چي په اخلاص او عقيدت سره سجده کول هغه ته به د سجدې کول حکم ورکړل سي

نفسه الا اذن الله له بالسجود ولا يبقى من كان يسجد اتقاء و رياء الا جعل

او چا چي د الله تعالی د بيري څخه يا خلکو ته د ښوونې (ريا) لپاره سجده کول الله تعالی به د

الله ظهره طبقة واحدة كلما اراد ان يسجد خر على قفاه ثم يضرب الجسر على

هغه ملا تخته جوړه کړي هر کله چي هغه سجده کولو لپاره کښته کيږي نو پر سر به راغوزار سي بيا به د دوزخ سر بيره پل صراط کښېښودل سي

جهنم و تحل الشفاعة و يقولون اللهم سلم سلم فيمر المؤمنون كطرف

او د شفاعت اجازه به ورکړل سي او انبياء عليهم السلام به د خپل امت لپاره دا دعاء غواړي اې الله دوئ په سلامتيا سره (پر پل صراط) تير کړې، نو مؤمنان به

العين وَ كَالْبَرْقِ وَكَالرِّيحِ وكالطير وَكَأَجَاوِيدِ الْخَيْلِ وَالرِّكَابِ فَنَاجٍ مُسَلَّمٌ وَ

د سترګو په رپ کي پر پل صراط تير سي، ځيني به د برېښنا په ډول ځيني به د هواء په ډول،

ځيني به د مرغانو په ډول ځيني به د تيزو آسونو په ډول او ځيني د اوښانو په ډول

مَخْدُوشٌ مرسل وَمَكْدُوسٌ فِي نَارِ جَهَنَّمَ حَتَّى إِذَا خَلَصَ الْمُؤْمِنُوْنَ مِنَ النَّارِ

او ځيني به په لږ زخم خوړلو سره تير سي او ځيني به پرې پرې کړل سي او دوږخ ته به ولېږل سي، بيا د عذاب څخه وروسته چي مؤمنان د اور څخه خلاص کړل سي

فَوَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ مَامِنْ اَحَدٍ مِّنْكُمْ بِأَشَدَّ لِي مُنَاشَدَةً فِي الْحَقِّ قَدْ تَبَيَّنَ

قسم دی په هغه ذات چي د هغه په لاس کي زما ساه ده د خپلو هغه ورو‌ڼو د خلاصون لپاره به

لَكُمْ مِنَ الْمُؤْمِنِ لله يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِاِخْوَانِهِمُ الَّذِيْنَ فِي النَّارِ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا كَانُوْا

ستاسو څخه زيات د الله تعالی سره جګړه کونکي هيڅوک نه وي، نو مؤمنان به الله تعالی ته عرض وکړي اې زموږ پروردګاره ! دغه خلکو به

يَصُوْمُوْنَ مَعَنَا وَ يُصَلُّوْنَ وَ يَحجُّوْنَ فَيُقَالُ لَهُمْ اَخْرِجُوْا مَنْ عَرَفْتُمْ فتحرم

زموږ سره روژې نيولې، لمونځ به يې کوی، او حج به يې کوی (نو دوئ ته د دوږخ څخه خلاصون ورکړې) مؤمنانو ته به وويل سي کوم خلک چي تاسو پيژنئ هغوئ د دوږخه څخه وباسئ او

صورهم على النار فيخرجون خلقا كثيرا ثم يقولون ربنا ما بقي فيها احد

د دوږخ پر اور به حرام کړل سي چي د خلکو صورتونه دي وسوځي (يعني دوږخ ته به حکم ورکړل سي چي د خلکو صورتونه سوځولو سره مسخ نه کړي لپاره د دې چي شناخت کي اساني وي) نو مؤمنان به ډير خلک د دوږخ څخه را وباسي او بيا به عرض وکړي اې زموږ پروردګاره ! د کومو

ممن امرتنا به فيقول ارجعوا فمن وجدتم في قلبه مثقال دينار من خير

خلکو چي تا د دوږخ څخه د ايستلو حکم کړی وو په هغوئ کي اوس هيڅوک په دوږخ کي پاته نه دي، الله تعالی به فرمايي بېرته دوږخ ته بيا ورسئ او د کومو خلکو په زړه کي چي د دنيار په

فاخرجوه فيخرجون خلقا كثيرا ثم يقول ارجعوا فمن وجدتم في قلبه مثقال

اندازه نيکي وي هغوئ د دوږخ څخه راوباسئ نو هغوئ به ډير خلک را وباسي بيا به الله تعالی وفرمايي د چا په زړه کي چي

نصف دينار من خير فاخرجوه فيخرجون خلقا كثيرا ثم يقول ارجعوا فمن

د نيم دينار برابر نيکي وي هغوئ هم د دوږخ څخه راوباسئ نو هغوئ به ډير خلک را وباسي بيا به الله تعالى حکم وکړي بيرته ولاړ سئ او د چا

وجدتم في قلبه مثقال ذرة من خير فاخرجوه فيخرجون خلقا كثيرا ثم

په زړه کي چي د ذرې په اندازه نيکي وي هغه د دوږخ څخه راوباسئ نو هغوئ به بيا ډير خلک د دوږخ څخه راوباسي

يقولون ربنا لم نذر فيها خيرا فيقول الله شفعت الملائكة و شفع النبيون و

او عرض به وکړي اې زموږ پروردګاره ! موږ په دوږخ کي هيڅ نيکي کونکی نه پريښودی ، الله تعالى به وفرمايي ملائکو سفارش وکړ، انبياؤو سفارش وکړ او

شفع المؤمنون و لم يبق الا ارحم الراحمين فَيَقْبِض قَبْضَةً مِنَ النَّارِ فَيُخْرِجُ

مؤمنانو سفارش وکړ اوس هيڅ څوک د ارحم الراحمين د رحمن څخه پرته نه دی پاته سوی دداې فرمايلو سره به الله تعالى يو ډک موټ د دوږخ څخه د هغه خلکو راوباسي چي په هغوئ به

مِنْهَا قَوْمًا لم يعملوا خيرا قط قد عادوا حمما فيلقيهم في نهر في افواه الجنة

هيڅکله هم يوه نيکي نه وي کړې دا خلک به د سوځيدو سره تور سکاره سوي وي هغوئ به په وياله کي واچول سي چي د جنت په دروازه کي به وي

يقال له نهر الحيوة فيخرجون كَمَا تخرج الْحِبَّةُ فِي حَمِيلِ السَّيْلِ فَيَخْرُجُونَ

او د هغې نوم (نهر حيوة) د ژوند وياله ده، دا خلک به د ويالې څخه داسي تازه راووځي لکه څرنګه چي د دانې تيغ د سيلاب په خټو کي راخيژي ،

كَاللُّؤْلُؤِ فِي رِقَابِهِمُ الْخَوَاتِيمُ فَيَقُولُ أَهْلُ الْجَنَّةِ هَؤُلَاءِ عُتَقَاءُ الرَّحْمَنِ أَدْخَلَهُمُ

او د ملغلرو په ډول به ځلانده سي د هغوئ پر څټو به نښي او مهرونه وي د هغوئ په ليدو سره به جنتيان وايي دا خلک د الله تعالى ازاد کړل سوي دي، دوئ پرته د يو نيک عمل څخه يو شی

الْجَنَّةَ بِغَيْرِ عَمَلٍ عَمِلُوهُ وَلَا خَيْرٍ قَدَّمُوهُ فَيُقَالُ لَهُمْ لَكُمْ مَا رَأَيْتُمْ وَمِثْلَهُ مَعَهُ.

متفق علیه.

په جنت کي داخل کړي دي یعني دوئ خو نه په دنیا کي یو نیکي کړې ده او نه یو نیک عمل، بیا به دغه خلکو ته وویل سي چي په جنت کي کوم شیان تاسو ته درکړل سوي دي هغومره نور هم درکړل سول. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۲۹۲، رقم: ۸۰۶، ومسلم ۱\۱۶۴، رقم: ۲۹۹– ۱۸۲.

**تشريح**: هو، ويني به يې، سيوطي رحمة الله عليه په خپلو تاليفانو کي ليکلي دي چي د قيامت په ورځ به په موقف یعني د حشر په میدان کي چیري چي ټول مخلوق به ولاړ وي، نارینوو او ښځینوو ټولو ته به د الله جل جلاله دېدار په برخه وي، ځینو حضراتو دا هم لیکلي دي چي یو وار به هغه دېدار منافقانو او کافرانو ته هم تر لاسه کیږي مګر بیا به سمدستي هغوئ محجوب کړل سي چي تل به ددغه دیدار په ارمان او محرومۍ کي اخته وي، بیا هم منافقانو او کافرانو ته د دیدار تر لاسه کېدو خبره ثرګنده نه ده بلکه په دې کي کلام دی ځکه چي په قرآن کریم کي راغلي دي چي (کلا انهم عن ربهم لمحجوبون) یعني هیڅکله نه، یقینا کفار به په هغه ورځ د خپل رب د دیدار څخه محروم وي او کوم چي په جنت کي د الله جل جلاله د دېدار سوال دی نو په دې اړه سیوطي رحمة الله عليه ویلي دي چي د اهل سنت پر دې اجماع ده چي هلته د الله جل جلاله دېدار به د هر امت نبیانو، رسولانو، صدیقانو او د امت محمدي په افرادو کي ټولو مؤمنانو ته تر لاسه کیږي، د امت محمدي د ښځو په اړه دري قولونه دي، یو خو دا چي هغوئ ته به دېدار نه په برخه کیږي، دوهم دا چي هغوئ ته به هم دېدار په برخه کیږي مګر په ټولو ورځو کي نه بلکه په ځو خاصو ورځو کي، د مثال په توګه د اختر په ورځو، د ملائکو په اړه هم دوه قوله دي، یو خو دا دی چي هغوئ به خپل رب نه ویني او دوهم قول دا دی چي هغوئ به هم دخپل پروردګار دېدار کوي، همدارنګه د پیریانو په اړه هم اختلاف دی.

ایا تاسو د غرمې په وخت کي...الخ: ددغه سوال په ذریعه رسول الله صلی الله علیه وسلم دې ته اشاره وفرمایل چي کوم شی په عامه توګه مشکل معلومیږي او خلک د هغه دېدار خواهش کوي د هغه په لېدو کي د تکلیف او ضرر مخ کېدل وي مګر څرنګه چي د لمر او سپوږمۍ په لېدو کي څه تکلیف، ضرر او خنډ نه وي همدارنګه د الله جل جلاله د دېدار په وخت کي هم د هیڅ ډول تکلیف او ضرر سره مخامخ کېدل به نه وي.

هو څرنګه چي تاسو په دغه دواړو کي د لېدو بندیز او تکلیف نه محسوس کوئ دغه جمله

په اصل كي د تعلق بالمحال په توګه ده د وروستنۍ جملې ځخه زيات تر زياته زور داره كولو لپاره ده ، مطلب دادی كه تاسو ته د لمر او سپوږمۍ په لېدو كي څه خنډ او تكليف محسوس كيږي نو يقينا د الله ﷻ په لېدو كي به هم تكليف محسوس كړئ مګر كله چي دا خبره فيصله ده چي ددغه دواړو شيانو په لېدو كي تكليف نه وي نو پوه سئ چي په دغه وخت كي دالله ﷻ په لېدو كي هم څه ادنا تكليف نه وي ، په ضمني توګه دا خبره كول هم ضروري ده ، علماؤ ليكلي دي چي دلته دكوم ديدار په اړه ذكر دی هغه د هغه ديدار ځخه پرته دی كوم چي په جنت كي مؤمنانو ته په خاصه توګه وركول كيږي، دغه ديدار خو به محض د امتحان په توګه وي چي په دنيا كي كومو خلكو د الله ﷻ عبادت كړی وو او كومو خلكو د الله ﷻ ځخه پرته بل څوک خپل معبود جوړ كړی وو ، ددغه دواړو ډولو خلكو په منځ كي فرق او امتياز وسي ، ددې ځخه معلومه سوه چي په آخرت كي به هم دبندګانو په امتحان كي د اخته كېدو لړۍ تر هغه وخته پوري جاري وي تر څو چي د حساب او كتاب ځخه وروسته د هر يوه په حق كي آخري فيصله ونه كړل سي چي څوک د اجر او جزاء مستحق دی او څوک د عذاب لائق دی ،آخرت كه څه هم د جزا كور دی مګر كله نا كله هلته د امتحان مرحله هم پېښيږي لكه چي دنيا د امتحان كور دی مګر دلته كله نا كله اجر او بدله هم مرتب كيږي لكه چي فرمايي :

وَمَا أَصَابَكُم مِّن مُّصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ

ژباړه: او تاسو ته چي كوم مصيبت راسي هغه په اصل كي ستاسو د اعمالو په وجه وي.

كوم كسان چي د الله ﷻ پر ځای د بتانو او انصابو عبادت كوي ، په دې كي انصاب په اصل كي دنصب جمع ده او نصب هغه ډبري ته وايي چي پر يو خاص ځای باندي خاص ددې لپاره ښخه سوې وي چي عبادت يې كيږي او دهغه په وړاندي د قربت او نيكۍ په توګه ځاروي ذبح كيږي، نور هر هغه شی چي ددغه مقصد لپاره نصب سوی وي او د هغه عبادت او بندګي كيږي كه هغه ډبره وي يا لرګی يا بل شی وي هغه ته نصب ويل كيږي .

نو د ټول جهان پروردګار به هغوئ ته راسي، يعني په خپل كمال قرب سره به پر هغوئ تجلي واچوي ، دا خو ددغه جملې سم تاويل دی ، حقيقت دادی چي راتلل د پروردګار د صفاتو ځخه دی چي هغه په خپل كلام كي خپل ذات ته منسوب كړي دي ، او په حديث مقدسه كي هم ددې داسي ذكر دی او موږ ددغه حقيقت او كيفيت پوهېدو ځخه پرته هم داسي پر دې عقېده لرو او ددې خبري هم عقيده لرو چي د هغه ذات د هغه نقل وحركت ځخه پاک دی كوم چي په

راتللو کي وي نو داخبره د متشابهاتو څخه ده او موږ ته ضروري ده چي په دې اړه زياته پلټنه ونه کړو بلکه د حقيقت علم يوازي الله ﷻ ته وسپارو ، د دغه جملې نور تاويلو هم سوي دي د مثال په توګه د راتللو دا مراد دی چي د الله ﷻ په ملائکو کي يوه ملائکه راسي يا دا چي هغه خلکو ته د الله ﷻ حکم راسي لکه څرنګه چي د مخکني جملې څخه دا خبره مفهوم کيږي،

بيا به د الله ﷻ پنډۍ لوڅي سي، په دې اړه ځينو حضراتو ويلي دي چي د پنډۍ لوڅولو څخه مراد د خوف، بيري او دهشت ختمېدل دي، او ځينو حضراتو ويلي دي چي د پنډۍ لوڅولو څخه مراد يو عظيم نور څرګندېدل دي، يا دا چي د ملائکو د يو ډلي څرګندېدل دي مګر تر ټولو صحيح خبره داده چي په دې اړه دي هم توقف وکړل سي او د دغه جملې د تاويل کولو پر ځای د دې حقيقي علم الله ﷻ ته وسپارل سي .

په حديث کي چي د الله ﷻ د پنډۍ لوڅولو ، خلکو ته د سجدې د حکم تر لاسه کېدو او بيا د ځينو خلکو سجدې کولو او د ځينو پر سجدې باندي د قادر نه کېدو حکم دی، نووي رحمة الله عليه د مسلم په تشريح کي دا ليکلي دي چي د حديث د دغه برخي څخه په ظاهره دا ګمان کيږي چي په آخرت کي به منافقان هم د الله ﷻ دېدار کوي مګر د فکر کولو څخه دا معلوميږي چي دغه ګمان د يو بنياد څخه ليري دی ځکه چي د حديث په ذکر سوو الفاظو کي دا صراحت نسته چي د الله ﷻ په دغه ديدار سره به منافقين هم مشرف کيږي بلکه دلته يوازي دا بيان سوی دی چي د دغه خلکو په وړاندي چي په هغو کي خاص مؤمن به هم وي او منافقان به هم وي، حجاب پورته کړي او بيا به د امتحان لپاره ټولو ته د سجدې حکم وسي نو کوم څوک چي مخلص وي هغه به سجده وکړي او کوم څوک چي منافق وي هغه به سجده ونه کړای سي، د دې خبري څخه دا هيڅکله نه لازميږي چي منافق به هم د الله ﷻ په دېدار مشرف کيږي .

نو مسلمانان به تېر سي، يعني د پل صراط سربېره به ټول مسلمانان داسي تېر سي ، چي په دنيا کي کوم څوک پر عقيدې، ايمان ، عمل او دين باندي د استقامت په اعتبار د کومي درجې وي د هغه سره سم به په اسانۍ سره يا په تکليف سره دغه پړاو قطع کړي چي هغه ته د حديث په راتلونکي جملې کي اشاره سوې ده نو هغه پل صراط لکه چي د دين او شريعت د صراط مستقيم په ډول دی چي په معنوي توګه د توري د څوکي څخه زيات نری دی او پر هغه تلل مشکل دي مګر ورسره د صراط مستقيم دومره روښانه او څرګند دی چي څوک په صدق نيت او اخلاص سره پر دې تلل وغواړي د هغه لپاره هيڅ مشکل نسته .

او ځيني مسلمانان به هغه وي چي په زخم خوړلو سره به تېر سي او د دوږخ داور څخه به

خلاصون تر لاسه کړي، ددې يو مطلب خو دادی چي کوم مسلمان گناه کار وي هغه به پر پل صراط باندي په تېرېدو کي د سخت تکليف سره مخامخ سي د مثال په توگه د پل صراط دواړو خواوو ته به فولادي ازغي وي چي هغوئ به زخمي کړي او د هغوئ لار به بندوي او دهغوئ بدن به ځيري کړي، مگر هغه مسلمانان به په زخمي کېدو سره تر پل صراط واوړي او جنت ته به ورسېږي ، همدارنگه هغه خلک به په دوزخ کي نه لويږي بلکه د پل صراط سربېره به د تکليف تېرولو سربېره خلاصون تر لاسه کړي، دا مطلب د حديث د ظاهري طرز سره زيات سمون خوري او په ژباړه کي ددې لحاظ ساتل سوی دی ، دوهم مطلب دا کيدای سي چي دغه خلک به مخکي پر پل صراط باندي د هغه په ازغيو سره په زخمي کېدو سره په سختۍ تېر سي او بيا به په دوزخ کي واچول سي چي هلته به دخپلو گناهو په اندازه د سزا تر لاسه کېدو لپاره تر يو وخت پوري وي او بيا به هغوئ ته د دوزخ د اور څخه په خلاصون ورکولو سره جنت ته ورسول سي.

د (مکدوش في نار جهنم) او ځيني مسلمانان به هغه وي چي ټوټې ټوټې به کړل سي او دوزخ ته به واچول سي ، په لاسونو او پښو کي به يې زولنې واچوي او په دوزخ کي به داسي يو ځای سي، دا د هغه گناه کارو مسلمانانو يادونه ده چي هغوئ به د خپلو گناهو د سزا خوړلو لپاره په هر حال دوزخ ته وسپارل سي نو دغه خلک به نه يوازي دا چي پر پل صراط باندي د تېرېدو په وخت کي سخت زخمي ، تباه او په مصيبت کي اخته وي بلکه په دوزخ کي به هم وغورځول سي چي هلته به تر هغه وخته پوري عذاب تر لاسه کوي تر څو چي دهغوئ په اړه الله جل جلاله فيصله وکړي ، د مکدوش لفظ په شين سره هم منقول دی همدارنگه مکدوس يعني په سين سره هم په ذکر سوې معنی کي نقل سوی دی ، او په ځينو روايتو کي مکروس هم منقول دی . په دغه صورت کي به معنی دا وي چي هغه ټول به په تړلو سره يو ځای وغورځول سي چي يو پر بل به غورځول کيږي .

تر دې چي مؤمن د دوزخ د اور څخه خلاصون تر لاسه کړي...الخ: دلته د حتی لفظ ددغه پړاو د غايت ذکر دی چي په هغه کي به ټول مؤمنان پر صراط باندي تېرېږي او بيا په هغوئ کي به ځيني خلک پر پل صراط باندي تېر سي او ځيني خلک به په دوزخ کي واچول سي مگر طيبي رحمة الله عليه دا وايي چي د حتی لفظ په اصل کي د مکدوش في نار جهنم ، غايت دی ، په دغه صورت کي د ټول عبارت ژباړه داده چي ځيني مسلمانان به داسي وي چي ټوټې ټوټې به کړل سي او په دوزخ کي به واچول سي او بيا به په پای کي هغوئ هم دخپلو گناهو د سزا تر لاسه کېدو وروسته يا د يو چا د شفاعت په وجه د الله جل جلاله په فضل او کرم سره د دوزخ څخه خلاصون تر لاسه کړي،

نو قسم دي په هغه ذات وي چي د هغه په واک كي زما ساه ده....الخ، ددې ځخه معلومه سوه چي ګناه كار مؤمن به د تل لپاره د دوږخ په عذاب كي نه وي او نه يوازي دا چي هغوئ به دخپلو ګناهو د سزا تر لاسه كېدو وروسته په پاى كي د دوږخ ځخه را وايستل سي او په جنت كي به واچول سي بلكه هغوئ به جنت ته په رسېدو سره د هغه نورو مؤمنانو شفاعت كوي او دالله ﷻ په دربار كي به دهغوئ د عذاب ځخه د خلاصون لپاره سختي هڅي كوي چي هغوئ دخپلو ګناهو د زياتوب په وجه تر هغه وخته پوري د دوږخ ځخه خلاصون نه سي تر لاسه كولاى لكه ځرنګه چي رسول الله ﷺ دخپل ارشاد (نو قسم دي په هغه ذات وي ...الخ) په ذريعه ځرګند وفرمايل.

په تاسو كي هيڅوك هم د ظاهر حق په تر لاسه كولو كي ...الخ. مطلب دادى كه چيري پر يو چا باندي ستا حق د ظاهري دلائلو او شاهدانو په ذريعه واجب وي او ته د هغه تر لاسه كولو په هر حال حق لرې نو د هغه سړي ځخه د خپل حق تر لاسه كولو لپاره ته ځو مره مطالبه او غوښتنه كوې او دهغه تر لاسه كولو هڅه كوې ، تر هغه هم زياته سخته ستا غوښتنه به په هغه ورځ د الله ﷻ په دربا ركي دخپل هغه مسلمان ورور د خلاصون لپاره وي كوم چي په دوږخ كي وي او تاسو به د هغوئ د را ايستلو لپاره الله ﷻ ته عرض كوئ او په شفاعت كي به هڅي كوئ.

نو د دوږخ پر اور باندي د هغوئ شكلونه حرام كړل سي . مطلب دادى چي د دوږخ اور به ددې ځخه منع كړل سي چي هغه نااهل مؤمن داسي وسوځي يا تاوان ورته ورسوي چي دهغوئ مخونه مسخ سي او هغوئ ونه پېژندل سي، خلاصه دا چي تر هغو پوري چي كوم مؤمن په دوږخ كي وي دهغوئ مخونه به نه سوځي او نه به توريږي نو د هغوئ شفاعت كونكي مؤمن به ددغه نښي په ذريعه هغوئ په اساني سره وپېژني او د دوږخ ځخه به يې راوباسي.

د چا په زړه كي چي د دينار په اندازه نيكي وي، دلته او همدارنګه په راتلونكي جمله كي دنيكۍ ځخه مراد هغه شى دى چي د اصل ايمان ځخه زيات وي ځكه چي اصل ايمان چي هغه ته تصديق وايي يو داسي جوهر دى چي په برخو كي د ويشلو وړ نه دى او په هغه كي دكمۍ او زياتوب اطلاق نه كيږئ ، كومه نيكي چي په برخو كي ويشل كيږي يا په هغه كي د كمۍ او زياتوب اطلاق كيږي هغه به د اصل ايمان ځخه زيات د ايمان دنتيجې او ثمرې په توګه يو بل شى وي ، نو په زړه كي د دينار په اندازه يا نيم دينار په اندازه نيكۍ مطلب دادى چي د هغوئ سره د معمولي درجې داسي عمل صالح وي چي دهغه دفعل تعلق د زړه سره وي لكه ذكر خفي يا پر غريب باندي شفقت كول يا د الله ﷻ ېره او خاص نيت نو هغوئ د دوږخ ځخه راباسي.

چا چي هيڅكله نيكي نه وي كړې، دلته دنيكۍ څخه مراد هغه شی دی چي داصل ايمان څخه زيات وي، نو داخلک چي ارحم الراحمين يې محض دخپل خاص رحمت لاندي د دوږخ څخه راباسي او د ځان سره په افعال قلب كي هم هيڅ كوچنۍ يا لويه نيكي نه لري مګر اصل ايمان لري او ددغه خلكو د شفاعت اجازه به هيچا ته ترلاسه نه وي.

د دوئ په غاړو به مهرونه وي، دلته دمهر څخه مراد د زرو هغه ګينې دي چي په غاړو كي اچول كيږي، خلاصه دا چي د علامې په توګه به دهغوئ په غاړو كي يو خاص ډول هار وي چي دهغه په ذريعه به هغوئ د نورو څخه بېل معلوميږي.

## هغه خلک چي د دوږخ څخه په ايستلو به جنت ته داخل سي

﴿۵۳۴۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ أَهْلُ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي جنتيان

الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ وَأَهْلُ النَّارِ النَّارَ يَقُولُ اللّٰهُ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ

په جنت كي او دوږخيان په دوږخ كي داخل سي نو الله تعالى به وفرمايي د چا په زړه كي چي د

خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ فَأَخْرِجُوهُ فَيَخْرُجُونَ قَدْ امْتُحِشُوا وَعَادُوا حُمَمًا فَيُلْقَوْنَ

سپلني د دانې په اندازه ايمان وي هغه د دوږخ څخه وباسئ نو هغوئ به وايستل سي هغوئ به د سكاره په ډول راووځي او هغوئ به

فِي نَهَرِ الْحَيَاةِ فَيَنْبُتُونَ كَمَا تَنْبُتُ الْحِبَّةُ فِي حَمِيلِ السَّيْلِ أَلَمْ تَرَوْا أَنَّهَا تخرج صَفْرَاءَ مُلْتَوِيَةً. متفق عليه.

د ژوند ويالې (نهر حيوة) كي وغورځول سي او هغوئ به داسي تازه سي لكه څرنګه چي د سيلاب په خټو كي دانه زرغونه كيږي ايا تاسي فكر نه دی كړی چي څنګه دانه ژړ تاوسوی تيغ راوباسي. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۱۶، رقم: ۶۵۶۰، ومسلم ۱\۱۷۲، رقم: ۳۰۴- ۱۸۴.

**د لغاتو حل**: امتحشوا: اي احترقوا (و يې سوځئ). ملتوية: اي ملفوفة مجتمعة وقيل منحنية (پيچلی).

**تشريح** د چا په زړه كي چي د ذرې په اندازه ايمان وي، ددغه حديث څخه دا څرګنده سوه چي

په تېر سوي حديث کي دا فرمايل سوي وه چي په پای کي به ارحم الراحمين ذات د خپل موټ په ډکولو سره هغه خلک د دوږخ څخه راوباسي چي هغوئ هيڅ نيکي نه وي کړې نو ددې څخه هغه خلک مراد دي چي دهغوئ تعلق د مؤمنانو څخه وي ، دا بېله خبره ده چي دهغوئ په عمل نامه کي هيڅ نيکي يا خير نه وي، دا وضاحت ځکه ضروري دی چي دلته د حديث دظاهري الفاظو څخه دا وهم کيدای سي چي هغوئ به کافران وي نو پر دې خبره د ټول امت اجماع ده چي هيڅ کافر به په هيڅ صورت کي د دوږخ څخه نه ايستل کيږي.

## د دوږخيانو د خلاصون ذکر

﴿۵۳۴۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّاسَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ هَلْ نَرَى رَبَّنَا يَوْمَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي خلکو عرض وکړ اې د الله رسوله ! ايا د قيامت په ورځ به موږ خپل پروردګار ليدلای سو ؟

الْقِيَامَةِ فذكر معنى حديث ابي سعيد غير كشف الساق وقال يُضْرَبُ الصِّرَاطُ

ددې څخه وروسته ابو هريره رضي الله عنه د ابو سعيد رضي الله عنه هم معنا حديث بيان کړ بېله د لوڅولو د پنډۍ، او رسول الله ﷺ وفرمايل چي پل صراط به د دوږخ سربيره ودرول سي

بَيْنَ ظَهْرَانَيْ جَهَنَّمَ فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يَجُوزُ مِنَ الرُّسُلِ بِأُمَّتِهِ وَلَا يَتَكَلَّمُ يَوْمَئِذٍ

او زه به لومړنی رسول يم چي د خپل امت سره به پر پل صراط تير سم په دغه ورځ به د رسولانو څخه پرته د هيچا د خبرو کولو قدرت نه وي او رسولان به هم دومره اندازه وايي

إِلَّا الرُّسُلُ وَكَلَامُ الرُّسُلِ يَوْمَئِذٍ اللّٰهُمَّ سَلِّمْ سَلِّمْ وَفِي جَهَنَّمَ كَلَالِيبُ مِثْلُ

چي اې الله ! موږ سالم لرې، اې الله موږ سالم لرې، او په جهنم کي به د سعدان (يز ازغنه درخته)

شَوْكِ السَّعْدَانِ لَا يَعْلَمُ قَدْرَ عِظَمِهَا إِلَّا اللّٰهُ تَخْطَفُ النَّاسَ بِأَعْمَالِهِمْ فَمِنْهُمْ

په مثل د انبورونه وي ددغه ازغو لوړوالی د الله جل جلاله څخه پرته بل چا ته معلوم نه دی دا ازغي به په خلکو کي د هغوئ د بدو اعمالو سره سم جګ کيږي يعني ځيني به د هغوئ په بدو اعمالو

مَنْ يُوبَقُ بِعَمَلِهِ وَمِنْهُمْ مَنْ يُخَرْدَلُ ثُمَّ يَنْجُو حَتَّى إِذَا فَرَغَ اللّٰهُ مِنَ الْقَضَاءِ بَيْنَ

هلاک کړي او ځيني به ټوټې ټوټې کړي بيا به هغوئ خلاصون تر لاسه کړي بيا چي الله تعالی د

بندګانو د فیصلي څخه فارغ سي

عِبَادِهِ واراد ان يخرج من النار من اراد ان يخرجه مِمن كان يشهد ان لا اله

او دا اراده وکړي چي کومو خلکو د لااله الاالله اقرار کړی دی په هغوئ کي چي څوک غواړي د دوږخ څخه یې راوباسئ

الاالله امر الملائكة أَنْ يُخْرِجُوا مَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللّٰهَ فَيُخْرِجُونَهُمْ وَيَعْرِفُونَهُمْ

نو ملائکو ته به حکم وکړي چي کوم سړی چي د الله ﷻ د وحدانیت اقرار کوی هغه د دوږخ څخه راوباسئ نو پر تندیو به د سجدو د نښو څخه د هغوئ شناخت کوي

بِآثَارِ السُّجُودِ وَحَرَّمَ اللّٰهُ عَلَى النَّارِ أَنْ تَأْكُلَ أَثَرَ السُّجُودِ فَكُلُّ ابْنِ آدَمَ تَأْكُلُهُ

او د دوږخ څخه به یې وباسي ځکه چي الله تعالی پر دوږخ حرام کړي دي چي هغه د سجدو نښي وسوځي او ر به د انسان ټول بدن وسوځي

النَّارُ إِلَّا أَثَرَ السُّجُودِ فَيَخْرُجُونَ مِنَ النَّارِ قَدِ امْتَحَشُوا فَيُصَبُّ عَلَيْهِمْ مَاءُ

مګر د سجدې ځای به نه سوځي دا خلک به د دوږخ څخه په داسي حال کي را وایستل سي چي او ر به هغوئ په سوځولو سره تور کړي وي پر هغوئ به آب حیات وپاشل سي

الْحَيٰوةِ فَيَنْبُتُونَ كَمَا تَنْبُتُ الْحِبَّةُ فِي حَمِيلِ السَّيْلِ وَيَبْقَى رَجُلٌ بَيْنَ الْجَنَّةِ

او هغوئ به په دې اوبو سره داسي تازه سي لکه څرنګه چي د سیل په خټو کي دانه شنه سي او یو سړي به د جنت او دوږخ په منځ کي پاته سي

وَالنَّارِ وَهُوَ آخِرُ أَهْلِ النَّارِ دُخُولًا الْجَنَّةَ مُقْبِلٌ بِوَجْهِهِ قِبَلَ النَّارِ فَيَقُولُ يَا رَبِّ

چي په دوږخیانو کي به په جنت کي داخلیدونکی آخري سړی وي د دې سړي مخ به د دوږخ په خوا وي او هغه به عرض وکړي اې پروردګاره !

اصْرِفْ وَجْهِي عَنِ النَّارِ وقَدْ قَشَبَنِي رِيحُهَا وَأَحْرَقَنِي ذَكَاؤُهَا فَيَقُولُ هَلْ

زما مخ د دوږخ څخه واړوې د دوږخ بوی زه ډیر په تکلیف کي اچولی یم او د شعلو تیزۍ او ګرمۍ زه سوځلی یم الله تعالی به ورته فرمایي

عَسَيْتَ ان افعل ذٰلِكَ بِكَ أَنْ تَسْأَلَ غَيْرَ ذٰلِكَ فَيَقُولُ لَا وَعِزَّتِكَ فَيُعْطِي اللّٰهَ

که زه دا سي وکړم نو هسي نه چي ته به بل څه غواړې هغه سړی به وايي اې پروردګاره ! ستا په عزت مي دي قسم وي بيا به نور څه نه غواړم ددې څخه وروسته به الله تعالی چي کوم عهد د

مَاشاء الله مِنْ عَهْدٍ وَمِيثَاقٍ فَيَصْرِفُ اللّٰهُ وَجْهَهُ عَنِ النَّارِ فَإِذَا أَقْبَلَ بِهِ عَلَى

هغه څخه واخلي هغه به ځيني واخلي او د هغه مخ به د دوږخ څخه واړوي بيا چي هغه سړی د

الْجَنَّةِ وَرَأَى بَهْجَتَهَا سَكَتَ مَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ يَسْكُتَ ثُمَّ قَالَ يَا رَبِّ قَدِّمْنِي عِنْدَ

جنت په لور وګوري او د هغه تازګي ويني نو تر څو پوري چي د الله تعالی خوښه وي پټه خوله به وي او بيا به (دغه سړی وايي) اې پروردګاره ! ته ما جنت ته نژدې کړې ،

بَابِ الْجَنَّةِ فَيَقُولُ اللّٰهُ تبارك وتعالى أَلَيْسَ قَدْ أَعْطَيْتَ الْعُهُودَ وَالْمِيثَاقَ أَنْ لَا

الله تعالی به ورته فرمايي ايا تا ددې خبري اقرار نه وو کړی چي ته به نور سوال نه کوې ، هغه

تَسْأَلَ غَيْرَ الَّذِي كُنْتَ سَأَلْتَ فَيَقُولُ يَا رَبِّ لَا أَكُونُ أَشْقَى خَلْقِكَ فَيَقُولُ فَمَا

سړی به وايي اې پروردګاره ! خپل په مخلوق کي ما د ټولو څخه زيات بدبخته مه کړې الله تعالی به ورته وفرمايي

عَسَيْتَ إِنْ أُعْطِيتَ ذٰلِكَ أَنْ تَسْأَلَ غَيْرَهُ فَيَقُولُ لَا وَعِزَّتِكَ لَا أَسْأَلُكَ غَيْرَ ذٰلِكَ

بعيد دی که ستا دا خواهش پوره کړل سي نو بيا به ته يو سوال کوې ، هغه به وايي ستا په عزت دي مي قسم وي بيا به زه هيڅ سوال نه کوم ددې څخه وروسته

فَيُعْطِي رَبَّهُ مَا شَاءَ مِنْ عَهْدٍ وَمِيثَاقٍ فَيُقَدِّمُهُ إِلَى بَابِ الْجَنَّةِ فَإِذَا بَلَغَ بَابَهَا

چي الله تعالی د هغه څخه کوم عهد اخيستل غواړي هغه به ځيني واخلي او هغه به د جنت دروازې ته نژدې کړي ، دروازې ته په نژدې کيدو سره چي

فَرَأَى ظَهْرَتَهَا وَمَا فِيهَا مِنَ النَّضْرَةِ وَالسُّرُورِ فَسكت مَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ يَسْكُتَ

هغه د جنت تازګي او ښه ژوند ويني نو تر څو پوري چي الله تعالی ته منظوره وي هغه سړی به

پته خوله وي

فَيَقُولُ يَا رَبِّ أَدْخِلْنِي الْجَنَّةَ فَيَقُولُ اللّٰهُ تبارك وتعالى وَيْلَكَ يَا ابْنَ آدَمَ مَا

بيا به عرض وكړي اې الله ! ما په جنت كي داخل كړې الله تعالى به ورته فرمايي اې د ادم زويه! پر تا افسوس دى

أَغْدَرَكَ أَلَيْسَ قَدْ أَعْطَيْتَ الْعُهُودَ وَالْمِيثَاقَ أَنْ لَا تَسْأَلَ غَيْرَ الَّذِي أُعْطِيتَ

ته څومره بې وعدې او بې وفا يې ايا تا ددې وعده او قول نه وو كړى چي ته به د بل شي سوال نه كوې او څه چي ستا د خواهش سره سم ما دركړي دي پر هغه قناعت وكړه ،

فَيَقُولُ يَا رَبِّ لَا تَجْعَلْنِي أَشْقَى خَلْقِكَ فلا يزال يدعو حتى يضحك الله منه فاذا

هغه به عرض وكړي اې پروردګاره! خپل په مخلوق كي ما بد ترين سړى مه جوړوې ، غرض دا چي هغه به همېشه د الله جل جلاله څخه غواړي تر څو چي الله تعالى به راضي كړي او هر كله چي

ضحك اذن لَهُ فِي دُخُولِ الْجَنَّةِ فَيَقُولُ تَمَنَّ فَيَتَمَنَّى حَتَّى إِذَا انْقَطَعَ أُمْنِيَّتُهُ قَالَ

الله تعالى راضي سي نو جنت ته د هغه د داخليدو اجازه به وركړي بيا به ورته الله تعالى فرمايي ستا په زړه كي كه نور خواهش او ارمان وي نو هغه هم څرګند كړه هغه به خپل ارمانونه او خواهشات څرګند كړي تر دې چي د هغه خواهشات به ختم سي

اللّٰهُ تعالى تَمَنَّ مِنْ كَذَا وَكَذَا أَقْبَلَ يُذَكِّرُهُ رَبُّهُ حَتَّى إِذَا انْتَهَتْ بِهِ الْأَمَانِيُّ قَالَ

نو الله تعالى به ورته وو فرمايي دا ټول شيان كوم چي ته غواړې او ددې سره دومره نور تا ته دركړل سول ، او د ابو سعيد په روايت كي دا الفاظ دي چي

اللّٰهُ لَكَ ذٰلِكَ وَمِثْلُهُ مَعَهُ . وفي رواية ابي سعيد قال الله تعالى لك ذالك وعشرة امثاله. متفق عليه.

ستا ټول ارمانونه پوره كيږي او ورسره لس چنده نور هم دركول كيږي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۲۹۲، رقم: ۸۰۶، ومسلم ۱\۱۶۳، رقم: ۲۹۹- ۱۸۲.

**د لغاتو حل**: شوک السعدان: وهو نبت له شوک عظيم (ازغی لرونکی نبات). يويق: اي يهلک ويحبس

(هلاکیږي). یُخردل: اي یصرع او یقطع قطعا. قشبني: اي اذاني واهلکني (ما ته یې تکلیف راکړ).

**تشریح** مګر د سجدو نښې به نه خوري، په دې اړه نووي رحمة الله علیه لیکلي دي چې ددې څخه دا خبره څرګندیږي چې د دوږخ اور به د بدن هغه اندامونه نه سوځي چې پر هغو سجده کیږي، او هغه د بدن اووه اندامونه دي، یعني تندی، دواړه لاسونه، دواړې پښې، حال دا چې ځینو علماؤ ویلي دي چې دسجدو دنښو څخه یوازې تندی مراد دی مګر علماؤ د نووي رحمة الله علیه قول زیات خوښ کړی دی.

نو پر هغوئ به آب حیات وپاشل سي، دا خبره په څرګنده د تېر سوي حدیث مخالف ده چې په هغه کې دا ذکر سوی دی چې خلک به د حیات (ژوند) په ویاله کې واچول سي مګر په حقیقت کې د دواړو خبرو په منځ کې اختلاف نسته، کیدای سي چې ځیني خلک د ژوند په ویاله کې غوټه کړل سي او ځیني خلکو باندې د هغه ویالې اوبه پاشل کافي وګرځول سي.

ستاسو په عزت دې مې قسم وي زه به هیڅ نه غواړم، دلته دا سوال پیدا کیږي چې هغه سړي کله د خپل قسم خلاف ورزي وکړي نو پر هغه به د قسم ماتولو سزا ولې نه وي، ددې جواب دادی چې دهغه سړی حال به د یو لیوني او بې حاله سړي په ډول وي او څرګنده ده چې داسې سړی معذور ګڼل کیږي یا دا چې دا خبره دکوم ځای سره اړه لري هغه یو داسې ځای دی چې هلته به د هیڅ عمل څوک مکلف نه وي نو د هغه څخه به نیوکه په څه باندې کیږي.

## جنت ته تر ټولو وروسته تلونکی کس

﴿۵۳۴۴﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ آخِرُ مَنْ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هغه سړی چې تر ټولو

يَدْخُلُ الْجَنَّةَ رَجُلٌ فَهُوَ يَمْشِي مَرَّةً وَيَكْبُو مَرَّةً وَتَسْفَعُهُ النَّارُ مَرَّةً فَإِذَا جَاوَزَهَا

به په آخر کې په جنت کې داخل سي هغه به هغه سړی وي چې د دوږخ څخه د باندې وتلو لپاره به یو قدم پورته کړي او په دویم قدم به پړمخې ولویږي او پر دریم قدم به د اور شعلې د هغه بدن وسوځي غرض دا کله چې هغه د دوږخ څخه ووځي

الْتَفَتَ إِلَيْهَا فَقَالَ تَبَارَكَ الَّذِي نَجَّانِي مِنْكِ لَقَدْ أَعْطَانِي اللَّهُ شَيْئًا مَا أَعْطَاهُ

نو د دوږخ په لور به ګوري او وایې به هغه ذات بزرګ او برتر دی چې ستا څخه یې ما ته خلاصون راکړ البته الله تعالی ما ته هغه شی راکړی دی چې

أَحَدًا مِنْ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ فَتُرْفَعُ لَهُ شَجَرَةٌ فَيَقُولُ أَيْ رَبِّ أَدْنِنِي مِنْ هَذِهِ

په مخکنيو او وروستنيو خلکو کي يې هيچا ته نه دی ورکړی بيا به د هغه مخ ته يوه

الشَّجَرَةِ فَلِأَسْتَظِلَّ بِظِلِّهَا وَأَشْرَبَ مِنْ مَائِهَا فَيَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ يَا ابْنَ آدَمَ

درخته ودرول سي چي د هغې سره به د اوبو يوه چينه وي هغه سړی به وايي اې پروردګاره ما دغه درختي ته ور نژدې کړې چي ددې په سايه کي ارام وکړم او ددې چيني څخه اوبه وڅښم، الله تعالى به ورته فرمايي اې د ادم زويه!

لَعَلِّي إِنَّ أَعْطَيْتُكَهَا سَأَلْتَنِي غَيْرَهَا فَيَقُولُ لَا يَا رَبِّ وَيُعَاهِدُهُ أَنْ لَا يَسْأَلَهُ غَيْرَهَا

که ما ستا خواهش پوره کړ امکان لري چي بيا به ته نور هم وغواړې، هغه سړی به وايي زه به نور هيڅ نه غواړم ددې څخه وروسته به هغه الله تعالى سره ددې خبري عهد وکړي چي هغه به نور

وَرَبُّهُ يَعْذِرُهُ لِأَنَّهُ يَرَى مَا لَا صَبْرَ لَهُ عَلَيْهِ فَيُدْنِيهِ مِنْهَا فَيَسْتَظِلُّ بِظِلِّهَا

هيڅ نه غواړي او الله تعالى چي هغه پريشانهويني نو د هغه معذور ګڼلو سره به د هغه خواهش پوره کړي ځکه الله ﷻ پوهيږي چي دی هغه نعمتونه ويني چي هغه ته صبر نه کيږي او هغه درختي ته به يې ور نژدې کړي هغه به د هغه درختي په سايه کي ارام کوي

وَيَشْرَبُ مِنْ مَائِهَا ثُمَّ تُرْفَعُ لَهُ شَجَرَةٌ هِيَ أَحْسَنُ مِنَ الْأُولَى فَيَقُولُ أَيْ رَبِّ

او د چيني اوبه به څښي بيا به يوه بله درخته ودرول سي چي د لومړنۍ څخه به غوره وي هغه سړی چي دا درخته ويني نو وايي به اې ربه!

أَدْنِنِي مِنْ هَذِهِ الشجرة لِأَشْرَبَ مِنْ مَائِهَا وَأَسْتَظِلَّ بِظِلِّهَا لَا أَسْأَلُكَ غَيْرَهَا

ما دغه درختي ته ورسوې چي ددې د چيني څخه اوبه وڅښم او د سايې لاندي يې ارلم وکړم او ددې څخه پرته به زه نور هيڅ سوال نه کوم

فَيَقُولُ يَا ابْنَ آدَمَ أَلَمْ تُعَاهِدْنِي أَنْ لَا تَسْأَلَنِي غَيْرَهَا فَيَقُولُ لَعَلِّي إِنْ أَدْنَيْتُكَ

الله تعالى به ورته فرمايي اې د ادم زويه! ايا تا زما سره دا وعده نه وه کړې چي ددې درختي څخه پرته به نور هيڅ نه غواړم؟ ددې څخه وروسته به الله تعالى هغه ته ووايي که زه تا دغه

درختي ته نژدې کړم

مِنْهَا تَسْأَلُنِي غَيْرَهَا فَيُعَاهِدُهُ أَنْ لَا يَسْأَلَهُ غَيْرَهَا وَرَبُّهُ يَعْذِرُهُ لِأَنَّهُ يَرَى مَا لَا

بنايي ته بيا به زما څخه نور سوال وکړې؟ هغه سړی به د دغه قول وکړي چې بل هيڅ سوال به نه کوي، او الله تعالی هم چې هغه پريشانه ويني نو معذوره به يې وګڼي ځکه چې دی هغه

صَبْرَ لَهُ عَلَيْهِ فَيُدْنِيهِ مِنْهَا فَيَسْتَظِلُّ بِظِلِّهَا وَيَشْرَبُ مِنْ مَائِهَا ثُمَّ تُرْفَعُ لَهُ

نعمتونه ويني چې هغه ته صبر نه کيږي نو خدای ﷻ به دی هغه درختي ته را نژدې کړي او هغه به د هغه درختي په سايه کي آرام تر لاسه کړي او د چيني څخه به يې او به وڅښي بيا به ده ته يوه

شَجَرَةٌ عِنْدَ بَابِ الْجَنَّةِ هِيَ أَحْسَنُ مِنَ الْأُولَيَيْنِ فَيَقُولُ أَيْ رَبِّ أَدْنِنِي مِنْ هَذِهِ

بله درخته ودرول سي چې د جنت دروازې ته به نژدې وي او د لومړنيو دواړو درختو څخه به غوره وي هغه سړی به بيا ووايي چې اې زما ربه! ما دغه درختي ته نژدې کړه

فَلَأَسْتَظِلَّ بِظِلِّهَا وَأَشْرَبَ مِنْ مَائِهَا لَا أَسْأَلُكَ غَيْرَهَا فَيَقُولُ يَا ابْنَ آدَمَ أَلَمْ

چې زه يې په سايه کي کښېنم او او به يې وڅښم، الله تعالی به ورته فرمايي اې د ادم زويه! ايا

تُعَاهِدْنِي أَنْ لَا تَسْأَلَنِي غَيْرَهَا قَالَ بَلَى يَا رَبِّ هَذِهِ لَا أَسْأَلُكَ غَيْرَهَا وَرَبُّهُ يَعْذِرُهُ

تا زما سره ددې وعده نه وه کړې چې ته به نور څه نه غواړې؟ هغه به وايي هو، اې پروردګاره! بس زما دا يو سوال پاته دی بيا به نور هيڅ نه غواړم، الله تعالی چې د هغه بې صبري ويني نو

لِأَنَّهُ يَرَى مَا لَا صَبْرَ لَهُ عَلَيْهَا فَيُدْنِيهِ مِنْهَا فَإِذَا أَدْنَاهُ مِنْهَا سمع أَصْوَاتَ أَهْلِ

معذوره به يې وګڼي او هغه (دريمي) درختي ته به يې ورسوي، هغه درختي ته چې ورسيږي نو

الْجَنَّةِ فَيَقُولُ أَيْ رَبِّ أَدْخِلْنِيهَا فَيَقُولُ يَا ابْنَ آدَمَ مَا يَصْرِينِي مِنْكَ أَيُرْضِيكَ

د جنتيانو آوازونه به اوري نو وايي به اې پروردګاره! ما په جنت کي داخل کړې، الله تعالی به ورته فرمايي اې د ادم زويه! په کوم شي به در څخه خلاص سم ايا ته به راضي سې

أَنْ أُعْطِيَكَ الدُّنْيَا وَمِثْلَهَا مَعَهَا قَالَ يَا رَبِّ أَتَسْتَهْزِئُ مِنِّي وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ

چي زه تا ته په جنت کي د دنیا برابر ځای کړم او ورسره دومره نور؟ هغه سړی به وایي اې پروردګاره! ایا ته زما سره مسخرې کوې؟ حال دا چي ته د دواړو جهانو پروردګار یې؟،

فَضَحِكَ ابْنُ مَسْعُودٍ فَقَالَ أَلَا تَسْأَلُونِي مِمَّ أَضْحَكُ فَقَالُوا مِمَّ تَضْحَكُ قَالَ

ابن مسعود راوي دد غه بیان کولو سره وخندل بیا یې وویل تاسو زما څخه زما د خندا پوښتنه نه کوئ؟ خلکو پوښتنه وکړه ستا د خندا سبب څه دی؟ هغه ورته وویل

هَكَذَا ضَحِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا مِمَّ تَضْحَكُ يَا رَسُولَ اللَّهِ

همداسي رسول الله ﷺ وخندل، صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې د الله رسوله! تاسو ولي خاندئ؟

قَالَ مِنْ ضِحْكِ رَبِّ الْعَالَمِينَ حِينَ قَالَ أَتَسْتَهْزِئُ مِنِّي وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: ما د پروردګار پر خندا وخندل، هر کله چي هغه سړی دا وواییي چي اې پروردګاره! ایا ته زما سره مسخرې کوي حال دا چي ته د دواړو جهانو پروردګار یې،

فَيَقُولُ إِنِّي لَا أَسْتَهْزِئُ مِنْكَ وَلَكِنِّي عَلَى مَا أَشَاءُ قَدِير. رواه مسلم. وفي رواية له

ددې اوریدو سره به الله تعالی وخاندي، او وه به فرمایي: یا زه ستا سره مسخرې نه کوم ځکه چي زه چي څه غواړم هغه کولای سم یعني زه پر هر شي قادر یم. مسلم، د مسلم په یو بل روایت

عن ابي سعيد نحوه الا انه وَلَمْ يَذْكُرْ فَيَقُولُ يَا ابْنَ آدَمَ مَا يَصْرِينِي مِنْكَ إِلَى

کي د ابو سعید څخه نقل دي چي هلته دا الفاظ زیات دي چي بیا به الله تعالی هغه سړي ته ور

آخِرِ الْحَدِيثِ وَزَادَ فِيهِ وَيُذَكِّرُهُ اللَّهُ سَلْ كَذَا وَكَذَا حتى اذا انْقَطَعَتْ بِهِ الْأَمَانِيُّ

یاد کړي چي ته فلانی فلانی شی وغواړه تر دې چي د هغه ټول خواهشات به پوره سي نو

قَالَ اللَّهُ هُوَ لَكَ وَعَشَرَةُ أَمْثَالِهِ قَالَ ثُمَّ يَدْخُلُ بَيْتَهُ فَتَدْخُلُ عَلَيْهِ زَوْجَتَاهُ مِنَ

الله تعالی به ورته وفرمایي دا ټول شیان او ورسره لس چنده نور شیان هم تا ته درکول سول، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل: بیا به هغه سړی په جنت کي خپل کور ته داخل سي

الْحُورِ الْعِينِ فَتَقُولَانِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَحْيَاكَ لَنَا وَأَحْيَانَا لَكَ قَالَ فَيَقُولُ مَا

أُعْطِيَ أَحَدٌ مِثْلَ مَا أُعْطِيتُ.

او هغه ته به د حور عین څخه دوې بیبیاني راسي او ورته وايي به حمد او ثناء خداوند بزرگ لره ده چي هغه ته زموږ لپاره او موږيې ستا لپاره پيدا کړو ، رسول الله ﷺ ويلي دي او هغه سړی به وايي څومره چي ما ته راکړل سول دومره هيچا ته نه دي ورکړل سوي.

**تخريج**: صحيح مسلم ١\ ١٧٤، رقم: ٣١٠- ١٨٧.

**د لغاتو حل**: يصريني منک: اي ما يقطع مسالتک ويمنعک من سؤالي.

**تشريح**: قسم په خدای! زما پروردګار ما ته هغه شي راکړی دی ....الخ: په دغه ځای کي دهغه سړي قسم کول او داخبره کول په اصل کي د زياتي خوشحالۍ په وجه وي ځکه چي هغه وخت به هغه سړی دغه شی تر ټولو لوی نعمت ګڼي چي د دوږخ د اور څخه د راوتلو په وخت يې محسوس کوي او بيا کيدای سي چي هغه د دوږخ څخه د راوتلو په وخت کي بل څوک د ځان سره ونهويني او په دې پوه نه سي چي څومره زيات مخلوق د جنت په نعمتونو او راحتونو کي دي ځکه هغه به دا ګڼي چي دا وخت زما پروردګار د دوږخ څخه د را ايستلو په صورت کي ما ته کوم نعمت راکړی دی دومره لوی نعمت هغه په مخکني او وروستني خلکو کي هيچا ته نه دی ورکړی.

د هغه سړي په دې ويلو سره چي پروردګاره! ته خو به زما سره ټوکي نه کوې...الخ: د الله ﷻ د خندا څخه د بنده زيات خوشحاله لېدل دي او دا خبره بيانولو څخه وروسته د رسول الله ﷺ خندل د هغه خوشحالۍ په وجه وو چي پر يو ګناه کار بنده باندي د الله ﷻ د مهربانۍ او لطف په لېدو سره په رسول الله ﷺ کي پيدا سوې وه، پاته سوه د حضرت ابن مسعود ﷺ خبره، نو هغه د بيان حديث په وخت کي دغه الفاظو ته په رسېدو د رسول الله ﷺ په پيروۍ کي او د خپلي خوښۍ په څرګندولو سره وخندل.

هلته به هغه ته د حور عين دوې ښځي راسي، حور په اصل کي د حوراء جمع ده چي سره او سپين مخ والا ښځي ته ويل کيږي او عين په اصل کي د عيناء جمع ده چي د غټو او تورو سترګو په معنی کي استعماليږي.

## د دوږخ څخه جنت ته راوستل سوو کسانو ته به جهنمي ويل کيږي

﴿۵۳۴۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيُصِيبَنَّ أَقْوَامًا

سَفْعٌ مِنَ النَّارِ بِذُنُوبٍ أَصَابُوهَا عُقُوبَةً ثُمَّ يُدْخِلُهُمُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ بِفَضْلِ رَحْمَتِهِ فَيُقَالُ لَهُمُ الْجَهَنَّمِيُّونَ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مسلمانانو ډلو ته به د هغوئ د ګناهونو په بدله کي چي هغوئ کړي دي د دوږخ د اور سزا ورکول سي بيا به الله تعالى په خپل فضل او کرم سره هغوئ په جنت کي داخل کړي او د هغوئ نوم به جهنميون کښېښودل سي. بخاري.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۱۶، رقم: ۶۵۵۹.

**د لغاتو حل** : سفع: اي سواد من لفح النار او علامة منها (د اور د اوښ توروالی)

**تشريح** : او هغه خلکو ته به دوږخي ويل کيږي، ددې مطلب دادی چي په جنت کي به هغه خلکو ته په دې اعتبار چي هغوئ به په پيل کي دوږخ ته تللي وي او د هغه ځای څخه به جنت ته راغلي وي، د دوږخي په نامه سره يادېږي، مګر هغوئ ته په جنت کي د دوږخي نوم ورکول به د هغوئ د سپکتيا او ذليل کېدو لپاره نه وي بلکه د هغه خلکو د خوشحاله کولو او ددغه لوی نعمت د يادوني په توګه به وي چي هغه خلک د نعمت شکر ادا کړي او هغه د نعمت شکر د هغوئ د دوږخ څخه د خلاصون او جنت ته د رسېدو د خوشحالۍ احساس ورکوي.

﴿۵۳۴۶﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمران بن حصين رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

يَخْرُجُ قَوْمٌ مِنَ النَّارِ بِشَفَاعَةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَدْخُلُونَ

يو ډله به د حضرت محمد ﷺ په شفاعت د دوږخ څخه وايستل سي ددې څخه وروسته به هغوئ

الْجَنَّةَ يُسَمَّوْنَ الْجَهَنَّمِيِّينَ. رواه البخاري وفي رواية يَخْرُجُ قَوْمٌ مِنْ أُمَّتِيْ مِنَ النَّارِ بِشَفَاعَتِيْ يُسَمَّوْنَ الْجَهَنَّمِيِّينَ.

په جنت کي داخل سي چي نوم به يې جهنمي کښېښودل سي، بخاري او په يوه روايت کي راځي چي زما د امت څخه به يو ډله زما په شفاعت د جهنم څخه وايستل سي چي نوم به يې جهنمين کښېښودل سي.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۴۱۸\۱۱، رقم: ٦٥٦٦.

**د لغاتو حل** : الجهنميون: وهو عتقاء الله تعالى

## هغه کس چي تر ټولو په آخر کي جنت ته ځي

﴿۵۳۴۷﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِنِّي لَأَعْلَمُ آخِرَ أَهْلِ النَّارِ خُرُوجًا مِنْهَا وَآخِرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُولًا رَجُلٌ

زه د هغه سړي څخه خبر يم چي تر ټولو آخر به د دوږخ څخه وايستل سي او تر ټولو آخر به په جنت کي داخل سي دا به يو سړی وي چي

يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ حَبْوًا فَيَقُولُ اللّٰهُ اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ فَيَأْتِيهَا فَيُخَيَّلُ إِلَيْهِ

پر ګونډو به د دوږخ څخه وځي ، الله تعالى به ورته فرمايي ولاړ سه په جنت کي داخل سه نو هغه به جنت ته ولاړ سي نو هغه ته به جنت په داسي حال کي ونښودل سي چي

أَنَّهَا مَلْأَى فَيَقُولُ يَا رَبِّ وَجَدْتُهَا مَلْأَى فَيَقُولُ اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ فَإِنَّ

هغه به د انسانانو څخه ډک وي هغه به وايي پروردګاره ! ما خو جنت د خلکو څخه ډک وليدی (يعني په دې کي زما لپاره ځای نه سته) الله تعالى به ورته فرمايي ولاړ سه او په جنت کي داخل

لَكَ مِثْلَ الدُّنْيَا وَعَشَرَةَ أَمْثَالِهَا فَيَقُولُ تَسْخَرُ مِنِّي أَوْ تَضْحَكُ مِنِّي وَأَنْتَ

سه موږ تا ته په جنت کي د دنيا په اندازه ځای درکړی دی او د هغې څخه لس چنده زيات او هغه به وايي اې پروردګاره! ته زما سره مسخرې کوې ؟ يا دا به وايي اې پروردګاره! ته

الْمَلِكُ فَلَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَحِكَ حَتّٰى بَدَتْ

نَوَاجِذُهُ وَكَانَ يَقُولُ ذَاكَ أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً. متفق عليه.

په ما پوري خندا کوې؟ حال دا چي ته پاچا يې ، ابن مسعود وايي ما وليدل چي رسول الله ﷺ د دغه بيان سره وخندل او مخکني غاښونه يې ښکاره سول او ويل يې: په جنتيانو کي به دا

سړی د مرتبې د لحاظ څخه کمزوی سړی وي. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۱۸، رقم: ۶۵۷۱، ومسلم ۱\۱۷۳، رقم: ۳۰۸ - ۱۸۶.

**تشريح** او ویل یې، ددې څخه دا څرګندیږي چې دغه سړی به په جنتیانو کې تر ټولو د کمې درجې وي، دغه الفاظ د رسول الله ﷺ نه دي بلکه د حضرت ابوسعید رضي الله عنه یا د هغه څخه وروسته د راوي دي، نو ددې مطلب به دا وي چې صحابه کرام یا سلفو ددغه حدیث بیانولو وروسته دغه الفاظ ویل چې په حدیث کې د کوم سړي ذکر سوی دی او هغه ته په جنت کې دومره ځای تر لاسه کېدو یادونه ده هغه به د مرتبې او درجې په اعتبار په ټولو جنتیانو کې تر ټولو د کمې درجې وي.

﴿۵۳۴۸﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَأَعْلَمُ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: زه هغه سړی پیژنم چې په

آخِرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُولًا الْجَنَّةَ وَآخِرَ أَهْلِ النَّارِ خُرُوجًا مِنْهَا رَجُلٌ يُؤْتَى بِهِ

جنتیانو کې به تر ټولو په آخر کې جنت ته ځي او تر ټولو په آخر کې به د دوږخه څخه وځي دا به هغه سړی وي چې د قیامت په ورځ به

يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُقَالُ اعْرِضُوا عَلَيْهِ صِغَارَ ذُنُوبِهِ وَارْفَعُوا عَنْهُ كِبَارَهَا

د پروردګار په حضور کې راوستل سي او ملائکو ته به وویل سي دده کوچنې کوچنې ګناهونه دده مخکې پیش کړئ او لوی لوی ګناهونه یې پټ وساتئ نو د هغه کوچنې کوچنې ګناهونه به

فَتُعْرَضُ عَلَيْهِ صِغَارُ ذُنُوبِهِ فَيُقَالُ عَمِلْتَ يَوْمَ كَذَا وَكَذَا كَذَا وَكَذَا وَعَمِلْتَ

ورته ښکاره کړل سي او هغه ته به وویل سي چې تا په فلانی ورځ دا خراب کار کړی وو او په فلانی ورځ دې داسې کړي وه،

يَوْمَ كَذَا وَكَذَا كَذَا وَكَذَا فَيَقُولُ نَعَمْ لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يُنْكِرَ وَهُوَ مُشْفِقٌ مِنْ

هغه به وایي هو ما داسې کړي وه هغه به د هغه ګناهونو څخه انکار نه کوي ځکه چې هغه به

كِبَارِ ذُنُوبِهِ أَنْ تُعْرَضَ عَلَيْهِ فَيُقَالُ لَهُ فَإِنَّ لَكَ مَكَانَ كُلِّ سَيِّئَةٍ حَسَنَةً

د لویو لویو گناهونو څخه په بیره کې وي ، بیا به هغه ته وویل سي ستا د هري بدۍ په بدله کي تا ته یوه نیکي درکړل سوه ،

فَيَقُولُ رَبِّ قَدْ عَمِلْتُ أَشْيَاءَ لَا أَرَاهَا هَا هُنَا وَلَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَحِكَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ . رواه مسلم

ددې اوریدو سره به هغه وایي اې پروردگاره ! ما خو نور هم ډیر بدبد کارونه کړي دي چي هغه زه په دې کي نه وینم ، ابوذر ﷺ وایي ما ولیدل چي رسول الله ﷺ ددغه بیان کولو سره وخندل، چي آخرني غاښونه یې ښکاره سول. مسلم.

**تخريج** : صحيح مسلم: ۱\۱۷۷، رقم: ۳۱۴- ۱۹۰.

## د دوږخ څخه د وتونکي یو سړي واقعه

﴿۵۳۴۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَخْرُجُ مِنَ

د حضرت انس ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : و به ایستل سي د

النَّارِ أَرْبَعَةٌ فَيُعْرَضُونَ عَلَى اللّٰهِ ثم يؤمر بهم الى النار فَيَلْتَفِتُ أَحَدُهُمْ

دوږخ څخه څلور کسان او د الله تعالی حضور ته به راوستل سي بیا به دوږخ ته د هغوئ د تللو حکم وکړل سي په هغوئ کي به یو مخ را واړوي

فَيَقُولُ أَيْ رَبِّ لقد كنت ارجوا إِذْ أَخْرَجْتَنِي مِنْهَا ان لا تعيدني فِيهَا قال فَيُنْجِيهِ اللّٰهُ مِنْهَا. رواه مسلم.

او الله تعالی ته به عرض وکړي اې پروردګاره! زما خو دا امید وو چي هر کله ته ما د دوږخ څخه راوباسي نو دویم وار به مي هلته نه لیږې ددې ویلو سره رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی به هغه ته د دوږخ څخه نجات ورکړي.مسلم.

**تخريج** صحيح مسلم ۱\۱۸۰، رقم: ۳۲۱- ۱۹۲.

**تشريح**: د هغه خلکو د دوږخ څخه را ایستل بیا دوهم وار دوږخ ته د استولو حکم کول او بیا

خلاصون ورکول به په اصل کي د هغوئ د امتحان او د هغوئ عزت کولو لپاره وي ، څرګنده دي وي چي په پای کي د هغوئ څخه یوازي د یوه سړي حال بیان سوی دی او د پاته درو کسانو هیڅ یادونه نه ده سوې نو ددې وجه داده چي پر هغه یوه سړي به په قیاس کولو سره د ټولو حال معلومیږي چي هغوئ ټول به هم داسي خلاصون مومي، او دلته د څلورو کسانو یادونه یوازي د مثال په توګه ده او په اصل کي د داسي خلکو څخه یوه پوره ډله او یوه لویه طبقه مراد ده .

## د مؤمنانو په عذاب کي اخته کولو وجه

﴿۵۳۵۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْلُصُ

د حضرت ابو سعید رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : مسلمانان به د دوږخ څخه

الْمُؤْمِنُونَ مِنَ النَّارِ فَيُحْبَسُونَ عَلَى قَنْطَرَةٍ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ فَيُقَصُّ

وایستل سي او پر هغه پل به تم کړل سي چي د جنت او دوږخ په منځ کي دی (یعني پل صراط باندي) بیا به د هغوئ د حقوق بدله واخیستل سي

لِبَعْضِهِمْ مِنْ بَعْضٍ مَظَالِمُ كَانَتْ بَيْنَهُمْ فِي الدُّنْيَا حَتَّى إِذَا هُذِّبُوا وَنُقُّوا أُذِنَ

کوم چي واقع سوې وه د دوئ په مینځ کي په دنیا کي تر دې چي هغوئ به بلکل پاک سي نو د

لَهُمْ فِي دُخُولِ الْجَنَّةِ فَوَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَأَحَدُهُمْ أَهْدَى بِمَنْزِلِهِ فِي الْجَنَّةِ مِنْهُ بِمَنْزِلِهِ كَانَ له فِي الدُّنْيَا. رواه البخاري.

هغوئ په جنت کي د داخلیدو اجازه به ورکړل سي ، قسم دی په هغه ذات چي د هغه په قبضه کي زما ساه ده چي په هغوئ کي به هر یو خپل هغه ځای چي په جنت کي به وي په دنیا کي د خپل ځای څخه زیات پیژني . بخاري.

**تخریج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۹٦١٥، رقم: ۲۴۴۰.

**تشریح** تر څو چي هغه خلک بالکل پاک سي...الخ: ددې څخه معلومیږي چي ګناه کار مؤمنان دوږخ ته سپارل او په عذاب کي اخته کول به د هغوئ د پاکولو لپاره وي چي هغوئ په پوره توګه په جنت کي چي د هغوئ د تل اوسېدو ځای دی، داخل سي نه دا چي الله جل جلاله به هغه مؤمن بندګان د نفرت، عداوت او قهر په وجه په دوږخ کي اچوي او د هغه دا حکمت په دنیا کي

هم دي چي هغه خپل بندګان په ناروغيو، ﭘﯧﺒﻨﻮ او مختلفو تکليفو کي په اخته کولو سره د هغوئ ګناهونه پرېولي، اهل تحقيق ويلي دي چي په مختلفو وختونو کي د بندګانو څخه کوم ګناهونه کيږي په هغو کي ځيني ګناهونه د حق په لاره کي د زغمل سوو تکليفونو او مختلفو مصيبتونو کي د اخته کېدو په وجه پرېولل کيږي، ځيني ګناهونه هغه وي چي د سکرات الموت په سختۍ سره پاکيږي ، ځيني ګناهونه هغه وي چي د قبر د عذاب سره ختميږي او ځيني ګناهونه هغه وي چي د دوږخ د اور څخه پرته په بل شي نه پاکيږي لکه چي سره زر او سپين زر په بټۍ کي اچولو سره د ويلي کېدو پرته نه پاکيږي.

په دوئ کي به هر سړی هغه ځای ...الخ: دلته د زړه هغه نورانيت او هدايت ته اشاره ده چي د ګناهونو څخه د پاکېدو په صورت کي تر لاسه کيږي او په دې کي دې ته هم اشاره ده چي کله دغه خلکو (يعني مؤمنانو) په دنيا کي د نور توفيق او د نور قلب په رڼا کي د ايمان، عمل صالح او تعلق مع الله لار تر لاسه کوي، او هدايت يافته سوي وي، نو هغوئ به په آخرت کي هم په جنت کي د خپل منزل او د خپل مقام لار په اسانۍ سره تر لاسه کوي.

## د هر بنده لپاره په جنت او دوږخ کي ځايونه خاص دي

﴿۵۳۵۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک به تر هغه وخته

أَحَدٌ الْجَنَّةَ إِلَّا أُرِيَ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ لَوْ أَسَاءَ لِيَزْدَادَ شُكْرًا وَلَا يَدْخُلُ النَّارَ

پوري په جنت کي نه داخليږي تر څو پوري چي هغه ته هغه ځای ونه ښودل سي که هغه بدکارونه کولای نو هغه لپاره به دوږخ کي ټاکل سوی وای او دا ددې لپاره چي د هغه په زړه کي شکر ګزارۍ جذبه زياته سي او څوک به تر هغه وخته پوري دوږخ ته نه سي لېږل کيدلای

أَحَدٌ إِلَّا أُرِيَ مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ لَوْ أَحْسَنَ لِيَكُونَ عَلَيْهِ حَسْرَةً. رواه البخاري

تر څو پوري چي هغه ته په جنت کي د هغه ځای ونه ښودل سي چي هغه لپاره به ټاکل سوی وي که هغه ښه کارونه کړي وي دا ددې لپاره چي د هغه حسرت زيات سي. بخاري.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۱۸، رقم: ۶۵۶۹.

## كله چي مرګ هم مرګ ته حواله سي

﴿۵۳۵۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَارَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي جنتيان په جنت

أَهْلُ الْجَنَّةِ إِلَى الْجَنَّةِ وَأَهْلُ النَّارِ إِلَى النَّارِ جِيءَ بِالْمَوْتِ حَتَّى يُجْعَلَ بَيْنَ

كي او دوږخيان په دوږخ كي داخل سي نو مرګ به راوستل سي او هغه به د دوږخ او جنت په منځ

الْجَنَّةِ وَالنَّارِ ثُمَّ يُذْبَحُ ثُمَّ يُنَادِي مُنَادٍ يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ لَا مَوْتَ وَيَا أَهْلَ النَّارِ

كي ذبح كړل سي بيا به اعلان وكړل سي چي اې جنتيانو او اې دوږخيانو ! اوس به مرګ نه راځي

لَا مَوْتَ فَيَزْدَادُ أَهْلُ الْجَنَّةِ فَرَحًا إِلَى فَرَحِهِمْ وَيَزْدَادُ أَهْلُ النَّارِ حُزْنًا إِلَى

حُزْنِهِمْ. متفق عليه.

ددې اوريدو سره به د جنتيانو خوشحالي تر پخوا زياته سي او دوږخيان به تر پخوا په رنج او غم كي ډوب سي. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۱۵، رقم: ۶۵۴۸، ومسلم ۴\۲۱۸۹، رقم: ۴۳- ۲۸۵۰.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### حوض كوثر ته تر ټولو مخكي راتلونكي فقراء مهاجرين

﴿۵۳۵۳﴾: عَنْ ثَوْبَانَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حَوْضِي مِنْ عَدَنَ

د حضرت ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما د حوض اوږدوالى دومره

إِلَى عَمَّانَ الْبَلْقَاءِ مَاؤُهُ أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ وَأَكَاوِيبُهُ عَدَدُ

دى لكه څومره فاصله چي د عدن او عمان بلقاء په منځ كي ده ددې حوض اوبه د شيدو څخه زياتي سپيني او د شاتو څخه زياتي خوږې دي ددې لوښي د چينبلو لوښو تعداد

نُجُومِ السَّمَاءِ مَنْ شَرِبَ مِنْهُ شَرْبَةً لَمْ يَظْمَأْ بَعْدَهَا أَبَدًا أَوَّلُ النَّاسِ وُرُودًا

د آسمان د ستورو سره برابر دی، چا چي يو وار ددې څخه اوبه وڅښلې بيا به هغه هيڅکله نه تږی کيږي، د ټولو څخه مخکي به حوض ته

عَلَيْهِ فُقَرَاءُ الْمُهَاجِرِينَ الشُّعْثُ رُءُوسًا الدُّنْسُ ثِيَابًا الَّذِينَ لَا يَنْكِحُونَ

فقراء د مهاجرينو راځي چي د هغوئ د سر ويښتان پريشانه او جامې خيرني وي او هغه فقراء او مهاجرين چي د هغوئ سره به د اسوده حاله ښځو نکاح نه کېدل (په دنيا کي)

الْمُتَنَعِّمَاتِ وَلَا تُفْتَحُ لَهُمُ السُّدَدُ. رواه احمد والترمذي وابن ماجه وقال الترمذي هذا حديث غريب

او د هغوئ لپاره (په دنيا) کي د کورونو بندي دروازې نه خلاصيدلې. احمد ، ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۵\۲۷۵، رقم: ۲۴۴۴، وابن ماجه ۲\۱۴۳۸، رقم: ۴۳۰۳.

**د لغاتو حل** : الشعث: جمع اشعث اي المتفرقو الشعر. السدد : جمع سدة وهي باب الدار (دروازه)

**تشريح**: څرنګه چي مخکي هم د يو حديث تشريح سوې ده ، عدن د يوې کوچنۍ جزيرې نوم دی چي مخکي د يمن بندرګاه وه ، څه وخت مخکي پر دغه جزيره د انګرېزانو قبضه وه خو اوس د يو خودمختاره رياست حيثيت لري، عدن د بحر احمر پر جنوبي سر باندي واقع دی چيري چي خليج عدن، بحر احمر او بحير عرب يو ځای کيږي ، همدارنګه عمان هم د يو ښار نوم دی چي د بحر احمر پر شمالي سر باندي مخکي د شام يوه برخه وه او اوس د اردن هيواد پلازمينه ده ، بلقاء په اصل کي د يو پخواني ښار نوم دی چي په يو وخت کي د شام پلازمينه د دمشق نژدې واقع وو ، او عمان ددغه ښار بلقان سره متعلق يوه صحرايي سيمه ده ، له دې کبله په حديث کي عمان بلقاء فرمايل سوي دي، خلاصه دا چي په آخرت کي به ما ته حوض کوثر راکړل سي د هغه د اوږدوالي فاصله به دومره وي څومره فاصله چي د عمان بلقاء او عدن په منځ کي وي، په اوسني وخت کي دغه فاصله د پوره بحر احمر پر اوږدوالي باندي قياس کېدای سي چي حوض کوثر د بحر احمر په اندازه اوږد دی، او دا خبره مخکي هم بيان سوې ده چي د حوض کوثر د پراخوالي بيانولو لپاره په مختلفو حديثونو کي د مختلفو ښارونو او سيمو د درمياني فاصلې يادونه سوې ده ، دمثال په توګه په دغه حديث کي د عدن او عمان بلقاء د درمياني فاصلې يادونه ده ، په يوه حديث کي دادي چي د حوض کوثر اوږدوالی د ايلاء او صنعاء د درمياني

فاصلې په اندازه ده او په يوه حديث كي د دوو مياشتو په مسافت اندازه ذكر سوې ده او داسي نور ، نو حقيقت دادی چي په هيڅ حديث كي د حوض كوثر اوږدوالی او پراخوالی په ټاكلې توګه سره ښودل مقصد نه دي بلكه ددغه ټولو حديثونو اصل مقصد يوازي د حوض د اوږدوالي او پلنوالي ظاهرول دي نو پر كومي موقع باندي چي مخاطب او سامع د كومو سيمو او ښارونو درمياني فاصلو معلومات درلود د هغه سره سم د تمثيل په توګه د ښارونو او سيمو يادونه يې وفرمايل.

دغه حوض ته د اوبو څښلو لپاره تر ټولو مخكي راتلونكي خلک به فقراء مهاجرين وي، فقراء مهاجرينو ته به دا خاص شرف ځكه تر لاسه وي چي په دنيا كي د دين لپاره هغوئ تر ټولو زياتي لوږي او تندي زغملي دي، تر ټولو زيات د تباهۍ او پريشانۍ ښكار دغه خلک سوي دي ځكه په آخرت كي به تر ټولو مخكي هم دغه خلک پر حوض كوثر اوبه كيږي او تر ټولو مخكي به هلته دوئ ته ښه راغلاست ويل كيږي ، دا مفهوم په يو بل حديث كي داسي بيان سوی دی : (اجوعكم في الدنيا اشبعكم في الاخرة)، په تاسو كي چي كوم كسان په دنيا كي تر ټولو زيات وږي وه هغوئ به په آخرت كي تر ټولو زيات ماړه وي.

او الله ﷻ به په جنت كي داسي خلكو ته حكم وركړي چي :

كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا أَسْلَفْتُمْ فِي الأَيَّامِ الْخَالِيَةِ

په ښه خوند سره خورئ او څښئ، د هغه صورت په بدله كي چي د هغه سره تاسو په تېرو ورځو كي مخامخ واست.

څرګنده دي وي چي د مهاجرين څخه مراد هغه خلک دي چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي د مكې څخه په هجرت كولو سره مدينې ته راغلي وه او رسول الله ﷺ د هغوئ مشر وو، او دهغوئ په حكم كي هغه خلک هم دي چي هغوئ د دين لپاره د خپل اصلي هيواد څخه هجرت اختيار كړ او كله مكې مكرمې يا مدينې منورې ته په تللو سره يوازي پر دې يې اكتفاء ونه كړل بلكه د راحت او خوشحالۍ پر ژوند باندي يې فقر او مفلسۍ ته ترجيح وركړل او د الله ﷻ د رضا لپاره يې د مال او سامان هڅي پرېښودلې او د علم او عمل په تر لاسه كولو كي بوخت سول.

او د كومو كسانو لپاره چي دروازې نه خلاصيږي، يعني كه چيري هغه خلک د يو ضرورت سره سم يا بېله ضرورت د يو دنيادار دروازې ته ورسي نو د هغوئ د ظاهري حال په وجه به هغه دنيادار هغوئ ددې قابل هم نه ګڼي چي ځان ته يې نژدې پرېږدي، دا ګويا ددې خبري كنايه ده

چي دغه خلک د خپل ظاهري حالت په وجه د شتمنو په نزد د مېلمتسيا او بلني وړ هم نه گڼل کيږي او په ټولنيز او مجلسي تعلقاتو کي هغوئ ته هيڅ توجه نه کيږي.

## حوض کوثر ته راتلونکي کسان به بې شمېره وي

﴿۵۳۵۴﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره په سفر کي وو چي موږ

فَنَزَلْنَا مَنْزِلًا فَقَالَ مَا أَنْتُمْ جُزْءٌ مِنْ مِائَةِ أَلْفِ جُزْءٍ مِمَّنْ يَرِدُ عَلَيَّ الْحَوْضَ قِيلَ كَمْ كُنْتُمْ يَوْمَئِذٍ قَالَ سَبْعُ مِائَةٍ أَوْ ثَمَانِ مِائَةٍ. رواه ابوداؤد.

پر يو ځای تم سوو ، رسول الله ﷺ خلکو ته وفرمايل : تاسو د سلو زرو حصو څخه يوه حصه ياست چي حوض کوثر ته به ما ته راځي ، خلکو د زيد بن ارقم څخه پوښتنه وکړه چي په دغه ورځ ستاسو شمير څومره وو هغه وويل اووه سوه يا اته سوه . ابوداؤد.

**تخريج** : سنن ابي داود ۵\۱۱۰، رقم: ۴۷۴۶.

**تشريح** ددې څخه تحديد او تعين مراد نه دی بلکه پر حوض کوثر باندي د راتلونکو خلکو زياتوب بيانول مراد دي چي هلته د اوبو څښلو لپاره به د راتلونکو خلکو شمېر بې شمېره وي.

## هر نبي ته يو حوض ورکړل سوی دی

﴿۵۳۵۵﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوْضًا وَإِنَّهُمْ يَتَبَاهَوْنَ أَيُّهُمْ أَكْثَرُ وَارِدَةً وَإِنِّي أَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَكْثَرَهُمْ وَارِدَةً. رواه الترمذي.

د حضرت سمرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په جنت کي به د هر نبي يو حوض وي او انبياء به په دې فخر کوي چي د چا حوض ته زيات خلک راځي او زما اميد دی چي تر ټولو زيات خلک به زما حوض ته راځي. ترمذي.

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۵۴۲، رقم: ۲۴۴۳.

**تشريح** مطلب دا چي د رسول الله ﷺ د امت د خلکو شمېر به د نورو ټولو امتونو په نسبت

زيات وي ځکه د رسول الله ﷺ حوض ته به د اوبو څښښلو لپاره د راتلونکو شمېر تر ټولو زيات وي او دا خبره بالکل يقيني ده او هيڅ شک پکښې نسته ، نو رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي زه اميد لرم او ددې څخه چي د شک او تردد مفهوم څرګنديږي نو دا به محض د تواضع او خاکسارۍ په وجه وي .

## د قيامت په ورځ به رسول الله ﷺ په کوم کوم ځای کي وي

﴿۵۳۵۶﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَشْفَعَ لِي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چي د قيامت په ورځ زما

يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَقَالَ أَنَا فَاعِلٌ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَأَيْنَ أَطْلُبُكَ قَالَ اطْلُبْنِي

شفاعت وکړه ، رسول الله ﷺ وفرمايل زه کونکی د شفاعت يم ، ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! زه به تاسو په کوم ځای کي ولټوم ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:

أَوَّلَ مَا تَطْلُبُنِي عَلَى الصِّرَاطِ قُلْتُ فَإِنْ لَمْ أَلْقَكَ عَلَى الصِّرَاطِ قَالَ فَاطْلُبْنِي

په لومړی کي ما پر پل صراط ولټوه ، ما عرض وکړ که تاسو پر پل صراط نه واست ؟ نو رسول الله ﷺ وفرمايل : نو پر ميزان باندي، ما وويل : که پر ميزان باندي هم تاسو نه واست ؟ نو

عِنْدَ الْمِيزَانِ قُلْتُ فَإِنْ لَمْ أَلْقَكَ عِنْدَ الْمِيزَانِ قَالَ فَاطْلُبْنِي عِنْدَ الْحَوْضِ فَإِنِّي لَا أُخْطِئُ هَذِهِ الثَّلَاثَ الْمَوَاطِنَ. رواه الترمذي و قال حديث غريب.

رسول الله ﷺ وفرمايل : پر حوض کوثر باندي زه به دا درې ځايونه نه پرېږدم . ترمذي.

**تخريج** . سنن الترمذي ۵۳۷\۴، رقم: ۲۴۳۳.

**د لغاتو حل** : لا اخطئ: اي لا اتجاوز (تجاوز نه کوم)

**تشريح** . د رسول الله ﷺ د جواب خلاصه دا وه چي د قيامت په ورځ به دغه درې ځايونه داسي وي چيري چي به خلکو ته زياته پريشاني او تکليف وي، او دا به هغه ځايونه وي چيري چي به پېښېدونکي حالات د شفاعت غوښتونکي وي نو زه به په دغه درو ځايو کي وار په وار موجود يم ، کله دلته او کله هلته او همدارنګه زه به په هغه ورځ پر دغه ځايو باندي د خلکو څارونکی او د هغوئ په اړه بوخت يم .

که دا سوال پیدا سي چي دغه حدیث په ظاهره د بي بي عائشې ﷺ د هغه حدیث خلاف دی کوم چي د باب الحساب په دوهم فصل کي تېر سوی دی او په هغه کي بیان سوی دی چي بي بي عائشې ﷺ د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړل چي تاسو به د قیامت په ورځ خپله کورنۍ په یاد ولرئ، رسول الله ﷺ وفرمایل: په هغه ورځ به په درو ځایو کي هیڅوک د چا په یاد نه وي، نو ددې جواب دادی چي د بي بي عائشې ﷺ حدیث پر غائبین باندي محمول دی، مطلب دا چي په هغه ورځ به دغه درې ډول خلک کوم چي د رسول الله ﷺ مخکي وي او د رسول الله ﷺ سره یې تعلق نه وي نو رسول الله ﷺ به خپله هغوئ نه یادوي او دا د حضرت انس ﷺ حدیث پر حاضرینو باندي محمول دی یعني د رسول الله ﷺ د امت څخه چي کوم خلک په دغه درو ځایو کي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر وي او خپل ځان ته یې متوجه کوي نو رسول الله ﷺ به هغوئ ته یې توجه کوي او د هغوئ خاص شفاعت به کوي، طیبي رحمة الله علیه د دغه دواړو حدیثونو په منځ کي د مطابقت پیدا کولو لپاره لیکلي دي چي رسول الله ﷺ، بي بي عائشې ﷺ ته یاد سوی جواب ځکه ورکړ چي هغه د رسول الله ﷺ زوجه مطهره وه او دا بېره وه چي هغه د رسول الله ﷺ په محض شفاعت او خاص توجه باندي په باور کولو سره کښېني او د عمل څخه بې فکره سي، نو رسول الله ﷺ خپلو قریبانو او کورنۍ ته دا وفرمایل چي زه ستاسو د اخروي معاملاتو ذمه دار نه یم پر ما باندي په محض باور کولو سره مه کښېنئ په آخرت کي به ستاسو عمل تاسو ته ګټه رسوي، ددې پر خلاف رسول الله ﷺ، انس ﷺ ته دا جواب ځکه ورکړ چي هغه نا امیده نه سي او هغه چي د کوم قلبي تعلق او اخلاص په وجه دا غوښتنه کړې وه نو د هغه غوښتنه داوه چي هغه ته همدا سي د میني او تعلق ځواب ورکړل سي، په هر حال دا خبره باید په فکر کي وي چي هغه ورځ به د خپلي سختۍ او مشقت په اعتبار ډېره سخته وي که څه هم رسول الله ﷺ ته د شفاعت مقام تر لاسه کېدل او د رسول الله ﷺ شفاعت کول حق دی مګر په هغه ورځ د خلاصون تر لاسه کولو لپاره په دنیا کي د عملي ژوندي ښکلي کولو او صحیح کولو ضرورت هم مسلم دی، محض د رسول الله ﷺ په شفاعت باندي باور کول کافي نه دي او یوازي په اعمالو باندي په اعتماد کولو سره د رسول الله ﷺ د شفاعت څخه بې نیازي هیڅ معنی نه لري نو رسول الله ﷺ بې بي عائشې ﷺ او حضرت انس ﷺ ته بېل بېل جواب ورکړ او هغه دواړه په خپل خپل ځای کي صحیح وه او په هر جواب کي د مخاطب د حالاتو رعایت ملحوظ وو.

## د مقام محمود او د الله جل جلاله د کرسۍ ذکر

﴿۵۳۵۷﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قِيْلَ لَه مَا

د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روايت دی چې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وسول چې مقام

الْمَقَامُ الْمَحْمُوْد قَالَ ذٰلِكَ يَوْمٌ يَنْزِلُ اللهُ تَعَالٰى عَلٰى كُرْسِيِّهٖ فَيَئِطُّ كَمَا يَئِطُّ

محمود څه شي دی ؟ چې په دغه آيت کې د هغه وعده سوې ده (عسى ان يبعثک ربک مقاما محمودا) رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : دا مقام محمود به په هغه ورځ تر لاسه کيږي په کومه ورځ چې الله تعالی پر خپله کرسۍ کښيني او دا کرسۍ به داسې چغهار کوي لکه څرنګه چې نوې

الرَّحْلُ الْجَدِيْدُ مِنْ تَضَايُقِهٖ وَهُوَ كَسَعَةٍ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَيُجَاءُ

کجاوه د تنګوالي په وجه چغهار کوي، د کرسي پراخ والي دومره دی لکه د آسمان او مځکې په منځ کې فضا ، بيا به تاسو لوڅ او نا سنته راوستل سئ او کومو خلکو ته چې په دغه ورځ لباس

بِكُمْ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلاً فَيَكُوْنُ أَوَّلَ مَنْ يُّكْسٰى إِبْرَاهِيْمُ يَقُوْلُ اللهُ تَعَالٰى

واغوستل سي په هغوئ کې به تر ټولو لومړی حضرت ابراهيم عليه السلام وي الله جل جلاله به ووايي زما خليل ته جامې ور واغوندی نو دوه سپين رنګې څادرونه به د جنت له څادرونو څخه راوړل

أُكْسُوْا خَلِيْلِيْ فَيُؤْتٰى بِرَيْطَتَيْنِ بَيْضَاوَيْنِ مِنْ رِيَاطِ الْجَنَّةِ ثُمَّ أُكْسٰى عَلٰى إِثْرِهٖ

ثُمَّ أَقُوْمُ عَنْ يَمِيْنِ اللهِ مَقَامًا يَغْبِطُنِيْ الْأَوَّلُوْنَ وَالْآخِرُوْنَ . رواه الدارمي.

سي ،د هغه څخه وروسته به ما ته جامه را واغوستل سي بيا به زه د الله تعالی راسته خوا ته ودريږم او مخکني او وروستني ټول خلک به غبطه را سره وکړي . دارمي.

**تخريج** سنن الدارمي ۲\۴۱۹، رقم: ۲۸۰۰.

**د لغاتو حل** : فيئط : اي يصوت الكرسي. بريطتين: هي الملاءة الرقيقة اللينة من الكتان.

**تشريح** په دغه حديث کې د پروردګار د کرسي د پراختيا او وسعت بيانولو لپاره د مځکې او آسمان درمياني فاصلې مثال ورکړل سوی دی حال دا چې په يوه حديث کې دا فرمايل سوي دي چې د پراختيا بيانولو لپاره ددغه کرسۍ په مقابله کې د اوو آسمانو او اوو مځکو مجموعي

حیثیت همدومره دی لکه په یو لوی ځنګل کي یوه کوچنۍ غونډۍ او د هغه کرسۍ په مقابله کي د عرش حیثیت داسي دی لکه د هغه غونډۍ په مقابله کي ټول ځنګل، نو په دغه حدیث کي چي د کرسۍ د کومي پراختیا بیان سوی دی هغه د تعین او تحدید په توګه نه دی بلکه د عامو خلکو د ذهن او فهم مطابق محض د مثال په توګه دی، لکه څرنګه چي د وسعت او پراختیا محض د تمثیل په توګه بیانولو لپاره دا فرمایل سوي دي چي : عرضها السموات والارض، ددې څخه پرته ددغه پراختیا د بیانولو یو خاص مقصد دا وو چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د الله ﷻ دنزول اجلاس فرمایلو په وجه کرسۍ داسي آواز کوي ، نو رسول الله ﷺ دا څرګندول ضروري وګڼل چي د کرسۍ د آواز کولو خبره او نوي پوست د تنګ زین د مشابهت څخه دا ګڼل نه دي پکار چي هغه کرسۍ به هم کوچنۍ او تنګه وي، بلکه هغه کرسۍ دومره عظیمه او پراخه ده چي د هغه معمولي اندازه تاسو د مځکي او آسمان د درمیاني فاصلې سره تصور کړئ، په هر حال دا باید په ذهن کي وي چي د حدیث الفاظ د هغه متشابهاتو څخه دي چي د هغه حقیقي معنی د انساني علم او ذهن څخه لیري ده، نو مفردات عبادت لکه پر کرسۍ باندي د الله ﷻ د ناستي، دکرسۍ آواز کول او د کرسۍ د مځکي او آسمان د منځنۍ فاصلې په اندازه پراختیا او داسي نور شیان حقیقت ته رسېدل بېله مفهومه د حدیث خلاصه اختیارول پکار دي چي هغه داده چي ددغه حدیث په ذریعه د قیامت په ورځ د الله ﷻ عظمت او لویي او دهغه د پاچاهۍ اظهار کول مقصد دي.

په هغه ورځ به تر ټولو وړاندي چي کوم سړي ته جامه اغوستل کیږي هغه به حضرت ابراهیم علیه السلام وي، په دې اړه یادونه د باب الحشر په اول فصل کي هم تېره سوې ده او دا خبره هم هلته ښودل سوې ده چي ددې څخه دا خبره ثابتیږي چي حضرت ابراهیم علیه السلام پر رسول الله ﷺ باندي فضیلت لري بلکه حقیقت دادی چي په هغه ورځ به حضرت ابراهیم علیه السلام ته تر ټولو مخکي د جامې اغوستلو شرف او اکرام په دې وجه حاصل وي چي هغه علیه السلام د رسول الله ﷺ روحاني پلار دی او د رسول الله ﷺ د دین او دملت لړۍ دده څخه روانه ده، ددې څخه پرته حضرت ابراهیم علیه السلام ته تر لاسه کېدونکي شرف زیات تر زیات پر رسول الله ﷺ باندي جزوي فضیلت ورته ویل کیدای سي او دا بالکل ظاهره ده چي جزوي فضیلت د کلي فضیلت خلاف نه وي بلکه په هغه ورځ به هم د رسول الله ﷺ بالعموم او علی الاطلاق پر ټول انسانیت باندي سره د پیغمبرانو او انبیاؤ افضل کېدل خپله ددغه حدیث د آخري الفاظو (ثم اقوم عن یمین الله..الخ) څخه څرګند او ثابت دي .

ددې وروسته به ما ته جامه راوغوستل سي، دغه ارشاد په ظاهره د هغه روايت خلاف دی چې په هغه کې بيان سوي دي چې رسول الله ﷺ به د قيامت په ورځ دخپل قبر څخه په جامو کې راپاڅي مګر که دا وضاحت په نظر کې وي نو بيا د دواړو روايتو په منځ کې هيڅ اختلاف نه پاته کيږي که څه هم رسول الله ﷺ د خپل قبر څخه په جامه کې راپاڅي مګر د حشر په ميدان کې به رسول الله ﷺ ته د ټولو انبياؤ سره دوهم ځل جامه واغوستل سي او دا به د رسول الله ﷺ د کمال شرف او احترام د اظهار لپاره وي.

د حديث په آخرني الفاظو کې يو لوی سوال پيدا کيږي چې د رسول الله ﷺ څخه د سوي پوښتني او د رسول الله ﷺ له خوا د ورکړل سوي جواب په منځ کې مطابقت څه دی؟ ددې جواب دادی چې پوښتنه کونکي د مقام محمود په اړه پوښتنه کړې وه چې ددې نوعيت او صورت به څه وي؟ رسول الله ﷺ ددې جواب ور نه کړ بلکه مخکې يې د هغه ورځې د بيرې څخه ډک ماحول يادونه وکړل چې د خلکو په ذهن کې د هغه شی لويي او ارزښت پوخ سي چې د هغه په اړه هغوئ سوال کړی دی وروسته رسول الله ﷺ په دغه الفاظو (ثم اقوم عن يمين الله...الخ) بيا به زه د الله جل جلاله راسته خوا ته ودريږم ...الخ، په ذريعه د هغه د سوال جواب ته اشاره وکړه، ګويا رسول الله ﷺ بالواسطه دا جواب ورکړ چې مقام محمود هغه ځای دی چيري چې به زه د قيامت په ورځ دالله جل جلاله راسته خوا ته ودريږم او هغه به تر ټولو لوی شرف او اکرام وي چې زما څخه پرته هيچا ته به تر لاسه نه وي، او داول څخه تر پايه پوري ټول کائنات به ما ته پر دغه راکړل سوي شرف او عزت باندي فخر کوي، نو دغه وينا ددې خبري څرګند ثبوت دی چې زموږ حضرت محمد ﷺ پر ټولو کائناتو تر دې چې پر انبياؤ او رسولانو باندي هم فضيلت لري.

## پر پل صراط باندي د مؤمنانو پېژندنه

﴿۵۳۵۸﴾: وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ شِعَارُ الْمُؤْمِنِ عَلَى الصِّرَاطِ رَبِّ سَلِّمْ سَلِّمْ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت مغيرة بن شعبة رضی الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به پر پل صراط د مؤمنانو نښه دا الفاظ وي (رب سلم سلم) يعني مؤمنان به دا الفاظ وايي چې پروردګاره! موږ سلامت لرې، موږ سلامت لرې. ترمذي.

**تخريج** سنن الترمذي ۱۴\۵۳۹، رقم: ۲۴۳۵، وابوداود ۱۰۶\۵، رقم: ۴۷۳۹.

**تشریح**: شعار، چي ژباړه یې د نښني سوې ده په اصل کي هغه خاص اصطلاحي لفظ یا جملې ته وایي چي فوجیان یې په خپلو کي د یو بل پېژندني لپاره، یا سفر کوونکي یې د سفر په دوران کي د یو بل د پېژندني لپاره استعمالوي، د قیامت په ورځ به پر پل صراط باندي د تېرېدو په وخت کي د مؤمنانو د شناخت لپاره رب سلم سلم (پروردګاره موږ وساتې) الفاظ پر ژبه وي او د هر امت خلک به چي د خپل پیغمبر او رسول پیروان وه، ددغه الفاظو په ویلو سره وړاندي ځي مګر صحیح خبره داده چي داسي د پېژندني الفاظ به یوازي د مؤمنانو کاملینو شعار وي یعني باعمل علماء، شهداء او صالحین چي هغوئ ته به د انبیاؤ او رسولانو د پیروی په صدقه کي د شفاعت مرتبه تر لاسه وي.

ابن مردویه رحمة الله علیه د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه مرفوعا نقل کړي دي چي د قیامت په ورځ کله چي خلک د قبرو څخه پاڅول کېږي نو هغه وخت د مؤمنانو شعار (لااله الاالله وعلی الله فلیتوکل المؤمنین) وي او شیرازي رحمة الله علیه د عائشې رضي الله عنها دغه روایت نقل کړی دی چي د قیامت په ورځ به د هغه ورځي په سختو تیارو کي د مؤمنانو شعار (لا اله الاانت) وي.

## د ګناه کبیره شفاعت یوازي ددغه امت لپاره خاص دی

﴿۵۳۵۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ شَفَاعَتِي لِأَهْلِ الْكَبَائِرِ مِنْ أُمَّتِي. رواه الترمذي و ابوداؤد و رواه ابن ماجه عن جابر.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زما شفاعت به د کبیره ګناهونو لپاره خاص وي (یعني بل هیڅ یو پیغمبر به د ګناه کبیره شفاعت نه سي کولای). ترمذي. ابوداؤد او ابن ماجه د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت کوي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۱۴\۵۳۹، رقم: ۲۴۳۵. وابوداود ۵\۱۰۶.

**تشریح**: مطلب دا چي د لویو ګناهونو د بخښني لپاره زما شفاعت به یوازي زما د امت د هغه خلکو لپاره خاص وي، د نورو خلکو لپاره به نه وي، طیبي رحمة الله علیه ویلي دي دلته چي د کوم شفاعت یادونه ده د هغه څخه مراد هغه شفاعت دی چي د عذاب څخه د خلاصون لپاره به وي کنه نو شفاعت په درجو او اکرام کي د زیاتوب لپاره وي چي د اتقیاء، اولیاء او صالحینو په اړه هم ثابت دی.

**د شفاعت ثبوت او ډولونه**: د شفاعت په اړه چي کومي اصولي خبري د باب په پیل کي تېري سوي دي، له هغو څخه د یو څو نقل کول مناسب معلومېږي، لومړی خبره داده چي د اهل

سنتو په نزد د قيامت په ورځ شفاعت کول ددغه آيت څخه ثابت دي :

يَوْمَئِذٍ لاَّ تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ إِلاَّ مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمَنُ وَرَضِيَ لَهُ قَوْلاً.

ژباړه: په هغه ورځ به د چا شفاعت کول ګټه نه کوي مګر د هغه چا چي الله ﷻ اجازه ورکړي او د هغه خبره خوښه کړي .

په دې اړه زيات حديثونه نقل سوي دي چي د هغو په يو ځاى کولو سره تواتر ته رسيږي ځکه ټول سلف صالحين، صحابه کرام، تابعين، تبع تابعين او ائمه مجتهدين او نور ، او د ټولو اهل سنتو پر دې اجماع او اتفاق دی ، مګر د خوارجو او معتزلو ځيني ډلي ددې منکر دي او هغوئ د قيامت په ورځ د شفاعت قائل نه دي .

دو همه خبره داده چي د شفاعت پنځه ډولونه دي :

۱. لومړی ډول هغه دی چي يوازي د رسول الله ﷺ لپاره خاص وي، ددغه شفاعت حق او اجازه به بل چا ته تر لاسه نه وي او دا شفاعت به هغه وي چي د هغه تعلق به د ټولو خلکو د موقف د پريشانيو څخه په خلاصون ورکولو سره د حساب او کتاب ژر پيل کولو لپاره وي .

۲. دوهم ډول هغه دی چي ځيني خلک به بېله حسابه په جنت کي د داخلولو لپاره وي او ددغه شفاعت ثبوت هم يوازي زموږ د رسول الله ﷺ لپاره منقول دی .

۳. دريم ډول هغه دی چي د هغه خلکو لپاره وي چي هغوئ به د دوږخ مستحق ګرځول سوي وي نو په هغوئ کي چي د کومو خلکو لپاره الله ﷻ وغواړي د هغوئ شفاعت به زموږ رسول ﷺ کوي.

۴. څلورم ډول هغه دی چي د هغه خلکو لپاره به وي چي هغوئ به د ګناهو په بدل کي په دوږخ کي اچول سوي وي نو ددغه خلکو د شفاعت لپاره چي کوم حديثونه منقول دي د هغو څخه ثابتيږي چي هغه خلک به د رسول الله ﷺ، ملائکو او خپلو مسلمانانو وړونو له خوا د کېدونکي شفاعت په نتيجه کي له دوږخ څخه په را ايستلو سره جنت ته ورسول سي . او بيا په پای کي به خپله الله ﷻ د خپل رحمت په وجه هغه خلکو ته د دوږخ څخه خلاصون ورکړي چا چي لااله الاالله ويلي وي،

۵. پنځم ډول هغه دی چي د هغوئ تعلق په جنت کي د اهل جنت په درجو کي د لوړتيا او اکرام د زياتوب لپاره وي .

## د رسول الله ﷺ شان رحمت

﴿٥٣٦٠﴾: وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عوف بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

أَتَانِي آتٍ مِنْ عِنْدِ رَبِّي فَخَيَّرَنِي بَيْنَ أَنْ يُدْخِلَ نِصْفَ أُمَّتِي الْجَنَّةَ وَبَيْنَ

د الله تعالی د لوري څخه به ما ته یوه ملائکه راغله او ما ته یې د دي اختیار راکړ چي یا خو زه د خپل نیم امت په جنت کي داخلیدل ومنم

الشَّفَاعَةِ فَاخْتَرْتُ الشَّفَاعَةَ وَهِيَ لِمَنْ مَاتَ لَا يُشْرِكُ بِاللَّهِ شَيْئًا. رواه الترمذي وابن ماجه.

یا شفاعت اختیار کړم نو ما شفاعت غوره کړی او زما شفاعت به د هر هغه سړي لپاره وي چي هغه تر مرګه پوري د الله تعالی سره هیڅ شی شریک کړی نه وي. ترمذي او ابن ماجه.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۵۴۱، رقم: ۲۴۴۱، وابن ماجه ۲\۱۴۴۴، رقم: ۴۳۱۷.

## د شفاعت ذکر

﴿٥٣٦١﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ اَبِي الْجَدْعَاءِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ بِشَفَاعَةِ رَجُلٍ مِنْ أُمَّتِي أَكْثَرُ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ. رواه الترمذي والدارمي وابن ماجه.

د حضرت عبدالله بن ابي جدعاء رضي الله عنه څخه روایت دیچي ما د رسول الله ﷺ څخه واوریدل چي زما د امت د یو کس سفارش سره به د بني تمیم قبیلې د خلکو د تعداد څخه زیات خلک په جنت کي داخل سي. ترمذي، دارمي او ابن ماجه.

**تخریج**. سنن الترمذي ۴\۵۴۰، رقم: ۲۴۳۸، وسنن الدارمي ۲\۴۲۳، رقم: ۲۸۰۸، وابن ماجه ۲\۱۴۴۳، رقم: ۴۳۱۶.

**تشریح**: بني تمیم د یوې لوی قبیلې نوم وو چي د هغه قبیلې خلک د زیاتوب په اعتبار د مثال

په توګه یادېدل، خلاصه دا چې کله ددغه امت د یو نیک سړي د شفاعت په نتیجه کې دومره زیات خلک په جنت کي داخلیږي نو اندازه لګول کیږي چې په دغه امت کي به دنیکو خلکو شمېر څومره زیات وي او په هغوئ کي به هر یو شفاعت کوي نو ددغه ټولو د شفاعت په نتیجه کي د امت محمدي د خلکو څومره لوی شمېر به په جنت کي داخل کړل سي.

ځینو حضراتو د امت یو سړی متعین کړی دی او ویلي یې دي چې ددې څخه د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ ذات مراد دی، ځینو د حضرت اویس قرني رحمۃ اللہ علیہ نوم اخیستی دی او ځینو ویلي دي چې دغه تعین مشکل دي او هر سړی مراد کېدای سي دا قول زین العرب د حدیث مفهوم ته زیات نژدې ګرځولی دی.

《۵۳۶۲》: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ مِنْ أُمَّتِي مَنْ يَشْفَعُ لِلْفِئَامِ وَمِنْهُمْ مَنْ يَشْفَعُ لِلْقَبِيلَةِ وَمِنْهُمْ مَنْ يَشْفَعُ لِلْعَصَبَةِ وَمِنْهُمْ مَنْ يَشْفَعُ لِلرَّجُلِ حَتَّى يَدْخُلُوا الْجَنَّةَ. رواه الترمذي

د حضرت ابو سعید رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: زما په امت کي به ځیني خلک وي چې د څو ډلو سفارش به کوي او ځیني به د یوې قبیلې سفارش کوي او ځیني به د یو عصبه نسبي کورنۍ او ځیني به یوازي د یوه سړي تر دې چې زما ټول امت به په جنت کي داخل سي. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۵۴۱، رقم: ۲۴۴۰.

**د لغاتو حل**: الفئام: هو الجماعة من الناس (د خلګو ډله).

**تشریح** قبیله یوې لوی کورنۍ یا د یوه پلار د څو پښتیو زامنو ته وایي مګر په عامه توګه ددغه لفظ اطلاق پر ډېرو خلکو باندي کیږي او عصبه د لس څخه تر څلوېښت پوري ډلي ته وایي.

## د حساب او کتاب څخه پرته جنت ته تلونکي

《۵۳۶۳》: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ عَزَّ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی

وَجَلَّ وَعَدَنِي أَنْ يَدْخُلَ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي أَرْبَعَمِائَةِ أَلْفٍ بِلَا حِسَابٍ فَقَالَ أَبُو

زما سره وعده کړې ده چې هغه به زما د امت څلور لکه کسان بې حسابه په جنت کې داخل کړي،

بَكْرٍ زِدْنَا يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ وَهٰكَذَا فَحَثَا بِكَفَّيْهِ وَجَمَعَهُمَا فَقَالَ أَبُوْ بَكْرٍ زِدْنَا

حضرت ابوبکر رضی الله عنه عرض وکړ اې د الله رسوله! زموږ شمیر نور زیات کړئ، رسول الله ﷺ وفرمایل: او دومره نور، ددې فرمایلو سره رسول الله ﷺ د خپلو دواړو لاسونو مبارکو څخه لپه جوړه کړه او خلکو ته یې وښودل، حضرت ابوبکر رضی الله عنه بیا وویل اې د الله رسوله! زموږ شمیر

يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ وَهٰكَذَا فَقَالَ عُمَرَ دَعْنَا يَا أَبَابَكْرٍ فَقَالَ أَبُوْ بَكْرٍ وَمَا عَلَيْكَ

نور هم زیات کړئ، رسول الله ﷺ بیا لپه جوړه کړه او وه یې فرمایل او دومره نور، حضرت عمر رضی الله عنه وویل: اې ابوبکر! موږ پر خپل حال پرېږده (یعني چې موږ عبادت وغیره وکړو) ابوبکر رضی الله عنه ورته وویل:

أَنْ يُّدْخِلَنَا اللهُ كُلَّنَا الْجَنَّةَ فَقَالَ عُمَرُ إِنَّ اللهَ عَزَّوَجَلَّ إِنْ شَاءَ أَنْ يُّدْخِلَ

نور هم زیات کړئ، رسول الله ﷺ بیا لپه جوړه کړه او وه یې فرمایل او دومره نور، حضرت عمر رضی الله عنه وویل: اې ابوبکر! موږ پر خپل حال پرېږده (یعني چې موږ عبادت وغیره وکړو) ابوبکر رضی الله عنه ورته وویل که الله تعالی موږ ټول په جنت کې داخل کړي نو په دې ستا څه تاوان دی؟

حضرت عمر رضی الله عنه ورته وویل: که الله تعالی خپل ټول

خَلْقَهُ الْجَنَّةَ بِكَفٍّ وَّاحِدٍ فَعَلَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ عُمَرُ. رواه في شرح السنة.

مخلوق په یو موټ ډکولو سره یا په یو وار جنت کې داخلول غواړي نو داخلولای یې سي. نبي کریم ﷺ وفرمایل: عمر ریښتیا وویل. شرح السنه.

**تخريج** البغوي في شرح السنة ۱۵\۱۶۳، رقم: ۴۳۳۵.

**تشريح** د دې په اورېدو سره رسول الله ﷺ دواړه لاسونه یو ځای کړل او لپه یې جوړه کړل، یعني د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په غوښتنه رسول الله ﷺ خپل دواړه لاسونه په لپه کولو سره هغه ته وړاندې کړه او وه یې فرمایل چې دومره نور زیاتوم، زیات صحیح دادی چې د رسول الله ﷺ لپه جوړول او دا فرمایل چې ښه دومره نور زیات، دا په اصل کې د الله جل جلاله د فعل د حکایت په توګه

وو يعني دا ظاهرول مقصد وو چي ما بې شمېره جنت ته د تلونکو ذکر سوی شمېر په ټاکل سوې توګه بيان کړی نه دی بلکه دد غه شمېر څخه زياتوب مراد دی، ايا تاسو ته معلومه نه ده چي الله جَلَّ جَلَالُهٗ د لپي په ډکولو سره يعني بې شمېره او زيات خلک به په جنت کي داخل کړي ځکه د حديث شارحينو ويلي دي چي رسول الله ﷺ په دغه وخت کي د لپي جوړولو مثال دد ې لپاره اختيار کړ چي په خلاص زړه سره د ورکونکي شان دا وي چي کله هغه ته د زيات ورکولو غوښتنه وکړل سي نو هغه د شمېر څخه پرته په لپه ډکولو سره بې شمېره ورکوي، بيا د لپي په ډکولو سره ورکول په اصل کي يو مثال دی چي د زيات ورکولو لپاره ويل کيږي.

په دغه حديث کي د حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ او حضرت عمر فاروق رضی اللہ عنہ د تعلق سره چي څه ذکر سوي دي د هغه څخه دا نه ثابتيږي چي په ذکر سوې مسئله کي د دواړو په منځ کي ذهني او فکري اختلاف وو بلکه خبره يوازي داده چي حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ څه وويل هغه د عجز، خاکسارۍ او د الله جَلَّ جَلَالُهٗ د رحمت څخه د پوره اميد او غوښتني په توګه وو ، او حضرت عمر رضی اللہ عنہ چي څه وويل هغه د حکمت او رضا په توګه وو، ځکه رسول الله ﷺ د دواړو دخبرو لحاظ وساتی ، مخکي يې د حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ غوښتنه د منلو وړ وګرځول او هغه ته يې هغه جواب ور نه کړ کوم چي د حضرت عمر رضی اللہ عنہ په تصديق کولو سره د هغه خبري ته يې په خوښي سره وکتل، دا خبره يو بل ډول هم کېدای سي چي رسول الله ﷺ د حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د غوښتني مثبت جواب ورکولو سره دا ظاهره کړل چي د عمل پر لاره روانېدو او دين ته په متوجه کېدو کي يو لوی دخل د زيری هم دی نو رسول الله ﷺ دغه زيری ، چي الله جَلَّ جَلَالُهٗ به ډېر بې شمېره په جنت کي داخل کړي او زياته پر اختيا يې ورکړل ، بيا رسول الله ﷺ د حضرت عمر رضی اللہ عنہ د تصديق کولو لپاره دې ته اشاره وفرمايل چي عمر رضی اللہ عنہ کومه خبره کړې ده هغه زيری دی بلکه د لومړني زيري څخه هم زيات زيری دی ، په دې اعتبار د دواړو ما في الضمير يو وو .

## ګناه کار خلک به څرنګه خپل شفاعت کوي

﴿۵۳۶۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُفُّ اَهْلُ النَّارِ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دوږخيان به صف تړلي ولاړ

فَيَمُرُّ بهم الرَّجُلُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيَقُولُ الرجل يَا فُلَانُ أَمَا تعرفني انا

وي چي يو جنتي به د هغوئ مخته تېر سي د هغه صف څخه به يو دوږخي هغه مخاطب کړي

ورته به وايي ته ما پيژنې زه هغه سړی وم چي

الذي سقيتك شربة وقال بعضهم انا الذي وهبت لك وضوء فيشفع له فيدخله الجنة. رواه ابن ماجه.

پر تا باندي مي اوبه څښلي وې، يو بل سړي به ورته وايي زه هغه سړی يم چي د اودس لپاره مي تا ته اوبه درکړي وې هغه جنتي به يې سفارش وکړي او جنت ته به يې بوځي. ابن ماجه.

**تخريج** سنن ابن ماجه ۲\ ۱۲۱۵، رقم: ۳۶۸۵.

**تشريح** ددې څخه څرګنده سوه چي فاسق او ګناه کار که په دنيا کي د ديندار او متقي خلکو خدمت او مرسته وکړي نو د هغه غوره ثمره به په آخرت کي تر لاسه کړي او د هغوئ په مرسته او تعلق سره به په جنت کي داخل کړل سي.

مظهر رحمة الله عليه ويلي دي: د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذريعه دې ته ترغيب ورکړل سوی دی چي د خپلو مسلمانانو وروڼو په خاصه توګه د بزرګانو او نيکانو سره ښه چلن او احسان کول پکار دي او کله چي دهغوئ ملګرتيا په برخه سي نو د هغه د اختيارولو موقع دي غنيمت ګڼي ځکه چي د هغوئ ملګرتيا په دنيا کي د ښکلا او پاکۍ او په آخرت کي د نور تر لاسه کېدو سبب دی.

## د الله جل جلاله د رحمت دوه مظاهر

﴿۵۳۶۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ رَجُلَيْنِ

حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم خلک چي په دوږخ

مِمَّنْ دَخَلَ النَّارَ اشْتَدَّ صِيَاحُهُمَا فَقَالَ الرَّبُّ عَزَّ وَجَلَّ أَخْرِجُوهُمَا فَلَمَّا

کي داخل سي په هغوئ کي به دوه کسان زيات شور کوي، الله تعالی به حکم ورکړي چي دوئ

أُخْرِجَا قَالَ لَهُمَا لِأَيِّ شَيْءٍ اشْتَدَّ صِيَاحُكُمَا قَالَا فَعَلْنَا ذٰلِكَ لِتَرْحَمَنَا قَالَ

را وباسئ. کله چي هغه حاضر سي نو الله تعالی به پوښتنه وکړي تاسو ولي چغي وهئ. هغوئ به وايي موږ ځکه چغي وهو چي پر موږ رحم وکړل سي، الله تعالی به ورته وفرمايي

إِنَّ رَحْمَتِي لَكُمَا أَنْ تَنْطَلِقَا فَتُلْقِيَا أَنْفُسَكُمَا حَيْثُ كُنْتُمَا مِنَ النَّارِ فَيَنْطَلِقَانِ

زما رحم ستاسو لپاره دادی چي تاسو بيرته ولاړ سئ په کوم ځای کي چي تاسو پراته واست هلته ځان په اور کي واچوئ،

فَيُلْقِي أَحَدُهُمَا نَفْسَهُ فَيَجْعَلُهَا عَلَيْهِ بَرْدًا وَسَلَامًا وَيَقُومُ الْآخَرُ فَلَا يُلْقِي

يو خو به سمدستي په دغه حکم عمل وکړي يعني خپل ځان به په اور کي وغورځوي چي الله تعالى به يې يخ او د امن ځای جوړ کړي (د هغه لپاره)، او دويم سړی به د دې حکم تعميل نه

نَفْسَهُ فَيَقُولُ لَهُ الرَّبُّ عَزَّ وَجَلَّ مَا مَنَعَكَ أَنْ تُلْقِيَ نَفْسَكَ كَمَا أَلْقَى صَاحِبُكَ

کوي، الله تعالى به د هغه څخه پوښتنه وکړي تا خپل ځان په اور کي ولي ونه غورځوی لکه څرنګه چي ستا ملګري غورځولی دی؟ هغه به وايي زه اميد لرم چي د کوم ځای څخه تا را ايستلی يم هلته به مي بيا نه ليږې،

فَيَقُولُ يَا رَبِّ إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ لَا تُعِيدَنِي فِيهَا بَعْدَ مَا أَخْرَجْتَنِي فَيَقُولُ لَهُ الرَّبُّ لَكَ رَجَاؤُكَ فَيَدْخُلَانِ جَمِيعًا الْجَنَّةَ بِرَحْمَةِ اللَّهِ. رواه الترمذي.

الله تعالى به ورته وفرمايي ښه ده ستا چي کوم اميد وو هغه ستا لپاره پوره کړل سو نو الله تعالى به دواړه په خپل رحمت سره په جنت کي داخل کړي. ترمذي.

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۶۱۵، رقم: ۲۵۹۹.

**تشريح** ستاسو په اړه زما رحمت دادی چي تاسو بېرته ولاړ سئ....الخ: په دې اړه دا سوال پيدا کيږي چي دوږخ ته په بېرته تللو سره او اور ته سپارل په کوم اعتبار په رحمت سره تعبير کيږي. د دې مختصر جواب دادی چي دغه ارشاد د سبب پر مسبب باندي د حمل کولو طرز سره تعلق لري. د دې خبري وضاحت دادی چي دغه خلک به په دوږخ کي د هغوئ د تصور په بدله کي داخل کړل سي چي هغوئ ته د دې خبري د اطاعت د حکم په ذريعه چي هغوئ دوږخ ته بېرته په تللو سره خپل ځان اور ته سپاري، په دغه ويلو به خبرداری ورکول کيږي چي د الله جل جلاله د رحمت وړ هغه څوک دی چي په هر حالت کي د هغه د حکم پيروي او فرمانبرداري کوي.

او الله جل جلاله به هغه اور د هغه لپاره يخ کړي، د دې څخه معلومه سوه چي کوم څوک د يو آفت

او مصيبت د امتحان په وخت کي د صبر او استقامت لار اختيار کړي نو الله ﷻ د هغه آفت او مصيبت آسانه کوي او ختموي يې کوم چي د هغه په وجه تکليف تر لاسه کوي.

تا چي کوم اميد درلودی، هغه ستا په حق کي پوره کيږي، ددې څخه ثابته سوه چي د بنده د پروردګار څخه اميد درلودل د هغه د ورکړي او کرم په تر لاسه کولو کي ډېر مؤثر دی که څه هم بنده د خپل عجز او ناتوانۍ په سبب د اطاعت او فرمانبرداری د دائرې څخه وتلی وي.

## پر پل صراط باندي د تېرېدو حکم

﴿۵۳۶۶﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرِدُ

د حضرت ابن مسعود رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل: (پر پل صراط تيريدو

النَّاسُ النَّارَ ثُمَّ يَصْدُرُونَ مِنْهَا بِأَعْمَالِهِمْ فَأَوَّلُهُمْ كَلَمْحِ الْبَرْقِ ثُمَّ كَالرِّيحِ

سره به) خلک اور ته ننوځي بيا به د خپل اعمال صالحه سره سم د هغه څخه خلاصون تر لاسه کړي، په هغوئ کي کوم خلک چي تر ټولو غوره وي هغوئ به د برېښنا د ځلا په ډول پر پل

ثُمَّ كَحُضْرِ الْفَرَسِ ثُمَّ كَالرَّاكِبِ فِي رَحْلِهِ ثُمَّ كَشَدِّ الرَّجُلِ ثُمَّ كَمَشْيِهِ. رواه الترمذي والدارمي.

صراط تير سي ځيني به د هواء په ډول، ځيني به د تيزو آسونو په ډول، ځيني به د اوښ د سپور په ډول، ځيني به د سړي د ځغاستي په ډول او ځيني به د پياده تلونکي په ډول. ترمذي او دارمي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۲۹۷، رقم: ۳۱۵۹، وسنن الدارمي ۲\۴۲۴، رقم: ۲۸۱۰.

**د لغاتو حل**: كحُضر الفرس: اي جريه، وهو العدو الشديد (سخت دېښمن)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د حوض کوثر پراخوالی

﴿۵۳۶۷﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ أَمَامَكُمْ

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل: (د قيامت په ورځ) ستاسي

حَوْضِيْ ما بين جنبيه كَمَا بَيْنَ جَرْبَاءَ وَأَذْرُحَ قال بعض الرواة هُمَا قَرْيَتَانِ

په وړاندې زما حوض دی چې د هغه د دواړو غاړو فاصله دومره ده لکه څومره چې د جرباء او اذرح په منځ کې فاصله ده د ځینې راویانو بیان دی چې جرباء او اذرح

بِالشَّامِ بَيْنَهُمَا مَسِيْرَةُ ثَلَاثِ لَيَالٍ وَفِي رواية فِيهِ أَبَارِيقُ كَنُجُومِ السَّمَاءِ مَنْ وَرَدَهُ فَشَرِبَ مِنْهُ لَمْ يَظْمَأْ بَعْدَهَا أَبَدًا. متفق عليه.

په شام کې دوې اباد‌ۍ دي، چې د هغوئ په منځ کې د درو شپو مزل فاصله ده او په يوه روايت کې دا الفاظ دي چې په دغه حوض کې د اوبو د لوښو شمير د آسمان د ستورو برابر دی، څوک چې دغه حوض ته راسي او د دغه څخه اوبه وڅښي بيا به هيڅکله نه تږی کيږي، بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۷۳، رقم: ۶۵۷۷، ومسلم ۴\۱۷۹۷، رقم: ۳۴-۲۲۹۹.

**تشريح:** ځينو محققينو ليکلي دي چې د شام په هيواد کې جربا د يو کلي نوم دی چې په اصل کې اذرح ته نژدې واقع دی، نو دا ويل صحيح نه دي چې د جربا او اذرح په منځ کې د درو ورځو مسافت دی، په دغه صورت کې د حديث مفهوم پيچيده کيږي ځکه محدثينو دا تحقيق کړی دی چې د دغه حديث د يو راوي په وهم کې اخته کېدو په وجه هغه الفاظ نقل نه سول چې د هغه څخه د حوض کوثر پراختيا څرګندول مقصد وو، نو د دار قطني د روايت په لېدو سره د دې خبري تائيد کيږي چې داسې دي، يعني زما د حوض د دواړو غاړو درمياني فاصله دومره ده څومره چې د مدينې او جريا او اذرح په منځ کې فاصله ده.

## شفاعت او د پل صراط يادونه

﴿۵۳۶۸﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت حذيفه او ابو هريره (رضي الله عنهما) څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل:

يَجْمَعُ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى النَّاسَ فَيَقُومُ الْمُؤْمِنُونَ حَتَّى تُزْلَفَ لَهُمُ الْجَنَّةُ

الله تعالی به د قيامت په ورځ خلک يو ځای کړي، بيا به مؤمنان پر يو ځای ولاړ وي او جنت به هغوئ ته نژدې راوستل سي

فَيَأْتُونَ آدَمَ فَيَقُولُونَ يَا أَبَانَا اسْتَفْتِحْ لَنَا الْجَنَّةَ فَيَقُولُ وَهَلْ أَخْرَجَكُمْ مِنْ

بيا به خلک آدم عليه السلام ته راسي ورته به وايي اې زموږ باباجانه! زموږ لپاره د جنت خلاصولو طلب وکړه، آدم عليه السلام به ورته وايي تاسو خو د جنت څخه ستاسو

الْجَنَّةِ إِلَّا خَطِيئَةُ أَبِيكُمْ آدَمَ لَسْتُ بِصَاحِبِ ذَلِكَ اذْهَبُوا إِلَى ابْنِي إِبْرَاهِيمَ

د پلار خطا ايستلي ياست، زه ددې کار لائق نه يم تاسو زما زوی ابراهيم عليه السلام ته ورسئ

خَلِيلِ اللَّهِ قَالَ فَيَقُولُ إِبْرَاهِيمُ لَسْتُ بِصَاحِبِ ذَلِكَ إِنَّمَا كُنْتُ خَلِيلًا مِنْ وَرَاءَ

نو هغوئ به ابراهيم عليه السلام ته راسي هغه به ورته وايي زه ددې کار لائق نه يم زه د نن څخه مخکي د الله تعالى دوست وم

وَرَاءَ اعْمِدُوا إِلَى مُوسَى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي كَلَّمَهُ اللَّهُ تَكْلِيمًا فَيَأْتُونَ

تاسو موسى عليه السلام ته ورسئ چي الله تعالى ورسره کلام کړی دی، هغوئ به موسى عليه السلام ته راسي

مُوسَى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُولُ لَسْتُ بِصَاحِبِ ذَلِكَ اذْهَبُوا إِلَى عِيسَى كَلِمَةِ

هغه به ورته وايي زه ددې کار لائق نه يم تاسو عيسى عليه السلام ته ورسئ هغه د الله کلمه او روح ده،

اللَّهِ وَرُوحِهِ فَيَقُولُ عِيسَى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَسْتُ بِصَاحِبِ ذَلِكَ فَيَأْتُونَ

هغوئ چي ورسي نو هغه به ورته وايي زه ددې کار لائق نه يم، آخر خلک به حضرت محمد ﷺ ته

مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُومُ فَيُؤْذَنُ لَهُ وَتُرْسَلُ الْأَمَانَةُ وَالرَّحِمُ

راسي نو محمد ﷺ به ولاړ سي نو اجازه به ورته وسي، بيا به امانت او رحم راوليږل سي او

فَتَقُومَانِ جَنَبَتَيِ الصِّرَاطِ يَمِينًا وَشِمَالًا فَيَمُرُّ أَوَّلُكُمْ كَالْبَرْقِ قَالَ قُلْتُ بِأَبِي أَنْتَ

هغوئ دواړه به د پل صراط راسته او چپه خوا ته ودريږي او د پل صراط څخه به تيريدل پيل سي د ټولو څخه مخکي ډله به د بريښنا په ډول تير سي، د ابو هريره رضي الله عنه بيان دی چي ما پوښتنه وکړه اې د الله رسوله! زما مور او پلار دې پر تاسو قربان وي

وَأُمِّي أَيُّ شَيْءٍ كَمَرِّ الْبَرْقِ قَالَ أَلَمْ تَرَوْا إِلَى الْبَرْقِ كَيْفَ يَمُرُّ وَيَرْجِعُ فِي طَرْفَةِ

د بريښنا په ډول به څنګه تير سي، رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا تاسو نه وينئ چي د بريښنا ځلا

ځنګه تيرېږي او د سترګو په رپ كي بيرته راسي،

عَيْنٍ ثُمَّ كَمَرِّ الرِّيحِ ثُمَّ كَمَرِّ الطَّيْرِ وَشَدِّ الرِّجَالِ تَجْرِي بِهِمْ أَعْمَالُهُمْ وَنَبِيُّكُمْ

بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: ددې ځخه وروسته به خلک د هواء په ډول تير سي بيا به د مرغانو په ډول تير سي بيا د خلكو د ځغاستي په ډول به تير سي او دا رفتار به د هغوئ د اعمالو سره سم وي، او ستاسو نبي ﷺ به

قَائِمٌ عَلَى الصِّرَاطِ يَقُولُ رَبِّ سَلِّمْ سَلِّمْ حَتَّى تَعْجِزَ أَعْمَالُ الْعِبَادِ حَتَّى يَجِيءَ

پر پل صراط ولاړ دا وايي (رب سلم سلم) يعني اې الله (موږ) سلامت لرې، موږ سلامت لرې، تر دې چي د بندګانو اعمال به عاجزه سي (يعني داسي خلک به پاته سي چي د هغوئ د اعمالو د قوت رفتار به سست سي او هغوئ به پر پل صراط نه سي تيريدلای، نو يو سړی به

الرَّجُلُ فَلَا يَسْتَطِيعُ السَّيْرَ إِلَّا زَحْفًا قَالَ وَفِي حَافَتَيِ الصِّرَاطِ كَلَالِيبُ مُعَلَّقَةٌ

په ځكيدو راسي، ددې ځخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل د پل صراط دواړو خواوو ته به انبورونه زړيدلي وي

مَأْمُورَةٌ تَأْخُذُ مَنْ أُمِرَتْ بِهِ فَمَخْدُوشٌ نَاجٍ وَمَكْدُوشٌ فِي النَّارِ وَالَّذِي نَفْسُ أَبِي هُرَيْرَةَ بِيَدِهِ إِنَّ قَعْرَ جَهَنَّمَ لَسَبْعِينَ خَرِيفًا. رواه مسلم.

هغو ته به حكم وركړل سوی وي چي هغه ځوک ونيسي چي د هغه د نيولو حكم سوی وي نو هغه انبور به ځيني خلک نوكاري كړي خو بيرته به ځيني خلاص سي او ځيني به لاس او پښي تړلي په دوږخ كي وغورځول سي، په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په قبضه كي د ابوهريره ساده ده د دوږخ ژوروالی د اويا كالو د لاري برابر دی. مسلم.

**تخريج** صحيح مسلم ۱\۱۸٦، رقم: ۳۲۹ - ۱۹۵.

**دلغاتو حل**: تزلف: اي تغرب. (لويږي)

**تشريح** جنت به هغوئ ته نژدې كړل سي، ددغه جملې په ذريعه د سورة تكوير دغه آيت ته اشاره ده: وَإِذَا الْجَنَّةُ أُزْلِفَتْ ، عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا أَحْضَرَتْ .

ژباړه: او د قيامت په ورځ به د حشر په ميدان كي جنت نژدې راوستل سي بيا به هر سړي ته

ځړکنده سي چي هغه څه راوړي دي.

حضرت ابراهيم عليه السلام به هم هغوئ ته دا جواب ورکړي چي زه ددغه کار وړ نه يم ...الخ: په دې اړه يو شارح ليکلي دي چي حضرت ابراهيم عليه السلام به دا خبره د تواضع او خاکسارۍ په توګه وکړي چي زه ددغه لوړي درجې وړ نه يم يا د هغه مطلب به دا وي چي د پروردګار له خوا ما ته چي کوم فضيلت، ځانګړتيا او عزت راکړل سوی دی هغه د حضرت جبرائيل عليه السلام په واسطه ما ته رارسېدلی دی نو تاسو موسی عليه السلام ته ورسئ چي هغه ته ورکړل سوی فضيلت، ځانګړتيا او عزت يعني د پروردګار سره د خبرو د سعادت بېله واسطې تر لاسه سوی دی مګر هغه به هم داسي جواب ورکړي. نو هغه خلک به محمد ﷺ ته ورسي، دلته ددې وېلو پر ځای چي هغه خلک به ما ته راسي، رسول الله ﷺ د خپل نوم مبارک ذکر کړ او وه يې فرمايل چي هغه خلک به محمد ﷺ ته راسي، ددې وجه داده چي په محمد کي د حمد معنی ده او ددې په ذريعه دې ته اشاره کول مقصد دي چي رسول الله ﷺ به هغه ورځ پر مقام محمود باندي ولاړ وي چي د شفاعت مقام دی. يوه ډله چي ستاسو ټولو څخه وړاندي به تېره سي ...الخ: په دې اړه صحيح خبره داده چي ددغه طبقې څخه د انبياء عليهم السلام طبقه مراد ده مګر دا هم ويل کېدای سي چي ددغه امت د اولياؤ او صالحانو طبقه مراد وي.

## د دوږخ څخه په ايستلو سره جنت ته رسيدونکي خلک به څرنګه تازه او توانا سي

﴿۵۳۶۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ قومر بِالشَّفَاعَةِ كَأَنَّهُمُ الثَّعَارِيرُ قُلْنا مَا الثَّعَارِيرُ قَالَ اِنَّهُ الضَّغَابِيسُ. متفق عليه.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د يو شفاعت په سبب به د دوږخ څخه يو ډله را وايستل سي فکر به کيږي چي هغوئ ثعارير دي، موږ عرض وکړ ثعارير څه ته وايي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه خوشايي (سوځيدلي) دي. (يعني لکه څرنګه چي خوشايي سوځيدلي دي همداسي به دا خلک هم سوځيدلي راووځي او په نهر حيوة کي د لويدلو سره به تازه سي). بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۴۱۶\۱۱، رقم: ۶۵۵۸، ومسلم ۱۷۸\۱، رقم: ۳۱۸- ۱۹۱.

**د لغاتو حل**: الثعارير: جمع ثعر، صغار القثاء، شبهوا بها لان القثاء ينمو سريعا.

**تشریح** بادرنګ د ضغابیس ژباړه ده، مطلب دا چي کله هغه خلک د دوږخ د اور څخه را وایستل سي نو هغوئ به په سوځېدو سره اېرې سوي وي مګر کله چي د حیات په ویاله کي غوټه ورکړل سي نو هغوئ به سمدستي تازه او توانا سي لکه څرنګه چي بادرنګ یا بل زرغون بوټی ژر لوی او شین کیږي.

## کوم کسان به شفاعت کوي

﴿۵۳۷۰﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَشْفَعُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثَلَاثَةٌ الْأَنْبِيَاءُ ثُمَّ الْعُلَمَاءُ ثُمَّ الشُّهَدَاءُ. رواه ابن ماجه

د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د قیامت په ورځ به دري ډوله خلک شفاعت کوي: لومړی انبیاء علیهم السلام، بیا عالمان او بیا شهیدان. ابن ماجه.

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۴۴۳، رقم: ۴۳۱۳.

**تشریح** او بیا شهیدان، دلته چي کوم عطف دی ددې څخه دا ثابتیږي چي باعمل علماء د شهیدانو څخه افضل دي، ددې دلیل هغه حدیث دی کوم چي شیرازي رحمه الله نقل کړی دی: (یوزن یوم القیامة مداد العلماء علی دم الشهداء)، د قیامت په ورځ به د علماؤ رنګ د شهیدانو د وینو سره تلل کیږي نو د شهیدانو پر وینه به د علماؤ رنګ دروند سي.

څرګنده دي وي چي په ذکر سوي حدیث کي شفاعت کوونکي دري ډولو خلکو تخصیص محض د هغوئ د فضیلت په وجه دی، په مسلمانانو کي ټولو نیکو خلکو ته به د شفاعت حق تر لاسه وي لکه چي په دې اړه نقل سوي ډېر مشهور حدیثونه ثابت دي که د هغه شفاعت تعلق د ګناهو د بخښنې سره وي یا د مراتبو او درجو په لوړتیا کي وي او د شفاعت څخه انکار څرګند بدعت او ګمراهي ده لکه چي خوارج او معتزلو اختیار کړی دی.

==========

# بَابُ صِفَةِ الْـجَنَّةِ وَاَهْلِهَا

## (د جنت او جنياتو د حالاتو بيان)

په صراح كي ليكلي دي چي د جنت معنى د باغ ده، جنت په اصل كي د پټولو په معنى كي دى، په دې مناسبت سره د دغه لفظ اطلاق پر سايه لرونكو درختو باندي كېدى چي خپل لاندي شى په خپله سايه كي پټوي. بيا دغه لفظ د باغ په معنى كي استعمالېدل پيل سول چي د سايه لرونكو درختو ټولګي دي، بيا په پاى كي دغه لفظ د ثواب او انعام ځاى يعني جنت لپاره مخصوص سو، نو جنت ته جنت په دې اعتبار ويل كيږي چي هلته درختي او باغونه دي چي هر شى په خپل لمن كي پټوي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د جنت ذكر

﴿۵۳۷۱﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالى فرمايلي دي:

أَعْدَدْتُ لِعِبَادِي الصَّالِحِينَ مَا لَا عَيْنٌ رَأَتْ وَلَا أُذُنٌ سَمِعَتْ وَلَا خَطَرَ عَلَى

ما د خپل نيكو بندګانو لپاره هغه شى تيار كړى دى چي تر ننه پوري نه يوې ستركي ليدلى دى او نه يو غوږ اوريدلى دى او نه

قَلْبِ بَشَرٍ وَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا أُخْفِيَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ.

متفق عليه.

د يو انسان په زړه كي د هغه خيال تير سوى دى، كه تاسو د دې تصديق غواړئ نو دا آيت ووايا ست: (فلا تعلم نفس ما اخفي لهم من قرة اعين). (هيڅوك هغه شى نه پيژني چي هغه د نيكانو لپاره پټ ساتل سوى دى او د ستركو د يخوالي سبب دى). بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣١٨. رقم: ٣٢٤٤، ومسلم ۴\ ٢١٧٤، رقم: ٢- ٢٨٢٤.

**تشريح** نه يوې ستركي...الخ: په دې اړه هم دا احتمال دى چي هغه شى يعني د جنت مظاهر

شکل او صورت آوازونه مراد دي ، مطلب دا چي هلته کوم لوړ مظاهر وي او هلته چي کوم شکلونه او صورتونه ښکاره کيږي هغه مناظر او شکلونه او صورتونه په دغه دنيا کي نه دي ليدل سوي او نه هيڅ ځای ليدل کيږي، همدارنګه د هغه ځای په اوازونو کي چي کوم خوږوالی دی هغسي خواږه اوازونه په دنيا کي تر ننه پوري يوه غوږ هم نه دي اوريدي او همدارنګه هلته چي کوم مدارات وي ، کوم نعمتونه او خوندونه تر لاسه کيږي د هغه تصور هم په دنيا کي تر ننه پوري د هيچا په زړه کي راتللای نه سي ، او نه د هغه تصور کيدای سي،

په آيت کي چي کوم شی د سترګو په يخوالي سره تعبير سوی دی د هغه څخه آرام، راحت او مقصد تر لاسه کول دي ، څرګنده دي وي چي د سترګو په يخوالي کي د قرة لفظ په اصل کي د قر څخه اخيستل سوی دی چي د هغه معنی د ثبات او قرار ده، سترګه چي خپل محبوب شی ويني نو قرار تر لاسه کوي او همدانګه ډاډه کيږي چي بلي خوا ته نه مائل کيږي، ددې پر خلاف کله چي سترګه ناخوښه شی ويني او د هغه محبوب شی مخته نه وي نو هغه پريشانه وي لکه چي يو شی ور څخه ورک سوی وي او يوې خوا ته د قرار تر لاسه کولو پر ځای آخوا دېخوا کتل پيل کړي او د راحت او اطمينان په حالت کي سترګو ته عجيبه کيفيت او سکون تر لاسه کيږي حال دا چي د خوف او غم په حالت کي هغه متحرک وي .

يا دا چي د قرة لفظ د قر څخه مشتق دی چي د هغه معنی د يخوالي او وچوالي ده، په دغه صورت کي به ويل کيږي چي د سترګو يخوالي څخه مراد هغه خاص لذت او کيف دی چي د محبوب او خوښ شي په ليدو سره او خپل مقصد تر لاسه کولو په وخت کي سترګو ته محسوس کيږي. ددې پر خلاف سترګه چي يو ناخوښه شی او دښمن ويني او د مطلب او مقصد په انتظار کي وي نو هغه وخت يو خاص سوزش او سونک محسوس کوي، په دې مناسبت سره خوږ اولاد ته قرة العين يعني د سترګو يخوالی ويل کيږي، په يوه حديث کي داسي راغلي دي چي : جعلت قرة عيني في الصلوة، رسول الله ﷺ وفرمايل: زما د سترګو يخوالی په لمانځه کي ايښودل سوی دی. نو دلته هم د قرة لفظ پر دواړو معنی کيدای سي لکه چي په خپل ځای کي د حديث په تشريح کي ذکر سوی دی .

## د جنت فضيلت

﴿۵۳۷۲﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَوْضِعُ سَوْطٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا. متفق عليه

د حضرت ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په جنت کي د يوې دُرې په اندازه ځای د دنيا او د دنيا د ټولو شيانو څخه غوره دی. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٥، رقم: ٢٧٩٦، لم نجده بهذا اللفظ عند مسلم.

**تشريح**: د سفر قاعده وه چي کله به يو سپور سړي يو ځای کښېنته کېدل غوښتل نو خپله چلاخه به يې هلته غورځول چي بل سړی هلته کښېنته نه سي او هغه ځای د دغه د کښېنته کېدو لپاره خاص سي، نو دحديث مطلب دا سو چي دجنت دومره لږ ځای او هلته کوچنی ځای هم چيري چي مسافر په سفر کي کښېنته کيږي د دغه ټولي دنيا او ټولو شيانو څخه زيات ارزښتناکه او ښه دی ځکه چي جنت او دجنت ټول نعمتونه تل پاته کېدونکي دي حال دا چي دنيا او د دنيا ټول شيان فنا کېدونکي دي .

## د جنت د حورو تعريف

﴿۵۳۷۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَدْوَةٌ فِي سَبِيلِ

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: سهار او ماښام د الله تعالی په

اللَّهِ أَوْ رَوْحَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا وَلَوْ أَنَّ امْرَأَةً مِنْ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ

لار کي يو وار تلل د دنيا او څه چي په دنيا کي دي تر ټولو غوره دی، او که د جنتيانو د ښځو

اطَّلَعَتْ إِلَى الْأَرْضِ لَأَضَاءَتْ مَا بَيْنَهُمَا وَلَمَلَأَتْ مَا بَيْنَهُمَا رِيحًا وَلَنَصِيفُهَا خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا. رواه البخاري.

څخه يوه ښځه مځکي ته راښکاره سي نو د جنت او مځکي په مينځ کي فاصله به روښانه کړي او دا ټوله فضا به د خوشبويي څخه ډکه کړي او د هغې د سر پوړنی تر دنيا او څه چي په دنيا کي دي تر هغو ټولو غوره دی. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٥، رقم: ٢٧٩٦.

**د لغاتو حل**: ولنصيفها: ولخمارها.

**تشريح**: د سهار او ماښام تخصيص د معمول په لحاظ ساتنه دی چي په عامه توګه د فوج او لښکر روانېدل د جنګ په ميدان کي د حملې او بل څه لپاره په دغه وختونو کي پيل کيږي ، کنه

نو دلته مطلق وخت مراد دی که هغه د سهار او ماښام وخت وي یا بل وخت وي، د الله ﷻ د لاري څخه مراد جهاد هم دی او هجرت هم، همدارنګه حج، د علم تر لاسه کول او د هر هغه مقصد لپاره د کور څخه وتل او سفر کول هم مراد دی چي د هغه مقصد د الله ﷻ د رضا او خوښۍ تر لاسه کول او بالواسطه یا بېله واسطې د هغه د فرمان حکم پر ځای راوړل وي تر دې چي د خپلي کورنۍ نفقې پوره کولو لپاره او د الله ﷻ عبادت او د احکام الهي پر ځای راوړلو کي اطمینان او د حلال رزق په پلټنه کي وتل او سفر کول هم د الله ﷻ په لاره کي د وتلو مفهوم لري، خلاصه دا چي د کور په پرېښودو سره په عمل کي مصروف خلکو ته چي کوم فضیلت او مرتبه تر لاسه کیږي د هغه اندازه یوازي ددې څخه لګول کیږي چي کوم څوک محض یو وار هم دالله ﷻ په لاره کي ووځي او د هغه په نتیجه کي هغه ته چي کوم اجر او ثواب تر لاسه کیږي یا هغه ته په آخرت کي کوم نعمتونه تر لاسه کیږي هغه ددغه دنیا او دنیا د ټولو شیانو څخه غوره دي او ذکر د الله ﷻ په لار کي د وتلو د فضیلت وو، چي د هغه اجر د الله ﷻ په نزد جنت دی، په دې مناسبت سره د جنت په نعمتونو کي یو نعمت یو د حوري ښېګڼه هم بیان سوې ده.

د بینهما ضمیرونه ختیځ او لویدیځ ته ګرځول سوي دي مګر دا ضمیرونه آسمان او ځمکي ته یا جنت او ځمکي ته هم ګرځول کیدای سي، صحیح خبره داده چي جنت او ځمکي ته راجع وي ځکه چي په عبادت کي هم دغه دواړه صریحا مذکور دي.

## د جنت د یوې درختي ذکر

﴿۵۳۷۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ شَجَرَةً يَسِيرُ الرَّاكِبُ فِي ظِلِّهَا مِائَةَ عام لا يقطعها وَلَقَابُ قَوْسِ أَحَدِكُمْ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ أَوْ تَغْرُبُ. متفق عليه.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په جنت کي یوه درخته ده که یو سپور د هغې په سایه کي تر سلو کلو پوري مزل کوي نو هم به هغه سایه ختم نه کړل سي او په جنت کي ستاسو د لیندۍ برابر ځای د هغه ټولو شیانو څخه غوره دی چي پر هغو لمر راخیژي یا لویږي. بخاري او مسلم.

**تخريج**. صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۳۱۹، رقم: ۳۲۵۲، ومسلم ۴\۲۱۷۵، رقم: ۶-۲۸۲۶.

**د لغاتو حل**: ولقاب: بمعنى القدر، وانه علامة يعرف بها المسافة بين الشئين.

**تشریح** چي پر هغه لمر راخيژي او لويږي، ددې څخه مراد ټوله دنيا او د دنيا ټول شيان دي، په راختلو او لوېدو کي د يا حرف يا خو د راوي د شک ظاهرولو لپاره دی يا د حيرت د اظهار لپاره دی يا د اور په معنی کي دي همدارنګه مخکي چي کوم حديث تېر سوی دی په هغه کي د يوې چلاخي د ځای ذکر دی او دلته د يوې لښندۍ برابر ځای ذکر سوی دی نو د دواړو مفهوم يو دی او دلته هم هغه وضاحت په فکر کي ساتل پکار دي کوم چي مخکي بيان سوی دی مګر دا فرق بايد په ذهن کي وي چي د سفر په دوران کي به سپاره سړي د کښېنته کېدو په ځای کي خپل چلاخه وغورځول او کوم څوک چي به پر پښو وو هغه چي به کوم ځای کښېنته کېدل غوښتل هلته به يې خپله لينډۍ غورځول چي هغه ځای د هغه د کښېنته کېدو لپاره خاص سي.

## د جنت خېمه

﴿۵۳۷۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لِلْمُؤْمِنِ

د حضرت ابو موسی رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: په جنت کي به د مؤمن

فِي الْجَنَّةِ لَخَيْمَةً مِنْ لُؤْلُؤَةٍ وَاحِدَةٍ مُجَوَّفَةٍ عَرْضُهَا. وفي رواية طُولُهَا سِتُّونَ

لپاره د يوې ملغلري يوه خيمه وي چي د هغې عرض به شپيته ميله وي (او په يوه روايت کي طول) به يې شپيته

مِيلًا فِي كُلِّ زَاوِيَةٍ مِنْهَا أَهْلٌ مَا يَرَوْنَ الْآخَرِينَ يَطُوفُ عَلَيْهِمُ الْمُؤْمِنُونَ

ميله وي، ددې خيمې په هر کونج کي به د هغه بيبياني وي او د يوه کونج سړی به د بل کونج سړی نه سي ليدلای پر هغوئ باندي به مؤمن بنده ګرځي

وَجَنَّتَانِ مِنْ فِضَّةٍ آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيهِمَا وَجَنَّتَانِ مِنْ ذهب آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيهِمَا

او د مؤمن لپاره به دوه جنتونه وي چي د هغه لوښي او ټول شيان به د سپينو زرو وي او دوه جنتونه به نور هم وي چي لوښي او شيان به يې د سرو زرو وي

وَمَا بَيْنَ الْقَوْمِ وَبَيْنَ أَنْ يَنْظُرُوا إِلَى رَبِّهِمْ إِلَّا رِدَاءُ الْكِبْرِياء عَلَى وَجْهِهِ فِي جَنَّةِ عَدْنٍ. متفق عليه.

او د خلکو او د هغوئ د پروردګار په منځ کي به جنت عدن کي د بزرګۍ او عظمت پوازي يوه پرده حائله وي. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦١\٣١٨، رقم: ٣٢٤٣، ومسلم ٤\٢١٨٢، رقم: ٢٣-٢٨٣٨.

**تشريح** دا خبره هيڅ ارزښت نه لري، چي زيات صحيح د هغه روايت الفاظ دي چي په هغه کي د هغه خيمې پلنوالی شپېته کوس مسافت په اندازه بيان سوی دی يا د دغه روايت الفاظ زيات صحيح دي چي په هغه کي د خيمې اوږدوالی د شپېته کوس مسافت په اندازه بيان سوی دی، اصل مقصد د هغه پراختيا بيانول دي چي د دواړو روايتونو څخه تر لاسه کيږي که دا وويل سي چي د هغه خيمې پلنوالی د شپېته کوس په اندازه دی نو اندازه لګېدل کيږي چي د هغه اوږدوالی به څومره زيات وي او که دا وويل سي چي د هغه اوږدوالی د شپېته کوس په اندازه وي نو پر دې باندي په قياس کولو سره د هغه پلنوالی هم اندازه کيدای سي.

د کورنۍ څخه مراد ښځه او نور کسان دي، يو شارح ليکلي دي چي د کورنۍ څخه مراد ښځي دي چي هغه مؤمن ته به هلته تر لاسه کيږي او د هغه څخه به خپل جنسي خوند تر لاسه کوي، نو هغه ته به ځي او راځي، د دغه الفاظو په ذريعه دا خبره کنايتا بيانول مقصد دي چي هغه مؤمن به د خپلو ښځو سره جنسي اختلاط کوي.

د دغه حديث څخه دا معلوميږي چي دوه جنتونه به خاص د سپينو زرو او دوه جنتونه به خاص د سرو زرو وي، حال دا چي په يوه روايت کي د جنت د ماڼيو په تعريف کي بيان سوي دي چي په هغه کي کومي خښتي لګيدلي دي د هغه ترتيب به دا وي چي يوه خښته به د سرو زرو وي او يوه به د سپينو زرو وي نو په دغه دواړو روايتو کي تطبيق دا دی چي په لومړني روايت کي د هغه شيانو ذکر دی چي په جنت کي د ننه وي لکه لوښي او نور شيان، نو په يوه جنت کي به ټول شيان د سرو زرو وي او په دوهم جنت کي به ټول شيان د سپينو زرو وي او په دوهم روايت کي د جنت د ماڼيو ښېګڼه بيان سوې ده چي د جنت د هري ماڼي او محل په ديوال کي به د سرو او سپينو زرو خښتي وي.

## د جنتونو شمېر او د هغو نومونه

بيهقي رحمة الله عليه ويلي دي، د قرآن کريم او حديثو څخه ثابتيږي چي جنتونه څلور دي، الله جل جلاله په سورة رحمن کي فرمايي:

وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ

ژباړه: او كوم څوک چې د خپل رب په وړاندې دريدو څخه (هر وخت) بيرېږي نو دهغه لپاره دوه جنتونه دي.

تر دې وروسته په آياتونو كې د دواړو جنتونو تعريف او توصيف بيان سوى دى او بيا فرمايي:

وَمِن دُونِهِمَا جَنَّتَانِ

ژباړه: او ددغه دواړو جنتونو څخه په كمه درجه كې دوه جنتونه نور دي.

د اولو دوو جنتونو په ډول په راتلونكو آياتو كې ددغه دوو جنتو هم تعريف او توصيف بيان سوى دى، پاته سوه د حديث خبره نو مخكې د حضرت موسى عليه السلام د روايت دغه الفاظ: جنتان من فضة انيتهما ومافيها وجنتان من ذهب انيتهما او مافيها، پر دې څرګنده دلالت كوي چې جنتونه څلور دي، ددې تائيد ددغه روايت څخه كيږي چې جنتان من الذهب للسابقين وجنتان من فضة لاصحاب اليمين، او دا هم كيداى سي چې په آيت كې جنتان دوه جنتونه كوم لفظ دى د هغه څخه د جنت دوه ډوله مراد دي يعني په هغه جنتو كې يو د سرو زرو او بل د سپينو زرو دى، خلاصه دا چې په اصل كې څلور جنتونه دي دوه د سرو زرو چې خاص د مقربينو لپاره دي او دوه د سپينو زرو چې د عامو مؤمنانو لپاره دي مګر دا دي هم څرګنده وي چې جنتان كه څه هم د تثنيې لفظ دى مګر په ځينو ځايو كې د تثنيې څخه زياتوب يعني تر دوو زيات شمېر هم مراد وي، ځكه كيداى سي چې د جنتان څخه مراد څلور جنتونه وي او كاملينو ته دوه اصل جنتونو څخه پرته دوه دوه جنتونه نور وركول كيږي چې د سپينو زرو او سرو زرو وي او هغه جنتونه د ښكلا لپاره د هغه كاملينو د ماڼو چپه خوا ته واقع وي، ددې تائيد د هغه روايت څخه هم كيږي چې په هغه كې د جنت تعلق سره اته نومونه ذكر سوي دي او هغه دا دي:

۱. جنت العدن.
۲. جنت الفردوس.
۳. جنت الخلد.
۴. جنت النعيم.
۵. جنت الماوى.
٦. دار السلام.
۷. دار القرار.
۸. دار المقامه.

او په جنت العدن کي به جنتيانو او پروردګار ته د هغوئ دلېدني ...الخ. ددغه جملې په ذريعه دې ته اشاره سوې ده چي کله جنتيان جنت ته ورسيږي نو د هغه بدني حجاب او طبعي خيرو څخه چي د بنده او پروردګار په منځ کي حائل وي هغه به ليري کړل سي مګر د ذات اقدس او عظمت او هيبت پرده به پاته وي بيا هم الله ﷻ به په خپل خاص فضل او کرم سره هغه پرده هم پورته کړي يعني نظرونو ته به خپل ديدار ورکړي او جنتيان به خپل رب په خپلو سترګوويني.

## د جنت درجې

﴿۵۳۷۶﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عباده بن صامت ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

فِي الْجَنَّةِ مِائَةُ دَرَجَةٍ مَا بَيْنَ كُلِّ دَرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَ الْأَرْضِ

په جنت کي سل درجې دي په هغو کي د هر دوو درجو په منځ کي دومره فاصله ده لکه څومره چي د آسمان او مځکي په منځ کي فاصله ده

وَالْفِرْدَوْسُ أَعْلَاهَا دَرَجَةً وَمِنْهَا تُفَجَّرُ أَنْهَارُ الْجَنَّةِ الْأَرْبَعَةُ وَمِنْ فَوْقِهَا

او فردوس د جنت تر ټولو اعلی درجه ده او ددغه فردوس څخه د جنت څلور وياله وځي او د

يَكُونُ الْعَرْشُ فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللّٰهَ فَسَلُوهُ الْفِرْدَوْسَ. رواه الترمذي و لم اجده في الصحيحين ولا في كتاب الحميدي.

فردوس سربيره عرش الهي دی، هر کله چي تاسو د الله ﷻ څخه جنت غواړئ نو جنت فردوس ځيني غواړئ، ترمذي، مګر ما په مسلم، بخاري او د حميدي په کتاب کي دا حديث نه دی ليدلی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۸۳، رقم: ۲۵۳۱.

**تشريح**: په سلو درجو کي د سل شمېر د تعين او تحديد لپاره نه دی بلکه د زياتوب لپاره هم کيدای سي، ددې تائيد د بي بي عائشې ﷝ ددغه مرفوع روايت څخه هم کيږي چي بيهقي نقل کړی دی او په هغه کي د جنت د درجو شمېر د قرآن کريم د آياتو برابر بيان سوی دی، د روايت الفاظ دادي: عدد درج الجنة عدد اي القرآن فمن دخل الجنة من اهل القران فليس فوقه درجة، او دا هم ممکن ده چي د سلو څخه دغه خاص شمېر مراد وي، او ددې په ذريعه دجنت د زياتو

درجو څخه یوازي هغه سل درجې بیانول مقصد وي چي په هغه کي د هر دوو درجو درمیاني فاصله د ذکر سوي فاصلې څخه کمه یا زیاته وي، دیلمي مسند په فردوس کي د حضرت ابو هریره رضی اللہ عنہ څخه دا مرفوع روایت نقل کړی دی چي په جنت کي یوه درجه هغه ده چي هغه ته د اصحاب هموم څخه پرته بل هیڅوک نه رسیږي.

فردوس د جنت نوم دی او دا نوم په قرآن کریم کي په دې توګه راغلی دی:

هُمُ الْوَارِثُونَ الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ .

ژباړه: دا پاک کرداره خلک چي په تېرو ایاتونو کي ذکر سول، وارثان به سي یعني د فردوس میراث به تر لاسه کړي او په هغه کي به د تل لپاره اوسیږي.

د څلورو ویالو څخه مراد اوبه، شیدې، عسل او د شرابو هغه ویالې دي چي د هغو یادونه د قرآن کریم په دغه آیت کي سوې ده:

فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاء غَيْرِ آسِنٍ وَأَنْهَارٌ مِن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى .

ژباړه: په جنت کي به ډېري ویالې د داسي اوبو وي چي په هغه کي به هیڅ تغیر نه وي او ډېري ویالې به د شېدو وي چي د هغه خوند به هیڅ بدل سوی نه وي او ډېري ویالې به د شرابو وي چي څښونکي ته به ډېر خوندور معلومیږي او ډېري ویالې به د عسلو وي چي پاک او صاف به وي.

د فردوس سربېره عرش دی، دا ددې خبري دلیل دی چي فردوس تر ټولو جنتونو افضل او سربېره دی او د هغه سربېره یوازي عرش دی ځکه رسول الله ﷺ خپل امت ته په تقلین کولو سره وفرمایل چي کله د الله جل جلاله څخه جنت غواړئ نو د فردوس جنت غواړئ چي تر ټولو غوره او تر ټولو لوړ جنت تاسو ته په برخه سي.

د روایت په پای کي د مشکوة مؤلف دغه الفاظ (او ما دغه حدیث نه په صحیحینو کي تر لاسه کړی دی ....الخ) په ذریعه په اصل کي پر صاحب مصابیح باندي دا اعتراض کړی دی چي هغه دغه حدیث په لومړي فصل کي نقل کړی دی چي په هغه کي یوازي د بخاري او مسلم متن وي او نه د دواړو کتابونو مجموعه په کتاب حمیدي کي، نو دغه حدیث د اول فصل پر ځای په دوهم فصل کي راوړل پکار وه، پر صاحب مصابیح باندي د مشکوة د مؤلف اعتراض دا دی چي ځینو شارحینو لیکلي دي چي دغه حدیث په بخاري کي دوه ځایه موجود دی یو خو په کتاب الجهاد کي او بل کان عرشه علی الماء، باب کي، په صحیح مسلم کي هم د فضل جهاد في سبیل

الله، په باب کي موجود دی .

## د جنت بازار

﴿۵۳۷۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ

د حضرت انس ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په جنت کي

لَسُوقًا يَأْتُونَهَا كُلَّ جُمُعَةٍ فَتَهُبُّ رِيحُ الشَّمَالِ فَتَحْثُو فِي وُجُوهِهِمْ وَثِيَابِهِمْ

یو بازار دی چي په هغه کي به هره جمعه جنتیان یو ځای کیږي او هلته به شمالي هواء چلیږي نو د جنتیانو پر مخونو او جامو باندي به خوشبويي واچوي

فَيَزْدَادُونَ حُسْنًا وَجَمَالًا فَيَرْجِعُونَ إِلَى أَهْلِيهِمْ وَقَدْ ازْدَادُوا حُسْنًا وَجَمَالًا

او ددې په سبب به د هغوئ په حسن او ښکلا کي زیاتوالی وسي بیا هر کله چي هغوئ خپلو بيبيانو ته ولاړسي

فَيَقُولُ لَهُمْ أَهْلُوهُمْ وَاللّٰهِ لَقَدْ ازْدَدْتُمْ بَعْدَنَا حُسْنًا وَجَمَالًا فَيَقُولُونَ وَأَنْتُمْ وَاللّٰهِ لَقَدْ ازْدَدْتُمْ بَعْدَنَا حُسْنًا وَجَمَالًا . رواه مسلم .

نو د هغوئ بيبياني به ورته وايي قسم په خدای زموږ څخه د تګ وروسته تاسو په حسن او جمال کي زيات سوي ياست ددې په جواب کي به ورته هغوئ وايي قسم په خدای او زموږ څخه وروسته ستاسو حسن او جمال هم زيات سوی دی . مسلم.

**تخریج** : صحیح مسلم: ۱۴\۲۱۷۸، رقم: ۱۳- ۲۸۳۳.

**د لغاتو حل** : فتحثوا : ای تنثر تلک الريح المسک وانواع الطيب .

**تشریح** د بازار څخه مراد د حسن او ښکلا مرکز دی چي هلته به جنتیان جمع کیږي او ډول ډول ښکلي او ښائسته شکلونه به موجود وي او هر جنتي به د خپل خوښي او خواهش سره سم چي کوم شکل او صورت غواړي اختیاروي .

د هري جمعې څخه مراد هره اونۍ ده یعني په اونۍ کي به یوه ورځ هلته خلک جمع کیږي او د اونۍ څخه هم حقیقي اونۍ مراد نه ده ځکه چي په جنت کي به نه لمر وي او د ورځي او شپې ګردش به تل یو ډول وي نو د اونۍ په اندازه وخت مراد دی .

د شمالي هواء څخه مراد هغه هواء ده چي زيات وختونه د قبلې خوا ته په مخ كولو سره ودريږي نو د راسته لاس له خوا راسي دې ته اتري هواء هم وايي مگر ذلته په حديث كي داسي هواء مراد ده چي په عربو كي ورته شمال يا شمالي ويل كيږي، دغه هواء د شمال څخه چليږي او د يخو هيوادو او بحر احمر څخه راځي ځكه ډېره يخه وي او شمالي هواء ورته ويل كيږي.

جنتيان به د هغه تفريح څخه په راتللو سره د خپلي كورنۍ حسن او ښكلا زيات ويني نو د هغه سبب به دا وي چي هغه شمالي هواء د هغه كورنۍ ته هم رسيږي او د هغه په وجه به د هغوئ په ښكلا كي زياتوب وسي، يادا چي هغه جنتيان به د تفريح د ځاى څخه د خپل زيات حسن او ښكلا سره خپلو كورونو ته راسي نو د هغوئ حسن او ښكلا به د هغوئ پر كورنۍ لويږي چي په هغه سره به هغوئ ټول هم د مخكي په نسبت زيات ښكلي او جميل معلوميږي .

## د جنت د نعمتونو ذكر

﴿۵۳۷۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَوَّلَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كوم خلك چي تر ټولو

زُمْرَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ كَاشَدِّ

مخكي به په جنت كي داخل سي هغوئ به (په ښكلا كي) د څوارلسمي شپې د سپوږمۍ په ډول وي، د هغوئ څخه وروسته چي كومه ډله داخله سي هغوئ به

كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ فِي السَّمَاءِ إِضَاءَةً قلوبهم على قلب رجل واحد لَا اخْتِلَافَ

د ځلانده ستوري په ډول وي چي د لمر او سپوږمۍ څخه كم او د نورو ستورو څخه به زيات ځلانده وي د دوئ زړونه به په مثل د يو سړي د زړه وي نه به په منځ د دوئ كي اختلاف وي

بَيْنَهُمْ وَلَا تَبَاغُضَ لِكُلِّ امرئ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ مِنَ الْحُورِ الْعِينِ يُرَى مُخُّ

او نه بغض او عداوت وي، په جنت كي به د هر جنتي دوې ښځي د حور عين (د غټو ستر كو) څخه وي چي د حسن له جهته به

سُوقِهِنَّ مِنْ وَرَاءِ الْعَظْمِ وَاللَّحْمِ مِنَ الْحُسْنِ يُسَبِّحُونَ اللّٰهَ بُكْرَةً وَعَشِيًّا

د هغوئ د پنډيو مغز به په غوښه او هډوكو كي معلوميږي، جنتيان به سهار او ماښام تسبيح

وايي د خداى ﷻ لپاره،

لَا يَسْقَمُونَ وَلَا يَبُولُونَ وَلَا يَتَغَوَّطُونَ وَلَا يَتْفُلُونَ وَلَا يَمْتَخِطُونَ آنِيَتُهُمُ

نه به ناروغ کیږي نه به واړه او نه به لوی بولي ورته راځي، نه به ناړي توکي او نه به پزه سوڼ کوي، د جنتیانو لوښي به

الذَّهَبُ وَالْفِضَّةُ وَأَمْشَاطُهُمُ الذَّهَبُ وَوَقُودُ مَجَامِرِهِمُ الْأَلُوَّةُ وَرَشْحُهُمُ

د سرو زرو او سپينو زرو وي، د هغوئ ږمونځي به د سرو زرو وي، د هغوئ د بلولو شی به خوشبوداره لرګی وي د هغوئ خوله به

الْمِسْكُ عَلَى خَلْقِ رَجُلٍ وَاحِدٍ عَلَى صُورَةِ أَبِيهِمْ آدَمَ سِتُّونَ ذِرَاعًا فِي السَّمَاءِ.

متفق عليه.

مشک وي او ټول جنتیان به د یو سړي په سیرت او عادت وي او په شکل او صورت کي به د خپل پلار حضرت آدم علیه السلام په ډول وي د هغوئ قد به شپیته ګزه لوړ وي. بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣١٨، رقم: ٣٢٤٥، ومسلم ٤\٢١٧٩، رقم: ١٥- ٢٨٣٤.

**د لغاتو حل** : مخ: جمع الساق اى مخ غطامهن. الالوه: هو العود الهندي (عود هندي).

**تشريح** حور په اصل کي د حوراء جمع ده او حوراء هغه ښکلي ښځي ته وايي چي د هغې د سترګو سپينوالی او توروالی ډېر سپين او تور وي، عين د عيناء جمع ده چي معنی يې د غټو سترګو والا ښځي ده، مخکي د دوهم فصل په پای کي يو روايت راځي چي په هغه کي دا فرمايل سوي دي چي تر ټولو د ادنا درجې جنتي به هغه وي چي د هغه به اوويا ښځي وي، حال دا چي دلته د دوو ښځو يادونه ده نو ددغه دواړو روايتو په منځ کي د مطابقت پيدا کولو لپاره ويل کيږي چي دلته په حديث کي يوازي دا ښودل مقصد دي چي د حورعين څخه به دوې ښځي داسي وي چي د هغوئ ښکلا او جمال به تر ټولو زيات وي تر دې چي د هغوئ د پنډيو هډوکي به معلوميږي، ځرګنده ده چي دا خبره ددې خلاف نه ده چي هر جنتي ته به د هغه نوعيت د دوو بيبيانو څخه پرته نوري ډېري بيبياني هم تر لاسه سي.

د هغوئ د بلولو شی به خوشبوداره لرګی وي، مطلب دا دی چي دلته په دنيا کي د سوځلو

شیان سکاره او داسي نور وي او د خوشبويي تر لاسه کولو لپاره يو خوشبويي لرونکي لرګی سوځل کيږي مګر په جنت کي به پېلوزي خوشبوداره لرګی وي، څرګنده دي وي چي د وقود معنی د پېلوزي ده يعني لرګي او داسي نور شیان چي په هغه سره اور بليږي.

مجامر په اصل کي د مجمر جمع ده چي معنی يې د هغه شي ده چي په هغه کي د اور بلولو لپاره اور اېښودل کيږي يعني بخاری، نغری او داسي نور، دغه لفظ د ميم په زبر سره دی مګر دميم په زور سره منقول دی ، اُلوة، د الف په زور او پېښ سره، د خوشبويي لرونکي لرګي په معنی دی چي د دود کولو لپاره استعماليږي، په (علی خلق رجل) کي د خلق لفظ د خاء په پېښ سره دی او په معنی کي يې دا اعتبار ساتل سوی دی ، په دغه صورت کي به علی صورة ابيهم يوه بېله جمله وي چي د هغه مقصد د جنتيانو د سېرت بيانولو څخه وروسته د هغوئ شکل او صورت بيانول دي، مګر په ځينو روايتو کي دغه لفظ د خاء په زور سره منقول دی چي د هغه معنی به دا وي چي هغه ټول جنتيان به د يوه سړي شکل او صورت ولري ، په ښکلا کي به يو ډول وي او يو عمر والا به وي مګر ټول به د دېرش يا درو دېرش کالو په عمر کي وي، په دغه صورت کي به ويل کيږي چي د علی صورة ابيهم، جمله د خپلي لومړنۍ جملې (علی خلق رجل واحد) د وضاحت او بيان لپاره ده، دا خبره بايد په ذهن کي وي چي مخکنی روايت هم صحيح دی او زبر والا روايت هم صحيح دی.

## جنتيانو ته به د تشو او ډکو بولو کولو حاجت نه وي

﴿۵۳۷۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : جنتيان به په جنت کي

يَأْكُلُونَ فِيهَا وَيَشْرَبُونَ وَلَا يَتْفُلُونَ وَلَا يَبُولُونَ وَلَا يَتَغَوَّطُونَ وَلَا يَمْتَخِطُونَ

خوراک او څښاک کوي ، نه به توکي نه به کوچنۍ او غټې بولي کوي او نه به پزه سوڼ کوي ،

قَالُوا فَمَا بَالُ الطَّعَامِ قَالَ جُشَاءٌ وَرَشْحٌ كَرَشْحِ الْمِسْكِ يُلْهَمُونَ التَّسْبِيحَ وَالتَّحْمِيدَ كَمَا تُلْهَمُونَ النَّفَسَ. رواه مسلم.

صحابه کرامو پوښتنه وکړه د خوراک پالتو مواد به چيري ځي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د اروغي په ډول او خوله به سي چي دمشکو په ډول خوشبويه به سي او څرنګه چي تاسو ته په

طبعي توګه سره ساه اخيستل ښودل سوي دي همدا سي به جنتيانو ته تسبيح او تحميد په طبعي توګه سره د هغوئ په زړونو کي اچول سوي وي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\ ۲۱۸۰، رقم: ۱۸- ۲۸۳۵.

**د لغاتو حل**: جُشاء: وهو تنفس المعدة من الامتلاء. (تهغ)

**تشريح**: د خوراک پالتو مواد به د اړرمې په ډول او خوله سي، ددې مطلب دادی چي څرنګه د قدرت نظام په دغه دنيا کي دخوراک د پالتو شيانو د اخراج لپاره د لويو بولو ضرورت ابښی دی همدا رنګه به په جنت کي د جنتيانو د خوراک د پالتو شيانو د اخراج لپاره اړرمې او خوله ذريعه وګرځول سي چي ټول پالتو شيان به د هواء او خولې په جوړېدو سره د اړرمې په صورت کي وځي او د اړرمې صورت به يا خو داشخاصو او اوقاتو په اعتبار بېل بېل وي چي ځيني وختونه يا د ځينو اشخاصو پالتو شيان به د هواء په جوړېدو سره د اړرمې په صورت کي وځي او ځيني وختونه يا د ځينو اشخاصو پالتو شيان به دخولې په صورت کي وځي، يا دا چي د ځينو خوراک به په اړرمې جوړېدو سره وځي او د ځينو خوراک به د خولې په ګرځېدو سره وځي، مګر په دې اړه صحيح او غوره وينا داده چي اړرمې به د خوراک د پالتو شيانو د وتلو ذريعه جوړه سي او خوله به د اوبو د پالتو شيانو د ايستلو ذريعه وي،

لکه څرنګه چي ساه جاري ده، ددې مطلب دادی چي څرنګه د ساه د تګ راتګ لړۍ د څه تکليف يا کوښښ څخه پرته په خپله جاري ده همدارنګه تسبيح، تحميد او ذکر به د جنتيانو پر ژبه جاري وي، يا دا مراد دی چي څرنګه د معمولي ساه د تګ راتګ په وجه تاسو ته څه تکليف او پرېشاني نه وي او پر تاسو بار نه وي همدا رنګه به جنتيان په تسبيح او تحميد کي په بوختيا سره د څه شي خندړ نه ګرځي، خلاصه دا چي د جنتيانو د هري ساه سره به د الله جَلَّ جَلَالُهُ شکر او ذکر متعلق وي.

## د جنتيانو همېشه عيش او ارام

﴿۵۳۸۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ يَنْعَمُ لَا يَبْأَسُ لَا تَبْلَى ثِيَابُهُ وَلَا يَفْنَى شَبَابُهُ. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: څوک چي په جنت کي داخل سي هغهٔ به آرام او خوشحاله وي فکر او غم به ورته نه راځي نه به يې جامې زړېږي او نه به

يې ځواني ختميږي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\ ۲۱۸۱، رقم: ۲۱- ۲۸۳۵۶.

**تشريح**: جنت د خپلو ټولو نعمتونو او راحتو سره دار القرار والشباب دی، يعني هلته هيڅ نعمت او راحت ته زوال او فناه نسته او نه هلته په آرام ژوند کي غم، فکر ، تبديلي او د تاوان بېره وي.

﴿۵۳۸۱﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالَا ان رسول الله صلى الله

د حضرت ابوسعيد او ابو هريره رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

عليه وسلم قَالَ يُنَادِي مُنَادٍ إِنَّ لَكُمْ أَنْ تَصِحُّوا فَلَا تَسْقَمُوا أَبَدًا وَإِنَّ لَكُمْ

په جنت کي به اعلان کونکی اعلان وکړي چي تاسو به روغ اوسئ او هيڅکله به نه ناروغ کيږئ

أَنْ تَحْيَوْا فَلَا تَمُوتُوا أَبَدًا وَإِنَّ لَكُمْ أَنْ تَشِبُّوا فَلَا تَهْرَمُوا أَبَدًا وَإِنَّ لَكُمْ أَنْ تَنْعَمُوا فَلَا تَبْأَسُوا أَبَدًا. رواه مسلم.

، او همېشه به ژوندي ياست هيڅکله به نه مړه کيږئ او همېشه به ځوانان ياست او هيڅکله به نه سپين ږيري کيږئ او تاسو به په خوشحالي او آرام سره ياست فکر او غم به هيڅکله نه وي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\ ۲۱۸۲، رقم: ۲۲- ۲۸۳۷.

## د جنت د بالاخانو اوسيدونکي

﴿۵۳۸۲﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت ابوسعيد خدري رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ يَتَرَاءَوْنَ أَهْلَ الْغُرَفِ مِنْ فَوْقِهِمْ كَمَا يَتَرَاءَوْنَ الْكَوْكَبَ

جنتيان به د ځان سربيره لوړ خلک داسي ويني لکه څرنګه چي تاسو هغه ځلانده ستوري وينئ

الدُّرِّيَّ الْغَابِرَ فِي الْأُفُقِ مِنَ الْمَشْرِقِ أَوِ الْمَغْرِبِ لِتَفَاضُلِ مَا بَيْنَهُمْ قَالُوا يَا

چي د طلوع او غروب په وخت کي د آسمان پر غاړه وي او دا بالاخانې د بزرګۍ او د مرتبو د فرق په سبب دي چي د جنتيانو په منځ کي به تر لاسه کيږي، صحابه کرامو عرض وکړاې

رَسُولَ اللَّهِ تِلْكَ مَنَازِلُ الْأَنْبِيَاءِ لَا يَبْلُغُهَا غَيْرُهُمْ قَالَ بَلَى وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ رِجَالٌ آمَنُوا بِاللَّهِ وَصَدَّقُوا الْمُرْسَلِينَ. متفق عليه.

د الله رسوله ! ايا دا بالاخانې به د انبياؤ ځايونه وي او د انبياؤ څخه پرته بل څوک به په دې کي داخليدلای نه سي، رسول الله ﷺ وفرمايل : هو په هغه ذات دي مي قسم وي د چا په لاس کي چي زما ساه ده هغې ته به هغه خلک ورتلای سي چي پر الله تعالی يې ايمان راوړی وی او د پيغمبرانو تصديق يې کړی وي. بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\ ٣٢٠، رقم: ٣٢٥٦، ومسلم ٤\ ٢١٧٧، رقم: ١١- ٢٨٣١.

**د لغاتو حل** : الغرف: جمع غرفة والمراد القصور العالية في الجنة.

**تشريح** د غابر لفظ په اصل کي د غبور څخه مشتق دی چي معنی يې د پاته کېدو ده، او دلته هغه ځلانده ستوری مراد دی چي لوېدو ته نژدې وي، يا د صبح صادق راختلو څخه وروسته د آسمان په غاړه کي پاته سوی وي، په يوه روايت کي د غاير لفظ منقول دی چي د غور څخه دی او معنی يې د کښته ځای ده مګر صحيح او مشهور لومړنی روايت دی چي په هغه کي غابر نقل سوی دی.

او د هغه تعلق به د فرق مراتب سره وي...الخ: مطلب دا دی چي په جنتيانو کي به دا فرق د مرتبو په لحاظ وي چي ځيني به د لوړي درجې وي او ځيني به د درميانه درجې وي او ځيني به د ادنا درجې وي، او په دې اعتبار ټولو ته به محلات او ځايونه او مراتب لوړ، درمياني او ادنا ورکول کيږي، علماؤ ليکلي دي چي په جنت کي به منزلونه وي، لوړ منزل چي د سابقينو لپاره، درمیانی منزل د مقصدينو لپاره او لاندينی منزل به د مختلطينو لپاره وي.

څوک چي پر الله جَلَّ جَلَالُهُ ايمان راوړي او د رسولانو تصديق وکړي يعني هغه اولياء، اتقياء چي ايمان بالله او اتباع رسول کي کامل وي او د الله جَلَّ جَلَالُهُ او رسولانو احکام او اوامر منلو او دهغوئ له خوا د منع شيانو څخه پرهيز کوونکي وي او دهغوئ تعريف د قرآن کريم په دغه آيت کي دی : وعباد الرحمن الذين يمشون على الارض هونا. ژباړه: او د رحمان خاص بندګان هغه دي چي پر ځمکه باندي په عاجزۍ سره ګرځي....

دلته دا خبره سوې ده او بیا د هغوئ مختلف د لوړو صفاتو بیانولو څخه وروسته د هغوئ په اړه دا زیری ورکړل سوی دی :
اولئک یجزون الغرفة بما صبرو . داسي خلکو ته په جنت کي د اوسېدو لپاره بالاخانې ورکول کیږي په وجه د هغوئ د ثابت قدمی .

## د یو ځو جنتیانو ذکر

《۵۳۸۳》: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ أَقْوَامٌ أَفْئِدَتُهُمْ مِثْلُ أَفْئِدَةِ الطَّيْرِ . رواه مسلم .

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په جنت کي به ځیني ډلي د داسي خلکو داخل سي چي د هغوئ زړونه به د مرغانو د زړونو په ډول وي (یعني ډیر نرم او د بغض او حسد څخه پاک) . مسلم

**تخریج** : صحیح مسلم: ۱۴\۲۱۸۳، رقم: ۲۷- ۲۸۴۰.

**تشریح** : مطلب دادی چي جنت ته په تلونکو کي به د داسي خلکو یو لوی شمېر وي چي په دنیا کي د نرمۍ، رحم، مهربانۍ، او د زړه د پاکۍ او حسد او بغض څخه د پاک کېدو په اعتبار د مرغانو په ډول خصلت لري ، او ځیني حضرات وایي چي په دغه حدیث کي د هغه خلکو یادونه او هغوئ ته د جنت زیری ورکول مقصد دي کوم چي د خپل رب څخه بېربېږي او د هغوئ په زړونو کي د آخرت بېره او د هغه ځای د هیبت زیات فکر وي د هغوئ زړو ته د مرغانو سره په تشبیه ورکولو په اعتبار ورکړل سوي دي چي تر ټولو زیات بېرېدونکي حیوانان مرغان دي، ځینو حضراتو ویلي دي چي د توکل اختیارونکي څخه مراد دی ځکه چي مرغان د توکل خاص علامه ګڼل کیږي ځکه د توکل اختیارونکو بندګانو زړو ته د مرغانو سره تشبیه ورکړل سوې ده لکه ځرنګه چي په یو حدیث کي هم فرمایل سوي دي که تاسو پر الله جل جلاله توکل لرئ نو یقینا هغه به تاسو ته رزق درکوي لکه ځرنګه چي هغه مرغانو ته رزق ورکوي چي سهار په تش نس وځي او مابنام په ماړه نس بېرته راځي .

## د الله جل جلاله رضا

《۵۳۸۴》: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ

د حضرت ابو سعید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله تعالی به

تَعَالَى يَقُولُ لِأَهْلِ الْجَنَّةِ يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ فَيَقُولُونَ لَبَّيْكَ رَبَّنَا وَسَعْدَيْكَ

جنتيانو ته فرمايي : اې جنتيانو! هغوئ به وايي اې زموږ پروردګاره! موږ حاضر يو، ستا په

والخير في يديك فَيَقُولُ هَلْ رَضِيتُمْ فَيَقُولُونَ وَمَا لَنَا لَا نَرْضَى وَقَدْ أَعْطَيْتَنَا

خدمت کي موجود يو، او خير ستا په لاس کي دی، الله تعالى به پوښتنه وکړي ايا تاسو راضي او خوشحاله ياست؟ هغوئ به وايي : اې پروردګاره! موږ به ولې راضي او خوشحاله نه يو

مَا لَمْ تُعْطِ أَحَدًا مِنْ خَلْقِكَ فَيَقُولُ أَلا أُعْطِيكُمْ أَفْضَلَ مِنْ ذَلِكَ فيقولون

تاسو موږ ته هغه څه راکړي دي چي په خپل مخلوق کي دي هيچا ته نه دي ورکړي، الله تعالى به ورته فرمايي ايا ددې ټولو شيانو څخه غوره شی درکړم؟ هغوئ به وايي

يَا رَبِّ وَأَيُّ شَيْءٍ أَفْضَلُ مِنْ ذَلِكَ فَيَقُولُ أُحِلُّ عَلَيْكُمْ رِضْوَانِي فَلَا أَسْخَطُ عَلَيْكُمْ بَعْدَهُ أَبَدًا. متفق عليه.

اې پروردګاره! ددې څخه غوره بل کوم شی کيدای سي؟ الله تعالى به ورته فرمايي زه تاسو ته خپله رضا درکوم. (يعني زه در څخه راضي يم) اوس به زه ستاسو څخه هيڅکله ناراضه نه سم. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۴۱۵، رقم: ۶۵۴۹، ومسلم ۴\ ۲۱۷۶، رقم: ۹- ۲۸۲۹.

**تشريح**: د الله ﷻ د خپل بنده څخه راضي کېدل د ټولو نعمتونو او نېکبختيو تر لاسه کېدو ضمانت دی، کله چي پروردګار جنتيانو ته دخپلي رضا او خوښۍ اظهار وفرمايي نو ګويا هغوئ ته ټول نعمتونه او کاميابۍ تر لاسه سوې او عظيم نعمت د الله ﷻ دېدار هم ددې ثمره او نتيجه ده.

مخکي به الله ﷻ د جنتيانو څخه پوښتنه وکړي چي ايا تاسو زما څخه راضي ياست او کله چي دهغوئ له خوا په اثبات کي جواب تر لاسه سي نو بيا به الله ﷻ د هغوئ په اړه د خپلي رضا اظهار وفرمايي چي څرګنده سي چي د بنده څخه د الله ﷻ د راضي کېدو دليل او علامه داده چي هغه بنده د الله ﷻ څخه راضي او خوشحالي سي نو پوهېدل پکار دي چي د هغه پروردګار هم د هغه څخه راضي او خوشحاله دی، نقل سوي دي چي صحابه کرامو په خپلو کي دغه بحث

او فکر کوی چي ددې پوهېدو څه ذریعه کیدای سي چي زموږ پروردګار زموږ څخه راضي او خوشحاله دی ، په پای کي هغوئ پر دې اتفاق وکړ چي کله موږ د خپل رب څخه راضي او خوشحاله یو نو موږ باید یقین وکړو چي زموږ رب هم زموږ څخه راضي او خوشحاله دی.

او بیا به ستاسو څخه هیڅکله ناراضه نه سم، څرګنده ده چي دا به د جنتیانو په حق کي تر ټولو لوی سعادت او زیری وي چي د هغه پروردګار تل د هغوئ څخه راضي او خوشحاله وي، ددغه سعادت او نعمت څخه لوی سعادت او نعمت څه کېدای سي، حقیقت خو دادی چي د الله ﷻ لږ رضا او خوښي هم د پوره رضا او خوښی، د پوره جنت او د جنت د ټولو نعمتونو او سعادتونو څخه زیات وو، څه چي هغه رضا او خوښي په ځانګړې توګه د تل لپاره ترلاسه سي، خپله الله ﷻ فرمایي: و رضوان من الله اکبر، نو هر مؤمن لره التجاء کول پکار دي چي: اللهم ارض عنا و ارضنا عنک، اې الله! زموږ څخه راضي سې او موږ د ځان څخه راضي کړې.

## د معمولي جنتي مرتبه

﴿۵۳۸۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ أَدْنَى

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کي د ادنا سړي به

مَقْعَدِ أَحَدِكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ أَنْ يَقُولَ لَهُ تَمَنَّ فَيَتَمَنَّى وَيَتَمَنَّى فَيَقُولُ لَهُ هَلْ

په جنت کي دا مرتبه وي چي الله تعالی به هغه ته فرمایي غوښتنه وکړه ، هغه به غوښتني وکړي نو هغه ته به وويل سيږ آيا

تَمَنَّيْتَ فَيَقُولُ نَعَمْ فَيَقُولُ لَهُ فَإِنَّ لَكَ مَا تَمَنَّيْتَ وَمِثْلَهُ مَعَه. رواه مسلم.

ستا په زړه کي چي څومره ارمانونه وه هغه پوره سول هغه به عرض وکړي هو ، الله تعالی به وړته فرمايي هغه ټول شيان چي تا غوښتي وه او هغومره نور هم درکړل سول . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۱/ ۱۶۷، رقم: ۳۰۱ - ۱۸۲.

## هغه څلور دريابونه چي د هغو سرچشمه په جنت کي ده

﴿۵۳۸۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَيْحَانُ وَجَيْحَانُ وَالْفُرَاتُ وَالنِّيلُ كُلٌّ مِنْ أَنْهَارِ الْجَنَّةِ. رواه مسلم.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : سيحون، جيحون، فرات او نيل دا ټول د جنت وياله دي . مسلم

**تخريج** : صحيح مسلم: ۴\۲۱۸۳، رقم: ۲۶- ۲۸۳۹.

**تشريح**: فرات او نيل د مشهورو سندو نوم دی، د دغه سندو په تعين کي اختلاف نسته چي د فرات سند په عراق کي او د نيل سند په مصر کي بهيږي، جيحان د بلخ سند دی او ځينو حضراتو ليکلي دي چي سيحان د مديني سند دی ، مګر علماؤ وضاحت کړی دی چي سيحان او جيحان د هغه دوو سندو څخه بېل دي کوم چي جيحون او سيحون دي چي د ترک او بلخ سندونه دي، طيبي رحمة الله عليه ليکلي دي: دا وينا صحيح ده چي جيحان د شام سند دی لکه څرنګه چي د جوهري قول دی، او د علماؤ پر دې خبره اتفاق دی چي جيحون د خراسان په سيمه کي بهيږي او سيحون د سنده سند دی، په هر حال تحقيقي خبره داده چي جيحان او سيحان د شام سندونه دي چي د دغه هيواد پخواني ښار طرطوس او مصيصه ته نژدې تيريږي او په بحر روم کي ګډيږي .

د حديث د غه خبره چي د دغه څلورو سندو تعلق د جنت د ويالو او چينو سره دی ، په دې اړه د علماؤ مختلف اقوال دي، صحيح قول دا بيان سوی دی چي د حديث دغه الفاظ پر خپل ظاهري معنی محمول دي، يعني په حقيقت کي د دغه څلورو ويالو ماده په جنت کي ده ، د مسلم په يوه روايت کي په وضاحت سره ويل سوي دي چي د نيل او فرات سندونه د جنت څخه راوتلي دي، د بخاري روايت دی چي د سدرة المنتهی د بېخ څخه راوتلي دي، په معالم التنزيل کي دا روايت نقل سوی دی چي الله جل جلاله د غه څلور سندونه غرونو ته سپارلي دي او د هغه ځای څخه هغوئ پر مځکه جاري کړي دي، يو قول دادی چي د جنت د غه څلور وياله چي د ټولو ويالو اصل دی د دنيا د هغه څلورو سندونو په نامه سره مشهور کړل سوي دي چي د نورو سندونو په نسبت زيات ارزښت او د اوبو د خوږوالي او نورو ګټو په اعتبار ډېري خاص درجې لري، او د دې مقصد دې ته اشاره کول دي چي په دنيا کي کومي ګټي او منافع حاصل دي هغه ټول د جنت د نعمتونو او د ګټو بېلګي دي .

يو بل قول چي هغه ته زيات واضح ويل کيدای سي دادی چي د دغه ټولو سندونو تعلق د جنت د ويالو او چينو سره دی ، د دې څخه مراد دادی چي د دغه سندونو اوبه د نورو اوبو په نسبت زياتي خوږې او يخي دي او د دغه سندونو په اوبو کي د ومره ډيري ګټي او ځانګړتياوي لکه چي دغه سندونه د جنت د ويالو او چينو څخه راوځي .

## د جنت او دوږخ پراخوالی

﴿۵۳۸۷﴾: وَعَنْ عُتْبَةَ بْنِ غَزْوَانَ قَالَ ذُكِرَ لَنَا أَنَّ الْحَجَرَ يُلْقَى مِنْ شَفَةِ

د حضرت عتبه بن غزوان ﷺ څخه روایت دی چې موږ ته وویل سول (یعني د رسول الله ﷺ حدیث بیان کړل سو) که د دوږخ د غاړې څخه یوه ډبره وویشتل سي

جَهَنَّمَ فَيَهْوِى فِيهَا سَبْعِينَ خريفا لَا يُدْرِكُ لَهَا قَعْرًا وَ وَاللَّهِ لَتُمْلَأَنَّ وَلَقَدْ

نو هغه به په اویا کاله کي د دوږخ بیخ ته ونه رسیږي او په الله ﷻ دي مي قسم وي د دوږخ دا ژوروالی به ډک سي، او

ذُكِرَ لَنَا أَنَّ مَا بَيْنَ مِصْرَاعَيْنِ مِنْ مَصَارِيعِ الْجَنَّةِ مَسِيرَةُ أَرْبَعِينَ سَنَةً وَلَيَأْتِيَنَّ عَلَيْهَا يَوْمٌ وَهُوَ كَظِيظٌ مِنَ الزِّحَامِ. رواه مسلم.

زموږ په وړاندي ذکر وسو چي د جنت دروازې د دواړو تنبو په منځ کي به د څلوېښتو کالو د مزل فاصله وي او یوه ورځ به داسي وي چي جنت به د خلکو څخه ډک وي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\۲۲۷۸، رقم: ۱۴- ۲۹۶۷.

**د لغاتو حل**: كظيظ: اى ممتلئ (ډک)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د جنت جوړولو ذکر

﴿۵۳۸۸﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مِمَّ خُلِقَ الْخَلْقُ قَالَ مِنَ

د حضرت ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي ما عرض وکړ اې د الله رسوله! مخلوق د څه شي څخه پیدا سوی دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل:

الْمَاءِ قُلْنَا الْجَنَّةُ مَا بِنَاؤُهَا قَالَ لَبِنَةٌ مِنْ ذَهَبٍ وَلَبِنَةٌ مِنْ فِضَّةٍ وَمِلَاطُهَا

د اوبو څخه، ما بیا پوښتنه وکړه جنت د څه شي څخه جوړ سوی دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل د جنت یوه خښته د سرو او یوه د سپینو زرو ده، او د دې د تعمیر خټه

الْمِسْكُ الْأَذْفَرُ وَحَصْبَاؤُهَا اللُّؤْلُؤُ وَالْيَاقُوتُ وَتُرْبَتُهَا الزَّعْفَرَانُ مَنْ يَدْخلهَا

تیزه خوشبوداره مشک دي او د جنت ډبري غمیان او یاقوت دي او زعفران یې خاوره ده څوک چي پکښي داخل سي

يَنْعَمُ لَا يَبْأَسُ وَيَخْلُدُ لَا يَمُوتُ لَا تَبْلَى ثِيَابُهُمْ وَلَا يَفْنَى شَبَابُهُمْ. رواه احمد والترمذي والدارمي.

نو په آرام او راحت به وي او فکر مند به نه وي همېشه به ژوندی وي مړ کیږي به نه، او نه به زړیږي او ځواني به یې هیڅکله نه ختمیږي. احمد، ترمذي او دارمي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ٢\٣٠٥، رقم: ٢٥٢٦، والدارمي ٢\٤٢٩، رقم: ٢٨٢١.

**د لغاتو حل**: ملاطها: ای ما بین اللبنتين موضع النورة. (د دوو خښتو په منځ کي د چونې ځای)

**تشريح**: شارحینو د حدیث د لومړنۍ برخي (یعني دغه پوښتنه چي مخلوق د کوم شي څخه پیدا سو او د رسول الله ﷺ دغه جواب چي د اوبو څخه) په څنګ کي لیکلي دي چي د علماؤ په دې اړه اختلاف دی چي د اجسامو څخه کوم شی تر ټولو مخکي په عالم وجود کي راغلی دی، د اکثرو وینا ده چي تر ټولو مخکي د اوبو جوهر په وجود کي راغلی بیا د دغه جوهر په کثیف او منجمد کېدو سره مځکه پیدا سوه او د دغه جوهر په رقیق او لطیف کېدو سره اور او هواء پیدا کړل سوه او د اور د دود څخه آسمان په وجود کي راغلی.

دا خبره په تورات کي راغلې ده چي الله ﷻ یو جوهر پیدا کړ او بیا یې پر هغه د هیبت او جلال نظر واچوی او د هغه د اجزاوو په ویلي کېدو سره اوبه جوړي سوې، ددغه اوبو څخه یو توښ پورته سو او د دود په توګه په ختلو سره خپور سو چي د هغه څخه آسمان په وجود کي راغلی، بیا پر اوبو سربېره ځګ څرګند سو او د هغه څخه مځکه پیدا سوه، ددې څخه وروسته د غرونو په پېدا کولو سره هغه یې د مځکي میخونه وګرځول یعني مخکي مځکي ته قرار نه وو، ښورېدل بیا د غرونو په ذریعه هغه ساکن او منجمد کړل سوه.

ځینو شارحینو دا لیکلي دي چي په حدیث کي د اوبو څخه مراد د مني نطفه ده که دا مراد صحیح ومنل سي نو بیا به دا ویل کیږي چي د مخلوق څخه مراد حیوانان دي لکه چي په قرآن کریم کي فرمایل سوي دي: وجعلنا من الماء کل شئ حي، یعني موږ هر حیوان د اوبو څخه

پیدا کړی دی، همدارنګه په یوبل ځای کي دا فرمایل سوي دي : والله خلق کل دابة من ماء، یعني الله ﷻ هر ګرځېدونکی شي د اوبو څخه پیدا کړی دی، پاته سوه دا خبره چي نطفه په اوبو سره ولي تعبیر سوې ده نو ددې وجه څرګنده ده ، لومړۍ خبره داده چي هغه مادهٔ د اوبو په صورت کي وي، دوهم دا چي هر مخلوق ته ډېر زیات د اوبو ضرورت وي، او هر حیوان که انسان وي یا غیر انسان تر ټولو زیاته ګټه د اوبو څخه تر لاسه کوي.

## د جنت درختي

﴿۵۳۸۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا فِي الْجَنَّةِ شَجَرَةٌ إِلَّا وَسَاقُهَا مِنْ ذَهَبٍ. رواه الترمذي.

د حضرت ابوهریره ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په جنت کي چي کومي درختي دي د هغو ټولو تنې د سرو زرو دي ، ترمذي.

**تخریج** : سنن الترمذي ۴\ ۵۷۹، رقم: ۲۵۲۵.

**تشریح** : د جنت د هري درختي تنه د سرو زرو ده، مګر د هغه درختو ښاخونه مختلف دي، د یوې درختي د سرو زرو وي ، د یوې د سپینو زرو وي ، ځیني ښاخونه د یاقوتو او زمرودو وي، یا د ملغلرو او نورو شیانو وي، او هر ښاخ په دول ډول غوټیو سره ښکلی وي او په پر هغه ډول ډول میوې لګېدلي وي او د جنت تر ټولو درختو لاندي ویالې جاري وي.

## د جنت درجې

﴿۵۳۹۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنَّةِ مِائَةُ دَرَجَةٍ مَا بَيْنَ كُلِّ دَرَجَتَيْنِ مِائَةُ عَامٍ. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب.

د حضرت ابوهریره ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په جنت کي سل درجې دي او د هرو دوو درجو په منځ کي د سل کالو د مزل فاصله ده . ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی.

**تخریج** : سنن الترمذي ۴\ ۵۸۲، رقم: ۲۵۲۹.

**تشریح** : صحیح خبره داده چي په حدیث کي د درجو څخه مراد لوړي مرتبې دي چي جنتیانو ته به د هغوئ د اعمالو او نیکیو په اعتبار تر لاسه کیږي، الله ﷻ فرمایلي دي : هم درجات عند

الله، جنتيان به د الله ﷻ په نزد په درجو او مرتبو كي مختلف وي، يعني هغوئ ته به د خپلو خپلو اعمالو سره سم بېلي بېلي درجې وركول كيږي، د كوم جنتي اعمال چي زيات او ښه وي هغومره به زيات مرتبې تر لاسه كوي، لكه چي د دوږخيانو په اړه فرمايل سوي دي چي هغوئ به د خپل كفر او شرک په اعتبار د دوږخ په لاندي برخو كي واچول سي چي د كوم دوږخي كفريه اعمال څومره زيات خراب وي هغومره به د دوږخ په لاندينۍ برخه كي وي، دغه خبري ته په قرآن كريم كي په دغه الفاظو اشاره سوې ده: (ان المنافقين في الدرک الاسفل من النار)، يقينا منافقان به د دوږخ په لاندينۍ برخه كي پراته وي.

﴿۵۳۹۱﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ لَوْ أَنَّ الْعَالَمِينَ اجْتَمَعُوا فِي إِحْدَاهُنَّ لَوَسِعَتْهُمْ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په جنت كي سل درجې دي كه د ټول عالم خلک په يوې درجې كي يو ځای سي نو د هغوئ لپاره به بس وي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۸۳، رقم: ۲۵۳۲.

## د جنت فرش

﴿۵۳۹۲﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِهِ وَفُرُشٍ مَرْفُوعَةٍ قَالَ ارْتِفَاعُهَا لَكَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ مَسِيرَةَ خَمْسِ مِائَةِ سَنَةٍ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د دغه آيت (وفرش مرفوعة...) په اړه فرمايلي دي چي د دې فرشونو لوړوالی به دومره وي څومره چي د آسمان او ځمكي په منځ كي مزل دی يعني د پنځه سوو كالو لار. ترمذي وويل دا حديث غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي: ۴\۵۸۶، رقم: ۲۵۴۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي د جنت په درجو کي کوم فرشونه او بسترې وي هغه به دومره لوړي وي چي د آسمان په ډول به لوړي وي، يا دا مطلب دی چي د قرآن کريم په دغه آيت کي چي دکومو لوړو فرشونو او بسترو ذکر دی هغه به د جنت په هغه درجو کي وي چي د مځکي څخه تر آسمان پوري د مسافت په اندازه به لوړ وي، او د هغه د لوړوالي په اړه دا حديث چي : ان للجنة مائة درجة مابين کل درجتين کما بين السماء والارض، په جنت کي سل درجې دي او په هغو کي د دوو درجو په منځ کي دومره فاصله ده لکه څومره چي د مځکي او آسمان په منځ کي ده.

ځينو حضراتو ويلي دي چي په (فرش مرفوعة) کي د فرش څخه مراد د جنت حوران دي او د مرفوعة څخه مراد د حوران جنت په ښکلا د دنيا د ښځو څخه غوره کېدل دي مګر په يو حديث کي دا هم راغلي دي چي په جنت کي به مؤمني ښځي د حورو څخه هم زياتي ښکلي وي او پر هغه حورو باندي فضيلت د هغو د لمونځ او روژو په سبب وي چي هغوئ په دنيا کي کوی.

## د جنتيانو ځلانده مخونه

《۵۳۹۳》: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَوَّلَ زُمْرَةٍ يَدْخُلُونَ

د حضرت ابو سعيد ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ چي په

الْجَنَّةَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ضَوْءُ وُجُوهِهِمْ عَلَى مِثْلِ ضَوْءِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ وَالزُّمْرَةُ

جنت کي کومه ډله تر ټولو مخکي داخله سي د هغوئ مخونه به د څوارلسمي شپې د سپوږمۍ

الثَّانِيَةُ عَلَى مِثْلِ أَحْسَنِ كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ فِي السَّمَاءِ لِكُلِّ رَجُلٍ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ

په ډول وي او بله ډله چي د هغوئ څخه وروسته داخله سي د هغوئ مخونه به په آسمان کي تر ټولو زيات ځليدونکي ستورو په ډول وي او هر جنتي ته به دوې داسي بيبياني ورکړل سي

عَلَى كُلِّ زَوْجَةٍ سَبْعُونَ حُلَّةً يُرَى مُخُّ سَاقِهَا مِنْ وَرَائِهَا . رواه الترمذي.

چي د هري بي بي پر بدن به اويا جوړي جامې وي او د هغوئ د پنډيو د ننه مغز به معلوميږي. ترمذي

**تخريج** سنن الترمذي ۴\ ۵۸۴، رقم: ۲۵۳۵.

**تشريح** په دغه حديث کي هر جنتي ته د دوو ښځو تر لاسه کېدل ذکر دي حال دا چي په يوه حديث کي دا نقل سوي دي چي په جنتيانو کي تر ټولو د کمي درجې جنتي به هم اويا ښځي او اويا زره خادمان وي، نو په دواړو حديثونو کي د مطابقت لپاره علماؤ ليکلي دي چي په کوم

حديث كي د دوو ښځو يادونه ده نو هغوئ به دَدَغه ځانګړتيا خاوند وي چي د هغوئ د پنډيو دننه مغز به د اويا جامو سربېره معلوميږي ، او پاته ښځي به د دنيا د ښځو څخه ورکول کيږي او اويا ښځي به د حوران جنت څخه ورکول کيږي او د دوارو په يو ځای کېدو سره به دو اويا وي.

## د جنتيانو مردانه قوت

﴿۵۳۹۴﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُعْطَى الْمُؤْمِنُ فِي الْجَنَّةِ قُوَّةَ كَذَا وَكَذَا مِنَ الْجِمَاعِ قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَوَ يُطِيقُ ذٰلِكَ قَالَ يُعْطَى قُوَّةَ مِائَةٍ . رواه الترمذي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په جنت كي به مؤمن ته د جماع كولو دومره او دومره طاقت وركړل سي ، پوښتنه وسول اې د الله رسوله ! ايا دی به دومره طاقت لرلای سي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : هو د سلو كسو په اندازه قوت به وركړل سي نو بيا به هغه ولي د دومره ښځو سره جماع نه سي كولای . ترمذي.

**تخريج** سنن الترمذي: ۴\ ۵۸۴، رقم: ۲۵۳۶.

## د جنت د شيانو يادونه

﴿۵۳۹۵﴾ : وَعَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انه قَالَ

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

لَوْ أَنَّ مَا يُقِلُّ ظُفُرٌ مِمَّا فِي الْجَنَّةِ بَدَا لَتَزَخْرَفَتْ لَهُ مَا بَيْنَ خَوَافِقِ السَّمٰوَاتِ

كه د جنت د شيانو څخه د نوک په اندازه يو شی ښکاره كړل سي نو د آسمان او مځكي تر منځ ټول

وَالْأَرْضِ وَلَوْ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ اطَّلَعَ فَبَدَا أَسَاوِرُهُ لَطَمَسَ ضَوْءَه

شاوخوا به د هغه څخه ښكلا تر لاسه كړي او كه په جنتيانو كي يو څوک د دنيا په لور ښكاره سي او د هغه او د هغه په لاسونو كي كړی ښكاره سي نو د هغه ځلا به

الشَّمْسِ كَمَا تَطْمِسُ الشَّمْسُ ضَوْءَ النُّجُومِ. رواه الترمذي وقال هذا

حديث غريب.

د لمر رڼا پټه کړي لکه څرنګه چې لمر د ستورو رڼا پټوي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج** : سنن الترمذي ۴\۵۸۵، رقم: ۲۵۳۸.

**د لغاتو حل** : خوانق: اى اطرافها وقيل منتهاها. (شاوخوا يا پاى)

## د جنت د غلمانو ذکر

**(۵۳۹۶)**: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْلُ الْجَنَّةِ جُرْدٌ مُرْدٌ كُحْلٌ لَا يَفْنَى شَبَابُهُمْ وَلَا تَبْلَى ثِيَابُهُمْ. رواه الترمذي والدارمي

د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: جنتيان به بې وريښتانو بې ږيرو تور سترګي او زلميان وي او د هغوئ ځواني به هيڅکله نه ختميږي او نه به يې جامې زړيږي. ترمذي او دارمي.

**تخريج** : سنن الترمذي ۴\۵۸۶، رقم: ۲۵۳۹، وسنن الدارمي ۳\۴۳۱، رقم: ۲۸۲۶،

**د لغاتو حل** : جُرد: جمع اجرد وهو الذي لاشعر على جسده. مُرد: جمع امرد، وهو غلام لاشعر على ذهنه. (لغړزنى).

**تشريح**: د جرد لفظ په اصل کي د اجرد جمع دی او اجرد هغه سړي ته وايي چې د هغه پر بدن وېښتان نه وي، همدارنګه مرد د امرد جمع ده چې معنی يې د بې ږېري زلمي ده، د کحلی لفظ د فعلی پر وزن د مکحول په معنی کي دي يعني هغه سړی چې د هغه باڼوګان پيدائشي تور وي او داسي معلوميږي لکه هغه چې په سترګو کي رانجه اچولي وي.

**(۵۳۹۷)**: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَدْخُلُ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ جُرْدًا مُرْدًا مُكَحَّلِينَ أَبْنَاءَ ثَلَاثِينَ أَوْ ثَلَاثٍ وَثَلَاثِينَ سَنَةً. رواه الترمذي.

د حضرت معاذ بن جبل ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: جنتيان به په جنت کي داسي داخليږي چې د هغوئ د بدن وريښتان به صفا وي پر سترګو به يې رانجه پوري وي او

عمر به يې ديرش يا درو ديرش کاله وي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۸۹، رقم: ۲۵۴۵.

**تشريح**: د دېرشو يا درو دېرشو کالو عمر د بشپړ ځوانۍ او طاقت څخه ډک وي ځکه جنتيان به په دغه عمر سره په جنت کي داخليږي، څرګنده دي وي چي په دېرش يا درو ديرش کي د يا حرف د راوي د شک لپاره دی چي په دغه وخت کي رسول الله ﷺ د دېرش شمېر وفرمايه او که د درو دېرش شمېر يې وفرمايه.

## سدرة المنتهی

﴿۵۳۹۸﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت اسماء بنت ابوبکر (رض) څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په وړاندي د سدرة

وَذُكِرَ لَهُ سِدْرَةُ الْمُنْتَهَى قَالَ يَسِيرُ الرَّاكِبُ فِي ظِلِّ الْفَنَنِ مِنْهَا مِائَةَ سَنَةٍ أَوْ

المنتهی ذکر وسو ، ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوريدل چي د سدرة المنتهی د شاخونو په سايه کي به تيز رفتاره سپور تر سلو کلو پوري ځي ، يا دا الفاظ يې وفرمايل :

يَسْتَظِلُّ بِظِلِّهَا مِائَةُ رَاكِبٍ شَكَّ الراوي فِيهَا فِرَاشُ الذَّهَبِ كَأَنَّ ثَمَرَهَا الْقِلَالُ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب

د سدرة المنتهی په سايه کي به سل سپاره پناه تر لاسه کولای سي ، راوي ته شک دی چي رسول الله ﷺ دغه الفاظ او که آخري الفاظ وفرمايل، په دغه درختي کي به د سرو زرو ملخان وي او ميوې به يې د منګيانو په ډول وي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۸۷، رقم: ۲۵۴۱.

**د لغاتو حل** : الفَنن: جمع افنان، ای الغصن (ښاخ). فراش: جمع فراشة، وهي التي تطير و تتهافت في السراج. (پتنګان).

**تشريح**: د سدرة المنتهی معنی د بيري د درختي ده، دغه درختي ته سدرة المنتهی ځکه ويل کيږي چي دا د هغه جنت پر آخري څوکه باندي واقع ده چي د هغه څخه اخوا هيچا ته علم نسته چي څه شي دي، تر دغه ځای وړاندي هيڅ ملائکي ته هم د تللو حکم نسته ، د حضرت جبرائيل

عليه السلام آخري تګ تر همدغه ځايه پوري دی ، تر دې وړاندي هغه هم نه سي تللای، يوازي رسول الله ﷺ د معراج په شپه ددغه درختي څخه وړاندي تللی دی، د يوه روايت مطابق دغه درخته په شپږم آسمان کي ده مګر مشهور روايت دا دی چي پر اووم آسمان باندي ده ، ددغه دواړو روايتو مطابقت داسي کيږي چي ددغه درختي رېښې په شپږم آسمان کي دي او ښاخونه يې په اووم آسمان کي دي .

په دغه درخته کي د سرو زرو ملخان دي، ددې څخه کېدای سي دا مراد وي چي پر دغه درختي باندي کومي نوراني ملائکي دي د هغوئ وزرونه داسي برېښي لکه څرنګه چي د هغه پر ښاخونو د سرو زرو ځلانده ملخان وي، يادا چي ددغه درختي څخه کوم انوار پورته کيږي او پر ښاخو باندي يو خاص ډول رڼا وي هغه يې د سرو زرو د ملخانو سره تعبير کړل، څرګنده دي وي چي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد: پر هغه درختي باندي د سرو زرو ملخان دي، دا په اصل کي ددغه آيت (اذ يغشى السدرة ما يغشى) کله چي هغه سدرة المنتهى يې پټه کړه څه چي پټوي، تفسير دی ، بيضاوي ددغه آيت لاندي ليکلي دي چي د ملائکو يوه لويه ډله چي د الله ﷻ په عبادت کي بوخت دي ، دغه درخته يې پټه کړې وي .

## حوض کوثر

﴿۵۳۹۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا الْكَوْثَرُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ څخه د حوض کوثر په اړه پوښتنه

قَالَ ذَالِكَ نَهْرٌ أَعْطَانِيهِ اللّٰهُ يَعْنِي فِي الْجَنَّةِ أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ وَأَحْلَى مِنَ

وسول، نو رسول الله ﷺ وفرمايل : کوثر يو وياله ده (په جنت کي) چي الله تعالى ما ته راکړې ده ددې اوبه د شيدو څخه زياتي سپيني

الْعَسَلِ فِيهِ طَيْرٌ أَعْنَاقُهَا كَأَعْنَاقِ الْجُزُرِ قَالَ عُمَرُ إِنَّ هَذِهِ لَنَاعِمَةٌ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكَلَتُهَا أَنْعَمَ مِنْهَا. رواه الترمذي.

او د شاتو څخه زياتي خوږې دي ، ددې ويالې پر غاړه مرغان دي چي د هغوئ غاړي به د اوښانو په ډول وي ، حضرت عمر رضي الله عنه ووېل دا مرغان خو به ډېر اباد او خوشحاله وي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل د هغه مرغانو خوړونکي به تر هغوئ زيات اباد وي. ترمذي.

**تخریج** : سنن الترمذي ۴\ ۵۸۷، رقم: ۲۵۴۲.

**د لغاتو حل** : الجزر: جمع جزور وهو الجمل. (اوښان)

**تشريح**: د نهر لفظ د هاء په زبر سره هم دی او په جزم سره هم منقول دي، مطلب دا چي کوثر د اوبو يوه ویاله ده چي د هغه پر دواړو سرو باندي دوه حوضه دي، يو حوض خو په موقف (د حشر په میدان) کي دی او دوهم حوض په جنت کي دی، ددغه ویالې زیاته برخه په جنت کي ده ځکه د (یعني في الجنة) په ذریعه يې وضاحت سوی دی چي هغه ویاله په جنت کي د رسول الله ﷺ لپاره خاص ده چي د هغه څخه به د رسول الله ﷺ امتیان اوبه کیږي.

کاعناق الجزر، د اوښ د غاړي په ډول، دلته د جزر لفظ په اصل کي د جزور جمع ده او دغه لفظ د داسي اوښ لپاره استعمالیږي چي هغه د نحر او ذبح لپاره تیار وي، ددغه جملې په ذریعه دې ته اشاره کول مقصد دي چي هغه مرغان چي په حوض کوثر کي دي د نحر او ذبح لپاره به تیار تر لاسه کیږي چي د حوض کوثر څخه اوبه کېدونکي د هغوئ غوښه وخوړلای سي.

## جنتیانو ته هر هغه شی تر لاسه کیږي کوم چي دوئ يې خواهش وکړي

﴿۵۴۰۰﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ هَلْ فِي الْجَنَّةِ مِنْ خَيْلٍ

د حضرت بریده رضي الله عنه څخه روایت دی چي يو سړي عرض وکړ اې دالله رسوله! ایا په جنت کي به آسونه وي؟

قَالَ إِنِ اللّٰهُ أَدْخَلَكَ الْجَنَّةَ فَلَا تَشَاءُ أَنْ تُحْمَلَ فِيهَا عَلَى فَرَسٍ مِنْ يَاقُوتَةٍ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: که الله تعالی ته په جنت کي داخل کړې نو دا به ستا خوښه نه وي چي ته پر آس باندي سپور کړل سي چي د سرو یاقوتو وي

حَمْرَاءَ يَطِيرُ بِكَ فِي الْجَنَّةِ حَيْثُ شِئْتَ الا فعلت وَسَأَلَهُ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ

هر ځای چي ستا خوښه وي هلته به دي الوزوي، بیا يو سړي پوښتنه وکړه اې دالله رسوله!

اللّٰهِ هَلْ فِي الْجَنَّةِ مِنْ إِبِلٍ قَالَ فَلَمْ يَقُلْ لَهُ مِثْلَ مَا قَالَ لِصَاحِبِهِ فقَالَ إِنْ

په جنت کي به اوښان وي؟ رسول الله ﷺ هغه ته د هغه جواب نه ورکړ کوم چي يې لومړني سړي ته ورکړی وو بلکه دا يې وفرمايل: که

يُدْخِلُكَ اللّٰهُ الْجَنَّةَ يَكُنْ لَكَ فِيهَا مَا اشْتَهَتْ نَفْسُكَ وَلَذَّتْ عَيْنُكَ. رواه الترمذي.

الله تعالى ته په جنت كي داخل كړي نو تا ته به هر هغه شی درکول کیږي د کوم چي ستا زړه غواړي او ستا سترګي يې خوښوي، ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۸۸، رقم: ۲۵۴۳.

**تشريح**: د فعلت لفظ د مخاطب په صيغه سره مجهول او معروف دواړه ډوله ويل كيږي، د لفظي ترجمې په صورت كي به معنى دا وي چي ستا مقصد او مدعا به پوره سي يعني ته به په خپل خواهش كي مقصد ته ورسيږي او دغه لفظ د فعلت په تاء تانيث سره د مجهول په صيغه هم منقول دی، په دغه صورت كي به معنى دا وي چي ستا دپاره به داسي وكړل سي . يعني ستا د خواهش سره سم به هغه آس تيار كړل سي ، څرګنده دي وي چي په عربي كي فرس (آس) د نارينه او ښځينه دواړو لپاره استعماليږي، په هر حال مطلب دادی چي په جنت كي به هر هغه سړي ته هغه شی ترلاسه كيږي كوم چي هغه يې خواهش كوي .

﴿۵۴۰۱﴾: وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ قَالَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي أُحِبُّ الْخَيْلَ أَفِي الْجَنَّةِ خَيْلٌ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ أُدْخِلْتَ الْجَنَّةَ أُتِيتَ بِفَرَسٍ مِنْ يَاقُوتَةٍ لَهُ جَنَاحَانِ فَحُمِلْتَ عَلَيْهِ ثُمَّ طَارَ بِكَ حَيْثُ شِئْتَ. رواه الترمذي هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ

د حضرت ابو ايوب ﷺ څخه روايت دی چي يو صحرايي سړی حاضر سو او عرض يې وكړ اې د الله رسوله ! زما آسونه ډير خوښ دي ايا په جنت كي به اسونه وي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل كه ته په جنت كي داخل كړل سوې نو تاته به د ياقوتو يو آس دركړل سي چي د هغه به دوه وزرونه وي بيا به ته پر هغه سپور كړل سې او چيري چي تلل غواړې دغه آس به په الوتلو سره تا هلته بوځي، ترمذي ويلي دي د دې حديث اسناد قوي نه دي ،

وَأَبُو سَوْرَةَ الراوي يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ و سَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَعِيلَ يَقُولُ أَبُو سَوْرَةَ هَذَا مُنْكَرُ الْحَدِيثِ يَرْوِي مَنَاكِيرا.

ابوسوره راوي ضعيف دی محمد بن اسماعيل څخه مي واوريدل چي ابوسوره منكر الحديث راوي دی او ډير منكر حديث روايت كوي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۸۸، رقم: ۲۵۴۴.

## په جنتيانو كي د امت محمدي تناسب

﴿۵۴۰۲﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْلُ الْجَنَّةِ عِشْرُونَ وَمِائَةُ صَفٍّ ثَمَانُونَ مِنْهَا مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ وَأَرْبَعُونَ مِنْ سَائِرِ الْأُمَمِ. روه الترمذي و الدارمي والبيهقي في كتاب البعث والنشور.

د حضرت بريده ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د جنتيانو به شپږ شلي (۱۲۰) صفونه وي، په هغو كي به اتيا صفونه ددغه امت وي او څلوېښت صفونه د نورو امتونو، ترمذي، دارمي او بيهقي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۸۹، رقم: ۲۵۴۶، والدارمي ۲\ ۴۳۴، رقم: ۲۸۳۵.

**تشريح**: ددغه حديث څخه څرګنده سوه چي د امت محمديه د جنتيانو شمېر به د نورو امتونو په نسبت دوه پر دري زيات وي، مګر په باب الشفاعت كي يو روايت تېر سوی دی چي په هغه كي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد منقول دی چي زه اميد لرم چي تاسو مسلمانان به د جنتيانو د مجموعي شمېر نيمايي برخه ياست، په دغه دواړو روايتو كي په ظاهره اختلاف معلومېږي مګر په حقيقت كي داسي نه ده، كيدای سي چي مخكي خو رسول الله ﷺ د الله ﷻ د دربار څخه دا اميد كړی وي چي د رسول الله ﷺ د امت خلک به د جنتيانو د مجموعي شمېر نيمايي برخه وي مګر وروسته الله ﷻ په خپل خاص رحمت سره د رسول الله ﷺ دغه اميد نور هم زيات كړی وي او په جنتيانو كي د امت محمديه شمېر يې دوه پر دري كولو سره په زيری كي وركړی وي، او دغه زياتوب يقينا د الله ﷻ د هغه خاص كرم او كرم په وجه دی چي يوازي د رسول الله ﷺ او

دده د امت مرحومه به په برخه وي.
دا هم کیدای سي چي د نورو امتونو د ځلوېښتو صفونو په مقابله کي د اهل اسلام اتیا صفونه داسي چي هغه د صفونو په اعتبار خو زیات وي مګر د اشخاصو د شمېر په اعتبار د ځلوېښتو صفو برابر وي، یعني په جنتیانو کي چي څومره خلک د نورو امتونو په ځلوېښتو صفو کي وي هغومره خلک به دامت محمدیه په اتیا صفو کي وي مګر دا یوازي احتمال دی، صحیح خبره هغه ده چي مخکي بیان سول.

## د جنت د دروازې وسعت

﴿۵۴۰۳﴾: وَعَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت سالم رحمه الله د خپل پلار څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

بَابُ أُمَّتِي الَّذِي يَدْخُلُونَ مِنْهُ الْجَنَّةَ عَرْضُهُ مَسِيرَةُ الرَّاكِبِ الْمُجَوِّدِ ثَلَاثًا

د جنت هغه دروازه چي زما امت به ور داخلېږي د هغې پلنوالی د سپاره د درو کالو د مزل برابر

ثُمَّ إِنَّهُمْ لَيُضْغَطُونَ عَلَيْهِ حَتَّى تَكَادُ مَنَاكِبُهُمْ تَزُولُ. رواه الترمذي وقال

دی چي آس ښه وځغلول سي او د دروازې د دومره پلنوالي سربېره چي زما امت پر دې تېرېږي نو د ګڼوالي په سبب به تېرېدل ګران وي تر دې حده چي اوږې به یې وسولېږي. ترمذي ویلي دي

هَذَا حَدِيثٌ ضَعِيف وسَأَلْتُ مُحَمَّدًا ابن اسماعيل عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ فَلَمْ يَعْرِفْهُ و قَالَ يَخْلَدَ بْنِ أَبِي بَكْرٍ يروي المناكير.

دا حدیث ضعیف دی ما ددې روایت په اړه د محمد بن اسماعیل څخه پوښتنه وکړه هغه لاعلمي څرګنده کړه او وه یې ویل چي یخلد بن ابوبکر منکر روایات روایت کوي. ترمذي.

**تخریج** سنن الترمذي ۴\۵۹۰، رقم: ۲۵۴۸.

**د لغاتو حل**: المجد: من التجويد وهو التحسين.

**تشریح** د سپاره د درو ..... د مزل برابر: دلته د درو څخه مراد یا خو د درو شپو مسافت دی یا د درو کالو، او دغه (درې کاله) زیات صحیح دی، ځکه چي په دې کي زیاته مبالغه ده، بیا د درو کالو مسافت څخه هم زیاتوب مراد اخیستل دي چي دغه روایت د هغه حدیث خلاف نه سي

چي په هغه کي دا فرمايل سوي دي چي د جنت د دروازو څخه دهري دروازې د دواړو پلو درميانه فاصله د څلوېښتو کالو د مسافت په اندازه ده، او که درې کاله پردغه حقيقي مفهوم باندي په محمول کولو سره د زياتوب مراد نه واخيستل سي نو بيا به دا ويل کيږي چي کيداى سي مخکي رسول الله ﷺ ته دوحي په ذريعه ددغه دروازې پلنوالى کم ښودل سوى وي چي رسول الله ﷺ د درو کالو د مسافت په فاصلې سره تعبير وفرمايه او بيا وروسته دهغه د زيات پلنوالي علم رسول الله ﷺ ته ورکړل سوى وي چي رسول الله ﷺ د څلوېښتو کالو دمسافت په ذريعه څرګنده کړل، يوه خبره دا هم کيداى سي چي د دغه دواړو روايتو څخه په جنت کي دداخليدونکو په اعتبار د مختلف پلنوالي معلوم سوى وي چي دهغه د دروازې په ذريعه کم خلک داخليږي هغه به د ډېر پلنوالي سربېره لږ پلنه معلوميږي.

ترمذي دغه روايت ته ضعيف ويلي دي، او په مصابيح کي دي چي دغه روايت ضعيف منکر دى او دمصابيح شارح دا وضاحت کړى دى چي دغه حديث منکر ځکه ګرځول سوى دى چي دغه حديث د هغه صحيح حديثونو خلاف دى کوم چي د مذکوره مضمون سره متعلق منقول دى، بيا ترمذي ددغه حديث پر ضعيف کيدو باندي د حضرت محمد بن اسماعيل يعني امام بخاري رحمة الله عليه استدلال کړى دى چي هغه ددغه حديث څخه د خپل ناخبرتيا اظهار وکړ او دا اصول دى چي کله يو داسي عالم حديث او امام فن چي د حديث د ټولو طريقو او اسنادو کامل بصيرت او پوره معلومات لري، دا وايي چي زه په فلاني حديث خبر نه يم، نو دا ددې خبري دليل دى چي هغه حديث ضعيف دى، ددې څخه پرته امام بخاري رحمة الله عليه ددغه حديث د راوي په اړه په وضاحت سره ويلي دي چي هغه منکر حديثونه نقل کوي، لکه فيصله چي يې وکړل چي دا حديث ضعيف دى.

د امام بخاري رحمة الله عليه دغه قول چي يخلد ابن ابي بکر، منکر روايتونه بيانوي، په دې اړه سيد جمال الدين ويلي دي چي لفظ د يخلد د صاحب مشکوة سهوه ده، اصل نوم يې خالد بن ابي بکر دى ځکه په ترمذي کي خالد ابن ابي بکر منقول دى او د اسماء الرجال په کتابو کي هم داسي دى.

## د جنت بازار

﴿۵۴۰۴﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په جنت کي يو

لَسُوقًا مَا فِيهَا شِرَاءٌ وَلَا بَيْعٌ إِلَّا الصُّوَرَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ فَإِذَا اشْتَهَى الرَّجُلُ صُورَةً دَخَلَ فِيهَا . رواه الترمذي وقال هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

بازار دی چي په هغه کي رانيول او خرڅول نه سته بلکه د خلکو او ښځو عکسونه به وي نو کله چي يو سړی يو عکس خوښ کړي نو دی به هغه شکل اختيار کړي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۹۲، رقم: ۲۵۵۰،

**تشريح**: مطلب دا دی چي هغه بازار به په اصل کي د ښکلا او جمال ځخه په ښکلي کېدو او ښه صورت کي د بدلېدو يو مرکز وي، هلته به هري خوا ته ښکلي او ښائسته شکلونه معلومېږي او په جنتيانو کي چي څوک غواړي که نارينه وي يا ښځه وي په هغه شکلو کي به يو صورت اختيارول غواړي نو په هغه کي به ځای سي او خپل خوښ کړی شکل به اختيار کړي لکه څرنګه چي پيريان او ملائکي په دنيا کي کوم شکل او صورت اختيارول غواړي په هغه کي څرګندېږي

## د الله جلاله دېدار او د جنت بازار

﴿۵۴۰۵﴾: وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّهُ لَقِيَ أَبَا هُرَيْرَةَ فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ أَسْأَلُ اللَّهَ

د حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله ځخه روايت دی چي زه د ابوهريره رضي الله عنه سره يو ځای سوم هغه وويل زه الله تعالى ته سوال کوم چي

أَنْ يَجْمَعَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ فِي سُوقِ الْجَنَّةِ فَقَالَ سَعِيدٌ أَفِيهَا سُوقٌ قَالَ نَعَمْ أَخْبَرَنِي

هغه ما او تا د جنت په بازار کي يو ځای کړي ، سعيد رحمه الله وويل ايا په جنت کي بازار هم سته، ابوهريره رضي الله عنه وويل :هو ما ته

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ إِذَا دَخَلُوهَا نَزَلُوا فِيهَا بِفَضْلِ

رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي هر کله جنتيان په جنت کي داخل سي نو د اعمالو سره سم به هغوئ ته ځايونه او منزلونه تر لاسه کيږي،

أَعْمَالِهِمْ ثُمَّ يُؤْذَنُ لهم فِي مِقْدَارِ يَوْمِ الْجُمُعَةِ مِنْ أَيَّامِ الدُّنْيَا فَيَزُورُونَ رَبَّهُمْ

بيا به هغوئ ته د دنيا د جمعي د ورځي برابر اجازه ورکړل سي چي د خپل پروردګار زيارت وکړي

وَيُبْرِزُ لَهُمْ عَرْشَهُ وَيَتَبَدَّى لَهُمْ فِي رَوْضَةٍ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ فَتُوضَعُ لَهُمْ مَنَابِرُ

په دغه ورځ به الله تعالی خپل عرش څرګند کړي او جنتیانو ته به خپل دیدار ښودلو لپاره د جنت د باغچو څخه په یو باغچه کي خپل دیدار ښکاره کړي، کوم خلک چي د الله ﷻ د دیدار لپاره راسي د هغوئ لپاره به د نور منبر،

مِنْ نُورٍ وَمَنَابِرُ مِنْ لُؤْلُؤٍ وَمَنَابِرُ مِنْ يَاقُوتٍ وَمَنَابِرُ مِنْ زَبَرْجَدٍ وَمَنَابِرُ مِنْ

د ملغلرو منبر، د یاقوتو منبر ، د زبرجد منبر او منبرونه

ذَهَبٍ وَمَنَابِرُ مِنْ فِضَّةٍ وَيَجْلِسُ أَدْنَاهُمْ وَمَا فِيهِمْ مِنْ دَنِيٍّ عَلَى كُثْبَانِ الْمِسْكِ

د سرو زرو او د سپینو زر منبر وغوړول سي او د خپلو مرتبو سره سم به خلک په هغه کي کښیني

وَالْكَافُورِ وَمَا يَرَوْنَ أَنَّ أَصْحَابَ الْكَرَاسِيِّ بِأَفْضَلَ مِنْهُمْ مَجْلِسًا قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ

د ادنا درجې جنتي به د مشک او کافورو پر غونډۍ کښېنول سي او پر غونډیو ناست خلک به پر کرسیو ناست خلک د خپل ځان څخه غوره نه ګڼي، دابو هریره ﷺ بیان دی چي

قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَهَلْ نَرَى رَبَّنَا قَالَ نَعَمْ قَالَ هَلْ تَتَمَارَوْنَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ

ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! ایا موږ به خپل پروردګار وینو، رسول الله ﷺ وفرمایل: هو، ایا تاسو څه شک کوئ د لمر په لیدو کي

وَالْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ قُلْنَا لَا قَالَ كَذَلِكَ لَا تُمَارَوْنَ فِي رُؤْيَةِ رَبِّكُمْ وَلَا يَبْقَى فِي ذَلِكَ

او د څوارلسمي شپې د سپوږمۍ په لیدو کي ؟ موږ عرض وکړ: یا، نو رسول الله ﷺ وفرمایل: همداسي به تاسو هم د خپل پروردګار په لیدو کي څه شک نه کوئ، او د دیدار الهي په هغه

الْمَجْلِسِ رَجُلٌ إِلَّا حَاضَرَهُ اللَّهُ مُحَاضَرَةً حَتَّى يَقُولَ لِلرَّجُلِ مِنْهُمْ يَا فُلَانُ بْنَ

مجلس کي به هیڅ یو سړی داسي پاته نه سي چي د هغه سره به الله تعالی خبري ونه کړي تر دې چي په حاضرینو کي به یو سړی مخاطب کړي ، الله تعالی به ورته فرمایي اې فلانی

فُلَانٍ أَتَذْكُرُ يَوْمَ قُلْتَ كَذَا وَكَذَا فَيُذَكِّرُ بِبَعْضِ غَدَرَاتِهِ فِي الدُّنْيَا فَيَقُولُ يَا رَبِّ

د فلاني زويه! ايا تا ته هغه ورځ ياد نه ده چي په هغه ورځ تا داسي ويلي او خداى ﷻ به
ددغه نفر يو څو تيکي. ورياد ي کړي چي په دنيا کي يې کړي وي هغه سړی به وايي اې

أَفَلَمْ تَغْفِرْ لِي فَيَقُولُ بَلَى فَبِسَعَةُ مَغْفِرَتِي بَلَغَتْ بِكَ مَنْزِلَتَكَ هَذِهِ فَبَيْنَمَا هُمْ

پروردګاره! ايا تا زما هغه ګناهونه نه دي بخښلي، الله تعالى به ورته فرمايي هو ما وبخښل او
زما د بخښني سره خو نن ته دې مرتبې ته رارسيدلى يې، ټول خلک به په دې حالت کي وي چي

عَلَى ذَلِكَ غَشِيَتْهُمْ سَحَابَةٌ مِنْ فَوْقِهِمْ فَأَمْطَرَتْ عَلَيْهِمْ طِيبًا لَمْ يَجِدُوا مِثْلَ

يوه وريځ به راسي او پر هغوئ به خپره سي بيا دغه وريځ به پر هغوئ داسي خوشبويي واوروي
چي هغسي خوشبويي به يې هيڅکله نه وي ليدلې

رِيحِهِ شَيْئًا قَطُّ وَيَقُولُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى قُومُوا إِلَى مَا أَعْدَدْتُ لَكُمْ مِنَ الْكَرَامَةِ

بيا به الله تعالى هغوئ ته وفرمايي ولاړ سئ او د هغه شي په لور ځئ چي ستاسو د عزت زياتولو
لپاره ما تيار کړی دی

فَخُذُوا مَا اشْتَهَيْتُمْ فَنَأْتِي سُوقًا قَدْ حَفَّتْ بِهِ الْمَلَائِكَةُ فِيهَا مَا لَمْ تَنْظُرِ الْعُيُونُ

او کوم شی چي ستاسو خوښ سي هغه واخلئ بيا به موږ يو بازار ته راسو چي پر شاوخوا به يې
ملائکي وي، په هغه بازار کي به هغه شيان وي چي د هغه په ډول به نه سترګو ليدلي وي

إِلَى مِثْلِهِ وَلَمْ تَسْمَعِ الْآذَانُ وَلَمْ يَخْطُرْ عَلَى الْقُلُوبِ فَيُحْمَلُ لَنَا مَا اشْتَهَيْنَا لَيْسَ

نه به غوږو اوريدلي وي او نه به د هغه خيال د چا په زړه کي راغلی وي بيا به د هغه بازار څخه هم
هغه شيان راکړل سي چي زموږ خوښ وي

يُبَاعُ فِيهَا وَلَا يُشْتَرَى وَفِي ذَلِكَ السُّوقِ يَلْقَى أَهْلُ الْجَنَّةِ بَعْضُهُمْ بَعْضًا قَالَ

حال دا چي په هغه بازار کي به د رانيولو او خرڅولو هيڅ معامله نه وي او په دغه بازار کي به
جنتيان يو ذ بل سره ملاقات کوي، سعيد رضي الله عنه راوي وايي، رسول الله ﷺ وفرمايل چي

فَيُقْبِلُ الرَّجُلُ ذُو الْمَنْزِلَةِ الْمُرْتَفِعَةِ فَيَلْقَى مَنْ هُوَ دُونَهُ وَمَا فِيهِمْ دَنِيٌّ فَيَرُوعُهُ

(د جنت په بازار کي به) يو لوړ مرتبې والا سړی د يو معمولي درجې سړي سره ملاقات وکړي

او د کمزوري درجې سړی به په جنتيانو کې ځان کم نه بولي

مَا يَرَی عَلَيْهِ مِنَ اللِّبَاسِ فَمَا يَنْقَضِي آخِرُ حَدِيثِهِ حَتَّى يَتَخَيَّلَ عليه مَا هُوَ

او د کوم اعلی ډول جامه چې هغه اغوستې وي د هغه به خوښه سي او ښه به ورته معلومه سي بيا د دواړو خبري به لا ختمي نه وي چې د دغه ادنا سړي په خيال کي به راسي چې د ده جامې زما

أَحْسَنُ مِنْهُ وَذَلِكَ أَنَّهُ لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يَحْزَنَ فِيهَا ثُمَّ نَنْصَرِفُ إِلَى مَنَازِلِنَا

ښخه غوره نه دي ، دا په دې سبب چې په جنت کي به هيچا ته د غمګين کېدو موقع نسي ورکول کېدلای بيا به موږ خپلو ځايونو ته راسو

فَيَتَلَقَّانَا أَزْوَاجُنَا فَيَقُلْنَ مَرْحَبًا وَأَهْلًا لَقَدْ جِئْتَ وَإِنَّ بِكَ مِنَ الْجَمَالِ أَفْضَلَ

او زموږ بيبياني به زموږ سره ملاقات کوي او مرحبا او هر کلی به راته وايي بيا به وو ايي چې ته په داسي حالت کي راغلې چې ستا حسن او جمال د هغه ښخه زيات دی

مِمَّا فَارَقْتَنَا عَلَيْهِ فَيَقُولُ إِنَّا جَالَسْنَا الْيَوْمَ رَبَّنَا الْجَبَّارَ وَيَحِقُّنَا أَنْ نَنْقَلِبَ بِمِثْلِ مَا انْقَلَبْنَا. رواه الترمذي وابن ماجه و قال الترمذي هذا حديث غريب.

کوم وخت چې ته زموږ ښخه بېل سوی وې موږ به د هغو په جواب کي ورته وو ايو نن موږ د خپل پرورد ګار سره د هم نشيني عزت حاصل کړی دی او موږ په هغه ډول سره د راستنيدو قابل يو کوم ډول سره چې راغلي يو ،ترمذي، ابن ماجه او ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج** : سنن الترمذي ۴\ ۵۹۱، رقم: ۲۵۴۹، وابن ماجه ۲\ ۱۴۵۰، رقم: ۴۳۳۶.

**د لغاتو حل** : كثبان: هو تل من الرمل (د ريګو کوټه).

**تشريح** په جنت کي به د شپې او ورځي ګرځېدل نه وي، او نه به د ورځو وجود وي، نو په دنياوي اعتبار سره د جمعې د ورځي ښخه مراد دادی چې په دنيا کي د يوې اونۍ ښخه تر بلي اونۍ پوري موده چې پر وخت باندي مشتمل وي په جنت کي د هغه وخت په تعين کولو سره به د جمعې ورځ ګرځول کيږي، او په دې اعتبار هغه رحمت به په هغه ورځ وي کوم چې په دنيا کي د جمعې ورځ وه او بيا هغه وخت به جنتيانو ته حکم وسي چې د خپل پروردګار د زيارت لپاره خپلو خپلو ماڼيو او ځايو ته په تللو سره فلاني باغ ته ورسي نو په جنت کي به د پروردګار د زيارت

لپاره د جمعې د ورځې تعين په اصل کې دده نتيجه او انعام وي چې هغه جنتيان به په دنيا کې د الله ﷻ د حکم سره سم د جمعې په ورځ د خپلو کورونو څخه په وتلو سره جامع مسجد ته رسېدل او د جمعې لمونځ به يې کوی.

پروردګار به د هغوئ په وړاندې خپل عرش څرګند کړي، دلته د عرش څخه مراد د پروردګار ډېر لطف او کرم او زيات تر زيات رحمت او عنايت دی، کنه نو دا خبره مخکې ښودل سوې ده چې عرش د جنت بام دی نو د جنتيانو په وړاندې د عرش څرګندېدل څه معنی نه لري.

نه دا چې په هغوئ کې به څوک معمولي او ذليل وي، دغه جمله د مخکنې عبارت وضاحت دي، يعني رسول الله ﷺ داسې وفرمايل چې ما دا ويلي دي چې په دغه جنتيانو کې چې کوم د ادنا مرتبې او درجې وي، نو د ادنا څخه مراد د اعلی درجو او زيات مراتب لرونکو جنتيانو په مقابله کې د کمې درجې او قليل مراتبو لرل دي، نه دا چې د ادنی لفظ د سپکاوي پر ځای استعمال سوی دی چې د هغه معنی د ذات په اعتبار ذليل او حقير کېدل دي، نو څرګنده دي وي چې د ذاتي شخصيت تر حد پورې هر جنتي به د يو ډول مرتبې والا وي څوک به د چا په مقابله کې ذليل او حقير نه وي يوازې د حيثيت او مرتبې فرق به وي، چې په دنيا کې د اختيارونکو اعمالو او افعالو په اعتبار ځينې خلک به د اعلی درجو او زياتو مرتبو خاوندان وي، هغه خلک به د هغوئ په نسبت د کمې درجې او مرتبې والا وي.

پر غونډيو ناست خلک به پر کرسيو ناست خلک د خپل ځان څخه غوره نه ګڼي...الخ: مطلب دادی چې کوم خلک پر غونډيو ناست وي هغوئ به پر چوکيو او منبرو باندې د ناستو خلکو په لېدو سره د کمترۍ ښکار نه وي ځکه چې په جنت کې به هر سړی پر خپلې مرتبې او خپل حيثيت باندې صابر او شاکر وي، کوم خلک چې د کمې درجې وي هغوئ به ددې پوهېدو سربېره چې موږ د کمې درجې يو او زموږ په مقابله کې فلانی خلک د لوړې درجې دي، هغه به پوره مطمئن وي نه به هغوئ د لوړې مرتبې غوښتنه کوي نه به هغوئ ته د لوړې درجې د محرومۍ احساس او غم وي او نه به هغوئ ته هيڅ ډول غيرت او شرمندګي محسوس کيږي.

فيروعه ما يری عليه من اللباس، ددغه عبارت دوې معناوې کېدای سي او ددې بنياد دادی چې د روع لفظ دوې معناوې دي، يو د بېرول او دوهم د خوشحاله کېدل، د مخکنۍ معنی مراد اخيستلو په صورت کې ددغه عبارت ترجمه او مطلب به هغه وي کوم چې پورته بيان سو يعني کله چې هغه د لوړې مرتبې سړی د کمې مرتبې سړي پر بدن جامې ويني نو هغه ته به بېره يعني کراهت محسوس سي ځکه چې هغه جامه به د خپلې جامې څخه د کمې درجې وي،

دوهمي معنى په صورت كي به ترجمه او مطلب دا وي چي كله هغه د لوړي مرتبې سړى د هغه كمي مرتبې سړي جامه ويني نو هغه به په دې ډېر خوشحاله سي چي خپله د هغه په بدن اعلى جامې وي مګر زيات صحيح معنى مخكنى ده او په دې اعتبار سره د مخكنى جملو ترجمه هم د مخكنى معنى بنياد ګرځول سوې ده.

## په جنت كي د اولاد خواهش

﴿۵۴۰۶﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَدْنَى أَهْلِ

د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د ادنا درجې جنتي به هغه

الْجَنَّةِ الَّذِي لَهُ ثَمَانُونَ أَلْفَ خَادِمٍ وَاثْنَتَانِ وَسَبْعُونَ زَوْجَةً وَتُنْصَبُ لَهُ قُبَّةٌ مِنْ

وي چي د هغه سره به اتيا زره خادمان وي او دو اويا بيبياني او د هغه لپاره به خېمه وي د

لُؤْلُؤٍ وَزَبَرْجَدٍ وَيَاقُوتٍ كَمَا بَيْنَ الْجَابِيَةِ إِلَى صَنْعَاءَ و بهذا الاسناد قَالَ مَنْ مَاتَ

ملغلرو، زبرجدو او ياقوتو، دومره لويه څومره چي د جابيه او صنعا په منځ كي مزل دی، په همدې روايت كي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په جنتيانو كي چي څوک مړ سي

مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ مِنْ صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ يُرَدُّونَ أَبْنَاءَ ثَلَاثِينَ فِي الْجَنَّةِ لَا يَزِيدُونَ

په دنيا كي كه هغه د كوچني عمر وي يا د لوی عمر، په جنت كي به د ديرشو كالو سي، عمر به

عَلَيْهَا أَبَدًا وَكَذَلِكَ أَهْلُ النَّارِ وَبِهَذَا الْإِسْنَادِ قَالَ إِنَّ عَلَيْهِمُ التِّيجَانَ أَدْنَى لُؤْلُؤَةٍ

يې د دې څخه زيات نه وي او همدا سي دوږخي، او په همدې روايت كي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د جنتيانو پر سرونو به تاجونه وي

مِنْهَا لَتُضِيءُ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وبهذا الاسناد قال اذا اشتهى الولد في

او د هغه تاجونو معمولي ملغلره به داسي وي چي د مشرق او مغرب منځ به روښانه كړي، او په همدې روايت كي دا الفاظ هم دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي يو مؤمن په جنت كي

الجنة كَان حمله وَوَضْعُهُ وَسِنُّهُ فِي سَاعَةٍ كَمَا يَشْتَهِي وَقَالَ إِسْحَقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ

د اولاد خواهش وكړي نو حمل او د ماشوم عمر به په يوه ساعت كي سر ته ورسيږي (يعني دا

تړولي خبري به په يوه ساعت کي دننه په عمل کي راسي ، ابو اسحاق بن ابراهيم ددې حديث په

فِي الْحَدِيثِ إِذَا اشْتَهَى الْمُؤْمِنُ فِي الْجَنَّةِ الْوَلَدَ كَانَ فِي سَاعَةٍ وَلَكِنْ لَا يَشْتَهِي.

رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب و روى ابن ماجه الرابعة والدارمي الاخيره.

شرحه کي وايي چي که چيري جنتي په جنت کي ماشوم وغواړي نو په يوه ساعت کي به وسي مګر هغه به داسي خواهش نه کوي) . ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج** : سنن الترمذي ۴\۵۹۹، رقم: ۲۵۶۲.

**تشريح**: دا معامله به د دوږخيانو هم وي، مطلب دادی چي څرنګه جنتيان به د ديرشو کالو په عمر کېدو سره په جنت کي داخليږي که څه هم هغه په زيات عمر کي مړ سوی وي يا په کم عمر کي ، همدارنګه دوږخيان به هم د دېرشو کالو په عمر کېدو سره دوږخ ته ځي او د جنتيانو په ډول هغه دوږخيان به هم تل د ديرشو کالو په عمر وي، څرګنده دي وي چي د جنتيانو او دوږخيانو لپاره تل د دېرشو کالو عمر ټاکل کيدای سي ددې لپاره وي چي څوک د ارام او راحت وړ وي هغوئ ته پوره راحت تر لاسه سي او څوک چي د عذاب وړ وي هغوئ ته پوره عذاب ورکړل سي، نو څرنګه چي جنتيان به په دار القرار کي تل په دغه عمر کي د راحت او آرام ژوند کوي همدارنګه دوږخيان به هم په دار البوار کي د تل لپاره په دغه عمر کي د عذاب او سختۍ سره مخامخ وي .

## د حورو سندري

﴿۵۴۰۷﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ

د حضرت علي ؓ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په جنت کي به

لَمُجْتَمَعًا لِلْحُورِ الْعِينِ يُرَفِّعْنَ بِأَصْوَاتٍ لَمْ تَسْمَعِ الْخَلَائِقُ مِثْلَهَا يَقُلْنَ

د حور عين د اجتماع يو ځای وي (يعني يو ځای به داسي وي چي هلته به حوري يو ځای کيږي) په دغه اجتماع کي به حوري په لوړ آواز ترانې وايي او د هغوئ آوازونه به دومره خوندور وي چي داسي آوازونه به چا هيڅکله نه وي اوريدلي دا حوري به داسي ترانې وايي :

نَحْنُ الْخَالِدَاتُ فَلَا نَبِيدُ وَنَحْنُ النَّاعِمَاتُ فَلَا نَبْؤُسُ وَنَحْنُ الرَّاضِيَاتُ فَلَا نَسْخَطُ طُوبَى لِمَنْ كَانَ لَنَا وَكُنَّا لَهُ . رواه الترمذي.

موږ به همېشه ژوندي يو موږ به هيڅكله نه مړه كيږو، موږ به په ارام او راحت سره يو هيڅكله به فكر مند نه يو، موږ به د خپل پروردګار يا خپلو خاوندانو څخه راضي او خوشحاله يو هيڅكله به خفه كيږو نه، د هر هغه سړي لپاره خوش خبري ده چي زموږ لپاره دی او موږ د هغه لپاره يو. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۶۰۰، رقم: ۲۵۶۴.

## د جنت سیندونه او ویالې

﴿۵۴۰۸﴾: وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ مُعَاوِيَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ بَحْرَ الْمَاءِ وَبَحْرَ الْعَسَلِ وَبَحْرَ اللَّبَنِ وَبَحْرَ الْخَمْرِ ثُمَّ تُشَقَّقُ الْأَنْهَارُ بَعْدُ . رواه الترمذي و رواه الدارمي عن معاويه.

د حضرت حكيم بن معاويه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په جنت كي د اوبو درياب دی، د شاتو درياب دی، د شيدو درياب دی، د شرابو درياب دی، د دغه دريابونو څخه به بيا ويالې را جلا كيږي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۶۰۳، رقم: ۲۵۷۱.

**تشريح**: څرګنده ده چي په حديث كي د ذكر سوو سندونو څخه مراد د هغه ويالو او چينو منبع ده چي د هغه يادونه په قرآن كريم كي په دغه آيت كي سوې ده:

فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاء غَيْرِ آسِنٍ وَأَنْهَارٌ مِن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى،

ژباړه: په دغه جنت كي به ډېري ويالې د داسي اوبو وي چي په هغه كي به هيڅ بدلون نه وي او ډيري ويالې به د شېدو وي چي د هغو خوند به هيڅ بدل نه وي او ډيري ويالې به د شرابو وي چي څښونكو ته به ډېر خوندور معلوميږي او ډېري ويالې به د عسلو وي چي بالكل پاک به وي.

دغه ويالې به هغه وي چي په حديث كي د ذكر سوو سندونو څخه راوځي او بيا د هغه

ویالو څخه کوچنۍ کوچنۍ ویالې وځي او د ابرار او اخیار خیمو ته جاري وي او د ماڼیو لاندي بهیږي، ځینو حضراتو ویلي دي چي په حدیث کي د کوم سندو ذکر دی هغه په اصل کي هغه ویالې دي چي د قرآن کریم په ذکر سوي آیت کي د ویالې په نامه سره ذکر سوي دي ، فرق دادی چي په حدیث کي هغه په سند سره تعبیر سوي دي او قرآن کریم د هغه معنی د جاري کېدو او بهېدو په مناسبت سره د ویالې په نامه ذکر کړي دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د جنت حوري

﴿۵۴۰۹﴾: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الرَّجُلَ

د حضرت ابو سعید رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په جنت کي به سړی په

في الجنة لَيَتَّكِئُ فِي الْجَنَّةِ سَبْعِينَ مسندا قَبْلَ أَنْ يَتَحَوَّلَ ثُمَّ تَأْتِيهِ امْرَأَتُهُ

اویا بالښتو تکیه وهلی ناست وي او دا به یوازي پر یوه اړخ وي بیا به د جنت د ښځو څخه یوه ښځه ورته راسي او د ځان په لور به یې متوجه کولو لپاره

فَتَضْرِبُ عَلَى مَنْكِبَيْهِ فَيَنْظُرُ وَجْهَهُ فِي خَدِّهَا أَصْفَى مِنَ الْمِرْآةِ وَإِنَّ أَدْنَى

د هغه پر اوږو لاس کښېږدي، سړی به د هغې په لور متوجه سي او د هغې په باړخوګانو کي چي تر هنداري به زیات روښانه وي خپل مخ وویني او د هغې ښځي معمولي

لُؤْلُؤَةٍ عَلَيْهَا تُضِيءُ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ فَتُسَلِّمُ عَلَيْهِ فَيَرُدُّ السَّلَامَ

ملغلره به دومره ښکلې وي چي د مشرق او مغرب منځ به روښانه کړي ، دا ښځه به هغه سړي ته سلام وکړي او سړی به د هغې د سلام جواب ورکړي

وَيَسْأَلُهَا مَنْ أَنْتِ فَتَقُولُ أَنَا مِنَ الْمَزِيدِ وَإِنَّهُ لَيَكُونُ عَلَيْهَا سَبْعُونَ ثَوْبًا

او پوښتنه به ځیني وکړي چي ته څوک یې هغه ښځه به ورته وایي زه مزید یم (یعني د هغه شیانو څخه یم چي الله تعالی به یې جنتیانو ته د خپل لوري زیات ورکړي) بیشکه چي دو اویا جامې به یې اغوستي وي

فَيَنْفُذُهَا بَصَرُهُ حَتَّى يَرَى مُخَّ سَاقِهَا مِنْ وَرَاءِ ذٰلِكَ وَإِنَّ عَلَيْهَا مِنَ التِّيجَانِ إِنَّ أَدْنَى لُؤْلُؤَةٍ منها لَتُضِيءُ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ. رواه احمد.

او د سترګو نظر نه ځيني تيريږي حتى د هغې بدن به صفا معلوميږي تر دې چي د هغې د پنډيو مغز هم او د هغې پر سر به داسي تاج وي چي د هغې يوه معمولي ملغلره به د مشرق او مغرب منځ ځلانده کړي. احمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱۳\۷۵.

**تشريح**: مخکي تر دې چي هغه د يوه اړخ څخه بل اړخ بدل کړي، ددغه جملې په ذريعه دې ته اشاره کول مقصد دي چي د هغه سړي په اړخو کي به دومره زيات لوی بالښتونه ايښودل سوي وي چي هغه پر يوه اړخ باندي ناست دوهم اړخ بدلولو پوري به ډول ډول اويا بالښتونه وي.

زه د مزيد څخه يم، يعني د هغه نعمتونو څخه يو نعمت يم چي د هغه الله ﷻ ستاسو د نيکو کارو د بدلې او جزا څخه پرته د خاص انعام په توګه وعده کړې ده ، دا د قرآن کريم دغه آيت ته اشاره ده : لهم ما يشاءون فيها ولدينا مزيد. يعني مؤمنانو ته په جنت کي هغه څه تر لاسه کيږي چي موږ به يې د جزاء په توګه ورکول غواړو ددې څخه پرته زموږ سره نور هم خاص انعامونه دي همدا رنګه يو بل آيت هم دی :

للذين احسنو الحسنى وزيادة ، د نيکانو لپاره جنت دی او تر دې هم زيات.

مفسرينو په دغه آيت کي د زيادة تفسير د الله ﷻ په ديدار کړی دی ، بيا هم ددې خبري خلاف نه دی چي په هغه نورو نعمتو کي يو نعمت ځيني حوري هم وي.

پاته سوه دا خبره چي د جنت حوري دغه نعمت په مزيد سره ولي تعبير سوی دی نو وجه يې داده چي د هغه الهي فضل څخه بندګانو ته د هغوئ دنيکو اعمالو په جزاء کي به ورکړل سي اوس د هغه جنت ورکول کېدو وروسته بيا بندګانو ته چي څه تر لاسه کيږي هغه به خاص انعام او فضل وي. او ښرګنده ده چي د اصل جزاء د بدلې څخه به زيات شی وي.

## په جنت کي کښت کول

﴿۵۴۱۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَتَحَدَّثُ وَعِنْدَهُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ سره يو صحرايي سړی ناست وو ،

رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ اسْتَأْذَنَ رَبَّهُ فِي الزَّرْعِ فَقَالَ

رسول الله ﷺ دا بيان وكړ چي په جنتيانو كي به يو سړى د خپل پروردګار څخه د فصل كرلو اجازه وغواړي ، الله تعالى به ورته فرمايي

لَهُ أَلَسْتَ فِيمَا شِئْتَ قَالَ بَلَى وَلَكِنِّي أُحِبُّ أَنْ أَزْرَعَ فَبَذَرَ فَبَادَرَ الطَّرْفَ نَبَاتُهُ

په كوم حال كي چي ته يې ايا دا كافي نه دي، هغه به وايي هو ، مګر زه فصل كرل خوښوم، نو هغه ته به اجازه وركړل سي هغه به په ځمكه كي تخم وكري چي د ستركو په رپ كي به هغه شنه

وَاسْتِوَاؤُهُ وَاسْتِحْصَادُهُ فَكَانَ أَمْثَالَ الْجِبَالِ فَيَقُولُ اللَّهُ دُونَكَ يَا ابْنَ آدَمَ

سي ، لوى به سي او وه به ريبل سي او د غرونو په اندازه به سي ، الله تعالى به هغه ته وفرمايي اې دادم زويه!

فَإِنَّهُ لَا يُشْبِعُكَ شَيْءٌ فَقَالَ الْأَعْرَابِيُّ وَاللَّهِ لَا تَجِدُهُ إِلَّا قُرَشِيًّا أَوْ أَنْصَارِيًّا

بېشكه تا هيڅ شى نه مړوي ، د رسول الله ﷺ د دغه ارشاد اوريدو سره هغه صحرايي چي د رسول الله ﷺ سره نژدې ناست وو عرض يې وكړ په الله ﷻ دي مي قسم وي هغه سړى به قريشي

فَإِنَّهُمْ أَصْحَابُ زَرْعٍ وَأَمَّا نَحْنُ فَلَسْنَا بِأَصْحَابِ زَرْعٍ فَضَحِكَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه البخاري.

وي يا انصاري ځكه چي دا خلك زراعت پيشه دي او زموږ پيشه كښت نه دى ، د هغه صحرايي د دغه خبري اوريدو سره رسول الله ﷺ وخندل . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۷، رقم: ۲۳۴۸.

**د لغاتو حل** : فبادر: اى سابقه. (وړاندي سو)

**تشريح**: ستا د حرص نس هيڅ شى نه ډكوي، د دې مطلب به دا وي چي د آدم زويه! دا خو وسول چي تا يو خواهش ظاهر كړ او موږ ستا هغه خواهش د ستركو په رپ كي پوره كړ ، مګر لږ فكر وكړه چي په جنت كي دومره بې شمېره نعمتونو تر لاسه كولو او ستا د خواهش د هر شي تا ته دركولو سربېره تا چي د كوم عجيب شي خواهش وكړ هغه پر څه دلالت كوي، ايا د دې مطلب دا

نه دی چي ستا د حرص نس په هيڅ شي نه ډکيږي، او د عيش او تنعيم آخري حد هم تا ته قناعت نه سي درکولای، ددې څخه معلومه سوه چي حرص او ترک قناعت د انسان په جبلت کي داخل دی او دا يو داسي عادت دی چي د هغه څخه وتلای نه سي که څه هم هغه جنت ته ورسيږي.

## په جنت کي خوب نه راځي

﴿۵۴۱۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَأَلَ رَجُل رَسُوْلَ اللهِ ﷺ أَيَنَامُ أَهْلُ الْجَنَّةِ قَالَ اَلنَّوْمُ أَخُو الْمَوْتِ وَلاَ يَمُوْتُ أَهْلُ الْجَنَّةِ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه ايا جنتيان به بيده کيږي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: خوب د مرګ ورور دی او جنتيان به نه مړه کيږي (مطلب دا چي نه به بيديږي). بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۴\۱۸۳، رقم: ۴۷۴۵.

===========

# بَابُ رُؤْيَةِ اللهِ تَعَالٰى

## (د الله جل جلاله د ديدار (ليدني) بيان)

د رؤية الله يا د الله جل جلاله د ديدار مطلب دادی چي الله جل جلاله په خلاصو سترګو سره وويني، او د الله جل جلاله د ليدو دغه سعادت به مؤمنانو ته په آخرت کي په برخه کيږي چي د هغه د تفصيل لپاره دا باب قائم سوی دی او ددغه موضوع سره اړوند حديثونه پکښي نقل سوي دي.

**د الله جل جلاله ليدنه د عقل له موخي ناممکن نه ده**: د اهل سنت والجماعة په اتفاق سره عقيده ده چي د الله جل جلاله ليدنه يو داسي حقيقت دی چي د هغه وجود عقلا هم صحيح دی او د هغه ليدني لپاره د الله جل جلاله پر يو خاص ځای او مقام باندي او په يو خاص طرف کي موجود او قائم کېدل او د هغه د ذات او د ليدونکو مخ په مخ کېدل ضروري او د شرط د درجې شی نه دی بلکه هغه د خپل ذات او وجود په اعتبار څه چي دی په هغه حيثيت سره د هغه ليدل ممکن دي که څه هم هغه د جسم او جسمانيت څخه ماوراء او د مکان او جهت د قيد څخه ازاد دی.

پاته سوه دا خبره چي د ليدونکي شي لپاره ضروري ده چي د هغه جسم وي او پر يو خاص ځای باندي موجود او قائم وي، او د نظر په طرف کي وي نو په ليدو کي ددغه شيانو عمل دخل

کېدل په اصل کي ځکه ضروري دي چي قدرت همدا رنګه نظارم جاري کړی دی او د انسان بصر يې د خپل فعل په سرته رسولو سره د هغه اسبابو پابند ګرځولی دی که څه هم قادر مطلق د دغه جاري نظام او عادت پر خلاف د هغه عواملو څخه پرته هم چا ته يو شی ښودل غواړي نو بېله شکه پر دې قادر دی او داسي ممکن کيدای هم سي نو په دې کي هيڅ خلاف عقل خبره نسته چي الله ﷻ د قيامت په ورځ په انساني نګاه کي بصيرت ته په قوت ورکولو سره څرنګه چي نن ورځ په دنيا کي مؤمنان يې په بصيرت سره تر لاسه کوي اوويني يې، نو سبا به په آخرت کي بصر يعني د سر په سترګو سره هغه ويني.

**د ليدني تعلق د آخرت سره دی:** د امت د ټولو علماؤ پر دې خبره اتفاق دی چي د الله ﷻ لېدنه به ټولو مؤمنانو ته په آخرت کي په برخه کيږي ، ددې ثبوت هغه قرآني اياتونه، صحيح حديثونه ، د صحابه کرامو او تابعينو اجماع او د امامانو اقوال دي چي په دې اړه نقل سوي او ذکر سوي دي، مګر ځيني خلک داسي هم دي چي د الله ﷻ د ليدني څخه منکر دي، هغوئ د الله ﷻ د ليدني سره اړوند آياتونو او حديثونو تاويل کړی دی ، او د علماء حق له خوا د هغه تاويلونو ټينګ جوابونه په مختلفو تحقيقي کتابو کي مذکور دي.

د امت علماؤ دا وضاحت کړی دی چي د الله ﷻ د ليدني سره مؤمنان خاصول به په جنت کي وي چي هغه مؤمنانو چي جنت ته ورسيږي نو هلته به د الله ﷻ د ليدني په سعادت سره مشرف سي مګر کوم چي د هغه ليدني تعلق دی چي په موقف يعني د حشر په ميدان کي به وي نو هلته به ټول خلک که مؤمنان وي که کافران يعني ټول به الله ﷻ ويني مګر کافران به وروسته د دغه لېدني څخه محجوب سي او بيا به د تل لپاره به د ليدني په ارمان وي.

**ښځي به هم د الله ﷻ د ليدني څخه محرومي نه وي:** د ښځو په اړه اختلاف دی، ځيني وايي چي هغوئ ته به دغه ليدنه تر لاسه وي او ځيني انکار کوي، مګر صحيح خبره داده چي ښځي به هم د دغه خوشبختۍ څخه محرومي نه وي ، د نارينوو په ډول به هغوئ ته هم د الله ﷻ ليدنه په برخه وي، مګر ځينو حضراتو ويلي دي چي ښځو ته به په ځينو خاصو ورځو کي لکه د جمعې په ورځو کي يا د اخترو په ورځو کي د ليدني سعادت په برخه کيږي چي عام وختونه به وي ، کوم علماء چي مطلقا د ښځو د ليدني منکر دي د هغوئ وينا ده چي ښځي به په خيمو کي په پرده کي وي لکه څرنګه چي په قرآن کريم کي فرمايل سوي دي: (حور مقصورات في الخيام) نو هغوئ ته ليدنه څرنګه ممکن ده، دا د نه منلو وړ خبره ده ځکه چي لومړی خو د الله ﷻ د ليدني په اړه چي کوم آياتونه او حديثونه نقل سوي دي په هغو کي په خاصوالی

مذکور نه دی بلکه هغه پر عموم باندي محمول دي او سړي او ښځي ټول پکښي شامل دي،د وهم دا چي د آخرت پر دنیا باندي قیاس کول او هلته د ښځو په خیمو کي اوسېدل د دنیا پر پرده باندي منطبق کول یوه غلطه خبره ده ځکه چي د جنت خیمې چي په هغه کي به د هغه ښځي اوسیږي د پردې او حجاب مستلزم به نه وي ، ددې څخه پرته دا خبره هم د فکر وړ ده چي فاطمه زهرا ﷞، خدیجة الکبری ﷞، عائشه صدیقه ﷞ او امهات المؤمنات رضي الله عنهن، او همدارنګه نوري ستري ښځي چي دلکونو خلکو څخه زیات فضیلت او عظمت لري ، نو بیا څرنګه ټول د الله ﷻ د لیدني د خوشبختۍ څخه محروم کېدای سي .

**پیریانو او ملائکو ته د الله ﷻ لیدنه په برخه وي**: د پیریانو او ملائکو په اړه هم اختلاف دی، چي ایا هغوئ ته به د الله ﷻ لیدنه په برخه وي که یا ، ځینو علماؤ لیکلي دي چي د حضرت جبرائیل ﷺ څخه پرته نورو ملائکو ته به ذ الله ﷻ د لیدني سعادت په برخه نه وي او حضرت جبرائیل ﷺ به هم په دغه سعادت سره یو ځل مشرف کیږي، او همدارنګه پیریان به د الهي دېدار څخه محروم وي، مګر په دې اړه صحیح قول دادی چي د الله ﷻ د لیدني سعادت د ټولو مؤمنانو لپاره دی، که انسان وي ، ملائکه وي یا پیریان وي .

**په دنیا کي د الله ﷻ لیدنه** : دا مسئله هم مختلف فیه ده چي ایا په دنیا کي د ویښي په حالت کي په خلاصو سترګو سره د الله ﷻ لیدنه کیدای سي که یا ، په دې اړه علماؤ دا قول اختیار کړی دی چي د الله ﷻ لیدنه په دنیا کي هم ممکن ده مګر بالاتفاق غیر واقع دی، پاته سوه دا خبره چي رسول الله ﷺ د معراج په شپه کي د الله ﷻ دېدار کېدل امر واقع دی، نو دغه استثنائي صورت دی، که څه هم ځینو علماؤ ددې سره اختلاف کړی دی چي رسول الله ﷺ ته د معراج په شپه د سر په سترګو سره د الله ﷻ دېدار سوی وو دا یو بېل بحث دی چي وروسته به د اړوندو حدیثونو په تشریح کي بیان سي، په هر حال محدثین ، فقهاء، متکلمین او مشائخ طریقت ټول پر دې اتفاق لري چي تر ننه پوري په دنیا کي چا ته هم د الله ﷻ لیدنه په برخه سوې نه ده ، نه په اولیاء الله او مشائخو کي چا ددې دعوه کړې ده او نه په راتلونکي کي چا ته په بوخه کیدای سي بلکه مشائخو په تفاق سره ویلي دي که یو سړی دا دعوه وکړي چي هغه د ویښي په حالت کي الله ﷻ لېدلی دی لکه ځیني ناپوهان چي وایي نو دهغه تکذیب کول او هغه ګمراه ګڼل لازم دي، د فقه شافعي په مستند کتاب (انوار) کي دا لیکلي دي چي کوم څوک دا ووایي چي زه په دغه دنیا کي د سر په سترګو الله ﷻ وینم او الله ﷻ زما سره مخا مخ خبري کوي نو هغه کافر کیږي .

يو سوال دا پيدا كېداى سي چي كله په دنيا كي د الله ﷻ لېدنه ممكن ده او په انساني ديد كي داسي يو نقص هم نه وي چي د يو شي په لېدو كي خنډ واقع سي نو بيا د الله ﷻ د نه لېدني سبب څه دى، ددې جواب دادى چي لېدل او معلومېدل په اصل كي د نظام قدرت او تخليق الهي سبب دى چي د هغه اصل علت هغه عام بصر دى چي انسان يې په خپلو سترګو كي لري، حاسه بصر خو يوازي داسي ظاهري سبب دى چي الله ﷻ د يو خاص نظام او معمول سره سم د لېدو ذريعه جوړه كړې ده كه هغه چا ته ښودل غواړي نو د سترګو سربېره هم نسي ليدلاى د مثال په توګه يو لوى غر مخته دى او الله ﷻ د چا په سترګو كي د لېدو صفت نه وي پيدا كړى نو هغه غر هيڅكله نسي ليدلاى، همدارنګه كه يو ړوند سړى د دنيا پر ختيځه غاړه باندي وي او د دنيا پر لويديځه غاړه باندي يوه غوماشه وي او الله ﷻ هغه ړانده ته د غوماشي لېدل غواړي نو هغه يې يقينا ليدلاى سي، نو څرګنده سول چي لېدل يا ښودل د نظام قدرت سره سم د سترګي عمل يا غير عمل بېله شكه دى مګر د سترګو هغه عمل يا د هغه عمل هغه طاقت چي په هغه سره انسان په ليدنه باندي قادر دى غير محدود او خودمختار نه دى بلكه د هغه كړنه تر دې پوري ده تر څو چي الله ﷻ هغه كاركونكى وګرځوي، د الله ﷻ حكمت چي هغه پر انسان باندي په دنيا كي خپل ليدنه ونه كړي ځكه هغه حاسه بصر كي هغه توان نه دى ايښى چي په هغه سره الله ﷻ ولېدل سي، دا خبره پر عامو شيانو باندي قياس كول د ذهن او قياس مهمل تابعداري ده.

**د خوب په حالت كي د الله ﷻ لېدنه** : ايا د خوب په حالت كي د الله ﷻ لېدنه كېداى سي؟ په دې اړه د علماؤ اختلاف دى مګر صحيح قول دادى چي د خوب په حالت كي د الله ﷻ لېدنه يوازي ممكن نه بلكه امر واقع هم دى او د عقل او نقل له موخي ليري خبره هم نه ده، مګر دا ضرور ويل كيږي چي په خوب كي د الله ﷻ لېدل يوه قلبي مشاهده ده چي د هغه تعلق د مثال سره وي نه د مثل سره، او د الله ﷻ مثل نسته، په هرحال د خوب په حالت كي د الله ﷻ لېدل د الله ﷻ د وليانو څخه ثابت دي، امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله فرمايي: ما سل ځله الله ﷻ په خوب كي ليدلى دى، همدارنګه امام احمد بن حنبل رحمه الله څخه منقول دي هغه فرمايي ما په خوب كي الله ﷻ وليدى نو پوښتنه مي وكړل چي هغه كوم عمل دى چي ستا تر ټولو زيات خوښ دى، الله ﷻ وفرمايل: د قرآن كريم تلاوت، بيا مي پوښتنه وكړل چي په معنى او مطلب باندي په پوهېدو سره كه ددې څخه پرته؟ الله ﷻ وفرمايل: كه څه هم د معنى په پوهېدو سره تلاوت كوي يا ددې څخه پرته، ددغه پېښو څخه څرګنديږي چي په خوب كي د الله ﷻ لېدنه كېداى سي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### په خلاصو سترګو د الله ﷻ دېدار

﴿۵۴۱۲﴾: عن جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جرير بن عبدالله رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ اَعْيَانًا وفي رواية قَالَ كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ رسول الله صَلَّى

هغه وخت نژدې دی چي تاسو به خپل پروردګار په خپلو سترګو سره وويني او په يوه روايت کي داسي دي چي موږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چي

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فنَظَرَ إِلَى الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ فَقَالَ إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ كَمَا

رسول الله ﷺ د څوارلسمي شپې سپوږمۍ ته وکتل او وه يې ويل لکه څرنګه چي تاسو دا

تَرَوْنَ هٰذَا الْقَمَرَ لَا تُضَامُونَ فِي رُؤْيَتِهِ فَإِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَنْ لَا تُغْلَبُوا عَلَى صَلَاةٍ

سپوږمۍ وينئ همداسي به خپل پروردګار وينئ او د الله تعالى په ليدو کي به تاسو هيڅ تکليف نه محسوسوئ ، که تاسو کولای سئ نو د لمر ختلو څخه مخکي او د لمر د لويدلو څخه مخکي (سهار او مازديګر) لمنځونه پر وخت ادا کوئ

قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَ قَبْلَ غُرُوبِهَا فَافْعَلُوا ثُمَّ قَرَأَ سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا. متفق عليه.

او هيڅکله يې مه پرېږدئ ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت کړ : (و سبح بحمد ربک قبل طلوع الشمس و قبل غروبها) ،(او د لمر ختلو او لويدو څخه مخکي لمونځ کولو سره د خپل پروردګار حمد او پاکي بيانوئ) . بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۴۱۹، رقم: ۷۴۳۵، ومسلم ۱\۴۳۹، رقم: ۲۱۱- ۶۳۳.

**د لغاتو حل** : عِيانا : رفع الحجاب بين الرائي والمرئي.

**تشريح** لکه څرنګه چي د غه سپوږمۍ وينئ، د غه تشبيه د ليدلو سره ده نه د ليدونکي شي

سره، ددغه اجمال تفصیل دادی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو به خپل پروردګار داسي وینئ لکه څرنګه چي دغه سپوږمۍ وینئ نو ددې څخه د رسول الله ﷺ دا مراد وو چي څرنګه دغه وخت د څورلسمي سپوږمۍ په خپلو خلاصو سترګو سره وینئ او ددغه سپوږمۍ په لیدو کي تاسو ته هیڅ شک او شبهه نسته، دا مراد هیڅکله نه دی چي څرنګه دغه سپوږمۍ ستاسو مخته ده او په یو خاص ځای کي او یو خاص خوا کي محدود قائمه معلومیږي همدارنګه به ستاسو د پروردګار ذات هم ستاسو په وړاندي په یو خاص ځای او خاص خوا کي محدو او قائم معلومیږي،

لا تضامُون في رؤية: د هغه په لېدو کي به تاسو ته هیڅ تکلیف نه وي، دلته د تضامون لفظ داسي هم منقول دی او تضامون، هم نقل سوی دی مګر زیات صحیح د تضامون لفظ دی، او په دغه صورت کي به دغه لفظ په ضم سره وي چي دهغه معنی د ضرر او ظلم ده، او مطلب یې دادی چي د پروردګار په لیدنه کي به پر تاسو ظلم نه کیږي چي څوک دي یې ووینی او څوک دي محروم پاته سي، یا دهغه په لیدنه کي به تاسو په خپلو کي پر یوبل باندي ظلم او زیاتوب نه کوئ چي د یو بل د لیدو څخه انکار وکړئ او څوک درواغجن وګرځوئ، په دوهم صورت کي دغه لفظ به د تضام وي چي دهغه معنی په خپلو کي د یو بل سره یو ځای کېدل او رش جوړول دي، یو بل ته ټېله ورکولو او پر یو بل باندي د غورځېدو نوبت به نه راځي بلکه هر سړی به پر خپل ځای باندي په اطمینان او فراغت سره الله ﷻ ویني، لکه څرنګه چي د څورلسمي شپې د سپوږمۍ د لیدني لپاره داسي زحمت او تکلیف نه وي، پر خلاف د لومړۍ ورځي د سپوږمۍ چي هغه خړه او نرۍ کېدو په وجه سمه نه معلومیږي او د هغه لېدو لپاره خاص هڅه او کوښښ کول پکار وي.

که تاسو کولای سئ چي تاسو دغه لمونځ ....الخ: مطلب دادی چي د سهار او مازدیګر لمونځ ډېر برکتناک او ددغه وخت لمونځونه ډېر زیات ارزښت لري ځکه تاسو ددغه لمونځو د پابندۍ ډېر زیات خیال وساتئ او تر خپله وسه پوري هڅه کوئ چي دغه لمونځونه در څخه قضا نه سي او دا خبره باید په ذهن کي وي چي د لمونځ پابندي کوونکي ددې زیات وړ دی چي هغه ته د پروردګار لیدنه په برخه سي ځکه چي دلمانځه په پابندي سره د شهود ذات وصف او ملکه تر لاسه کیږي، دا هغه حقیقت دی چي هغه ته رسول الله ﷺ په دغه ارشاد کي: جعلت قرة عیني في الصلوة، زما دسترګو یخوالی په لمانځه کي ایښودل سوی دی، کي اشاره فرمایلې ده، څرګنده دي وي چي هسي خو دغه ارزښت د ټولو لمونځو دی مګر دلته د سهار او مازدیګر

لمونځ ځکه خاص سوی دی چي د دغه دواړو وختونو لمونځونه فضیلت او غوره والی لري او د دغه فضیلت او غوره والي یوه لویه وجه داده چي د سهار په وخت کي خو خلک د خوب او استراحت په حالت کي وي او بیا د مازدیګر په وخت کي د دنیا کاروبار کي اخته وي نو کوم څوک چي په دغه دوو وختونو کي د سستئ او کهالئ ښکاره نه سي او د خنډونو سربېره د دغه دواړو لمونځو خیال وساتي نو هغوئ به د نورو وختونو د لمونځو خیال په درجه اولی ساتي، چي نسبتا زیات اسان دي ، په حدیث کي د دغه دواړو وختونو د لمونځو په خاصه توګه ذکر کولو یو سبب دا هم دی چي دغه دواړه وختونو د نورو وختو په نسبت زیات شرف او فضیلت لري او دا چي په آخرت کي به د پروردګار دیدار په دغه دوو وختو کي کیږي .

## د الله ﷻ دېدار تر ټولو لوی نعمت دی

﴿۵۴۱۳﴾ : وَعَنْ صُهَيْبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا دَخَلَ أَهْلُ

د حضرت صهیب رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي جنتیان په جنت

الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ يَقُولُ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى تُرِيدُونَ شَيْئًا أَزِيدُكُمْ فَيَقُولُونَ أَلَمْ

کي داخل سي نو الله تعالی به هغوئ ته وفرمایي : نور څه غواړئ چي زه يې زیات درکړم؟

تُبَيِّضْ وُجُوهَنَا أَلَمْ تُدْخِلْنَا الْجَنَّةَ وَتُنَجِّنَا مِنَ النَّارِ قَالَ فَيرفع الْحِجَابَ

جنتیان به وایي : ایا تا زموږ مخونه روښانه کړي نه دي ایا تا موږ په جنت کي داخل کړي نه یو او د دوږخ څخه دي خلاص کړي نه یو ، رسول الله ﷺ وفرمایل: ددې اوریدو سره به الله تعالی پرده پورته کړي

فينظرون الى وجه الله تعالى فَمَا أُعْطُوا شَيْئًا أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِنَ النَّظَرِ إِلَى رَبِّهِمْ عَزَّ وَجَلَّ ثُمَّ تَلَا لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَى وَزِيَادَةٌ. رواه مسلم

او جنتیان به د الله تعالی په دیدار مشرف سي او جنتیانو ته به د الله تعالی د دیدار څخه غوره هیڅ شي نه وي ورکړل سوی ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړ : (للذي احسنوا الحسنی و زیادة)، (کومو خلکو چي نیکي کړې ده د هغه ثواب نیک دی یعني جنت او پر هغه نور زیات یعني دیدار الهي). مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۱ \ ۱٦۳، رقم: ۲۹۷ - ۱۸۱.

**تشريح**: بيابه حجاب پورته كړل سي، په دې اړه وضاحت دادى چي د حجاب (پردې) پورته كول به د جنتيانو د حيرانۍ او تعجب څخه د وتلو لپاره وي يعني هغه وخت به جنتيان په دغه حيرانتيا او تعجب كي وي چي اوس كوم يو نعمت پاته سوى دى چي الله ﷻ يې موږ ته راكول غواړي بيا به الله ﷻ د خپل ديدار په ذريعه دا وفرمايي چي وګورئ دادى هغه نعمت عظمى چي ما تاسو ته دركول غوښتل او دغه نعمت ستاسو د اصل بدلې او جزاء څخه زيات دى، د الله ﷻ ذات د حجاب او پردې څخه پاک دى، داسي نه ده چي نعوذ باالله هغه په پرده كي پټ دى او جنتيانو ته به د ديدار په وخت كي د هغه پرده ليري كړل سي.

ځكنده ده چي هغه محبوب دى نه محجوب، هغه غالب او مطلق دى نه په پرده كي مغلوب، نو حجاب پورته كړل سي ددې مطلب دادى چي د ليدونكو د سترګو څخه به هغه حجاب پورته كړل سي نو هغوئ به دخپل پروردګار په ليدنه مشرف سي، ددې تائيد خپله د حديث د مخكنۍ جملې او جنتيان به الله ﷻ ته ګوري، څخه كيږي.

او جنتيانو ته داسي هيڅ نعمت نه وركړل سو ...الخ: ددغه جملې په ذريعه د يو داسي خقيقت اظهار ول مقصد ډي چي په هغه كي د شک او شبهې ګنجائش نسته ځكه چي ځرنګه په دنيا كي تر لاسه كېدونكي ټولي ذاتي او روحاني مرتبې او درجو لوړوالي پر الله ﷻ باندي ختميږي همدارنګه په اخرت كي د تر لاسه كېدونكو ټولو نعمتو او سعادتو انتهاء به د الله ﷻ ديدار وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د جنتيانو مرتبې

﴿۵۴۱۴﴾: عَنِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَدْنَى أَهْلِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په جنت كي به د مرتبې د

الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً لَمَنْ يَنْظُرُ إِلَى جِنَانِهِ وَأَزْوَاجِهِ وَنَعِيمِهِ وَخَدَمِهِ وَسُرُرِهِ مَسِيرَةَ

لحاظ څخه ادنا كس هغه وي چي ګوري به خپلو باغونو ته، خپلو بيبيانو ته، خپلو نعمتونو ته، خپلو خدمتګارانو ته او د ناستي خپلو ځايونو ته

لْفِ سَنَةٍ وَأَكْرَمَهُمْ عَلَى اللهِ مَنْ يَنْظُرُ إِلَى وَجْهِهِ غُدْوَةً وَعَشِيَّةً ثُمَّ قَرَأَ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ. رواه احمد والترمذي.

په مزل د زرو كلونو ، او د الله تعالى په نزد به عزت ناك كس هغه جنتي وي چي سهار او مابنام به په ديدار الهي مشرف كيږي، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت كړ : (وجوه يومئذ ناضرة الى ربها ناظرة)، (ډير مخونه به په دغه ورځ د خپل پروردګار په ديدار تر او تازه او خوشحاله وي). احمد او ترمذي.

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۲\ ۶۴، والترمذي ۴\ ۵۹۳، رقم: ۲۵۵۳.

**د لغاتو حل** : سره: اى مقدار مسيرة الف سنة (د زر كاله مسافت په اندازه)

**تشريح**: چي سهار او مابنام خپل پروردګار ...الخ: ددې څخه ثرګنده سوه چي په جنت كي د پروردګار دېدار به سهار او مابنام وي، ځكه حكم سوى دى چي د سهار او مابنام پر لمونځو باندي همېشتوب اختيار كړئ او په پابندي سره دغه لمونځونه كوئ چي په جنت كي په دغه وختونو كي د الله ﷻ د دېدار حقدار سئ ، د سهار او مابنام د دېدار يو مطلب دا هم كيداى سي چي د الله ﷻ په نزد د لوړي مرتبې او قدر سړى به هغه څوک وي چي د سهار او مابنام يعني په شپه او ورځ كي هر وخت د خپل پروردګار په ليدنه سره مشرف كيږي مګر دا مطلب زيات صحيح نه معلوميږي ځكه چي د لوړي مرتبې جنتي هر وخت د پروردګار په دېدار كي وي نو بيا جنت او اخرت د نورو ټولو نعمتونو څخه برخمن كېدل به د هغوئ لپاره ممكن نه وي حال دا چي هغه نعمتونه ددغه جنتيانو لپاره پيدا سوي دي ، په هر حال د حديث څخه معلومه سوه چي د بنده اصل لويي او لوړ همتي دا وه چي د نظر او زړه اصل مركز د الله ﷻ څخه پرته بل شي ونه ګرځوي ټوله توجه او نظر الله ﷻ ته وساتي او دهغه څخه پرته بلي خوا ته توجه كول د كم همتۍ دليل دى.

### د الله ﷻ په دېدار كي به هيڅ مزاحمت نه وي

﴿۵۴۱۵﴾: وَعَنْ أَبِي رَزِينٍ الْعُقَيْلِيِّ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَكُلُّنَا يَرَى رَبَّهُ

د حضرت ابو رزين عقيلي ؓ څخه روايت دى چي ما عرض وكړاې د الله رسوله ! ايا د قيامت په ورځ به هر سړى بې زحمته خپل پروردګار ويني ؟

مُخْلِيًا بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ بَلَى قُلْتُ وَمَا آيَةُ ذٰلِكَ فِي خَلْقِهِ قَالَ يَا أَبَا رَزِينٍ

رسول الله ﷺ وفرمایل: هو، ما عرض وکړ د دنیا په مخلوق کي دديٍ یو مثال سته؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: اې ابورزین!

أَلَيْسَ كُلُّكُمْ يَرَى الْقَمَرَ ليلة البدر مُخْلِيًا بِهِ قال بَلَى قَالَ فَإِنَّمَا هُوَ خَلْقٌ مِنْ خَلْقِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ أَجَلُّ وَأَعْظَمُ. رواه ابوداؤد.

ایا د څوارلسمي سپوږمۍ په تاسو کي څوک بې تکلیفه نه ویني، ما عرض وکړ هو، ویني یې، نو رسول الله ﷺ راته وفرمایل: سپوږمۍ د الله تعالی د مخلوقاتو څخه یو مخلوق دی او الله تعالی ډیر بزرګ او برتر دی. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۹۹، رقم: ۴۷۳۱.

**د لغاتو حل**: مُخلیا: ای خالیا بربه لا یزاحمه شئ في الرؤیة.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د معراج په شپه د رسول الله ﷺ دیدار الهي

﴿۵۴۱۶﴾: عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ رَأَيْتَ رَبَّكَ قَالَ نُورٌ أَنَّى أَرَاهُ. رواه مسلم.

د حضرت ابوذر رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه ایا تاسو (په معراج کي) خپل پروردګار لیدلی دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: پروردګار یو نور دی، زه یې څنګه لیدلای سم (یعني د دنیا سترګي یې د لیدلو طاقت نه لري). مسلم.

**تخریج** صحیح مسلم: ۱\۱۶۱، رقم: ۱۷۸۲۹۱۰،

**تشریح** پروردګار خو یو نور دی...الخ: مطلب دادی چي د هغه ذات د جسم، مکان او قیود څخه ماوراء یو عظیم نور دی چي د هغه د نورانیت کمال او د هغه ظهور د انسان په فهم کي راتللای نه سي او نه بصر دومره تاب لري چي د هغه د تجلیاتو په وړاندي ودریږي، څرګنده دي

وي چي د الله ﷻ ذات خپله په قران کريم کي په نور سره تعبير سوی دی لکه څرنګه چي ارشاد دی : الله نور السماوات والارض، الله ﷻ د آسمانو او مځکو نور دی، يعني په کائناتو کي هري خوا ته د هغه د تجلياتو ظهور دی، او کوم څه چي معلوميږي د هغه د رڼا په برکت معلوميږي او کوم شيان چي مځکي او آسمان ته رڼا رسوي ، لمر، سپوږمۍ، ستوري او داسي نور شيان، هغه ټول د هغه ځلانده کړل سوي دي، يا دا مطلب دی چي الله ﷻ د ټولو کائناتو نور ورکونکی دی او هغه نور هدايت د بندګانو زړونه او دماغ روښانه کونکی دی، او د پروردګار د نومو څخه يو نوم نور هم دی يعني هغه خپله هم ظاهر او ځلانده دي او نور هم ظاهر او ځلانده کوي .

په (نور انی اراه) کي د انی لفظ د کتاب په اکثرو نسخو کي د الف په زور او د نون په شد سره منقول دی او په دې اعتبار دا ژباړه سوې ده چي الله ﷻ يو نور دی، زه هغه څرنګه ليدلای سم، مګر په ځينو نسخو کي د نور او انی الفاظو پر ځای يو لفظ (نوراني) منقول دي چي په هغه کي ياء مشدده د نسبت لپاره ده او الف او نون زائد د مبالغې لپاره په دغه صورت کي د اراه لفظ د اظنه مفهوم ادا کوي ، او روية په معنی د راي څخه په مشتق ګڼل کيږي، نو د قال نوراني اراه، به دا معنی وي چي رسول اله ﷺ وفرمايل: زه پر هغه (پروردګار) د نوراني ګمان کوم نو لفظ د اراه که چيري د الف په پيښ سره وويل سي نو د دغه معنی په اعتبار به زيات مناسب وي .

ابن ملک رحمة الله عليه د دغه حديث په ضمن کي ليکلي دي چي په دې اړه د علماؤ اختلاف دی چي رسول الله ﷺ د معراج په شپه الله ﷻ په خپلو سترګو وليدی که يا؟ کوم حضرات چي وايي چي رسول الله ﷺ ته د معراج په شپه کي په خلاصو سترګو سره د الله ﷻ ديدار په برخه سوی دی او کوم حضرات چي د دې څخه انکار کوي نو دواړي ډلي دغه د روايت الفاظ د ذکر سوي اختلاف په وجه دا حديث خپل دليل ګرځوي ځکه که د نور انی اراه روايت مخته کښېښودل سي نو د دغه جملې استفهام په طريقه د انکار دی او د دغه عبارت مطلب به دا وي چي د پروردګار ذات محض نور دی او هيڅ انساني سترګه هغه ته په کتلو سره قادر کيدای نه سي، ځکه زه وايم چي ما د معراج په شپه کي خپل پروردګار نه دی ليدلی، مګر که د نوراني اراه روايت ته وکتل سي نو دا ثابتيږي چي رسول الله ﷺ د معراج په شپه الله ﷻ ليدلی دی مګر دا به ويل کيږي چي رسول الله ﷺ د دغه خبري لپاره حکايت ماضي د حال په صيغه بيان کړ .

## رسول الله ﷺ ته د ديدار الهي سره اړوند د يو آيت تفسير

﴿۵۴۱۷﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَى وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَى

حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ د دغه آیت په تفسیر کي فرمايي: (ما كذاب الفؤاد ما راى ولقد راه نزلة اخرى)، (د محمد ﷺ زړه محمد (ﷺ) ته د هغه شي په اړه غلط وه نه ويل چي هغه په خپلو سترګو سره وليدل، يعني الله تعالى او البته محمد ﷺ الله تعالى يو وار بيا وليدى)،

قَالَ رَآهُ بِفُؤَادِهِ مَرَّتَيْنِ. رواه مسلم وفي رواية الترمذي قال رَأى مُحَمَّدٌ

ابن عباس رضی اللہ عنہ فرمايي چي محمد ﷺ الله تعالى د زړه په سترګو سره دوه واره ليدلى وو. مسلم، او د ترمذي په روايت کي راځي چي ابن عباس رضی اللہ عنہ د ذکر سوي آيت په باره کي وويل چي محمد

رَبَّهُ قال عكرمة قُلْتُ أَلَيْسَ اللهُ يَقُولُ لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وهو يُدْرِكُ الابْصَارَ

ﷺ خپل پروردګار وليدى، عکرمه رضی اللہ عنہ وايي ما ابن عباس رضی اللہ عنہ ته دا وويل چي الله تعالى خو فرمايي: (لاتدركه الابصار وهو يدرك الابصار)، (يعني سترګي هغه نه سي ليدلاى او هغه سترګي ليدلاى سي) بيا د هغه ليدل ډير مشکل دي،

قَالَ وَيْحَكَ ذَاكَ إِذَا تَجَلَّى بِنُورِهِ الَّذِي هُوَ نُورُهُ وَقَدْ رَاى رَبَّهُ مَرَّتَيْنِ. رواه مسلم

ابن عباس رضی اللہ عنہ دده په جواب کي وويل اې عکرمه! پرتا افسوس دى داسي د هغه وخت لپاره دي چي الله تعالى د خپل نور تجلي وکړي او په خپل نور سره ظاهر سي چي هغه نور د هغه د خاص ذات نور دى او محمد ﷺ خپل خداى جل جلاله دوه واره ليدلى دى. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۱۵۸، رقم: ۲۸۵- ۱۷۶.

**تشريح**: په دغه روايت کي چي د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه د کومو آياتونو تفسير او وضاحت نقل سوى دى هغه د سورة نجم لومړني آياتونه دي او د مفسرينو په نزد ددغه آياتونو په اړه خاص اختلاف دى د هغوئ مدلول او محمول څه دي؟ په صحابه کرمو، تابعينو او مفسرينو امامانو کي د يوې ډلي قول دى چي د سورة نجم په دغه آياتو کي دده خبري يادونه ده چي رسول الله ﷺ، حضرت جبرائيل عليه السلام د هغه په اصل صورت کي دوه واره ليدلى دى، يو وار يې د نبوت په لومړني زمانه کي په مکه مکرمه کي، او دوهم وار د معراج په شپه د سدرة المنتهى سره، دده پر خلاف د صحابه کرامو، تابعينو او مفسرينو امامانو د دوهمي ډلي چي

په هغوئ د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نوم په سر كي دى، وايي چي په دغه آيت كي د معراج د پېښي بيان او د رسول الله ﷺ د الله جل جلاله د ليدني يادونه ده ، د دغه اختلاف قولونه په تفصيل سره مخته هم راځي

رسول الله ﷺ خپل پروردګار د زړه په سترګو دوه واره وليدى، يعني په هغه وخت كي الله جل جلاله د رسول الله ﷺ په زړه كي دېد ته هم هغه طاقت وركړ كوم چي په سترګو كي وي او د رسول الله ﷺ د سترګو ادراک ته هم هغه طاقت وركړ كوم چي په زړه كي وي نو داسي ووايا ست چي رسول الله ﷺ خپل پروردګار د زړه په سترګو وليدى، يا دا چي د سر په سترګو يې وليدى، د دواړو يوه معنى ده ، دا مطلب ځکه اختيار كړل سو چي كوم حضرات وايي چي رسول الله ﷺ د معراج په شپه كي خپل پروردګار د سر په سترګو ليدلى دى او ځينو حضرات وايي چي د زړه په سترګو يې ليدلى دى كه د دغه دواړو قولو رعايت وكړل سي لكه چي مخكي په اجمالي توګه ذكر سو ،نو لومړني اختلاف خو دادى چي د سورة نجم په لومړنيو آياتو كي د رسول الله ﷺ د چا د ليدو يادونه ده د الله جل جلاله يا د حضرت جبرائيل عليه السلام، حضرت ابن عباس رضي الله عنه د الله جل جلاله ليدل مراد اخلي ، جمهور صحابه كرام د هغه په تائيد كي دي، او په سلفو كي جمهور مفسرين هم دې ته تللي دي ، دهغوئ په نزد د (دنى فتدلى قاب قوسين او ادنى) الفاظ د معراج په وخت كي د ربوبيت په دربار كي د رسول الله ﷺ د قرب او د پروردګار د مشاهدې او ليدني بيان دى، بيا په دې اړه هم اختلاف دى چي د معراج په شپه كي رسول الله ﷺ ، الله جل جلاله د سر په سترګو ليدلى دى كه د زړه په سترګو، ځينو دا ويلي دي چي رسول الله ﷺ خپل پروردګار د زړه په سترګو ليدلى دى او د سر په سترګو يې نه دى ليدلى، او ځينو دا ويلي دي چي رسول الله ﷺ د سر په سترګو خپل پروردګار وليدى، د امام نووي رحمه الله د پلټني سره سم د اكثرو علماؤ په نزد ترجيحي قول دادى چي رسول الله ﷺ د معراج په شپه كي الله جل جلاله د سر په سترګو وليد، كوم حضرات چي په ذكر سوي آيت كي د حضرت جبرائيل عليه السلام د هغه په اصل كي صورت كي ليدل مراد اخلي په هغوئ كي بي بي عائشه رضي الله عنها او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه هم شامل دي، د هغوئ وينا ده چي په دغه آيت كي د حضرت جبرائيل عليه السلام د هغه قرب او د ليدني بيان او يادونه ده كوم چي رسول الله ﷺ ته د جبرائيل امين په اصل صورت سره د معراج په شپه كي او تر دې مخكي يو وار په مكه مكرمه كي تر لاسه سوى دى .

د علماؤ په دې اړه هم اختلاف دى چي د معراج په شپه كي رسول الله ﷺ ته د الله جل جلاله سره بېله واسطې د كلام كولو شرف هم حاصل سوى وو يا نه؟ په اشعريينو او متكلمينو كي د يوې

ډلي وینا ده چي رسول الله ﷺ په دغه شپه کي د الله ﷻ سره بېله واسطې کلام وکړ او ځینو نورو حضراتو د دې څخه انکار کړی دی.

دا خبره د هغه وخت لپاره ده چي کله الله ﷻ خپل خاص تجلي وفرمايي...الخ: د دې مطلب دادی چي دا خبره د الله ﷻ پر مشیت او قدرت باندي منحصر ده لکه د هغه د ذات خاص تجلي ظاهره سي نو په دې کي څه شک نسته چي د چا د دېد توان یې زغملای سي نو یقینا سترګي هغه ته پورته کېدای سي او سترګي د لیدني او زیارت توان درلودلای سي.

پاته سوه د دغه آیت خبره چي د هغه حواله حضرت عکرمه ﷺ ورکړل نو په دې اړه علماء لیکي چي په دغه آیت کي د ادراک ذکر دی چي د هغه لغوي معنی د یو شي د هغه د ټولو خواوو او اطرافو سره احاطه کول دي، په دې معنی کي هیڅ بصر او دید د هغه د ذات احاطه نه سي کولای نو په دغه آیت کي د احاطه نفي مراد ده، د مطلق لیدني نفي مراد نه ده چي د هغه څخه دا اسوال پیدا کیږي چي د رسول الله ﷺ د معراج په شپه کي د الله ﷻ د لېدني خبره د دغه آیت خلاف واقع کیږي.

په دې کي شک نسته چي رسول الله ﷺ خپل پروردګار دوه واره ولیدی، د دوو واره وضاحت ځینو محدثینو دا کړی دی چي یو واریې د سدرة المنتهی سره نژدې او دوهم واریې پر عرش باندي لیدلی دی، ملا علي قاري رحمه الله د دغه جملې په وضاحت کي لیکلي دي چي د دوه واره لیدو څخه مراد دا هم کېدای سي چي رسول الله ﷺ دواړه واره د زړه په سترګو لیدلی وي، یا یو واریې د زړه په سترګو لېدلی دی وي او یو واریې د سر په سترګو لیدلی وي، دغه اختلاف ځکه دی چي په هیڅ روایت کي په وضاحت سره نقل سوي نه دي، لکه چي په دغه روایت کي هم نسته چي رسول الله ﷺ، الله ﷻ په خپلو سترګو دوه واره ولیدی.

## ایا رسول الله ﷺ د معراج په شپه الله ﷻ لیدلی وو؟

﴿۵۴۱۸﴾: وَعَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ لَقِيَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَعْبًا بِعَرَفَةَ فَسَأَلَهُ عَنْ شَيْءٍ فَكَبَّرَ

د حضرت شعبي رضی الله عنه څخه روایت دی چي ابن عباس رضی الله عنه په عرفات کي د کعب احبار رضی الله عنه سره یو ځای سو او د هغه څخه یې د یوې خبري پوښتنه وکړه (یعني د دیدار الهي په باره کي)، کعب

حَتَّى جَاوَبَتْهُ الْجِبَالُ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ إِنَّا بَنُو هَاشِمٍ فَقَالَ كَعْبٌ إِنَّ اللَّهَ قَسَمَ

رضی الله عنه د الله اکبر نعره وکړه چي په هغه سره غرونه ولړزیدل، ابن عباس رضی الله عنه وویل: موږ د هاشم اولاد یو (یعني اهل علم او اهل معرفت یو د عقل څخه لیري د یو خبري پوښتنه نه کوو)، بیا کعب رضی الله عنه وویل الله

تعالى تقسيم کړې دی

رُؤْيَتَهُ وَكَلَامَهُ بَيْنَ مُحَمَّدٍ وَمُوسَى فَكَلَّمَ مُوسَى مَرَّتَيْنِ وَرَآهُ مُحَمَّدٌ مَرَّتَيْنِ قَالَ

خپل ديدار او کلام د محمد ﷺ او موسى عليه السلام په منځ کي ، الله تعالى دوه واري موسى عليه السلام سره کلام وکړ او دوه واره محمد ﷺ الله تعالى ليدلى دى، مسروق رحمه الله وايي

مَسْرُوقٌ فَدَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ فَقُلْتُ هَلْ رَأَى مُحَمَّدٌ رَبَّهُ فَقَالَتْ لَقَدْ تَكَلَّمْتَ

زه د بي بي عائشې رضي الله عنها په خدمت کي حاضر سوم د هغې څخه مي پوښتنه وکړه چي محمد ﷺ خپل پروردګار ليدلى دى ؟ بي بي عائشې رضي الله عنها راته وويل اې مسروقه! تا داسي پوښتنه وکړه

بِشَيْءٍ قَفَّ لَهُ شَعْرِي قُلْتُ رُوَيْدًا ثُمَّ قَرَأْتُ لَقَدْ رَأَى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَى

چي په هغه سره زما وريښتان جګ ودريدل ، مسروق وايي ما وويل اې بي بي عائشې ! د صبر څخه کار واخله تلوار مه کوه بيا ما دا آيت تلاوت کړ (لقد راى من ايات ربه الكبرى) ، (يعني محمد ﷺ د خپل پروردګار لوى نښي وليدلې)،

فَقَالَتْ أَيْنَ تُذْهَبُ بِكَ إِنَّمَا هُوَ جِبْرِيلُ مَنْ أَخْبَرَكَ أَنَّ مُحَمَّدًا رَأَى رَبَّهُ أَوْ كَتَمَ

بي بي عائشې رضي الله عنها وويل تا دا آياتونه کومي خوا ته بيايي (يعني ددې مطلب دا نه دى کوم چي ته ئې ني اخلې ) ددې څخه مراد جبرائيل عليه السلام دى، اې مسروق ! څوک چي تا ته دا ووايي چي محمد ﷺ خپل پروردګار ليدلى دى يا دا ووايي چي محمد ﷺ په دغه شيانو کي څه پټ ساتلي

شَيْئًا مِمَّا أُمِرَ بِهِ أَوْ يَعْلَمُ الْخَمْسَ الَّتِي قَالَ اللَّهُ تَعَالَى إِنَّ اللَّهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ

دي چي د هغه د ظهار هغه ته حکم نه وو ورکړل سوى يا دا ووايي چي محمد ﷺ د هغه پنځو شيانو علم درلود چي د هغه ذکر الله تعالى په دې الفاظو کي کړې دى : (ان الله عنده علم

وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ فَقَدْ أَعْظَمَ الْفِرْيَةَ وَلَكِنَّهُ رَأَى جِبْرِيلَ لَمْ يَرَهُ فِي صُورَتِهِ إِلَّا

الساعة......) نو هغه پر محمد ﷺ لوى بهتان وايه، محمد ﷺ جبرائيل عليه السلام ليدلى دى او جبرائيل يې هم د هغه په اصلي صورت کي يوازي

مَرَّتَيْنِ مَرَّةً عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهَى وَمَرَّةً فِي جِيَادٍ لَهُ سِتُّ مِائَةِ جَنَاحٍ قَدْ سَدَّ

دوه واره ليدلی دی يو وار سدرة المنتهی ته نژدې او يو وار په مقام جياد کي (چي مکې ته نژدې يوه ابادي ده)، رسول الله ﷺ جبرائيل عليه السلام په اصلي شکل کي په هغه حال کي

الْأُفُقَ. رواه الترمذي و روى الشيخان مع زيادة واختلاف و في روايتهما قَالَ

وليدی چي د هغه شپږ سوه وزره وه او هغه د آسمان کنارې بندي کړي وې، د ترمذي، بخاري او مسلم په روايت کي دا الفاظ هم دي سره له اختلافه او زياتوب چي مسروق وويل:

قُلْتُ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فَأَيْنَ قَوْلُهُ ثُمَّ دَنَا فَتَدَلَّى فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَىٰ

بيا ما بي بي عائشې رضي الله عنها ته دا وويل چي نو بيا د الله تعالی د دغه قول څه معنا ده: (ثم دنی فتدلی فکان قاب قوسين او ادنی)،

قَالَتْ ذَاكَ جِبْرِيلُ كَانَ يَأْتِيهِ فِي صُورَةِ الرَّجُلِ وَإِنَّهُ أَتَاهُ هَذِهِ الْمَرَّةَ فِي صُورَتِهِ الَّتِي هِيَ صُورَتُهُ فَسَدَّ الْأُفُقَ.

بي بي عائشې رضي الله عنها وويل ددې څخه مراد جبرائيل عليه السلام دی چي همېشه به د يو انسان په شکل کي راتلی او پر دې موقع هغه په خپل اصلي شکل کي څرګند سوی وو او افق (د آسمان کنارې) يې ډک کړی وو.

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٣٦٧، رقم: ٣٢٧٨.

**تشريح**: موږ د هاشم اولاد يو، يعني موږ نه يوازي دا چي د هغه قبيلې او کورنۍ سره تعلق لرو چي د علم، فضيلت، عقل او پوهي په اعتبار ځانګړې حيثيت لري بلکه د دغه کورنۍ د نبوت سره د نسبت او قرابت درلودو په وجه د رسول الله ﷺ په خدمت کي د علومو او انوارو څخه د اکتساب موقع موږ ته زياته تر لاسه سوې ده، او د دغه زيات کورني نسبت او امتياز په وجه الله جل جلاله موږ په علم او معرفت سره مشرف کړي يو، نو زما څخه دا ميد مه کوئ چي زه داسي پوښتنه وکړم چي د علم او عقل څخه ليري وي، ما چي کوم ه پوښتنه کړې ده د هغه ژوروالي ته د رسېدو هڅه وکړئ او ما ته زما په سوال د حيرت او غصې کولو پر ځای په فکر او غور کولو سره جواب راکړئ، چي ايا په دنيا کي د الله جل جلاله ليدنه ممکن ده، کله چي حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ذکر سوی سوال وکړ نو کعب رضي الله عنه دا وګڼل چي حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په دنيا کي د مطلق ليدني په اړه پوښتنه کوي، ځکه هغه حيران سو او د هغه سوال يې د عقل څخه ليري وګڼی مګر کله چي

حضرت ابن عباس رضي الله عنه په خپل اړه اظهار وکړ نو حضرت كعب احبار رضي الله عنه د هغه پوښتني په جواب کي په فكر كي سو او بيا د هغه په مراد پوه سو چي د هغه په پوښتنه کي مطلق ليدنه مراد نه ده بلكه في الجمله ليدنه مراد ده، ددې څخه وروسته هغه جواب ورکړ چي يوازي د رسول الله ﷺ لپاره ليدنه ممكن ده چي د معراج په شپه ور په برخه سوې ده.

يا دا چي رسول الله ﷺ د هغه شيانو څخه څه پټ کړي دي...الخ: دلته د شيانو څخه مراد احكام او شرائع دي چي د هغه خلكو ته رسول د رسول الله ﷺ لپاره ضروري وګرځول سو لكه چي په قرآن كريم كي ارشاد دى:

يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ وَإِن لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ.

ژباړه: اې پيغمبره! كوم احكام او شرائع چي د الله جل جلاله له خوا پر تا نازل سوي دي ټولو خلكو ته يې ورسوه او كه داسي ونه کړې نو تاسو د الله جل جلاله په پيغام رسولو كي پاته راغلاست.

د پټولو مفهوم عام دى كه هغه د ټولو احكامو او شرائعو د پټولو په اړه وويل سي يا د هغه احكامو او شرائعو څخه ځيني مراد وي، په دې سره د شيعه ګانو د هغه ګمراه كونكي خبري رد كيږي چي ځيني احكام او شرائع داسي دي چي رسول الله ﷺ د خپلو اهل بيتو لپاره خاص کړي دي او د هغه دائره يې تر ټول امت پوري پراخه نه کړل.

نو بيا د الله جل جلاله ددغه ارشاد محمول او مصداق څه دى؟ ددغه جملې په ذريعه حضرت مسروق رضي الله عنه د سورة نجم هغه ټولو آياتو ته اشاره وکړل چي د هغه په اړه د صحابه كرامو، تابعينو او مفسرينو امامانو د اختلافي قولونو يادونه هم سوې ده، هغه اياتونه دادي:

ثُمَّ دَنَا فَتَدَلَّى فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَى ، فَأَوْحَى إِلَى عَبْدِهِ مَا أَوْحَى ، مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَى

ژباړه: هغه تا ته نژدې راغلى، بيا نور نژدې سو چي د دوو لېنديو فاصله پاته سوه بلكه تر دې هم کمه، بيا الله جل جلاله پر خپل بنده باندي وحي نازل کړه، څه چي نازلول وو، څه چي هغه وليدل د هغوئ زړه هغه دروا غ ونه ګڼل.

دلته دا خبره په ذهن كي راځي چي د دنى ضمير الله جل جلاله ته راجع دى او همدارنګه په تدلى او فكان قاب قوسين، كي د كان ضميرونه هم الله جل جلاله ته راجع دي، چي د هغه يوه څرګنده قرينه د فاوحى ضمير دى او ددې مرجع يقيني الله جل جلاله دى، په دې وجه حضرت مسروق رضي الله عنه سوال څرګند کړ، كه چيري د معراج په شپه كي د رسول الله ﷺ د الله جل جلاله ديدار نه وو سوى نو بيا ددغه آياتو به څه معنى وي؟ ددغه سوال جواب بي بي عائشې رضي الله عنها دا ورکړ چي ددغه افعالو د

ضمیرونو مرجع الله تعالی نه دی بلکه حضرت جبرائیل علیه السلام دی، نو دا ګڼل چي د دغه آیاتو څخه د رسول الله ﷺ ، د الله جل جلاله لیدل ثابتیږي، غلطه نتیجه اخذ کول دي، بیا بي عایشي رضی الله عنها د (کان یاتیه في صورة الرجل ...الخ) په ذریعه د یو بل سوال جواب ورکړ ، که چیري دا سوال پیدا سي چي حضرت جبرائیل علیه السلام خو به رسول الله ﷺ ته هر وخت راتلی نو بیا د معراج په شپه کي د هغه د لېدو دومره په وضاحت سره د بیانولو څه اړتیا وه، نو بي بي عائشي رضی الله عنها د جواب په توګه وفرمایل چي حضرت جبرائیل علیه السلام به په عامه توګه رسول الله ﷺ ته په انساني شکل او صورت کي راتلی ، هغه د رسول الله ﷺ په وړاندي په خپل اصلي صورت کي یوازي دوه واره راغلی دی، یو وار د نبوت په پیل کي او په دوهم وار د معراج په شپه کي د سدرة المنتهی سره رسول الله ﷺ ته معلوم سوی وو .

خلاصه دا چي حضرت ابن عباس رضی الله عنه د حضرت کعب احبار رضی الله عنه د قول څخه په استدلال کولو سره دا اختیار کړل چي رسول الله ﷺ د معراج په شپه کي الله جل جلاله دوه واره لیدلی دی، په دې احتمال سره چي دواړه واره یې د سر په سترګو لیدلی دی که د زړه په سترګو، یا دا چي یو واریې د سر په سترګو لیدلی دی او یو واریې د زړه په سترګو لیدلی دی، که څه هم پر دې خبره اتفاق دی چي رسول الله ﷺ د سر په سترګو دوه واره نه دی لیدلی او بي بي عائشه رضی الله عنها د دې څخه انکار کوي چي رسول الله ﷺ د معراج په شپه الله جل جلاله ولیدی، نو د هغې دغه انکار پر مطلق انکار باندي هم محمول کیدای سي او پر مقید انکار باندي هم ، د مطلق انکار مطلب دادی چي هغه د رسول الله ﷺ د الله جل جلاله د لیدني څخه منکره ده که د زړه سترګي مراد واخیستل سي یا د سر سترګي، او د مقید انکار مطلب دادی چي هغه د سر په سترګو سره د لیدو څخه منکره وه او د زړه په سترګو سره د لیدو څخه منکره نه ده، مګر د بي بي عایشي رضی الله عنها د دغه ارشاد په لېدو سره صحیح معلومیږي چي د هغې انکار پر مطلق باندي محمول کړل سي، حافظ ابن حجر رحمه الله وایي چي د حضرت ابن عباس رضی الله عنه اثبات او د بي بي عایشي رضی الله عنها د انکار په منځ کي چي کوم اختلاف دی د هغه لیري کولو لپاره دا تاویل کیږي چي د بي بي عائشي رضی الله عنها انکار د سر په سترګو سره پر لېدو باندي محمول دی مګر د زړه په سترګو سره لېدل مجرد علم نه دی ځکه چي د الله جل جلاله د ذات علم او عرفان خو رسول الله ﷺ ته هر وخت حاصل وو ، نو بیا د معراج د شپې په خاصولو سره بیانول څه معنی نه لري، نو د زړه په سترګو د لیدو مطلب دا کیدای سي چي په دغه خاص وخت کي الله جل جلاله د رسول الله ﷺ په زړه کي هغه بصیرت پیدا کړی وو کوم چي په سترګو کي وي، او همدارنګه رسول الله ﷺ د زړه په ذریعه د الله جل جلاله هغه دیدار تر لاسه کړ کوم

چي يو سړی يې د سترګو په ذريعه د نورو شيانو ليدل تر لاسه کوي .

## د حضرت ابن مسعود رضی اللہ عنہ تفسير او تحقيق

﴿۵۴۱۹﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ فِيْ قَوْلِهٖ فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَى وفي قوله مَا كَذَبَ

حضرت ابن مسعود رضی اللہ عنہ د دغه آياتونو په تفسير کي : (فکان قاب قوسين او ادنى ( ما كذب

الْفُؤَادُ مَا رَأَى وفي قوله لقد راى من ايات ربه الكبرى قال فيها كلها رَأَى

الفؤاد ما راى، لقد راى من ايات ربه الكبرى) فرمايي: چي ددغه ټولو څخه مراد

جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَام لَهُ سِتُّ مِائَةِ جَنَاحٍ. متفق عليه وفي رواية الترمذي وفي

د جبرائيل عليه السلام قربت او ليدل دي (يعني په اصلي شکل کي ليدل)، هغه په داسي حال کي وليدل سو چي د هغه شپږ زره وزره وه، بخاري او مسلم، د ترمذي په روايت کي دا الفاظ دي

رواية الترمذي قال ما كذب الفؤاد ما رأى قال رأى رسول الله صلى الله عليه

چي و ماكذاب الفؤاد ما راى، په اړه ابن مسعود رضی اللہ عنہ دا بيان وکړ چي رسول الله ﷺ په داسي

وسلم جبريل في حلة من رفرف قد ملأ ما بين السماء والأرض وله وللبخاري

حال کي جبرائيل علیہ السلام وليدی چي هغه شنه جامه اغوستې وه او د آسمان او مځکي په منځ کي فضا په هغه سره معموره وه ، د ترمذي او بخاري

في قوله لقد رأى من آيات ربه الكبرى قال رأى رفرفا أخضر سد أفق السماء

او يو بل روايت کي دا الفاظ دي چي ابن مسعود رضی اللہ عنہ (و لقد راى من ايات ربه الكبرى) په اړه بيان وکړ چي رسول الله ﷺ شنو جامو والا وليدی يعني جبرائيل علیہ السلام چي هغه د آسمان افق معموره کړې وو ،

وسئل مالك بن أنس عن قوله تعالى إلى ربها ناظرة فقيل قوم يقولون إلى

او مالک بن انس رضی اللہ عنہ څخه د دې آيت (الى ربها ناظرة) په اړه پوښتنه وسول ، نو وښودل سول چي يو ډله (يعني معتزله) دا وايي چي

ثوابه فقال مالك كذبوا فأين هم عن قوله تعالى كلا إنهم عن ربهم يومئذ

په دې آيت کي د پروردګار په لور کتلو څخه مراد د الله تعالى ثواب ته کتل دي، نو مالک وويل د

خلک درواغجن دي که دا صحيح وي نو بيا د الله تعالی ددې ارشاد څه معنا سوه : (کلا انهم

لمحجوبون قال مالك الناس ينظرون إلى الله يوم القيامة بأعينهم وقال لو

عن ربهم يومئذ لمحجوبون) (يعني په دغه ورځ به کفار د ديدار الهي څخه منع کړل سي) ددې څخه وروسته مالک رضي الله عنه وويل مسلمانان خلک به د قيامت په ورځ په خپلو سترګو سره الله تعالی ووينې ، بيا يې وويل که

لم ير المؤمنون ربهم يوم القيامة لم يعير الله الكفار بالحجاب فقال كلا إنهم عن ربهم يومئذ لمحجوبون. رواه في شرح السنة.

مؤمنانو د قيامت په ورځ خپل پروردګار نه ليدلای نو الله تعالی به کفارو ته د ديدار الهي څخه د محرم کيدو عار نه ويلو ، الله جل جلاله فرمايلي دي : (کلا انهم عن ربهم يومئذ لمحجوبون). شرح السنه.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۶۱۰، رقم: ۴۸۵۶، ومسلم ۱\ ۱۵۸،

**تشريح**: رسول الله صلی الله عليه وسلم، حضرت جبرائيل عليه السلام وليدی، ددغه جملې په ذريعه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څرګنده کړل چي د سورة نجم ددغه آياتونو ضميرونه حضرتِ جبرائيل عليه السلام ته راجع دي او د هغه محمول او مصداق رسول الله صلی الله عليه وسلم ته د حضرت جبرائيل عليه السلام رويت قرب دی، نه د الله جل جلاله رويت قرب مراد دی لکه چي حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي نو د حضرت ابن مسعود صلی الله عليه وسلم دا تاويل او تفسير د بي بي عائشې رضي الله عنها د هغه تاويل او تفسير مطابق دی کوم چي په ددغه آياتو سره متعلق په تېر سوي حديث کي ذکر سو، څرګنده دې وي چي د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه شان او د هغه کمال علم مسلمه دی او علماؤ ليکلي دي چي د خلفاء اربعه څخه وروسته حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په ټولو صحابه کرامو کي تر ټولو لوی عالم وو.

په هر حال د روايتو او اقوالو څخه څرګنده سوه چي د معراج په شپه کي د رسول الله صلی الله عليه وسلم د الله جل جلاله د سر په سترګو د ليدو په اړه د صحابه کرامو اختلاف دی، بي بي عائشې رضي الله عنها ددې څخه انکار کړی دی او حضرت ابن عباس رضي الله عنه ددې قائل دی، په دوئ کي هر يوه ته د صحابه کرامو تائيد حاصل دی ، ځيني صحابه کرام د بي بي عائشې رضي الله عنها سره دی او ځيني د حضرت ابن عباس رضي الله عنه سره دی، بيا د صحابه کرامو څخه وروسته تابعين او علماء سلف هم پر دغه نقش قدم تللي دي ، ځيني دا وايي چي د معراج په شپه کي رسول الله صلی الله عليه وسلم ، الله جل جلاله په خپلو سترګو سره وليدی او ځيني حضرات ددې څخه انکار کوي مګر په هغوئ کي ځيني داسي هم دي چي هغوئ

سکوت او توقف اختیار کړی دی او د یوې ډلې سره نه دی، د دغه حضراتو وینا ده چې د دواړو خواوو څخه څرګند دلیل نسته ځکه موږ غوره وګڼل چې په دغه مسئله کې پټه خوله کېدل پکار دي او حقیقت الله جل جلاله ته وسپارل سي چې پر اصل خبره باندې ددې څخه پرته څوک نه پوهېږي مګر جمهور علماء ددې قائل دي چې د معراج په شپه کې رسول الله ﷺ ته د الله جل جلاله عیني دېدار تر لاسه سوی دی، شیخ محي الدین نووي رحمة الله علیه فرمایي، د اکثرو علماؤ په نزد راجح او مختار قول دادی چې رسول الله ﷺ د معراج په شپه کې خپل پروردګار د سر په سترګو سره لیدلی دی او هغوئ ویلي دي چې ددې اثبات د رسول الله ﷺ څخه د اورېدو وروسته سوی دی، حضرت ابن عباس رضي الله عنه چې دا ویلي دي چې رسول الله ﷺ ته د معراج په شپه کې د الله جل جلاله لیدنه په برخه سول نو هغوئ دا خبره د رسول الله ﷺ څخه د اورېدو وروسته کړې وه، حال دا چې بي بي عائشې رضي الله عنها ددې په انکار کې د حدیث څخه استدلال نه دی کړی، او په دې اړه یې د رسول الله ﷺ څخه د څه اورېدو روایت نه دی کړی، بلکه هغه چې څه ویلي دي، هغه د قرآن د دغه آیت: ماکان لبشر ان یکلمه الله الا وحیا او من وراء حجاب، او د دغه آیت: لاتدرکه الابصار وهو یدرک الابصار، څخه د خپل استنباط او اجتهاد نتیجه ده، حال دا چې د دغه آیاتو په اړه هم د مفسرینو امامانو لیکلي دي چې لومړنی آیت: ما کان لبشر ان یکلمه الله...الخ، کې چې نفي بیان سوې ده هغه په حالت رویت کې د کلام نفي ده چې د هغه څخه د رویت بې کلام نفي قطعا نه لازمېږي او د دوهم آیت: لاتدرکه الابصار...الخ، کې د ادراک ذکر دی چې د هغه معنی د احاطه ده او د احاطې د نفي څخه د مطلق رویت نفي نه مفهوم کېږي، ځینو نورو علماؤ هم لیکلي دي چې په ذکر سوې مسئله کې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په قول زیات اعتماد کېږي او دا ضروري ده چې هغه به دغه خبره د رسول الله ﷺ څخه د اورېدو پرته نه وي کړې او دا ممکن هم نه ده چې هغه دومره لویه خبره د خپل ګمان او اجتهاد څخه وکړي، نقل سوي دي چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه سره ډېر بحث او تکرار وکړ او پوښتنه یې ځیني وکړل چې ایا په حقیقت کې حضرت محمد ﷺ خپل پروردګار لیدلی دی، حضرت ابن عباس رضي الله عنه په پوره باور سره جواب ورکړ چې هو لیدلی یې وو، نو حضرت ابن عمر رضي الله عنه د هغه خبره په قطعي توګه تسلیم کړل او د تردد او انکار اظهار یې ونه کړ، د عمر ابن راشد قول دی چې زموږ په نزد بي بي عائشې رضي الله عنها ته تر حضرت ابن عباس رضي الله عنه زیات علم نه وو ځکه ددې په مقابله کې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه قول راجح او د باور وړ ګرځول کېږي او اکثر مشائخ هم د رویت قائل دي.

اوس د امام مالک رحمة الله علیه روایت ته راسئ، کله چې هغه ته وښودل سول چې ځیني خلک

لکه معتزله دا وايي چي په آخرت کي به مؤمنان الله ﷻ نه ويني او د قرآن کريم د دغه آيت: الى ربها ناظرة، په اړه د هغوئ وينا ده چي په دغه آيت کي د الله ﷻ د ذات لېدو پر ځای د دې ثواب يعني د جنت نعمتونو او د هغه مرتبو کتل مراد دي، نو امام مالک رحمه الله د هغه خلکو سخت ترديد وکړ او وې فرمايل چي هغه خلک د عقل څخه ډېر ليري دي چي د دغه ظاهر معنی لرونکي آيت غلط تاويل کوي مګر دغه آيت ته (کلا انهم عن ربهم يومئذ لمحجوبون) ته نه ګوري چي په هغه کي کافرانو ته د دې خبري پيغور ورکړل سوی دی چي هغوئ به د قيامت په ورځ د پروردګار د ليدني څخه منع کړل سي، او هغوئ به د الله ﷻ د ليدني د خوشبختی څخه محروم وي، د دې څرګند مطلب دادی چي مؤمنان به الله ﷻ ويني او د هغه د ليدني په سعادت به برخمن کيږي که دا خبره وي چي مؤمنان به د الله ﷻ د ليدني سعادت نه تر لاسه کوي نو بيا کفارو ته د دغه سعادت څخه د محرومۍ د خبر ورکولو او هغوئ ته د پيغور ورکولو څه ضرورت وو، څرګنده سوه چي په آخرت کي د کفارو په اړه تر ټولو لوی عذاب به دا وي چي هغوئ به د الله ﷻ د ليدني څخه محروم وګرځول سي او تل به د دغه محرومۍ په ارمان کي اخته وي لکه څرنګه چي د مؤمنانو په اړه تر ټولو لوی اجر او ثواب به د الله ﷻ ليدنه وي او هغوئ به د ليدني په نعمت سره برخمن کيږي.

## د الله ﷻ د دېدار کيفيت

﴿۵۴۲۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا أَهْلُ الْجَنَّةِ فِي

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يو وخت به جنتيان په خپلو

نَعِيمِهِمْ إِذْ سَطَعَ لَهُمْ نُورٌ فَرَفَعُوا رُءُوسَهُمْ فَإِذَا الرَّبُّ قَدْ أَشْرَفَ عَلَيْهِمْ

نعمتونو کي وي نو ناڅاپه به يوه لويه تيزه رڼا معلومه سي، هغوئ به سرونه پورته کړي هغه رڼا ته به ګوري نو خپل پروردګار به سربېره ښکاره ويني

مِنْ فَوْقِهِمْ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ قَالَ وَذٰلِكَ قَوْلُ اللّٰهِ سَلَامٌ

الله تعالی به جنتيانو ته فرمايي: اې جنتيانو! پر تاسو دي سلامتيا وي او دا معنا ده د الله تعالی د دغه قول (سلام

قَوْلًا مِنْ رَبٍّ رَحِيمٍ قَالَ فنظر إِلَيْهِمْ وَيَنْظُرُونَ إِلَيْهِ فَلَا يَلْتَفِتُونَ إِلَى شَيْءٍ

قولا من رب الرحيم) ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : بيا به الله تعالى د جنتيانو په لور وګوري او جنتيان به الله تعالى ته وګوري او په ديدار الهي کي به دومره غرق سي چي د

مِنَ النَّعِيمِ مَا دَامُوا يَنْظُرُونَ إِلَيْهِ حَتَّى يَحْتَجِبَ عَنْهُمْ وَيَبْقَى نُورُهُ وبركته عليهم في ديارهم. رواه ابن ماجه.

جنت په نعمتونو کي به د يوه شي په لور متوجه نه سي او الله تعالى ته به ګوري تر دې چي الله تعالى به د هغوئ څخه مخفي سي او يوازي نور به يې پاته سي . ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\ ٦٥، رقم: ۱۸۴.

**تشريح**: تر دې چي پروردګار به د هغوئ د نظرونو څخه مخفي سي ...الخ: ددې مطلب دادی چي هغه تر څو پوري غواړي د هغوئ د نظرونو په وړاندي به ښکاره وي او بيا به د هغوئ مخته حجاب حائل کړي مګر د هغه د نورانيت او د هغه د ديدار څخه تر لاسه کېدونکی کيف به پاته وي او حقيقت دادی چي هغه حجاب او د جنتيانو د نظر څخه د پروردګار مخفي کېدل هم د هغه له خوا پر خپلو بندګانو باندي يو ډول لطف او کرم دی ځکه چي د پروردګار جنتيان په خپل دربار کي حضور او شهود ساتل او هر وخت د هغوئ د نظر په وړاندي ښکارېدل به يو داسي صورت وي چي د جنتيانو د تاب او طاقت څخه به وتلی وي، ښکاره ده چي د يو وار ليدلو څخه وروسته بيا هغوئ ته د دومره وخت ضرورت وي چي په هغه کي به هغوئ ځان په واک کي کړلای سي، او خپل اصلي حالت ته بېرته راسي چي د جنت د نورو نعمتونو څخه په خوند اخيستلو سره د الله جل جلاله د تجلي استحقاق د سره تر لاسه کړل سي، او هر وار د ديدار الهي نوی خوند او نوی کيف تر لاسه کړي.

==========

# بَابُ صِفَةِ النَّارِ وَاَهْلِهَا

## (د دوږخ او دوږخيانو بيان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د دوږخ د اور ګرمي

﴿۵۴۲۱﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَارُكُمْ جُزْءٌ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ستاسو د دنيا اور د دوږخ

مِنْ سَبْعِينَ جُزْءًا مِنْ نَارِ جَهَنَّمَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنْ كَانَتْ لَكَافِيَةً قَالَ

د اور څخه په اويا برخو كي يو جز دی (يعني د دوږخ اور د دنيا د اور څخه اويا درجې زيات ګرم دی)، وويل سول اې دالله رسوله! د دنيا اور (د عذاب وركولو لپاره) هم بس وو، نبي كريم ﷺ

فُضِّلَتْ عَلَيْهِنَّ بِتِسْعَةٍ وَسِتِّينَ جُزْءًا كُلُّهُنَّ مِثْلُ حَرِّهَا. متفق عليه و اللفظ للبخاري وفي رواية مسلم نَارُكم التي يوقد ابن ادم وفيها عليها وكلها بدل عليهم وكلهن.

وويل د دنيا تر اور د دوږخ اور نه شپېته درجې زيات كړل سوي دي او د هغه په(۶۹) برخو كي يوه برخه ستاسو د دنيا د اور برابر ده.. بخاري او مسلم او الفاظ د بخاري دي خو په يوه روايت د مسلم شريف كي داسي الفاظ هم راغلي دي: (ناركم التي يوقد ابن ادم)، او هم په دې روايت كي (وعليهم) او (كلهن) پر ځای د (عليها) او (كلها) الفاظ دي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٣٠، رقم: ٢٢٦٥، ومسلم٤\٢١٨۴، رقم: ٣٠- ٢٨۴٣.

**تشريح**: د دنيا اور د دوږخ د اور د اوويا برخو څخه د يوې برخي كېدو مطلب دادی چي ددنيا اور څومره حرارت لري د دوږخ اور د هغه څخه اويا درجې زيات حرارت لري مګر كيدای سي چي د اويا د شمېر څخه مراد د دنيا د اور په مقابله كي د دوږخ د اور د ګرمۍ سختوالی او زياتوب بيانول وي نه دا چي دغه خاص شمېر مراد وي، يعني اصل مفهوم به دا وي چي د دوږخ

اورستاسو د دنیا د اور په مقابله کي ډېر زیات حرارت لري .

د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول او د هغه په جواب کي چي رسول الله ﷺ څه وفرمایل هغه د تاکید له موخي د هغه جملې تکرار وو کوم چي رسول الله ﷺ په پیل کي فرمایلې وه، او د هغه څخه د جواب خلاصه دا راووتل چي بېله شکه د چا د سوځلو لپاره د دنیا دغه اور ډېر دی که تاسو یو انسان په عذاب کي د اخته کولو لپاره په دغه اور کي واچوئ نو هغه به په سوځېدو سره اېرې سي مګر د دوږخ اور چي د کوم الهي عذاب لپاره تیار سوی دی د هغه تقاضا داده چي د هغه حرارت او ګرمي ددغه دنیا د اور د حرارت څخه ډېر زیات وي چي د الله ﷻ عذاب د دنیاد عذاب څخه ممتاز وي او د دوږخ په هغه اور کي سوځېدونکو ته څرګنده سي چي د الله ﷻ عذاب دومره سخت او زیات دی، که په دنیا کي یو سړی د هغه ځای په عذاب کي سوځلی وي نو هغه عذاب به د هغه الهي عذاب په مقابله کي هیڅ نه وي، خلاصه دا چي د دوږخ اور په اصل کي الهي عذاب دی لکه څرنګه چي د هغه په اصناف عذاب کي ذکر کیږي ځکه هغه ددغه دنیا د اور په نسبت ډېر زیات حرارت لري .

## د دوږخ راوستلو ذکر

﴿۵۴۲۲﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُؤْتَى بِجَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لَهَا سَبْعُونَ أَلْفَ زِمَامٍ مَعَ كُلِّ زِمَامٍ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ يَجُرُّونَهَا. رواه مسلم.

د ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دیچي رسول الله ﷺ وفرمایل : د قیامت په ورځ به دوږخ د هغه ځای څخه کوم ځای چي الله تعالی پیدا کړی دی راوستل سي داسي چي اویا زره واګي به یې وي او هره واګه به د اویا زره ملائکو په لاسونو کي وي او ملائکي به هغه را کشوي . مسلم.

**تخریج** صحیح مسلم ۴\ ۲۱۸۴، رقم: ۲۹- ۲۸۴۲.

**د لغاتو حل**: زِمام: وهو ما يشد به (واګي)

**تشریح** مطلب دادی چي د قیامت په ورځ به دوږخ په لکونو ملائکي د هغه د ځای څخه په را ایستلو سره د محشر د خلکو وړاندي راولي او داسي ځای به یې کښېږدي چي هغه به د اهل محشر او جنت په منځ کي حائل سي او جنت ته د تللو لپاره د هغه پل صراط څخه پرته به څه لار

نه وي كوم چي د دوږخ پر شا به اېښنودل سوي وي، د دوږخ چي اويا زره واګي دي د هغه مقصد به دا وي چي هغه راوستل سي نو پر دوږخيانو باندي به د خپل غضب اظهار كوي او غواړي به چي ټول تېر كړي نو ساتونكي ملائكي هغه د واګو په ذريعه منع كوي كه د هغه واګي پرېښنودل سي او هغه د حملې كولو څخه منع نه كړل سي نو هغه به مؤمنان او كافران ټول تېر كړي.

**تر ټولو كم عذاب**

﴿۵۴۲۳﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت نعمان بن بشير ﵁ څخه روايت دی چيْ رسول الله ﷺ وفرمايل:

إِنَّ أَهْوَنَ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا مَنْ لَهُ نَعْلَانِ وَشِرَاكَانِ مِنْ نَارٍ يَغْلِي مِنْهُمَا

په دوږخيانو كي تر ټولو كم او سپک عذاب چي به كوم سړي ته وركول كيږي هغه دادی چي دوئ ته به د اور څپلې ورپه پښنو سي چي د هغه به دوې د اور تسمې وي او د دغه شيانو څخه به

دِمَاغُهُ كَمَا يَغْلِ الْمِرْجَلُ مَا يَرَى أَنَّ أَحَدًا أَشَدُّ مِنْهُ عَذَابًا وَإِنَّهُ لَأَهْوَنُهُمْ عَذَابًا. متفق عليه.

د هغه ماغزه ايشي لكه څرنګه چي ديګ ايشي هغه سړي به دا عذاب تر ټولو سخت ګڼي حال دا چي هغه به تر ټولو معمولي عذاب وي. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۱۷، رقم: ۶۵۶۱. ومسلم ۱\۱۶۹، رقم: ۳۶۴-۲۱۳.

**د لغاتو حل**: المرجل: قِدر النحاس: (ديګ)

**تشريح** د دغه حديث څخه په څرګنده معلوميږي چي د عذاب په اعتبار به دوږخيان ډول ډول وي چي ځوک به په سخت عذاب كي اخته وي او ځوک به په سپک عذاب كي وي.

**د دوږخ تر ټولو كم عذاب به د ابو طالب وي**

﴿۵۴۲۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ أَهْوَنُ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا أَبُو طَالِبٍ وَهُوَ مُنْتَعِلٌ بِنَعْلَيْنِ يَغْلِي مِنْهُمَا دِمَاغُهُ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عباس ﵁ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په دوږخيانو كي تر ټولو

سپک عذاب به ابو طالب ته وي هغه ته به دوې د اور څپلۍ ور په پښو سي چي په هغه سره به یې ماغزه ایشي .بخاري.

**تخریج** لم نجده عند البخاري وهو بلفظه عند مسلم ۱۹۶/۱، رقم: ۳۶۲-۲۱۲.

**تشریح** ابو طالب د رسول الله ﷺ اکا وو ، دهغه شفقت او سرپرستۍ د رسول الله ﷺ ډېره مرسته وکړل ، که څه هم هغه اسلام قبول نه کړ مګر تر څو چي ژوندی وو ، رسول الله ﷺ د مکې د کفارو د دښمنۍ او عداوت څخه په ساتنه کي یې تر خپله وسه هڅه کول او ددې په بدله کي هغه ته به په دوږخ کي تر ټولو کم عذاب وي .

## یو دوږخي او یو جنتي

﴿۵۴۲۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُؤْتَى بِأَنْعَمِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د دنیا زیات شتمن او نعمت

أَهْلِ الدُّنْيَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُصْبَغُ فِي النَّارِ صَبْغَةً ثُمَّ يُقَالُ يَا

والا دوږخي به د قیامت په ورځ راوستل سي او هغه ته به د اور په کنده کي یو غوټه ورکړل سي او ورته وه به ویل سي اې

ابْنَ آدَمَ هَلْ رَأَيْتَ خَيْرًا قَطُّ هَلْ مَرَّ بِكَ نَعِيمٌ قَطُّ فَيَقُولُ لَا وَاللّٰهِ يَا رَبِّ

د آدم زویه ! ایا تا خیر لیدلی دی (یعني ارام دي تر لاسه کړی دی) ایا په دنیا کي یو وخت پر تا نعمتونه تیر سوي وه؟ هغه به وو ایي: یا، قسم په خدای اې پروردګاره :نه،

وَيُؤْتَى بِأَشَدِّ النَّاسِ بُؤْسًا فِي الدُّنْيَا مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيُصْبَغُ صَبْغَةً فِي الْجَنَّةِ

بیا به د جنتیانو څخه یو سړی راوستل سي چي هغه به په دنیا کي سخت محنت کړی وي او غم به یې برداشت کړی وی او هغه ته به په جنت کي یوه غوټه ورکړل سي

فَيُقَالُ لَهُ يَا ابْنَ آدَمَ هَلْ رَأَيْتَ بُؤْسًا قَطُّ هَلْ مَرَّ بِكَ شِدَّةٌ قَطُّ فَيَقُولُ لَا وَاللّٰهِ يَا رَبِّ مَا مَرَّ بِي بُؤْسٌ قَطُّ وَلَا رَأَيْتُ شِدَّةً قَطُّ. رواه مسلم.

او پوښتنه به ځیني وکړل سي اې د ادم زویه ! ایا تا یو وخت د محنت او سختۍ مخ لیدلی دی؟

تا غم او تکلیف برداشت کړی دی ؟ هغه به وايي یا قسم په خدای اې پروردګاره ! ما هیڅکله محنت او سختي نه ده لیدلې او نه راباندي هیڅکله غم او تکلیف راغلی دی . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۲۱۶۲، رقم: ۵۵- ۲۸۰۷.

**تشریح**: جنتي ته ډېره خوشحالي تر لاسه وي ځکه هغه به په جواب کي او ږدوالی اختیار کړي د هغه پر خلاف دوږخي به د مختصر جواب په ورکولو سره پته خوله سي .

## د شرک خلاف خبرداری

﴿۵۴۲۶﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَقُولُ اللهُ تَعَالَى لِأَهْوَنِ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د قیامت په ورځ به الله تعالی هغه خلکو ته چي هغوئ ته اسان او سپیک عذاب ورکړی وي وفرمایي :

أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَوْ أَنَّ لَكَ مَا فِي الْأَرْضِ مِنْ شَيْءٍ أَكُنْتَ

که ستا سره د دنیا په شیانو کي یو شی وي او د هغه په ورکولو سره ته ددې عذاب څخه خلاصیدلای سي نو ایا تا به داسي کړی وای هغه به وايي هو ، الله تعالی به ورته وفرمایي کله

تَفْتَدِي بِهِ فَيَقُولُ نَعَمْ فَيَقُولُ أَرَدْتُ مِنْكَ أَهْوَنَ مِنْ هَذَا وَأَنْتَ فِي صُلْبِ آدَمَ أَنْ لَا تُشْرِكَ بِي شَيْئًا فَأَبَيْتَ إِلَّا أَنْ تُشْرِكَ بِي. متفق عليه.

چي ته د آدم علیه السلام په ملا کي وې هغه وخت ما ستا څخه تر دې د زیات اسان شي غوښتنه کړې وه هغه دا چي ته به هیڅوک زما سره نه شریکوې مګر تا انکار وکړ او زما سره دي نور خلک شریکان کړل. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۱۶، رقم: ۶۵۵۷، ومسلم ۴\۲۱۶۰، رقم: ۵۱- ۲۸۰۵.

**تشریح**: د لفظي معنی په اعتبار دا ځای (اردت منک ...الخ) معنی به دا وي چي ما ستا څخه تر دې هم اسانه شی غوښتی وو ، او مظهر رحمہ اللہ لیکلي دي چي دلته د اراده لفظ د امر په معنی کي دی یعني د غوښتلو څخه مراد حکم ورکول دي او په اراده او امر کي فرق دادی چي په کائناتو کي څه کیږي ټول د هغه په اراده او مشیت سره کیږي حال دا چي د امر اطلاق کله پر هغه شي باندي هم کیږي چي د هغه د ارادې او مشیت خلاف وي ، طیبي رحمہ اللہ ویلي دي: صحیح

خبره داده چي دلته د اراده ميثاق يعني عهد اخيستلو باندي محمول كړل سي چي د هغه يادونه په قرآن كريم كي داسي فرمايل سوې ده : (واذ اخذ ربک من بني ادم من ظهورهم ذريتهم ...الخ) او ددې قرينه خپله د حديث قدسي دغه الفاظو (وانت في صلب آدم) پر عهد ماتولو باندي محمول كړل سي.

## په عذاب كي تفاوت او درجې

﴿۵۴۲۷﴾ : وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِنْهُمْ

د حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په دوږخيانو كي به

مَنْ تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى كعبيه ومِنْهُمْ مَنْ تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى رُكْبَتَيْهِ وَمِنْهُمْ مَنْ

ځيني خلک هغه وي چي د هغوئ تر بجلكو پوري به اور وي ځيني به هغه وي چي د هغوئ زنگنو ته به اور ورسيږي،

تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى حُجْزَتِهِ وَمِنْهُمْ مَنْ تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى تَرْقُوَتِهِ. رواه مسلم.

ځيني به هغه وي چي د هغوئ تر ملا پوري به اور وي او ځيني به هغه وي چي د هغوئ تر غاړو پوري به اور وي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۱۸۵، رقم: ۳۳- ۲۸۴۵.

**د لغاتو حل**: حجزته: اى معقد ازاره و وسطه. الترقوة: عظمة مشرفة بين ثغرة النحر والعاتق(كرغنكه)

**تشريح**: په دغه حديث كي ددې خبري يادونه ده چي دوږخيان به د عذاب په كموالي او سختوالي كي ډول ډول وي، څوک چي په دنيا كي د كومي درجې بې عقيدې او بدعمله وي هغه ته به د هغه درجې عذاب وركول كيږي.

## د دوږخي بدن

﴿۵۴۲۸﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَيْنَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په دوږخ كي به د كافر د

مَنْكِبَيِ الْكَافِرِ فِي النَّارِ مَسِيرَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ لِلرَّاكِبِ الْمُسْرِعِ، وفي رواية

دواړو اوږو په منځ كي دومره فاصله وي څومره چي د تيز رفتاره آس د درو ورځو مسافت دی،

او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي په دوزخ کي به

ضرس الکافر مثل احد وغلظ جلده مسیرة ثلث ، رواه مسلم وذکر حدیث ابي هریرة اشتکت النار الی ربها في باب تعجیل الصلوة.

د کافر غاښ د احد د غره برابر وي او د هغه د بدن پوست به د درو ورځو د تګ برابر غټ وي، د ابو هریره ﷺ حدیث (اشتکت النار)، په باب تعجیل الصلوة کي بیان سوی دی . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۴\ ۲۱۸۹، رقم: ۴۴- ۲۸۵۱.

**تشریح**: په دغه حدیث کي د دوزخیانو د بدن غټېدو یادونه ده، حال دا چي په یوه روایت کي راغلي دي چي د قیامت په ورځ به متکبرین د حشر په میدان کي داسي راوستل سي چي د هغوئ بدنونه به د مېږیانو په اندازه وي او د هغوئ شکلونه به د خلکو وي او بیا به هغوئ په شړلو سره بندیخانې ته بوتلل سي، نو په دغه دواړو روایتو کي تطبیق دادی چي د متکبرینو څخه مراد ګناه کاره مؤمنان دي . حال دا چي په ذکر سوي حدیث کي کفار ذکر سوي دي مګر صحیح خبره داده چي هغوئ به د حشر په میدان کي د مېږیان په شکل راوستل سي چي هلته د خلکو تر پښو لاندي کېدو سره ښه مېده کړل سي ، ددې څخه وروسته د هغوئ بدن خپل اصلي حالت ته راسي په دوزخ کي به واچول سي، په دوزخ کي به دهغوئ بدن دوهم وار غیر معمولي سي او هغوئ غټ والی او خپرېدل به دومره زیات سي چي د هغه یادونه په حدیث کي سوې ده او هغوئ بدن به دومره غټ او چاغ کړل سي چي هغوئ ته زیات تر زیات عذاب ورسیږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د دوزخ اور

﴿۵۴۲۹﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عن النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال أُوقِدَ عَلَى النَّارِ أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى احْمَرَّتْ ثُمَّ أُوقِدَ عَلَيْهَا أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى ابْيَضَّتْ ثُمَّ أُوقِدَ عَلَيْهَا أَلْفَ سَنَةٍ حَتَّى اسْوَدَّتْ فَهِيَ سَوْدَاءُ مُظْلِمَةٌ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو هریره ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د دوزخ اور تر زر کاله

پوري بل كړل سو تر دې چي هغه سور سو ، بيا زر كاله نور بل كړل سو تر دې چي هغه سپين سو ، بيا زر كاله نور بل كړل سو تر دې چي هغه تور سو اوس هغه تور او تاريک دی. ترمذي.

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۶۱۲، رقم: ۲۵۹۱.

**تشريح** تر دې چي هغه سپين سو ، دا د اور خاتمه ده چي هغه تر ډېره وخته پوري بليږي او ښه تېز سي نو بالكل سپين معلوميږي، مخكي چي په هغه كي كوم سوروالى وي هغه به د دود د ګډون په وجه وي .

په هر حال دا حديث ددې خبري دليل دی چي دوږخ په وجود كي راغلى دى لكه چي د اهل سنت والجماعت مذهب دی، ددې پر خلاف د معتزلوو مذهب دادی چي دوږخ تر اوسه تيار سوی نه دی او په وجود كي نه دی راغلى د اهل سنت والجماعت لوی دليل د قرآن كريم په دغه آيت : (واتقو النار التي اعدت للكافرين) كي د اعدت لفظ دی چي د ماضي په صيغه سره استعمال سوی دی .

## د كافر دوږخي جسامت

﴿۵۴۳۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضِرْسُ الْكَافِرِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِثْلُ أُحُدٍ وَفَخِذُهُ مِثْلُ الْبَيْضَاءِ وَمَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ مَسِيرَةُ ثَلَاثٍ مِثْلُ الرَّبَذَةِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ به د كافر غاښ د احد د غره برابر وي او ورون به يې د بيضاء د غره په ډول وي او د هغه د ناستي ځای به درې ميله اوږد وي لكه د مدينې څخه چي ربذه (پر درې ميله فاصله) واقع ده. ترمذي

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۶۰۶، رقم: ۲۵۷۸.

**د لغاتو حل**: البيضاء: هو اسم جبل (د يو غره نوم). الربذة: قرية معروفة قرب المدينه (يو كلى)

**تشريح** ربذه د مدينې منورې د كليو څخه د يو كلي نوم دی چي هغه د درو ورځو په فاصله د ذات عرق كلي ته نژدې دی، نو څرنګه چي ربذه ده، ددې څخه مراد دادی چي كافر دوږخي به د خپل اوږد او پلن بدن په وجه په خپله ناسته كي دومره ځای نيسي څومره چي دمدينې څخه تر ربذه پوري فاصله ده .

﴿۵۴۳۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ غِلَظَ جِلْدِ الْكَافِرِ اثْنَانِ وَأَرْبَعُونَ ذِرَاعًا وَإِنَّ ضِرْسَهُ مِثْلُ أُحُدٍ وَإِنَّ مَجْلِسَهُ مِنْ جَهَنَّمَ كَمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل: د كافر د بدن د پوست غټ والى به (په دوږخ كي) دو څلوېښت گزه وي، غاښ به يې د احد د غره برابر وي د ناستي ځاى به يې په دوږخ كي دومره وي لكه مابين د مكې او مدينې. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۶۰۶\۴، رقم: ۲۵۷۷.

**تشريح**: په يوه روايت كي د ۴۲ لاسه د وضاحت لپاره د بذرع الجبار الفاظ هم نقل سوي دي، يعني لاس هم د يو اوږد او پلن سړى لاس، وړاندي په حديث كي د كافر دوږخي د ناستي ځاى د مدينې او ربذه درمياني فاصله بيان سوې ده حال دا چي په دغه حديث كي د مكې او مدينې درمياني فاصله ذكر سوې ده، علامه ابن حجر رحمه الله ليكلي دي: د اندازې دغه فرق او اختلاف په اصل كي د كافرانو په عذاب كي دفرق او اختلاف په وجه دى، كوم كافران چي په سخت عذاب كي اخته وي د هغوئ بدن به په هغه اعتبار اوږد او پلن وي او كوم كافران چي نسبتا د كم عذاب وړ وي د هغوئ بدنونه به هم نسبتا كم اوږده او پلن وي. پر همدې باندي د پوست او نورو شيانو اختلاف هم قياس كيداى سي.

﴿۵۴۳۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْكَافِرَ لَيُسْحَبُ لِسَانُهُ الْفَرْسَخَ وَالْفَرْسَخَيْنِ يَتَوَطَّؤُهُ النَّاسُ. رواه احمد و الترمذي و قال هذا حديث غريب.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل: كافر به (په دوږخ كي) خپله ژبه يو فرسخ او دوو فرسخو پوري راوباسي او خلك به وړباندي پښې ايږدي. ترمذي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۹۲\۲، والترمذي ۶۰۶\۴، رقم: ۲۵۸۰.

**د لغاتو حل**: يتوطؤه: اي يطؤنه باقدامهم ويمشون عليه. (تر پښو لاندي كول)

## د دوږخ غر

﴿۵۴۳۳﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الصَّعُودُ جَبَلٌ مِنْ نَارٍ يَتَصَعَّدُ فِيهِ الْكَافِرُ سَبْعِينَ خَرِيفًا وَيَهْوِي به كَذٰلِكَ فيه أَبَدًا. رواه الترمذي.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: صعود (چي د هغه ذکر په قرآن کريم کي دی) د اور يو غر دی چي پر هغه به کافر تر اويا کاله پوري خيږول کيږي او بيا به را شوه سي او هغه به تر اويا کاله پوري رالغړيږي او همېشه به همداسي وي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي: ۴\۶۰۵، رقم: ۲۵۷۶.

## د دوږخي خوراک

﴿۵۴۳۴﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال فِي قَوْلِهِ كَالْمُهْلِ اي كَعَكَرِ الزَّيْتِ فَإِذَا قُرِّبَ إِلَى وَجْهِهِ سَقَطَتْ فَرْوَةُ وَجْهِهِ فِيهِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ ددغه آيت (ان شجرة الزقوم طعام الاثيم کالمهل)، (د زقوم درخته د مهل په ډول د ګناه کارو خوراک دی) د مهل لفظ په اړه يې وفرمايل: چي دا په شان د خيرو د تيلو اوبه دي کوم وخت چي دا د دوږخي مخته نژدې راوړل سي (نو د ګرمۍ په وجه) به د هغه د مخ پوست واوړي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۶۰۷، رقم: ۲۵۸۱.

## د ګرمو اوبو عذاب

﴿۵۴۳۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْحَمِيمَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د دوږخيانو پر سر به تودې

لَيُصَبُّ عَلَى رُءُوسِهِمْ فَيَنْفُذُ الْحَمِيمُ حَتَّى يَخْلُصَ إِلَى جَوْفِهِ فَيَسْلِتُ مَا فِي

او به واچول سي تر دې چې د هغه ګرمي به د سر څخه تر نس پورې ورسيږي او هغه شيان به پرې

جَوْفِهِ حَتَّى يَمْرُقَ مِنْ قَدَمَيْهِ وَهُوَ الصَّهْرُ ثُمَّ يُعَادُ كَمَا كَانَ. رواه الترمذي.

کړي کوم چې په نس کي دننه دي هغه به ويلي کړي او هغه شيان به د قدمونو پر لار را وبهيږي او دا (صهر) دی چې ذکر يې د قرآن کريم په دغه آيت کي دی : (يصيب من فوق رءوسهم الحميم ...) ، (د هغوئ پر سرونو به تودې اوبه واچول سي چې په هغه سره به په نس کي دننه شيان ويلي کړل سي او پوست به يې هم ويلي کړل سي) او بيا به همداسي سي لکه څرنګه چې وو. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۶۰۷، رقم: ۲۵۸۲.

**د لغاتو حل**: فيسلت: يمسع و يقطع الحميم. پرې کول

**تشريح**: د صهر معنی د ويلي کېدو ده او دغه لفظ چې د هغه وضاحت رسول الله ﷺ په ذکر سوي تفصيل بيان کړ، د قرآن کريم په دغه آيت کي راغلی دی :

يُصَبُّ مِن فَوْقِ رُؤُوسِهِمُ الْحَمِيمُ ، يُصْهَرُ بِهِ مَا فِي بُطُونِهِمْ وَالْجُلُودُ

ژباړه: او د هغوئ سرېره به تودې اوبه اچول کيږي چې په هغه سره به د نس شيان يعني کولمې او پوست ټول ويلي سي.

بيا به هغه همداسي سي، مطلب دادی چې دد ورېخيانو سره د تودو اوبه دغه عمل به د عذاب په توګه پاته سي يعني ددغه عذاب څخه وروسته به هغوئ خپل حالت ته راسي ،د هغوئ پوست به همدارنګه سي او دهغوئ کولمې به په نس کي پر خپل ځای سالمي پاته سي بيا به پر هغوئ هغه تودې اوبه واچول سي چې د ننه په تاثير کولو سره به نس ته ورسيږي او دکولمو او نورو اندامو په پرېکولو سره به د پښو پر لار راوځي، همدغه لړۍ به روانه وي ، ددې ثبوت د قرآن کريم ددغه الفاظو څخه هم تر لاسه کيږي :

(كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ بَدَّلْنَاهُمْ جُلُودًا غَيْرَهَا) .

## د دوږخيانو د څښلو اوبه

﴿۵۴۳۶﴾ : وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْلِهِ وَيُسْقَى مِنْ

د حضرت ابو امامه رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ ددغه آيت (يسقى من ماء صديد

مَاءٍ صَدِيدٍ يَتَجَرَّعُهُ قَالَ يُقَرَّبُ إِلَى فِيهِ فَيَكْرَهُهُ فَإِذَا أُدْنِيَ مِنْهُ شَوَى وَجْهَهُ

يتجرعه) ، (دوږخيانو باندي به د دوږخيانو ژړي اوبه وڅښل سي چي هغه به څاڅكى څاڅكى ځيښي) په اړه وفرمايل دا اوبه چي د دوږخي خولې ته نژدې كړل سي نو هغه به يې بد وګڼي بيا

وَوَقَعَتْ فَرْوَةُ رَأْسِهِ فَإِذَا شَرِبَهُ قَطَّعَ أَمْعَاءَهُ حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ دُبُرِهِ يَقُولُ اللّٰهُ

چي په خوله كي ور واچول سي نو د هغه خوله به وايشول سي او د هغه د سر پوست به وغورزيږي بيا چي په وڅښل سي نو كولمې به يې ور ځيري كړي تر دې چي هغه كولمې به د لويو بولو تر ځاى راووځي، الله تعالى فرمايي :

وَسُقُوا مَاءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ وَيَقُولُ وَإِنْ يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ بِئْسَ الشَّرَابُ. رواه الترمذي

او په دوږخيانو به ګرمي اوبه وڅښل سي چي د هغوئ كولمې به پرې پرې كړي او الله تعالى فرمايي : كه دوږخيان د اوبو لپاره فرياد وكړي نو په دغه اوبو سره به يې فرياد رسي وكړل سي چي ايشولي به وي چي خوله به يې وروشوړوي او دا اوبه د څيښلو ډير خراب شى دى . ترمذي

**تخريج** : سنن الترمذي ۴\۶۰۸، رقم: ۲۵۸۳.

## د دوږخ احاطه

﴿۵۴۳۷﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِسُرَادِقِ النَّارِ أَرْبَعَةُ جُدُرٍ كِثَفُ كُلِّ جِدَارٍ مَسِيرَةِ أَرْبَعِينَ سَنَةً. رواه الترمذي.

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د دوږخ د احاطې به څلور ديوالونه وي د هر ديوال غټوالى به د څلوېښتو كالو د مزل برابر وي . ترمذي.

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۶۰۸، رقم: ۲۵۸۴.

﴿۵۴۳۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ أَنَّ دَلْوًا مِنْ

غَسَّاقٍ يُهَرَاقُ فِي الدُّنْيَا لَأَنْتَنَ أَهْلَ الدُّنْيَا. رواه الترمذي.

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كه د دغه ژړو اوبو يو سلواغه چي د دوږخيانو د زخمونو څخه به جاري وي په دنيا كي توى سي نو د دنيا ټول خلك به بدبويه سي. ترمذي

**تخريج** : سنن الترمذي: ۴\۶۰۸، رقم: ۲۵۸۴.

**د لغاتو حل** :غساق: ما يسيل من صديد اهل النار (نوونه)

﴿۵۴۳۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ هَذِهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت كړ : (اتقوا الله حق

الْآيَةَ اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

تقاته ولا تموتن الا وانتم مسلمون)، (د الله تعالى څخه وبيريږئ لكه څرنګه چي ورڅخه بيريدل پكار دي او هر كله چي مړه كيږئ نو مسلمان مړه كيږئ)، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل :

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ أَنَّ قَطْرَةً مِنَ الزَّقُّومِ قُطِرَتْ فِي دَارِ الدُّنْيَا لَأَفْسَدَتْ عَلَى

كه د زقوم د درختي يو څاڅكى په دنيا كي وڅاڅي نو د مځكي د اوسيدونكو د ژوند اسباب به

أَهْلِ الارض مَعَايِشَهُمْ فَكَيْفَ بِمَنْ يَكُونُ طَعَامَهُ. رواه الترمذي و قَالَ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

برباد كړي بيا د هغه سړي به څه حال وي چي د هغه خوراك زقوم وي. ترمذي

**تخريج** سنن الترمذي: ۴\۶۰۹، رقم: ۲۵۸۵.

**تشريح** (حق تقاته) لكه څرنګه چي د هغه څخه د بيرېدو حق دى، ددې مطلب د واجباتو پر ځاى كول او د منع سوو شيانو څخه ځان ساتل دي، حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ددغه الفاظو تفسير داسي كړى دى : هو ان يطاع فلا يعصي ويشكر فلا يكفر ويذكر فلا ينسي، او د الله جل جلاله څخه د بيرېدو حق دادى چي د هغه پيروي وكړل سي او په هيڅ حال كي د هغه نافرماني ونه كړل

سي او د هغه شكر ادا كړل سي او په هيڅ حال كي د هغه ناشكري ونه كړل سي ، هغه ياد كړل سي او په هيڅ حال كي هغه هېر نه كړل سي .

حاكم دغه تفسير اووضاحت د رسول الله ﷺ څخه نقل كړى دى ، همدارنګه ابن مردويه او ابن حاتم او محدثينو دا صحيح ګرځولي دي، په هر حال كه دغه الفاظ (حق تقاته) د تقوا د بيانولو لپاره وي يعني دا به وويل سي چي د حق تقاته څخه مراد كمال تقوا ده نو بيا هيڅ مشكل نه پاته كيږي او كه دغه الفاظ د اصل تقوا تعبير وګرځول سي نو بيا دا ويل كيږي چي دغه آيت د قرآن كريم د دغه دوهم آيت (فاتقوا الله ما استطعتم ) په ذريعه منسوخ وي، ځكه چي اصل تقوا يعني دا الله جَلَّ جَلَالُهُ څخه د هغه د مرتبې سره مطابق ثوک اختيارولاى سي .

اوس دا سوال پيدا كيږي چي رسول الله ﷺ د دغه آيت تلاوت كولو څخه وروسته كوم مضمون ته اشاره وفرمايل، هغه د دغه آيت سره څه مناسبت لري، نو د دې جواب دادى چي په اصل كي تقوا د دوږخ د عذاب څخه د سلامتيا سبب دى او تقوا نه اختيارول د دوږخ په عذاب كي اخته كېدل دي نو رسول الله ﷺ په دغه مناسبت د دوږخ د ځيني عذاب ذكر كول مناسب وګڼل .

### د دوږخيانو د خولې بدصورتي

﴿۵۴۴۰﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ قَالَ تَشْوِيهِ النَّارُ فَتَقَلَّصُ شَفَتُهُ الْعُلْيَا حَتَّى تَبْلُغَ وَسَطَ رَأْسِهِ وَتَسْتَرْخِي شَفَتُهُ السُّفْلَى حَتَّى تَضْرِبَ سُرَّتَهُ . رواه الترمذي.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دى چي نبي كريم ﷺ د قرآن مجيد د دغه الفاظو (وهم فيها كالحون.....) ، (دوږخيانو به په دوږخ كي تنديان تريو كړي وي او غاښونه به يې خلاص كړي وي) ، په اړه وفرمايل : اور به د كافر خوله وشوروي ، سربيره شونډه به يې پورته ولاړه سي تر دې چي نيم سر ته به ورسيږي او لاندي شونډه به يې را وزړيږي تر دې چي د نامه سره به يې لګيږي. ترمذي

**تخريج** . سنن الترمذي: ۶۰۹\۴، رقم: ۲۵۸۶.

**د لغاتو حل**: كالحون: اي عابسون حين تحترق وجوههم من النار.

**تشريح**: د قرآن كريم ذكر سوى آيت دا سي دى :

تَلْفَحُ وُجُوهَهُمُ النَّارُ وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ .

ژباړه: د دوږخ اور به د هغه دوږخيانو مخونه سوځي او په هغه دوږخ کي به دهغوئ مخونه خراب وي.

د کالح څخه مراد هغه سړی دی چي د هغه شونډي په وچېدو سره لوړي سوي وي او غاښونه يې معلوميږي، ځينو مفسرينو د کالحون معنی دا کړې ده چي د هغوئ تنديان به تريو وي او ځينو مفسرينو ويلي دي چي دهغوئ غاښونه به معلوميږي، دغه دوهمه معنی د رسول الله ﷺ د ذکر سوي وضاحت سره زياته مناسبه ده مگر د هغوئ مخونه به خراب وي، دا يوه داسي معنی ده چي په هغه کي لغوي معنی او د رسول الله ﷺ د وضاحت ټولو رعايت کيږي.

## د خدای ﷻ د بيري ژړاوي

﴿۵۴۴۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ ابْكُوا

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اې خلکو! (د الله د بيري

فَإِنْ لَّمْ تَسْتَطِيْعُوْا فَتَبَاكُوْا فَإِنَّ أَهْلَ النَّارِ يَبْكُوْنَ فِيْ النَّارِ حَتّٰى تَسِيْلَ

څخه) وژاړئ، که ژړا نه درځي نو په تکليف سره وژاړئ (يعني ځان ته ژړا راولئ) ځکه چي دوږخيان به په دوږخ کي ژاړي او د هغوئ اوښکي به

دُمُوْعُهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ كَأَنَّهَا جَدَاوِلُ حَتّٰى تَنْقَطِعَ الدُّمُوْعَ فَتَسِيْلُ الدِّمَاءَ

فَتَقَرَّحُ الْعُيُوْنُ فَلَوْ أَنَّ سُفُنًا أُزْجِيَتْ فِيْهَا لَجَرَتْ. رواه في شرح السنة.

پر باړخوګانو داسي بهيږي لکه د اوبو لښتي بيا به اوښکي ختم سي اوويني به جاري سي چي سترګي به يې زخمي سي که د هغوئ په اوښکو کي کښتي جاري کړل سي نو په هغه کي به رواني سي. شرح السنه

**تخريج** البغوي في شرح السنة ۱۵\۲۵۳، رقم: ۴۴۱۸.

**د لغاتو حل**: ازجيت: من الازجاء اي ارسلت. (لېږل).

## د دوږخيانو حالت

﴿۵۴۴۲﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُلْقٰى عَلٰى

د حضرت ابو درداء رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : دوږخیان به په سخته لوږه

أَهْلِ النَّارِ الْجُوعُ فَيَعْدِلُ مَا هُمْ فِيهِ مِنَ الْعَذَابِ فَيَسْتَغِيثُونَ فَيُغَاثُونَ بِطَعَامٍ

کي اخته کړل سي او د لوږي دا عذاب به د هغه عذاب برابر وي چي په هغه کي به دوږخیان د
مخکي څخه اخته وي ، بیا به هغوئ د لوږي د زیاتوالي څخه فریاد کوي د هغوئ فریاد به
واوریدل سي او د خوراک لپاره به هغوئ ته

مِنْ ضَرِيعٍ لَا يُسْمِنُ وَلَا يُغْنِي مِنْ جُوعٍ فَيَسْتَغِيثُونَ بِالطَّعَامِ فَيُغَاثُونَ بِطَعَامٍ

ضریع ورکړل سي (ضریع یو ازغي لرونکي او سخت بدبویه واښه دی) دا خوراک به نه د هغوئ
نس ډکوي او نه به د هغوئ لوږه دفع کړي، هغوئ به بیا فریاد وکړي او خوراک به غواړي د
هغوئ فریاد اوریدو سره به داسي خوراک ورکړل سي چي

ذِي غُصَّةٍ فَيَذْكُرُونَ أَنَّهُمْ كَانُوا يُجِيزُونَ الْغُصَصَ فِي الدُّنْيَا بِالشَّرَابِ

په ستوني کي به یې وموښلي یعني نه خو به نس ته ځي او نه به د خولې څخه راوځي ، بیا به
هغوئ ته دا خبره وریاده سي چي په دنیا کي به د چا په ستوني کي یو شی وموښتی نو هغه به یې
په اوبو سره کښته کوئ،

فَيَسْتَغِيثُونَ بِالشَّرَابِ فَيُرْفَعُ إِلَيْهِمُ الْحَمِيمُ بِكَلَالِيبِ الْحَدِيدِ فَإِذَا دَنَتْ مِنْ

هغوئ به د اوبو لپاره فریاد وکړي نو د اوسپني په انبورونو نیولو سره چي ورته ګرمي اوبه ور

وُجُوهِهِمْ شَوَتْ وُجُوهَهُمْ فَإِذَا دَخَلَتْ بُطُونَهُمْ قَطَّعَتْ مَا فِي بُطُونِهِمْ فَيَقُولُونَ

نژدې کړل سي نو مخونه به یې وسوځي بیا او به چي نس ته ورسي نو د نس شیان به یې پاره پاره
کړي بیا به دوږخیان په خپل منځ کي وایي

ادْعُوا خَزَنَةَ جَهَنَّمَ فَيَقُولُونَ أَلَمْ تَكُ تَأْتِيكُمْ رُسُلُكُمْ بِالْبَيِّنَاتِ قَالُوا بَلَى قَالُوا

د دوږخیانو د ساتونکو څخه دعاء وغواړئ (چي زموږ په عذاب کي کمي راسي) د دوږخ
ساتونکی به د هغوئ په خواست اوریدو سره وایي ایا تاسو ته د الله رسولان په واضحه نښو او
دلائلو سره نه وه راغلي، دوږخیان به وایي هو راغلي وه ، د دوږخ ساتونکي به ورته وایي

فَادْعُوا وَمَا دُعَاءُ الْكَافِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَالٍ قَالَ فَيَقُولُونَ يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا

تاسو په خپله دعاء وکړي، او د کافرانو دعاء به بالکل بې ګټې او بیکاره وي، بیا به دوږخیان په خپل منځ کي وايي د دوږخ خزانچې (پهره دار) را وغواړئ نو هغوئ به د دوږخ خزانچې (پهره دار) ته وايي اې مالکه!

رَبُّكَ قَالَ فَيُجِيبُهُمْ إِنَّكُمْ مَاكِثُونَ قَالَ الْأَعْمَشُ نُبِّئْتُ أَنَّ بَيْنَ دُعَائِهِمْ وَبَيْنَ

ته د خپل پروردګار څخه دعاء وغواړه چي موږ ته مرګ راولي، هغوئ به ورته وايي تاسو به همېشه دلته په دې حال کي اوسئ، دد غه حدیث د یو راوي اعمش بیان دی چي ما ته ښودل سوي دي چي د دوږخیانو او د دوږخ د خزانچي په منځ کي چي کوم ي خبري اتري کیږي

إِجَابَةِ مَالِكٍ إِيَّاهُمْ أَلْفَ عَامٍ قَالَ فَيَقُولُونَ ادْعُوا رَبَّكُمْ فَلَا أَحَدَ خَيْرٌ مِنْ رَبِّكُمْ

په هغه کي به زر کاله تیر سي بیا چي دوږخیان د هغه څخه نا امیده سي نو په خپل منځ کي به وايي د خپل پروردګار څخه دعاء وغواړئ چي ستاسو د پروردګار څخه غوره هیڅوک نه سته،

فَيَقُولُونَ رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا ضَالِّينَ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْهَا فَإِنْ

نو هغوئ به وايي اې زموږ پروردګاره! زموږ بدبختي پر موږ غالبه سوې ده او موږ د ګمراهانو خلکو څخه یو، اې پروردګاره! موږ د دوږخ څخه وباسې، که دد ې څخه وروسته هم

عُدْنَا فَإِنَّا ظَالِمُونَ قَالَ فَيُجِيبُهُمْ اخْسَئُوا فِيهَا وَلَا تُكَلِّمُونِ قَالَ فَعِنْدَ ذَلِكَ

موږ د کفر په لور ولاړ سو نو پر خپل ځان باندي به په خپله ظلم کونکي یو، الله تعالی به هغوئ ته په جواب کي وايي زیانکاره اوسئ په دوږخ کي او زما سره خبري مه کوئ، رسول الله ﷺ فرمايي د الله تعالی دد ې خبري اوریدو سره به هغوئ

يَئِسُوا مِنْ كُلِّ خَيْرٍ وَعِنْدَ ذَلِكَ يَأْخُذُونَ فِي الزَّفِيرِ وَالْحَسْرَةِ وَالْوَيْلِ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَالنَّاسُ لَا يَرْفَعُونَ هَذَا الْحَدِيثَ. رواه الترمذي

دهر ډول خیر څخه نا امیده سي او دد ې څخه وروسته به هغوئ ژړا وي کوي او په حسرت او افسوس سره به عذاب زغمي. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي: ۶۰۹\۴، رقم: ۲۵۸۶.

**د لغاتو حل**: ضریع: وهو نبت بالحجاز له شوک لاتقربه دابة لخبثه (یو ازغي لرونکی نبات)

**تشریح**: د هغه لوږي سزا به د هغه د عذاب په اندازه وي ...الخ: مطلب دادی چي پر هغوئ باندي کومه لوږه مسلط کړل سي د هغه درد به د دوږخ د عذاب د ټولو دردونو برابر وي ، ددې څخه معلومه سوه چي د لوږي اور د دوږخ د اور په ډول دی .

او د هغوئ فریاد رسول به د ضریع خوړلو په ذریعه کیږي: یعني کله چي هغه دوږخیان د لوږي څخه په بې تابه کېدو سره د خوراک لپاره څه وغواړي نو هغوئ ته به د ضریع خوراک ورکړل سي، څرګنده دي وي چي ضریع یو ازغي لرونکی بوټی دی چي په حجاز کي وي، دا یو داسي زهرجن او تریخ بوټی دی چي هغه ته حیوانان هم نه سي ور نژدې کېدای او که یو حیوان یې وخوري نو سمدستي مړ کیږي، په هر حال دلته په حدیث کي د ضریع څخه مراد د اور ازغیان دي چي تر ایلوا زیات تریخ، مردار او بدبویه او تر اور زیات هلاکوونکی دی .

او نه به یې چاغوي او نه به یې لوږه دفع کوي، دا په اصل کي د قران کریم دغه آیت کریمه ته اشاره ده :

لَّيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ إِلاَّ مِن ضَرِيعٍ ، لاَ يُسْمِنُ وَلاَ يُغْنِي مِن جُوعٍ .

ژباړه: او هغه دوږخیانو ته د یو ازغي لرونکي بوټي څخه پرته بل هیڅ خوراک نسته چي نه خو به خوړونکي چاغوي او نه به یې لوږه دفع کوي .

په ستوني کي د منښلېدونکي خوراک په ذریعه د فریاد کولو مطلب دادی چي په دوهم وار به هغوئ ته هډوکي یا د اور ازغیان او نور داسي شیان ورکړل سي چي په ستوني کي به یې بند سي نه به تر ستوني کښته کیږي او نه به دباندي راوځي، نو د حدیث په دغه جمله کي دغه آیت کریمه ته اشاره ده :

إِنَّ لَدَيْنَا أَنكَالاً وَجَحِيمًا ، وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ وَعَذَابًا أَلِيمًا.

ژباړه: بېله شکه د کافرانو لپاره زموږ سره زولنې دي او د دوږخ بل سوی اور دی او په ستوني کي منښلېدونکی خوراک دی دی او دردناک عذاب دی .

د حدیث د غه الفاظ : (وما دعاء الكافرين الا في ضلال)، او د کافرانو دعاء د تاوان څخه پرته نور هیڅ نه ده، دا هم په اصل کي د قرآن کریم الفاظ دي او د هغوئ دعاء په تاوان سره ځکه تعبیر سوې ده چي هغه وخت به د هغوئ په اړه هیڅ دعاء او شفقت په کار نه ورځي که هغوئ

خپله دعاء وکړي یا بل څوک دعاء ورته وکړي او شفاعت یې وکړي، مګر ددې څخه دا هیڅکله نه ثابتیږي چې د کافرانو او مشرکانو په دنیا کې هم دعاء نه قبلیږي ، لکه چې د قرآن او حدیث ددغه الفاظو څخه ځینو علماوو نتیجه اخیستې ده، حقیقت دادی چې په دنیا کې د شیطان دعاء چې دخپل عمر د اوږدوالي لپاره یې کړې وه ، الله ﷻ قبوله کړې ده نو بیا دکافرانو دعاء به ولې نه قبلیږي په شرط ددې چې هغه د الله ﷻ څخه دعاء وغواړي.

غلبت علینا شقوتنا ، زموږ بدبختۍ موږ راچاپېره کړو ، دلته د شقوة لفظ د شین په زبر او د قاف په جزم سره دی او دغه لفظ شقاوة (د شین په زبر سره) هم ویل کیږي، د دواړو یوه معنی ده یعني بدبختي چې د سعادت یعني نېکبختۍ ضد دی، د ذکر سوي جملې مطلب دادی چې زموږ تقدیر چې په هغه کې زموږ بده خاتمه لیکل سوې ده ، پوره سوه او موږ د خپلې بدبختۍ ښکار سو.

که موږ ددې وروسته هم کفر او شرک اختیار کړو ...الخ: د کافرانو دا ویل به هم پر مکر او درواغ باندې مبني وي لکه چې په قرآن کریم کې فرمایل سوي دي :

وَلَوْ رُدُّواْ لَعَادُواْ لِمَا نُهُواْ عَنْهُ وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ .

ژباړه: او که هغه خلک بیا دنیا ته واستول سي نو بیا به هغوئ هم هغه کوي د کوم څخه چې منع سوي وه، او په دې کې شک نسته چې دوئ بالکل درواغجن دي .

یاخذون في الزفیر والحسرة والویل، فریاد به کوي، دلته د زفیر لفظ اصل معنی د خره ساه اخیستل دي لکه څرنګه چې د شهیق معنی ده، یا دا چې کله خر آواز پیل کړي نو مخکې هغه آواز کښنته وي چې هغه ته زفیر ویل کیږي او په پای کې د هغه اواز تېز او غټ وي چې هغه ته شهیق ویل کیږي، د حدیث په دغه الفاظو کې د قرآن کریم دغه آیت ته اشاره ده :

لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ .

ژباړه: په دوږخ کې به د خره د کوچنې او لوی آوازو په ډول چغې وهي .

په هر حال د حدیث دآخري برخې مطلب دادی چې کله دوږخیان د الله ﷻ جواب واوري نو بالکل به نا امیده سي او د دوږخ چوکیدارانو ته فریاد کول به ګټه ور نه کړي، د دوږخ چوکیداران به خواست وکړي چې الله ﷻ مرګ ورکړي مګر ددې به هم هیڅ ګټه نه وي، په پای کې به الله ﷻ ته ژړا او فریاد وکړي او هلته به یې هیڅ خبره قبوله نه سي ، اوس چیري ولاړ سي او چا ته فریاد وکړي، همدارنګه به هغوئ بې معنی چغې او ژړاوي کوي لکه څرنګه چې د نا امیدۍ په حالت کې وي .

د روایت آخرني الفاظ (دغه حدیث مرفوع ګرځوي) مطلب دا چي د ځینو محدثینو په نزد دغه حدیث د رسول الله ﷺ قول نه دی بلکه د حضرت ابو درداء رضی الله عنه خپل بیان دی، مګر حقیقت دادی چي دغه حدیث په هر صورت مرفوع حدیث یعني د رسول الله ﷺ د ارشاد په حکم کي دی که څه هم هغه د دوږخیانو د حال او د دوږخ سره اړوند مضمون وي، هغه هیڅ صحابي د رسول الله ﷺ څخه د اوریدو پرته د خپل ځانه بیانولای نه سي.

## د دوږخ د عذاب خبرتیا

﴿۵۴۴۳﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت نعمان بن بشیر رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي

يَقُولُ أَنْذَرْتُكُمُ النَّارَ أَنْذَرْتُكُمُ النَّارَ فَمَا زَالَ يَقُولُهَا حَتّٰى لَوْ كَانَ فِيْ مَقَامِيْ

فرمایل یې: ما تاسو د دوږخ د اور څخه بیرولي یاست، ما تاسو د دوږخ د اور څخه بیرولي یاست، رسول الله ﷺ دا الفاظ په څو څو واره وفرمایل او په لوړ آواز سره یې وفرمایل په دومره لوړ آواز سره که رسول الله ﷺ هغه ځای تشریف فرما وای کوم ځای چي زه ناست یم نو

هٰذَا سَمِعَهُ أَهْلُ السُّوْقِ وَحَتّٰى سَقَطَتْ خَمِيْصَةٌ كَانَتْ عليه عِنْدَ رِجْلَيْهِ.

رواه الدارمي.

د رسول الله ﷺ آواز به د بازار خلکو اوریدلی وای، او رسول الله ﷺ ډېر دا الفاظ وفرمایل تر داسي حده چي د رسول الله ﷺ شړۍ چي پر اوږو یې پرته وه پر پښو را ایله سول. دارمي.

**تخریج** سنن الدارمي ۲\۴۲۵، رقم: ۲۸۱۲.

**د لغاتو حل**: خمیصة: نوع من الثوب (یو ډول جامه)

**تشریح**: ما تاسو د دوږخ د اور څخه وبېرولاست، مطلب دا چي ما تاسو د دوږخ د عذاب پر واقع کېدو باندي خبر کړلاست، د هغه عذاب د سختۍ څخه مي خبر کړلاست، په ډاګه مي درته بیان کړل چي د عقیدې او عمل کومه لار سړی دوږخ ته بیایي او کومه لار یې د هغه څخه ساتي، او ما څومره مختلف صورتونه درته وښودل چي تاسو یې د خپل توان په اندازه په اختیارولو سره د دوږخ څخه خوندي کیدای سي، ما دا هم ویلي دي چي (اتقوا النار ولوبشق تمرة) یعني صدقه او خیرات د اور څخه ساتونکي دي، که څه هم تاسو د خرما یوه ټوټه صدقه او خیرات

کړئ، نو د هغه صدقې او خیرات په کولو سره د دوږخ د اور څخه ځان وساتئ اوس که ددې څخه وروسته هم په تاسو کې یو سړی د دوږخ د عذاب څخه نه بیریږي او داسي لار اختیاروي چي دوږخ ته بیونکي وي نو هغه سړی پوه سو او کاریې پوه سو .

## د دوږخیانو زنځیر

﴿۵۴۴۴﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ أَنَّ رَصَاصَةً مِثْلَ هٰذِهِ وَأَشَارَ إِلَى مِثْلِ الْجُمْجُمَةِ أُرْسِلَتْ مِنَ

که رصاصه ټوټه چي د کوپړې په ډول وي د آسمان څخه د مځکي په لور را وغورځول سي چي د

السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ و هِيَ مَسِيرَةُ خَمْسِ مِائَةِ سَنَةٍ لَبَلَغَتْ الْأَرْضَ قَبْلَ

هغه فاصله د پنځو سوو کلونو لار ده نو پر هغه به یوه شپه نه وي تېره سوې چي مځکي ته به راورسیږي مګر که د هغې رصاصې ټوټه د هغه زنځیر د سر څخه را ولیږل سي (یعني په دوږخ

اللَّيْلِ وَلَوْ أَنَّهَا أُرْسِلَتْ مِنْ رَأْسِ السِّلْسِلَةِ لَسَارَتْ أَرْبَعِينَ خَرِيفًا اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ قَبْلَ أَنْ تَبْلُغَ أَصْلَهَا أَوْ قَعْرَهَا. رواه الترمذي.

کي) چي په هغه دوږخیان تړل کیږي نو څلوېښت کاله به مزل وکړي هم شپه او هم ورځ لا به د دوږخ بېخ یا ژور والي ته ونه رسیږي. ترمذي.

**تخریج** سنن الترمذي ۴\۶۱۱، رقم: ۲۵۸۸.

**تشریح** د زنځیر څخه مراد هغه زنځیر دی چي په هغه سره به دوږخیان داسي وتړل سي چي د هغه په مقعده کي په اچولو سره د پزې څخه را وایستل سي ، ددغه زنځیر یادونه د قرآن کریم په دغه الفاظو کي سوې ده :

ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ .

ژباړه: بیا به ملائکو ته حکم وسي چي هغه دوږخي په یو ځنځیر کي وتړي چي د هغه اوږدوالی به اویا ګزه وي .

دلته دا سوال پيدا كيږي چي په قرآن كريم كي د ځنځير اوږدوالى اويا گزه ذكر سوى دى نو دا د هغه مسافت په اندازه څرنگه كيداى سي چي په حديث كي ذكر سوى دى، ددې جواب دادى چي لومړى خو اويا گزه خاص شمېر او د ځنځير په اړه ټاكل سوى اوږدوالى مراد نه دى بلكه ددغه شمېر څخه زياتوب او مبالغه مراد ده، دوهم دا چي ددغه دنيا گز د هغه جهان پر گز قياس كول نه دي پكار، الله جَلَّ جَلَالُهُ بنه پوهيږي چي د هغه ځاى گز به څومره اوږد وي او د هغه به څه صورت وي، ددې تائيد ددې خبري څخه هم كيږي چي د آخرت قيراط د احد د غره په اندازه فرمايل سوى دى.

د يو بزرگ، نوف بكالي څخه نقل سوي دي چي هغه وويل: اويا گزه به داسي وي چي هر گز به د دوو لاسو په اندازه وي، او دواړه لاسونه به د هغه فاصلې په اندازه اوږده وي كوم چي ددغه ځاى يعني كوفې او مكې په منځ كي دى، حضرت حسن بصري رحمه الله ددغه آيت د تفسير په بيان كي ويلي دي: الله جَلَّ جَلَالُهُ بنه پوهيږي چي ددغه گز اندازه به څومره وي.

په هرحال د حديث خلاصه داده چي په كوم ځنځير كي كافران تړل كيږي كه د هغه اوږدوالى اندازه كول غواړئ نو ددې څخه يې اندازه معلومه كړئ چي يو شى د آسمان څخه را ايله سي او سره ددې چي هغه د مځكي او آسمان په منځ كي دپنځه سوه مسافت په اندازه فاصله ده هغه شى به په ډېر لږ وخت كي مځكي ته ورسيږي ځكه چي دروند او گردى شي د لوړي څخه لاندي ته ډېر ژر راځي مگر كه هغه گردى شى د هغه ځنځير د يوه سر څخه ولغړول سي او د آسمان څخه مځكي ته راتلونكي په تيزي سره تر څلوېښت كاله پوري راروان وي بيا هم د هغه ځنځير دوهم سرته نه سي رسېدلاى.

## د دوږخ هبهب

﴿۵۴۴۵﴾: وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ فِي جَهَنَّمَ لَوَادِيًا يُقَالُ لَهُ هَبْهَبٌ يَسْكُنُهُ كُلُّ جَبَّارٍ. رواه الترمذي.

حضرت ابوبرده رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت كوي چي نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: په دوږخ كي يوه شبله ده چي د هغې نوم هبهب ده، په دغه شيله كي به هغه سړى اچول كيږي كوم چي متكبر او سركش وي. ترمذي

**تخريج**. سنن الترمذي: ۴۲۷\۲، رقم: ۲۸۱۶.

**تشریح**: د هبهب معنی د تیزي او تلوار ده، او ذکر سوي شېلې ته د هبهب نوم ځکه ورکړل سوی دی چي یو خو په دغه شېله کي تیزي شغلې پورته کیږي دوهم دا چي په دغه شېله کي اچونکو ګناه کارو ته به عذاب په ډېره تیزي سره وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د دوږخیانو حجم

﴿۵۴۴۶﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَعْظُمُ أَهْلُ النَّارِ فِي النَّارِ حَتَّى إِنَّ بَيْنَ شَحْمَةِ أُذُنِ أَحَدِهِمْ إِلَى عَاتِقِهِ مَسِيرَةَ سَبْعِ مِائَةِ عَامٍ وَإِنَّ غِلَظَ جِلْدِهِ سَبْعُونَ ذِرَاعًا وَإِنَّ ضِرْسَهُ مِثْلُ أُحُدٍ. رواه احمد.

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په دوږخ کي به د دوږخیانو بدنونه لوی سي تر دې چي د غوږ د نرمۍ څخه تر اوږو پوري فاصله به یې د اوو سوو کالو د لاري برابر سي او د پوست غټوالی (پنډوالی) به یې اویا ګزه سي او غاښ به یې د احد د غره برابر سي. احمد.

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۲\۲٦.

### د دوږخ ماران او لړمان

﴿۵۴۴۷﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عبدالله بن حارث بن جزء رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي النَّارِ حَيَّاتٍ كَأَمْثَالِ الْبُخْتِ تَلْسَعُ إِحْدَاهُنَّ اللَّسْعَةَ

په دوږخ کي د بختي اوښ په اندازه ماران دي، دا مار چي یو وار ټوک وچیچي نو د هغه درد او

فَيَجِدُ حَمْوَتَهَا أَرْبَعِينَ خَرِيفًا وَإِنَّ فِي النَّارِ عَقَارِبَ كَأَمْثَالِ الْبِغَالِ الْمُوكَفَةِ تَلْسَعُ إِحْدَاهُنَّ اللَّسْعَةَ فَيَجِدُ حَمْوَتَهَا أَرْبَعِينَ خَرِيفًا. رواه احمد.

زهر به تر ځلوښتو کالو پوري وي ، او په دوږخ کي لړمان د غاترو په ډول دي د هغوئ د يو وار چيچلو اثر او زهر به تر ځلويښت کالو پوري وي . احمد

**تخريج** : الامام احمد في مسنده: ۹۱\۱۴.

**د لغاتو حل** :البُخت: مفرد بختي، الابل الخراسانية (خراساني اوښ)

## لمر او سپوږمۍ به اور ته حواله کړل سي

﴿۵۴۴۸﴾ : وَعَنِ الْحَسَنِ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْهُرَيْرَةَ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت حسن رضي الله عنه څخه روايت دی چي ابو هريره رضي الله عنه بيان وکړ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

وَسَلَّمَ قَالَ اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ ثُوْرَانِ مُكَوَّرَانِ فِي النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَقَالَ

د قيامت په ورځ به سپوږمۍ او لمر د پنير دوو ټوټو په ډول وي چي هغوئ به په اور کي وغورځول سي ، حسن رضي الله عنه د ابو هريره رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي

الْحَسَنُ وَمَا ذَنْبُهُمَا فَقَالَ أُحَدِّثُكَ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَسَكَتَ الْحَسَنُ . رواه البيهقي في كتاب البعث والنشور.

لمر او سپوږمۍ څه ګناه کړې ده ؟ ابو هريره رضي الله عنه وويل ما چي څه د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي وه هغه مي بيان کړل ددې اوريدو سره حسن پټه خوله سو . بيهقي.

**تخريج** : رواه البيهقي في كتاب البعث والنشور.

**تشريح**: حضرت ابو هريره رضي الله عنه د خپل ذکر سوي جواب په ذريعه حضرت حسن رحمة الله عليه خبردار کړ چي ته قياس د صريح نص (يعني حديث) مقابله کوې، او دا ګڼې چي د دوږخ دخول اصل موجب عمل دی حال دا چي اصل شی د الله جل جلاله مشيت دی چي هغه څه غواړي کوي يې، دا خبره طيبي رحمة الله عليه ليکلې ده مګر صحيح وضاحت دادی چي د حضرت حسن بصري رحمة الله عليه د ويلو مقصد د هغه د خواهش اظهار وو چي حضرت ابو هريره رضي الله عنه دي هغه حکمت هم بيان کړي چي لمر او سپوږمۍ د دوږخ اور ته د سپارلو وروسته کيږي، او د حضرت ابو هريره رضي الله عنه د جواب مطلب دا وو چي ما د رسول الله ﷺ څخه څه واوريدل هغه مي تا ته بيان کړل ددې څخه زيات ما ته هم معلومه نه ده .

ځينو علماؤ ليکلي دي چي لمر او سپوږمۍ به په دوږخ کي ځکه اچول کيږي چي د دوږخ په اور کي ددغه دواړو شيانو حرارت او تيزي شامله سي، او پر دوږخيانو باندي د عذاب زياتوب وسي، ديلمي رحمة الله عليه په مسند فردوس کي د حضرت عمر رضي الله عنه څخه مرفوع نقل کړي دي چي دلمر او سپوږمۍ مخ عرش ته دی او شا يې دنيا ته ده، ددې مطلب دا سو که چيري ددغه دواړو مخ دنيا ته وي نو د دنيا خلک به د هغه حرارت او ګرمي هيڅکله و نه زغملای سي، او ځينو دا ليکلي دي چي مشرکان د لمر او سپوږمۍ عبادت کوي ځکه الله جل جلاله به د قيامت په ورځ دد واړو په دوږخ کي اچولو سره مشرکان شرمنده کړي چي تاسو کوم شيان خدای منل، اوس وګورئ د هغوئ څه حال دی .

## شقي څوک دی؟

﴿۵۴۴۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلُ النَّارَ إِلَّا شَقِيٌّ قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَمَنْ الشَّقِيُّ قَالَ مَنْ لَمْ يَعْمَلْ لِلّٰهِ بِطَاعَةٍ وَلَمْ يَتْرُكْ لَهُ مَعْصِيَةً . رواه ابن ماجه.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : په دوږخ کي به يوازي بدبخته داخليږي ، پوښتنه وسول اې د الله رسوله ! بدبخته څوک دي؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : بدبخته هغه څوک دي چي د الله جل جلاله د رضا او خوښي تر لاسه کولو لپاره يې د الله جل جلاله هيڅ اطاعت ونه کړ او د الله جل جلاله څخه د ويري په خاطر يې ګناه پرې نښودل .. ابن ماجه.

**تخريج** : سنن ابن ماجه: ۲\۱۴۳۶، رقم: ۴۲۹۸.

**تشريح** : د شقي لفظ په عامه معنی کي استعمال سوی دی يعني ددې څخه کافر هم مراد دی او مسلمان فاجر هم مراد دی .

==========

# بَابُ خَلْقِ الْـجَنَّةِ وَالنَّارِ

## (د جنت او دوږخ پيدا كېدو بيان)

په دغه باب كي هغه حديثونه نقل كيږي چي د هغو څخه ثابتيږي چي د جنت او دوږخ تخليق سوى دى او هغه موجود دي لكه چي دهل سنت والجماعت مذهب دى، ددې پر خلاف په مسلمانانو كي گمراه ډلي وايي چي جنت او دوږخ تر اوسه پيدا سوي نه دي او دغه دواړه به د قيامت په ورځ په وجود كي راځي او په دغه باب كي هغه حديثونه هم دي چي په هغو كي د دغه دواړو سره اړوند د ځينو ځانگړتياوو ذكر دي او دا بيان دى چي د چا لپاره جنت پيدا سوى دى او د چا لپاره دوږخ پيدا سوى دى.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د جنت او دوږخ شكايت

﴿۵۴۵۰﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحَاجَّتْ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په خپل منځ كي په بحث سول

الْجَنَّةُ وَالنَّارُ فَقَالَتْ النَّارُ أُوثِرْتُ بِالْمُتَكَبِّرِينَ وَالْمُتَجَبِّرِينَ وَقَالَتْ الْجَنَّةُ

جنت او دوږخ، دوږخ وويل: زه د سركښو او متكبرو لپاره غوره كړل سوى يم، جنت وويل:

فَمَا لِي لَا يَدْخُلُنِي إِلَّا ضُعَفَاءُ النَّاسِ وَسَقَطُهُمْ وَغِرَّتُهُمْ قَالَ اللهُ لِلْجَنَّةِ إِنَّمَا

په ما څه سوي دي چي په ما كي به كمزوري، حقير او ذليل خلك او هغه خلك چي ساده راتلونكي دي داخليږي، ددې اوريدو سره الله تعالى جنت ته وفرمايل:

أَنْتِ رَحْمَتِي أَرْحَمُ بِكِ مَنْ أَشَاءُ مِنْ عِبَادِي وَقَالَ لِلنَّارِ إِنَّمَا أَنْتِ عَذَابِي

ته زما رحمت يې، زه د خپلو بندگانو څخه چي چا ته غواړم ستا په ذريعه رحمت پر كوم او دوږخ ته يې وفرمايل: ته زما عذاب يې

أُعَذِّبُ بِكِ مَنْ أَشَاءُ مِنْ عِبَادِي وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْكُمَا مِلْؤُهَا فَأَمَّا النَّارُ فَلَا

زه د خپلو بندګانو څخه چي چا ته غوارم ستا په ذریعه عذاب ورکوم، او تاسو دواړو کي به زه

تَمْتَلِئُ حَتَّى يَضَعَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى رِجْلَهُ تَقُولُ قَطْ قَطْ فَهُنَالِكَ تَمْتَلِئُ

هر یو ډک کړم او دوزخ خو به تر هغه وخته پوري نه ډکیږي تر څو پوري چي په هغه کي الله تعالی خپله پښه کښې نه ږدي (او کله چي الله تعالی خپل پښه کښیږدي نو) دوزخ به وایي: بس بس بس، دغه وخت به دوزخ ډک سي

وَيُزْوَى بَعْضُهَا إِلَى بَعْضٍ وَلَا يَظْلِمُ اللّٰهُ مِنْ خَلْقِهِ أَحَدًا وَأَمَّا الْجَنَّةُ فَإِنَّ اللّٰهَ يُنْشِئُ لَهَا خَلْقًا. متفق علیه

بیا به هغه راغونډه کړل سي او د هغه ځیني برخي به په ځینو برخو کي یو ځای کړل سي او الله تعالی په خپل مخلوق کي پر هیچا ظلم نه کوي او (جنت که خالي پاته سي) نو د هغه لپاره به الله تعالی نوی مخلوق پیدا کړي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۸\۵۹۵، رقم: ۴۸۵۰، ومسلم ۴\۲۱۸۶، رقم: ۳۶-۲۸۴۶.

**د لغاتو حل**: غرتهم: الذین لاتجربه لهم في الدنیا (بې تجربې).

**تشریح**: جنت او دوزخ په خپلو کي بحث وکړ، ددې مطلب دادی چي دواړو په خپل باره کي یو ډول شکایت وکړ، د دوزخ وینا که دا وه چي د سرکښو او ظالمانو خلکو لپاره زه ولي خاص کړل سوم؟ نو جنت دا وویل چي زما معامله خو هم مختلفه نه ده، په ما کي دننه هم هغه خلک داخلیږي چي په دنیا کي د هغوئ هیڅ شان او شوکت نسته او د کمزوري بدن والا، غریب او مفلس د خلکو په آند بې حیثیته وي، ددغه دواړو د شکایت په اوریدو سره به الله ﷻ هغوئ ته څرګنده کړي چي په تاسو کي د هیچا هم ددې څخه پرته بله معامله نسته چي تاسو دواړه محض زما د مشیت او حکمت په نتیجه کي په وجود کي راوستل سوي یاست، ما یو د خپل رحمت او کرم او بل د قهر او غضب مهر وګرځول، نو د مؤمن او کافر په ډول تاسو دواړه هم یعني جنت او دوزخ په اصل کي د خدای ﷻ د جمال او جلال مظاهر او کمال یاست، او په تاسو دواړو کي هیچا ته داسي خصوصیت نسته چي یوه ته د بل په مقابل کي فضیلت او غوره والي تر لاسه وي، مګردا خبره ده چي د دوزخ د معاملاتو تعلق د عدل او انصاف سره دی او د جنت د معاملاتو تعلق د فضل او کرم سره دی.

د خلکو په نظر کي لوېدلی دی، یعني هغه خلک د خپلي عقیدې، عمل او کردار په اعتبار د الله ﷻ په نزد لوی قدر او درجه لري او د الله ﷻ نیک بندګان یعني علماء او صالحان چي د ارباب باطن په نظر کي هم هغوئ قدر او درجه لري مګر په ظاهري توګه د هغوئ کمزوري، ضعیف او غریب کېدو په وجه اکثر شتمن خلک هغوئ سپک او د توجه نه ور ګڼي، او په ما کي هغه خلک داخلېږي چي کمزوري او ضعیف دي، یعني په جنت کي به زیات خلک هغه وي، کنه نو جنت ته تلونکي خو انبیاء او رسولان هم دي، پاچاهان هم دي، یا دا ویل کیږي چي د ضعیف او کمزورو څخه مراد هغه بندګان دي چي د خپل پروردګار په وړاندي ذلت څرګندوي، د مخلوق سره د تواضع او خاکساری رویه اختیاروي او خپله خپل ځان هم کښته ګڼي.

چي ساده او په دوکه کي راتلونکي دي، یعني هغه خلک د اخرت په فکر کي د سرګردانه کېدو په وجه د دنیاوي چارو څخه غافل او په دنیاوي معاملاتو کي بې تجربې وي، ځکه شتمن خلک یې په ډېره اساني سره خطا کوي، د خپل مکر او فریب په جال کي یې راولي، په دې اعتبار سره په یو حدیث کي داسي فرمایل سوي دي چي دجنتیانو خلکو زیاتوب به په دنیاوي چارو پر نابلده او ناپوهو خلکو باندي مشتمل وي، د دوئ په مقابله کي کافران او منافقان به په دنیاوي چارو کي ډېر چالاک او مکار وي، ځکه هغوئ د دنیا د معاملاتو په هر شي پوهېدو سره د خپل او فکر او عمل ټول توان په هغه کي لګوي لکه څرنګه چي الله ﷻ فرمایي:

يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ الآخِرَةِ هُمْ غَافِلُونَ.

او دوږخ به تر هغه وخته نه ډکیږي...الخ: یعني د ځومره خلکو تلل چي دوږخ ته ټاکل سوي دي دهغوئ ټولو دوږخ ته تللو څخه وروسته هم د دوږخ نس نه ډکیږي نو هغه به د الله ﷻ څخه د نورو دوږخیانو غوښتنه کوي، په قرآن کریم کي دي:

يَوْمَ نَقُولُ لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلأْتِ وَتَقُولُ هَلْ مِن مَّزِيدٍ.

مګر الله ﷻ به د هغه د نس ډکولو لپاره دا نه کوي چي بې ګناه خلک به دوږخ ته اچوي، یا کوم ګناه کار چي وبخښل سي هغه به دوږخ ته وسپارل سي، یا نور خلک به د هغه لپاره پیدا کړي چي د هغوئ څخه به د دوږخ د ډکولو کار واخستل سي، بلکه داسي به وکړي چي خپله پښه به په دوږخ کي کښېږدي چي په هغه سره به د دوږخ ټول شاوخوا یو بل ته نژدې سي او د دوږخ نس به په راټولېدو سره په هلته موجودو خلکو ډک سي، او دا چي فرمایل سوي دي چي الله ﷻ پر خپل مخلوق باندي ظلم نه کوي، ددې څخه مراد دادی چي د دوږخ د نس ډکولو لپاره داسي

هیځ فیصله نه کوي چي هغه صورتاپه ظلم سره تعبیر کیږي، کنه نو اصل خبره داده که پروردګار بې ګناه خلک په دوږخ کي په اچولو سره د هغه نس ډکوي نو په حقیقت کي دې ته هم ظلم نه وایو ځکه چي په خپل ملکیت کي هر ډول تصرف کولو ته ظلم نسي ویل کیدای مګر الله ﷻ صورتا ظلم هم نه کوي، په دې اړه دا ذکر کول ضروري دي چي الله ﷻ ته د پښې نسبت د متشابهاتو څخه دی لکه څرنګه چي د هغه لپاره د لاس، سترګي او مخ یادونه د متشابهاتو څخه شمېرل کیږي، او د متشابهاتو په اړه کوم چي په قرآن او حدیث کي دي ، هغه دادي چي یوازي پر هغه عقیده درلودل پکار دي چي ددې څخه څه مراد دی هغه صحیح او حق دی . د هغه د حقیقیت او کیفیت په پلټنه کي لوېدل نه دي پکار دا تر ټولو غوره لار ده او سلفو دغه لار اختیار کړې ده، مګر د متاخرینو څخه ځینو حضراتو دا لیکلي دي چي د هغه د پښې څخه مراد د هغه په مخلوق کي د یو چا پښه ده، ددې څخه پرته ځینو خلکو داسي نور تاویلونه هم کړي دي چي د الله ﷻ د شان مطابق دی مګر د اوږدوالي د بیري هغه دلته ذکر کولای نه سو .

د جنت ډکولو لپاره به الله ﷻ نوي خلک پیدا کړي، ددې مطلب دادی چي الله ﷻ به د داسي خلکو په جمع کولو سره په جنت کي داخل کړي چي هغوئ به هیڅکله څه عمل نه وي کړي او د جنت مستحق به نه وي نو دا به د الله ﷻ د رحمت اظهار وي چي هغه د دوږخ ډکولو لپاره بې ګناه خلک په هغه کي نه اچوي مګر د جنت ډکولو لپاره بې عمله خلک په هغه کي داخل کړي.

## دوږخ او جنت به ډک کړل سي

﴿۵۴۵۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَزَالُ جَهَنَّمُ يُلْقَى

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په دوږخ کي به خلک اچول

فِيهَا وَتَقُولُ هَلْ مِنْ مَزِيدٍ حَتَّى يَضَعَ رَبُّ الْعِزَّةِ فِيهَا قَدَمَهُ فَيَنْزَوِي بَعْضُهَا

کیږي او هغه به وایي نور سته، تر دې چي الله تعالی به په هغه کي خپله پښه کښیږدي دغه وخت به د دوږخ ځیني برخي په ځینو کي داخل کړل سي

إِلَى بَعْضٍ فَتَقُولُ قَطْ قَطْ بِعِزَّتِكَ وَكَرَمِكَ وَلَا يَزَالُ فِي الْجَنَّةِ فَضْلٌ حَتَّى

او بیا به دوږخ وایي بس بس ، ستا په عزت او ستا په بخښښ مي دي قسم وي زه ډک سوم، او په جنت کي به همېشه زیات ځای وي تر دې چي

يُنْشِئَ اللّٰهُ لَهَا خَلْقًا فَيُسْكِنُهُمْ فَضْلَ الْجَنَّةِ. متفق عليه و ذكر حديث انس حفت الجنة بالمكاره في كتاب الرقاق.

الله تعالى به نور مخلوق پيدا كړي او د جنت خالي ځايونه به د هغو څخه ډک كړي. بخاري او مسلم، او د حضرت انس رضي الله عنه حديث (حفت الجنة ....) په كتاب الرقاق كي بيان سوى دى.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱۳\۳۶۹، رقم: ۷۳۸۴، ومسلم ۴\۲۱۸۸، رقم: ۲۸-۲۸۴۸.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### جنت د نفس د مكروهاتو او دوږخ د نفس د خواهشاتو څخه چاپير دى

﴿۵۴۵۲﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا خَلَقَ اللّٰهُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كله چي الله تعالى پيدا كړ

الْجَنَّةَ قَالَ لِجِبْرِيلَ اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَاوالى ما اعدالله

جنت نو جبرائيل عليه السلام ته يې وفرمايل ولاړ سه او جنت وګوره، نو هغه ولاړى جنت يې وكتى او په هغه كي پر تهول سامان يې نظر واچوى كوم چي الله تعالى د جنتيانو لپاره تيار كړي

لاهلها فيها ثُمَّ جَاءَ فَقَالَ أَيْ رَبِّ وَعِزَّتِكَ لَا يَسْمَعُ بِهَا أَحَدٌ إِلَّا دَخَلَهَا ثُمَّ

دي، بيا چي راغلى عرض يې وكړ: اې پروردګاره! ستا په عزت دي مي قسم وي څوک چي دد ې جنت حال واوري هغه به په دې كي دداخليدو خواهش كوي، بيا

حَفَّهَا بِالْمَكَارِهِ ثُمَّ قَالَ يَا جِبْرِيلُ اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا ثُمَّ

الله تعالى د جنت څخه شاوخوا د شرعي پابنديو احاطه قائمه كړه او د هغه څخه وروسته يې جبرائيل عليه السلام ته وفرمايل: اې جبرائيله! ولاړ سه او جنت دويم وار وګوره، جبرائيل عليه السلام ورغلى جنت يې دويم وار وكتى،

جَاءَ فَقَالَ أَيْ رَبِّ وَعِزَّتِكَ لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ لَا يَدْخُلَهَا أَحَدٌ قَالَ فَلَمَّا خَلَقَ

كله چي راغلی وه يې ويل : اې پروردګاره ! ستا په عزت دي مي قسم وي زما سره انديښنه ده چي اوس به هيڅوک جنت ته داخل نه سي ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : كله چي

اللهُ النَّارَ قَالَ يَا جِبْرِيلُ اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا قال فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا فَقَالَ أَيْ

الله تعالی دوږخ پيدا كړ نو وه يې فرمايل : اې جبرائيل ! ولاړ سه دوږخ وګوره نو هغه ولاړی دوږخ يې وكتی كله چي راغلی نو عرض يې وكړ اې

رَبِّ وَعِزَّتِكَ لَا يَسْمَعُ بِهَا أَحَدٌ فَيَدْخُلُهَا فَحَفَّهَا بِالشَّهَوَاتِ ثُمَّ قَالَ يَا

پروردګاره! ستا په عزت مي دي قسم وي څوک چي د دوږخ حال واوري نو هغه به هيڅكله په دې كي دداخليدو خواهش ونه كړي ، ددې څخه وروسته الله تعالی د دوږخ څخه شاوخوا د خواهشات نفساني او شهواتو احاطه ولګول بيا يې وفرمايل اې

جِبْرِيلُ اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا ثُمَّ جَاءَ فَقَالَ أَيْ رَبِّ

جبرائيله! ولاړ سه اوس دوږخ وګوره ، جبرائيل راغلی او دوږخ يې دويم وار وكتی كله چي راغلی نو عرض يې وكړ اې پروردګاره !

وَعِزَّتِكَ لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ لَا يَبْقَى أَحَدٌ إِلَّا دَخَلَهَا. رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي.

ستا په عزت دي مي قسم وي زما سره بيره ده چي په دې كي به هيڅوک بې داخليدو پاته نه سي . ترمذي، ابوداؤد او نسائي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۹۸، رقم: ۲۵۶۰، وابوداود ۵\۱۰۸، رقم: ۴۷۴۴، والنسائي ۷\۳، رقم: ۳۷۷۲.

**تشريح**: مكاره په اصل كي د مكره جمع ده چي معنی يې د مكروه يعني ناخوښه ده، دلته د مكاره څخه مراد هغه شرعي امور دي چي د هغه انسان مكلف سوی دی چي فلانی فلانی شی دي اختيار كړل سي او د فلاني فلاني شي څخه دي پرهيز وكړل سي ، د جنت څلورو خواوو ته د مكاره احاطه كولو مطلب دادی چي تر څو پوري د الله ﷻ د اطاعت كولو او ګناهونو څخه د پرهيز كولو تكليف او مشقت زغملای سي د نفس خواهشات او د هغه غوښتني به ختمي نه كړل سي نو تر هغه وخته پوري به په جنت كي داخلېدل نا ممكن وي .

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

## د رسول الله ﷺ د جنت او دوږخ ليدنه

﴿۵۴۵۳﴾: عَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى لَنَا يَوْمًا الصَّلَاةَ

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي يوه ورځ رسول الله ﷺ موږ ته لمونځ راکړ،

ثُمَّ رَقِيَ الْمِنْبَرَ فَأَشَارَ بِيَدِهِ قِبَلَ قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ فَقَالَ قَدْ أُرِيتُ الْآنَ مُنْذُ

بيا منبر ته وختی د مسجد د قبلې خوا ته يې اشاره وکړه او وه يې فرمايل: ما اوس اوس تاسو

صَلَّيْتُ لَكُمُ الصَّلَاةَ الْجَنَّةَ وَالنَّارَ مُمَثَّلَتَيْنِ فِي قُبُلِ هَذَا الْجِدَارِ فَلَمْ أَرَ كَالْيَوْمِ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ. رواه البخاري.

ته د لمانځه درکولو په وخت د دغه ديوال مخته دوږخ او جنت په يو خاص شکل کي وليدل او زه ويلای سم چي تر ننه پوري څومره ښه او بد شيان ما ليدلي دي هغه د جنت او دوږخ د ښه والي او بدوالي مقابله کي هيڅ حيثيت او حقيقت نه لري.بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲۳۲\۲، رقم: ۷۴۹

**تشريح**: د قبل لفظ د قاف په زېر ، د باء په زور سره هم نقل سوی دی او د دواړو په پېښ سره هم، همدارنګه د قاف په پېښ سره او د باء په جزم سره هم نقل سوی دی، په دغه ټولو صورتو کي معنی يوه ده ، يعني مخته کېدل.

ما چي نن څومره ښه شی او څومره بد شی ليدلی دی...الخ: ددې مطلب دا وو چي کوم ښه شی انسان ليدلای سي د هغه څخه زيات ښه شی ما په جنت کي ليدلی دی همدارنګه کوم خراب شی چي په دنيا کي ليدل کيږي د هغه څخه هم زيات خراب شی ما په دوږخ کي ليدلی دی.

که دلته دا سوال پيدا سي چي جنت او دوږخ دومره پراخ او عريض کېدو سربېره د رسول الله ﷺ په وړاندي په يو ديوال کي ممثل او منور کېدو سره راغلل، نو ددې جواب به دا وي چي د يو شي د تمثيل او عکس دپاره دا مطلقا ضروري نه ده چي هغه شی دی په اصل طول او عرض سره منعکس سي، تر ټولو لوی مثال په اوبو يا هنداره کي د يو شي عکس دی چي د يو پراخ او عريض باغ يا سرای پوره عکس په اوبو يا هنداره کي راځي هغه په اصل کي باغ يا سرای

حقيقي طول او عرض سره هيڅکله نه وي ، يوه خبره دا هم ويل کيداى سي چي دحديث اړوند الفاظو څخه دا نه لازميږي چي د جنت يا دوږخ تمثيل يا تصوير ديوال سربېره نقش جوړ سوى وي بلکه په هغه الفاظو کي هغه تمثيل د ديوال د مخ په برخه کي د لېدو ذکر دى چي د هغه مطلب دا هم کيداى سي چي هغه تمثيلونه رسول الله ﷺ ته د دېوال په خوا کي ښودل سوي وي او د هغه تمثيلونو وجود په بل عالم کي يا په بل ځاى کي وي دده مضمون يو بل حديث کي دا الفاظ دي چي : يعني ما جنت او دوږخ ددغه ديوال په کونج کي ولېدل ، ددغه حديث په ضمن کي د حديث شارحينو ذکر سوى سوال او د هغه جواب نقل کړى دى .

ځينو علماؤ دا ليکلي دي چي درسول الله ﷺ د ارشاد څخه دا مراد نه وو چي ما جنت او دوږخ داسي وليدل چي د هغوئ تمثيل د ديوال د مخ برخي وو بلکه د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي ما (په خپلو روحاني سترګو) جنت او دوږخ وليدل ، کله چي زه قبلې ته د ديوال مخته وم په دغه صورت کي هيڅ مشکل نه واقع کيږي ، والله اعلم بحقيقة الحال ، په اصل حالت الله ﷻ ښه خبردار دى .

==========

# بَابُ بَدْءِ الْـخَلْقِ وَذِكْرِ الْاَنْبِيَاءِ عَلَيْهِمُ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ

## (د پېدائش پيل او د انبياء عليهم السلام يادونه)

د پيدائش د پيل څخه مراد ددغه کائناتو په عالم وجود کي راتلل او د هغه مخلوقاتو د پيدائش او په تخليق په اړه پيل کيدل دي، او انبياء عليهم السلام ددغه کائناتو جوهر دي، ددين او ملت د تدوين او تربيت نقطه د دوئ ذات دى، د امور عالم نظم او انتظام او اصلاح د دوئ سره اړوند ده او دنوع انساني د پيدائش لړۍ د ابو البشر حضرت آدم ﷷ څخه پيل کيږي چي لومړنى نبي هم دى ، ځکه ددغه مقدسو کسانو يادونه او د باب د عنوان دوهمه برخه ګرځول سوي دي .

**عالم حادث دى** : تر ټولو مخکي بايد دا په ذهن کي وي چي ټول آسماني مذهبونه او ملتونه تر دې چي مجوسيان (د اور بندګي کوونکي) هم پر دې متفق دي چي عالم حادث دى يعني دغه دنيا او د دنيا هر شي د عدم څخه په وجود کي راغلى دى، د الله ﷻ څخه پرته د بل هيڅ شي وجود مخکي نه وو ، وروسته الله ﷻ هر شى پيدا کړ ، په دې اړه تر ټولو غوره شاهدي

د مخبر صادق ﷺ ده، فرمايي : كان الله ولم يكن معه شئ، يوازي د الله ﷻ ذات موجود وو، د هغه سره د هيڅ شي وجود نه وو.

تر ټولو وړاندي الله ﷻ لوح او قلم پيدا كړل، او د مخلوقاتو پيدا كولو څخه مخكي يې يو كتاب (تقدير) وليكی، د هغه څخه وروسته يې عرش، كرسي، آسمانونه، مځكي، ملائكي، پيريان او انسانان پيدا كړل.

د علماؤ پر دې خبره اتفاق دی چي ټول اجسام د خپل ذات او صفاتو سره حادث دي، او ځينو حضراتو ويلي دي چي په اجسامو كي تر ټولو وړاندي چي كوم شی پيدا سو هغه اوبه دي، ځكه چي دغه خصوصيت يوازي اوبو ته حاصل دی چي هغه هر شكل او صورت اختيارولای سي، او د ټولو شيانو ماده د تخليق جوړېدو صلاحيت لري، ويل كيږي چي همدغه اوبه وي چي لطافت پكښي پيدا سو نو هواء په عالم وجود كي راغلل، بيا د دغه د جوهر څخه اور پيدا سو او د هغه د توبن څخه آسمان جوړ سو، ځرګنده دي وي چي پر آسمان باندي د دود اطلاق په قرآن كريم كي هم راغلی دی، دغه قول چي د دغه كائناتو د هر شي د تخليق ماده اوبه دي او د اوبو د جوهر څخه اور د هغه د دود څخه آسمان پيدا سو، په پخوانيو حاكمانو كي يو سړي طاس ملطي ته منسوب دي، مګر علماؤ ويلي دي چي طاس ملطي دا خبره د رسول الله ﷺ د ارشاداتو څخه په اخذ كولو سره ويلې ده، او رسول الله ﷺ چي په دې اړه څه فرمايلي دي د هغه تصديق نه يوازي د پخوانيو او اوسنيو حاكمانو د اقوالو څخه كيږي بلكه په پخواني آسماني كتابو كي هم داسي منقول دي، د تورات په اوله صفحه كي منقول دي چي الله ﷻ د دغه كائناتو مځكي او آسمانونو د پيدا كولو اراده وكړل نو يو جوهر يې پيدا كړ او پر هغه يې د هيبت او جلال نظر واچوی چي د هغه څخه د دغه جوهر د اجزاء په ويلي كېدو سره اوبه جوړي سوې بيا د هغه څخه د دود په ډول بخارات پورته سول چي د هغه څخه يې آسمان جوړ كړ، او بيا پر هغه اوبو باندي ځګ ظاهر سو چي د هغه څخه يې مځكي ته وجود وركړ، او د مځكي د جمع كولو او قائمولو لپاره يې غرونه پيدا كړل، په هرحال د كائناتو د تخليق د پيل موضوع ډېره پراخه او د خاص بحث وړ ده، تل حكماء او پوهان په دې اړه په تحقيق كي دي او مختلف نظريات او اقوال چي مخته راغلي دي مګر په دې كي شک نسته چي د دغه موضوع تعلق د داسي امورو سره دی چي محض د عقل او قياس څخه معلومېدای نه سي بلكه د دې حقيقت ته د رسېدو دار او مدار د خالق كائنات د هغه علم څخه پر اخذ او استنباط باندي دی چي د وحي په ذريعه دنيا ته راغلي دي او رسول الله ﷺ د خپلو ارشاداتو په ذريعه نړۍوالو ته رسولي هم دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د الله ﷻ څخه مخکي هيڅ هم نه وه

﴿۵۴۵۴﴾: عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ إِنِّي كُنْتُ عِنْدَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت عمران بن حصين ﷜ څخه روايت دی چي زه د رسول الله ﷺ سره ناست وم چي

وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَهُ قَوْمٌ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ فَقَالَ اقْبَلُوا الْبُشْرَى يَا بَنِي تَمِيمٍ قَالُوا

د قبيله بنو تميم يو ډله حاضر سول، د هغوئ په ليدو سره رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: اې بنو تميم! زما زيری قبول کړئ، بنو تميم وويل:

بَشَّرْتَنَا فَأَعْطِنَا فَدَخَلَ نَاسٌ مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ فَقَالَ اقْبَلُوا الْبُشْرَى يَا أَهْلَ

تاسو موږ ته (د دين په اړه) زيری راکړ موږ هغه قبول کړ اوس موږ ته يو څه دنيا راکړه، بيا د رسول الله ﷺ په خدمت کي د يمن د خلکو يو ډله حاضره سوه، رسول الله ﷺ وفرمايل: بني

الْيَمَنِ إِذْ لَمْ يَقْبَلْهَا بَنُو تَمِيمٍ قَالُوا قَبِلْنَا جِئْنَاكَ لِنَتَفَقَّهَ فِي الدِّينِ وَلِنَسْأَلَكَ

تميم خو زيری قبول نه کړ اې يمن والاوو! تاسو زما زيری قبول کړئ هغوئ وويل: موږ قبول کړ او موږ ددې لپاره ستاسو په خدمت کي حاضر سوي يو چي ستاسو څخه د دين په اړه معلومات

عَنْ أَوَّلِ هَذَا الْأَمْرِ مَا كَانَ قَالَ كَانَ اللَّهُ وَلَمْ يَكُنْ شَيْءٌ قَبْلَهُ وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى

حاصل کړو او تر ټولو وړاندي موږ ددې خبري پوښتنه کول غواړو چي دا دنيا څنګه پيدا سوه او ددې څخه مخکي ايا يو بل شی موجود نه وو؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: د هر څه نه مخکي الله تعالی وو. د الله تعالی څخه مخکي هيڅ شی موجود نه وو او د الله تعالی عرش

الْمَاءِ ثُمَّ خَلَقَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ وَكَتَبَ فِي الذِّكْرِ كُلَّ شَيْءٍ ثُمَّ أَتَانِي رَجُلٌ فَقَالَ

د اوبو سربيره وو، الله تعالی آسمان او ځمکه پيدا کړل او لوح محفوظ کي يې هر شی وليکی، عمران بن حصين ﷜ وايي، رسول الله ﷺ دا بيان کوی چي يو سړی راغلی او ما ته يې وويل:

يَا عِمْرَانُ أَدْرِكْ نَاقَتَكَ فَقَدْ ذَهَبَتْ فَانْطَلَقْتُ أَطْلُبُهَا وَايْمُ اللَّهِ لَوَدِدْتُ أَنَّهَا قَدْ

ذَهَبَتْ وَلَمْ أَقُمْ. رواه البخاري.

عمرانه! خپل اوښه و لټوه هغه تښتیدلې ده ، زه د هغې په لټه پسي روان سوم او اوس زه په الله ﷻ قسم سره وایم چي کاش زه نه وای ولاړ سوی که څه هم چي زما اوښه تښتیدلې وای. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۴۰۳، رقم: ۷۴۱۸.

**تشريح**: په هغه وخت کي د بنوتمیم کوم خلک چي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوي وه د هغوئ مقصد د رسول الله ﷺ د دین تر لاسه کول او د معرفت پېژندلو څخه زیات دنیاوي طلب او خواهش وو، ځکه رسول الله ﷺ هغوئ ته وفرمایل چي زیری تر لاسه کړئ یعني زما څخه داسي شی تر لاسه کړئ او هغه قبول کړئ چي دجنت د نعمتونو او د دواړو جهانو د سعادتونو د تر لاسه کېدو د زیري سبب وي لکه د دین عقائد او احکام زده کول او مذهبي معلومات تر لاسه کول نو هغوئ جواب راکړ چي ستاسو زیری پر سر سترګو، د دیني عقائدو او احکامو زده کولو او په هغه د پوهېدو اړتیا موږ ته د منلو وړ ده مګر دا وخت زموږ اصل مقصد دنیاوي شیان تر لاسه کول دي اوس زموږ هغه دنیاوي غوښتنه او خواهش پوره کړئ نو هغه خلکو فاني دنیا ارزښتناکه وګڼل او هغه ته یې پر مذهبي تعلیماتو او دیني فهم تر لاسه کولو باندي چي د آخرت د اجر او ثواب د کامیابۍ او سعادت سبب دی، فوقیت ورکړ، ځکه رسول الله ﷺ د هغوئ خبره د هغوئ پر ناوړتیا او په یقین کي د هغوئ پر کمزورۍ محموله کړل، او د غصې په ډول. یې د هغوئ څخه د زیري قبلولو نفي وفرمایل او رسول الله ﷺ د یمن خلکو ته وفرمایل چي د بنو تمیم خلکو زیری تر لاسه نه کړ تاسو خلک هغه زیری تر لاسه کړئ.

د بنو تمیم د خلکو څخه وروسته چي کوم خلک د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول د هغوئ نیت بالکل ریښتونی وو او د هغوئ د راتګ اصلي مقصد پاکه جذبه وه چي د رسول الله ﷺ څخه د دین خبري زده کړي، د رسول الله ﷺ د مجلس څخه خپلي عقیدې او ایمان ته تازګي وبخښي، نه چي هغوئ د دنیا د یو شي تر لاسه کولو د مقصد لپاره راغلي وه، نو هغوئ ته زیری تر لاسه سو ، د طاعت او قبول سعادت د هغوئ په برخه سو ، علم او عمل د هغوئ په برخه سو او هغوئ په خپل مقصد کي کامیاب سول، حال دا چي د بنوتمیم خلک د دنیا په غوښتنه کي ولویدل او د هغه سعادتونو او نعمتونو څخه محروم سول او دهغوئ کم نظرۍ او بې همتۍ هغوئ کښته وغورځول ، ددې څخه معلومه سوه چي مؤمن بنده باید تل د لوړ همت او پاک مقصد والا وي ځکه لوړ همتي او د مقصد پاکي سړی لوی درجې ته رسوي او د دارینو سعادت

یې ور په برخه کوي ، لکه چي د یو بزرګ شیخ ابو العباس رحمة الله علیه په اړه منقول دي چي هغه یوه ورځ د حضرت امیر حمزه رضي الله عنه د قبر د زیارت په اراده د مدینې منورې څخه روان سو ، یو بل سړی هم ورسره ملګری سو ، کله چي د امیر حمزه رضي الله عنه قبر ته ورسېدل نو د معمول خلاف د شیخ ابو العباس رحمة الله علیه لپاره په خاصه توګه د هدیرې دروازه خلاصه کړل سول ، هغه دننه داخل سو او قبر ته ورسېدی، نو وه یې لېدل چي د عالم غیب د ځینو خلکو یوه ډله د هر ډول عیب څخه پاک په خپلو اجسامو سره موجود دي، شیخ د هغه په لېدو سره پوه سو چي دغه وخت د قبلېدو دی ، په دغه وخت کي چي د الله جل جلاله څخه څه وغوښتل سي هغه تر لاسه کیږي، نو هغه د پروردګار څخه په دنیا او آخرت کي د عفو او عافیت دعاء وغوښتل، بیا یې د همدردۍ او شفقت له موخې خپل ملګري ته هم وویل چي اې ملګریه! د الله جل جلاله څخه چي څه غواړې هغه وغواړه ځکه چي دا د دعاء د قبلېدو وخت دی، هغه سړي ډېره بې همتي وښودل او د یوه دینار دعاء یې وغوښتل چي پروردګاره! ما ته یو دینار راکړې، ددې څخه وروسته هغوئ دواړه د هدیرې څخه راووتل او د ستنېدو لپاره مدینې ته روان سول، کله چي دمدینې ښار ته داخل سول نو د مدینې د اوسېدونکو څخه یو سړي دهغه په لاس کي یو دینار کښېښود ، بیا ښار ته په رسېدو سره هغوئ دواړه د مشهور قطب او ولي سید ابو الحسن شاذلي رحمة الله علیه په خدمت کي حاضر سول ، پر حضرت شاذلي رحمة الله علیه باندي د هغوئ دواړو پوره قصه منکشف سول، هغه ډېر په افسوس سره هغه سړي ته وویل: اې بې همته! تا ته د دعاء د قبلېدو وخت په برخه سو او تا د ذلیلي دنیا یو حقیر شي باندي اکتفاء وکړل، تا د ابو العباس په ډول د عفو او عافیت دعاء ولې ونه کړل؟ دا خو هغه نعمت دی که چیري تا ته تر لاسه سوی وای نو دنیا به هم ستا قدمو ته راتللای او ستا عافیت به هم تر لاسه سوی وای .

او یوازي د الله جل جلاله ذات موجود ؤ، یعني څرنګه چي د هغه پاک ذات ابدالابد دی همدارنګه ازل الازل کي هم یوازي د هغه پاک ذات ؤ ، چي هغه د تل څخه موجود دی او د هغه څخه مخکي دهیڅ شي هم وجود نه ؤ ، همدارنګه د هغه لپاره انتهاء او پای نسته او نه دهغه لپاره پیل سته، د هغه ذات او د هغه وجود د تغیر او حدث څخه پاک دی چي د هغه د بندګانو او د هغه دمخلوق خاصه ده ، نو ثابته سوه چي نه مخکي د هغه په ذات کي عدم وو او نه به په راتلوکي کي هیڅکله عدم وي، ځکه چي کوم ذات د تل څخه او د تل لپاره قائم او باقي دی د هغه عدل محال دی.

د الله جل جلاله څخه مخکي دهیڅ شي وجود نه ؤ ، دا د مخکنۍ جملې وضاحت دی، حال دا چي

د الله ﷻ د ذات او صفاتو څخه پرته هر شی حادث دی نو د دغه واجب الوجود څخه مخکي د هيڅ شي د وجود تصور هم نسي کيدای او الله ﷻ د هر شي خالق او موجد دی، ځکه کوم شی چي په وجود کي راغلی دی د هغه څخه وروسته او د هغه د تخليق په قدرت سره په وجود کي راغلی دی،

او د هغه عرش پر اوبو دی...الخ: په دغه جمله کي دې ته اشاره ده چي د عرش او اوبو تخليق د مځکي او آسمان د تخليق څخه مخکي سوي دي او په پيل کي تر عرش لاندي د اوبو څخه پرته د مځکي او آسمان هيڅ شی هم نه وو، نو د عرش پر اوبو باندي د کېدو مطلب دا دی چي د عرش او اوبو په منځ کي هيڅ شی حال نه وو، دا مطلب نه دی چي عرش د اوبو پر سطح قائم وو، او د هغه اوبو څخه مراد هغه اوبه نه دي کوم چي په دريابونو کي موجود دي بلکه تر عرش لاندي هغه اوبه د قدرت او مشيت الهي مظهر نوري اوبه دي، د هغه تفصيلي ذکر د کتاب په پيل کي په باب کي الايمان بالقدر کي تېر سوی دی .

ابن ملک رحمة الله عليه د ذکر سوي جملې په تشريح کي ليکلي دي چي عرش پر اوبو باندي ؤ ، اوبه د هواء پر شا وې او هواء د الله ﷻ په قدرت سره قائمه وه، ځينو حضراتو ليکلي دي چي د عرش او اوبو تخليق د آسمانان او مځکي د تخليق څخه مخکي سوی دی ، بيا الله ﷻ مځکه او آسمان د اوبو څخه پيدا کړل، داسي چي پر اوبو باندي يې خپله تجلي واچول نو هغه په څپو سو او په هغه کي زيات تحريک پيدا سو چي د هغه په سبب په هغه کي ځګ پيدا سو او د هغه ځګ په جمع کېدو سره پر هغه ځای قائم سو، چيري چي خانه کعبه ده ، او همدارنګه د مځکي تر ټولو لومړنۍ ټوټه په عالم وجود کي راغلل او بيا د دغه ټوټې څخه څلورو خواوو ته مځکه خپره سول او د کائناتو تخته ارض قائمه سوه، بيا پر دغه تخته ارض باندي غرونه پيدا کړل سول چي مځکه ونه ښوري او د غرور په زور سره ساکن او جامد وي، او څرنګه چي ځينو حضراتو ويلي دي چي تر ټولو مخکي کوم غر پيدا کړل سو هغه جبل ابوقبيس دی او د هغه اوبو څپې او اضطراب د دود په شکل کي کوم بخارات پورته سول د هغه څخه آسمان پيدا سو .

او په لوح محفوظ کي يې هر شی وليکی: يعني الله ﷻ د مخلوقاتو د پيدائش څخه مخکي د هر شي اړوند په لوح محفوظ کي د هغه هره خبره ليکلې ده، کوم چي هغوئ ته پېښېدونکي ده او د هغه مطابق په دنيا کي ظهور کيږي، پاته سوه دا خبره چي په لوح محفوظ کي د الله ﷻ د ليکلو څخه څه مراد دی. نو کيدای سي چي الله ﷻ په خپل قدرت سره حروف او الفاظ فرمايلي وي چي هغه په لوح محفوظ کي ليکل سوي وي، يا دا چي الله ﷻ، ملائکو ته د

ليکلو حکم کړی وی او د هغوئ د هغه د حکم سره سم هر شی په لوح محفوظ کي ليکلی وي، څرګنده دي وي چي په لوح محفوظ کي د هر شي ليکل د عرش د تخليق څخه هم مخکي سوي دي.

د روايت د آخري الفاظو په ذريعه حضرت عمران ابن حصين رضي الله عنه د خپل افسوس اظهار وکړ چي هغه د اوښي په پلټنه کي په داسي وخت کي د رسول الله ﷺ د مجلس څخه ولاړ سو، حال دا چي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد جاري وو، او هغه د نبي کريم ﷺ وروستنۍ وينا نه واورېدل، نو صورت حال دا سو چي حضرت عمران رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ په مجلس کي حاضر سو او خپله اوښه يې د دروازې دباندي تړلې وه، په دغه وخت کي چي رسول الله ﷺ د يمن خلکو ته د دغه کائناتو د پيل په اړه ښوونه کول نو يو سړی راغلی او حضرت عمران رضي الله عنه ته يې وويل چي ستا اوښه خلاصه سوې ده او وتښتېدل، زر ولاړ سه او هغه ونيسه، نو هغه دې په اورېدو سره ولاړ سو او د خپلي اوښي د نيولو لپاره ولاړی بيا وروسته پښېمانه سو چي زه ولي ولاړم او د رسول الله ﷺ د مجلس، وينا او علومو څخه محروم سوم چي هغه وخت يې بيانول.

## رسول الله ﷺ د اول څخه تر قيامت پوري ټول حالات بيان کړي دي

﴿۵۴۵۵﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ قَامَ فِينَا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقَامًا

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يوه ورځ زموږ په منځ کي ودريدی

فَأَخْبَرَنَا عَنْ بَدْءِ الْخَلْقِ حَتَّى دَخَلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ مَنَازِلَهُمْ وَأَهْلُ النَّارِ مَنَازِلَهُمْ حَفِظَ ذٰلِكَ مَنْ حَفِظَهُ وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ. رواه البخاري

د زېږېدني د پيل څخه يې په جنت او دوږخ کي تر داخليدو پوري ذکر وکړ چا چي د هغه بيان د محفوظ ساتلو کوښښ وکړ هغه محفوظ وساتلو او چا چي کوښښ ونه کړ هغه هير کړ. بخاري

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۲۸٦\٦، رقم: ۳۱۹۲.

**تشريح** مطلب دادی چي رسول الله ﷺ په هغه ورځ په تفصيل سره د پيل ميعاد د اول څخه تر پايه پوري بيان کړ، يعني مخکي رسول الله ﷺ د تخليق کائنات د پيل ذکر وکړ چي الله جل جلاله د دغه دنيا د قائمولو اراده وکړل نو په پيل کي يې څيني شيان جوړ کړل بيا څرنګه يې نظام عالم قائم کړ او دا عالم انسان نوی مخلوق څخه اباد ولو لپاره د حضرت آدم عليه السلام تخليق يې وکړ او د هغه په ذريعه د نسل انساني لړۍ پيل سوه، د کائناتو انساني تهذيبي، اخلاقي او ديني ژوند

نظم قائمولو او درب کائنات د حاکمیت او هدایت ظهور لپاره زموږ نبیان اورسولان دغه دنیا ته راغلل ، دغه قومونو د خپلو نبیانو او رسولانو سره څه وکړل ، کومو خلکو چي د الله ﷻ د رسولانو اطاعت وکړ هغوئ ته څه اجر او انعام ورکړل سو او کومو خلکو چي هغه رسولان درواغجن وګڼل او دهغوئ د خبري منلو څخه یې انکار وکړ هغه څرنګه تباه او برباد سول، او په اخرت کي به د هغه ملتونو او امتونو څه حال وي او بیا په اخر کي رسول الله ﷺ دخپل امت په اړه وفرمایل چي د الله ﷻ د اخري دین ، اسلام منونکي یعني د مسلمانانو په ملي ژوند کي به څه انقلاب راځي هغوئ به د کوم کوم حال سره مخامخ کیږي، کومي نیکی به دهغوئ امتیاز ګرځي او کومي بدی به د هغوئ دیني او دنیاوي ژوند خرابوي، بیا په آخرت کي ددغه امت محمدیه سره به څه کیږي کوم ډول خلک به جنت ته او کوم ډول خلک به دوږخ ته سپارل کیږي.

چا چي دغه خبري یاد کړې.....الخ: ددې څخه دحضرت عمر رضی الله عنه مطلب دا وو چي رسول الله ﷺ هغه خبري په کوم تفصیل سره بیان کړلې هغه خلکو یاد وساتلې چا چي د یاد ساتلو هڅه وکړل او هغوئ ته الله ﷻ د یادولو توفیق ورکړ او هغه خلکو هیري کړې چا چي د یاد ساتلو هڅه ونه کړل ، خلاصه دا چي ځینو خلکو ته هغه خبري پوره یاد وې او ځینو هېري کړې.

## د الله ﷻ رحمت د هغه پر غضب مخته والی وړی دی

﴿۵۴۵۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ كِتَابًا قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ الْخَلْقَ إِنَّ رَحْمَتِي سَبَقَتْ غَضَبِي فَهُوَ مَكْتُوبٌ عِنْدَهُ فَوْقَ الْعَرْشِ . متفق عليه.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي فرمایل یې: د مخلوق د پیداکیدو څخه مخکي الله تعالی یو کتاب ولیکی په هغه کي یې دا الفاظ ولیکل: زما رحمت زما پر غضب مخته سو (یعني غالب سو) نو دا الفاظ دالله تعالی سره پر عرش لیکلي دي. بخاري او مسلم.

**تخریج** صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۳\ ۵۲۲، رقم: ۷۵۵۴، ومسلم ۴\ ۲۱۰۷، رقم: ۱۴– ۲۷۵۱.

**تشریح** د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چي هغه کتاب د ټولو خلائقو څخه پټ اېښودل سوی دی چي په هغه کي لیکل سوي شیان د الله ﷻ داسي رازونه دي چي هیچا ته څرګند سوي

نه دي او نه د چا علم او فهم ددې ور گرځېدلی دی چي په هغه کتاب کي په لیکل سوو خبرو باندي پوه سي.

توربشتي رحمة الله علیه لیکلي دي: کیدای سي چي د هغه کتاب څخه مراد لوح محفوظ وي او د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد (فهو مکتوب عنده) معنی دا وي چي ذکر سوی عبارت په لوح محفوظ کي لیکل سوی وي او دا هم کېدای سي چي د کتاب څخه مراد لوح محفوظ نه وي بلکه قضاء یعني الهي فیصله وي چي الله جل جلاله جاري کړې ده، په هر حال په دواړو صورتو کي د رسول الله ﷺ په دغه ارشاد (عنده فوق العرش) کي دا خبرتیا ده چي هغه کتاب ولیکل سو او د ټول مخلوق د ادراک څخه پټ ابنبودل سوی دی او د هغه لیکني ته د هیچا فهم نه سي رسېدای.

د الله جل جلاله د رحمت پر غضب باندي د سبقت معنی داده چي د رحمت آثار او مظاهر ډېر زیات دي، مؤمن، کافر، متقي او گناه کار ټول د الله جل جلاله د رحمت تر سایه لاندي وي حال دا چي د هغه غضب ډېر کم څرگندیږي او کله نا کله یو څوک د هغه مورد گرځي، په قرآن کریم کي الله جل جلاله فرمایي:

عَذَابِي أُصِيبُ بِهِ مَنْ أَشَاءُ وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ .

ژباړه: زه په خپل عذاب کي هغه کسان اخته کوم، چا ته چي وغواړم، مگر زما رحمت هر شی په خپل رحمت کي اخیستی دی.

## ملائکي، جنات او د انسان تخلیق

﴿۵۴۵۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خُلِقَتْ الْمَلَائِكَةُ مِنْ نُورٍ وَخُلِقَ الْجَانُّ مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ وَخُلِقَ آدَمُ مِمَّا وُصِفَ لَكُمْ . رواه مسلم.

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ملائکي د نور څخه پیدا کړل سوي او پیریان د اور د شغلو څخه پیدا کړل سوي دي، او آدم علیه السلام د هغه شي څخه پیدا کړل سوی دی چي تاسو ته یې بیان سوی دی چي د هغه ذکر په قرآن کریم کي ستاسو په وړاندي موجود دی (یعني خلقه من تراب)..(آدم علیه السلام یې د خاورو څخه پیدا کړ). مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱۴\ ۲۲۹۴، رقم: ۶۰ - ۲۹۹۶.

**د لغاتو حل**:مارج: اي لهب مختلط بسواد دخان النار.

**تشريح**: په قاموس کي ليکلي دي چي د نور معنی يا خو د ځلا ده يا د ځلا څخه د وتونکو شعاعو ده، په هر حال دلته په حديث کي دنور څخه مراد اصل رڼا يعني هغه جوهر دی چي د هغه څخه رڼا په وجود کي راځي نو د ملائکو تخليق ددغه جوهر څخه سوی دی.

د جان معنی يا خو د پيريانو ده يا دديږ څخه مراد د پيريانو هغه اصل يعني دهغوئ پلار دی چي دهغه څخه د پيريانو نسل خپور سوی دی لکه څرنګه چي د انسان پلار حضرت آدم عليه السلام دی.

چي تاسو ته ښودل سوي دي، دديږ څخه د قرآن کريم دغه الفاظو (وخلقه من تراب) او آدم عليه السلام يې د خاورو څخه پيدا کړ، ته اشاره ده، مطلب دا چي انسان د خاورو څخه پيدا سوی دی.

په ځينو روايتو کي د نورو شيانو د جوهر تخليق ذکر هم سوی دی لکه ابن عساکر د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه مرفوع روايت نقل کړی دی چي خرما، انار او انګور د آدم عليه السلام د خاورو د پالتو موادو څخه پيدا سوي دي، طبراني رحمة الله عليه د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه مرفوع روايت نقل کړی دی چي حورعين د زعفران څخه پيدا کړل سوي دي.

**پيريان او د انسان درې تخليقي اقسام**: حکيم ابن ابي الدنيا ابوالشيخ او ابن مردويه رضي الله عنه د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه دا روايت نقل کړی دی چي الله جل جلاله پيريان درې ډوله پيدا کړي دي، دهغوئ يو ډول هغه دی چي هغه ته د مار، لړم او حشراتو صورت ورکړل سوی دی، دوهم ډول هغه دی چي په فضاء کي د هواء په ډول دي، او دريم ډول پيريان هغه دي چي د انسان په ډول د خير او شر مکلف ګرځول سوي دي، اود هغوئ سره به حساب او مؤاخذه کيږي، همدارنګه الله جل جلاله انسان هم درې ډوله پيدا کړی دی، يو ډول هغه دی چي د حيوان په ډول وي، دوهم ډول انسان هغه دی چي بدن او شکل يې د انسانانو په ډول وي مګر ارواح يې د شيطانانو ارواح وي، دريم ډول انسان هغه دی چي دهغوئ بدن او روح دواړه د انسانيت په صورت کي وي چي د قيامت په ورځ به د پروردګار د رحمت په سايه کي وي.

## د ادم عليه السلام په اړه د شيطان خيال

﴿۵۴۵۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا صَوَّرَ اللّٰهُ آدَمَ فِي الْجَنَّةِ تَرَكَهُ مَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ يَتْرُكَهُ فَجَعَلَ إِبْلِيسُ يُطِيفُ بِهِ يَنْظُرُ مَا هُوَ فَلَمَّا رَآهُ أَجْوَفَ عَرَفَ أَنَّهُ خُلِقَ خَلْقًا لَا يَتَمَالَكُ. رواه مسلم

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي الله تعالی د آدم ؈ شکل تيار کړ نو تر څو پوري چي يې غوښتل هغه يې په جنت کي وساتی ، په دغه دوران کي به شيطان د آدم ؈ د تابوت څخه چاپيره ګرځيدی کتل به يې او ويل به يې چي دا څه شي دی ، بيا چي هغه وليدل چي دا دننه خالي دی نو خيال يې وکړ چي دا يو بې وسه مخلوق دی. مسلم

**تخريج** : صحيح مسلم: ۴\۲۰۱۶ ، رقم: ۱۱۱- ۲۶۱۱.

**تشريح**: ددغه حديث د الفاظو څخه ثرګنديږي چي د حضرت آدم ؈ د شکل او صورت تخليق په جنت کي سوی دی ، حال دا چي نور روايات پر دې دلالت کوي چي دهغه تخليق او هغه ته صورت ورکول د عرفات د ميدان په نعمان شپله کي سوی دی ، هلته دهغه شکل ته د آخري صورت په ورکولو سره او په هغه کي په روح پوکلو سره هغه جنت ته بوتلل سو ، نو په حديث کي د في الجنة الفاظ چي د هغه څخه د هغه تخليق په جنت کي مفهوم کيږي، دا په اصل کي د هغه د لومړني تخليق د اظهار لپاره نه دی بلکه د تخليق څخه وروسته حال ذکر کولو لپاره دی، په دې اعتبار د حديث معنی به دا وي چي کله الله ﷻ د هغه په تخليق کولو سره او د هغه په صورت کي په روح پوکلو سره هغه په جنت کي وساتی نو ابليس د هغه د صورت د مسافت او حقيقت پلټنه وکړل او کله چي هغه وليدل چي دغه صورت خالي دی او د دننه څخه د هغه نس خالي دی نو هغه پوه سو چي دغه انسان د خپل بدني جوړښت په اعتبار ټينګ نه دی ځکه چي کوم شی په دننه کي خالي وي او د هغه ټول اندامونه د يو بل سره داسي ټينګ نه وي چي دهغو په منځ کي خلاء نه وي نو هغه ته پوره توګه ثبات او قرار نه تر لاسه کيږي، نو هغه دا نتيجه واخيستل چي کله ددغه صورت بدني جوړښت داسي دی چي نو لامحاله دده طبع او دده مزاج او دده دننه احوالو ته به هم ثبات او قرار نه وي، او ددغه لويدلي طبع په وجه ځان په خپلو معاملاتو کي په پريشانه کېدو او په خپلو حالاتو کي د غير مستحکم کيدو څخه ساتل کيدای نه سي، او پر خپل ځان به واک ونه درلودلای سي، دمثال په توګه د غصې په وخت کي به بې اختياره کيږي او پر طبعي خواهشاتو باندي به بنديز ونه کړلای سي چي د لوږي او تندي دفع کولو، د جنسي تسکين تر لاسه کولو او د خپلو غوښتنو لپاره به د جائز او ناجائز په منځ کي فرق نه کوي، نو ابليس خوشحاله سو او هغه اميد وکړ چي کوم مخلوق د خپل بدني جوړښت او طبعي لوېدو په وجه د آفاتو مورد کيدای سي نو د هغه ګمراه کول به مشکل نه وي .

## د ابراهيم عليه السلام ختنه

﴿۵۴۵۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخْتَتَنَ إِبْرَاهِيمُ النبي وَهُوَ ابْنُ ثَمَانِينَ سَنَةً بِالْقَدُّومِ. متفق عليه

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: حضرت ابراهيم عليه السلام د اتيا كالو په عمر كي ځان سنت كړ، يا دا چي ابراهيم عليه السلام په مقام قدوم كي د اتيا كالو په عمر كي ځان سنت كړ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۶\۳۸۸، رقم: ۳۳۵۶، ومسلم ۱۴\۱۸۳۹، رقم: ۱۵۱- ۲۳۷۰.

**تشريح**: امام نووي رحمة الله عليه د دغه حديث په تشريح كي ليكلي دي چي د قدوم د دال په حركت كي اختلاف دى، كه چيري د دال په تخفيف سره وويل سي نو معنى به يې د تيشې وي او د حديث مطلب به دا وي چي حضرت ابراهيم عليه السلام خپل ځان په تېشه سره سنت كړ، او هغه وخت يې عمر د اتيا كاله وو، او كه دغه لفظ د دال په تشديد سره وويل سي نو د دې څخه مراد به د شام هيواد يو كلى وي چي د هغه نوم قدوم وو، د دغه كلي نوم (قدوم) د دال په تفيف سره هم نقل سوى دى، په دغه صورت كي به مطلب دا وي چي حضرت ابراهيم عليه السلام د اتيا كالو په عمر كي خپل ځان سنت كړ او هغه وخت د شام هيواد د قدوم په كلي كي وو، خلاصه دا چي په كوم روايت كي دغه لفظ د دال په تشديد سره نقل سوى دى په هغه كي د قدوم څخه ذكر سوى كلى مراد دى او په كوم روايت كي چي د دال په تخفيف سره منقول دى په هغه كي تيشه او ذكر سوى كلى دواړه كيداى سي چي د دغه لفظ څخه تېشه هم مراد كيداى سي او ذكر سوى كلى هم.

## د ابراهيم عليه السلام درې درواغ

﴿۵۴۶۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكْذِبْ إِبْرَاهِيمُ إِلَّا

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ابراهيم عليه السلام يوازي درې

ثَلَاثًا إِلَّا ثَلَاثَ كَذَبَاتٍ ثِنْتَيْنِ مِنْهُنَّ فِي ذَاتِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ قَوْلُهُ إِنِّي سَقِيمٌ وَقَوْلُهُ

واره دروغ ويلي دي دوه واره درواغ يې د الله جل جلاله لپاره ويلي دي (يعني د الله تعالى د رضا تر لاسه كولو او د هغه د حكم پر ځاى راوړلو لپاره) او يو واريې دا وويل چي زه ناروغه يم (او دا هغه وخت كله چي د هغه قوم خپل په اختر كي د هغه شريكولو لپاره بيول غوښتل چي هلته د

بتانو عبادت کیدی او هغه تلل نه غوښتل، په دې سبب هغه وویل چې زه ناروغه یم)، او بل دا

بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَذَا وَقَالَ بَيْنَا هُوَ ذَاتَ يَوْمٍ وَسَارَةُ إِذْ أَتَى عَلَى جَبَّارٍ مِنْ

قول دده چې دا کار غټ بت کړی دی (او دا هغه وخت چې د کفارو په نه شتون کې هغه د هغوئ بتان مات کړي وه کله چې کافرانو پوښتنه ځیني وکړه اې ابراهیمه! دا کار تا کړی دی؟ نو هغه وویل ما نه دی کړی دغه غټ بت دا کار کړی دی او رسول الله ﷺ د دریم قول په اړه دا وفرمایل چې یوه ورځ ابراهیم علیه السلام د خپل کوروالا (بي بي ساره) سره د شام په لور تلی چې د یو ظالم پاچا

الْجَبَابِرَةِ فَقِيلَ لَهُ إِنَّ هَا هُنَا رَجُلًا مَعَهُ امْرَأَةٌ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ

پر ښار تیریدل هغه ظالم پاچا ته خبر ورغلی چې دغه یو سړی راغلی دی او د هغه ډیره ښکلې ښځه ده هغه یو سړی ولیږی

فَسَأَلَهُ عَنْهَا فَقَالَ مَنْ هَذِهِ قَالَ أُخْتِي فَأَتَى سَارَةَ فقال لها ان هذا الجبار ان

د ابراهیم علیه السلام څخه یې پوښتنه وکړه چې ستا سره دا ښځه څوک ده؟ ابراهیم علیه السلام ورته وویل: دا زما خور ده، نو ددې څخه وروسته ابراهیم علیه السلام راغلی بي بي سارې ته یې وویل: که د دغه ښار ظالم حاکم پوه سو چې

يعلم انك امراتي يغلبني عليك فان سالك فاخبريه انك اختي فانك اختي في

ته زما ښځه یې نو تا به زما څخه په زور واخلي که هغه در څخه پوښتنه وکړي نو داسې ورته ووایه چې ته زما خور یې، بېشکه چې ته په حقیقت کې زما دیني خور یې

الاسلام لَيْسَ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ مُؤْمِنٌ غَيْرِي وَغَيْرَكِ فارسل اليها فاتي بها قام

په دغه وخت کې بغیر له ما او تا څخه د دنیا پر مخ بل څوک مؤمن نه سته، بیا هغه ظالم حاکم بي بي ساره وغوښتل او هغه ته ورسیدل دلته ابراهیم علیه السلام پر لمانځه ودریدی،

ابراهيم يصلي فَلَمَّا دَخَلَتْ عَلَيْهِ ذَهَبَ يَتَنَاوَلُهَا بِيَدِهِ فَأُخِذَ ويروي فغط حتى

کله چې بي بي ساره هغه ظالم حاکم ته مخامخ سوه نو هغه لاس وراچول غوښتل چې هغه ظالم ونیول سو (یعني الله تعالی هغه منع کړ) یا هغه یې بې ساه او بې حرکته کړ یا غاړه یې ور خفه

رکض برجله فَقَالَ ادْعِي اللَّهَ لِي وَلَا أَضُرُّكِ فَدَعَتْ اللَّهَ فَأُطْلِقَ ثُمَّ تَنَاوَلَهَا

کړه چي ساه يې بنده سوه او پر مځکه يې لغتي وهلې، بيا هغه ظالم پاچا بي بي ساري ته وويل: د الله ﷻ څخه زما لپاره دعاء وغواړه (چي ما د دغه تکليف څخه خلاص کړي) زه به تا ته تاوان نه رسوم، نو بي بي ساري دعاء وکړه او د هغه ظالم حاکم څخه تکليف ليري کړل سو، هغه بيا

الثَّانِيَةَ فَأُخِذَ مِثْلَهَا أَوْ أَشَدَّ فَقَالَ ادْعِي اللَّهَ لِي وَلَا أَضُرُّكِ فَدَعَتْ الله فَأُطْلِقَ

دغه حرکت وکړ او په خراب نيت سره يې بي بي ساري ته لاس ور وړاندي کړ نو بيا هغسي ونيول سو بلکه د مخکي څخه زيات سخت ونيول سو هغه بيا هغسي وويل چي د الله ﷻ څخه زما د خلاصون لپاره دعاء وکړه زه به تا ته ضرر در ونه رسوم،

فَدَعَا بَعْضَ حَجَبَتِهِ فَقَالَ إِنَّكَ لَمْ تَأْتِنِي بِإِنْسَانٍ إِنَّمَا أَتَيْتَنِي بِشَيْطَانٍ فَأَخْدَمَهَا

نو بي بي ساره بيا دعاء وکړه او هغه ښه سو بيا هغه ظالم په خپلو درباريانو کي يو څوک راغوښتل ورته وه يې ويل تا ما ته انسان نه دی راوستلی بلکه يو شيطان دي راوستلی دی بيا

هَاجَرَ فَأَتَتْهُ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي فَأَوْمَأَ بِيَدِهِ مَهيم قَالَتْ رَدَّ اللَّهُ كَيْدَ الْكَافِرِ فِي

هغه ظالم حاکم د بي بي ساره د خدمت لپاره يوه مينځه (هاجره) راوليږل او هغه (يعني بي بي ساره) يې واستول، ساره بي بي چي راغلل نو ابراهيم عليه السلام يې پر لمانځه کولو وليدی، ابراهيم عليه السلام په لمانځه کي په لاس سره اشاره وکړه چي څه حال دی ستا؟ ، بي بي ساره ورته وويل الله تعالی د هغه کافر مکر او فريب هم د هغه په غاړه کي واچوی

نَحْرِهِ وَأَخْدَمَ هَاجَرَ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ تِلْكَ أُمُّكُمْ يَا بَنِي مَاءِ السَّمَاءِ. متفق عليه.

او هغه د خدمت لپاره هاجره هم راکړه، ابوهريره رضي الله عنه وايي اې د آسمان د اوبو زامنو! دا ستاسو مور ده. (د آسمان د اوبو څخه مراد پاک نسب دی). بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۴ /۴۱۰، رقم: ۲۲۱۷. ومسلم ۱۴ /۱۸۴۰، رقم: ۱۵۴– ۲۳۷۱.

**د لغاتو حل**: فغُط: اي خنق (خفه يې کړ).

**تشريح** حضرت ابراهيم عليه السلام هيڅکله دروغ نه وه ويلي پرته له درو دروغو څخه، په دې اړه بايد په ذهن کي وي چي ټول انبياء معصوم دي، د هغوئ څخه هيڅ ګناه نه سي کېدای که څه هم

هغه دروا غ وي يا بله ګناه، د حديث د ذكر سوي جملې دا مراد نه دی چي حضرت ابراهيم علیه السلام په خپل ژوند كي د درواغو ګناه درې واره كړې ده بلكه هغه ته د درواغ ويلو نسبت د هغه د ذات په اعتبار نه دي بلكه د اورېدونكو په اعتبار دي، مطلب دا چي د حضرت ابراهيم علیه السلام هغه درې خبري د درواغو په صورت كي وې مګر په حقيقت كي درواغ نه دي، نه په دې اعتبار هغه خبري په درواغو كي شمېرل كيږي او نه په دې اعتبار چي حضرت ابراهيم علیه السلام د دغه خبرو په ذريعه د غلط ويني او درواغو اراده كړې وه، دا خبره په ښه انداز كي داسي ده چي دلته د كذب څخه مراد دادي چي داسي كلام چي د صحيح او پاک مقصد لپاره ويل سوی وي مګر مخاطب د هغه په مطلب پوه نه سي كوم چي د متكلم مراد وي بلكه هغه الفاظ د خپل ذهني مراد مطابق وګڼي، دغه د كلام انداز او د فصيحانو په نزد اكثر رائج دی، دلته په دې اړه يادونه كول هم اړين دي چي دلته په حديث كي د حضرت ابراهيم علیه السلام سره اړوند يوازي د درو خبرو ذكر دی چي (هذا ربي) دغه زما رب دی، او ددې نه يادولو وجه داده چي حضرت ابراهيم علیه السلام دغه خبره د وړكتوب په وخت كي كړې وه هغه وخت به هغه د يو امر مكلف نه وو ځكه د دغه ځلورمي خبري هيڅ اعتبار نسته.

په هغه درو خبرو كي يوه دا وه چي ده ويلي وه: نن زه ناروغ يم، په دې اړه تفصيل دادی چي كله حضرت ابراهيم عليه السلام خپل پلار آزر او د خپل قوم خلكو ته په هر ډول د بت پرستۍ خرابي بيان كړل او د هغه څخه يې د منع كولو هڅه وكړل او هر ډول نصيحت يې ورته وكړ چي دغه بتان هيڅ ګټه رسولای نه سي او نه تاوان رسولای سي، د آزر او د هغه د قوم په زړو كي هيڅ اثر ونه وسو، نو هغه دا تدبير وكړ چي اوس ما ته د هدايت داسي لار اختيارول پكار دي چي په هغه سره دغه خلک خپله وويني چي موږ د لرګي او ډبرو د بتانو عبادت كوو، او هغه زموږ لپاره هيڅ ډول ګټور او تاواني نه دي او نه د هغوئ له لوري موږ ته غم او ګټه رسېدای سي، نو يو وار د قوم يوه مذهبي مېله وه او ټول خلک په هغه كي د ګډون لپاره ولاړل، ځينو خلكو حضرت ابراهيم رحمة الله عليه ته ټينګار وكړ چي هغه هم د ميلې لپاره ولاړ سي مګر ابراهيم علیه السلام په دې انتظار كي وو چي ټول خلک ولاړ سي نو د هغه د ټولو بتانو په ماتولو سره خپلي ارادې ته عملي بڼه وركړي، نو موړي د خلكو سره د تګ انكار وكړ مګر كله چي هغوئ ډېر ټينګار وكړ نو ابراهيم علیه السلام وويل: (اني سقيم) زه ناروغ يم، د هغه دغه خبره په ظاهره درواغ معلوميږي ځكه چي هغه په حقيقت كي ناروغ نه وو بلكه د هغوئ سره د نه تللو لپاره يې د ناروغۍ بهانه وكړل، ددې تاويل علماؤ دا كړی دی چي په (اني سقيم) كي د حضرت ابراهيم علیه السلام مراد دا وو چي د هر

انسان په ډول زما سره هم ناروغي ده او وخت پر وخت ناروغ کیږم ، نو هغه داسي مبهمه خبره وکړه چي د هغه د ظاهري اسلوب څخه دا مفهوم واخیستل سو چي زه ناروغ یم ، ستا سو سره څرنګه ولاړ سم، مګر په حقیقت کي د هغه مراد برعکس وو ،

ځینو حضراتو لیکلي دي چي د حضرت ابراهیم علیه السلام قوم ته د ستورو د بندګۍ په وجه په علم نجوم کي کمال او اعتقاد وو ځکه حضرت ابراهیم علیه السلام په یو خاص انداز سره د ذکر سوي خبري په کولو سره د هغه خیال ستورو ته متوجه کړی وو ، نو د قوم خلکو د خپلي عقیدې د لحاظ څخه دا وګڼل چي ابراهیم علیه السلام د یو ستوري په بد اثر کي اخته دی او هغه د علم نجوم په ذریعه معلومه کړې ده چي هغه ژر ناروغ کېدونکی دی، ددغه تاویل قرینه د قرآن کریم ددغه آیت سباق دی چي په هغه کي ددغه پېښي ذکر دي، یو قول دا هم دی چي حضرت ابراهیم علیه السلام د دغه جملې (اني سقیم) څخه خپل بدني ناروغي مراد نه وه بلکه د زړه ناروغي یې مراد اخیستې وه چي ستاسو کفر او سرکښۍ زه زهیر کړی یم، او زما د زړه حالت ناروغ دی، په داسي حال کي ستاسو سره زما د تللو سوال هم نه پیدا کیږي.

د حضرت ابراهیم علیه السلام دوهمه وینا داوه چي دغه کار لوی بت کړی دی، د حضرت ابراهیم علیه السلام ددغه خبري تعلق هم د ذکر سوي پېښي سره دی، کله چي دهغه قوم ټول خلک میلې ته ولاړل او ښار خالي سو نو هغه راولاړ سو او تر ټولو لوی بت خانې ته ورسېدی نو وه یې لېدل چي هلته د بتانو په وړاندي ډول ډول حلواوي، میوې او نور شیان پراته دي، حضرت ابراهیم علیه السلام په طنزیه لهجه سره هغه بتانو ته په خطاب کولو سره وویل: هر څه موجود دي نو تاسو یې ولي نه خورئ، بیا یې وویل: زه تاسو ته مخاطب یم . څه خبره ده چي تاسو جواب نه راکوئ؟ له دې وروسته یې ټول بتان مات کړل او د لوی بت په اوږه کي یې تبر کښېښود او ځیني ولاړی، کله چي د قوم خلک د میلې څخه راغلل او په بت خانه کي یې خپل بتان په خراب حالت کي ولیدل چي د چا سره مات دی ، د چا پښې ماتي دي او د چا نس دړي وړي دي، نو قوم د ډېري غصې څخه د یو بل څخه پوښتنه وکړل چي دا چا کړي دي، ځینو خلکو وویل: دا خامخا د ابراهیم علیه السلام کار دی، دا هغه سړی دی چي زموږ بتانو ته بد وایي او په دغه ښار کي د هغه څخه پرته بل هیڅوک موجود نه وو، نو د قوم د مشرانو په وړاندي حضرت ابراهیم علیه السلام راوستل سو او د ټولو خلکو په مخکي د هغه څخه پوښتنه وسول چي ابراهیم! (علیه السلام) تا زموږ په خدایانو څه کړي دي،

حضرت ابراهیم علیه السلام وویل: (بل فعله کبیرهم)، بلکه دا کار تر ټولو لوی بت کړی دی، نو دحضرت ابراهیم علیه السلام دغه جواب هم د پېښي خلاف وو ، مګر په حقیقت کي د هغه دغه جواب په

دروا غو سره نه تعبیر کیږي ځکه چي د هغه اصل مقصد د خپل گمراه قوم خبردار کول او د هغوئ لاجوابه کول وو چي د هغوئ غلطي عقیدې څرګنده سي، نو دخپل مقابل کس د هغه په غلطۍ خبرول او دهغه پر صحیح لار راوستلو لپاره یوه غوره طریقه دا هم وه که د هغه سره د مناظرې او خیالاتو د تبادلې موقع راسي نو د مسلمانانو څخه یو مسلمه عقیده صحیح فرض کولو سره داسي د هغه استعمال وکړي چي د هغه نتیجه د مقابل خلاف او خپل موافق سي، حضرت ابراهیم علیه السلام د ذکر سوي پېښي دا طریقه اختیار کړل، د هغه قوم د الله ﷻ واحد څخه پرته د بې شمېره بتانو عبادت کوی او د هغه خلکو عقیده وه چي دغه بتان هر څه اوري او هر څهویني او زموږ مرادونه پوره کوي او د خپلو منونکو څخه خوشحاله کیږي، او دخپلو دښمنانو څخه بدله اخلي، حضرت ابراهیم علیه السلام د خپل قوم خلکو ته ددغه بدي عقیدې عملا ظاهرولو لپاره د هغوئ بتان مات کړل او لوی بت یې پرېښود، بیا کله چي پو ښتنه وسول نو هغه د مناظرې هغه غوره طریقه اختیار کړل چي د هغه مخکي ذکر وسو، نتیجه دا سوه چي د هغه پر قوم باندي دا خبره په پوره توګه څرګنده سوه چي کوم بت خپل ځان د ماتولو څخه نه سي ژغورلای او د خپل دښمن مقابله نه سي کولای هغه بل چا ته څه ګټه او تاوان رسولای سي، او د عبادت قابل څرنګه کیدایسي، ځینو حضراتو د حضرت ابراهیم علیه السلام د ذکر سوي جواب یو بل تاویل کړی دی، هغوئ وایي چي: دا چي حضرت ابراهیم علیه السلام وویل: (بل فعله کبیرهم) نو د کبیرهم څخه د هغه مراد د الله ﷻ ذت وو، یعني ددغه جملې مطلب دا وو چي په دغه بتانو څه سوي دي هغه د الله ﷻ له خوا سوي دي چي تر ټولو لوی دی، او دهغه په وړاندي د هیڅا خبره نه چلیږي.

اوس دریم دروا غ ته راځو، حضرت ابراهیم علیه السلام د بي بي ساره رضي الله عنها په اړه وویل چي دا زما خور ده، دا خبره په ظاهره د حقیقت خلاف معلومیږي چي هغه خپلي ښځي ته خپل خور وویل، مګر که چیري دا خبره د حضرت ابراهیم علیه السلام د اصل مراد په سباق کي وکتل سي نو د هغه دغه قول چي دا زما خور ده، د حقیقت خلاف نه ده ځکه چي حضرت ابراهیم علیه السلام او بي بي ساره رضي الله عنها د اسلام د دین د پیرو کېدو په حیثیت سره دیني ورور او خور دي، ځکه چي په قرآن کریم کي الله ﷻ فرمایي: انما المؤمنون اخوة، ټول مؤمنان یو د بل سره وروڼه دي، او څرګنده ده چي د ښځي د قرابت قائمېدو سره د دیني ورورګلوۍ قرابت نه منقطع کیږي، ددې څخه پرته بي بي ساره رضي الله عنها د حضرت ابراهیم علیه السلام د اکا حاران لور وه او په دې اعتبار هغې ته خور وویل، داسي خبره هیڅکله نه ده چي پر هغه د حقیقي دروا غو اطلاق وکړل سي.

د حضرت ابراهیم علیه السلام، بي بي ساره رضي الله عنها ته دا ویل چي په مځکه کي زما او ستا څخه پرته بل

څوک مؤمن نسته، دا د صورت حال صحیح بیان وو ځکه چي هغه وخت هیڅا پر حضرت ابراهیم علیه السلام ایمان نه وو راوړی او په هغه ښار کي د دوئ دواړو څخه پرته بل څوک مسلمان نه وو، نو دلته دا سوال نه پیدا کیږي چي حضرت ابراهیم علیه السلام پر مځکه باندي یوازي د دوو مؤمنانو د موجود کېدو خبره څرنګه وکړه؟ یو دریم مؤمن حضرت لوط علیه السلام هم وو لکه چي په قرآن کریم کي دي: (فامن له لوط) نو لوط علیه السلام د ابراهیم علیه السلام پر دین ایمان راوړ.

دغه سوال په هغه صورت کي پیدا کیدای سو که د حضرت ابراهیم علیه السلام د جملې مراد دا وي چي په ټوله دنیا کي زموږ دواړو څخه پرته بل څوک مؤمن نسته یا دا چي هغه وخت حضرت لوط علیه السلام د دوئ دواړو سره په هغه کي وای.

شیخ عبدالحق رحمة الله علیه د ذکر سوي جملې په تشریح کي لیکلي دي چي حضرت ابراهیم علیه السلام په دغه وخت کي د اسلام د ورورګلوی قرابت یوازي خپل ځان او د بي بي ساره رضي الله عنها ذات پوري محدود کړ نو کیدای سي ددې بنیاد د دین اسلام هغه نسبت وي چي هغوئ ته اصالتا حاصل وو او د هغوئ د تعلق هغه خاص شرف وو چي بي بي ساره رضي الله عنها ته حاصل وو ، حضرت شیخ رحمة الله علیه د دغه جملې لاندي یو بل سوال او د هغه جواب نقل کړی دی چي خلاصه یې داده :

دا سوال پیدا کیږي چي حضرت ابراهیم علیه السلام د هغه جابر حاکم په وړاندي په څرګنده دا ولي ونه ویل چي دا زما ښځه ده، حضرت ابراهیم علیه السلام چي په کوم مقصد بي بي ساره رضي الله عنها ته په خور ویلو سره تر لاسه کول غوښتل ، هغه مقصد د هغه د ښځي په ښودلو سره هم تر لاسه سو ځکه د پخوانیو زمانو د بدو خلکو هم یو اصل وو چي هغوئ به د هغه څخه ښځه په زور اخیستل کم کول، دوهم دا که هغه جابر حاکم که دومره ظالم وای نو هغه ته ددې خبري سره څه کار وو چي یوه ښځه د یو چا خور وي یا ښځه؟ ددې جواب دادی چي د هغه جابر حاکم یو خاص عادت وو چي هغه به د چا څخه خور په زور نه اخیستل، ددې څخه پرته هغه حاکم د مذهب په اعتبار آتش پرست وو او په آتش پرستو کي د خور او ورور د قرابت یو خاص ارزښت وو، تر دې چي لوی اتش پرست به هم پر خور بد نظر نه سو کولای او د خپل دغه مذهبي اصولو احترام به یې کاوه چي کومه خور د خپل ورور په تولیت او کفالت کي وه یا کومه ښځه چي یو سړي خپله خور ګرځولې وه هغه په هر لحاظ خوندي او مامون ده، او د هغه د ورور د هغه په اړه ټول حق او اختیار درلودی، نو حضرت ابراهیم علیه السلام وغوښتل چي د هغه د دین مرسته واخلي او بي بي ساره رضي الله عنها د هغه ظالم د منګولو څخه د ساتني لپاره داسي خبره وکړي چي بالکل د حقیقت خلاف هم نه وي او هغه ظالم هم د خپلي خرابي ارادې څخه منع سي ،

دا ښیله خبره ده چې پر هغه ظالم باندې د شیطات گرفت دومره سخت وو چې هغه نه خو د خپل دین د اصولو احترام وکړ او نه د خپلو خلکو د روایت او عادت لحاظ یې وکړ د بي بي سارې ﷺ د خپل هوس گرځولو هڅه یې وکړه.

حضرت ابراهیم ﷺ د لمانځه کولو لپاره ودرېدی یعني هغه بي بي ساره ﷺ هغه حاکم ته په لېږلو سره خپل لمونځ کوی او د الله ﷻ په دربار کي د عرض او مناجات کولو لپاره ودرېدی چي خپل پروردگار ته التجاء وکړي او د هغه قدرت کامله د بي بي ساره ﷺ عزت وساتي او هغې ته د دغه سختي پرېشانۍ څخه خلاصون ورکړي، او د الله ﷻ د مقربو بندگانو دا عادت دی چي کله هغوئ ته یو پرېشاني ورسېږي او هغوئ په غم او مصیبت کي اخته سي نو لمونځ کول پیل کړي او د هغوئ دغه عمل د قرآن کریم د دغه آیت په سبب وي :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اسْتَعِينُواْ بِالصَّبْرِ وَالصَّلاَةِ .

ژباړه: اې مؤمنانو ! د صبر او لمانځه په ذریعه د الله ﷻ څخه مرسته وغواړئ.

د رسول الله ﷺ هم دا عادت وو لکه چي په یو حدیث کي راغلي دي: اذا جزبه امر صلی، کله چي به یو ستونزه رامنځته سوه نو رسول الله ﷺ به لمونځ کول پیل کړ.

په (ذهب یتناولها بیده فاخذ) کي د اخذ لفظ په تخفیف سره مجهول صیغه ده، د دغه لفظ په وضاحت کي درې قوله دي، یو دا چي کله هغه ظالم د خپلي خرابي ارادې سره بي بي ساره ﷺ په خپل قبضه کي راوستل وغوښتل نو الله ﷻ د بي بي ساره ﷺ داسي مرسته وکړل چي هغه ظالم یې د خپلي خرابي ارادې څخه منع کړ، دوهم دا چي هغه ظالم د خپلي بدي ارادې په بدله کي سمدستي ونیول سو او پر هغه باندي الهي عذاب نازل سو، دریم قول دادی چي څرنگه هغه بي بي ساره ﷺ ته لاس اچول غوښتل نو هغه بې هوشه سو، څرگنده دي وي چي په یوه روایت کي اخذ د تاخیذ څخه په تشدید سره هم نقل سوی دی چي د هغه معنی ده په چا جادو کول یعني د سحر او جادو په ذریعه د هغه زړه او دماغ داسي تړل چي هغه حیران او پریشانه سي.

بیا هغه د بي بي ساره ﷺ د خدمت لپاره هاجره مینځه ورکړل، مطلب دا چي هغه حاکم د بي بي ساره رضي الله عنها د بزرگۍ داسي مشاهده وکړه او پوه سو چي دا یو غیر معمولي ښځه نه ده بلکه د خپل الله ﷻ په نزد ډېره لوړه او د کمال درجې تقرب لري نو هغه نه یوازي دا چي په ډېر خوف او دهشت سره ستنه کړل بلکه د هغې د خدمت لپاره یې یوه مینځه هم هغې ته ورکړل چي د هغې نوم هاجره یا اجره وو او مشهور هاجره دی، د بي بي سارې ﷺ د نس څخه د حضرت

ابراهیم علیہ السلام اولاد نه وو ، نو بي بي ساره رضي الله عنها د حضرت ابراهیم علیہ السلام په خدمت کي بي بي هاجره علیہا السلام وړاندي کړه او هغې ووېل: زه امید لرم چي ددې د نس څخه ستاسو ماشوم وسي، په هغه ورځو کي د حضرت ابراهیم علیہ السلام عمر سل کاله وو، بیا الله جل جلاله د بي بي هاجرې رضي الله عنها د نس څخه حضرت ابراهیم علیہ السلام ته یو زوی حضرت اسماعیل علیہ السلام ورکړ او په پای کي د بي بي ساره علیہا السلام حضرت اسحاق علیہ السلام پیدا سو .

اې د آسمان د اوبو زامنو !، دا د حضرت اسماعیل علیہ السلام اولادې یعني عربو ته خطاب دی او د حضرت ابوهریره رضي الله عنه د اهل عرب د آسمان په اوبو سره تعبیر کول د هغوئ د نسلي او نسبي شرف او عظمت په وجه وو ځکه چي د آسمان اوبه د پاکۍ لپاره مثال دی لکه چي ویل کیږي: فلانی سړی د آسمان تر اوبو زیات پاک دی، ځینو حضرات وایي چي عربو ته د بني ماء السماء ویل ددې لپاره دي چي هغوئ به د باران په انتظار وه ، چیري چي به باران کېدی هلته به اوسېدل، ځینو ویلي دي چي د بني ماء السماء څخه مراد انصار مراد دي ځکه چي هغوئ د عامر بن حارثه ازدي اولاد دي چي د نعمان بن منذر نیکه وو، او دهغه لقب ماء السماء وو، او دا لقب یې په دې وجه مشهور سوی وو چي ددغه قوم خلکو به د هغه په وسیلې سره باران غوښتی او یو قول دا هم دی چي د ماء السماء څخه مراد زمزم دی او حضرت ابوهریره رضي الله عنه د بني ماء السماء په ذریعه دې ته اشاره وکړل چي د زمزم چینه د حضرت اسماعیل علیہ السلام په وجه ښکاره سوې ده ، د هغه اوبه د آسمان څخه مځکي ته راغلي دي او دا چي د مځکي څخه هم کټمي او فیضونه تر لاسه کیږي هغه ټول صانع حقیقي الله جل جلاله د آسمان څخه رالیږي، دا وضاحت هم ضروري دی چي ټول عرب د بي بي هاجرې رضي الله عنها د نس سره تعلق نه لري مګر په هغوئ کي زیات د حضرت اسماعیل علیہ السلام د اولادې څخه دي ځکه د اکثر او اغلب په اعتبار ټول عرب په بني ماء السماء سره مخاطب کړل سول .

**د حضرت ابراهیم علیہ السلام، حضرت لوط علیہ السلام او حضرت یوسف علیہ السلام واقعې**

﴿۵۴۶۱﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْنُ أَحَقُّ بِالشَّكِّ

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : موږ زیات د شک وړ یو ، د

مِنْ إِبْرَاهِيمَ إِذْ قَالَ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَى وَيَرْحَمُ اللّٰهُ لُوطًا لَقَدْ كَانَ

ابراهیم علیہ السلام څخه هر کله چي هغه دا ویلي وه چي (رب ارني کیف تحي الموتی) ،(اې

پروردگاره! ما ته وښيه چي ته مړي څنګه ژوندي کوې)، الله تعالی دي پر لوط رحم وکړي هغه خو هسي هم د يو مضبوط ذات په پناه کي وو (يعني هر کله چي خلکو د لوط ميلمانه تنګول پيل کړل نو هغه دا آرزو وکړل چي کاش زما سره داسي يو مضبوط ډله وای چي د هغه په مرسته

## يَأْوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ وَلَوْ لَبِثْتُ فِي السِّجْنِ طُولَ مَا لَبِثَ يُوسُفُ لَأَجَبْتُ الدَّاعِيَ. متفق عليه

ما د دغه خلکو دفع کولای سوای)، او رسول الله ﷺ وفرمايل: که زه په بندي خانه کي تر دومره اوږده وخت پوري وای څومره چي يوسف عليه السلام پاته سوی وو نو ما به د بلونکي دعوت قبول کړی وای. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٤١٠، رقم: ٣٣٧٢، ومسلم ١٨٣٩\٤، رقم: ١٥٢- ١٥١.

**تشريح** (وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَى قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِن قَالَ بَلَى وَلَكِن لِيَطْمَئِنَّ قَلْبِي).
ژباړه: او هغه وخت د يادوني وړ دی چي کله ابراهيم عليه السلام وويل: اې زما پروردګاره! ما ته وښيه چي ته مړي څرنګه ژوندي کوې؟ ورته وويل سول: ايا ته يقين نه لرې؟ ابراهيم عليه السلام وويل: ولي نه، مګر ددې لپاره چي زړه ته مي نور اطمينان تر لاسه سي.

په دې اړه رسول الله ﷺ وفرمايل: موږ تر حضرت ابراهيم عليه السلام زيات د شک کولو وړ يو، ددې وضاحت دادی چي کله ذکر سوی آيت نازل سو نو په صحابه کرامو کي ځينو حضراتو وويل چي دغه شک ابراهيم عليه السلام ته وسو زموږ رسول الله ﷺ دا ډول شک څرګند نه کړ، رسول الله ﷺ چي دا واورېدل نو وه يې فرمايل: موږ د حضرت ابراهيم عليه السلام څخه زيات د شک کولو وړ يو. د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد د ظاهر څخه دا مفهوم اخيستل کيږي چي رسول الله ﷺ نه يوازي د حضرت ابراهيم عليه السلام لپاره بلکه د خپل ځان لپاره هم د ذکر سوي شک اثبات وکړ، حال دا چي د دواړو په داسي شک کي لوېدل امر محال دی، ځکه چي انبياء عليهم السلام د ايمان او ايقان اولين مظهر بلکه اصل بنياد وي او دهغوئ وجود د طمانيت او عرفان چينه ده، په فطري توګه د شک او تردد څخه خوندي او مامون دي، په هغوئ کي د عدم ايقان او شک وجود هيڅ معنی نه لري نو د ذکر سوي ارشاد څخه د رسول الله ﷺ مراد هغه نه دی چي د هغه تقاضا د ظاهر څخه کيږي بلکه د رسول الله ﷺ اصل مراد دادی چي ددغه آيت کريمه څخه دا ګمان پکار نه دي چي حضرت ابراهيم عليه السلام خپل پروردګار ته کوم خواست وکړ او هغه تحريک د احيا موتی

په وقوع کي څه شک او شبهه وه، پر واقع کېدو باندي د هغه پوره ایمان او یقین وو، هغه یوازي د عرفان او کمال په مرتبو کي د پرمختګ غوښتونکی وو،

د عین الیقین وړاندي د علم الیقین درجې ته د رسېدو غوښتونکی وو چي هغه یې په اطمینان قلبي سره تعبیر کړ یعني د هغوئ مدعا دا وه چي د احیاء موتی پر وقوع باندي د ایمان تر درجې پوري یقین اوس هم حاصل دی، یوازي دا غواړم چي مشاهده هم راته تر لاسه سي چي د اطمینان قلب په دولت کي زیاتوب وسي، نو صحابهٔ کرامو ته ددغه خبري د څرګندولو لپاره رسول الله ﷺ دا بیان اختیار کړ چي وګورئ! که شک او تردد په حضرت ابراهیم علیه السلام کي لار پیدا کړل نو یقینا په موږ کي به یې هم لار پیدا کړې وای او تاسو په دې پوهېږئ چي په موږ کي د شک او تردد هیڅ هم نسته، نو پوه سئ چي حضرت ابراهیم علیه السلام هم زموږ په ډول د کمال ایقان او عرفان پر درجه باندي فائز وو او دهغه په زړه او دماغ کي هم د هیڅ شک او تردد لاره نه وه، د حضرت ابراهیم علیه السلام د ذکر سوي غوښتني په اړه یو قول دا هم دی چي کوم وخت حضرت ابراهیم علیه السلام د خپل وخت د پاچا نمرود او د قوم د خلکو په زړه او دماغ کي د الله واحد د یقین پیدا کولو دغه دلیل وړاندي کړ چي زما رب هغه دی چي ژوند او مرګ ورکوي نو په دغه وخت کي هغه د خپل پروردګار په حضور کي دا خواست وکړ چي د هغه وړاندي سوي دلیل تهول ووینې، په هر حال د رسول الله ﷺ د ذکر سوي ارشاد بین السطور څخه د رسول الله ﷺ پر ذات باندي د حضرت ابراهیم علیه السلام د فضیلت او غوره والي اظهار کیږي حال دا چي د رسول الله ﷺ تر ټولو انبیاؤو افضل کېدل ثابت سوي دي، دا د بحث وړ خبره ده، ددغه سوال لیري کولو لپاره د حدیث شرح کوونکو لیکلي دي چي رسول الله ﷺ د حضرت ابراهیم علیه السلام په اړه دلته فرمایلي دي هغه د انکسار او تواضع په توګه دي، یا دا چي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد د وحي نازلېدو څخه مخکي دي چي رسول الله ﷺ د آدم علیه السلام د اولادې سردار او تر ټولو افضل دی، دا توجیه د هغه حدیث ده چي د رسول الله ﷺ د عدم افضیلت مفهوم ظاهروي.

چي د رکن شدید مرسته یې غوښتل، رکن په اصل کي د یو شي ټینګي غاړي او ټینګي ستني ته وایي، دلته د رکن شدید څخه مراد د ټینګو او توانا خلکو ډله مراد ده، د حدیث په دغه جمله کي د حضرت لوط علیه السلام په اړه چي کومي خبري ذکر سوي دي د هغه تفصیل دا دی چي کله د لوط علیه السلام قوم په بد عملۍ، سرکښۍ، بې حیایي او خبیثو اخلاقو یعني د نابالغ هلکانو سره په اختلاط کي د حد څخه تجاوز وکړ او د حضرت لوط علیه السلام د امر بالمعروف او نهي عن المنکر پر هغوئ اثر ونه سو نو په پای کي د الله جل جلاله له خوا د هغوئ د سزا او هلاکت فیصله

وسوه، نو د عذاب ملائکي د لوط ﷺ په قوم کي کښته سوې او د خلکو په شکل کي د حضرت لوط ﷺ میلمنې سوې، دغه ملائکي ډیري ښکلي او په عمر کي د ښکلو هلکانو په شکل کي وې، کله چي حضرت لوط ﷺ هغه میلمانه ولیدل نو په بېره کي سو چي دغه بدبخت قوم به زما د میلمنو سره څه کوي، تر هغه وخته حضرت لوط ﷺ ته دا نه وه ښودل سوې ده چي د اد الله ﷻ پاکي ملائکي دي او د دغه بدبخت قوم دپاره د عذاب الهي په فیصله کولو سره راغلي دي.

حضرت لوط ﷺ په دغه پریشاني کي وو چي د قوم خلک خبر سول او په دغه غوښتنه سره د حضرت لوط ﷺ کور ته راغلل چي دغه میلمانه موږ ته را وسپاره، حضرت لوط ﷺ هغه خلک پوه کړل د هغوئ پر بد اخلاقي یې هغوئ ته پیغور او غیرت ورکړ او هڅه یې وکړل چي دغه بدبختان د پاکو میلمنو د خراب نیت او ارادې څخه منع سي، بیا کله چي هغه ولیدل چي د هغه خلکو پر تورو زړو باندي هیڅ اثر نه کیږي او ټول د هغه میلمنو په اړه پر بداخلاقي باندي ټینګ دي نو په پریشانه کېدو سره یې وفرمایل:

لَوْ أَنَّ لِي بِكُمْ قُوَّةً أَوْ آوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ

ارمان چي ستاسو په مقابل کي ما ته ذاتي طاقت تر لاسه وای یا د طاقتورو ملګرو په صورت کي یوه ټینګه ډله وای چي په هغه سره مي نیولي وای او دغه میلمانه مي ستاسو د شر څخه خوندي کړي وای.

نو رسول الله ﷺ د حضرت لوط ﷺ دغه افسوس ته په اشاره کولو سره وفرمایل: الله ﷻ دي پر لوط ﷺ رحم وکړي چي هغه د انساني طاقت او قوت مرسته غوښتل حال دا چي اصل مرسته د الله ﷻ د قدرت او طاقت او د هغه د ساتني ده، چي د عربو د کلام دا خاص طرز دی چي کله هغوئ د یو سړي د داسي قول او فعل ذکر کوي چي د تقصیر سره تعلق لري یا هغه لره هغه کار او خبره کول نه وي پکار نو وایي چي الله ﷻ دي پر هغه سړي رحم وکړي، یا الله ﷻ دي هغه سړی معاف کړي چي هغه داسي کار وکړ، یا داسي خبره یې وکړل، نو دا سوال پیدا کیږي چي رسول الله ﷺ د ذکر سوي ارشاد په ذریعه ایا دې ته اشاره وفرمایل چي نعوذ بالله، حضرت لوط ﷺ د الله ﷻ پر قدرت باور نه درلودی چي د یو رکن شدید پناه یې غوښتل؟

ددې جواب دادی چي هیڅکله نه، ځکه چي داسي ګڼل نه یوازي دا چي د پېښي خلاف دي بلکه د انبیاء علیهم السلام د ادب خلاف هم دي، او کوم چي د حضرت لوط ﷺ د رکن شدید د پناه غوښتلو سوال دی نو حضرت لوط ﷺ د الله ﷻ په هېرولو سره د بل چا د پناه طالب نه وو

بلکه حقیقت دادی چي هغه وخت د خپل قوم د بدي ارادې په لېدو سره دومره پریشانه وو چي په طبعي توگه یې دا غوښتنه وکړه چي ارمان! الله ﷻ زما مرسته کړې وای او دومره قوت یې راکړی وای چي ما دغه وخت دغه بدبختو ته سزا ورکړې وای ، نو پروردگار یې مرسته وکړه او هغه ملائکي چي د کم عمره میلمنو په شکل کي هغوئ ته راغلي وې خپل راز یې څرگند کړ او داډ یې ورکړ چي تاسو مه پرېشانه کیږئ ، ډېر وخت به نه وي تېر سوی چي دغه بدبختو ته به د خپلي بدعملۍ عبرتناکه سزا ورکړل سي، پاته سوه د رسول الله ﷺ خبره ، چي رسول الله ﷺ عام خلک د غیبت او بدویني څخه منع کول که هغه ژوندي وي یا مړه سوي وي نو دا تصور څرنگه کیدای سي چي رسول الله ﷺ دي د یو نبي (لوط ؑ) په اړه داسي خبري وکړي چي د هغه د رتبې او درجې کمولو یا د هغه د کم همتۍ د اظهار موهم وي نو د رسول الله ﷺ د ارشاد مراد دا څرگندول دي چي حضرت لوط ؑ یو انسان وو او په داسي نازک وخت کي د هغه د بشري جبلت تقاضا دا سوه چي هغه پر بدو خلکو باندي د خوند څکلو لپاره د طاقتورو خلکو د مرستي متمني وي او د حضرت لوط ؑ په دغه عمل کي زموږ لپاره دا جواز موجود دی چي په داسي وخت کي موږ په عالم اسباب سره د تعلق لرلو په وجه مادي او دنیاوي وسائل او ذرائعو څخه مرسته اخیستلای سو ، سره ددې چي په هر حالت کي زموږ اصل باور پر رب الارباب باندي وي ، او زموږ حقیقي مرسته د هغه مرسته او نصرت منو ، اوس یوه خبره بله پاته کیږي چي رسول الله ﷺ د خپل ارشاد پیل د یرحم الله ، په الفاظو سره ولي وکړ؟ نو حقیقت دادی چي رسول الله ﷺ دغه الفاظ ځکه وفرمایل چي هیڅوک د حضرت لوط ؑ دغه پېښه پر کسر شان باندي محمول نه کړي او په دې وهم کي اخته نه سي چي هغه د رکن شدید د مرستي په پلټنه کي وو ، او په دې سره د هغه د درجې او مرتبې تنقیص وسي، یا ددې په وجه د هغه پر ذات باندي اعتراض وکړل سي ، د کلام په پیل کي د داسي الفاظو استعمالول محض د دعاء او تعظیم په وجه وي لکه څرنگه چي د قرآن کریم په دغه آیت کي رسول الله ﷺ مخاطب سوی دی : (عفا الله عنک لم اذنت لهم) الله ﷻ دي تا ته عفوه وکړي، تاسو دوئ ته ولي اجازه ورکړې وه.

او که زه په بندیخانه کي تر دومره اوږده وخت پوري ....الخ: د حدیث د دغه جملې تعلق د حضرت یوسف ؑ په مدح او تعریف کي دی چي په هغه کي د هغه یو خاص پېښې ته په اشاره کولو سره د هغه د صبر او ثبات څرگندونه سوې ده، ددغه پېښې تفصیل داد یچي کله حضرت یوسف ؑ د مصر پاچا د یو غلام په توگه رانیوی او خپل کور ته یې راوست نو د هغه سره یې د غلامانو په ډول معامله ونه کړل بلکه د خپل اولاد په ډول عزت او احترام یې وکړ او د کورني

ژوند ټولي ذمه داري يې هغه ته وسپارلې، حضرت يوسف عليه السلام ځوان وو، د ښکلي او ښه صورت خاوند وو، بلي خوا ته دا چې د هر وخت ملګرتيا د مصر د پاچا ښځي پر خپل زړه واک تر لاسه نه کړاو پر يوسف عليه السلام د پتنګ په ډول قربانېدل، مګر حضرت يوسف عليه السلام چې د نبوت لپاره ټاکل سوی وو، د هغه څخه هيڅکله دا امکان نه وو چې په بدکاری کي په اخته کېدو سره د مصر د پاچا د ښځي بده اراده پوره کړي، هغه ښځي په پيل کي د خپل ښکلا او ښووني په ذريعه په خپل جال کي راوستل غوښتل مګر کله چې کاميابه نه سوه نو بيا يې د زور څخه کار اخيستل پيل کړل مګر الله جل جلاله، حضرت يوسف عليه السلام د هغې د منګلو څخه وژغورى، بيا د هغه ښځي د ناکام عشق راز د هغې خاوند ته هم څرګند سو مګر د حقيقت څخه د خبرتيا وروسته د حضرت يوسف عليه السلام تعريف يې وکړ او خپله ښځه يې پوهه کړل، او د رسوايي څخه د ساتني لپاره يې خبره پټه کړل، مګر خبره پټه نه سوه، د شاهي کورنۍ ښځو وربسي خبري کول پيل کړل او د مصر د پاچا ښځه د خپلو همزولو په مخکي د پېغور نښه سول، د دغه حال په رامنځته کېدو ره هغې فيصله وکړل چې پېغور ويونکو ښځو ته داسي سبق ورکړل سي چې هغوئ په ما پسي مه خبره کوي په هغه کي خپله اخته سي، نو يوه ورځ هغې د شاهي کورنۍ او د ښار د مشرانو ښځو ته بلنه ورکړل او کله چې ټولو ښځو پر دسترخوان باندي په ناستي سره د خوراک کولو لپاره چاړې په لاس کي واخيستلې نو د مصر د پاچا ښځي حضرت يوسف عليه السلام ته حکم وکړ چې دباندي راووځي، هغه د مالکي د حکم په اورېدو سره دباندي راووتی او کله چې ښځو د يوسف رحمة الله عليه ښکلا وليدل نو دومره متاثري سوې چې د شيانو د پرې کولو پر ځای يې خپل ګوتي پرې کړې او د دې په لېدو سره د مصر دپاچا ښځه خوندي سول او په فخر يې وويل: دا هغه غلام دی چې دده د ميني په اړه تاسو په ماپسي خبري کوئ او پېغور راکوئ،

اوس ووايا ست چې زما مينه پر ځای ده که بې ځايه؟ د مصر د پاچا ښځي هغه وخت دا هم وويل: ښېله شکه ما ددغه زلمي زړه په خپل واک کي کول او دده زړه خپل د ميني په منګولو کي اخيستل غوښتل مګر هغه زما په واک کي نه راغلی، اوس زه دا وايم که ده زما خبره ونه منل نو د بندي خانې هواء به خوري او بې عزته به سي، معامله چې د غه حد ته ورسېدل نو د مصر پاچا سره ددې چې حضرت يوسف عليه السلام يې پاک ګڼی د خپلي ښځي د رسوايي په لېدو سره دا فيصله وکړل چې حضرت يوسف عليه السلام تر يو وخت پوري په بنديخانه کي واچوئ ترڅو چې دغه پېښه د خلکو د زړو څخه ووځي، نو حضرت يوسف عليه السلام په بندي خانه کي واچول سو او تر نهه کالو پوري په بنديخانه کي وو، تر دې چې د ځينو پېښو په نتيجه کي د مصر پاچا تر فرعون پوري د

هغه د بزرگۍ او عظمت قائل سول نو هغه د یوسف علیه السلام د ایله کولو حکم وکړ، مګر حضرت یوسف علیه السلام د بندیخانې څخه د راوتلو انکار وکړ او وه یې فرمایل: لومړی زما د ښځې پلټنه وکړئ چي کومو ښځو زما په لېدو سره خپلې ګوتې پرې کړې د هغوئ څخه زما د کړنې او پاکۍ پلټنه وکړئ تر څو چي د ښځې اصلي نتیجه څرګنده نه سي او زما بې ګناهي او پاک کېدل په پوره توګه ثابت نه سي زما د نفس عزت د بندیخانې څخه راوتل نه خوښوي، رسول الله ﷺ فرمايي: که د یوسف علیه السلام پر ځای زه وای او تر دومره اوږده وخت پوري په بندیخانه کي وای نو د خلاصون د خبر په اورېدو سره به مي هغه قبول کړی وای او د بندیخانې څخه په راوتلو کي به مي توقف نه وای کړی او نه به مي ددې خبري غوښتنه کړې وای چي د ښځې پوره پلټنه دې وکړل سي او نه به مي دغه پلټنې په نتیجې سره خپل خلاصون مشروط کړی وای، دا د رسول الله ﷺ له خوا د تعریف او تحسین او د هغه د صبر او ثبات اظهار او اعتراف دی چي په داسي صورت کي کله چي یو سړی تر ډېره وخته په بندیخانه کي وي او د هغه ځای په تکلیفو اخته وي او بیا د هغه د خلاصون خبر ارسي نو هغه سړی د خپل نفس د عزت له کبله هغه خبر رد کړي او د بندیخانې څخه د راوتلو انکار وکړي تر څو چي هغه بالکل بې داغه او بې ګناه ونه ګرځول سي، دا د صبر او استقامت یو داسي مثال دی چي د بل چا په ره ددې تصور نه سي کیدای دا یوازي د حضرت یوسف علیه السلام کمال وو چي هغه د بې مثله کردار ثبوت ورکړ، مګر څرګنده دې وي چي رسول الله ﷺ د حضرت یوسف علیه السلام د دغه کړنې او استقامت ذکر په کوم انداز کي وکړ هغه پر تواضع او انکساری محمول دی، کنه نو د رسول الله ﷺ ذات د صبر او استقامت یو داسي مثال وو چي نه یوازي د حضرت یوسف علیه السلام پر دغه صبر او استقامت باندي بلکه د رسول الله ﷺ دغه وصف پر ټولو اولو العزمو انبیاء علیهم السلام باندي لوړ دی.

## حضرت موسی علیه السلام او د بني اسرائیلو ایذا

﴿۵۴۶۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مُوسَى كَانَ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: موسی علیه السلام یو ډېر شرم

رَجُلًا حَيِيًّا سِتِّيرًا لَا يُرَى مِنْ جِلْدِهِ شَيْءٌ اسْتِحْيَاءً فَآذَاهُ مَنْ آذَاهُ مِنْ بَنِي

ناک او پرده دار سړی وو، دومره حیادار چي د هغه د بدن او پوست هیڅ برخه به نه ښکاره کیدل

إِسْرَائِيلَ فَقَالُوا مَا يَسْتَتِرُ هٰذَا التَّسَتُّرَ إِلَّا مِنْ عَيْبٍ بِجِلْدِهِ إِمَّا بَرَصٌ وَإِمَّا

نو د بني اسرائيلو ځينو خلكو هغه ته د تكليف رسولو اراده وكړل او دا خبري يې پيل كړې چې موسى عليه السلام خپل بدن په دومره احتياط سره يوازي په دې وجه پټ ساتي چې د هغه په بدن كي يو عيب دى، يا خو برص دى يا

أُدْرَةٌ وَإِنَّ اللَّهَ أَرَادَ أَنْ يُبَرِّئَهُ فَخَلَا يَوْمًا وَحْدَهُ ليغتسل فَوَضَعَ ثوبَهُ عَلَى

خصي دى، الله تعالى اراده وكړه چې كوم عيب د موسى عليه السلام لګول سوى دى د هغه څخه دى پاك او صفا ښكاره كړي نو يوه ورځ موسى عليه السلام په يوازي ځاى كي د لمبيدو لپاره جامې وكښې او

الْحَجَرِ ففر الحجر بثوبه فجمع موسى في اثره يقول ثوبي ياحجر ثوبي يا

پر يوه ډبره يې كښېښودلې، ډبره د هغه جامو سره وتښتېدل، موسى عليه السلام په هغه ډبري پسې په دې ويلو سره ور وځغاستى اې ډبري! زما جامې راكړه، اې

حجر حَتَّى انْتَهَى إِلَى مَلَإٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ فَرَأَوْهُ عُرْيَانًا أَحْسَنَ مَا خَلَقَ

ډبري زما جامې راكړه تر دې چې موسى عليه السلام په منډه منډه كي د بني اسرائيلو يو ډلې ته ورسيدى هغه ډلې د موسى عليه السلام لوڅ بدن وليدى او د الله تعالى په مخلوق كي يې

اللهُ وقالوا والله ما بموسى من باس واخذ ثوبه فَطَفِقَ بِالْحَجَرِ ضَرْبًا فَوَاللهِ إِنَّ بِالْحَجَرِ لَنَدَبًا مِنْ أَثَرِ ضَرْبِهِ ثَلَاثًا أَوْ أَرْبَعًا أَوْ خَمْسًا. متفق عليه.

موسى عليه السلام د يو غوره وجود انسان وليدى، او ټولو په اتفاق سره دا وويل قسم په خداى موسى عليه السلام كي هيڅ عيب نسته، آخر موسى جامې واخيستې او هغه ډبره يې په لكړه وهل پيل كړل، قسم په خداى پر هغه ډبري د موسى عليه السلام د وهلو علامې موجودي دي درې، يا څلور يا پنځه. بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۴۵۸، رقم: ۲۷۸. ومسلم ۴\۱۸۴۲، رقم: ۱۵۶- ۲۳۷۱.

**د لغاتو حل**: ادرة: نفخة بالخصية.

**تشريح** بني اسرائيلو خپل پيغمبر، حضرت موسى عليه السلام ته څومره سخت تكليفونه رسول، ددې اندازه په دغه حديث كي د ذكر سوي پېښې څخه كيداى سي، د بت پرستى غوښتنه، د ګيلګي عبادت كول، د تورات قبلولو څخه انكار، په مقدسه مځكه كي د داخلېدو څخه انكار، پر من او سلوى باندې ناشكري چې د هغوئ پر ذات بهتان او تهمت ويل داسي كوم قولي او

فعلي تکليف وو چي د هغوئ له خوا حضرت موسی علیہ السلام ته نه وو رسېدلی، د حضرت موسی علیہ السلام اولو العزمي او د هغه د صبر او استقامت کمال وِو چي هغه د خپل قوم هر تکليف وزغمی او د خپل الله جل جلالہ له لوري د رشد او هدايت په پيغام کي د بوختيا جذبه يې يخېدو ته نه پرېښود، او دا د الله جل جلالہ پر هغه انعام وو چي پر هر پړاو باندي د هغه قوم په مقابله کي هغه ته عزت ورکول کيدی، کله چي بدبخت قوم د هغه د شرم، حياء او تحسين پر ځای د هغه د عيب داره کولو هڅه وکړه او په پوره قوت سره يې دا مشهوره کړل چي موسی علیہ السلام خپل بدن دومره زيات پټوي او د خپل بدن پر هغه برخو باندي هم نظر کول نه غواړي کوم چي په ستر کي نه دي، تر دې چي د تهولو څخه پټ لمبيږي نو ددې وجه داده چي د هغه پر بدن د پيس داغونه دي يا د هغه خوټې پړسېدلي دي يا يو بله ناروغي ور پېښه ده، نو الله جل جلالہ اراده وفرمايل چي د موسی علیہ السلام د بې عيبه بدن عامه ليدنه وکړي چي په خپلو سترګو سره ووينې او يو رسوا کونکي شاهدي بې بنياده ثابته سي، همدارنګه د ډبري د جامو وړلو پېښه رامنځته سوه چي د هغه په حديث کي يادونه ده، ددې څخه څرګنده سول چي الله جل جلالہ د مخلوق هدايت او ددينې خدمت په لاره کي د خپلو پاکو بندګانو د هر هغه عيب او نقصان څخه پاک ثابتوي چي د هغوئ مخالفان او ناپوهان خلک يې هغوئ ته په منسوب کولو سره پر هغوئ باندي وايي، او الله جل جلالہ د خپلو مخلصو بندګانو سره دغه خاص معامله ځکه کوي؛ چي د عامو خلکو په نظر کي هغه معزز او مکرم وي او د هغوئ شخصي وجاهت او ذات د ګرد او غبار څخه پاک وي.

د وهلو په وجه پر هغه ډبري نښي ولګېدلې...الخ: يعني کله چي هغه ډبري د موسی علیہ السلام جامې وتښتولې نو پر هغه باندي د دغه ناڅاپه پېښي داسي اثر وسو چي هغه په غصه کي پر هغه ډبري باندي وار کول پيل کړل او کله چي به د هغه وار پر ډبري ولګېدی نو پر هغه باندي به يوه نښه جوړه سول، همدارنګه څو واري چي هغه وکړل هغو مره نښې پر ډبري باندي جوړي سوې، او ځينو حضراتو دا ويلي دي چي کله حضرت موسی علیہ السلام په بېړه او غصه کي په هغه ډبري پسي وځغاستی او په پای کي هغه ډبره د بني اسرائيلو د يوې ټولې په وړاندي ودرېدل نو حضرت موسی علیہ السلام ته د الله جل جلالہ له خوا حکم وسو چي دغه ډبره پورته کړه او د ځان سره يې کښېږده، نو دغه ډبره د هغه سره وه او کله چي هغه د بني اسرائيلو سره مېدان ته ورسېدی نو هغه وخت يې پر هغه ډبره باندي په خپله لکړه سره وار وکړ نو د هغه ډبري څخه دوولس چينې وبهېدلې، ددغه وينا خلاصه داده چي په قرآن کريم کي د حضرت موسی علیہ السلام دا معجزه بيان سوې ده چي کله بني اسرائيل د سينا دښت ته په رسېدو سره په بېړه کي سول چي په دغه دښت کي به او به چيري وي او

بيا حضرت موسی علیه السلام د الله جل جلاله په حکم سره په خپله لکړه يو پاڼ ووهی نو د هغه په نتيجه کي سمدستي دوولس چينې وبهېدلې او د بني اسرائيلو د دوولس قبيلو لپاره بېلي بېلي چيني رواني سوې نو ددغه پاڼ څخه مراد هغه ډبره ده چي د حضرت موسی علیه السلام د جامو سره تښتېدلې وه او حضرت موسی علیه السلام د الله جل جلاله د حکم سره سم هغه د خپل ځان سره ساتلې وه،

په هر حال د حديث څخه د حضرت موسی علیه السلام دوې معجزې ثابتي سوې، يو دا چي د بې جانه ډبري په حرکت کي راتلل او تښتېدل، دوهم د حضرت موسی علیه السلام د لکړي په وهلو سره په هغه ډبري کي نښه لګېدل او ددغه حديث څخه دا هم ثرګنده سول چي په پټ ځای کي په لوڅ بدن سره لمبېدل جائز دي که څه هم په داسي ځای کي د ستر پټول افضل دي، او دا هم ثرګنده سول چي د مخالفينو او ناپوهانو تکليف پر انبياء او اولياء الله باندي اثر کوي او هغوئ تکليف محسوس کوي مګر پر هغه تکليف باندي صبر او استقامت کوي.

**د حضرت ايوب علیه السلام يوه واقعه**

﴿۵۴۶۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا أَيُّوبُ يَغْتَسِلُ

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: حضرت ايوب عليه السلام

عُرْيَانًا فَخَرَّ عَلَيْهِ جَرَادٌ مِنْ ذَهَبٍ فَجَعَلَ أَيُّوبُ يَحْثِي فِي ثَوْبِهِ فَنَادَاهُ رَبُّهُ يَا

يو وار لوڅ لمبيدی، چي د سرو زرو ملخان پر اوريدل، او ايوب عليه السلام هغه را ټولول او په کالو کي يې اچول، الله تعالی ورته وفرمايل:

أَيُّوبُ أَلَمْ أَكُنْ أَغْنَيْتُكَ عَمَّا تَرَى قَالَ بَلَى وَعِزَّتِكَ وَلَكِنْ لَا غِنَى بِي مِنْ بَرَكَتِكَ. رواه البخاري.

اې ايوبه! ايا ته موړ ددې څخه بې نيازه کړی نه يې، ايوب عليه السلام عرض وکړ هو، ستا په عزت دي مي قسم وي تا زه د سرو زرو څخه بې نيازه کړی يم مګر زه ستا د رحمت او برکت څخه بې نيازه نه يم. بخاري.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۳۸۷، رقم: ۲۷۹

**تشريح** لوڅ لمبېدی، ددې څخه دا هم مراد کېدای سي چي د حضرت ايوب علیه السلام پر بدن باندي د لونګ څخه پرته بله جامه نه وه او هغه لونګ تړلی لمبېدی، ددې تائيد د مخکني عبارت

يحتى في ثوبه څخه هم كيږي، او دا هم كيداى سي چي هغه وخت په يو پټ ځاى كي بالكل لوڅ لمبېدى لكه چي د حضرت موسى ﷺ په اړه په پټ ځاى كي لوڅ لمبېدل مذكور دي او ددې په شرعي جواز كي هيڅ قباحت هم نسته مگر رسول الله ﷺ دې ته اشاره وفرمايل چي د خپل پروردگار څخه د شرم او حياء له كبله په پټ ځاى كي هم ستر پټول افضل دي ، او رسول الله ﷺ چي د كوم مكارم او اخلاقو د تكميل لپاره دنيا ته تشريف راوړ د هغه تقاضا هم داده .

هغه د ملخانو په را ټولولو سره په خپلو جامو كي اېښودل پيل كړل، په ظاهره دا معلوميږي چي حضرت ايوب ﷺ د سرو زرو ملخان په يوه لاس سره يا په دواړو لاسو ډكولو سره په لونگ كي را ټولول كوم چي هغه د لمبېدو لپاره تړلى وو ، ياد جامې څخه مراد هغه جامه ده چي هغه به د لمبېدو وروسته اغوستي وي او دا هم كيداى سي چي هغه جامه مراد وي چي تر هغه وخته يې نه وي اغوستي بلكه هغه ته نژدې پرته وي .

حضرت ايوب ﷺ ته د الله ﷻ ذكر سوى خطاب د ناراضي او عتاب په توگه نه وو بلكه د شفقت او ميني په توگه وو، چي كله ستا په كور كي دومره زيات سره زر و اورېدل او ته يې شتمن كړې نو څه ضروري ده چي ته دغه ملخان په ټولولو سره په خپله جامه كي اېږدې نو حضرت ايوب ﷺ جواب وركړ، بېله شكه تا زه دومره شتمن كړى يم او زما په كور كي دي دومره سره زر راكړي دي چي زه ددغه ملخانو په يو ځاى كولو كي اړتيا نه لرم مگر ستا په دربار كي د خپل عجز او اړتيا د اظهار لپاره ستا د رحمتونو د نوري غوښتني څخه بې نيازه كيداى هم نسم كه څه هم ته ما هر څومره شتمن كړې او پر ما دخپلو نعمتواو رحمتونو هر څومره باران وكړې ، ددې څخه ښرگنده سوه چي د حضرت ايوب ﷺ د ملخانو په پورته كولو كي خوښي ښودل د دنيا د حرص او طمع د زياتوب په وجه نه وو بلكه د الله ﷻ د وركړل سوي نعمت څخه په كټه اخيستلو او د شكر او احسان په وجه وو .

ملا علي قاري رحمة الله عليه ليكلي دي، ددغه حديث څخه ښرگنده سول چي په جائز مال او شتمنۍ كي د زياتوب حرص د هغه چا په اړه روا دى چي د هغه پر خپل نفس باندي باور وي چي هغه پر مال اودولت باندي د الله ﷻ شكر ادا كولو كي كوتاهي نه كوي او هغه به په هغه مقاصدو او مصارفو كي استعمالوي چي په هغه سره الله ﷻ راضي او خوشحاله كيږي .

## نبي ﷺ ته پر هيڅ يو نبي فضيلت مه وركوئ

﴿۵۴۶۴﴾ : وَعَنْهُ قَالَ اسْتَبَّ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَرَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ فَقَالَ الْمُسْلِمُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو مسلمان او يو يهودي يو تر بله ښکنځل سره وکړل ، مسلمان وويل

وَالَّذِي اصْطَفَى مُحَمَّدًا عَلَى الْعَالَمِينَ فَقَالَ الْيَهُودِيُّ وَالَّذِي اصْطَفَى مُوسَى عَلَى

قسم دی په هغه ذات چي محمد ﷺ يې د ټولي نړۍ خلکو باندي غوره کړی دی ، يهودي وويل قسم دی په هغه ذات چي موسی علیه السلام يې پر ټول دنيا غوره کړی دی ،

الْعَالَمِينَ فَرَفَعَ الْمُسْلِمُ يَدَهُ عِنْدَ ذَلِكَ فَلَطَمَ وَجْهَ الْيَهُودِيِّ فَذَهَبَ الْيَهُودِيُّ

مسلمان په دې خبره په غصه سو هغه يهودي يې پر مخ په چپلاخه ووهی ، يهودي د رسول الله

إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ بِمَا كَانَ مِنْ أَمْرِهِ وَأَمْرِ الْمُسْلِمِ فَدَعَا

ﷺ په خدمت کي حاضر سو او واقعه يې بيان کړه ، نبي کريم ﷺ هغه مسلمان راوغوښتی او د

النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمَ فَسَأَلَهُ عَنْ ذَلِكَ فَأَخْبَرَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى

هغه څخه يې د واقعې پوښتنه وکړه هغه د حال د حقيقت څخه رسول الله ﷺ خبر کړ ، د دواړو د بيانونو اوريدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل :

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُخَيِّرُونِي عَلَى مُوسَى فَإِنَّ النَّاسَ يَصْعَقُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

ما ته پر موسی علیه السلام فضيلت مه راکوئ ځکه چي د قيامت په ورځ به (د شپيلۍ پوه کولو سره)

فَأَصْعَقُ مَعَهُمْ فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يُفِيقُ فَإِذَا مُوسَى بَاطِشٌ جَانِبَ الْعَرْشِ فَلَا

خلک بې هوشه سي زه به هم بې هوشه سم بيا د ټولو څخه لومړی سړی به زه يم چي په هوش کي به راسم زه به ووينم چي موسی علیه السلام به د عرش پايه نيولې ولاړ وي ،

أَدْرِي أَكَانَ فِيمَنْ صَعِقَ فَأَفَاقَ قَبْلِي أَوْ كَانَ فِي مَنْ اسْتَثْنَى اللَّهُ . وفي رواية فلا

زه نه سم ويلای چي دی په بې هوشه سوي کسانو کي وو او زما څخه مخکي په هوښ کي راغلی وو او که الله تعالی هغه د بې هوښي څخه خلاص کړی وو ، او په يوه روايت کي دا الفاظ

ادري احوسب بصعقه يوم الطور او بعث قبلي ولا اقول ان احدا افضل من

دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه نه سم ويلاى چي پر كوه طور باندي د موسى عليه السلام بې هوښه كيدل په نن ورځ كي شمير كړل سول يا بې هوښه سوى وو مګر زما څخه مخكي په هوښ كي راغلى وو، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل زه دا هم نه سم ويلاى چي څوک تر

يونس بن متى وفي رواية ابي سعيد قال لا تخيروا بين الانبياء . متفق عليه وفي رواية ابي هريرة لاتفضلوا بين انبياء الله.

يونس بن متى غوره دى ، او د ابوسعيد روايت كي دا الفاظ دي چي د انبياؤو په منځ كي يو ه ته پر بل بهتروالى مه وركوئ . بخاري او مسلم او د ابوهريره په روايت كي دي چي د الله تعالى د انبياؤو په منځ كي چا ته فضيلت مه وركوئ.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۷۰، رقم: ۲۴۱۱، ومسلم ۴\۱۸۴۴، رقم: ۱۶۰- ۲۳۷۳.

**د لغاتو حل**: باطش: اي قوي، والظاهر ان معناه آخذ.

**تشريح**: په قرآن كريم كي د حضرت موسى عليه السلام په اړه الله جل جلاله دا فرمايلي دي: اني اصطفيتک على الناس، يعني اې موسى! عليه السلام ما ته په ټولو خلكو كي تر ټولو غوره او افضل ګرځولى يې نو ددې څخه مراد دادى چي الله جل جلاله ، حضرت موسى عليه السلام د هغه زمانې په ټولو خلكو كي تر ټولو غوره ګرځولى وو مګر هغه يهودې د حضرت موسى عليه السلام د بزرګۍ او افضيلت هغه مفهوم مطلق واخيست او دا دعوه يې وكړل چي حضرت موسى عليه السلام د هري زمانې تر ټولو خلكو افضل او غوره دى او همدارنګه هغه د حضرت محمد ﷺ د بزرګۍ او افضيلت څخه انكار وكړ او له دې كبله د هغه پر مخالفت مسلمان ته غصه راغلل نو هغه يې په چپلاخه وواهه.

يادا چي هغه به الله جل جلاله مستثنى ګرځولى وي، مطلب دا چي الله جل جلاله په قرآن كريم كي فرمايلي دي چي كله د قيامت په ورځ شپيلۍ ووهل سي نو ټول آسمان او ځمكي والا به بې هوشه سي پرته د هغه كسانو څخه چي الله جل جلاله يې بې هوشه كول نه غواړي (لكه ملائكي) نو كيداى سي چي څرنګه پر ملائكو باندي بې هوشي نه خپرېږي همدارنګه الله جل جلاله ، حضرت موسى عليه السلام هم د بې هوشۍ څخه مستثنى كړي وي ، په هر حال رسول الله ﷺ د دواړو صورتونو په ذكر كولو سره دا څرګنده كړل چي په دواړو صورتو كي د حضرت موسى عليه السلام فضيلت ظاهرېږي كه داسي وي چي د ټولو خلكو په ډول حضرت موسى عليه السلام هم بې هوشه سي نو زما په هوش كي راتلو وروسته د هغه داسي ليدل چي هغه د عرش پايه نيولى ولاړ وي، د ا ثابتوي چي

هغه به زما څخه مخکي په هوش کي راغلی وي ،

په دغه صورت کي پر ما باندي د هغه فضیلت بالکل ثرگنده خبره ده، او که دا خبره وي چي حضرت موسی علیہ السلام به په بې هوشه کېدونکو کي شامل نه وي او هغه به نه بې هوشه کیږي حال دا چي پر ما به بې هوشي راځي نو دا صورت هم د هغه فضیلت ظاهرونکی دی او کله چي دا ثابته سول چي په دې اړه حضرت موسی علیہ السلام ته پر ما باندي فضیلت حاصل دی نو بیا ما ته پر هغه د فضیلت راکولو څه معنی ده مګر دا خبره د رسول الله ﷺ پر انکساری باندي محمول کول پکار دي چي رسول الله ﷺ د خاکساری له موخي د حضرت موسی علیہ السلام فضیلت داسي ثرګند کړ ، کنه حقیقت دادی چي پر دې موقع باندي حضرت موسی علیہ السلام ته چي کوم شرف حاصل وي هغه زیات تر زیات د جزوي فضیلت نوعیت لري چي ددې خبري خلاف نه دی چي کلي فضیلت رسول الله ﷺ ته حاصل دی ، یوه خبره دا هم ویل کیدای سي چي د رسول الله ﷺ د ارشاد څخه دا ثابتیږي چي رسول الله ﷺ د حضرت موسی علیہ السلام څخه افضل نه دی نو دا دهغه وخت ارشاد دی کله چي هغه وحي نازل سوې نه وه چي په هغه کي رسول الله ﷺ د هر یوه څخه افضل او اشرف کېدل مذکور دي ، د هغه وحي نازلېدو څخه وروسته د رسول الله ﷺ افضیلت د څه شک او شبهې څخه پرته ثابت سوی دی .

زه نه سم ویلای چي د طور پر غره باندي په بې هوشه کېدو سره .....الخ: ددغه جملې وضاحت دادی چي کله حضرت موسی علیہ السلام د طور پر غره باندي د الله جل جلاله د ذات د لیدني خواهش وکړ نو د الله جل جلاله له خوا ورته جواب ورکړل سو چي اې موسی ! ته به د الله جل جلاله د لیدني توان ونه لرې، وګوره موږ دخپل ذات د تجلي ظهور پر دغه غره باندي کوو که دغه تجلي وزغمې نو بیا ته خپل خواهش ظاهر کړه، ددې څخه وروسته پر طور باندي حضرت حق د تجلي ظهور وکړ نو د غره هغه برخه ریزه ریزه سوه او حضرت موسی علیہ السلام هم دهغه لیدني توان ونه درلود او بې هوشه سو ، بیا رسول الله ﷺ د طور پر غره باندي د حضرت موسی علیہ السلام هغه بې هوشي ته اشاره وفرمایل که حضرت موسی علیہ السلام د قیامت په ورځ په هغه وخت کي په بې هوشه کېدو سره د لوېدو څخه خوندي او مستثنی کړل سي نو کیدای سي چي ددغه استثناء وجه د هغه د طور په غره کي بې هوشي وي چي هغه به د قیامت د هغه بې هوشی په حساب کي شمېرل کیږي ،

ثرګنده دي وي چي دلته د کومي صعقه (یعني د قیامت په ورځ د بې هوشه کېدو) یادونه ده ، له دې څخه هغه صعقه مراد نه ده چي د مرګ او هلاکت په معنی ده او دهغه ظهور به د قیامت په پیل کي د شپېلې وهلو څخه وروسته کیږي ځکه چي د هغه صعقه په وخت کي کله چي د

لو مړی شپیلۍ وهلو وروسته ټول عالم ختم سي او دهر متنفس مرګ او هلاکت واقع سي نو رسول الله ﷺ او حضرت موسی علیه السلام به چیري موجود وي چي پر هغوئ باندي به صعقه خپره سي بیا دا چي د دغه صعقې څخه وروسته د حشر په میدان کي تر ټولو لومړی پاڅېدونکی به رسول الله ﷺ وي، نو د رسول الله ﷺ دا فرمایل چي: فلا ادري کان فیمن صعق...الخ: دا ددې خبري دلیل دی چي رسول الله ﷺ د کومي صعقې یادونه کړې ده ، ددې څخه هغه صعقه مراد ده چي د بعث څخه وروسته به د حشر په میدان کي پېښېږي چي ټول خلک به په بې هوشه کېدو سره رالوېږي او ددې څخه وروسته چي ټول خلک په هوش کي راسي تر ټولو وړاندي چي رسول الله ﷺ ویني چي حضرت موسی علیه السلام د عرش پایه نیولی ولاړ دی ، ددې مطلب به دا وي چي یا خو حضرت موسی علیه السلام په بې هوشه خلکو کي شامل نه وي یا هغه به هم بې هوشه سوی وي مګر دهغه بې هوشي به د رسول الله ﷺ څخه مخکي زائل سوې وي، په هرحال په دغه ارشاد کي رسول الله ﷺ دا وفرمایل چي ما ته پر موسی علیه السلام باندي فضیلت مه راکوئ نو ددې څخه دا مراد نه دی چي په انبیاؤ کي د شرف او فضیلت په اعتبار فرق نسته او دا چي حضرت موسی علیه السلام یا د یو نبي په مقابله کي رسول الله ﷺ ته افضل ونه ویل سي بلکه ددغه ارشاد اصل مقصد دا لاربنوونه ده چي هیڅ نبي ته د بل نبي په مقابله کي په داسي انداز کي افضل او اشرف مه وایاست چي د هغه نبي تحقیر او توهین وي ،

یا دا څرګنده سي چي یو نبي خو زیات وبښودل سي او بل نبي د مرتبې څخه راکښته سي ځکه چي داسي اظهار فضیلت نه یوازي دا چي د انبیاؤ د عظمت او د هغوئ د احترام خلاف دی بلکه د مختلفو نبیانو منونکو په منځ کي د خپل منځي خصومت او عداوت سبب هم دی ، یا د ذکر سوي ارشاد مراد دادی چي هیڅ نبي ته د بل نبي په مقابله کي د فضل او شرف په ټولو انواعو سره داسي فضیلت او فوقیت مه ورکوئ چي د هغه نبي لپاره هیڅ هم فضیلت پاته نه سي یا دا چي په دغه ارشاد کي د نفس نبوت په اعتبار د فضیلت ورکولو ممانعت مراد دی ځکه چي د نفس نبوت په اعتبار ټول انبیاء برابر دي او هر نبي یو ډول حیثیت لري او زه خو دا هم نه وایم چي یو سړی د یونس ابن متی څخه افضل دی په دې کي لفظ د متی د حضرت یونس علیه السلام د پلار نوم وو لکه څرنګه چي په قاموس کي ذکر سوي دي مګر په جامع الاصول کي دادي چي متی د هغه د مور نوم وو ، د حضرت یونس علیه السلام په خاصه توګه یادوني وجه داده چي هغه د اولو العزمي مظاهره ونه کړل بلکه دا یې وویل چي د هغه قوم د هغه خبره ونه منل او هغه ته یې تکلیف ورسوی نو هغه د بې صبرۍ او غصې څخه د قوم په پرېښودو سره ووتی او په کښتۍ کي

کښېښستې نو د هغه دغه طرز عمل خلک په دې ګمان کې اخته کړل چې د هغه په مقابله کې چا نبي ته فضیلت ورکول موزون دي او دا ویل غیر مناسب خبره نه ده چې د حضرت یونس علیه السلام په مقابله کې فلانی نبي زیات افضل دی مګر رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په ذریعه د خپل امت خلک د دغه ګمان څخه هم منع کړل او څرګنده یې کړل چې دا د حضرت یونس علیه السلام په ذات طعن او د هغوئ د سپکاوی برابر دی.

تاسو یو نبي ته پر بل نبي فوقیت مه ورکوئ، د دې مطلب دا دی چې داسي مه وایاست چې د فلاني نبي په مقابله کې فلانی نبي افضل دی او دا مطلب د دغه ارشاد دی چې تاسو د الله جل جلاله په نبیانو کې یو ته پر بل فضیلت مه ورکوئ او څرنګه چې مخکې بنودل سوي دي، د دغه منع څخه یا خو دا مراد دی چې د نفس نبوت په اعتبار یو نبي ته د بل نبي په مقابله کې فضیلت مه ورکوئ ځکه چې د اصل مرتبې نبوت په اعتبار ټول انبیاء برابر دي، یا دا مراد دی چې هیڅ نبي د بل نبي په مقابله کې داسي زیات مه وړاندي کوئ او د هیڅ نبي افضیلت په دې انداز کې مه بیانوئ چې د نورو نبیانو سپکاوی لازم سي ځکه چې داسي کول کفر دی یا دا چې رسول الله ﷺ دغه منع هغه وخت وفرمایل چې د رسول الله ﷺ افضیلت څرګندونکي وحي نه وې نازل سوې د دغه وحي د نزول وروسته دا منع ختمه سوه او دا خبره ثابته سوه چې رسول الله ﷺ د ټولو نبیانو څخه افضل دی او رسول الله ﷺ ته د بل نبي په مقابله کې افضل او اشرف ویل صحیح دي.

په (لاتفضلوا بین انبیاء الله) کې د تفضلوا لفظ د مشکوة په اکثرو نسخو کې په ضاد سره منقول دی یعني په یوه نسخه کې دغه لفظ په صاد سره منقول دی چې د هغه ژباړه داده چې تاسو د الله جل جلاله د نبیانو په منځ کې هیڅ فرق مه کوئ، په دغه صورت کې به ویل کیږي چې دغه ارشاد د قرآن کریم د دغه آیت څخه ماخوذ دی: لانفرق بین احد منهم.

## د حضرت یونس علیه السلام په اړه یو هدایت

﴿۵۴۶۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَنْبَغِي لِعَبْدٍ أَنْ يَقُولَ إِنِّي خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى. متفق علیه وفي رواية للبخاري وقال من قال انا خير من يونس بن متى فقد كذب.

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: هیڅ سړي ته دا حق نسته چې هغه دا ووایي چې زه (یعني محمد ﷺ) د یونس بن متی څخه غوره یم. بخاري او مسلم او د

بخاري په يو روايت کي دا الفاظ دي کوم څوک چي دا ووايي چي زه (يعني محمد ﷺ) د يونس بن متى څخه غوره يم نو هغه درواغجن دى.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۴۵۱۱، رقم: ۳۴۱۶، ومسلم ۴\۱۸۴۶، رقم: ۱۶۶- ۲۲۷۶.

**تشريح** که يو څوک دا ووايي چي زه د يونس ابن متى څخه غوره يم، دا عبارت دوه احتماله لري يو خو دا چي څوک دي ما ته (يعني رسول الله ﷺ ته) د يونس بن متى څخه افضل نه وايي ځکه چي لوى ولي هم د يو نبي مرتبې ته نه سي رسېداى او کله چي يو سړى د يو نبي همسر کيداى نه سي نو د نبي څخه د غوره کېدو دعوه څرنګه کولاى سي.

نو يقينا هغه درواغجن دى، که دحديث د الفاظو مراد د دوهم احتمال په رڼا کي متعين کړل سي نو بيا دلته د درواغ څخه مراد به کفر وي، داسې خبره کوونکى به کافر سي ځکه چي د علماؤ پر دې اتفاق دى چي کوم څوک ځان د نبي او پيغمبر څخه غوره وګڼي نو هغه کافر دى، پاته سوه د لومړني احتمال خبره نو د رسول الله ﷺ دا فرمايل چي څوک دي ما ته د يونس ابن متى څخه غوره او افضل نه وايي، نو دا پر تواضع او خاکسارۍ محمول دى چي رسول الله ﷺ د خاکسارۍ په توګه داسي وفرمايل، نو دا حديث به دهغه روايت مخالف نه وي چي په هغه کي رسول الله ﷺ دا وفرمايل: انا سيد ولد آدم ولا فخر، زه د آدم د ټولي اولادي سردار يم او زه دا خبره دفخر په توګه نه کوم، (بلکه د حقيقت د اظهار او د تحديث نعمت په توګه وايم) او د حضرت يونس عليه السلام د تخصيص وجه د تېر حديث په تشريح کي بيان سوې ده.

## د حضرت خضر عليه السلام ذکر

﴿۵۴۶۶﴾: وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْغُلَامَ الَّذِي قَتَلَهُ الْخَضِرُ طُبِعَ كَافِرًا وَلَوْ عَاشَ لَأَرْهَقَ أَبَوَيْهِ طُغْيَانًا وَكُفْرًا. متفق عليه.

د حضرت ابى بن کعب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: حضرت خضر عليه السلام چي کوم هلک قتل کړى وو هغه د کفر پر فطرت پيدا کړل سوى وو که هغه ژوندى پاته سوى واى نو خپل مور او پلار به يې په کفر او سرکښۍ کي اخته کړي واى. بخاري او مسلم.

**تخريج** لم نجده عند البخاري وهو في صحيح مسلم ۴\۲۰۵۰، رقم: ۲۹- ۲۶۶۱.

**تشریح**: د کفر په طبیعت پیدا سوی وو، ددې مطلب دادی چې د هغه په مقدر کي دا لیکلي وه چې د هغه خاتمه به پر کفر کیږي نو دغه حدیث د هغه روایت خلاف نه دی چې په هغه کي فرمایل سوي دي: کل مولود یولد علی فطرة الاسلام، هر ماشوم د اسلام پر فطرت باندي پیدا کیږي، ځکه چې د اسلام پر فطرت باندي د پیدا کېدو مطلب د انساني فطرت یو داسي مسافت کېدل دي چې دهدایت نور ته ورځي او د اسلام د قبلولو استعداد او صلاحیت لري او دا خبره ددې خلاف نه ده چې هیڅ مولود په وړاندي تللو سره دخپل ماحول او دخپل نفس د ګمراهیو داسي ښکار سي چې د هغه استعداد او صلاحیت په دب کېدو سره پاته سي او هغه دخپل فطرت پر تقاضا باندي قائم پاته نه سي تر دې چې دهغه خاتمه پر کفر وسي.

خپل مور او پلار به یې په کفر او سرکښۍ کي اخته کړي وای، یعني هغه به دخپل مور او پلار د ګمراهۍ سبب جوړ سوي وای په دې توګه چې مور او پلار د هغه د میني له کبله په مجبوره کېدو سره دهغه پیروي پیل کړې وای او خپله هم کافران سوي وای، خلاصه دا چې د هغه هلک د وژلو علت دا هم وو چې هغه د کفر په طبیعت اخیستلو سره پیدا سوی وو، دوهم شی دا وو که بالفرض هغه ژوندی پاته سوی وای نو د خپل مور او پلار د ګمراهۍ سبب به جوړ سوي وای دا خو د حدیث وضاحت سو اوس خپله دحضرت خضر علیه السلام په اړه تفصیل راوړل پکار دي، لفظ د خضر د خاء په زور او د ضاد په زبر سره دی او په یوه نسخه کي د خاء په زبر او د ضاد په جزم سره منقول دی، دا د هغه لقب دی اصل نوم یې لیان ابن ملکان دی، ځینو حضراتو دا لیکلي دي چې نوموړی د حضرت الیاس علیه السلام ورور دی، ځینو حضراتو ویلي دي چې دحضرت آدم علیه السلام صلبي زوی وو او ځینو ورته په اوو واسطو د حضرت نوح علیه السلام د اولاد څخه ویلي دي او وضاحت یې کړی دی چې دده پلار د سلاطین څخه وو، یو قول دا هم دی چې دی د حضرت ابراهیم علیه السلام په زمانه کي وو، د مشهور قول مطابق حضرت خضر علیه السلام پیغمبر دی، اوږد عمر لري او دعامو خلکو دنظر څخه پټ دی او نه یوازي دا چې ژوندی دی بلکه د قیامت تر ورځي پوري به ژوندی وي ځکه چې هغه آب حیات څښلي دي مګر ځینو لویو محدثینو لکه بخاري او ابن مبارک د هغوئ د تل ژوند څخه انکار کړی دی،

جمهورو علماوو، صوفیانو او ډېر صالحان دنوموړي د ژوند قائل دي او دحضرت خضر علیه السلام دځینو صالحانو سره ملاقات کول د هغوئ سره خبري کول او دښېګڼي په ځایو کي دهغوئ موجود کېدل ډېر مشهور دي، دمشائخو په حالاتو او کلام کي د دوئ ذکر ډېر راځي او عجیب او غریب پېښي یې بیانیږي، د حضرت غوث الثقلین شیخ عبدالقادر جیلاني رحمة الله علیه په حالاتو

کي ليکلي دي چي يو ځل حضرت شيخ پر يوه مسئله باندي د حديث نبوي په رڼا کي خبري کولې چي ناڅاپه هغه حضرت خضر عليه السلام په هواء باندي سپور وليدى نو وه يې فرمايل: (قف يا اسرائيلي واسمع كلام محمدي) اې اسرائيلي (خضر) ودرېږه او کلام محمدي واوره.

نقل سوي دي چي د هغه زمانې په مشائخو کي څوک چي به د حضرت خضر عليه السلام سره يو ځاى سو نو هغه ته به يې دا هدايت کوى چي د شيخ عبدالقادر جيلاني رحمه الله مجلس ته خامخا ورځئ ځکه چي د هغه په مجلسونو کي برکتونه نازلېږي او هلته فلاح او سعادت تر لاسه کېږي.

## د خضر وجه تسميه

﴿۵۴۶۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ إِنَّمَا سُمِّيَ الْخَضِرَ أَنَّهُ جَلَسَ عَلَى فَرْوَةٍ بَيْضَاءَ فَإِذَا هِيَ تَهْتَزُّ مِنْ خَلْفِهِ خَضْرَاءَ. رواه البخاري.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د حضرت خضر عليه السلام نوم په دې سبب خضر اېښودل سوى دى چي هغه پر يو وچه سپينه مځکه باندي ناست وو چي هلته شينکيا پيدا سوه او تر ده وروسته غځېدل. بخاري

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٤٣٣، رقم: ٣٤٠٢.

**د لغاتو حل**: فروة: الارض اليابسة (وچه مځکه)

## حضرت موسى عليه السلام او د مرګ ملائکه

﴿۵۴۶۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ مَلَكُ الْمَوْتِ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مرګ ملائکه حضرت

إِلَى مُوسَى ابن عمران فَقَالَ لَهُ أَجِبْ رَبَّكَ قَالَ فَلَطَمَ مُوسَى عَلَيْهِ السَّلَام

موسى عليه السلام ته راغلل ورته وه يې ويل: د خپل پروردګار حکم قبول کړه (يعني د الله جل جلاله په حکم سره زه ستا روح قبض کولو لپاره راغلى يم) موسى عليه السلام پر سترګه په چپلاخه وواهه چي

عَيْنَ مَلَكِ الْمَوْتِ فَفَقَأَهَا قَالَ فَرَجَعَ الْمَلَكُ إِلَى اللهِ تَعَالَى فَقَالَ إِنَّكَ أَرْسَلْتَنِي

د هغه څخه د مرګ د ملائکي سترګه ووتل، د مرګ ملائکه د الله تعالى په دربار کي حاضره

إِلَى عَبْدٍ لَكَ لَا يُرِيدُ الْمَوْتَ وَقَدْ فَقَأَ عَيْنِي قَالَ فَرَدَّ اللَّهُ إِلَيْهِ عَيْنَهُ وَقَالَ

چي هغه مرگ نه خوښوي، او هغه زما سترگه ړنده كړه، رسول الله ﷺ فرمايي : الله تعالی د ملک الموت سترگه روغه كړه ورته وه يې فرمايل :

ارْجِعْ إِلَى عَبْدِي فَقُلْ الْحَيَاةَ تُرِيدُ فَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ الْحَيَاةَ فَضَعْ يَدَكَ عَلَى

دويم وار زما بنده ته ورسه او ورته ووايه چي ايا ته د ډېر ژوند خوښوې، كه د دې خواهش لرې نو

مَتْنِ ثَوْرٍ فَمَا تَوَارَتْ يَدُكَ مِنْ شَعْرَةٍ فَإِنَّكَ تَعِيشُ بِهَا سَنَةً قَالَ ثُمَّ مَهْ قَالَ

خپل لاس د يو غوايي پر شا كښېږده څومره وريښتان چي ستا تر لاس لاندي راسي د هر وريښته په حساب به ستا يو كال عمر زيات سي، د دې پيغام اوريدو سره موسی عليه السلام وويل بيا به څه وي،

ثُمَّ تَمُوتُ قَالَ فَالْآنَ مِنْ قَرِيبٍ رَبِّ أَدْنِنِي مِنَ الْأَرْضِ الْمُقَدَّسَةِ رَمْيَةً

ملک الموت ورته وويل: بيا به مرگ وي، موسی عليه السلام وويل نو زه مرگ هم اوس قبلوم، (عرض يې وكړ) اې پروردگاره! ما ارض مقدسه (يعني بيت المقدس) ته نژدې كړې كه څه هم د يو

بِحَجَرٍ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللَّهِ لَوْ أَنِّي عِنْدَهُ لَأَرَيْتُكُمْ قَبْرَهُ إِلَى جَانِبِ الطَّرِيقِ عِنْدَ الْكَثِيبِ الْأَحْمَرِ. متفق عليه.

د برې ويشتلو په فاصله وي، د دې بيان كولو سره رسول الله ﷺ وفرمايل : قسم په خدای كه زه بيت المقدس ته نژدې وای نو ما به تاسو ته د موسی عليه السلام قبر ښودلی وای چي د لاري پورته د يوې سرې غونډۍ نژدې واقع دی. بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۰۶، رقم: ۱۳۳۹، ومسلم ۴\۱۸۴۲، رقم: ۱۵۷- ۲۳۷۲.

**تشريح** اې ربه كريمه! ما مقدسي ځمكي ته نژدې كړه: حضرت موسی عليه السلام په آخري وخت كي دغه دعاء ځكه وكړل چي هغه بيت المقدس ته نژدې دفن كېدل غوښتل او په هغه زمانه كي هغه ځای تر ټولو ځايو افضل او اشرف وو ځكه چي هلته د انبياؤو مزارونه وه، كېدای سي چي د ذكر سوي پېښي په وخت كي حضرت موسي عليه السلام په تيه ميدان كي وو نو هغه په آخري وخت كي د بيت القدس د نژدې كېدو غوښتنه وكړل او د دغه غوښتني د سختوالي څرگندولو لپاره يې

وويل چي كه څه هم ددغه ځاى څخه هغه قربت د دومره كمي فاصلې په اندازه وي چي يوه غورځول سوې ډبره يې قطع كوي او هغه د بيت المقدس نژدې دفن كېدو خواهش څرګند كړ، مګر په بيت المقدس كي د دفن كېدو خواهش يې ونه كړ ځكه چي هغه ته دا ښه وه كه زه په بيت المقدس كي دفن كړل سم نو زما قبر به ډېر مشهور او دخلګو زيارت ګاه وګرځي او كيداى سي چي خلك له دې كبله په فتنه كي اخته سي، ځينو محققينو ليكلي دي چي په حديث كي د كومي سرې ډبري يادونه ده هغه يو كلي اويحاء ته نژدې ده او دغه كلى د تيه ميدان ته تر ټولو نژدې د وادي مقدس سيمه ده، په هر حال ددغه حديث څخه څرګنده سوه چي د صالحانو مزارونو او مدفن ته نژدې او د تبرك په ځايو كي دفن كېدل مستحب دي.

دا يادونه هم ضروري ده چي ځينو خلكو چي د عقل او قياس بنديان دي ددغه حديث څخه انكار كړى دى، هغوئ وايي چي د مرګ د ملائكو د ستركو څخه لاس پرېولل څه معني لري، د روح قبض كولو لپاره راتلونكې ملائكه په چپلاخه وهل د انساني طاقت لپاره څرنګه ممكن كېداى سي او دا چي ددغه پېښي سره مرګ ناخوښه ګڼل او په دنيا كي تر ډېر وخت پوري د پاته كېدو غوښتنه كول لازميږي او داسي كول د هغه انسان شان نه سي كيداى چي د نبوت او رسالت پر عظيم منصب باندي فائز وي، ددې خبرو جواب د حديث د الفاظو په دغه تعبير كي تر لاسه كيداى سي چي كله د حضرت موسى عليه السلام په خدمت كي د مرګ ملائكه حاضره سول نو هغه په انساني شكل كي وه، حضرت موسى عليه السلام د هغه په لېدو سره ونه پېژندل چي دا د مرګ ملائكه ده او زما د روح قبض كولو ته راغلې ده، هغه ته دا ناخوښه سول چي يو پردى سړى بېله اجازې د هغه ځاى ته ولي راسي او بيا يې ورته د مرګ پيغام هم وركړ، نو دا خطره هم سول چي دغه سړي د وژني په نيت ما ته راغلى دي ځكه هغه په غصه كي راغلى او د هغه خلاف يې دفاعي اقدام كول ضروري وګڼل نو هغه يې پر مخ په چلاخه وواهه، او ملائكه د انسان په شكل وه نو بشري اثراتو كار وكړ او د حضرت موسى عليه السلام په چلاخه د زخم څخه د هغه ستركه ړنده سول. بيا دا چي نوموړي هغه د يو درواغجن په حيثيت سره هم وليدى ځكه چي هغه د روح قبض كولو دعوه كړې وه او څرګنده ده چي يو انسان روح نه سي قبض كولاى نو هغه ته پر درواغو باندي غصه راغلل او پر درواغجن باندي غصه لله في الله وي، ځكه پر حضرت موسى عليه السلام باندي اعتراض څرنګه وارد كيداى سي، او دا وجه ده چي د هغه پر دغه كړنه باندي د الله جل جلاله له خوا عتاب نازل نه سو، په هر حال د حضرت موسى عليه السلام ددغه كړني څخه وروسته د مرګ ملائكي خپل اصل حيثيت څرګند نه كړ او هغه ددې ښودلو څخه پرته چي هغه د مرګ ملائكه ده

، غائبه سوه او د الله ﷻ دربار ته ورسېدل.

اوس الله ﷻ هغه بیا پر ملکوتي هیئت کړل او د حضرت موسی علیه السلام په خدمت کي یې دوهم ځل ولېږل ، همدارنګه هغه د عیب او نقصان څخه پاکه سوه چي په بشري شکل او صورت کي د ستر کي د زخمي کېدو څخه وروسته پیدا سوي وو ، بلي خوا ته د مرګ ملائکي د حضرت موسی علیه السلام د خیالاتو څخه د پوهېدو پرته په خپله په دې پوه سو چي حضرت موسی علیه السلام د مرګ په نامه خفه سو او مرګ نه غواړي او د الله ﷻ دربار ته په رسېدو سره یې شکایت هم وکړ مګر الله ﷻ په اصل حال خبر وو ، هغه د ملائکي په غلط فهمي او د حضرت موسی علیه السلام د جلالت شان دواړو اظهار لپاره دا طریقه اختیار کړل چي د مرګ ملائکه یې دوهم ځل د حضرت موسی علیه السلام په خدمت کي حاضره کړل او په یو بلیغ انداز کي یې د مرګ پیغام وررسوی، بلي خوا ته حضرت موسی علیه السلام د یو پردي سړي په ناڅاپه غائب کېدو باندي سمدستي محسوس کړل چي په حقیقت کي دغه معامله بلډول ده نو د مرګ ملائکه چي دوهم ځل حاضره سول او حضرت موسی علیه السلام ته یې پیغام راوړ نو د هغه طرز او طریقه سمدستي بدل سول بیا هغه پیغام اجل ته په لبیک ویلو کي ځنډ ونه کړ او د رفیق اعلي سره یو ځای سو ، ویل کیږي چي د حضرت موسی علیه السلام په مزاج کي زیاته تیزي او شدت وو هغه د جلال مظهر وو ،

د مزاج او اصولو خلاف یو خبره به ورته د زغملو وړ نه وه ، ددې اندازه له دې څخه کیږي چي کله هغه د چلې او تورات اخیستلو لپاره جبل طور یا حوراب غره ته ولاړی او تر شا یې د بني اسرائیلو څارونکی حضرت هارون علیه السلام جوړ کړی وو چي د هغه د تللو تر میاشت زیات وخت تېر سو نو بني اسرائیلو ته د لوبي کولو موقع په لاس ورغلل او د یو باطن سړي سامري په غولولو سره د قوم خلکو د ګیلګي عبادت پیل کړ، حضرت هارون علیه السلام قوم ډېر پوه کړ او ددغه مشرکانه کړني څخه یې منع کړل مګر هیچا یې خبره ونه منل ، حضرت موسی علیه السلام چي بېرته راغلی او قوم یې د ګیلګي په عبادت کي ولیدی نو په غصه سو او په دې خیال کولو سره چي هارون علیه السلام ددغه خلکو په شرک منع کولو کي کوتاهي کړې ده هغه یې تر غاړه ونیوی او د هغه د سر وېښتان یې کشول او تر ږیري پوري یې هغه ته لاس واچوی، حضرت هارون علیه السلام ټول صورت حال ورته بیان کړ او خپل بې ګناه کېدل یې ثابت کړل بیا د حضرت موسی علیه السلام د جلال او غصې څخه یې خلاصون تر لاسه کړ، په هر حال ددغه حدیث په صحت کي څه شک نسته ، او باید پر دې عقیده وي او که ددې ځیني خبري د قیاس خلاف معلومیږي نو دخپل فهم کوتاهي ګڼل پکار دي ، که څه هم د ذکر سوو تعبیرونو او تاویلونو په رڼا کي په دغه حدیث کي هیڅ خبره د قیاس خلاف نه معلومیږي .

## د نبیانو حلیې

﴿۵۴۶۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُرِضَ عَلَيَّ

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: (په معراج کي) انبیاء علیهم

الْأَنْبِيَاءُ فَإِذَا مُوسَى ضَرْبٌ مِنَ الرِّجَالِ كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوءَةَ وَرَأَيْتُ عِيسَى

السلام زما په وړاندي راوستل سول، ما ولیدل چي حضرت موسی ﷤ د شنوءة د قبیلې د خلکو سره مشابه دی، ما عیسی

ابْنَ مَرْيَمَ عَلَيْهِ السَّلَام فَإِذَا أَقْرَبُ مَنْ رَأَيْتُ بِهِ شَبَهًا عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُودٍ

بن مریم ﷤ ولیدی زیات مشابه د عروه بن مسعود سره،

وَرَأَيْتُ إِبْرَاهِيمَ صَلَوَاتُ اللّٰهِ عَلَيْهِ فَإِذَا أَقْرَبُ مَنْ رَأَيْتُ بِهِ شَبَهًا صَاحِبُكُمْ

ما ابراهیم علیه السلام ولیدی چي ستاسو د دوست (یعني د رسول الله ﷺ) سره زیات مشابه

يَعْنِي نَفْسَهُ وَرَأَيْتُ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَام فَإِذَا أَقْرَبُ مَنْ رَأَيْتُ بِهِ شَبَهًا دَحْيَةُ. رواه مسلم.

دی او ما جبرائیل ﷤ ولیدی چي د حبه بن خلیفه سره مشابه دی، مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱\۱۵۳، رقم: ۲۷۱- ۱۶۷.

**د لغاتو حل**: شنوءة: وهي قبيلة معروفة. (یوه مشهوره قبیله)

**تشریح**: کله چي نبیان زما مخته راوستل سول: دا د معراج د شپې یادونه ده، رسول الله ﷺ په هغه شپه په مسجد اقصي کي د هغه نبیانو سره لیدنه وکړل او هغوئ یې ولېدل، د دغه ملاقات په وخت کي د نبیانو د ارواح مقدسه سره د هغوئ د اجسامو سره چي په دنیا کي یې درلودل د رسول الله ﷺ مخته راوستل سول نو رسول الله ﷺ د دغه انبیاء کرامو شکل او صورت او دهغوئ سرترپایه خاکه د خپلو صحابه کرامو په مخکي په اېښودو سره د هغه کسانو یادونه وکړل کوم چي صحابه کرامو لیدلي وه چي د بدن په اعتبار د هغه نبیانو مشابهت یې درلود، حضرت موسی ﷤ یې د سپک بدن ولیدی او هغه یې سرترپایه د بنو شنؤه قبیلې د خلکو په

ډول وګرځوی، دغه قبیله د یمن سره تعلق درلود او د دغه قبیلې خلک د کمزوري بدن والا وه، حضرت عیسی علیه السلام یې د یو صحابي، حضرت عروه ابن مسعود رضی الله عنه په ډول وښود چې عروه ابن مسعود رضی الله عنه د حضرت عیسی علیه السلام ډېر مشابه دی. د حضرت ابراهیم علیه السلام د مشابهت لپاره یې خپل ذات مبارک وړاندي کړ، ددې څخه ثابته سول چې په حضرت ابراهیم علیه السلام او رسول الله صلی الله علیه وسلم کې ډېر زیات مشابهت وو او د حضرت جبرائیل علیه السلام په اړه یې وښودل چې ددحیه ابن خلیفه ډېر مشابه وو، حضرت دحیه د یو مشهور صحابي نوم دی چې ډېر ښکلي وو، حضرت جبرائیل علیه السلام به زیات وختونه د هغه په شکل کي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راتلی او د معراج په شپه هم د رسول الله صلی الله علیه وسلم په وړاندي د هغه په شکل او صورت کي راغلی.

﴿۵۴۷۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَأَيْتُ لَيْلَةَ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د معراج په شپه ما

أُسْرِيَ بِي مُوسَى رَجُلًا آدَمَ طُوَالًا جَعْدًا كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوءَةَ وَرَأَيْتُ عِيسَى

موسی علیه السلام ولیدی چې لوړ قدی او غنم رنګی وو او د هغه ویښتان ګردي وه ګویا چې هغه د قبیله شنوءة یو کس دی ما عیسی علیه السلام ولیدی چې

رَجُلًا مَرْبُوعًا الْخَلْقِ إِلَى الْحُمْرَةِ وَالْبَيَاضِ سَبِطَ الرَّأْسِ وَرَأَيْتُ مَالِكًا خَازِنَ

د زیږیدني د اعتبار څخه متوسط قد او قامت لري د هغه رنګ سور او سپین وو او د سر ویښتان یې هوار وه، ما د دوږخ خزاندار ولیدی

النَّارِ وَالدَّجَّالَ فِي آيَاتٍ أَرَاهُنَّ اللّٰهُ إِيَّاهُ فَلَا تَكُنْ فِي مِرْيَةٍ مِنْ لِقَائِهِ. متفق علیه

او دجال مي ولیدی او هغه دواړه مي په هغه علاماتو کي ولیدل چې الله تعالی راته وښودل. په دې وجه اې مخاطبه! د هغوئ په لیدو او د هغوئ سره په یو ځای کیدو کې شک مه کوه. (آخري جمله د راوي ده). بخاري او مسلم.

**تخریج** صحیح البخاري (فتح الباري): ۶/۳۱۴، رقم: ۳۲۳۹، ومسلم ۱/۱۵۱، رقم: ۲۶۷-۱۶۵.

**تشریح**: د جعد معنی د ګردي ویښتانو ده او ددې په مقابل کي د سبط معنی ده یعني د ویښتانو جګ دریدل، نو دلته دا مراد دی چې د حضرت موسی علیه السلام ویښتان جګ ولاړ نه وه بلکه

كړي وه، شيخ عبد الحق دهلوي رحمة الله عليه په خپل شرح کي د جعد لاندي ليکلي دي چي ددغه لفظ اکثر اطلاق پر پېچلو وېښتانو باندي کيږي مګر کله ناکله دغه لفظ د ټينګ او سخت بدن لپاره هم استعماليږي او دلته په حديث کي دغه لفظ په دې معنی کي استعمال سوی دی يعني حضرت موسی عليه السلام د يو سخت بدن څښتن وو، حضرت شيخ د جعد دا معنی مراد اخيستلو وجه دا ليکلې ده چي په تېر سوي حديث کي د حضرت موسی عليه السلام په اړه دا منقول دي چي هغه رجل الشعر وو او د رجل اطلاق پر داسي وېښتانو باندي کيږي چي ول ول نه وي، ددې وضاحت په راتلونکي حديث کي هم راځي.

د روايت دغه جمله (في ايات اراهن الله اياه) د رسول الله ﷺ د ارشاد برخه نه ده او دغه آخري جمله (فلا تکن في مرية من لقائه) د حديث د لومړني برخي سره تعلق لري چي په هغه کي د حضرت موسی عليه السلام ذکر دی او ددې په ذريعه د قرآن کريم دغه آيت ته اشاره کول مقصد دي:

لَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ فَلاَ تَكُن فِي مِرْيَةٍ مِّن لِّقَائِهِ

او موږ موسي ته کتاب ورکړی وو نو (اې محمد ﷺ) ته د معراج په شپه کي د موسي عليه السلام په ليدنه کي څه شک مه کوه.

يعني تاسو چي د حضرت موسی عليه السلام سره د معراج په شپه ليدنه وکړل هغه رېښتوني او حقيقت دی، پر دوکه يا نظر بندۍ باندي يې مه قياس کوه نو د ذکر سوې څخه دغه آيت ته په اشاره کولو سره هر څوک خبردار کيږي چي کله د قرآن کريم څخه هم دا ثابته ده چي د معراج په شپه د رسول الله ﷺ د حضرت موسی عليه السلام سره يو ځای کېدل يو رېښتوني حقيقت دی نو هيڅوک دي هم په دې کي شک او شبه نه کوي.

## د معراج په شپه د نبيانو سره ملاقات او د شرابو د جام څخه انکار

﴿۵۴۷۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د معراج په شپه

أُسْرِيَ بِي لَقِيتُ مُوسَى فَنَعَتَهُ فَإِذَا رَجُلٌ مُضْطَرِبٌ رَجِلُ الشَّعْرِكَأَنَّهُ مِنْ

ما د موسی عليه السلام سره ملاقات وکړ، ددې فرمايلو سره رسول الله ﷺ د موسی عليه السلام صفت بيان کړ او وه يې فرمايل: هغه يو مضطرب (د الله جل جلاله د بيري څخه رپيدونکی) سړی دی د سر وريښتان

رِجَالِ شَنُوءَةَ وَلَقِيتُ عِيسَى رَبْعَةٌ أَحْمَرُ كَأَنَّمَا خَرَجَ مِنْ دِيمَاسٍ يَعْنِي

يې لوى وه ګويا هغه د قبيله شنوة يو كس دى، او ما د حضرت عيسى عليه السلام سره ملاقات وكړ هغه د متوسط قامت او سور رنګى دى ګويا چي اوس

الْحَمَّامَ وَرَأَيْتُ إِبْرَاهِيمَ وَأَنَا أَشْبَهُ وَلَدِهِ بِهِ قَالَ فَأُتِيتُ بِإِنَاءَيْنِ وَأَحَدُهُمَا

د حمام څخه راوتلى وي او ما ابراهيم عليه السلام وليدى او د هغه په اولاد كي زه د هغه زيات مشابه يم، بيا ما ته دوه لوښي راكړل سول په يوه كي

لَبَنٌ وَالْآخَرُ فِيهِ خَمْرٌ فَقِيلَ لِي خُذْ أَيَّهُمَا شِئْتَ فَأَخَذْتُ اللَّبَنَ فَشَرِبْتُهُ

شيدې وې او په دويم كي شراب، ما ته وويل سول چي په دې كي دي كوم يو خوښ وي هغه واخله ما شيدې واخيستې او وه مي څښلې

فَقِيلَ لِي هُدِيتَ الْفِطْرَةَ أَمَا إِنَّكَ لَوْ أَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ أُمَّتُكَ. متفق عليه.

بيا ما ته وويل سوه تا ته د فطرت لار وښودل سوه (يعني الله تعالى تا ته د اسلام ددين هدايت وكړ) كه تا شراب اخيستى واى نو ستا امت به ګمراه سوى واى. بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٤٢٨، رقم: ٣٣٩٤، ومسلم ١\١٥٤، رقم: ٢٧٢- ١٦٨.

**تشريح** هغه يو مضطرب سړى معلومېدى، ددې په وضاحت كي د علماؤ مختلف قولونه دي، ځينو دا ويلي دي چي دلته د مضطرب څخه د اوږده قد والا مراد دى، يعني حضرت موسى عليه السلام جګ سړى وو، ځينو ويلي دي چي دغه لفظ د كم غوښو والا په معنى كي دى يعني حضرت موسى عليه السلام نرى او دكمو غوښو والا وو، او ځينو دا ويلي دي چي په دغه جمله كي د مضطرب لفظ د الهي بيري څخه د رپېدونكي په معني كي دى، د حضرت موسى عليه السلام په اړه منقول دي چي هغه به د لمانځه او عبادت په دوران كي د الله جل جلاله د بيري څخه رپېدى.

په (رجل الشعر) كي د رِجل لفظ د جيم په زېر سره دى او د جيم په جزم او زور سره هم منقول دى، ددغه لفظ اطلاق پر هغه وېښتانو باندي كيږي چي نه بالكل جګ وي چي هغه ته سبط ويل كيږي او نه بالكل پېچلي وي چي هغه ته جعد ويل كيږي، بلكه معمولي پيچل سوي وي، مګر ملا علي قاري رحمه الله دا ليكلي دي چي دا ويل زيات مناسب دي چي د رجل څخه مراد هغه

وېښتان دي چي د هغه پېچل غالب وي يعني پيچلو ته نژدې وي، هغه دا معني ځکه مراد کړې ده چي دغه روايت د تېر سوي حديث خلاف نه سي چي په هغه کي د حضرت موسی رحمة الله علیه د وېښتانو د پيچل کېدو يادونه ده.

په دغه حديث کي د حضرت عيسی علیه السلام رنګ سور ښودل سوی دی حال دا چي په تېر سوي حديث کي سور او سپين فرمايل سوي دي، مګر په دواړو کي تضاد نسته ځکه کوم چي د هغه د اصل رنګ تعلق دی نو هغه سور او سپين وو او په دې اعتبار چي پر هغه سوروالي غالب وو او د هغه پر رنګ باندي د سور اطلاق صحيح سو.

په (من ديماس يعني الحمام) کي د يعني الحمام الفاظ په اصل حديث کي نسته بلکه د يو راوي عبدالرزاق الفاظ دي، چي هغه د دغه لفظ په ذريعه د ديماس وضاحت کړی دی چي د دغه لفظ څخه د رسول الله ﷺ مراد حمام وو، په هر حال داسي لکه چي اوس د حمام څخه راوتلي وي، د دغه جملې په ذريعه رسول الله ﷺ په اصل کي د حضرت عيسی علیه السلام د رنګ د تازګۍ او د مخ مبارک د ځلانده کېدو خوا ته اشاره وکړل چي د روحانيت د غلبې عکس وو.

د لبن سره د في نه استعمالول او د خمر سره استعمالول په ظاهره د تفنن له موخي دي مګر ځينو حضراتو ويلي دي چي په دې کي دې ته اشاره ده چي شراب خو کم وه او شېدې زياتي وې او د رسول الله ﷺ په وړاندي د دواړو شيانو وړاندي کولو څخه مقصد دا وو چي پر ملائکو باندي د رسول الله ﷺ دغه فضيلت او عظمت څرګند سي چي رسول الله ﷺ په هر حال کي هغه شی خوښوي چي د خير او غوره والي ضامن وي او کوم شی چي خرابي لري هغه خپله د رسول الله ﷺ طبيعت منلو څخه انکار کوي.

تاسو ته د فطرت لار وښودل سول: د شېدو د پيالې اخيستلو او اختيارولو د فطرت له موخي يعني د هدايت په نور سره ځکه تعبير کړل سو چي په دغه عالم سفلي کي شېدې يو داسي شی دی چي پاک، خالص او خوږې کېدو په اعتبار ځانګړې حيثيت لري او ماشوم ته تر ټولو وړاندي د روزنې غذا شېدې تر لاسه کيږي، نو په عالم بالا کي د شېدو مثال هدايت او فطرت وګرځول سو چي په هغه کي قوت او روحاني غذا تر لاسه کيږي، ځکه څرګنده سول چي په عالم بالا کي د دغه دنيا د شيانو مثالونه او صورتونه ټاکل سوي دي چي د هغه څخه مناسب معاني او اشارې اخذ کيږي، د علم الرويا په مستندو کتابو کي ليکلي دي چي کوم څوک په خوب کي شېدې ووينې. يا خپله شېدې څښل ووينې نو د دې تعبير د علم دين او هدايت دی، حال دا چي د شرابو معامله د دې برعکس ده چي په دنيا کي د ټولو خرابيو، خبائثو او فتنو رېښه ده.

که تاسو شراب څښلي وای نو ستاسو امت به ګمراه سوی وای، دا ځکه وویل سول چي که چیري رسول الله ﷺ هغه وخت د شرابو پیاله اختیار کړې وای نو د رسول الله ﷺ د امت لپاره به هم شراب تر لاسه سوي وای او همدارنګه د امت په خلکو کي به د شرابو خرابي او د هغه مضر اثرات داخل سوي وای، څرګنده دي وي چي د رسول الله ﷺ ذات په هر ډول خرابۍ کي د اخته کېدو څخه ازلي او ابدي خوندي وو او د رسول الله ﷺ په یو ګمراهي کي اخته کېدل تصور کیدای هم نه سي، ځکه رسول الله ﷺ ته دا نه وه ویل سوي که تا شراب څښلي وای نو ته به ګمراه سوی وای بلکه د ګمراهۍ نسبت د رسول الله ﷺ د امت خلکو ته وسو، د حدیث د دغه جملې څخه دا نکته څرګنده سول چي رهبر او پېشوا، که نبي وي یا عالم وي یا د یو هیواد پاچا او مشر وي د هغه استقامت او اولوالعزمي د هغه د پیروانو او منونکو د استقامت او اولوالعزمۍ ذریعه او سبب وي، ځکه چي د هغه، هغه حیثیت وي کوم چي په یو بدن کي د نورو اندامو په نسبت د زړه حیثیت وي.

## نبیان د دنیا څخه د تلو وروسته هم نېک اعمال کوي

﴿۵۴۷۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سِرْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي موږ د مکې او مدینې په منځ کي د رسول الله ﷺ

بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ فَمَرَرْنَا بِوَادٍ فَقَالَ أَيُّ وَادٍ هٰذَا فَقَالُوا وَادِي الْأَزْرَقِ قَالَ

سره سفر وکړ موږ چي یو ځنګل ته ورسیدو نو رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه دا کوم ځنګل دی؟ خلکو عرض وکړ دا وادي ازرق ده، رسول الله ﷺ وفرمایل

كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى مُوسَى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ مِنْ لَوْنِهِ وَشَعْرِهِ شَيْئًا

لکه زه چي دا وخت حضرت موسی علیه السلام ته ګورم، نو رسول الله ﷺ د موسی علیه السلام د رنګ او وریښتانو څه کیفیت بیان کړ چي

وَاضِعًا إِصْبَعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ لَهُ جُؤَارٌ إِلَى اللّٰهِ بِالتَّلْبِيَةِ مَارًّا بِهٰذَا الْوَادِي قَالَ ثُمَّ

موسی علیه السلام د ځنګل څخه په غوږونو کي ګوتي ورکړي په لوړ آواز په تلبیه ویلو سره تیریږي،

سِرْنَا حَتّٰى أَتَيْنَا عَلَى ثَنِيَّةٍ فَقَالَ أَيُّ ثَنِيَّةٍ هٰذِهِ قَالُوا هَرْشَى أَوْ لِفْتٌ فَقَالَ كَأَنِّي

راوي وايي بيا موږ مخته ولاړو او ثنيه ته ورسيدو (ثنيه هغه لار ده چي د دوو غرونو په منځ کي واقع ده) نو رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه دا کومه ثنيه ده؟ خلکو عرض وکړ هرشا يا لفت ده،

أَنْظُرُ إِلَى يُونُسَ عَلَى نَاقَةٍ حَمْرَاءَ عَلَيْهِ جُبَّةُ صُوفٍ خِطَامُ نَاقَتِهِ خُلْبَةٌ مَارًّا بِهَذَا الْوَادِي مُلَبِّيًا. رواه مسلم.

رسول الله ﷺ وفرمايل: ګويا زه يونس عليه السلام ته ګورم چي پر سره اوښه باندي سپور دی او د وړي چپنه يې اغوستې ده د هغه د اوښي مهار د خرما د درختي د پوستکي دی او د دغه شيلې سره په تلبيه ويلو سره تيريږي. مسلم.

**تخريج** صحيح مسلم ۱\ ۱۵۲، رقم: ۲۶۸- ۱۶۶.

**د لغاتو حل**: جُؤار: اي تضريح. خلبة: ليفة نخل.

**تشريح** د دغه حديث څخه يوې خوا ته دا معلومه سوه چي نبيان د مرګ څخه وروسته هم د خير اعمال کوي، بلي خوا ته د حج ارزښت هم ثابت سو چي دغه عبادت د الله جل جلاله او د هغه د نبيانو د شعائرو څخه دی، او نبيان له دنيا څخه د رخصت کېدو وروسته هم هغه نه پرېږدي نو کوم څوک چي د حج توان او قدرت ولري هغه دي د دغه فريضې څخه نه غافل کيږي.

دلته دا سوال پيدا کيږي چي د انبياء عليهم السلام په اړه دا ويل چي هغوئ حج کوي او تلبيه کوي، او د تلبيه کولو په وخت کي خو سفر وي لکه چي د دغه حديث څخه ثابتيږي نو څرنګه ممکن ده چي هغوئ وفات سوي دي او دغه دنيا دار آخرت نه دی، دار العمل دي چي د هغه څخه د دوئ بدني تعلق منقطع سوی دی؟ نو ددې جواب دادی چي انبياء عليهم السلام هم د شهيدانو په ډول دي بلکه تر هغوئ هم افضل دي او د شهيدانو په اړه دا ويل سوي دي چي هغوئ د خپل الله جل جلاله سره ژوندي دي نو څه ليري خبره ده چي هغوئ حج کوي، لمونځ کوي او نور د خير اعمال کوي، دوهم جواب دادی چي رسول الله ﷺ د نبيانو يادونه وکړل نو هغه د خلاصو سترګو لېدلو يا د معراج د شپې پېښنه نه ده بلکه دا په اصل کي د رسول الله ﷺ د خپل خوب يادونه ده چي په هغه کي يې نبيان په ذکر سوي حالت او کيفيت کي ولېدل، دا بېله خبره ده چي انبياء عليهم السلام په خوب کي هم دومره رېښتوني وي لکه څومره چي په وېښه ليدو کي وي. شيخ عبدالحق رحمة الله عليه دا ليکلي دي چي پر دې خبره د ټولو اتفاق دی چي ټول انبياء عليهم السلام حقيقي او ددنياوي حيات سره ژوندي دي که څه هم د هغوئ دغه ژوند د عامو نظرونو

ثخه پټ کړل سوی دی او کله چي دا خبره حقیقت ده چي انبیاء ته ددنیا حیات حاصل وي نو همدا رنګه دا حقیقت دی چي الله ﷻ خپل حبیب حضرت محمد ﷺ ته د یو خوب پرته په خلاصو سترګو سره د هغه انبیاؤ لیدنه وریه برخه کړې وي.

## د حضرت داؤد علیه السلام ذکر

﴿۵۴۷۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خُفِّفَ عَلَى

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: پر داؤد علیه السلام باندي د زبور

دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَام الْقُرْآنُ فَكَانَ يَأْمُرُ بِدَوَابِّهِ فَتُسْرَجُ فَيَقْرَأُ الْقُرْآنَ قَبْلَ أَنْ تُسْرَجَ دَوَابُّهُ وَلَا يَأْكُلُ إِلَّا مِنْ عَمَلِ يَدِهِ. رواه البخاري.

ویل آسان کړل سوي وه هغه به پر خپل سپرلي باندي د زین اچولو حکم ورکړ او د زین د تړلو ثخه مخکي به یې زبور وو ایه او داؤد علیه السلام به د خپلو لاسونو په کسب سره خوراک خوړی. بخاري

**تخریج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٤٥٣، رقم: ٣٤١٧.

**تشریح** که څه هم د حدیث څخه دا نه ثرګندیږي چي د حضرت داؤد علیه السلام سره څومره څارووي وه او پر هغه څارویو باندي د ځین اېښودلو کار په څومره وخت کي بشپړ کېدی، مګر دا ثابته سول چي هغه وخت به دومره اوږد نه وو چي په هغه کي به د ټول زبور شریف تلاوت په عامه توګه ممکن وو، دا یو ازي د حضرت داؤد علیه السلام وصف وو چي هغه به په ډېر لږ وخت کي د زبور په ډول کتاب تلاوت کوی، خلاصه دا چي حضرت داؤد علیه السلام ته دا وصف د فوق العادت کمال په توګه تر لاسه وو او ددغه ځانګړي ورکړي سره یې تعلق درلود چي رب کریم د خپلو نیکو او خاصو بندګانو لپاره د زمانې او وخت تناو هم راکشوي او ایله کوي، کله یو لنډ وخت د خاصو بندګانو لپاره اوږد ګرځول کیږي او کله یو اوږد وخت یو لنډ وخت سي ، د امیر المؤمنین حضرت علي رضی الله عنه په اړه نقل سوي دي چي هغه به د خپلي سپرلۍ په یوه پایدان کي د پښې اېښودو په وخت کي قرآن کریم ویل پیل کړل او په دوهم پایدان کي د پښې اېښودو په وخت به یې د قرآن کریم تلاوت ختم کوی.

د حدیث په پای کي د حضرت داؤد علیه السلام یو بل وصف دا بیان سوی دی چي هغه به سره د پاچاهۍ خپله روزي په خپل لاس تر لاسه کول، د زغرو جوړول د هغه کسب وو او د هغه په ګټه به یې خپل مصرف کوی.

## د حضرت داؤد عليه السلام او حضرت سليمان عليه السلام بېلې بېلې فيصلې

﴿۵۴۷۴﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَتْ امْرَأَتَانِ مَعَهُمَا

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: دوې ښځې وې او د دواړو

ابْنَاهُمَا جَاءَ الذِّئْبُ فَذَهَبَ بِابْنِ إِحْدَاهُمَا فَقَالَتْ لِصَاحِبَتِهَا إِنَّمَا ذَهَبَ

سره يو يو زوی وو، شرمښ راغلی او د يوې زوی يې وتښتوی، دواړې ښځې په دې جګړه سوې، يوې ويل ستا زوی شرمښ وتښتوی

بِابْنِكِ وَقَالَتْ الْأُخْرَى إِنَّمَا ذَهَبَ بِابْنِكِ فَتَحَاكَمَتَا إِلَى دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَام

او دويمې ويل ستا زوی شرمښ وتښتوی، دواړو ښځو خپله معامله داؤد عليه السلام ته راوړل،

فَقَضَى بِهِ لِلْكُبْرَى فَخَرَجَتَا عَلَى سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ عَلَيْهِمَا السَّلَام فَأَخْبَرَتَاهُ

داؤد عليه السلام هلک هغه مشرې ښځې ته ورکړ بيا دا دواړې ښځې سليمان عليه السلام ته راغلې او خپله معامله يې ورته بيان کړه،

فَقَالَ ائْتُونِي بِالسِّكِّينِ أَشُقُّهُ بَيْنَهُمَا فَقَالَتْ الصُّغْرَى لَا تَفْعَلْ يَرْحَمُكَ اللّٰهُ

هُوَ ابْنُهَا فَقَضَى بِهِ لِلصُّغْرَى. متفق عليه.

سليمان عليه السلام وويل يوه چاړه راوړئ چې زه دا هلک په منځ کې دوې ټوټې کړم او پر تاسو يې وويشم، کم عمره ښځې ورته وويل الله جل جلاله دې پر تا رحم وکړي داسې مه کوه دا ددې زوی دی، نو سليمان عليه السلام هغه هلک کم عمره ښځې ته ورکړ. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۴۵۸، رقم: ۳۴۲۷، ومسلم ۳\ ۱۳۴۴، رقم: ۲۰- ۱۷۲۰.

**تشريح** ددغه قضيې بنياد دا وو چې دواړې ښځې چې په عمر کې تر يوې بلې مشره او کشره وې يو ځای اوسېدلې، د هغوئ دواړو سره يو يو ماشوم وو او په ځرګنده دا معلومېږي چې دواړه ماشومان هم دکم عمر وه او هم شکله وه، ځکه کله چې شرموښ د هغوئ څخه يو ماشوم وتښتوی نو ددواړو ښځو په منځ کې دا جګړه رامنځته سول چې شرموښ د کومې ماشوم وتښتوی، هرې ښځې ويل چې هغه ماشوم د هغې نه وو بلکه د هغه بلې ښځې وو يا دا چې هغه

ماشوم هم عمره او هم شکله نه وو او دواړي ښځي پوهېدې چي شرموښ د چا ماشوم وړی دی مګر د هغه ماشوم مور په بدحواسی کي دې ته تیاره نه وه چي د هغې ماشوم دي ولاړ سي یا دوهم ماشوم چي موجود وو ، دهغه خپلول یې غوښتل او هغه یې د ځان سره ساتلو او د اصل ماشوم د غم ماتول یې غوښتل یا د هغې په دغه دعوه سره یو بل فاسد مقصد وو ، په هر حال کله چي دغه قضیه حضرت داؤد علیه السلام ته ورسېدل نو هغه دا فیصله وکړل چي کوم کوچنی شرموښ تښتولی دی هغه د هغه ښځي دي چي د کم عمر ده او موجود کوچنی یې د لوي عمر والا ښځي ته وسپاری، حضرت داؤد علیه السلام دغه فیصله یا خو له دې کبله وکړل چي هغه کوچنی د لور عمر والا ښځي سره وو او شرعي قاعده داده که د یو شي د ملکیت په اړه یو واضح او یقیني ثبوت نه وي نو د هغه شي زیات حقدار به هغه څوک منل کیږي چي د هغه په واک کي هغه شی وي یا دا چي هغه کوچنی د لوي عمر والا ښځې سره یو مناسبت درلود نو حضرت داؤد علیه السلام د علم قیافه څخه د ذکر سوي قضیې فیصله وکړل ،

په هر حال د هغه ددغه فیصلې بنیاد پر یوې خبره وه یا ددې څخه پرته یوه بله قرینه او دلیل وو ، دا خبره منل سوې ده چي د هغه دغه فیصله د هغه د خپل اجتهاد نتیجه وه او د الله جل جلاله نازل کړل سوې وحي نه وه ځکه که چیري په دې اړه پر هغه وحي نازل سوي وي او د هغه دغه فیصله د وحي مطابق وای نو حضرت سلیمان علیه السلام به د هغه د فیصلې خلاف خپله بېله فیصله نه کولای .

کله چي دغه قضیه حضرت سلیمان علیه السلام ته وړاندي سول نو هغه ددغه فیصلې کولو نفسیاتي طریقه اختیار کړل ، د دواړو د دعوې په اورېدو سره هغه وویل: یوه چاړه راوړئ، زه دغه کوچني دوې ټوټې کوم او په تاسو دواړو کي هري یوې ته یوه یوه ټوټه ورکوم ، دهغه مقصد دا وو چي د دواړو ښځو د مورنی مینې امتحان واخیستل سي ، په دې خبره چي د دواړو له خوا د کوم رد عمل اظهار وسي هغه به صحیح نتیجې ته په رسېدو کي مرسته وکړي، دا ښکاره ده چي کومه ښځه د هغه کوچني اصلي مور وي هغه د خپل کوچني پر بېلېدو راضي کیږي مګر په خپلو سترګو د هغه دوې ټوټې کول هیڅکله زغملای نه سي نو همدارنګه وسول کله چي سلیمان علیه السلام د هغه دوې ټوټې کولو لپاره دا خبره وکړل نو د لوي عمر والا ښځه پټه خوله سول مګر د کم عمر والا ښځه زهیره سول ، هغې وویل : داسي مه کوه زه په دې راضي یم چي تاسو دغه کوچنی مشري ښځي ته ورکړئ او دغه کوچنی دي ژوندی پاته سي مګر زه دا نسم زغملای چي د کوچني په ځېرلو سره دوې ټوټې کړل سي او د مرګ غیږي ته دي ورسول سي، د حضرت سلیمان علیه السلام چي کوم مقصد وو هغه پوره سو نو هغه د کشري ښځي په ظاهر

سوي ميني او شفقت باندي او د مشري ښځي پته خوله کېدل د کوچني سره د بې تعلقی په محمول کولو سره نتيجه واخيستل چي دغه کوچنی د کشري ښځي دي او په ظاهره دا معلوميږي چي وروسته مشري ښځي هم اقرار وکړ چي زما کوچنی نه دی او دهغه بلي ښځي دي، نو حضرت سليمان عليه السلام هغه کوچنی خپل اصلي مور يعني کشري ښځي ته وسپاری، اوس د حضرت سليمان عليه السلام ددغه فيصلي په اړه دا سوال پيدا کيږي چي حضرت سليمان عليه السلام د حضرت داؤد عليه السلام فيصله څرنګه ماته کړل، حال دا چي د حضرت داؤد عليه السلام فيصله د يو نبي فيصله وه او د يو نبي فيصله ماتېدلای نه سي که څه هم هغه فيصله د هغه نبي د اجتهاد نتيجه وي ؟ ددې جواب دادی چي حضرت داؤد عليه السلام د هغه مشري ښځي په اړه حتمي او يقيني فيصله نه وه کړې بلکه په حديث کي چي د کومې فيصلې يادونه سوې ده هغه احتمالي نوعيت درلود او د هغه حيثيت د انتظامي حکم وو او د هغه څخه د هغه مقصد محض رفع کول وو او کيدای سي چي د هغوئ په شريعت کي د يو داسي حکم منسوخ کول جائز وي چي د هغه تعلق د وحي الهي يا نص شرعي پر ځای اجتهاد وي .

## د حضرت سليمان عليه السلام واقعه

﴿۵۴۷۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سُلَيْمَانُ لَأَطُوفَنَّ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: (يوه ورځ) سليمان عليه السلام وويل:

اللَّيْلَةَ عَلَى تِسْعِينَ امْرَأَةً وفي رواية بمائة امراة كُلُّهُنَّ تَأْتِي بِفَارِسٍ يُجَاهِدُ فِي

نن شپه به زه د (۹۰) ښځو سره او په يوه روايت کي د سلو ښځو سره جماع کوم په هغو کي به هره ښځه يو سپور زيږوي چي د الله تعالى په لاره کي به غزا کوي،

سَبِيلِ اللّٰهِ فَقَالَ لَهُ الملك قُلْ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ فَلَمْ يَقُلْ وَنَسِيَ فَطَافَ عَلَيْهِنَّ

ملائکي سليمان عليه السلام ته وويل انشاء الله ووايه، مګر هغه انشاء الله ونه ويل او هېر يې سول، او د ښځو سره يې کوروالي وکړه

فَلَمْ يَحْمِلْ مِنْهُنَّ إِلَّا امْرَأَةٌ وَاحِدَةٌ جَاءَتْ بِشِقِّ رَجُلٍ وَايْمُ الَّذِي نَفْسُ

مګر په هغوئ کي يوازي يوه ښځه حامله سوه او د هغې هم نيمګړی ماشوم پيدا سو، او قسم په

مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَوْ قَالَ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ لَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فُرْسَانًا أَجْمَعُونَ.

متفق عليه.

هغه ذات چي د هغه په لاس كي د محمد (ﷺ) ساه ده كه سليمان عليه السلام انشاء الله ويلې واى نو ټولو ښځو به هلكان زيږولي واى، او هغوئ به سپاره د الله په لاره كي جهاد كړى واى. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٤، رقم: ٢٨١٩، ومسلم ٣\١٢٧٦، رقم: ٢٥- ١٦٥٤.

**تشريح**: انشاء الله ووايه، ددې څخه د يو كار د قصد كولو په وخت كي د انشاء الله ويلو ارزښت څرګنديږي چي كله يوه اراده وكړل سي نو د انشاء الله په ويلو سره بايد ټينګه كړل سي، مطلب دادى چي زه به دا كار كوم كه د الله ﷻ خوښه وه نو دا كار به وسي او دا ويل ځكه ضروري دي چي د الله ﷻ د خوښې څخه پرته هيڅ شى هم په وجود كي راتلاى نه سي او د بنده هغه غوښتنه تر سره كيږي چي په هغه كي مشيت الهي شامل وي نو هغه ملائكي حضرت سليمان ؑ ته ور په ياد كړل چي تاسو كومه اراده كړې وه هغه مو د الله ﷻ په مشيت سره متعلق نه كړل چي د هغه په وجه د هغه ارادې تر سره كول غير يقيني سوي دي كه تاسو اوس هم انشاء الله ووايا ست نو د خپلي ارادې مستحق به سې مګر څرنګه چي شيخ عبد الحق رحمة الله عليه په خپل شرح كي د حديث د ذكر سوې جملې لاندي ليكلي دي چي حضرت سليمان رحمة الله عليه نه يوازي دا چي د هيري په وجه هغه وخت انشاء الله ونه ويل بلكه ملائكي هم ور په ياد كړل مګر وروسته يې هم ونه ويل ، ملا علي قاري رحمة الله عليه په دغه ځاى كي ليكلي دي چي حضرت سليمان ؑ د ملائكي د وينا سربېره انشاء الله ځكه ونه ويل چي هغه دا وګڼل چي كله مي په زړه كي د انشاء الله نيت كړى دى نو په ژبه سره انشاء الله ويل ضروري نه دي، په دې اعتبار د نسي لفظ د علم په معنى كي دى او په يوه روايت كي دنسي لفظ د نون په پېښ او د سين په تشديد سره نقل سوى دى او دا غوره معلوميږي، په دغه صورت كي به مفهوم دا وي چي د هغه د ذهن څخه دا خبره هېره سوې ده چي د انشاء الله په ويلو كي د زړه او ژبي دواړو جمع كېدل د ارباب جمع او اهل عرفان په نزد اصل درجه لري يا دنسي مطلب دادى چي دهغوئ اراده خو د انشاء الله ويلو وه مګر بيا يې دغه ويل ياد نه سول.

د حديث د آخري الفاظو څخه دا مفهوم اخيستل كيږي چي د حضرت سليمان ؑ انشاء الله

نه ويل د هغه خطا وګرځول سول او دا د الله ﷻ له خوا د هغه امتحان وو ځکه هغه وروسته د الله ﷻ په دربار کي د خپل دغه خطا اعتراف او استغفار وکړ لکه څرنګه چي په قرآن کريم کي ذکر سوي دي، په هر حال د حديث څخه دا ثابته سول چي د يو کار د ارادې د اظهار په وخت کي دا ويل مستحب دي چي زه به فلانی کار کوم انشاء الله، چي په هغه کار کي د الله ﷻ له خوا د مرستي، برکت او ښه سرته رسېدل په برخه سي، او په قرآن کريم کي دا حکم سوی دی:

وَلاَ تَقُولَنَّ لِشَيْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَلِكَ غَدًا إِلاَّ أَن يَشَاء اللَّهُ

او ته د يو کار په اړه دا مه وايه چي زه به دا سبا کوم مګر د الله ﷻ خوښي ورسره يو ځای کوه يعني د داسي خبري کولو په وخت کي انشاء الله خامخا وايه.

ددغه حديث څخه هم څرګنده سول چي په حضرت سليمان عليه السلام کي جنسي قوت د کمال وو او ددغه طاقت زياتېدل د نارينوو لپاره د فضيلت خبره ده او ددغه قوت کمي په نقصان کي شمېرل کيږي.

## كسب د نبيانو سنت دی

﴿۵۴۷۶﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ زَكَرِيَّاءُ نَجَّارًا.

رواه مسلم

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: حضرت زکريا عليه السلام ترکاڼ وو (يعني د لرګيو کارېي کوی). بخاري.

**تخريج** صحيح مسلم: ۱۸۴۷\۴، رقم: ۱۶۹- ۲۳۷۹.

**تشريح** مطلب دادی چي هغه د نجارۍ کسب کوی او خپله روزي يې په خپل لاس پيدا کول، نو په دغه حديث کي او په هغه حديث کي چي مخکي د حضرت داؤد عليه السلام په اړه تېر سو، دا دليل دی چي د کټمي، محنت او مشقت په ذريعه خپل حلال رزق تر لاسه کول د انبياؤ سنت دی.

## د حضرت عيسی عليه السلام او رسول الله ﷺ تعلق

﴿۵۴۷۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَوْلَى النَّاسِ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په دنيا او آخرت کي زه

بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ فِي الاولى وَالْآخِرَةِ وَالْأَنْبِيَاءُ إِخْوَةٌ مِنْ عَلَّاتٍ و أُمَّهَاتُهُمْ شَتَّى وَدِينُهُمْ وَاحِدٌ وَلَيْسَ بَيْنَنَا نَبِيٌّ. متفق عليه.

حضرت عیسی بن مریم علیهما السلام ته ډیر نژدې ا و متصل یم (د دواړو په منځ کي د بل نبي فاصله نسته او په آخر کي به عیسی علیه السلام د رسول الله ﷺ نائب وي)، انبیاء میرني ورونه دي یعني د ټولو پلار یو دی او میندي مختلفي دي او د ټولو انبیاؤو دین یو دي او زموږ په منځ کي څوک نبي نسته (یعني د حضرت عیسی علیه السلام او حضرت محمد ﷺ په منځ کي بل نبي نسته). بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۶\۴۷۷، رقم: ۳۴۴۲، ومسلم ۴\۱۸۳۷، رقم: ۱۴۵– ۲۳۶۵.

**تشریح** حضرت عیسی علیه السلام ته تر ټولو زیات نژدې او متعلق زه یم، دغه جمله یې ځکه وفرمایل چي د رسول الله ﷺ او حضرت عیسی علیه السلام په منځ کي هیڅ بل پیغمبر نسته، حضرت عیسی علیه السلام د رسول الله ﷺ د پیغمبر کېدو څرګند زیری ورکړی دی، د رسول الله ﷺ د دین او شریعت تمهید هم هغه قائم کړ او په آخره زمانه کي د رسول الله ﷺ نائب او خلیفه به هم هغه وي.

انبیاء د یو بل ورو ر ګرځولو مقصد د هغوئ په منځ کي د تعلق او مناسبت یو خاص نوعیت څرګندول دي او د هغوئ د پلار څخه مراد هغه شی دی چي په دنیا کي د هغوئ د رالېږلو سبب جوړ سوي دي یعني د خدای جل جلاله د مخلوق هدایت او هغوئ پر صحیح لار بېولو ذمه داري او د هغوئ د میندو څخه مراد د هغوئ خپل خپل شریعتونه دي چي د یو بل څخه مختلف دي.

د دغه ټولو اصل دین یو دی، د دې مطلب دادی که څه هم د خلکو د هدایت او د هغوئ د مفادو او حکمت او د قوم د حالاتو په رعایت کولو سره هر نبي ته د بېل بېل شریعت په ورکولو سره دنیا ته رالېږل سوي دي مګر د ټولو اصل دین یو دی یعني توحید.

او زموږ په منځ کي هیڅ بل نبي نسته، رسول الله ﷺ دغه خبره د خپل ځان او حضرت عیسی علیه السلام په منځ کي د قرب او اتصال په سبب بیان کړل چي په روحاني او معنوي توګه ټول انبیاء علیهم السلام د یو بل سره قرب او اتصال لري او د ټولو سره زما یو ډول تعلق دی مګر په ظاهري توګه ما ته تر ټولو زیات قرب او اتصال د حضرت عیسی علیه السلام سره حاصل دی.

## د حضرت عیسی علیه السلام فضیلت

﴿۵۴۷۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ بَنِي آدَمَ يَطْعُنُ الشَّيْطَانُ فِي جَنْبَيْهِ بِإِصْبَعِهِ حِينَ يُولَدُ غَيْرَ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذَهَبَ يَطْعُنُ فَطَعَنَ فِي الْحِجَابِ. متفق عليه.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر انسان چي پیدا کیږي نو شیطان یې پر دواړو بغلو په دواړو ګوتو وهي بېله عیسی بن مریم علیه السلام شیطان اراده وکړل چي و یې وهي نو په پرده کي نغښتلی یې ووهی. بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٣٧، رقم: ٣٢٨٦، ومسلم ٤\١٨٣٨، رقم: ١٤٧-٢٣٦٦.

**د لغاتو حل**: الحجاب: اي فاوقع الطعن في المشيمة وهي ما فيه الولد. (د ماشوم پرده)

**تشريح** حضرت عیسی علیه السلام د شیطان لعین تکلیف رسونکي دغه کړني څخه خوندي پاته سو چي د هغه انا او د مریم مور حنه، الله جل جلاله ته داسي عرض کړی وو چي:

وانی سمیتها مریم وانی اعیذها بک وذریتها من الشیطان الرجیم:

پروردګاره! ما د خپل دغه کوچنۍ نوم مریم کېښود او زه دا او ددې اولاد د مردود شیطان څخه ستا په پناه کي درکوم.

د پردې څخه مراد هغه جامه ده چي په هغه کي کوچنی د پیدائش پر وخت نغښتل کیږي او په عربي کي ورته مشیمه وایي، مطلب دا چي شیطان د خپل عادت سره سم د حضرت عیسی علیه السلام په تشه کي هم نوکاره کول وغوښتل مګر هغه ګوتي د هغه بدن ته ونه رسېدلې، او همدارنګه حضرت عیسی علیه السلام د هغه د تکلیف څخه خوندي پاته سو.

څرګنده دي وي چي په حدیث کي دا فرمایل سوي دي چي کله هم یو انسان پیدا کیږي...الخ: نو ددې څخه رسول الله ﷺ مستثنی او خارج دی، رسول الله ﷺ د خپل ځان څخه پرته د نورو ټولو انسانانو په اړه دا فرمایلي دي نو د حضرت عیسی علیه السلام په ډول خپله د رسول الله ﷺ ذات مبارک هم د شیطان د دغه تکلیف څخه خوندي پاته سوی وو.

## د غوره ښځو ذکر

﴿۵۴۷۹﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَمَلَ مِنْ

د حضرت ابو موسی رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په نارينوو کي ډير كامل

الرِّجَالِ كَثِيرٌ وَلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ و آسِيَةُ امْرَأَةُ

سړي تير سوي مگر په ښځو کي د بي بي مريم بنت عمران او اسيه زوجه فرعون څخه پرته څوک

فِرْعَوْنَ وَإِنَّ فَضْلَ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ الثَّرِيدِ عَلَى سَائِرِ الطَّعَامِ.

كامله سوې نه ده، او په نورو ښځو کي بي بي عائشې رضی اللہ عنہا ته هغه فضيلت حاصل دی لکه څرنگه چي ماتي ډوډۍ ته پر نورو خوراکونو،

متفق عليه و ذكر حديث انس يا خير البرية وحديث ابي هريرة اي الناس اكرم وحديث ابن عمر الكريم ابن الكريم في باب المفاخرة والعصبية.

بخاري او مسلم او دانس رضی اللہ عنہ حديث (ياخير البرية الخ) او ابن عمر حديث: الكريم ابن الكريم، په باب المفاخره والعصبيه کي بيان سوي دي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۴۴۶، رقم: ۳۴۱۱، ومسلم ۴\۱۸۸۶، رقم: ۷۰- ۲۴۳۱.

**تشريح**: ددغه حديث څخه په ښکاره دا معلوميږي چي دغه دواړي ښځي، يوه مريم بنت عمران چي د حضرت عيسی علیه السلام مور ده او آسيه رضی اللہ عنہا، زوجه فرعون د دنيا پر ټولو مخکنيو او وروستنيو ښځو باندي فضيلت لري تر دې چي پر بي بي فاطمې رضی اللہ عنہا، بي بي خديجې رضی اللہ عنہا او نورو پاکو بيبيانو باندي هم فضيلت لري، مگر داخبره داسي نه ده ځکه ددغه حديث د توجيه او تاويل کيږي چي مريم بنت عمران او آسيه د فرعون ښځي ته چي پر کومو ښځو فضيلت ورکول سوی دی د هغه څخه د امت محمديه مخکي امتونو ښځي مراد دي چي په تېر سوو امتونو کي تر ټولو افضل دي، يا دا چي رسول الله ﷺ دغه حديث په هغه زمانه کي فرمايلي وو کله چي د بي بي فاطمې علیہا السلام، بي بي خديجې علیہا السلام او بي بي عائشې رضی اللہ عنہا د افضيلت ځرګندونکي وحي نازل سوي نه وې، يا دا چي رسول الله ﷺ د امت محمديه ددغه افضلو ښځو په مستثنی کولو سره د نورو ټولو ښځو په اړه وفرمايل چي هغه پر ټولو باندي فضيلت لري او ددغه استثنی قرينه هغه نور حديثونه دي چي په هغو کي د بي بي فاطمې رضی اللہ عنہا مناقب او اوصاف ذکر دي لکه په يو حديث کي فرمايل سوي دي: فاطمه زهرا رضی اللہ عنہا د ټولو جنتيانو ښځو سرداره ده.

د حديث آخري برخه، چي په هغه کي د بي بئ عائشي ﷺ فضيلت ذکر سوی دی، څو احتماله لري، دلته د ښځو څخه یا خو بېله استثنی د دنیا ټولي ښځي مراد دي یا په حدیث کي د ذکر سوو دواړو ښځو، مریم بنت عمران او آسیه د فرعون ښځي په استثنا کولو سره پاته ټولي ښځي مراد دي، یا ددغه امت ښځي مراد دي او یا ازواج مطهرات مراد دي، څرګنده دي وي چي ثرید هغه خوراک ته وايي چي ډوډۍ په ښوروا کي مېده کولو سره جوړېږي، په هغه زمانه کي په عربو کي غوره خوراک ثرید وو، ځکه چي اول خو دغه خوراک ډېر نرم او خوندور وي، دوهم دا چي ډېر ژر هضم کېدونکی او قوي ګټل کېږي، دعلماؤ په نزد په دې اړه اختلاف دی چي په بي بي عائشي ﷺ، بي بي خدیجي ﷺ او بي بي فاطمي ﷺ کي تر ټولو افضله کومه بي بي ده؟ د امام اعظم ابوحنیفة ﷺ دا قول نقل سوی دی چي د بي بي خدیجي ﷺ څخه وروسته بي بي عائشه ﷺ ددنیا تر ټولو ښځو افضله ده، ابن حجر ﷺ لیکلي دي چي بي بي فاطمي ﷺ ته پر بي بي خدیجي او بي بي عائشي ﷺ باندي فضیلت تر لاسه دی، د سبکي ﷺ څخه په دې اړه پوښتنه وسول نو هغه جواب ورکړ چي زموږ په نزد راجح قول دا دی چي تر ټولو افضله بي بي فاطمه بنت محمد صلي الله علیه وسلم، ده، تر هغې وروسته د هغې مور بي بي خدیجه ﷺ او تر هغې وروسته بي بي عائشه ﷺ افضله ده.

د کتاب مؤلف په ذکر سوي مسئله کي خپل پرېکنده قول داسي لیکلی دي چي د ځینو روایتو څخه چي ابن شیبه اونورو څخه نقل سوی دی، دا معلومېږي چي بي بي فاطمه زهرا ﷺ تر مریم بنت عمران، آسیه زوجه فرعون او بي بي خدیجة الکبری څخه وروسته د ټولو ښځو سرداره ده او بي بي خدیجة الکبری ﷺ ته پر بي بي عائشي ﷺ فضیلت حاصل دی.

سبکي ﷺ د خپلي زمانې د ځینو امامانو څخه نقل کړي دي چي بي بي فاطمه ﷺ د حضرت حسن او حضرت حسین ﷺ د زړه ټوټه او د رسول الله ﷺ د یوې برخي کېدو په حیثیت تر خلفاء اربعه (حضرت ابوبکر صدیق، حضرت عمر فاروق، حضرت عثمان غني او حضرت علي ﷺ) څخه افضله ده مګر دا فضیلت علی الاطلاق نه دی ځکه چي خلفاء اربعه خپل علم او په دین کي د خپلو بې مثاله کړنو په وجه تر ټولو زیات د اجر ثواب په اعتبار تر بي بي فاطمې، حضرت حسن او حضرت حسین ﷺ افضل دي، لکه چي ابن حجر ﷺ د شمائل ترمذي په شرح کي بیان کړي دي، نو څرګنده سوه چي څرنګه خلفاء اربعه او د رسول الله ﷺ د زړه ټوټه د خپل خپل خاص حیثیت په اعتبار پر یو بل باندي فضیلت لري، همدارنګه په عورات مطهراتو (پاکو ښځو) کي هیڅا ته په مجموعي او کلي توګه پر پاته دواړو باندي یا په هغو

کي پر یوې باندي فضیلت تر لاسه نه دی بلکه درې سره د بېلو خاصیتو په اعتبار په خپلو کي پر یو بل فضیلت لري، بي بي عائشې ﷞ ته چي کوم علمي مقام حاصل وو او هغې ته چي کوم خاصیت تر لاسه وو چي اکثر به وحي پر رسول الله ﷺ باندي د هغې په وخت کي نازلېدلې چي د هغې په بستره یا د هغې په حجره کي به وو، نو په دې اعتبار هغې ته پر بي بي فاطمې ﷞ فضیلت حاصل دی، ددې پر خلاف د رسول الله ﷺ د ذات مبارک یوه برخه او د رسول الله ﷺ د زړه د ټوټې کېدو شرف بي بي فاطمې ﷞ ته حاصل دی، په دې اعتبار هغه پر بي بي عائشې ﷞ باندي فضیلت لري، په قصیده امالیه کي لیکلي دي چي بي بي فاطمه ﷞ په ځینو خبرو کي پر بي بي عائشې ﷞ فضیلت لري او مریم او آسیه د خپلې زمانې پر ټولو ښځو باندي فضیلت لري. او بي بي خدیجة الکبری په دې اعتبار فضیلت لري چي د رسول الله ﷺ د لومړۍ ښځې کېدو شرف هغې ته حاصل دی، د رسول الله ﷺ تر ټولو زیات خدمت او مرسته هغې وکړل او د رسول الله ﷺ اکثر اولاد هم د هغې څخه دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د الله ﷻ په اړه یو سوال

﴿۵۴۸۰﴾: عَنْ أَبِي رَزِينٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَيْنَ كَانَ رَبُّنَا قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ خَلْقَهُ قَالَ كَانَ فِي عَمَاءٍ مَا تَحْتَهُ هَوَاءٌ وَمَا فَوْقَهُ هَوَاءٌ وَخَلَقَ عَرْشَهُ عَلَى الْمَاءِ رواه الترمذي وقال قال يزيد ابن هارون العماء اي ليس معه شئ.

د حضرت ابو رزین ﷛ څخه روایت دی چي ما عرض وکړي اې د الله رسوله! د خپل مخلوق پیدا کولو څخه مخکي زموږ پروردګار په کوم ځای کي وو؟ رسول الله ﷺ وفرمایل په عماء (یعني باریکي وریځي) کي وو. نه تر هغه لاندي هواء وه او نه د هغه سربېره، الله تعالی خپل عرش پر اوبو پیدا کړی وو. ترمذي، یزید بن هارون وایي عماء څخه دا مراد دی چي د هغه سره هیڅ شی نه وو.

**تخریج** سنن الترمذي ۵/۲۶۹. رقم: ۳۱۰۹.

**تشریح** د عماء اصل معنی د وریځي ده که لږ وي او که ډېره وي، مګر دلته اصل معنی مراد نه ده چي پروردګار د خپلو مخلوقاتو پیدا کولو څخه مخکي په وریځ کي وو، بلکه د دغه لفظ څخه

یو مفهوم ته اشاره کول مقصد دي او هغه دا چي په ذکر سوي سوال کي د کوم حقیقت پلټنه څرګنده سوې ده هغې ته د چا علم رسېدای نه سي او نه عقل د هغه ادراک کولای سي او نه يې څوک تر لاسه کولای سي.

نه تر هغې لاندي هواء وه او نه پر هغه سربېره، ددغه الفاظو په ذریعه دې ته اشاره سوې ده چي د مخلوقاتو څخه مخکي یوازي الله ﷻ وو، د هغه سره هیڅ بل شی موجود نه وو، په دې اعتبار ددغه جملې خلاصه هغه ده کوم چي ددغه حدیث مضمون دی، کان الله ولم یکن معه شئ، یوازي د الله ﷻ ذات موجود وو او دهغه سره د هیڅ شي وجود نه وو، او ځینو حضراتو ویلي دي چي د مخکنۍ جملې (په عماء کي وو) څخه الله ﷻ ته د مکان د نسبت وهم کېدای سو نو ددغه وهم ددفع لپاره يې ذکر سوې جمله وفرمایل چي د عماء یعني وریځي څخه هغه وریځ مراد نه ده چي تر هغې لاندي هواء وي او کله چي دغه وریځ مراد نه ده ځکه چي د هغې د هواء څخه پرته کېدل محال دي نو دا وهم نه کیږي چي د عماء په ذریعه الله ﷻ ته د مکان او مقام نسبت سوی دی.

هغه خپل عرش په اوبو پیدا کړ، ددغه جملې په اړه یو شارح لیکلي دي چي پوښتنه کوونکي کوم سوال کړی وو، د هغه اصل مقصد دا پوښتنه کول وه چي: این کان عرش ربنا. یعني د مخلوقاتو پیداکولو څخه مخکي زموږ د پروردګار عرش چیري وو، ددې جواب رسول الله ﷺ دا ورکړ چي عرش الهي د اوبو سربېره وو، په دې اړه تحقیق مخکي تېر سوی دی.

## د اسمانو ذکر

﴿۵۴۸۱﴾: وَعَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ زعم انه كان جالسا فِي الْبَطْحَاءِ فِي

د حضرت عباس رضی الله عنه بن عبدالمطلب څخه روایت دی چي هغه په بطحا (د مکې مکرمې نوم)

عِصَابَةٍ وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ فِيهِمْ فَمَرَّتْ سَحَابَةٌ فَنَظَروا

کي په یو ډله کي ناست وو او رسول الله ﷺ هم په دغه ډله کي وو، چي د وریځي یوه ټوټه تیره

إِلَيْهَا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تُسَمُّونَ هَذِهِ قَالُوا السَّحَابَ قَالَ

سوه خلکو هغه وریځي ته وکتل. رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو دې ته څه وایاست؟ خلکو عرض وکړ دا وریځ ده، رسول الله ﷺ وفرمایل

وَالْمُزْنَ قَالُوا وَالْمُزْنَ قَالَ وَالْعَنَانَ قَالُوا وَالْعَنَانَ قَالَ هَلْ تَدْرُونَ مَا بُعْدُ مَا

او مزن هم دې ته وايي ، هغوئ وويل هو مزن هم دې ته وايي.، رسول الله ﷺ وفرمايل عنان هم ورته وايي، اصحابو وويل عنان هم درته وايو بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو ته معلومه ده د

بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ قَالُوا لَا نَدْرِي قَالَ إِنَّ بُعْدَ مَا بَيْنَهُمَا إِمَّا وَاحِدَةٌ أَوْ اثْنَتَانِ

آسمان او مځکي په منځ کي څومره فاصله ده، صحابه کرامو وويل موږ ته نه ده معلومه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د آسمان او مځکي په منځ کي د يو اويا،

أَوْ ثَلَاثٌ وَسَبْعُونَ سَنَةً والسَّمَاءُ التي فَوْقَهَا كَذَلِكَ حَتَّى عَدَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ ثُمَّ

دو اويا يا درو اويا کالو مزل دی.(راوي ته شک دی) او ددې آسمان سربيره چي دويم آسمان دی هغه هم ددې آسمان څخه دومره ليري دی ،

فَوْقَ السماء السَّابِعَةِ بَحْرٌ بَيْنَ أَعْلَاهُ وأَسْفَلِهِ كَمَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلَى سَمَاءٍ ثُمَّ فَوْقَ

همداسي رسول الله ﷺ اووه آسمانونه شمار کړل بيا يې وفرمايل: د اووم آسمان سربيره يو لوی درياب دی ددې درياب بيخ او د اوبو د سطحي په منځ کي هم دومره فاصله ده څومره چي د يوه آسمان څخه د بل آسمان په منځ کي فاصله ده بيا د هغه درياب سربيره

ذَلِكَ ثَمَانِيَةُ أَوْعَالٍ بَيْنَ أَظْلَافِهِمْ وَرُكَبِهِمْ مِثْلُ مَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلَى سَمَاءٍ ثُمَّ عَلَى

اته ملائکي دي چي د هغوئ د نوکونو او يا تشو په منځ کي هم دومره فاصله ده لکه د يوه اسمان څخه تر بل اسمان پوري ، بيا

ظُهُورِهِنِ الْعَرْشُ بَيْنَ أَسْفَلِهِ وَأَعْلَاهُ مَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلَى سَمَاءٍ ثُمَّ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى فَوْقَ ذَلِكَ. رواه الترمذي وابوداؤد.

ددغه ملائکو پر شا عرش دی او د لاندينۍ برخي او سربيره برخي په منځ کي هم دومره فاصله ده لکه د يوه اسمان څخه تر بل اسمان پوري او ددغه عرش سربيره الله تعالی دی. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۳۹۵، رقم: ۳۳۲۰، وابوداود ۵\۹۳، رقم: ۴۷۲۳.

**د لغاتو حل**: اوعال: العنز الوحشي

**تشریح** د حدیث د ظاهري طرز څخه دا معلومیږي چي حضرت ابن عباس ﷺ د کومي زمانې پېښه بیان کړل، تر هغه وخته پوري هغه خلکو اسلام نه وو قبول کړی، همدارنګه هغه خلک هم مسلمانان سوي نه وه چي په هغوئ کي حضرت ابن عباس ﷺ په هغه وخت کي وو، که څه هم په راتلونکي دریم فصل کي په دې اړه د حضرت ابوهریره ﷺ روایت راځي او د هغه څخه دا ثابتیږي چي هغه خلک مسلمانان وه او په دغه وخت کي د هغه خلکو په منځ کي د رسول الله ﷺ موجود کېدل ددې احتمال لري چي هغه ټول خلک د مکې اوسېدونکي وه او مسلمانان سوي وه، او که دا احتمال قائم کړل سي چي هغه ټول خلک د مکې کفار وه او د اسلام په دائره کي داخل سوي نه وه نو بیا به دا ویل کیږي چي رسول الله ﷺ په هغه ځای کي د هغه خلکو په یو ځای لېدو سره هغوئ ته د اسلام د دعوت ورکولو اراده کړې وي او ددې لپاره به یې هغوئ ته تشریف وړی وي.

• یا خو یواویا کاله دي یا دو اویا او یا دري اویا، دغه جمله د راوي شک څرګندوي او رسول الله ﷺ په دغه وخت کي د دغه درو عددو څخه یو عدد ذکر کړی دی، په هر حال خلاصه داده چي د یو آسمان څخه تر دوهم آسمان پوري درمیاني فاصله تقریبا د اویا کاله مسافت په اندازه ده مګر دا خبره باید په ذهن کي وي چي ددغه شمېر څخه تحدید مراد نه دی بلکه د مبالغې په توګه دي یعني د هغه فاصلې زیاتوب بیانول مراد دي، نو دغه حدیث د هغه روایت خلاف نه دی چي په هغه کي د ځمکي او آسمان درمیاني فاصله او دیو آسمان څخه تر دوهم آسمان پوري درمیاني فاصله د پنځه سوه کاله په اندازه ذکر سوې ده.

پر اووم آسمان سربېره د اوبو یو لوی دریاب دی، په ځینو روایتو کي فرمایل سوي دي چي الله ﷻ د خپل عرش په پیدا کولو سره د هغه عرش لاندي یو ډېر لوی دریاب پیدا کړ او هغه دریاب موجود او جاري دی..

او پر هغه عرش سربېره الله ﷻ دی، څرګنده دي وي چي ددغه جملې مراد د الله ﷻ د مرتبې لوړوالي، د هغه عظمت او د هغه د پاچاهي مافوقیت بیانول دي نه دا چي د مکان او استقرار په اعتبار د هغه ذات پر عرش باندي کېدل مراد دي، یعني رسول الله ﷺ د پروردګار عظمت او غوره والی په انساني ذهن کي د راوستلو لپاره د بېلګي په توګه دغه جمله وفرمایل او مطلب یې دا وو چي هغه ډېر عالي او عظیم البرهان دی، د هغه ذات تر شي لوړ دی او ټول موجودات د هغه د حکم او قدرت لاندي دي لکه چي په قرآن کریم کي فرمایل سوي دي:

والله من ورائهم محیط، او الله ﷻ پر ټولو چاپېره دی.

اصل خبره داده چي په دغه وخت کي رسول الله ﷺ د هدايت داسي مضمون او طرز اختيار کړ چي په هغه سره د ټولو ذهن او فکر د عالم سفلی څخه په منتقل کېدو سره عالم علوي ته مائل سي او د مځکي او آسمان اقتدار اعلی يو داسي تصوراتي خاکه د هغوئ پر زړه او دماغ باندي منعکس سي چي په هغه سره خلک د کائنات ارض وسماء پيدا کونکي او د ټول کائناتو نظام چلونکي ذات ته په متوجه کېدو سره د بت پرستی، ادهام پرستی او فاسدې عقيدې کښته احساس او شعور تر لاسه کړي او ځان د دغه شيانو څخه منع کړي.

## د عرش الهي ذکر

﴿۵۴۸۲﴾: وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْرَابِيٌّ

د حضرت جبير بن مطعم رضی الله عنه څخه روايت دی چي يو صحرايي د رسول الله ﷺ په خدمت کي

فَقَالَ جُهِدَتْ الْأَنْفُسُ وَجَاعَ الْعِيَالُ وَنُهِكَتْ الْأَمْوَالُ وَهَلَكَتْ الْأَنْعَامُ

عرض وکړ چي نفسونه په تکليف کي سول، اهل او عيال د لوږي څخه مري مالونه بربادېږي او حيوانان مړه کيږي

فَاسْتَسْقِ اللَّهَ لَنَا فَإِنَّا نَسْتَشْفِعُ بِكَ عَلَى اللَّهِ وَنَسْتَشْفِعُ بِاللَّهِ عَلَيْكَ فَقَالَ

اې د الله رسوله! د الله جل جلاله څخه د باران سوال وکړئ، موږ تاسو د الله جل جلاله په نزد وسيله کوو، باران غواړو او الله تعالی تا ته شفيع کوو، ددې اورېدو سره

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْحَكَ أَتَدْرِي مَا تَقُولُ وَسَبَّحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

نبي کريم ﷺ وفرمايل: الله تعالی پاک دی الله تعالی پاک دی. په څو واره رسول الله ﷺ دغه

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا زَالَ يُسَبِّحُ حَتَّى عُرِفَ ذَلِكَ فِي وُجُوهِ أَصْحَابِهِ ثُمَّ قَالَ

الفاظ وفرمايل، (تردې چي د رسول الله ﷺ د مخ مبارک په تغير محسوس کولو سره) د صحابه کرامو مخونه هم متغير سول، بيا رسول الله ﷺ هغه صحرايي ته وفرمايل:

وَيْحَكَ إِنَّهُ لَا يُسْتَشْفَعُ بِاللَّهِ عَلَى أَحَدٍ مِنْ خَلْقِهِ شَأْنُ اللَّهِ أَعْظَمُ مِنْ ذَلِكَ

پر تا افسوس دی د الله تعالی چا ته شفاعت نه کيږي (او نه الله تعالی وسيله جوړېدلای سي) د الله تعالی شان تر دې بزرګ او لوړ دی،

وَيْحَكَ أَتَدْرِي مَا اللّٰهُ إِنَّ عَرْشَهُ عَلَى سَمَاوَاتِهِ لَهٰكَذَا وَقَالَ بِأَصَابِعِهِ مِثْلَ الْقُبَّةِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَيَئِطُّ بِهِ أَطِيطَ الرَّحْلِ بِالرَّاكِبِ. رواه ابوداؤد.

پر تا افسوس دی ته پوهيږې چي د الله تعالى عظمت څه شي دی؟ د هغه عرش دده پر آسمانونو داسي دی وروسته رسول الله ﷺ لاس مبارک د گمبدي په شکل جوړ کړ او وه يې ښودل لکه څرنگه چي دا لاس يو شی راگير کړي همداسي د هغه عرش آسمانونه راگير کړي دي، بيا يې وفرمايل: چي عرش سربيره د دومره لوی کيدو داسي چغيږي لکه څرنگه چي د اوښ کجاوه چغيږي کله چي پر هغه يو څوک سپور وي. ابوداؤد.

**تخريج** . سنن ابي داود ۵\ ۹۴، رقم: ۴۷۲۶.

**د لغاتو حل**: اطيط: اي کعجز الرحل عن احتمال الراکب. (کجاوه)

**تشريح** موږ الله ﷻ تاسو ته شفيع کوو، ددغه جملې څخه د هغه صحرايي مراد دا وو چي موږ د الله ﷻ په دربار کي ستاسو ذات او ستاسو عظمت خپله وسيله گرځوو، او تاسو خپل شفيع گرځوو، او تاسو ته د دعاء غوښتنه کوو چي پروردگار زموږ پر حال باندي په رحم کولو سره باران وکړي او ستاسو د شفاعت او توجه غوښتني لپاره موږ دالله ﷻ په دربار کي التجاء کونکي يو چي هغه تاسو موږ ته په متوجه کولو سره، تاسو ته زموږ په حق کي د شفاعت کولو توفيق راکړي مگر هغه د خپل دغه مراد څرگندولو لپاره مناسب طرز اختيار نه کړ بلکه په بهره کي د هغه د ژبي څخه داسي الفاظ ووتل چي د هغه څخه نه يوازي دا چي د هغه اصل مراد ورک سو بلکه دا څرگنده سول چي هغه خپله الله ﷻ ستاسو په دربار کي وسيله گرځوي او په دې معامله کي د الله ﷻ قدرت د هغه نظام او دهغه حکم اختيار کي رسول الله ﷺ شريک او برابر وي، حال دا چي د الله ﷻ ذات په خپل حکم اختيار او خپل نظارم کي هيچا ته مشارکت او هيڅ ډول برابري روا نه ده، د الله ﷻ ارشاد دی:

ليس لک من الامر شئ: د الله ﷻ په نظام کي تا ته هيڅ دخل نسته.

او دا يې هم فرمايلي دي:

من ذالذي يشفع عنده الا باذنه: داسي څوک دی چي هغه پرته د اجازې شفاعت وکړای سي.

نو د هغه صحرايي دا ويل رسول الله ﷺ ته ډېر ناخوښه سول او رسول الله ﷺ د هغه له خوا ددغه جملې پر ويلو باندي د حيرت او تعجب اظهار او د هغه خبردار کولو لپاره په وار وار سبحان الله

سبحان الله وويل.

تر دې چي د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو د مو مخانو رنګ بدل سو يعني د رسول الله ﷺ په وار وار سبحان الله ويلو سره د هغه په مجلس کي موجود صحابه کرام پوه سول چي د هغه صحرايي په دغه ويلو سره رسول الله ﷺ ته ناخوښه او غصه راغلل نو د رسول الله ﷺ د غضب او غصې په محسوس کولو سره هغوئ ټول وېرېدل او د الله ﷻ د بيري څخه د هغوئ د مخونو رنګ بدل سو، بيا کله چي رسول الله ﷺ د صحابهٔ کرامو د مخونو رنګ بدل وليدی نو رسول الله ﷺ سبحان الله ويل موقوف کړل او هغه صحرايي ته يې خبره ونه کړل.

هغه عرش د دومره پراخ او پلن کېدو سربېره داسي آواز کوي...الخ: د دغه جملې په ذريعه رسول الله ﷺ د هغه صحرايي د پوهي سره سم د الله ﷻ د عظمت تمثيل بيان کړ او اصل مقصد د الله ﷻ د عظمت او جلالت اظهار دی او دومره لوی عرش هم د هغه د تحمل څخه عاجز دی.

﴿۵۴۸۳﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أُذِنَ لِي أَنْ أُحَدِّثَ عَنْ مَلَكٍ مِنْ مَلَائِكَةِ اللّٰهِ مِنْ حَمَلَةِ الْعَرْشِ إِنَّ مَا بَيْنَ شَحْمَةِ أُذُنِهِ إِلَى عَاتِقِهِ مَسِيرَةُ سَبْعِ مِائَةِ عَامٍ . رواه ابوداؤد.

د جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ما ته اجازه راکړل سوې ده چي زه د الله تعالى په هغه ملائکو کي د يوې ملائکي حال بيان کړم چي عرش الهي يې پورته کړی دی د هغه ملائکي د غوږ د پوستکي څخه د هغې تر اوږو پوري فاصله د اوو سوو کالو مزل دی. ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود: ۵\۹۶، رقم: ۴۷۲۷.

## د الله ﷻ دېدار او حضرت جبرائيل عليه السلام

﴿۵۴۸۴﴾: وَعَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَبِي أَوْفَى أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت زراره ابن ابو اوفى رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ جبرائيل عليه السلام ته وفرمايل:

لِجِبْرِيلَ هَلْ رَأَيْتَ رَبَّكَ فَانْتَفَضَ جِبْرِيلُ وَقَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ بَيْنِي وَبَيْنَهُ

ايا تا خپل پروردګار ليدلی دی ؟ د دې اوريدو سره جبرائيل عليه السلام په رپيدو سو، هغه وويل: اې محمد ﷺ! زما او د الله ﷻ په منځ کي

سَبْعِيْنَ حِجَابًا مِّنْ نُّوْرٍ لَوْ دَنَوْتُ مِنْ بَعْضِهَا لَاحْتَرَقْتُ . هكذا في المصابيح ورواه أبو نعيم في الحلية عن أنس إلا أنه لم يذكر فانتفض جبريل. رواه المصابيح.

د نور اويا زره پردې دي كه په هغه پردو كي يوې ته هم ورنژدې سوم نو وه به سوځم. مصابيح.

**تخريج**: البغوي في المصابيح ۱۴/۳۰، رقم: ۴۴۵۷.

**تشريح**: حضرت زراره رحمة الله عليه يو جليل القدر تابعي دی، نوموړی د بصرې قاضي او د خپلي زمانې د غوره مشائخو څخه وو، د حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه يې اورېدل كړي دي ، د الله جل جلاله او د آخرت څخه دبيري يې دا حال وو چي يوه ورځ يې د سهار په لمانځه كي امامت كوی ، كله چي دغه آيت (فاذا نقر في الناقور) ته ورسېدی نو په چغه كولو سره را ولوېدی او هم هلته په حق ورسېدی، د وليد ابن عبدالملک د خلافت د زمانې ۷۳ هجري كال پېښه ده ، او ملا علي قاري رحمة الله عليه يو قول نقل كړی دی چي حضرت زراره صحابي دی او د حضرت عثمان غني رضي الله عنه د خلافت په زمانه كي وفات سوی دی .

حضرت جبرائيل عليه السلام په رېږدو سو، يعني د الله جل جلاله د ليدني په اړه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سوال پر هغه باندي هيبت خپور كړ او هغه ددغه حال په تصور سره په رېږدو سو چي ليدنه كوم قرب لره مستلزم ده، كه ما ته دا قرب ميسر سوی وای نو د ډېر هيبت څخه به زما څه حال وای، په هر حال د رسول الله صلى الله عليه وسلم ددغه سوال څخه ثابتيږي چي په آخرت كي د الله جل جلاله د ذات ليدنه يو ممكن حقيقت دی ځكه كه چيري دغه ليدني او مشاهده ناممكن وای نو رسول الله صلى الله عليه وسلم به دا سوال نه كولای مګر د قيامت په ورځ به ملائكو او پيريانو ته د الله جل جلاله ليدنه په برخه وي كه يا؟ په دې اړه د علماؤ اختلاف دی چي بحث يې مخكي تېر سوی دی .

زما او د الله جل جلاله په منځ كي دنور اويا پردې وي، دا حضرت جبرائيل عليه السلام د ديدار الهي تر مرتبه عظمى پوري د خپل رسېدو عجز څرګند كړ او خپل دغه عجز يې د خپل ځان او الله جل جلاله په منځ كي د اويا پردو سره تعبير كړ نو هغه د حجاب ذكر په خپل اعتبار وكړ، د هغه مطلب دا نه وو چي د الله جل جلاله ذات د اويا پردو تر شا دی ځكه چي محجوب (په پرده كي كېدل) د مغلوب كېدو نښه ده چي د خالق صفت نسي كيدای ، هغه په هر حال كي غالب دی او هيڅ شی د هغه حجاب نه سي ګرځېدلای، ددې پر خلاف مخلوق د عجز او نقصان خاوند دی ځكه محجوب كېدل د هغه صفت كيدای سي ، څرګنده دي وي چي په دغه جمله كي د اويا شمېر شارع ته معلوم دی چي په

خاصه تو که دغه شمېر ولي ذکر سو، همدارنګه په يو بل روايت کي د اويا زره پردو الفاظ دي، ددې څخه معلومېږي چي محض کثرت ته اشاره کول مراد دي نه د خاص شمېر ذکر کول.

## حضرت اسرافيل عليه السلام

﴿۵۴۸۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د کومي ورځي څخه چي

خَلَقَ إِسْرَافِيلَ مُنْذُ يَوْمٍ خَلَقَهُ صَافًّا قَدَمَيْهِ لَا يَرْفَعُ بَصَرَهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ

الله تعالى حضرت اسرافيل عليه السلام پيدا کړی دی د هغه دواړه قدمونه پر خپل ځای ايښی ولاړ دی (يعني شپيلۍ په خوله کي نيولې تيار ولاړ دی) نظر نه پورته کوي د هغه او

الرَّبِّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى سَبْعُونَ نُورًا مَا مِنْهَا مِنْ نُورٍ يَدْنُو مِنْهُ إِلَّا احْتَرَقَ. رواه الترمذي وصححه

د الله جل جلاله په منځ کي د نور اويا پردې دي په هغه کي د يوې پردې نژدې هم اسرافيل عليه السلام نه سي ورتلای که نژدې ورسي نو وه به سوځي. ترمذي.

**تخريج**: لم نجده عند الترمذي.

**تشريح**: سترګي نه پورته کوي، يعني حضرت اسرافيل عليه السلام د خپل زېږېدني د وخت څخه داسي په ادب او ملا تړلی ولاړ دی چي د هغه سترګي هم يو ځای آسمان ته متوجه وي ځکه سترګي بلي خوا ته نه اړوي، خلاصه دا چي هغه دخپل زېږېدني د وخت څخه د شپيلۍ پوکلو لپاره بالکل تيار او په انتظار دی چي کيدای سي په دغه وخت کي حکم وسي.

## د انسان فضيلت

﴿۵۴۸۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا خَلَقَ اللّٰهُ آدَمَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي الله جل جلاله آدم عليه السلام او د

وَذُرِّيَّتَهُ قَالَتْ الْمَلَائِكَةُ يَارَبِّ خَلَقْتَهُمْ يَأْكُلُونَ وَيَشْرَبُونَ وَيَنْكِحُونَ

هغه اولاده پيدا کړل نو ملائکو وويل اې پروردګاره! تا هغه مخلوق پيدا کړي چي خوري،

ځيښني، نكاح كوي

وَيَرْكَبُوْنَ فَاجْعَلْ لَّهُمُ الدُّنْيَا وَلَنَا الْآخِرَةَ قَالَ اللهُ تَعَالٰى لَا أَجْعَلُ مَنْ

او سپرلي به كوي ته هغوي ته دنيا وركړې او موږ ته آخرت راكړې، الله تعالى ورته وفرمايل:

خَلَقْتُهُ بِيَدَيَّ وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ كَمَنْ قُلْتُ لَهُ كُنْ فَكَانَ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

كوم مخلوق چي ما په خپل لاسونو سره جوړ كړى دى او ما پكښي خپل روح پوه كړى دى هغه د هغه مخلوق په ډول نه سي كيدلاى چي هغه ما په (كن) ويلو سره پيدا كړي دي او هغه پيدا سو، بيهقي.

**تخريج**. البيهقي في شعب الايمان ۱\ ۱۷۲، رقم: ۱۴۹.

**تشريح**: د ملائكو دوينا مطلب دا وو چي كله دغه مخلوق د مځكي پر مخ باندي ستا د خلافت لپاره پيدا سوى دى او هغوئ ته ددنيا نعمتونه او خوندونه وركړل سوي دي چي د هغو څخه موږ محروم كړل سوي يو نو هغوئ بايد د دنيا تر كاميابۍ پوري محدود وي، يا دا چي ددنيا نعمتونه دي د هغوئ لپاره تل وي او د آخرت ټول نعمتونه دي زموږ لپاره خاص كړل سي، لكه څرنګه چي موږ ددنيا د نعمتونو څخه محروم يو همدارنګه انسان دي د آخرت د نعمتونو څخه محروم كړل سي چي موږ دواړه برابر سو، يعني ملائكو د الله ﷻ د مخلوق كېدو په اعتبار خپل ځانونه د آدم ﷺ او د هغه د اولاد برابر وګڼل مګر الله ﷻ د ملائكو ددغه ګمان تصحيح وفرمايل او څرګنده يې كړل چي د انسان تخليق او زېږېدنه د نور ټول مخلوق څخه چي په هغو كي ملائكي هم شامل دي، د تخليق او زېږيدني څخه مختلف دي، د مثال په توګه د ملائكو تخليق د كن په ذريعه سوى دى چي يوازي كن يې وويل نو ټولي ملائكي په وجود كي راغلې، ددې پر خلاف د انسان تخليق د يو خاص نظام لاندي وسو او په دې اړه تدريجي لړۍ روانه ده چي تر ټولو وړاندي آدم ﷺ بېله واسطې او ذريعې الله ﷻ تخليق كړ، په هغه كي روح پوه كړل بيا د هغه څخه يې د هغه جوړه (بي بي حواء) پيدا كړل او د دوئ دواړو څخه يې د توالد لړۍ جاري كړل چي د هغوئ څخه وروسته د هغوئ په اولاد كي تر هغه وخته به روانه وي تر څو چي د دنيا د خاتمې وخت نه وي راغلى، بيا دا چي د ملائكو خمير مجرد دى حال دا چي د انسان خمير مركب دى، په ده كي د صلاحيت منلو وړتيا هم سته او د ګمراهۍ اختيارولو ماده هم، هغه د

پروردګار د صفت جلال د مظهر کېدو هم استعداد لري او د هغه د صفت جمال مظهر هم کیدای نو کوم مخلوق چي د خپل تخليق په اعتبار دا ځانګړتيا لري هغه د هغه مخلوق برابر څرنګه کیدای سي چي داسي خصوصيت نه لري ، څرګنده سوه چي په شرف او کرامت کي ملائکه د انسان برابر کیدای نه سي ، په خاصه توګه د شرف او کرامت په اعتبار انسان د ملائکي څخه ډېر لوړ دی او د هغه مقام او مرتبه ډېره لوړه ده او ملائکي معصومي پیدا کړل سوي دي ځکه هغوئ د عذاب څخه ليري ساتل سوي دي مګر هغوئ د نعمتونو څخه هم محروم سوي دي، د دوئ پر خلاف انسان د نیکۍ د لاري اختيارولو او د بدۍ د لاري څخه د ځان ساتني مکلف او ذمه دار پيدا سوی دی ځکه کوم انسان چي دغه ذمه داري په پوره توګه ادا کړي نو هغه د دواړو جهانو د نعمتونو وړ ګرځي او کوم انسان چي ددغه ذمه دارۍ څخه مخ اړوي نو هغه په دواړو جهانو کي د عتاب او عذاب وړ ګرځي .

په پای کي دا څرګندول هم ضروري دي چي (په هغه کي یې روح پوه کړل) دلته الله ﷻ ته د روح نسبت محض د روح د عظمت د اظهار لپاره دی لکه په بيت الله کي چي الله ﷻ ته د بيت نسبت دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### پر ملائكو د انسان فضيلت

﴿۵۴۸۷﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُؤْمِنُ أَكْرَمُ عَلَى اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ مِنْ بَعْضِ مَلَائِكَتِهِ. رواه ابن ماجة.

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : مؤمن د الله تعالى په نظر کي د ځيني ملائکو څخه زيات عزتمند دی. ابن ماجه

**تخريج** سنن ابن ماجه: ۲\۱۳۰۱، رقم: ۳۹۴۷.

**تشريح** د ځينو ملائکو څخه مراد يا خو خاص ملائکي دي او يا هغه ټولي ملائکي دي چي په عامو ملائکو کي غوره والي لري، طيبي رحمه الله ليکلي دي چي د مؤمن څخه مراد عام مؤمنان دي او د ځينو ملائکو څخه مراد هم عامي ملائکي دي .

محي السنة رحمه الله وايي: دا ويل زيات غوره دي چي عام مؤمن د عامو ملائکو څخه افضل دی

او خاص مؤمنان د خاصو ملائکو څخه افضل دي لکه چې د الله ﷻ ارشاد دی :

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُوْلَئِكَ هُمْ خَيْرُ الْبَرِيَّةِ

بېله شکه کومو کسانو چې ایمان راوړ او نېک کارونه یې وکړل نو هغوئ غوره د خلائق دي.

اهل سنت والجماعت ددې څخه په استدلال کولو سره وایي چې انسان تر ملائکو افضل دی مګر ځینو حضراتو لیکلي دي چې په اجمالي توګه یوازې دومره ویل کافي نه دي چې انسان د ملائکو څخه افضل دی بلکه غوره داده چې دا خبره په تفصیل سره بیان کړل سي چې په انسان کې د هر کس د ملائکو څخه افضل کېدل مفهوم نه دي او دا هم ښرګنده سي چې په دې اړه د عوامو او خواصو مصداق څه ذی، دا تفصیل باید معلوم وي چې د خاص مؤمن څخه مراد د الله ﷻ ټول رسولان او نبیان دي ، همدارنګه د خاصو ملائکو څخه مراد حضرت جبرائیل، حضرت میکائیل، حضرت اسرافیل او نور علیهم السلام ، دي، او د عامو مؤمنانو څخه مراد د کاملي درجې مؤمنان دي لکه خلفاء راشدین، اولیاء کاملین او ټول علماء .

په ابن ماجه کې یو حدیث ذکر سوی دی چې په دوو سندو سره منقول دی او هغه حدیث دادی : المؤمن اعظم حرمة من الکعبة، د مؤمن احترام او اکرام تر کعبې هم زیات دی .

## د مخلوقاتو د پیدائش ورځ

﴿۵۴۸۸﴾ : وَعَنْهُ قَالَ أَخَذَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِي فَقَالَ خَلَقَ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ زما لاس ونیوی او وه یې فرمایل: الله

اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ التُّرْبَةَ يَوْمَ السَّبْتِ وَخَلَقَ فِيهَا الْجِبَالَ يَوْمَ الْأَحَدِ وَخَلَقَ

تعالی خاوره د شنبې په ورځ پیدا کړې ده (یعني مځکه) ، او بیا په مځکه کې یې غرونه د یکشنبې په ورځ پیدا کړل

الشَّجَرَ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَخَلَقَ الْمَكْرُوهَ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ وَخَلَقَ النُّورَ يَوْمَ الْأَرْبِعَاءِ

او درختي او بوټي یې د دوشنبې په ورځ پیدا کړل او خراب شیان یې د سه شنبې په ورځ پیدا کړل او رڼا یې د چارشنبې په ورځ پیدا کړل

وَبَثَّ فِيهَا الدَّوَابَّ يَوْمَ الْخَمِيسِ وَخَلَقَ آدَمَ عَلَيْهِ السَّلَام بَعْدَ الْعَصْرِ مِنْ

او حیوانان یې په مځکه کې د پنجشنبې په ورځ خپاره کړل او آدم علیه السلام یې د جمعې په

يَوْمِ الْجُمُعَةِ فِي آخِرِ الْخَلْقِ فِي آخِرِ سَاعَةٍ مِنْ سَاعَاتِ من النهار فِيمَا بَيْنَ الْعَصْرِ إِلَى اللَّيْلِ. رواه مسلم.

ورځ د مازديگر څخه وروسته پيدا كړ او د آخري زيږيدني د ورځي آخري ساعت كي وسو يعني د مازديگر څخه تر شپې پوري. مسلم

**تخريج** صحيح مسلم ۴\۲۱۴۹، رقم: ۲۷- ۲۷۸۹.

**تشريح**: يوم السبت يعني دشنبې د ورځي څخه ددغه ورځي آخري برخه مراد ده چي پر هغه د ورځي اختتام كيږي چي په عربي كي ورته عشية الاحد يعني د يكشنبې د شپې لومړنۍ برخه وايي، په دې اعتبار دغه وخت د يكشنبې يوه برخه ده.

نو دغه روايت د قرآن كريم ددغه آيت: (وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ) خلاف نه دی.

وخلق النور يوم الاربعاء: او رڼا يې د چارشنبې په ورځ پيدا كړل، دلته مسلم د نور لفظ نقل كړی دی او د مشكوة په صحيح نسخو كي هم دغه لفظ همدا رنگه (يعني په راء) سره دی مگر د مشكوة په يوه نسخه كي دغه لفظ په نون سره يعني (نون) دی چي د هغه معنی د ماهي ده، نو كيداى سي چي نور يعني رڼا او نون يعني ماهی دواړه په يوه ورځ يعني د چارشنبې په ورځ پيدا سوي وي.

د حديث د آخري برخي څخه معلومه سوه چي د مخلوقاتو د پيدا كېدو آخري ورځ جمعه وه ، په دغه ورځ د ټولو شيانو د پيدا كېدو لړۍ پاى ته ورسېدل او ټول مخلوقات د ځمكي پر مخ جمع سول نو ددغه ورځي د نامه يعني جمعه ايښودو وجه هم داده او ددغه ورځي هغه وخت چي په هغه كي د آدم عليه السلام پر تخليق باندي د مخلوقاتو د پيداكېدو لړۍ او تكميل وسو.

د ورځي بالكل آخري برخه وه، په دغه مناسبت سره ددغه ورځي اخري وخت (د مازديگر څخه وروسته تر شپې پيل كېدو پوري) د قبوليت په وخت سره مشرف سو ، اكثر علماء وايي چي د جمعې د ورځي په دغه آخري برخه كي الله جل جلاله دعاوي قبلوي.

## د ځمكي او اسمان ذكر

﴿۵۴۸۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ وَأَصْحَابُهُ إِذْ أَتَى

د حضرت ابو هريره څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ او صحابه كرام ناست وه چي د

عَلَيْهِمْ سَحَابٌ فَقَالَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ تَدْرُونَ مَا هٰذَا قَالُوا اللّٰهُ

وريځي يوه ټوټه تيره سوه، رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه پوهيږئ چي دا څه شي ده ؟ صحابه كرامو عرض وكړ الله تعالى

وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ هٰذَا الْعَنَانُ هٰذِهٖ رَوَايَا الْأَرْضِ يَسُوقُهُ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى إِلَى

او د هغه رسول ښه پوهيږي، رسول الله ﷺ وفرمايل دا عنان ده، دا وريځ مځكه اوبه كونكې اوښان دي، الله تعالى دا وريځ د هغه قوم په لور شړي چي

قَوْمٍ لَا يَشْكُرُونَهُ وَلَا يَدْعُونَهُ ثم قَالَ هَلْ تَدْرُونَ مَا فَوْقَكُمْ قَالُوا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ

د الله تعالى شكر نه ادا كوي او نه هغه يادوي، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: او تاسو ته معلومه ده چي ستاسو سربيره څه شي دي؟ صحابه كرامو عرض وكړ الله او د هغه رسول ښه پوهيږي،

أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّهَا الرَّقِيعُ سَقْفٌ مَحْفُوظٌ وَمَوْجٌ مَكْفُوفٌ ثُمَّ قَالَ هَلْ تَدْرُونَ مَا

رسول الله ﷺ وفرمايل: ستاسو سربيره رقيع دي يعني د دنيا د آسمان خوندي بام، او يو موج يې د غورځيدو څخه منع كړى دى، بيا يې وفرمايل تاسو ته معلومه ده چي

بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهَا قَالُوا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهَا خَمْسُ مِائَةِ عام ثُمَّ

د آسمان او ستاسو په منځ كي څومره فاصله ده ؟ عرض وسو الله جل جلاله او د هغه رسول ښه پوهيږي. رسول الله ﷺ وفرمايل: ستاسو او د آسمان په منځ كي د پنځو سوو كالو لار ده، بيا

قَالَ هَلْ تَدْرُونَ مَا فَوْقَ ذٰلِكَ قَالُوا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ سَمَاءَيْنِ مَا بَيْنَهُمَا

رسول الله ﷺ وفرمايل تاسو ته معلومه ده چي د آسمان سربيره څه شي دي ؟ عرض وسو چي الله او د هغه رسول ښه پوهيږي. رسول الله ﷺ وفرمايل: دوه آسمانونه دي او ددې دواړو په منځ

خَمْسُ مِائَةِ سَنَةٍ ثم قال كذالك حَتّٰى عَدَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ مَا بَيْنَ كُلِّ سَمَاءَيْنِ ما

كي د پنځو سوو كالو د لاري فاصله ده همداسي رسول الله ﷺ اووه آسمانونه وشميرل، او هر دوو آسمانو په منځ كي

بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ ثُمَّ قَالَ هَلْ تَدْرُونَ مَا فَوْقَ ذَلِكَ قَالُوا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ

د پنځو سوو کالو د لاري فاصله يې وښودل، بيا يې وفرمايل : تاسو پوهيږئ ددې آسمانونو سربيره څه شي دي؟ صحابه کرامو عرض وکړ الله جل جلاله او دهغه رسول ښه پوهيږي،

قَالَ فَإِنَّ فَوْقَ ذَلِكَ الْعَرْشَ وَبَيْنَهُ وَبَيْنَ السَّمَاءِ بُعْدُ مَا بَيْنَ السَّمَاءَيْنِ ثُمَّ قَالَ

رسول الله ﷺ وفرمايل : ددغه آسمانونو سربيره عرش الهي دی او د دغه آسمانو او عرش الهي په منځ کي هم دومره فاصله ده لکه څومره چي د دوو آسمانو په منځ کي ده ، بيا رسول الله ﷺ

هَلْ تَدْرُونَ مَا الَّذِي تَحْتَكُمْ قَالُوا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّهَا الْأَرْضُ ثُمَّ قَالَ

وفرمايل : تاسو ته معلومه ده چي ستاسو لاندي څه شي دي ؟ عرض وسو چي الله او د هغه رسول ښه پوهيږي، رسول الله ﷺ وفرمايل : مځکه ده ، بيا يې وفرمايل :

هَلْ تَدْرُونَ مَا تَحْتَ ذَلِكَ قَالُوا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ إِنَّ تَحْتَهَا أَرْضًا أُخْرَى

تاسو ته معلوه ده چي ددغه مځکي لاندي څه شي دي ؟ عرض وسو چي الله جل جلاله او د هغه رسول ښه پوهيږي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : تر دغه مځکي لاندي بله مځکه ده

بَيْنَهُمَا مَسِيرَةُ خَمْسِ مِائَةِ سَنَةٍ حَتَّى عَدَّ سَبْعَ أَرَضِينَ بَيْنَ كُلِّ أَرْضَيْنِ مَسِيرَةُ

او د دواړو مځکو په منځ کي د پنځو سوو کالو فاصله ده همداسي اووه مځکي يې وشميرلې او د هري مځکي څخه تر بلي مځکي پوري يې

خَمْسِ مِائَةِ سَنَةٍ ثُمَّ قَالَ وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَوْ أَنَّكُمْ دَلَّيْتُمْ رَجُلًا بِحَبْلٍ

د پنځو سوو کالو فاصله وښودل او بيا يې وفرمايل : په هغه ذات مي دي قسم وي چي د هغه په لاس کي د محمد ﷺ ساه ده که تاسو په مځکه کي رسۍ وغورځوئ

إِلَى الْأَرْضِ السُّفْلَى لَهَبَطَ عَلَى اللَّهِ ثُمَّ قَرَأَ هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ

او تر ټولو لاندي ورسيږي نو هغه به الله تعالى ته ورسيږي ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت کړ : (هو الاول والاخر والظاهر والباطن

وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ. رواه احمد والترمذي وقال الترمذي قراءة رسول الله

وهو بكل شئ عليم)، (الله تعالى اول دى او هغه آخر دى هغه ظاهر دى او هغه باطن دى او هغه ته د هر خير علم دى،)، احمد او ترمذي، امام ترمذي په خپل جامع كي دغه حديث لاندي

ﷺ الاية تدل على انه اراد الهبط على علم الله وقدرته وسلطانه وعلم الله وقدرته وسلطانه في كل مكان وهو على العرش كما وصف نفسه في كتابه.

وفرمايل : د رسول الله ﷺ ددې آيت تلاوت كول پر دې دلالت كوي چي هغه رسى. به د الله سبحانه وتعالى په علم او د هغه په قدرت او د هغه پر حكومت پريوځي ځكه چي د الله سبحانه وتعالى علم او د هغه قدرت او د هغه حكومت په هر ځاى كى دى او بذات خود په عرش عظيم كي دى څنګه چي هغه په خپل كتاب كي خپل دا وصف بيان كړى دى.

**تخريج** سنن الترمذي ۳۷۶\۵ - ۳۷۷، رقم: ۳۲۹۸، وفي مسند احمد ۲۰۶\۲ - ۲۰۷.

**د لغاتو حل**: العنان: السحابة (وريځ). الرقيع: اسم لسماء الدنيا (د دنيا آسمان).

**تشريح**: روايا د راوية جمع ده او راويه هغه اوښ ته وايي چي اوبه په راكښل كيږي، نو ابر يعني وريځ يې په راويه سره ځكه تعبير كړ چي څرنګه اوښ د اوبو په راكښلو سره مځكه اوبه كوي همدارنګه وريځ هم د اوبو په اورولو سره مځكه اوبه كوي.

چي نه د هغه شكر ادا كوي، ددغه جملې په ذريعه هغه خلكو ته اشاره سوې ده چي پر باران كېدو باندي نه يوازي دا چي د الله ﷻ شكر نه ادا كوي چي د هغه حكم او د هغه په قدرت سره د هغه باران په نتيجه كي د هغوئ مځكه اوبه كيږي، د هغوئ د اوبو اړتيا پوره كيږي او د هغوئ د روزي او ګټي ذرائع تر لاسه كيږي بلكه هغوئ د باران نسبت د هغه اصل مسبب (الله ﷻ) ته د كولو پر ځاى ظاهري اسبابو ته يا دخپل فاسد خيال او ګمان مطابق غير حقيقي طاقتونو او ستورو ته كوي، همدارنګه د (او نه هغه يادوي) په ذريعه هم د هغه خلكو بې حسي او بدعقيده توب ته اشاره سوې ده چي هغه خلك د الله ﷻ په يادولو سره د هغه څخه د مرستي غوښتلو او د هغه د عبادت كولو پر ځاى د خپل لاس جوړ سوو او غير حقيقي طاقتونو په وړاندي سجده كوي او هغوئ خپل مرسته كونكي ګڼي مګر دا د پروردګار بې پايه كرم او رحمت دى چي هغه ددغه خلكو د ناشكرى، بدعملى او بد عقېده توب سربېره هغوئ ته رزق وركوي، د هغوئ اړتياوي پوره كوي او هغوئ ته امن او عافيت وركوي.

رقيع د راء په زور سره د فعيل پر وزن دى او دا د لومړني آسمان چي هغه ته د دنيا آسمان هم

وايي، نوم دی مګر ځينو حضراتو ويلي دي چي هر آسمان ته رقيع وايي.

چي يو خوندي بام او نه لوېدونکې څېره ده، دلته آسمان ته د يو ټينګ بام سره تشبيه ورکړل سوې ده چي د لوېدو پرته خوندي دي، الله ﷻ آسمانونه داسي قائم کړي دي چي نه د هغه پر مځکه باندي رالوېدو بېره ده او نه په هغه کي د ماتېدو بېره سته، همدارنګه آسمان ته د څپې سره مناسبت ځکه ورکړل سوی دی چي څرنګه د اوبو يوه چپه په هواء کي معلق وي همدارنګه آسمان هم بېله ستني په خلاء کي معلق دی.

په هغو کي د هري مځکي څخه تر بلي مځکي پوري درميانه فاصله ...الخ: ددې څخه دا خبره معلومېږي چي په ټولو مځکو کي د يوې بلي درميانه هغه فاصله ده کوم چي په ټولو آسمانو کي د يو بل درميانه فاصله ده، کوم حضرات چي وايي: د مځکي ټولي طبقې د يو بل سره يو ځای سوي دي او د هغوئ په منځ کي ليري والي او فاصله نسته او په دې وجه په قرآن کريم د ارض، يعني مځکي لفظ مفرد ذکر سوی دی او د سماء ذکر د جمع په صيغه سره کيږي، نو دغه حديث د هغه خلاف واقع کيږي، کوم چي ددې خبري تعلق دی چي په قرآن کريم کي د ارض لفظ په هر ځای کي د مفرد په صيغه سره ذکر کيږي او ددې نسبت څخه د اسماء لفظ د جمع په صيغه راځي نو کېدای سي چي د ارض څخه يوازي د هغه مځکي ذکر کول مقصد وي چي د هغه سره ددغه کائناتو د مخلوق اصل تعلق دی او تر قدمو لاندي يې ده، د پاته نورو مځکو سره د چا کار نسته، حال دا چي د آسمانو معامله ددې برعکس ده او هر آسمان د فيوضو او آثارو مصدر دی او د ټولو آسمانو سره ددې دنيا تعلق يو ځای سوی دی.

نو پر الله ﷻ باندي کښېنته کيږي، ددې څخه مراد څرنګه چي ترمذي هم وضاحت کړی دی، ددغه رسی د الله ﷻ علم او قدرت او د هغه پر حکمت باندي کښېنته کيږي، مطلب دا چي د الله ﷻ علم او د هغه معلومات، د هغه قدرت او اختيار او د هغه حکم چي څرنګه د آسمان لوړوالي او وسعت چاپېره کړی دی همدارنګه د مځکي پر مخ باندي او د مځکي تر آخري ژوروالي پوري هم د هغه علم، د هغه قدرت او د هغه حکم حاوي او نافذ دی، رسول الله ﷺ دغه خبره ددغه شبهې د دفع لپاره وفرمايل چي کېدای سي يو ناپوه او کم فهمه سړی د الله ﷻ علم او اختيار او د هغه قدرت تر آسمان او آسماني کائناتو پوري محدود دي، د آسمان لاندي شيان نه د هغه په علم کي دي او نه د هغه د حکم او قدرت لاندي دي، نو رسول الله ﷺ څرګنده کړل چي د الله ﷻ د قدرت په وړاندي د آسمانو لوړوالي او د مځکو ښکته والي ټول يو ډول دي، د هغه د قدرت او د هغه د حکم ظهور چي څرنګه پر آسمان دی همدارنګه د مځکي پر سر او د مځکي

لاندي هم دی، او غالبا د دغه حقيقت څرګندولو لپاره ويل سوي دي چي د حضرت يونس علیه السلام معراج هغه ته د ماهي په نس کي ورسېدی لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ ته د آسمان سربېره معراج ترلاسه سو.

دا چي امام ترمذي رحمه الله ويلي دي چي پر الله جل جلاله باندي د رسۍ کښته کېدو څخه مراد دادی چي هغه رسۍ د الله جل جلاله علم، دهغه قدرت او د هغه پر حکومت باندي کښته کيږي نو هغه دغه وضاحت ددغه آيت کريمه په رڼا کي کړی دی چي رسول الله ﷺ ددغه حديث فرمايلو څخه وروسته دغه آيت تلاوت کړي، نو ددغه آيت الفاظ (بکل شئ عليم) څخه د هغه د علم مفهوم وسو او د (هو الاول والاخر) څخه د هغه د قدرت مفهوم راووتی يعني هغه داسي اول دی چي هر شی د هغه په لاس کي دی او هر شی چي موجود دی د هغه د قدرت سره د عدم د سينې په څېرلو سره په وجو کي راغلي دي او هغه داسي آخر دی چي هر شی به فناء سي مګر د هغه ذات به باقي او موجود وي او د هغه حکومت، يا داسي به ووايو چي د هغه تصرف او دهغه غلبه د والظاهر والباطن څخه مفهوم سول يعني هغه داسي ظاهر دی چي هر شی د هغه د غلبې او تصرف لاندي دی، په ټولو شيانو کي څرنګه چي غواړي تصرف کوي ځکه چي تر هغه هيڅ شی مافوق نسته، داسي هيڅ شی نسته چي د هغه په تصرف او تسلط کي خنډ واچوي او هغه داسي باطن دی چي د خلقت د سترګو او خيال او وهم څخه د پټېدو سربېره ملجا ماورا د هغه څخه پرته ځوک نسته د هر شی په دننه حال هغه باخبر دی او د هيچا راز د هغه څخه پټ نه دی.

د (لکه څرنګه چي هغه په خپل کتاب کي خپل وصف بيان کړی دی) په ذريعه د قرآن کريم دغه آيت ته اشاره کول مصد دي: (الرحمن علی العرش استوی) هغه لوی رحمت والا پر عرش باندي قائم دی.

دغه آيت کريمه که څه هم په ظاهره دا وهم پيدا کوي چي الله جل جلاله پر يو خاص جهت او خاص ځای باندي متمکن دی مګر په حقيقت کي ددې څخه مراد د هغه سلطنت او حکومت او د هغه د علم او قدرت ظهور ذکر کول دي.

### د حضرت ادم علیه السلام قد

﴿۵۴۹۰﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ طُولُ آدَمَ سِتِّينَ ذِرَاعًا فِي سَبْعَةِ أَذْرُعٍ عَرْضًا. رواه احمد.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د آدم د قد لوړوالی شپیته ګزه او د بدن پلنوالی يې اووه ګزه وو. احمد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\۵۳۵.

**تشريح**: ذراع په اصل کي بازو ته وايي يعني د ښنګلي څخه د منځنۍ ګوتي تر سر پوري او د شرعي ګز اطلاق هم پر دې کيږي، دلته سوال پيدا کيږي چي د حضرت آدم عليه السلام قد چي شپېته لاسه اوږد فرمايل سوی دی نو دچا لاس مراد دی، ايا خپله د حضرت آدم عليه السلام لاس که د اوسنيو خلکو لاس؟ صحيح خبره داده چي د حضرت آدم عليه السلام لاس مراد نه دی بلکه د اوسنيو خلکو لاس مراد دی چي د هغه قدر ددغه وخت د خلکو په اعتبار شپېته لاسه اوږد وو ځکه که چيري د حضرت آدم عليه السلام لاس مراد واخيستل سي نو د هغه مطلب به دا وي چي د هغه لاس د هغه د قد يو ازي شپيتمې برخي برابر وي چي د هغه د قد د اوږدوالي او تناسب اندامونو په اعتبار بالکل بې بنياده معلوميږي او دا ناممکنه ده.

## د انبياؤ شمير

﴿۵۴۹۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ قُلْتُ يَا رسول الله أَيُّ الْأَنْبِيَاءِ كَانَ أَوَّلَ قَالَ آدَمُ

د حضرت ابو ذر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما عرض وکړ اې د الله رسوله! تر ټولو لومړنی نبي څوک وو؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: آدم عليه السلام،

عَلَيْهِ السَّلَام قُلْتُ يَا رسول الله أَوَنَبِيٌّ كَانَ آدَمُ قَالَ نَعَمْ نَبِيٌّ مُكَلَّمٌ قُلْتُ يَا

بيا ما پوښتنه وکړه ايا آدم عليه السلام نبي وو؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: هو، آدم عليه السلام نبي وو او الله جل جلاله خبري ورسره کړې وي (يعني پر هغه صحيفې نازلي سوې وې)، ما بيا

رَسُولَ اللّٰهِ كَمُ الْمُرْسَلُونَ قَالَ ثَلَاثُ مِائَةٍ وَبِضْعَةَ عَشَرَ جَمًّا غَفِيرًا وفي

پوښتنه وکړه چي رسولان څومره دي؟ رسول الله ﷺ راته وفرمايل: تر دري سوه لس (۳۱۰) يو

رواية عن ابي امامة قال ابوذر قلت يا رسول الله كَمْ وفاء عِدَّةُ الْأَنْبِيَاءِ

څه زيات، د ابو امامه په روايت کي دا الفاظ دي چي ابو ذر رضي الله عنه پوښتنه وکړه چي اې د الله رسوله! ټول انبياء څومره دي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

قَالَ مِائَةُ أَلْفٍ وَأَرْبَعَةٌ وَعِشْرُونَ أَلْفًا الرُّسُلُ مِنْ ذَلِكَ ثَلَاثُ مِائَةٍ وَخَمْسَةَ عَشَرَ جَمًّا غَفِيرًا.

یو لک څلیرویشت زره او په هغوئ کي یوه لویه ډله یعني رسولان درې سوه پنځلس دي.

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۵\۱۷۸.

**د لغاتو حل**: وفاء: اي کم کمال عددهم. (بشپړ شمېر)

**تشریح**: هغه ته د الله ﷻ سره د تکلم او تخاطب شرف تر لاسه سوی دی، مطلب دادی چي حضرت آدم علیه السلام د انساني دنیا پلار او دخپل دنیاوي نسل د سعادت او کامیابۍ لپاره لارښود او هادي وو، همدارنګه د اُخروي سعادت او کامیابۍ پیغمبر هم وو، د هغه نبي کېدل د شک او شبهې څخه لوړ دي او هغه لومړنی انسان دی ځکه د انساني نسل لپاره د الله ﷻ د وحي په ذریعه چي کوم پیغامات هغه واورل هغه دده صحیفې او شریعت ګڼل کیږي، په دې اعتبار سره هغه یوازي نبي نه وو بلکه رسول هم وو چي پر هغه باندي صحیفې هم نازل سوې او هغه ته شریعت هم ورکړل سو.

په رسول او نبي کي فرق دادی چي رسول خو هغه پیغمبر ته وایي چي هغه ته نوی شریعت او کتاب ورکړل سوی وي او د الله ﷻ مخلوق ته د هغه شریعت او کتاب رسولو ذمه دار ګرځول سوی وي او نبي هغه پیغمبر ته وایي که هغه ته نوی شریعت او کتاب ورکړل سوی وي یا نه وي، بلکه هغه د لومړني شریعت او کتاب تابع وي او که څه هم هغه د تبلیغ ذمه دار ګرځول سوی وي یا نه وي.

د ټولو انبیاؤ د شمېر په اړه په دغه حدیث کي د یو لک څلیرویشت زره یادونه ده او په ځینو روایتو کي دغه شمېر دوه لکه څلیرویشت زره بیان سوی دی، څرګنده ده چي په دواړو شمېرو کي تضاد دی ځکه علماؤ لیکلي دي چي په دې اړه باید تحقیق او پلټنه ونه کړل سي او نه یو خاص شمېر متعین کړل سي بلکه دا عقیده درلودل پکار دي چي د انبیاؤ صحیح شمېر الله ﷻ ته معلوم دی او په اجمالي توګه داسي ایمان راوړل پکا ردي چي الله ﷻ څومره رسولان او نبیان رالېږلي دي موږ هغه ټول حق رسولان او نبیان منو، د دغه عقیدې او اجمالي ایمان سره نه یو نبي د انبیاؤ د ډلي څخه وځي او نه غیر نبي د هغوئ په ډله کي شاملیږي.

## په زباني خبرو او ليدنه کي فرق

﴿۵۴۹۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

الْخَبَرُ كَالْمُعَايَنَةِ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ أَخْبَرَ مُوسَى بِمَا صَنَعَ قَوْمُهُ فِي الْعِجْلِ فَلَمْ

د يو شي په اړه زباني خبر د سترګو سره د ليدو برابر کيداى نه سي ، الله تعالى موسى عليه السلام ته د ګيلګي په اړه د هغه قوم چي څه کړي وه

يُلْقِ الْأَلْوَاحَ فَلَمَّا عَايَنَ مَا صَنَعُوا أَلْقَى الْأَلْوَاحَ فَانْكَسَرَتْ. روى الاحاديث الثلاثة احمد.

د هغه خبر ورکړ او د هغه څخه په متاثر کيدو سره موسى عليه السلام په غضب کي د تورات نسخې ونه غورځولې مګر کله چي موسى عليه السلام خپل قوم ته راغلى او په خپلو سترګو يې د قوم بد عملي وليدل نو په غضب کي سو او د تورات نسخې يې وغورځولې چي ماتي سوې . احمد.

**تخريج** الامام احمد في مسنده ۱\۲۷۱.

**تشريح** د يو شي په اړه اورېدل د هغه په سترګو لېدو برابر کېداى نه سي، ددغه جملې په ذريعه رسول الله ﷺ يو ارزښتناکه نفسياتي نکتې ته اشاره فرمايلې ده، د انسان خاصه ده چي هغه په سترګو سره ليدل سوى شي څخه ښومره زيات او ژر متاثره کيږي هغومره زيات او ژر په اورېدل سوي شي سره متاثر کيږي که هغه ته دا خبر ورکړل سي چي ستا فلانى قريب سخت ناروغ دى نو د هغه پريشانه کېدل يو فطري امر دى مګر ددې خبري او اطلاق په مقابله کي د هغه پر زړه او دماغ باندي د فکر او پريشانۍ پرده ډېر زياته اثر کونکي وي چي هغه ناروغ په سترګو ويني نو رسول الله ﷺ ددغه نکتې ثابتولو لپاره دغه پېښه د مثال په توګه وړاندي کړل چي کله حضرت موسى عليه السلام د چلې لپاره جبل طور ته ولاړ او هلته د خپل پروردګار سره په راز ونياز کي بوخت او د خپل قوم بني اسرائيلو لپاره د تورات په تر لاسه کولو کي بوخت وو،

نو بلي خوا ته د سيناء په شپېله کي د هغه د قوم د يو بد سړي سامري په قيادت کي د ګيلګي عبادت پيل کړ ، الله جل جلاله حضرت موسى عليه السلام ددغه پېښي څخه خبر کړ او وه يې فرمايل: اې

موسی! ته چي د کوم قول لپاره دومره هڅه کونکی یې او دلته د طور پر غره باندي د هغوئ لپاره زما له خوا کتاب او هدایت تر لاسه کوې هغوئ ستا تر شا د ګیلګي په عبادت کي اخته سوي دي ، ددې په اورېدو سره حضرت موسی علیه السلام غمجن سو او په غصه کي خپل قوم ته راغلی او د قوم خلک یې د ګیلګي په عبادت کولو په خپلو سترګو ولېدل نو ډېر زیات په غصه سو او د هغه غضب په وجه هغه تختۍ چي تورات پر لیکلی وو پر مځکه وغورځول چي تختۍ ماته سول ، د هغه تختۍ په غورځولو سره هغه دا څرګنده کړل چي د غه الهي آئین مؤمنانو ته ګټه رسولای سي، کومو خلکو چي د ایمان او عقیدې د لاري په پرېښودو سره کفر او سرکښي اختیار کړې ده د هغوئ لپاره پر الهي آئین باندي مشتمل دد غه تختو ساتل او س څه ګټه کوي مګر د هغه تختۍ د ماتېدو دا مطلب نه وو چي په هغه کي څه لیکل سوي وه هغه له منځه ولاړل ، په هغه تختو کي چي کوم احکام وه هغه ټول هم هغسي موجود وه او اصل تورات پر خپل ځای موجود وو.

==========

# كِتَابُ الفَضَائِلِ وَالشَّمَائِل

## بَابُ سَيِّدِ الْمُرْسَلِيْنَ ﷺ

**(د سيد المرسلين حضرت محمد ﷺ د فضائلو او مناقبو بيان)**

د رسول الله ﷺ د فضائلو، مناقبو او د رسول الله ﷺ د صفاتو او فضائلو هيڅ شمېر نسته، هيڅ ژبه او قلم واک نه لري چي د رسول الله ﷺ ټول فضائل او اوصاف احاطه کړای سي، مګر د مشکوة مؤلف د هغو څخه دځينو فضائلو اړوند حديثونه او روايتونه په دغه باب کي راوړي دي، پر دې خبره د ټولو علماؤ اتفاق دی چي رسول الله ﷺ د ټول انسانيت سردار، په نبيانو کي تر ټولو افضل او اشرف دی، د رسول الله ﷺ څخه وروسته حضرت ابراهيم عليه السلام افضل دی، بيا حضرت موسی عليه السلام، د حضرت موسی عليه السلام وروسته د چا درجه ده، په دې اړه په صراحت سره د علماؤ څخه څه منقول نه دي، ځينو علماؤ د حضرت موسی عليه السلام وروسته حضرت عيسی عليه السلام او د هغه وروسته حضرت نوح عليه السلام ته افضل او اشرف ويلي دي او ليکلي يې دي چي د انبياؤ په اوږده فهرست کي دغه پنځه نبيان اولو العزم ګڼل کيږي او د حق په لاره کي د دوئ صبر او استقامت او د عزيمت درجه بې مثاله ده.

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

**د رسول الله ﷺ خانداني او نسبي شرف**

﴿۵۴۹۳﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُعِثْتُ مِنْ خَيْرِ قُرُونِ بَنِي آدَمَ قَرْنًا فَقَرْنًا حَتَّى كُنْتُ مِنَ الْقَرْنِ الَّذِي كُنْتُ منه. رواه البخاري

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه د بني آدم په غوره طبقو پيدا کړل سوی يم قرن پر قرن تر دې چي زه په دې قرن کي يم په کوم قرن کي چي يم. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٦٦، رقم: ٣٥٥٧.

**تشريح**: د غوره طبقو څخه مراد د مختلفو سيمو هره هغه طبقه ده چي په هغه کي د رسول الله ﷺ نيکه ګان وه چي په خپل خپل وخت کي دخپل کورني نجابت او شرافت او انساني فضل و

كمال په اعتبار ممتاز او د احترام وړ راغلي دي لکه حضرت اسماعيل عليه السلام او د هغه اولاده او دهغه څخه وروسته کنانه او دهغه اولاده، د هغه څخه وروسته هاشم او دهغوئ اولاد، نو ددغه ارشاد مطلب دا سو چي زما د نسب لړۍ د پيل څخه تر اوسه پوري د نسل انساني ډېر مفتخر او معزز کسانو باندي مشتمل ده، زما پلار او نيکه چي دهغوئ يو په بل منتقل کېدو سره زه په دغه زمانه کي پيدا سوی يم د خپل وخت او زمانې هغه ممتاز او غوره کسان وه چي د هغوئ ذات د کورني نجاب او شرافت او ټولنيز عزت، وطني مقبوليت او مرجعيت، ذاتي بزرګي او افضيلت او دنساني فضائلو مبع راغلي ده.

## د رسول الله ﷺ غوره والی

﴿۵۴۹۴﴾: وَعَنْ وَاثِلَةَ ابْنِ الْاَسْقَعِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت واثله بن اسقع رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل چي فرمايل

يَقُولُ إِنَّ اللّٰهَ اصْطَفَى كِنَانَةَ مِنْ وَلَدِ إِسْمٰعِيلَ وَاصْطَفَى قُرَيْشًا مِنْ كِنَانَةَ

يې: الله تعالى د اسماعيل عليه السلام د اولاد څخه کنانه کورنۍ وټاکل او د بنو کنانه څخه يې قريش انتخاب کړل

وَاصْطَفَى مِنْ قُرَيْشٍ بَنِي هَاشِمٍ وَاصْطَفَانِي مِنْ بَنِي هَاشِمٍ. رواه مسلم و في رواية للترمذي ان الله اصطفى من ولد ابراهيم اسماعيل اصطفى من ولد اسماعيل بني كنانة.

او د قريش څخه يې بنوهاشم انتخاب کړل او په بنو هاشم کي يې زه انتخاب کړم. مسلم او د ترمذي په يوه روايت کي داسي دي چي الله تعالى دابراهيم عليه السلام په اولاد کي اسماعيل عليه السلام انتخاب کړ او د اسماعيل عليه السلام د اولاد څخه يې بني کنانه انتخاب کړل

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\۱۷۸۲، رقم: ۱- ۲۲۷۶. والترمذي كتاب المناقب رقم: ۳۶۰۶.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ کورنی او نسبي تعلق د حضرت اسماعيل عليه السلام سره دی، د حضرت سماعيل عليه السلام د زوی، قيدار په اولاد کي يو سړی عدنان وو، ددغه عدنان اولاد د بني سماعيل پر ټولو مشهورو قبيلو باندي مشتمل دی ځکه عرب مستعر په بني اسماعيل ته

عدناني يا آل عدنان ويل كيږي، د عدنان زوی معد او د معد زوی نزار وو، چي د نزار څلور زامن ښودل كيږي، په دوئ كي دوه زامن ربيعه او مضر تر ټولو زيات نوموړي او د عربو د لويو قبيلو مورث دي، د مضر په اولاد كي په مخته تللو سره يو سړی كنانه وو او د هغه اولاد د مضر په قبيلو كي تر ټولو زيات پر مشهوره قبيله باندي مشتمل سو، د كنانه زوی نضر او د نضر زوی مالک او د مال زوی فهر وو، دا هغه فهر دی چي د هغه لقب قريش وو، د فهر په اولاد كي ډېري قبيلې وې او ټولو ته قريش ويل كيږي، دغه ټولي قبيلې په مختلفو سيمو او ډلو كي ويشل سوي وې، د دوئ په منځ كي نه اتفاق وو او نه اجتماعي نظام وو، بيا يو سړی قصي بن كلاب پيدا سو، هغه په ډېر محنت او هڅه سره ټول قريش منظم كړل، په هغوئ كي د اجتماعيت او بيدارۍ روح پيدا كولو سره چي د هغه په بركت قريش نه يوازي پر مكه معظمه بلكه پر ټول حجاز باندي غلبه او اقتدار تر لاسه كړ، له دې كبله ځيني حضرات وايي چي قريش په اصل كي د قصي بن كلاب لقب دی ځكه چي دغه لفظ د قرش څخه وتلی دی چي د هغه معنی د جمع كولو او منظم كولو ده، مشهوره خبره داده چي قريش د اوبو د يو حيوان نوم دی چي ډېر قوت او زور لري، د دې تائيد د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د دغه روايت څخه كيږي چي په هغه كي بيان دی چي د قريشو نوم په دې مناسبت سره ايښودل سوی دی چي قريش د يو ډېر لوی خطرناک ماهي نوم دی چي ټول ماهيان خوري مگر خپله ده ته نه بل ماهي تاوان رسوي او نه پر ده واک تر لاسه كوي، همدا وجه د تسميې په قاموس كي هم مذكور ده،

د اسلام د ظهور په وخت كي د قريشو په ښاخو كي چي كوم ښاخ تر ټولو زيات مشهور، عزتمند او غالب وو، هغه بنوهاشم دی، رسول الله ﷺ په بنوهاشم كي پيدا سو، د رسول الله ﷺ د نسب لړۍ داسي ده: محمد بن عبدالله ابن عبدالمطلب ابن هاشم ابن عبد مناف ابن قصی ابن كلاب ابن مرة ابن كعب ابن لوی ابن غالب ابن فهر ابن مالک، ابن نضر ابن كنانه ابن خزيمه ابن مدرک ابن الياس ابن مضر، ابن نزار ابن معد ابن عدنان، د عدنان څخه مخكي نسب نامه په زيات باور سره نسي ښودل كيدای.

د دغه تفصيل په رڼا كي د حديث مفهوم واضح سو چي الله جل جلاله د حضرت اسماعيل عليه السلام د اولاد څخه بنو كنانه تر ټولو زيات د فخر وړ وگرځول، بيا د بنو كنانه څخه تر ټولو زيات قوت او غلبه قريشو ته تر لاسه سول، په قريشو كي تر ټولو زيات بزرگي بنوهاشم ته او په بنوهاشم كي تر ټولو زياته بزرگي او عظمت رسول الله ﷺ تر لاسه سو، نو د رسول الله ﷺ ذات مبارک د خپل نسب د ټولو عظمتونو مركز دی.

## د قیامت په ورځ د رسول الله ﷺ سرداري

﴿۵۴۹۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَا سَيِّدُ وَلَدِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَوَّلُ مَنْ يَنْشَقُّ عَنْهُ الْقَبْرُ وَأَوَّلُ شَافِعٍ وَأَوَّلُ مُشَفَّعٍ. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به زه د آدم عليه السلام د اولاد سردار يم او تر ټولو مخکي به زه د قبر څخه پاڅم او تر ټولو وړاندي شفاعت به زه کوم او تر ټولو وړاندي به زما شفاعت قبليږي، مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۱۷۸۲، رقم: ۳- ۲۲۷۸.

**تشريح**: مطلب دا چي د قيامت په ورځ به د ټولو انساني کمالاتو او صفاتو او ټولو عظمتونو مظهر د رسول الله ﷺ ذات وي، په هغه ورځ به د مخلوقاتو څخه نه د چا د رجه د رسول الله ﷺ څخه لوړه وي او نه به د رسول الله ﷺ څخه پرته بل څوک د سرداري او مشري وړ وګرځول سي، څرګنده دي وي چي حضرت محمد عربي ﷺ په دنيا او آخرت کي د ټولو خلکو سردار او مشر دی مګر دلته د قيامت د ورځي قيد ځکه لګول سوی دی چي په غه ورځ به د رسول الله ﷺ د مشرۍ او غوره والي ظهور د هر چا د اختلاف او عناد څخه ماسوا وي. حال دا چي په دغه دنيا کي د کفر او شرک او نفاق طاقتونه نه يوازي د رسول الله ﷺ په ژوند کي د هغه د مشرۍ او سردارۍ مخالف دي بلکه وروسته هم دهغوئ اختلاف او عناد ظاهر پاته سو، ددغه حديث د بين السطور څخه معلومه سول چي رسول الله ﷺ پر ملائکو باندي هم فضيلت لري او د رسول الله ﷺ ذات افضل المخلوقات او اکمل الموجودات دی، په ځينو حديثونو کي چي دا فرمايل سوي دي چي تاسو پيغمبرانو ته پر يو بل باندي فضيلت مه ورکوئ او مه ما ته تر موسی او يونس افضل واياست، نو ددغه مخالفت توجيه مخکي تېره سوې ده.

## د امت محمدي شمېر به تر ټولو زيات وي

﴿۵۴۹۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَكْثَرُ الْأَنْبِيَاءِ تَبَعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَنَا أَوَّلُ مَنْ يقرع بَابَ الْجَنَّةِ. رواه مسلم.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ به تر ټولو زيات شمير زما د تابعينو وي او زه به تر ټولو .لومړنی سړی يم چي د جنت دروازه به وټکوم. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۱۸۸، رقم: ۳۳۱- ۱۹۶.

**تشريح**: د قيامت په ورځ د إمت محمديه د شمېر د زياتوب په اړه مخکي يو حديث تېر سوی دی چي د رسول الله ﷺ امت به د ټولو جنتيانو د مجموعي شمېر دوه پر درې برخه وي ، ددې څخه معلومه سوه چي د يو کس د اتباع او پيروي کونکو کثرت د هغه کس د فضيلت او غوره والي باعث جوړېږي ځکه چي ويل کيږي چي د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله مرتبه زياته لوړه ده چي د فقهي په امامانو کي دهغه مذهب زيات رواج دی او دمسلمانانو زياتوب د اسلام په فروعي احکامو کي د هغه پيروان دي ، همدارنګه په قاريانو کي د امام عاصم رحمه الله مرتبه لوړه ده ځکه چي د تجويد او قرائت په فن کي د هغه پيروان زيات دي .

## د جنت دروازه به تر ټولو مخکي رسول الله ﷺ ته خلاصه سي

﴿۵۴۹۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آتِي بَابَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَأَسْتَفْتِحُ فَيَقُولُ الْخَازِنُ مَنْ أَنْتَ فَأَقُولُ مُحَمَّدٌ فَيَقُولُ بِكَ أُمِرْتُ لَا أَفْتَحُ لِأَحَدٍ قَبْلَكَ. رواه مسلم.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ به زه د جنت دروازې ته راسم او د هغه د خلاصولو غوښتنه به وکړم ، د جنت خزانچي به ووايي چي څوک يې؟ زه به ووايم چي محمد (ﷺ) يم نو هغه به ووايي چي ما ته حکم سوی دی چي ستا ترمخه به بل هيچا ته دروازه نه خلاصوم. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۱۸۸، رقم: ۳۳۳- ۱۹۶.

## تر ټولو مخکي به رسول الله ﷺ شفاعت کوي

﴿۵۴۹۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَوَّلُ شَفِيعٍ فِي الْجَنَّةِ لَمْ يُصَدَّقْ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ مَا صُدِّقْتُ وَإِنَّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ نَبِيًّا مَا

يُصَدِّقُهُ مِنْ أُمَّتِهِ إِلَّا رَجُلٌ وَاحِدٌ . رواه مسلم.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زه به تر ټولو لومړنی سړی یم چي په جنت کي به شفاعت کوم، او په انبیاؤو کي د هیڅ یو نبي دومره تصدیق نه دی سوی لکه څومره چي زما سوی دی، او په انبیاؤو کي یو نبي داسي هم وو چي د هغه تصدیق یوازي یوه سړي کړی وو. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ١\١٨٨، رقم: ٣٣٢-١٩٦.

## رسول الله ﷺ خاتم النبيين دی

﴿۵۴۹۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلِي

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زما

وَمَثَلَ الْأَنْبِيَاءِ كَمَثَلِ قَصْرٍ احسن بنيانه ترك منه موضع لبنة فطاف به

او د نورو انبیاؤو علیهم السلام مثال د هغه ماڼۍ په ډول دی چي د هغه عمارت یا دیوالونه ډیر ښه وي مګر په دیوال کي د یوې خښتي ځای خالي پرې ښودل سوی وي، او کتونکي د هغه

النظار يتعجبون من حسن بنيانه الا موضع تلك اللبنة فكنت انا سددت

ماڼۍ تعجب کوي چي څرنګه ښه ماڼۍ ده مګر دا یوه خښته یې کمه ده زه د هغه خښتي ځای

موضع اللبنة ختم بي البنيان وختم بي الرسل وفي رواية فَأَنَا اللَّبِنَةُ وَأَنَا خَاتِمُ النَّبِيِّينَ . متفق عليه.

ډکونکی یم او زه هغه ماڼۍ پوره کونکی یم او پر ما باندي رسولان ختم سوي دي، او په یوه روایت کي دي چي زه هغه خښته یم او زه د نبوت د لړۍ ختمونکی یم. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٥٨، رقم: ٣٥٣٤، ومسلم ١٤\١٧٩٠، رقم: ٢٠-٢٢٨٦.

**تشريح**: دغه حدیث د رسول الله ﷺ د خاتم النبیین کېدو ښکاره دلیل دی چي الله جل جلاله د خپل مخلوق د هدایت لپاره په دنیا کي د خپلو رسولانو او نبیانو لړۍ د لومړني انسان، حضرت آدم علیه السلام څخه پیل کړې وه او پر حضرت محمد ﷺ باندي یې پای ته ورسول، د رسول الله ﷺ څخه

وروسته هيڅ يو نبي او رسول دنيا ته نه دی راغلی او نه به په راتلونکي کي راسي.

دغه حقیقت رسول الله ﷺ په يوه لويه نفسياتي طريقه د يو مثال په ذريعه وفرمايه چي زما څخه مخکي دنيا ته ځومره نبيان او رسولان راغلي دي هغوئ د الله ﷻ له خوا كوم شريعت، آئين، علم او دين پيغام او احكام راوړل د هغو مجموعه يو داسي محل تصور کړئ چي ډېر غوره، ټينګ او پوخ دېوال دی مګر د هغه په دېوال کي د يوې خښتي په اندازه خالي ځای پرې ايښی وي او هغه خالي ځای د يو داسي چا په انتظار وي چي په راتللو سره هغه ډک کړي او د هغه خالي ځای د نقص پوره کولو لپاره د محل د تعمير لړۍ ختمه کړي نو رسول الله ﷺ د مخکنيو نبيانو او راتلونکو نبيانو بعثت، د هغوئ راوړل سوی شريعت او هدايت ذريعه د دين محل تيار سوی وو مګر لږ كسر پکښي پاته سوی وو او هغه كسر زموږ د حضرت محمد ﷺ په بعثت سره پوره سو، اوس نه د الله ﷻ دين ناقص دی او نه شريعت غير مكمل دی او نه د يو نبي راتللو اړتيا پاته سوې ده.

## تر ټولو لويه معجزه قرآن کريم دی

﴿۵۵۰۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنَ الْأَنْبِيَاءِ

د حضرت ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په انبياؤ کي هر نبي ته د

من نَبِيٍّ إِلَّا قد أُعْطِيَ من الايات مَا مِثْلهُ آمَنَ عَلَيْهِ الْبَشَرُ وَإِنَّمَا كَانَ الَّذِي

معجزاتو څخه يوازې دومره ورکړل سوې ده چي انسان ايمان پر راوړلای سي او ما ته چي د

أُوتِيتُ وَحْيًا أَوْحَاهُ اللّٰهُ إِلَيَّ فَأَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَكْثَرَهُمْ تَابِعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ. متفق عليه.

وحي معجزه راکړل سوې ده يعني الله تعالى چي كوم كلام د وحي په ذريعه پر ما نازل کړی دی (يعني قرآن کريم) هغه دائمي معجزه ده په دې وجه زما يقين دی چي د قيامت په ورځ به زما د پيروي کونکو شمير د ټولو پيغمبرانو څخه زيات وي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۳، رقم: ۴۹۸۱، ومسلم ۱\۱۳۴، رقم: ۲۳۹- ۱۵۲.

**تشريح**: مطلب دا چي انبياء عليهم السلام د مخلوق په وړاندي د الله ﷻ له خوا د رسالت او نبوت دعوه کوي ځکه الله ﷻ هغوئ ته داسي معجزې ورکوي چي هغوئ د خپلي دعوې دليل

او برهان د خلکو په مخ کي وړاندي کړای سي، ځومره نبیان او رسولان چي دغه مځکي ته راغلل هغوئ ته څه ناڅه داسي معجزې ورکړل سوي دي چي د هغه په لېدو سره عقل سلیم لرونکي انسان د هغه نبي تصدیق وکړلای سي او پر هغه ایمان راوړي، مګر د رسول الله ﷺ څخه مخکي چي کوم نبي ته کومه معجزه ورکړل سوه هغه د هغه نبي تر زمانې او ژوند پوري مخصوص او پاته وه د هغه نبي له دنیا څخه په رخصتېدو سره د هغه معجزه هم ختمه سوه د مثال په توګه د حضرت موسی علیه السلام په زمانه کي د سحر او جادو دور وو ، لویو لویو جادوګرانو به خپلي کړني ښودلې او خلک به د هغوئ له فن څخه متاثره کېدل ، حضرت موسی علیه السلام ته د یدبیضا او عصا معجزه ورکړل سوه ، د هغه دغه دواړو معجزو د ټولو لویو او کوچنیو جادوګرانو ډېوه مړه کړل او نه یوازي عامو خلکو ته بلکه خپله جادوګرو ته هم د حضرت موسی علیه السلام د عظمت اعتراف کول ضروري سول،

همدارنګه د حضرت عیسی علیه السلام په زمانه کي د طب او حکمت ډېر زور وو هغه وخت داسي ماهر او ښه طبیبان او حکیمان موجود وه چي سخته ناروغي به یې له منځه وړل ، حضرت عیسی علیه السلام ته دا معجزه ورکړل سوه چي هغه به مړي ژوندي کول ، د پیس ناروغي به یې سمول او ړوند به یې بینا کوی، همدارنګه د هغه دغه معجزه د خپلي زمانې پر ډېرو پر مختللو طبیبانو غالبه وه مګر نه د حضرت موسی علیه السلام معجزه د هغه وروسته پاته سوه او نه د حضرت عیسی علیه السلام معجزې ته د تل حیثیت ورکړل سو ، د ټولو نبیانو علیهم السلام پر خلاف رسول الله ﷺ ته د قرآن کریم په صورت کي تر ټولو لویه معجزه ورکړل سول او هغه ته د همېشه حیثیت حاصل سو ، د رسول الله ﷺ په زمانه کي د فصاحت او بلاغت زور وو، د عربو د فصیحانو دعوه وه چي د هغوئ د فصاحت او بلاغت په وړاندي د دنیا ټول خلک ګونګیان دي نو په رسول الله ﷺ باندي قرآن کریم نازل کړل سو چي د هغه فصاحت او بلاغت د عربو لوی لوی فصیحان او بلیغان متاثره کړل ، د ټولو فصیحانو په یو ځای کېدو سره د قرآن کریم د یو کوچني آیت په ډول کلام یې وړاندي نه کړ ، بیا الله جل جلاله دغه عظیمه معجزه تر قیامته پوري وساتل چي په هره زمانه او هره طبقه کي د سید المرسلین ﷺ د نبوت او رسالت پر صداقت باندي شاهدي ورکوي، نو رسول الله ﷺ د خپل دغه یقین اظهار وکړ چي ما ته راکړل سوې دغه معجزه به تر قیامته پوري پاته وي او خلک به پر هغه ایمان راوړي ځکه د قیامت په ورځ به زیات هغه مؤمنان وي چي په نبوت او رسالت باندي به عقیده لرونکي او زما د دغه معجزې منونکي به وي.

## د رسول الله ﷺ خصائص

﴿۵۵۰۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُعْطِيتُ خَمْسًا

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ما ته پنځه شيان را کړل سوي

لَمْ يُعْطَهُنَّ أَحَدٌ قَبْلِي نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ مَسِيرَةَ شَهْرٍ وَجُعِلَتْ لِي الْأَرْضُ

دي چي زما څخه مخکي هيچا ته نه دي ورکړل سوي: يو خو ما ته د يوې مياشتي د لاري په ليري والي د رعب فتح راکړل سوې ده، دويم ټوله مځکه زما لپاره

مَسْجِدًا وَطَهُورًا فَأَيُّمَا رَجُلٍ مِنْ أُمَّتِي أَدْرَكَتْهُ الصَّلَاةُ فَلْيُصَلِّ وَأُحِلَّتْ لِي

مسجد او پاکه ګرځول سوې ده، يعني زما په امت کي چي پر چا د لمانځه وخت راسي هلته دي لمونځ وکړي، دريم زما لپاره حلال ګرځول سوي دي

الْمَغَانِمُ وَلَمْ تَحِلَّ لِأَحَدٍ قَبْلِي وَأُعْطِيتُ الشَّفَاعَةَ وَكَانَ النَّبِيُّ يُبْعَثُ إِلَى قَوْمِهِ خَاصَّةً وَبُعِثْتُ إِلَى النَّاسِ عَامَّةً. متفق عليه.

د غنيمت مال چي زما څخه مخکي د هيچا لپاره حلال نه وو، څلورم ما ته د شفاعت مرتبه راکړل سوه، پنځم زما څخه مخکي هر نبي په خاصه توګه يوازي د خپل قوم لپاره را ليږل سوی وو او زه د ټولي د نيا او ټولو قومونو لپاره راليږل سوی يم. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۴۳۵، رقم: ۱\۳۳۵، ومسلم ۱\۳۷۰، رقم: ۳-۵۲۱.

**تشريح**: ما ته د هغه رعب په ذريعه مرسته راکړل سوې ده...الخ: ددې مطلب دادی چي الله جل جلاله زما او د الله جل جلاله ددښمنانو او مخالفينو په مقابله کي ما ته په دغه خصوصيت سره فتح او نصرت راکوي چي د هغوئ په زړو کي زما رعب او خوف پيدا کيږي که هغوئ زما څخه د يوې مياشتي د مسافت په ليري والي هم وي نو زما په نامه سره د هغوئ همت کښته کيږي او رعب او بيري څخه تښتي.

ټوله مځکه زما لپاره مسجد ....الخ: د دې مطلب دادی چي زما څخه د مخکي رسولانو او نبيانو په شريعت کي هر ځای لمونځ کول او عبادت کول صحيح نه وو، د هغوئ د لمانځه او عبادت لپاره يو خاص ځای ټاکل سوی وو يوازي هلته لمونځ او عبادت کېدای مګر ما ته دا

ځانګړتیا راکړل سوې ده چي زه او زما د امت خلک د بیت الخلاء، غسل خانې او هدیرې څخه ماسوا پر نوره ټوله مځکه باندي چي چیري وغواړي لمونځ کولای سي مګر دا چي د یو ځای د ناپاکۍ علم ورته وسي نو په هغه ځای کي لمونځ کول جائز نه دی، همدارنګه په تېرو امتو کي د اوبو څخه ماسوا په بل شي پاکي نه تر لاسه کېدل مګر زموږ لپاره دا جائز ګرځول سوي دي که چیري اوبه نه وي یا د اوبو په استعمال کي یو شرعي عذر وي نو د پاکي خاوري په ذریعه په تیمم کولو سره پاکي تر لاسه کیدای سي.

زما لپاره د غنیمت مال حلال ګرځول سوی دی، ددې وضاحت دادی چي د غنیمت د مال په اړه په تېرو امتونو کي دا معمول وو چي تر لاسه کېدونکي غنیمت به د څارویو څخه ماسوا بل شی وو نو هغه به یو ځای اېښودل کېدی او بیا به د آسمان څخه اور راتلی او هغه ټول سامان به یې سوځی، او که چیري د غنیمت مال به حیوانان وه نو د هغه حقدار به یوازي هغه خلک وه چي هغه به یې له دښمنانو څخه په زور اخیستی او پر هغه به یې قبضه کول، نبي او رسول ته به د هغه څخه هیڅ نه تر لاسه کېدل مګر زموږ د رسول الله ﷺ لپاره نه یوازي چي خمس یعني د مال غنیمت پنځمه برخه بلکه صفي اخستل هم جائز وګرځول سول.

صفي هغه شی ته وایي چي د غنیمت په مال کي تر ټولو ښه وي نو د غنیمت په مال کي به چي کوم شی تر ټولو ښه وو لکه توره او داسي نور شیان نو هغه به رسول الله ﷺ د ځان لپاره خاص ګرځوی.

زه د شفاعت عظمی په مرتبه ونازول سوم، د قیامت په ورځ به دا مرتبه یوازي رسول الله ﷺ ته ترلاسه وي او د شفاعت چي څومره مواقع او مقامات وي هغه ټول به د رسول الله ﷺ ددغه مرتبې لاندي وي، په دې اړه تفصیلي بحث په باب الشفاعة کي تېر سوی دی.

زه د مځکي د مخ ټولو خلکو ته رالېږل سوی یم، په دې اړه باید دا په فکر کي وي چي د رسول الله ﷺ رسالت یوازي پر انسانانو پوري محدود نه دی بلکه در سول الله ﷺ بعثت پیریانو ته هم دی، د خپل رسالت په ذریعه څرنګه چي رسول الله ﷺ د مځکي ټولو انسانانو ته د الله ﷻ پیغام او هدایت ورسوی همدارنګه پیریانو ته یې هم هدایت ورسوی ځکه رسول الله ﷺ ته رسول الثقلین ویل کیږي، کیدای سي چي کله رسول الله ﷺ دغه حدیث ارشاد وفرمایه تر هغه وخته پوري پیریانو ته د رسول الله ﷺ بعثت نه وو سوی، او ورسته سوی وي نو له دې کبله په حدیث کي د پیریانو ذکر نه دی سوی.

﴿۵۵۰۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فُضِّلْتُ

د حضرت ابو هريره ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پر نورو انبياؤ په شپږو

عَلَى الْأَنْبِيَاءِ بِسِتٍّ أُعْطِيتُ جَوَامِعَ الْكَلِمِ وَنُصِرْتُ بِالرُّعْبِ وَأُحِلَّتْ لِيَ

خصلتونو سره ما ته فضيلت راکړل سوی دی، لومړی دا چي ما ته جوامع الکلم راکړل سوي دي (يعني کوم الفاظ چي وايم هغه مختصر او جامع وي)، په رعب سره زما مرسته سوې ده،

الْغَنَائِمُ وَجُعِلَتْ لِيَ الْأَرْضُ مَسْجِدًا و طَهُورًا وَأُرْسِلْتُ إِلَى الْخَلْقِ كَافَّةً وَخُتِمَ بِيَ النَّبِيُّونَ. رواه مسلم

زما لپاره د غنيمت مال حلال کړل سوی دی، زما لپاره ټوله مځکه پاکه او مسجد جوړه سوې ده، زه د ټول مخلوق لپاره نبي را ليږل سوی يم، پر ما د انبياؤ خاتمه وسوه. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۳۷۱، رقم: ۵-۵۲۳.

**تشريح**: ما ته جامع الکلمات راکړل سو، مطلب دا چي د دين حکمتونه، احکام، د هدايت خبري او د مذهبي او دنياوي چارو سره اړوند نورو شيانو بيانولو داسي خاص طرز ما ته راکړل سو چي تر ما مخکي نه يو نبي ته ورکړل سوی وو او نه د دنيا لوی فصيح او بليغ ته ورکړل سوی دی، د دغه طرز ځانګړتيا داده چي په لږ الفاظو کي او په يوې کوچنۍ جمله کي د معاني او مفهوم يوه خزانه پټه وي، د هغه جملې په ليکلو او ويلو به يوه ليکه هم پوره نه سي مګر د هغه په مفهوم او ضاحت به يو کتاب ډک سي، د رسول الله ﷺ په اقوالو او ارشاداتو کي داسي کلمې ډيري دي چي هغه په جوامع الکلم سره تعبير کيږي، يو څو کلمې د مثال په توګه دلته نقل کوو:

(۱): انما الاعمال بالنيات: په دې کي هيڅ شک نسته چي د اعمالو مدار پر نيت دی.

(۲): ومن حسن المرء ترکه مالايعنيه، بې ګټې خبري پرېښودل د سړي د اسلام حسن دی.

(۳): الدين النصيحة، دين د خيرخواهۍ نوم دی.

(۴): العدة دين، وعده د دين په درجه کي ده.

(۵): المستشار موتمن، د چا څخه چي مشوره واخيستل سي هغه امانتدار دی.

ځينو علماؤ له ډيري هڅي کار اخيستی دی او د حديثو له ذخيرو څخه يې داسي حديثونه چي د جوامع الکلم څخه دی، راچڼ کړي دي او د هغو ټولګه يې تياره کړې ده، ځينو شارحينو

دا ليكلي دي چي ما ته جوامع الكلم راكړل سوي دی، دلته د جوامع الكلم څخه قرآن كريم مراد دی چي په هغه كي د الله ﷻ د كلام اعجاز ځرګند دی چي په كوچنيو كوچنيو جملو كي لوی لوی مضامين پټ دي، مګر لومړنی وضاحت ډېر مناسب معلوميږي ځكه چي همدارنګه يو بل روايت كي هم (اختصر لي الكلام) الفاظ هم نقل سوي دي چي د هغه څخه هم د دغه قول تائيد كيږي چي دلته د جوامع الكلم څخه د رسول الله ﷺ اقوال مراد دي.

د نبوت او رسالت لړۍ پر ما ختمه سوه، ددې مطلب دادی چي د الله ﷻ له خوا د وحي راتللو لړۍ قطع سوه، رسالت بشپړ سو اوس زما څخه وروسته هيڅ بل نبي او سول نه رائحي ځكه چي د الله ﷻ دين مكمل سوی دی، قيامت ته نژدې د حضرت عيسى عليه السلام راكښته كېدل به هم د دغه دين ټينګولو او زيات خپرولو لپاره وي.

## د رسول الله ﷺ لپاره د خزانو كيلياني

﴿۵۵۰۳﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بُعِثْتُ بِجَوَامِعِ الْكَلِمِ وَنُصِرْتُ بِالرُّعْبِ بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رايتني أُتِيتُ بِمَفَاتِيحِ خَزَائِنِ الْأَرْضِ فَوُضِعَتْ فِي يَدِي. متفق عليه.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه د جامع كلمو سره راليږل سوی يم، په رعب سره ما ته فتح راكړل سوې ده او زه بيده وم ما په خوب كي دا وليدل چي ما ته د مځكي د خزانو كيلياني راكړل سوې او زما په لاس كي كښېښودل سوې. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٢٨، رقم: ٢٩٧٧، ومسلم ١\٣٧١، رقم: ٦– ٥٢٣.

**تشريح**: د حديث د آخري برخي مطلب دادی چي الله ﷻ د خوب په ذريعه ما ته زيری راكړ چي د لويو لويو سيمو او ښارونو فتح كېدل او د هغه خزانې او مالونه تر لاسه كېدل زما لپاره او زما د امت لپاره اسان كړل سول، يا د خزانو څخه مراد هغه معدنيات دي چي د مځكي لاندي پټ دي لكه سره زر، سپين زر او نور قيمتي شيان.

## د امت محمدي لپاره خاص شرف

﴿۵۵۰۴﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ زَوَى

د حضرت ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالى زما لپاره مځكه

لِي الْأَرْضَ فَرَأَيْتُ مَشَارِقَهَا وَمَغَارِبَهَا وَإِنَّ أُمَّتِي سَيَبْلُغُ مُلْكُهَا مَا زُوِيَ لِي

راغونډه کړه ما د مځکي مشرق او مغرب وليدى او ډير ژر زما د امت پاچاهي به هغه حد ته ورسيږي څو مره چي مځکه راغونډه کړې ماته وښودل سوه،

مِنْهَا وَأُعْطِيتُ الْكَنْزَيْنِ الْأَحْمَرَ وَالْأَبْيَضَ وَإِنِّي سَأَلْتُ رَبِّي لِأُمَّتِي أَنْ لَا يُهْلِكَهَا

او ماته يې دوې خزانې راکړې سره او سپين او ما خپل پروردګار ته د خپل امت لپاره سوال وکړ

بِسَنَةٍ عَامَّةٍ وَأَنْ لَا يُسَلِّطَ عَلَيْهِمْ عَدُوًّا مِنْ سِوَى أَنْفُسِهِمْ فَيَسْتَبِيحَ

چي په عام قحط کي يې مړه نه کړي، او دا عرض مي وکړ چي هغه زما پر امت د مسلمانانو څخه پرته بل څوک مسلط نه کړي چي هغه د هغوئ د اوسيدو ځاى جائز وګڼي او د هغوئ څخه يې په

بَيْضَتَهُمْ وَإِنَّ رَبِّي قَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنِّي إِذَا قَضَيْتُ قَضَاءً فَإِنَّهُ لَا يُرَدُّ وَإِنِّي

زوره واخلي او زما پروردګار ماته وفرمايل چي اې محمد (ﷺ)! هر کله چي زه د يوې خبري حکم وکړم نو بيا زما حکم نه ماتيږي او ما

أَعْطَيْتُكَ لِأُمَّتِكَ أَنْ لَا أُهْلِكَهُمْ بِسَنَةٍ عَامَّةٍ وَأَنْ لَا أُسَلِّطَ عَلَيْهِمْ عَدُوًّا من

ته ستا د امت لپاره دا عهد درکړى دى چي زه به يې په عام قحط کي هلاک نه کړم او نه به غير

سِوَى أَنْفُسِهِمْ فَيَسْتَبِيحُ بَيْضَتَهُمْ وَلَوِ اجْتَمَعَ عَلَيْهِمْ مَنْ بِأَقْطَارِهَا حَتَّى يَكُونَ بَعْضُهُمْ يُهْلِكُ بَعْضًا وَيَسْبِي بَعْضُهُمْ بَعْضًا. رواه مسلم.

مسلمان پر مسلط کړم چي هغوئ هلاک کړي د هغوئ ځايونه واخلي که څه هم چي د مسلمانانو په مقابله کي د دنيا ټول کافران راجمع سي بيا به هم هلاک نه کړل سي تر هغو پوري چي ستا امت به ځيني د دوئ هلاک کړي او بنديان کوي به ځيني د دوئ ځيني نور. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۲۱۵، رقم: ۱۹- ۲۸۸۹.

**د لغاتو حل**: زوى: اى جمعها لاجلي. (زما له امله راغونډه دل)

**تشريح**: د سرو او سپينو خزانو څخه د سرو او سپينو زرو خزانې مراد دي، او ددغه دواړو خزانو په ذريعه د د کسرى پاچا، فارس او د قيصر پاچا روم ته هم اشاره مقصد ده ځکه چي په

هغه زمانه کي په فارس کي د سرو زرو خزانې او په روم کي د سپينو زرو خزانې ډيري وې، نو رسول الله ﷺ وړاند وينه وفرمايل چي زما د امت خلک به ژر پر دغه دواړو سترو پاچاهيو باندي قابض سي او دهغوئ ټولي خزانې او مال به مسلمانانو ته په لاس ورسي او دغه وړاند وينه پوره سول.

مګر دا چي ستا د امت خلک به په خپلو کي ..... الخ: ددغه جملې سياق او سباق ددې دليل دی چي الله ﷻ ټول مسلمانان د دوو شيانو څخه د تل لپاره خوندي کړي دي، يو خو دا چي عامه وچ کالی او لوږه په داسي صورت کي چي په مجموعي توګه ټول مسلمانان هلاک او فناء کړي، هيڅکله نه پېښيږي، دوهم دا که د ټولي مځکي کافران او د اسلام مخالفان راټول سي او د مسلمانانو ختمول وغواړي نو داسي به هيڅکله نه کيږي، دا بېله خبره ده چي خپله په مسلمانانو کي نفاق او انتشار پيداسي او ورور د ورور غاړه پرې کول پيل کړي، يو مسلمان د بل مسلمان رسوا کول پيل کړي او د مسلمانانو ټولنيز طاقت د خپل مشترکه دښمن پر خلاف استعمال کېدو پر ځای په خپلو کي استعمال کړي، او ددغه صورت څخه دښمنان ګټه واخلي او دهغوئ اجتماعي طاقت کمزوری کړي، يا د يو سيمي د مسلمانانو ملي او ديني اجتماعيت ته تاوان ورسوي، د ا د الله ﷻ فيصله ده چي د تل لپاره مقدر سوې ده، دغه فيصله نه ثوک بدلولای سي او نه ددې پر خلاف کامياب کيدای سي.

**د خپل امت په حق کي د رسول الله ﷺ هغه دعاء چي قبوله نه سوه**

﴿۵۵۰۵﴾: وَعَنْ سَعْدٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِمَسْجِدِ بَنِي

د حضرت سعد رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د بنو معاويه د يو مسجد سره تيريدی نو

مُعَاوِيَةَ دَخَلَ فَرَكَعَ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ وَصَلَّيْنَا مَعَهُ وَدَعَا رَبَّهُ طَوِيلًا ثُمَّ انْصَرَفَ

په هغه کي داخل سو او دوه رکعته لمونځ يې وکړ موږ هم ورسره لمونځ وکړ د لمانځه وروسته رسول الله ﷺ د خپل پروردګار څخه اوږده دعاء وغوښتل د هغه څخه وروسته زموږ په لور

فَقَالَ سَأَلْتُ رَبِّي ثَلَاثًا فَأَعْطَانِي ثِنْتَيْنِ وَمَنَعَنِي وَاحِدَةً سَأَلْتُ رَبِّي أَنْ لَا يُهْلِكَ

متوجه سو وه يې فرمايل: ما د خپل پروردګار څخه درې شيان وغوښتل په هغو کي يې دوه شيان راکړل او د يوه څخه يې منع وفرمايل: يو خو ما د خپل پروردګار څخه دا وغوښتل چي

أُمَّتِي بِالسَّنَةِ فَأَعْطَانِيهَا وَسَأَلْتُهُ أَنْ لَا يُهْلِكَ أُمَّتِي بِالْغَرَقِ فَأَعْطَانِيهَا وَسَأَلْتُهُ أَنْ لَا يَجْعَلَ بَأْسَهُمْ بَيْنَهُمْ فَمَنَعَنِيهَا. رواه مسلم.

هغه زما امت په عام قحط کي هلاک نه کړي دا شي خو الله پاک ما ته راکړ، دويم ما د خپل پروردګار څخه دا وغوښتل چي هغه زما امت په اوبو کي غرق کولو سره هلاک نه کړي دا درخواست هم قبول کړل سو، دريمه خبره چي ما د هغه خواهش کړی وو هغه دا چي زما د امت په خپل منځ کي جنګ او فساد نه وي الله تعالی ددې څخه منعه وفرمايل. مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم ۲۲۱٦\۴، رقم: ۲۰- ۲۸۹۰.

**د لغاتو حل:** بني معاويه: هم بطن من الانصار (د انصارو يوه قبيله)

**تشريح:** بنو معاويه د مدينې د انصارو د يوې قبيلې نوم وو، رسول الله ﷺ به يوه ورځ هغه قبيلې ته تللی وي او هلته به د يوه فرض لمانځه وخت راغلی وي او رسول الله ﷺ به هغه فرض لمونځ د هغه قبيلې په مسجد کي ادا کړی وي، يا دا چي رسول الله ﷺ به هلته تېرېدی او د مسجد په لېدو سره به هلته تللی وي او هلته به يې دوه رکعته لمونځ ادا کړی وي، په هر حال رسول الله ﷺ په هغه لمانځه کي د التحيات په دوران کي يا د سلام ګرځولو څخه وروسته د الله ﷻ څخه د خپل امت په حق کي چي کومي درې دعاوي وغوښتلې او په هغه کي يوه دعاء قبوله نه سول نو ددې څخه معلومه سول چي د نبيانو هم ځيني دعاوي نه قبلېدی.

## په تورات کي د نبي ﷺ د صفتو ذکر

﴿۵۵۰٦﴾: وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ لَقِيتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ

د حضرت عطاء بن يسار رحمه الله څخه روايت دی چي زه د عبد الله بن عمرو بن عاص رضي الله عنه سره يو ځای

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قُلْتُ أَخْبِرْنِي عَنْ صِفَةِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

سوم او پوښتنه مي ځيني وکړه چي په تورات کي د رسول الله ﷺ کوم صفات ذکر دي د هغو

التَّوْرَاةِ قَالَ أَجَلْ وَاللّٰهِ إِنَّهُ لَمَوْصُوفٌ فِي التَّوْرَاةِ بِبَعْضِ صِفَتِهِ فِي الْقُرْآنِ يَا

څخه ما خبر کړه، عبد الله بن عمرو رضي الله عنه ووېل ښه دی قسم په خدای په تورات کي د رسول الله ﷺ ځيني هغه صفات درج دي کوم چي په قرآن کريم کي دي يعني هغه آياتونو کي

أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا وَحِرْزًا لِلْأُمِّيِّينَ أَنْتَ عَبْدِي

(يا ايها النبي انا ارسلناک......)، (اې نبي موږ ته د امت پر حال شاهد لیږلی یې او زیری ورکونکی او بیرونکی او د امیانو پناه، (وانت عبدي ورسولي سميتک المتوکل ليس.......)يعني ته زما بنده

وَرَسُولِي سَمَّيْتُكَ المتَوَكِّلَ لَيْسَ بِفَظٍّ وَلَا غَلِيظٍ وَلَا سَخَّابٍ فِي الْأَسْوَاقِ وَلَا

او زما رسول یې ما ستا نوم متوکل ایښی دی نه خو ته بدخویه یې نه سخت ګیر او نه په بازارونو کي شور کونکی.

يَدْفَعُ بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ وَلَكِنْ يَعْفُو وَيَغْفِرُ وَلَنْ يَقْبِضَهُ اللهُ حَتَّى يُقِيمَ بِهِ

(ولا يدفع بالسيئة ...)، (او هغه بدي په بدی سره نه لیري کوي بلکه معافي کوې او د مغفرت دعاء کوې او الله تعالی د هغه روح هغه وخته پوري نه قبض کوي تر څو پوري چي

الْمِلَّةَ الْعَوْجَاءَ بِأَنْ يَقُولُوا لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَيَفْتَحُ بِهَا أَعْيُنًا عُمْيًا وَآذَانًا صُمًّا

ګمراه قوم الله ﷻ د هغه په ذریعه پر سیده لاره رانه ولي دا ډول چي هغه خلک ددې اعتراف ونه کړي چي د الله ﷻ څخه پرته بل څوک د عبادت وړ نسته او تر هغه وخته پوري به الله تعالی د هغه روح نه قبض کوي تر څو پوري چي ړندې سترګي کاڼه غوږونه

وَقُلُوبًا غُلْفًا. رواه البخاري وكذا الدارمي عن عطاء عن ابن سلام نحوه

وذكر حديث ابي هريرة نحن الاخرون في باب الجمعة.

او بي حسه زړونه ددې کلمې په ذريعه درست نه کړي. بخاري او دارمي د عطاء بن سلام څخه داسي روايت کړی دی او د حضرت ابوهريره حديث نحن الاخرون، په باب جمعه کي راغلی دی.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۳۴۲، رقم: ۲۱۲۵.

**د لغاتو حل:** حرزا: اي حصنا (ساتنه). سخاب: اي صياح (چغي\ شور)

**تشريح:** حضرت عبد الله ابن عمرو ابن العاص رضي الله عنهما ډېر عالم، فاضل او حافظ صحابي وو، په ليکنه ښه پوهېدی، پر مخکني آسماني کتابو، تورات او انجيل باندي هم د هغه ښه نظر وو،

رسول الله ﷺ ورته د خپلو حدیثونو لیکلو اجازه ورکړې وه، له رسول الله ﷺ څخه چې به یې څه اورېدل هغه به یې لیکل، ځکه نو دی هم د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په ډول کثیر الاحادیث دی او ډېر تابعین له ده څخه حدیثونه نقل کوي، په هرحال حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه تورات ویلي وو او هغه ته معلومه وه چې په هغه آسماني کتابو کي زموږ د حضرت محمد ﷺ په اړه څه وړاند وینې سوي دي او د رسول الله ﷺ کومو فضائلو او صفتو ته اشاره سوې ده، ځکه هغه د حضرت عطاء ابن یسار په پوښتنه وښودل چې الله جل جلاله د رسول الله ﷺ کوم صفتونه او فضائل په قرآن کریم کي ذکر کړي دي او موږ هغه د رسول الله ﷺ په ژوند کي لیدلي هم دي هغه په تورات کي مذکور دي بیا هغه په تفصیل سره د رسول الله ﷺ صفتونه او فضائل بیان کړل چې په تورات کي مذکور دي او هغه په تورات کي د ذکر سوو خبرو د نقل کولو لپاره په پیل کي هغه طرز اختیار کړ چې په قرآن کریم کي رسول الله ﷺ د خطاب دی او بیا یې هغه طرز هم اختیار کړ چې په تورات کي د رسول الله ﷺ په اړه بیان سوي دي.

امیانو ته پناه ورکوونکی، دلته د امیانو څخه مراد اهل عرب دي او هغوئ ځکه په امي سره تعبیر کړل سوي دي چې د هغوئ زیات خلک په لیک او لوست نه پوهېدل یا هغوئ ته ام القری (یعني د مکې اوسېدونکو ته په منسوب کولو سره امي وویل سول او دلته د اهل عربو تخصیص ځکه دی چې د رسول الله ﷺ نسلي او وطني تعلق د هغوئ څخه دي او په هغوئ کي رالېږل سوی دی چې هغوئ د غیرعربو د غلبې او تسلط څخه خوندي وساتي او تر ټولو مخکي هغوئ د ایمان او اخلاقو په وسله مسلح کولو سره د هغوئ د ساتني او کامیابۍ سامان برابر کړي او که د شیطاني ګمراهیو او نفساني آفاتو څخه پناه مراد واخیستل سي نو په دې کي هیڅ شک نسته چې د رسول الله ﷺ بابرکته وجود د ټولي نړۍ لپاره پناه ده او ځینو حضرتو ویلي دي چې د پناه څخه مراد د رسول الله ﷺ د قوم او ملت تر هغه وخت پوري په عذاب کي اخته کېدل او تباه کېدو څخه خوندي او مامون اوسېدل دي تر څو چې رسول الله ﷺ د خپل قوم او ملت په منځ کي موجود وي لکه څرنګه چې په قرآن کریم کي فرمایل سوي دي:

وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنتَ فِيهِمْ

دا ممکن نه ده چې الله جل جلاله پر دغه مسلمانانو عذاب نازل کړي او ته په هغوئ کي موجود یې.

او نه په بازارو کي شور کوونکي وي، دلته د بازار تخصیص محض په دې وجه دی چې په عامه توګه د شور او ناپوهۍ ځایونه بازار وي چې هلته ښه ښه خلک هم په رسېدو سره خپل پوهه او عقل ضائع کوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د مسلمانانو لپاره د رسول الله ﷺ درې دعاوي

﴿۵۵۰۷﴾: عَنْ خَبَّابِ بْنِ الْأَرَتِّ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت خباب بن ارت رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته يو اوږد لمونځ راكړ،

صَلَاةً فَأَطَالَهَا قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّيْتَ صَلَاةً لَمْ تَكُنْ تُصَلِّيهَا قَالَ أَجَلْ

صحابه كرامو عرض وكړ اې دالله رسوله! تاسو خو نن موږ ته دومره اوږد لمونځ راكړ چي دومره اوږد لمونځ مو هيڅكله نه وو راكړى، رسول الله ﷺ وفرمايل: هو

إِنَّهَا صَلَاةُ رَغْبَةٍ وَرَهْبَةٍ إِنِّي سَأَلْتُ اللَّهَ فِيهَا ثَلَاثًا فَأَعْطَانِي اثْنَتَيْنِ وَمَنَعَنِي

ددې لپاره چي دا لمونځ د رغبت (اميد) او خوف (بيري) لمونځ وو ما په دغه لمانځه كي د الله تعالى څخه درې خبري وغوښتلې چي په هغو كي دوې ما ته راكړل سوې او د يوې خبري څخه

وَاحِدَةً سَأَلْتُهُ أَنْ لَا يُهْلِكَ أُمَّتِي بِسَنَةٍ فَأَعْطَانِيهَا وَسَأَلْتُهُ أَنْ لَا يُسَلِّطَ

منعه وسول (هغه خبري دادي): ما الله جل جلاله ته عرض وكړ چي زما امت په عام قحط كي اخته نه كړي دا درخواست پوره كړل سو ما بيا درخواست وكړ چي پر مسلمانانو باندي داسي دښمن

عَلَيْهِمْ عَدُوًّا مِنْ غَيْرِهِمْ فَأَعْطَانِيهَا وَسَأَلْتُهُ أَنْ لَا يُذِيقَ بَعْضَهُمْ بَأْسَ بَعْضٍ فَمَنَعَنِيهَا. رواه الترمذي والنسائي.

مسلط نه كړي چي غير مسلم وي دا سوال هم پوره كړل سو، دريم عرض ما دا كړى وو چي مسلمانان په خپل منځ كي يو بل ته تكليف او ضرر ونه رسوي يعني په خپل منځ كي جنګ نه كوي ددې څخه منع وسول. ترمذي او نسائي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۰۹، رقم: ۲۱۷۵، والنسائي ۳\۲۱۶، رقم: ۱۶۳۸.

## مسلمان د درو شيانو څخه خوندي سوی دی

﴿۵۵۰۸﴾: وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابومالک اشعري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِنَّ اللَّهَ أَجَارَكُمْ مِنْ ثَلَاثِ خِلَالٍ أَنْ لَا يَدْعُوَ عَلَيْكُمْ نَبِيُّكُمْ فَتَهْلَكُوا جَمِيعًا

(اې مسلمانانو!) الله جل جلاله تاسو د درو شيانو څخه ساتلي ياست چي ستاسو نبي تاسو ته ښيرا ونه کړي چي تاسو هلاک سئ،

وَأَنْ لَا يَظْهَرَ أَهْلُ الْبَاطِلِ عَلَى أَهْلِ الْحَقِّ وَأَنْ لَا تَجْتَمِعُوا عَلَى ضَلَالَةٍ. رواه ابوداؤد

دا چي باطل او ګمراه خلک پر اهل حق غالب نه سي او دا چي زما ټول امت په ګمراهۍ کي جمع نه سي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۵۲، رقم: ۴۲۴۳.

**تشريح**: باطل او ګمراه خلک به پر حق باندي غالب نه وي، ددې مطلب دادی که څه هم د اسلام او مسلمانانو د ښمن توان او شمېر ډېر وي او مسلمانان کم وي بيا هم هغوئ ټول مسلمانان هيڅکله نه ختمولای نه سي، حاکم دحضرت عمر رضي الله عنه دا قول نقل کړی دی، رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت تر راتلو پوري به تل زما په امت کي يوه ډله په حق سره غالبه وي او په ابن ماجه کي د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه دا روايت منقول دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تل به زما په امت کي يوه ډله د الله جل جلاله پر حکم قائمه وي او د هغوئ دښمن به هغوئ ته هيڅ تاوان ونه رسولای سي.

زما ټول امت به پر ګمراهۍ نه جمع کيږي، ددې مطلب دادی چي داسي هيڅکله نه سي کيدای چي ټول مسلمانان پر يوه فاسده او غلطه نظريه باندي متفق او متحد سي، دا بېله خبره ده چي د مسلمانانو ځيني خلک يا يوه ډله د خپلو اغراضو له کبله يوه غير اسلامي خبره قبوله کړي او هغه جائز ګرځول پيل کړي مګر دا ممکن نه ده چي د ټولي دنيا مسلمانان يا د مسلمانانو لويه ډله پر هغه غير اسلامي خبره باندي جمع سي ، په حديث کي دغه جمله ددې دليل دی چي اجماع حجت دی او د اجماع څخه مراد د خپلي زمانې د مجتهد او بابصيرته علماؤ پر يو شرعي حکم باندي متفق کيدل دي.

﴿۵۵۰۹﴾: وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يَجْمَعَ اللّٰهُ عَلَى هٰذِهِ الْأُمَّةِ سَيْفَيْنِ سَيْفًا مِنْهَا وَسَيْفًا مِنْ عَدُوِّهَا . رواه ابوداؤد

د حضرت عوف بن مالك رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پر دې امت به الله تعالى دوې توري نه جمع كوي يوه توره ددې امت او دويمه توره د دوئ د ښمنانو (يعني الله تعالى به پر مسلمانانو داسي وخت نه راولي چي په خپل منځ كي هم په جګړه اخته وي او دښمن به هم ورسره په جنګ وي). ابوداؤد.

**تخريج:** سنن ابي داود: ۴\۴۸۵، رقم: ۴۳۰۱.

**تشريح:** دا الهي فيصله ده چي د مسلمانانو خلاف به هيڅكله دوې توري نه جمع كيږي چي په هغه سره ټول ملي طاقت خراب سي او مسلمان په مجموعي توګه ختم سي، د دوو تورو دجمع كېدو مطلب دادى چي يوې خوا ته په خپلو كي جګړه وي او د انتشار ښكار وي له يو بل سره په جګړه كي مصروف وي او له بلي خوا د هغوئ مشتركه دښمن يعني غير مسلم پر هغوئ حمله وكړي او دهغوئ د نفاق څخه په ګټه اخيستلو سره پر هغوئ غلبه او تسلط تر لاسه كړي او هغوئ ختم كړي، توربشتي رحمه الله ددغه حديث په تشريح كي ليكلي دي چي كله هم مسلمانان په خپلو كي جګړه كول پيل كړي او په هغوئ كي د اتفاق او اتحاد پر ځاى د يو بل خلاف جګړه سختي اختيار كړي چي ملي ټولنه يې منتشر شي نو الله جل جلاله پر هغوئ داسي كافران مسلط كړي چي د هغه ظلم او زياتى مسلمانان د ملي اتفاق او اتحاد د بيرغ لاندي يو ځاى كړي او هغوئ په خپلو كي د جګړې په پرېښودو سره په خپلو كي خوارېږه سي، طيبي رحمه الله دا ليكلي دي چي دا د الله جل جلاله فيصله ده چي ددغه امت خلك يو ځاى د دوو جګړو ښكار كيداى نه سي چي په خپلو كي دي هم د يو بل خلاف جګړه كوي او د كافرانو خلاف دي هم په جګړه اخته وي، بلكه كله چي هغوئ ته د كافرانو په وړاندي د ظلم مخامخ كېدل وي نو هغوئ د خپل منځي اختلاف او جګړې په دفع كولو سره د هغه دښمن په مقابله كي متحد كيږي.

### د رسول الله ﷺ نسلي او نسبي فضيلت

﴿۵۵۱۰﴾: وَعَنِ الْعَبَّاسِ أَنَّهُ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَأَنَّهُ سَمِعَ

د حضرت عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي هغه د كافرانو څخه پر رسول الله ﷺ طعن كول

شَيْئًا فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ مَنْ أَنَا فَقَالُوا أَنْتَ

واوريدل او هغه د غصې څخه ډک د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو ، نبي کريم ﷺ پر منبر ودريدی او وه يې فرمايل: زه څوک يم؟ صحابه کرامو عرض وکړ تاسو

رَسُولُ اللّٰهِ عَلَيْكَ السَّلَامُ قَالَ أَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ إِنَّ

د الله تعالى رسول ياست، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: زه محمد يم د عبد الله بن عبد المطلب

اللّٰهَ خَلَقَ الْخَلْقَ فَجَعَلَنِي فِي خَيْرِهِمْ ثُمَّ جَعَلَهُمْ فِرْقَتَيْنِ فَجَعَلَنِي فِي

زوی، الله تعالى مخلوق پيدا کړ او په دغه مخلوق کي يې غوره مخلوق زه پيدا کړم بيا ددغه

خَيْرِهِمْ فِرْقَةً ثُمَّ جَعَلَهُمْ قَبَائِلَ فَجَعَلَنِي فِي خَيْرِهِمْ قَبِيلَةً ثُمَّ جَعَلَهُمْ

غوره مخلوق الله تعالى دوې برخي کړې (يعني عرب او عجم) او په دغه دواړو برخو کي غوره برخه کي يې زه پيدا کړم بيا الله تعالى ددغه غوره برخي کي قبائل جوړ کړل او په دغه قبائلو کي غوره قبيله (قريش) کي يې زه پيدا کړم بيا ددغه غوره قبيلې يې غوره کورنۍ جوړي کړې

بُيُوتًا فَجَعَلَنِي فِي خَيْرِهِمْ بَيْتًا فَأَنَا خَيْرُهُمْ نَفْسًا وَخَيْرُهُمْ بَيْتًا. رواه الترمذي

او په دغه کورنيو کي غوره کورنۍ (هاشم) کي يې زه پيدا کړم نو زه په ذات او نسب کي هم تر ټولو غوره يم او د کورنۍ د لحاظه هم غوره يم. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۴۵، رقم: ۳۶۰۷.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د خپل نسلي، نسبي او کورني عظمت او فضيلت په څرګندولو سره دا څرګنده کړل چي د الله ﷻ د آخري نبي کېدو او د الله ﷻ د آخري کتاب تر لاسه کولو تر ټولو زيات مستحق زه وم ، ددې څخه معلومه سول چي حکمت الهي ددې لحاظ وساتی چي مرتبه نبوت او رسالت باندي فائز کېدونکي ذات دي د حسب او نسب په اعتبار د لوړي درجې او عالي حيثيت وي مګر د نبيانو د ذات لپاره د حسب او نسب عظمت لازمېدل يو بنيادي شی نه دی، ددې تعلق محض د هغه خلکو خلاف حجت دی چي د حسب و نسب لوی او کورنۍ وجاهت ته زيات ارزښت ورکوي لکه څرنګه چي د رسول الله ﷺ د رالېږلو په وخت کي جاهل او ناپوهانو کفارو به ويل که د الله ﷻ آخري کتاب قرآن نازلېدونکي وي او نبوت او رسالت

قائمېدل وي نو ددې لپاره د عربو په لويو لويو سردارانو کي د چا انتخاب ولي ونه سو ، او کوم چي د نفس نبوت تعلق دی دا خپله دومره لوی شرف دی چي د هغه په وړاندي هر ډول لوی وجاهت او عظمت بې حيثيته شی دی، د هغه تر لاسه کول نه د حسب او نسب پر عظمت باندي موقوف دی او نه په يو بل سبب او ذريعه باندي بلکه محض د الله ﷻ فضل دی چي هغه څوک وغواړي ددغه شرف او مرتبې لپاره يې منتخب کړ، په قرآن کريم کي ارشا دی: (الله اعلم حيث يجعل رسالته) په دې الله ﷻ ښه پوهيږي چي د خپل رسالت لپاره څوک منتخب کړي.
په يو بل ځای کي فرمايي: والله يختص برحمته من يشاء والله ذو الفضل العظيم، او الله ﷻ په خپل رحمت سره چا ته چي وغواړي مخصوص کوي او الله ﷻ لوی فضل کوونکی دی.
رسول الله ﷺ ته په خطاب کولو سره داسي وفرمايل سول : (وکان فضل الله عليک عظيما) او الله ﷻ ته په لوی فضل (کتاب، علم او نبوت) سره ونازولې.

## د رسول الله ﷺ نبوت د آدم عليه السلام د وجود څخه مخکي تجويز سوی وو

﴿۵۵۱۱﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ مَتَى وَجَبَتْ لَكَ النُّبُوَّةُ قَالَ وَآدَمُ بَيْنَ الرُّوحِ وَالْجَسَدِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي صحابه کرامو عرض وکړ اې دالله رسوله ! د نبوت لپاره تاسو کله و تا کل سواست؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه وخت چي آدم عليه السلام د روح او بدن په منځ کي وو . ترمذي

**تخريج** : سنن الترمذي: ۵\۵۴۵، رقم: ۳۶۰۹.

**تشريح** : مطلب دا چي د رسول الله ﷺ د نبوت او رسالت لپاره هغه وخت ټاکل سوی وو کله چي د حضرت آدم رحمة الله عليه روح د هغه د بدن سره يو ځای سوی نه وو او د هغه بدن پر مځکه بې روحه پروت وو ، دغه جمله په اصل کي ددې خبري کنايه ده چي د رسول الله ﷺ نبوت او رسالت د حضرت آدم عليه السلام په وجود کي راتلو څخه هم مخکي ټاکل سوی وو .

## رسول الله ﷺ او ختم نبوت

﴿۵۵۱۲﴾ : وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ

د حضرت عرباض بن ساريه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

قَالَ إِنِّيْ عِنْدَ اللهِ مَكْتُوْبٌ خَاتِمَ النَّبِيِّيْنَ وَإِنَّ آدَمَ لَمُنْجَدِلٌ فِيْ طِيْنَتِهِ

د الله ﷻ سره زه د هغه وخت څخه خاتم النبيين ليکل سوی يم چي آدم عليه السلام په خپله اغږل سوې خاوره کي پروت وو،

وَسَأُخْبِرُكُمْ بِأَوَّلِ أَمْرِيْ دَعْوَةِ إِبْرَاهِيْمَ وَبَشَارَةِ عِيْسٰى وَرُؤْيَا أُمِّي الَّتِيْ رَأَتْ

او زه تاسو ته وښيم چي زما (د نبوت لومړنی) اظهار د حضرت ابراهيم عليه السلام دعاء وه چي په قرآن مجيد کي په دې الفاظو سره مذکوره وه (وابعث فيهم رسولا منهم)، او بيا د حضرت عيسى عليه السلام زيری چي په قرآن کريم کي په دې الفاظو سره راغلی دی : (و مبشرا برسول ياتي من بعدي اسمه احمد) او بيا زما د مور خوب چي

حِيْنَ وَضَعَتْنِيْ وَقَدْ خَرَجَ لَهَا نُوْرٌ أَضَاءَ لَهَا مِنْهُ قُصُوْرُ الشَّامِ . وراه في شرح السنة ورواه أحمد عن أبي أمامة من قوله : "سأخبركم" إلى آخره.

زما د زيږيدو پر وخت يې ليدلی وو او زما د مور مخته يو نور ظاهر سو چي د هغه سره د شام ماڼۍ هغې ته معلومي سوې . شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ١٣\٢٠٧، رقم: ٣٦٢٦.

**د لغاتو حل**: منجدل: من الجدل وهو الالقاء على الارض الصلبة. (اخښل)

**تشريح**: (وَإِنَّ آدَمَ لَمُنْجَدِلٌ فِيْ طِيْنَتِهِ) دلته د طينته لفظ د اخښل سوو خټو په معنی دی، خلقت او جبلت ته هم طينت وايي، د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي زما د خاتم النبيين په حيثيت سره دې دنيا ته راتلل د الله ﷻ په نزد هغه وخت ليکل سوي وه کله چي حضرت آدم د اوبو او خټو په منځ کي وو او نه يوازي دا چي د هغه په بدن کي روح نه وه راغلی بلکه د هغه د بدن په جوړېدو سره تيار سوی هم نه وو، دلته دا سوال پيدا کيږي چي د رسول الله ﷺ نبوت د حضرت آدم عليه السلام د تخليق څخه مخکي د تاکل کېدو څخه څه مراد دی؟ که د الله ﷻ په علم او تقدير کي کېدل مراد وي نو دا خبره د ټولو نبيانو په اړه ويل کيدای سي، د رسول الله ﷺ د خاصوالي څه معنی ده؟ او که د رسول الله ﷺ د نبوت بالفعل ظاهرول مراد وي نو دا به خلاف د حقيقت وي ځکه چي د بالفعل تعلق د دغه دنيا سره دی او څرګنده ده چي په دنيا کي د رسول الله ﷺ د نبوت اظهار د

حضرت آدم علیہ السلام د تخلیق څخه په زرګونه کاله وروسته سوی دی، ددې جواب دادی چې په اصل کې د رسول الله ﷺ د نبوت په ټولو ملائکو او روحونو کې متعارف کول دي لکه څرنګه چې په یوه روایت کې د رسول الله ﷺ د اسم شریف پر عرش، آسمان او دجنت پر ماڼیو باندې د حور عین پر سینو باندې د جنت پر درختو او د طوبی درختو پر بلګو او د ملائکو پر سترګو او ورځو لیکل کېدل منقول دي، او ځینو عارفینو لیکلي دي چې د رسول الله ﷺ روح مبارک په عالم ارواح کې د ټولو روحونو روزنه او اصلاح کول لکه څرنګه چې په دنیا کې د راتللو څخه وروسته د رسول الله ﷺ ذات په دنیا کې د انسان مربي او مصلح سو او دا خبره د شک څخه پرته ثابته ده چې ټول روحونه د خپلو بدنو څخه ړېر مخکې په عالم وجود کې راغلي دي.

زما لومړی کار د حضرت ابراهیم علیہ السلام دعاده....الخ: ددغه جملې په ذریعه رسول الله ﷺ دا څرګنده کړل چې زما خاتم النبیین کېدل نه یوازې دا چې د حضرت آدم علیہ السلام د وجود څخه مخکې تجویز او لوړې نړۍ کې ظاهر سوی وو بلکه په دنیا کې هم زما بدني پیدائش څخه ړېر مخکې د مختلفو نبیانو علیهم السلام په ذریعه زما نبوت او رسالت او زما د علومو مرتبه ظاهره سوې وه، ددې دلیل د حضرت ابراهیم علیه السلام هغه دعاء ده چې هغه زما د رسالت په اړه د کعبې د جوړښت په وخت کې کړې وه چې په قرآن کریم کې داسې نقل سوې ده:

رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولاً مِّنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ.

ژباړه: اې پروردګاره! او په دغه ډله (د اسماعیل په اولاده) کې د دوئ څخه یو داسې پیغمبر هم وټاکې چې دغه خلکو ته ستا آیاتونه وایي، دوئ ته د کتاب او حکمت تعلیم ورکوي او دوئ پاکوي، بېله شکه ته غالب القدرت او کامل الانتظام یې.

همدارنګه په دنیا کې زما د راتللو څخه ړېر مخکې حضرت عیسی علیہ السلام بني اسرائیلو ته په خطاب کولو سره زما د نبوت زیری ورکړی وو لکه څرنګه چې په قرآن کریم کې ارشاد دی:

وَمُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِن بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ.

ژباړه: او (اې بني اسرائیلو!) زما څخه وروسته یو رسول راتلونکی دی د هغه نوم به احمد وي زه د هغه زیری ورکوونکی یم.

او زما د زېږېدني څخه مخکې زما د مور زیری ورکوونکی خوب لېدل او زما د زېږېدو په وخت کې هغې ته حیرانونکي پېښې او حالات پېښېدل هم ددې خبرې دلیل دی چې زما د نبوت

او رسالت نور په دنيا کي زما د راتلو څخه مخکي هم ظاهر سوی وو.

د حديث د دغه جملې: هغه زما د زېږېدو په وخت کي ليدلی وو، په اړه طيبي رحمة الله عليه او نورو علماؤ ليکلي دي چي د دغه الفاظو مراد په خوب کي ليدل هم کيدای سي او د ويښي په حالت کي هم، په اول صورت کي د زېږېدو د وخت څخه لږ مخکي وخت به مراد وي لکه څرنګه چي په يوه روايت کي راغلي دي چي کله د رسول الله ﷺ د مور، بي بئ آمنې، د ماشوم پېدا کېدو وخت نژدې سو نو هغې په خوب کي وليدل چي يوه ملائکه راغلل او هغې ته يې وويل: وو ايه چي زه دغه ماشوم (چي زما په نس کي دی) د هر حسد کوونکي د شر څخه د الله جل جلاله په پناه کي ورکوم، بي بي آمنې ددې څخه مخکي د استقرار حمل په وخت کي هم خوب ليدلی وو چي يوه ملائکه راغلل او هغې ورته وويل: ايا تا ته معلومه ده چي ستا په نس کي د دغه امت سردار نبي دی، په دوهم صورت کي د ويښي په حالت کي ليدل مراد دي نو ويل کيږي چي هغه زما د زېږېدو په وخت کي ليدلی وو، ددې تعلق د هغه شي په لېدو سره دی چي د هغه تعلق په دغه جمله کي محذوف دی مګر وړاندي روايت ددې پوره وضاحت کوي او په ځينو روايتو کي هم راغلي دي چي د رسول الله ﷺ د زېږېدو په وخت کي د بي بي آمنې څخه يو داسي نور ظاهر سو چي د شام د هيواد ماڼې او ښارونه ورته مخامخ سول او د رسول الله ﷺ د زېږېدني په وخت کي داسي نور ظاهر سو چي په هغه سره د شام ماڼۍ ځلانده سوې، همدغه حقيقت ته اشاره وه چي دا وخت په دنيا کي د داسي ذات ظهور سوی دی چي د هغه د نبوت او رسالت رڼا به د ختيځ څخه تر لويديځ پوري د مځکي مخ منور کړي او د کفر او ضلالت تياره به له منځه ولاړه سي.

## د رسول الله ﷺ فضائل

﴿۵۵۱۳﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا سَيِّدُ

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به زه د آدم

وَلَدِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا فَخْرَ وَبِيَدِي لِوَاءُ الْحَمْدِ وَلَا فَخْرَ وَمَا مِنْ نَبِيٍّ

عليه السلام د اولاد سردار يم او دا خبره زه د فخر په توګه نه کوم او د قيامت په ورځ به زما په لاس کي د حمد بيرغ وي او دا خبره زه د فخر په توګه نه کوم او د قيامت په ورځ به آدم عليه

يَوْمَئِذٍ آدَمَ فَمَنْ سِوَاهُ إِلَّا تَحْتَ لِوَائِي وَأَنَا أَوَّلُ مَنْ تَنْشَقُّ عَنْهُ الْأَرْضُ وَلَا

فَخْرَ. رواه الترمذي.

السلام او نور ټول پيغمبران زما تر بيرغ لاندي وي او د قيامت په ورځ به تر ټولو وړاندي زما قبر خلاص كړل سي او تر ټولو وړاندي به زه د قبر څخه پورته سم او په دې زه فخر نه كوم. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۲۸۸، رقم: ۳۱۴۸.

**تشريح**: او زه دا خبره د فخر په توګه نه كوم، ددې څخه د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي زما دغه وينا د كبر كولو، فخر كولو او لوئي ښودلو په توګه نه وه بلكه پروردګار چي ددغه فضل كوم نعمت ما ته راكړى دى د هغه اقرار او اظهار كولو په دغه نعمت شكر ادا كولو او د الله ﷻ ددغه حكم (و اما بنعمة ربک فحدث) پر ځاى راوړلو لپاره دي ، ددې څخه ماسوا زه ددې خبري اظهار او اعلان ددې لپاره هم كوم چي خلک زما قدر او زما حيثيت وپېژني، پر دې عقيده ولري او ددې سره سم زما تعظيم او زما دميني په ذريعه ايمان ټېنګ جوړ كړي،

د لواء معنى د بېرغ او نښان ده ، د حمد بيرغ به زما په لاس كي وي، ددې څخه مراد د قيامت په ورځ د رسول الله ﷺ په حمد او ثناء كي نوم وړل دي او كه داسي معنى وكړل سي چي د حمد نښان به زما په لاس كي وي نو ددې څخه مراد به هم دا وي لكه څرنګه چي عربو په يوه معامله كي د خپل شهرت د اظهار لپاره نښان پورته كوى چي د عظمت ، لوړوالي او نوم وړني د اظهار علامه ګڼل كيږي، مطلب دا چي په هغه ورځ به دغه نښان يا بېرغ د رسول الله ﷺ لاس ته راسي نو الله ﷻ به د رسول الله ﷺ زړه داسي خلاص كړي چي رسول الله ﷺ به د الله ﷻ هغه تعريف كوي چي بل څوک يې نه سي كولاى، څرګنده ده چي رسول الله ﷺ ته په حمد سره مخصوص نسبت حاصل دى، د رسول الله ﷺ نوم مبارک محمد او احمد دى، رسول الله ﷺ د صاحب د مقام محمود دى ، د رسول الله ﷺ امت ته حمادين ويل كيږي يعني داسي خلک چي په هر حالت كي د الله ﷻ حمد او ثناء بيانوي، دقيامت په ورځ به د رسول الله ﷺ ذات حامد هم وي او محمود هم، او رسول الله ﷺ به د حمد په ذريعه د شفاعت دروازه خلاصه كړي لكه چي په باب الشفاعت كي تېر سول.

په هغه ورځ به هيڅ نبي .... الخ: ددې مطلب دادى چي د قيامت په ورځ به د حشر په ميدان كي رسول الله ﷺ يوازي د عامو خلكو د پناه ځاى نه وي بلكه ټول نبيان او رسولان به هم د رسول الله ﷺ تر بېرغ لاندي جمع سي ، د رسول الله ﷺ د پناه غوښتونكي او تابع به وي، د حديث ددغه جملې څخه دا معلوميږي چي د بيرغ يا نښان ذكر محض د علامې په توګه نه دى

بلکه په حقیقت کي به هم د رسول الله ﷺ یو بیرغ یا نښان وي چي د هغه نوم به لوائي الحمد وي، چي د رسول الله ﷺ د مشرۍ او غوره والي د اظهار لپاره به رسول الله ﷺ ته ورکول کیږي لکه څرنګه چي په دنیا کي د پاچاهانو او مشرانو د عظمت او شوکت د اظهار لپاره دهغوئ بېل بېل بېرغونه درول کیږي.

## رسول الله ﷺ د الله ﷻ حبیب دی

﴿۵۵۱۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَلَسَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ صحابه کرام ناست وه خبري یې

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ حَتَّى إِذَا دَنَا مِنْهُمْ سَمِعَهُمْ يَتَذَاكَرُونَ قَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّ اللَّهَ

کولې چي رسول الله ﷺ تشریف راوړ او د هغوئ خبري یې واوریدلې، یو سړي وویل الله تعالی

اتَّخَذَ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا وَقَالَ آخَرُ مُوسَى كَلَّمَهُ تَكْلِيمًا وَقَالَ آخَرُ فَعِيسَى كَلِمَةُ اللَّهِ

ابراهیم علیه السلام خپل دوست جوړ کړ، دویم سړي وویل موسی علیه السلام سره الله تعالی خبري کړې دي، دریم کس وویل حضرت عیسی علیه السلام د الله تعالی کلمه

وَرُوحُهُ وَقَالَ آخَرُ آدَمُ اصْطَفَاهُ اللَّهُ فَخَرَجَ عَلَيْهِمْ رسول الله صلى الله عليه

او روح وو، څلورم وویل آدم علیه السلام الله پاک غوره جوړ کړ، د ټولو خبرو اوریدو سره رسول الله ﷺ

وسلم وَقَالَ قَدْ سَمِعْتُ كَلَامَكُمْ وَعَجَبَكُمْ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلُ اللَّهِ وَهُوَ كَذَلِكَ

وفرمایل: ما ستاسو خبري واوریدې او تعجب مي محسوس کړ چي ابراهیم خلیل الله د الله تعالی دوست دی

وَمُوسَى نَجِيُّ اللَّهِ وَهُوَ كَذَلِكَ وَعِيسَى رُوحُ اللَّهِ وَكَلِمَتُهُ وَهُوَ كَذَلِكَ وَآدَمُ اصْطَفَاهُ

او موسی علیه السلام د الله تعالی همراز او هم کلام دی او په حقیقت کي هغوئ همداسي وي او عیسی علیه السلام د الله تعالی روح او کلمه ده او په حقیقت هغه همداسي دی او حضرت آدم علیه السلام الله تعالی

اللَّهُ وَهُوَ كَذَلِكَ أَلَا وَأَنَا حَبِيبُ اللَّهِ وَلَا فَخْرَ وَأَنَا حَامِلُ لِوَاءِ الْحَمْدِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

منتخب کړی دی او په حقیقت کي هغه د الله تعالی غوره دی مګر تاسو خبردار سئ چي زه د الله

تعالی حبیب یم او دا خبره زه د فخر په توګه نه کوم او د قیامت په ورځ به

تحته ادم فمن دونه وَلَا فَخْرَ وَأَنَا أَوَّلُ شَافِعٍ وَأَوَّلُ مُشَفَّعٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا فَخْرَ

د حمد بیرغ پورته کونکی یم چي حضرت آدم علیه السلام او نور ټول پیغمبران به تر هغه لاندي وي او په دې سره زه فخر نه کوم او د قیامت په ورځ به د ټولو څخه مخکي شفاعت کونکی زه یم او په دې زه فخر نه کوم

وَأَنَا أَوَّلُ مَنْ يُحَرِّكُ حِلَقَ الْجَنَّةِ فَيَفْتَحُ اللهُ لِي فَيُدْخِلُنِيهَا وَمَعِي فُقَرَاءُ الْمُؤْمِنِينَ

او زه به تر ټولو لومړنی سړی یم چي د جنت دروازې ته به حرکت ورکړم او الله تعالی به زما لپاره د جنت دروازې خلاصي کړي او ما به په هغه کي داخل کړي او زما سره به فقیران مؤمنان وي او

وَلَا فَخْرَ وَأَنَا أَكْرَمُ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ وَلَا فَخْرَ . رواه الترمذي والدارمي.

په دې زه فخر نه کوم او د الله تعالی په نزد به زه تر ټولو مخکنیو او آخرنیو خلکو غوره او برتر یم او په دې زه فخر نه کوم . ترمذي او دارمي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۴۸، رقم: ۳۶۱۶، والدارمي ۱\۳۹، رقم: ۴۷.

**تشريح**: زه د الله جل جلاله حبیب یم، په دې اړه ځینو شارحینو دا لیکلي دي چي د خلیل او حبیب دواړو معنی د دوست ده مګر حبیب هغه دوست ته وایي چي د محبوبیت مقام ته رسېدلی وي او خلیل مطلق دوست ته وایي، ملا علي قاري رحمه الله لیکلي دي چي خلیل هغه دوست ته وایي چي د هغه دوستي د یو حاجت او مقصد په وجه وي او حبیب هغه دوست ته وایي چي په خپله دوستۍ کي بالکل بې مقصده او بې غرضه وي، څرګنده دي وي چي ټول نبیان او رسولان بلکه ټول مؤمنان د الله جل جلاله دوست او محبوب وي مګر د دوستۍ او محبوبیت هم مختلفي درجې او مرتبې وي ځکه دلته خبري د دوستۍ او محبوبیت د هغه درجې او مرتبې په اړه دي چي تر ټولو اعلی او تر ټولو غوره ده، پاته سوه دا خبره چي د الله جل جلاله په دربار کي د دوستۍ او محبوبیت تر ټولو لوړه او غوره درجه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته حاصله وه نو د دې تر ټولو لوی دلیل د قرآن کریم دغه آیت دی : (قل ان کنتم تحبون الله فاتبعوني یحببکم الله) : (اې محمد صلی الله علیه وسلم !) دغه خلکو ته ووایه چي که تاسو الله جل جلاله دوست لرئ نو زما پیروي کوئ، الله جل جلاله به هم ستاسو سره دوستي وکړي.

هغه وخت به زما سره فقیران مؤمنان وي، ددې مطلب دادی چي په جنت کي به تر ټولو مخکي رسول الله صلی الله علیه وسلم داخلېږي او بیا به د مؤمنانو څخه چي کومه ډله تر ټولو مخکي په جنت

کي داخلیږي هغه به د مهاجرو او انصارو صحابه کرامو څخه هغه کسان وي چي مفلس او مسکینان وه چي د خپلو خپلو درجو او مرتبو په اعتبار به مخکي او وروسته په جنت کي داخلیږي لکه څرنګه چي په یوه روایت کي دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زما د امت فقیران به د شتمنو څخه پنځه سوه کاله مخکي په جنت کي داخلیږي، ددې خبري دلیل دی چي د صبر او استقامت لار اختیارونکي فقیر د شکر ګزار غني څخه غوره دی او د صوفیانو په نزد د فاقې او احتیاج نوم فقر نه دی بلکه د هغوئ په نزد یوازي الله جل جلاله ته د محتاج کېدو او د الله جل جلاله څخه د هغه د رضا او خوښې ماسوا د نور څه نه غوښتلو نوم فقر دی، امام ثوري رحمة الله علیه ویلي دي: فقر دادی چي د مال او سامان په نه درلودو سره سکون تر لاسه وي او کله چي مال تر لاسه سي نو هغه مصرف کړل سي، رسول الله ﷺ د نفس د فقر څخه پناه غوښتې وه او د غناء نفس تعریف یې کړی دی، خلاصه دا چي اصل شی د الله جل جلاله رضا او خوشحالي ده، کوم حالت چي وي که هغه د فقر وي او که د غناء، د هغه شي د تر لاسه کولو څخه دي موږ وساتي کوم چي خراب دی په عامه توګه غناء یعني د شتمنۍ حالت انسان په خرابیو کي اخته کوي او د فقر حالت په ډېرو خرابیو کي د اخته کېدو څخه منع کوي ځکه الله جل جلاله زیات انبیاء او اولیاء د فقر په حالت کي ساتلي دي او د هغوئ فقر یې د هغوئ د مرتبو او درجو د لوړوالي باعث جوړ کړ، یو دلیل دادی چي فقیر کافر ته به تر غني کافر په دوږخ کي سپک عذاب وي نو بیا څرنګه ممکن ده چي هغه به فقیر مؤمن ته په جنت کي ګټه نه رسوي.

## د امت محمدي ځانګړتیاوي

﴿۵۵۱۵﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ قَيْسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَحْنُ

د عمرو بن قیس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د ظهور په اعتبار موږ

الآخِرُوْنَ وَنَحْنُ السَّابِقُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَإِنِّيْ قَائِلٌ قَوْلاً غَيْرَ فَخْرٍ إِبْرَاهِيْمُ

په آخر کي یو مګر په قیامت کي به اول یو او زه تاسو ته یوه خبره کوم او په دې زه فخر نه کوم او هغه داده چي ابراهیم علیه السلام

خَلِيْلُ اللهِ وَمُوْسٰى صَفِيُّ اللهِ وَأَنَا حَبِيْبُ اللهِ وَمَعِيْ لِوَاءُ الْحَمْدِ يَوْمَ

د الله تعالی دوست دی، موسی علیه السلام غوره دی او زه د الله تعالی حبیب یم او د قیامت په ورځ به

الْقِيَامَةِ وَإِنَّ اللّٰهَ وَعَدَنِي فِي أُمَّتِي وَأَجَارَهُمْ مِنْ ثَلَاثٍ لَا يَعُمُّهُمْ بِسَنَةٍ وَلَا يَسْتَأْصِلُهُمْ عَدُوٌّ وَلَا يَجْمَعُهُمْ عَلَى ضَلَالَةٍ. رواه الدارمي.

زما سره د حمد بيرغ وي او الله تعالى زما سره د امت لپاره د خير كثير وعده فرمايلې ده او زما امت الله تعالى د درو شيانو څخه ساتلى دى يو خو دا چې هغوئ به په عام قحط كې هلاك نه كړي دويم دا چې دښمن به يې هلاک نه كړي يعني د اسلام دښمنان به ټول مسلمانان هلاک نه كړلاى سي او دريم دا چې ټوله اسلامي نړۍ به ګمراه نه كړل سي. دارمي.

**تخريج:** سنن الدارمي ۱\۴۲، رقم: ۵۴.

## خاتم الانبياء

﴿۵۵۱۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَنَا قَائِدُ الْمُرْسَلِيْنَ وَلَا فَخْرَ وانا خاتم النبيين ولا فخر وَأَنَا أَوَّلُ شَافِعٍ وَّمُشَفَّعٍ وَلَا فَخْرَ. رواه الدارمي

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: زه د رسولانو سردار يم او په دې خبره زه فخر نه كوم او زه د نبوت ختمونكى يم او په دې زه فخر نه كوم او زه به تر ټولو لومړى سړى يم چې شفاعت به كوم او تر ټولو مخكې به زما شفاعت قبول سي او ما ته په دې فخر نسته. دارمي.

**تخريج:** سنن الدارمي ۱\۴۰، رقم: ۴۹.

**د لغاتو حل:** ايسوا: اى اذا غلب عليهم اليأس. (ناهيلي كېدل)

## د قيامت په ورځ د رسول الله ﷺ عظمت

﴿۵۵۱۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَوَّلُ النَّاسِ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ چې خلک د

خُرُوجًا إِذَا بُعِثُوا وَأَنَا قَائِدهم إِذَا وَفَدُوا وَأَنَا خطيبهم اذا انصتوا وانا

قبرونو څخه پورته سي نو تر ټولو مخكې به زه د قبر څخه پورته سم او هر كله چې خلک د الله په دربار كې د حاضريدو لپاره راوليږي نو د هغوئ مشر به زه يم او هر كله چې خلک پټه خوله وي

مستشفعهم اذا حبسوا وانا مُبَشِّرُهُمْ إِذَا يئسوا الكرامة والمفاتيح

نو زه به خبري كوم او هر كله چي خلك نا اميده او مايوسه سي نو زه به هغوئ ته زيري وركوم هغه وخت به بزرگي او كيلياني زما په لاس كي وي

يَوْمَئِذٍ بِيَدِي ولواء الحمد يومئذ بيدي وَأَنَا أَكْرَمُ وَلَدِ آدَمَ عَلَى رَبِّي يطوف

او د حمد بيرغ به په دغه ورځ زما په قبضه كي وي او د آدم عليه السلام په زامنو كي به د الله تعالى په نزد لوى بزرگ زه يم، په هغه ورځ به

على الف خادم كانهم بيض مكنون او لؤلؤ منثور. رواه الترمذي والدارمي وقال الترمذي هذا حديث غريب.

زر خادمان زما شاوخوا وي گويا چي هغه خادمان پټي هگۍ دي يا خپرې ملغلري دي. ترمذي او دارمي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵۴۶\۵، رقم: ۳۶۱۰.

**د لغاتو حل**: بيض مكنون: اي مصون عن الغبار

**تشريح**: كله چي ټول خلك پټه خوله وي... الخ: دلته دې ته اشاره ده چي د حشر په ميدان كي به عام دهشت او ېېره خپره وي هر سړی به حيران او پريشان وي، په چا كي به دومره توان نه وي چي د خپلي ژبي څخه دوه الفاظ راوباسي، كه يو عذر او غوښتنه وړاندي كړي نو د رسول الله ﷺ په وړاندي به راسي رسول الله ﷺ به د ټولو له خوا عذر او معذرت وړاندي كوي، د شفاعت غوښتنه به وړاندي كوي او هغه وخت كله چي عام خلك بلكه لوی لوی نبيانو ته ددې خبري كولو توان نه وي نو رسول الله ﷺ به د الله جل جلاله په دربار كي په ويلو سي او د الله جل جلاله داسي تعريف او ثناء بيانوي چي د هغه د شان وړ به وي او همدارنگه هغه وخت به د رسول الله ﷺ څخه ماسوا بل چا ته د ويلو اجازه نه وي لكه چي په قرآن كريم كي فرمايل سوي دي : (هذا يوم لاينطقون ولايؤذن لهم فيعتذرون)، دا به هغه ورځ وي چي په هغه كي به نه هغه خلك خبره كولای سي او نه به هغوئ ته (د عذر كولو) اجازه وي.

نو د رسول الله ﷺ ذات له دې څخه مستثنی دی چي د رسول الله ﷺ څخه ماسوا بل چا ته به د خبري كولو اجازه نه وي يا دا چي په دغه آيت كي د لومړني پړاو ذكر دی چي په پيل كي به

هيڅا ته د خبري كولو اجازه نه وي مگر وروسته به رسول الله ﷺ ته اجازه وركړل سي يا دا چي د دغه آيت تعلق يوازي د كافرانو سره دی.

كله چي پر خلكو نااميدي او مايوسي خپره سوې وي، ددې مطلب دادی چي يوې خوا ته به پر خلكو باندي سخت خوف او بېره خپره وي او بلي خوا ته به د هغوئ په يو يو كولو سره تلو لويو لويو انبياؤ ته د شفاعت كولو جرئت نه وي، نو پر هغوئ به د رحمت او مغفرت له خوا نااميدي خپره سي، بيا به رسول الله ﷺ د الله ﷻ په دربار كي د هغوئ شفاعت وكړي او د هغوئ نا اميدي به ختمه كړي.

د پټي هگۍ څخه مراد د شتر مرغ هگۍ دی، رسول الله ﷺ غلامانو، خادمانو او حورو ته د شتر مرغ د هگيو سره په دې وجه تشبيه وركړل چي هغه هگۍ د گرد او غبار څخه د خوندي كېدو په وجه په هغه كي ژړوالی وي، په مجمع البحار كي يې ليكلي دي چي د پټو هگيو څخه مراد غميان دي چي د خلكو د لاسونو او نظرونو څخه د ساتني په وجه ډېره ښكلا لري خلاصه دا چي په هغه ورځ به د رسول الله ﷺ په وړاندي، ترشا، راسته او چپه خوا ته چي كوم خادمان وي هغوئ به په پاكوالي او شكل كي بالكل نوي كېدو په وجه ډېر ښه معلوميږي.

يا خپاره غميان دي، دلته دې ته اشاره ده چي څرنگه غميان په يو تار كي د پيل سوو په نسبت همدا رنگه خپاره وي همدا رنگه هغه خادمان به د څلورو خواوو څخه خپاره او په خدمت كي لگېدلي ډېر ښكلي معلوميږي.

## رسول الله ﷺ به د عرش راسته خوا ته ولاړ وي

﴿۵۵۱۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَأُكْسَى حُلَّةً

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ما ته به د جنت د جامو

مِنْ حُلَلِ الْجَنَّةِ ثُمَّ أَقُومُ عَنْ يَمِينِ الْعَرْشِ لَيْسَ أَحَدٌ مِنَ الْخَلَائِقِ يَقُومُ

څخه جامه واغوستل سي بيا به زه د عرش الهي راسته خوا ته ودرېږم او پر هغه ځای به په

ذَلِكَ الْمَقَامَ غَيْرِي. رواه الترمذي وفي رواية جامع الاصول عنه انا اول من تنشق عنه الارض فاكسي.

مخلوق كي زما څخه پرته هيڅوک نه ودريږي، ترمذي او په جامع الاصول كي داسي روايت

راغلی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تر ټولو مخکي به: زما قبر خلاص کړل سي بيا به ما ته جوړه واغوستل سي.

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٥٤٦، رقم: ٣٦١١.

## د رسول الله ﷺ لپاره وسيله وغواړئ

﴿٥٥١٩﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَلُوا اللَّهَ لِيَ الْوَسِيلَةَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَا الْوَسِيلَةُ قَالَ أَعْلَى دَرَجَةٍ فِي الْجَنَّةِ لَا يَنَالُهَا إِلَّا رَجُلٌ وَاحِدٌ أَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَنَا هُوَ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما لپاره د الله تعالى څخه وسيله (په جنت کي اعلى درجه) غواړئ، صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله رسوله! وسيله څه شي ده؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: وسيله په جنت کي يوه لويه درجه ده چي يوازي يوه سړي ته به ورکول کيږي او زه اميد لرم چي هغه سړی به زه يم. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٥٤٦، رقم: ٣٦١٢.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د خپل امت د خلکو څخه د ځان لپاره د وسيلې غوښتل د الله ﷻ په دربار کي د خپلي بې چارګۍ او اړتيا د اظهار لپاره دي يا دا مقصد دي چي زما د امت خلک د الله ﷻ څخه زما دپاره د وسيلې خواست کوي، نو ددې په وجه به دغه خلکو ته ګټه رسيږي او ثواب به ترلاسه کوي، يا دا چي د دغه حکم په ذريعه رسول الله ﷺ د خپل امت خلکو ته د الفت او تعلق د اظهار دغه طريقه وښودل چي هر مسلمان بايد د خپل هر عزيز او هر دوست د پرمختګ او د درجو د لوړتيا دعاء وکړي.

او زه اميد لرم چي هغه سړی به زه يم، رسول الله ﷺ دا خبره هم د اظهار تواضع او خاکسارۍ په وجه وفرمايل، کنه نو دا خو فيصله سوې ده چي د جنت تر ټولو لويه درجه چي په وسيله سره تعبير سوې ده يوازي رسول الله ﷺ ته ترلاسه کيږي.

## رسول الله ﷺ به د ټولو نبيانو امام وي

﴿٥٥٢٠﴾: وَعَنْ أُبَيِّ ابْنِ كَعْبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا كَانَ

يَوْمُ الْقِيَامَةِ كُنْتُ إِمَامَ النَّبِيِّينَ وَخَطِيبَهُمْ وَصَاحِبَ شَفَاعَتِهِمْ غَيْرُ فَخْرٍ. رواه الترمذي.

د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د قیامت په ورځ به زه د نبیانو امام او خطیب یم او د هغوئ شفاعت به کوم او ما ته پر دي فخر نسته. ترمذي.

**تخريج:** سنن الترمذي ۵\۵۴۷، رقم: ۳۶۱۳.

## حضرت ابراهیم علیه السلام او رسول الله ﷺ

﴿۵۵۲۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بن مسعود قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ وُلَاةً مِنَ النَّبِيِّينَ وَإِنَّ وَلِيِّي أَبِي وَخَلِيلُ رَبِّي ثُمَّ قَرَأَ إِنَّ أَوْلَى

د هر نبي په نبیانو کي دوستان وي او په انبیاؤ کي زما دوست زما پلار زما د پروردګار دوست ابراهیم علیه السلام دی، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړ: (ان اولی

النَّاسِ بِإِبْرَاهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ وَهَذَا النَّبِيُّ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِينَ. رواه الترمذي.

الناس بابراهیم.... ....) (ابراهیم علیه السلام ته زیات نژدې هغه خلک دي چي د هغه پیروي یې وکړه او دا نبي (یعني محمد ﷺ) او هغه خلک دي چي ایمان یې راوړ او الله تعالی د مسلمانانو دوست او مرستیال دی). ترمذي

**تخريج:** سنن الترمذي ۵\۲۰۸، رقم: ۲۹۹۵.

## د رسول الله ﷺ د بعثت مقصد

﴿۵۵۲۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللَّهَ بَعَثَنِي لِتَمَامِ مَكَارِمِ الْأَخْلَاقِ وَكَمَالِ مُحَاسِنِ الْأَفْعَالِ. رواه في شرح السنه.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالى زه د ښو اخلاقو او ښو كارو پوره كولو لپاره راليږلى يم. شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۳\۲۰۲، رقم: ۳۶۲۲.

**تشريح**: مطلب دا چي الله جل جلاله زه د خپل پيغمبر او رسول په ګرځولو سره دد ې مقصد لپاره را استولى يم چي زه د الله جل جلاله د مخلوق هدايت وكړم او هغوئ د ظاهري اخلاقو او معاملاتو په اعتبار هم او د باطني احوالو او خويونو په اعتبار هم د كمال درجې ته ورسوم.

## په تورات كي د رسول الله ﷺ او امت محمدي د صفتو ذكر

﴿۵۵۲۳﴾: وَعَنْ كَعْبٍ يَحْكِيْ عَنِ التَّوْرَاةِ قَالَ نَجِدُ مَكْتُوْباً مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ

كعب رضي الله عنه د تورات څخه نقل كوي چي موږ په تورات كي دا ليدلي دي چي محمد ﷺ د الله تعالى

عَبْدِيَ الْمُخْتَارَ لاَ فَظٌّ وَلاَ غَلِيْظٌ وَلاَ سَخَّابٌ فِي الْأَسْوَاقِ وَلاَ يَجْزِيْ بِالسَّيِّئَةِ

رسول او د هغه ټاكلى بنده دى هغه نه سخت خويه دى نه سخت ګويه او نه په بازارونو كي شور كونكى دى هغه د بدى بدله

السيئة وَلٰكِنْ يَّعْفُوْ وَيَغْفِرُ مَوْلِدُهُ بِمَكَّةَ وَهِجْرَتُهُ بِطَيْبَةَ وَمُلْكُهُ بِالشَّامِ

په بدى سره نه اخلي بلكه معافي كوي او بخښنه كوي د هغه د زيږيدني ځاى مكه ده او د هجرت ځاى يې طيبه ده او د هغه حكومت شام كي دي

وَأُمَّتُهُ الْحَمَّادُوْنَ يَحْمَدُوْنَ اللهِ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ يَحْمَدُوْنَ اللهَ فِيْ كُلِّ

او د هغه امت ډير حمد كونكى دى چي په خوشحالي او غم دواړو حالاتو كي د الله تعالى شكر

مَنْزِلَةٍ وَيُكَبِّرُوْنَهُ عَلٰى كُلِّ شَرَفٍ رُعَاةٌ لِلشَّمْسِ يُصَلُّوْنَ الصَّلاَةَ إِذَا جَاءَ وَقْتُهَا

او تعريف كوي، هغه چي كوم ځاى وي د الله تعالى شكر او لويي بيانوي يعني الله اكبر به وايي، خيال ساتونكي د لمر ساتونكي (يعني هغه د طلوع، غروب او زوال به هم خيال ساتي) چي د

يَتَأَزَّرُوْنَ عَلٰى أَنْصَافِهِمْ وَيَتَوَضَّؤُوْنَ عَلٰى أَطْرَافِهِمْ مُنَادِيْهِمْ يُنَادِيْ فِيْ جَوِّ

لمنځو وختونه مقرر كړل سي هر كله چي دلمانځه وخت سي نو لمونځ به كوي لونګ به پورته

تړي او د خپل بدن په اطرافو به اودس کوي د هغوئ منادي کونکی یعني اذان کونکی د آسمان

السَّمَاءِ صَفُّهُمْ فِي الْقِتَالِ وَصَفُّهُمْ فِي الصَّلَاةِ سَوَاءٌ لَّهُمْ بِاللَّيْلِ دَوِيٌّ كَدَوِيِّ النَّحْلِ. هذا لفظ المصابيح وروي الدارمي مع تغيير يسير.

او مځکي په منځ کي به ندا کوي (یعني پر لوړ ځای به ودریږي او اذان به کوي) په جنګ کي او لمانځه کي به د هغوئ صف برابروي د شپې د هغوئ آواز کښته وي لکه د شاتو د موچی اواز، مصابيح او دارمي

**تخريج**: سنن الدارمي ١٦١١، رقم: ۵، والبغوي في المصابيح ۴۲۱۴، رقم: ۴۴۹۱.

**د لغاتو حل**: رعاة الشمس: اي امته مراعون لطلوع الشمس واستوائها.

**تشريح**: د هغوئ د حکومت ځای به د شام هیواد وي، دلته د حکومت څخه مراد د دین او د نبوت د ثمراتو او آثارو ظاهرېدل او د جهاد في سبيل الله په ذريعه د الله ﷻ بیرغ لوړول دي، دا حقیقت دی چي د اسلام دعوت په دغه هیواد کي تر ټولو زیات خپور سو او مسلمانانو ته به جهاد کول هم په دغه سیمه کي زیات پېښ سي، او کوم چي د رسول الله ﷺ د دین او دنیاوي حکومت تعلق دی د هغه دائره د یو خاص هیواد یا سیمي پوري محدود نه دی بلکه په ټوله نړۍ کي خپور سوی دی، یا د دغه جملې څخه دا مراد دی چي د رسول الله ﷺ تخت به د رسول الله ﷺ په ژوند مبارک او د خلفاء راشدینو د زمانې څخه وروسته د شام هیواد ته منتقل سي نو د تاریخ سره سم همداسي وسول او د حضرت معاویه رضي الله عنه او بنو امیه په زمانه کي د مسلمانانو دار الخلافت د شام په هیواد کي وو.

د لمر لحاظ به ساتي، د دغه جملې په ذريعه لمونځ، روژې او نورو عباداتو د پابندي او رعايت کولو ته اشاره ده چي مسلمانان د لمر د راختلو او لوېدو او زوال په اعتبار د خپل لمانځه او عبادت د وختونو خیال ساتي او کوم وخت چي د کوم عبادت لپاره ټاکل سوی وي په هغه کي د هغه عبادت پابندي کوي، په یوه روایت کي دي چي حاکم د عبدالله بن ابي اوفی څخه مرفوعا نقل کړی دی، فرمایل سوي دي چي: ښه شکه د الله ﷻ په بندګانو کي غوره خلک هغه دي چي د الله ﷻ د عبادت لپاره د وختونو د تعین له کبله د لمر، ستورو او سایې خیال وساتي.

﴿۵۵۲۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ مَكْتُوبٌ فِي التَّوْرَاةِ صِفَةُ مُحَمَّدٍ وَصِفَةُ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ يُدْفَنُ مَعَهُ قَالَ أَبُو مَوْدُودٍ وَقَدْ بَقِيَ فِي الْبَيْتِ مَوْضِعُ قَبْرٍ. رواه الترمذي.

د حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه څخه روایت دی چي په تورات کي د حضرت محمد ﷺ صفات لیکلي دي او دا هم لیکلي دي چي د رسول الله ﷺ د قبر سره به عیسی بن مریم علیهما السلام هم دفن کیږي. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۵۴۹، رقم: ۳۶۱۷.

**تشریح**: په حجره مبارکه کي چیري چي رسول الله ﷺ، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او حضرت عمر فاروق رضی الله عنه دفن سوي دي، د درو سره قبرو ترتیب داسي دی چي تر ټولو مخکي د قبلې خوا ته د رسول الله ﷺ قبر مبارک دی، ددې وروسته د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه قبر داسي دی چي چیري د رسول الله ﷺ سینه مبارکه ده هلته د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه سر دی، د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د قبر څخه وروسته د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه قبر داسي دی چي چیري د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه سینه مبارکه ده هلته د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه سر دی او د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په خوا کي د یوه قبر ځای خلي دی، په دغه ځای کي ډېرو صحابه کرامو د دفن کېدو خواهش کړی وو مګر د خواهش او قصد سربېره چا ته د دفن کېدو سعادت په برخه نه سو، ددې څخه معلومه سول چي الله جل جلاله په خپل حکمت دغه ځای خالي وساتی، چي په آخره زمانه کي به حضرت عیسی علیه السلام هم په دغه ځای کي دفن کیږي، په یوه روایت کي بیان سوی دی چي حضرت عیسی علیه السلام به دنیا ته د خپل عمر په آخري برخه کي راورسیږي نو د حج لپاره به مکې معظمې ته ولاړ سي او د هغه ځای څخه په ستنېدو سره به د مکې او مدینې په منځ کي وفات سي او د هغه مړی مبارک به مدینې منورې ته راوړل سي او د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په څنګ کي به دفن کړل سي. همدارنګه دغه دوه صحابه کرام، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او عمر فاروق رضی الله عنه به د دوو نبیانو په منځ کي تر قیامته پوري آرام کوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د رسول الله ﷺ د فضیلت دلیل

﴿۵۵۲۵﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى فَضَّلَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چي الله تعالی محمد ﷺ ته فضیلت ورکړی دی

عَلَى الْأَنْبِيَاءِ وَعَلٰى أَهْلِ السَّمَاءِ فَقَالُوْا يَا أَبَا عَبَّاسٍ بِمَ فَضَّلَهُ اللّٰهُ عَلٰى أَهْلِ

پر ټولو انبیاؤ او آسمان والاوو ، خلکو پوښتنه وکړه اې ابن عباس ! پر آسمان والاوو په کومه خبره کي فضیلت ورکړل سوی دی ؟

السَّمَاءِ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى قَالَ لِأَهْلِ السَّمَاءِ وَمَنْ يَقُلْ مِنْهُمْ إِنِّيْ إِلٰهٌ مِّنْ دُوْنِهِ

ابن عباس رضی الله عنه وویل : الله تعالی آسمان والاوو ته فرمایلي دي : (و من یقل منهم انی اله من دونه ...) ، (چي څوک دا ووايي چي زه د الله تعالی څخه پرته بل معبود یم

فَذٰلِكَ نَجْزِيْهِ جَهَنَّمَ كَذٰلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِيْنَ وَقَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى لِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ

نو موږ به دده په بدله کي ورته جهنم ورکړو او موږ ظالمانو ته همداسي بدله ورکوو) او محمد ﷺ ته الله تعالی فرمایلي دي :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِيْنًا لِيَغْفِرَ لَكَ اللّٰهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا

(انا فتحنا لک فتحا مبینا ....)، (موږ ستا لپاره د برکتو دروازې خلاصي کړي دي او الله تعالی ستاسو مخکني او وروستني گناهونه و بخښل)

تَأَخَّرَ قَالُوْا وَمَا فَضْلُهُ عَلَى الْأَنْبِيَاءِ قَالَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ إِلَّا

بیا خلکو پوښتنه وکړه او پر انبیاؤ رسول الله ﷺ ته څنګه فضیلت ورکړل سوی دی؟ ابن عباس رضی الله عنه وویل : الله تعالی د نورو انبیاؤ په اړه فرمایلي دي : (و ما ارسلنا من رسول الا

بِلِسَانِ قَوْمِهٖ لِيُبَيِّنَ لَهُمْ فَيُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ يَّشَاءُ الْآيَة وَقَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى لِمُحَمَّدٍ ﷺ

بلسان ...) (موږ چي کوم پیغمبر ولیږو د هغه د قوم د ژبي سره مو ولیږی چي د هغوئ په وړاندي

د الله ﷻ احکام بیان کړي بیا چا ته چي الله غواړي ګمراه کوي)، او الله ﷻ د محمد ﷺ په اړه

وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلاَّ كَافَّةً لِلنَّاسِ فَأَرْسَلَهُ إِلَى الْجِنِّ وَالْإِنْسِ. رواه الدارمي.

فرمايلي دي: (و ما ارسلناک الا کافة للناس). (موږ ته ټولو خلکو ته رسول لیږلی یې) یعني الله ﷻ رسول الله ﷺ د جن او انس ټولو لپاره پیغمبر رالیږلی دی. دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي في المقدمة ۱\۳۸، رقم: ۴۶.

**تشريح**: الله ﷻ ستاسو ټول مخکني او وروستني ګناهونه بخښلي دي، ددغه آیت په اړه سوال پیدا کیږي چي کله رسول الله ﷺ معصوم دی او هیڅ ګناه ور څخه نه سي کېدای او نه هیڅ ګناه ځیني سوې ده نو بیا ددې ویلو څه معنی ده چي ستاسو ټول مخکني او وروستني ګناهونه بخښل سوي دي، مفسرین او شارحین ددغه آیت مختلف تاویلو او توجیهات کوي، په هغو کي تر ټولو غوره تاویل دا ګڼل کیږي چي د قرآني آیت دغه جمله پر خپل اصلي معنی باندي محمول نه ده بلکه ددې څخه محض د رسول الله ﷺ کمال عنایت او مهرباني او د رسول الله ﷺ د امتیازي خصوصیت او عظمت اظهار مقصد دی، د مثال په توګه داسي پوه سئ چي کله یو بادرا د خپل یو غلام د پیروی څخه زیات خوشحاله وي او هغه د کمال رضا او خوشحالی ظاهرول غواړي نو هغه ته دا وایي چي ځه ما ته بالکل معاف کړلې، ستا ټولي خطاوي معاف دي او پر تا هیڅ نیوکه نسته، که څه هم د هغه غلام څخه هیڅ خطا نه وي سوې.

نو الله ﷻ، رسول الله ﷺ د پیریانو او انسانانو دواړو لپاره پیغمبر را استولی دی، ددغه جملې په ذریعه حضرت ابن عباس ﷺ د الفاظ قرآني (کافة الناس) وضاحت وفرمایه، که څه هم دلته یوازي د انسان ذکر دی او هغه هم په دې وجه چي اشرف المخلوقات انسان دی مګر مراد پیریان او انسانان دواړه دي، چي الله ﷻ، رسول الله ﷺ انسانانو ته هم او پیریانو ته هم پیغمبر را استولی دی، ددې دلیل په ډېرو قرآني آیاتو او نبوي حدیثو کي موجود دی، ددغه آیت اصل مقصد دا حقیقت څرګندول دي چي د رسول الله ﷺ رسالت او نبوت د یوې خاصي سیمي یا د انسانانو د یوې خاص طبقې لپاره نه دی بلکه د رسول الله ﷺ پیغمبر را لیږل د ټول نوع انساني لپاره دی او ددغه حقیقت وضاحت هم ځکه سوی دی چي د هغه اهل کتاب تردید وسي چي ویل یې: د محمد (ﷺ) رسالت خو یوازي د عربو لپاره دی.

## رسول الله ﷺ خپل نبوت څنګه و پېژندی

﴿۵۵۲۶﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ الْغِفَارِيِّ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ كَيْفَ عَلِمْتَ أَنَّكَ نَبِيٌّ

د حضرت ابوذر غفاري ﷺ څخه روایت دی چي ما عرض وکړ اې د الله رسوله! تاسو ته څنګه

معلومه سوه چي تاسو نبي یاست ؟

حَتَّى اسْتَيْقَنْتَ فَقَالَ يَا أَبَا ذَرٍ أَتَانِي مَلَكَانِ وَأَنَا بِبَعْضِ بَطْحَاءِ مَكَّةَ فَوَقَعَ

او بیا تاسو ته د خپل نبوت یقین څنګه وسو ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل اې ابوذر! زه په بطحا مکه کي وم چي ما ته دوې ملائکي راغلې په هغو کي

أَحَدُهُمَا عَلَى الْأَرْضِ وَكَانَ الْآخَرُ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ فَقَالَ أَحَدُهُمَا

یوه ملائکه خو مځکي ته راغلل او دویمه ملائکه د آسمان او مځکي په منځ کي وه بیا په هغوئ

لِصَاحِبِهِ أَهُوَ هُوَ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَزِنْهُ بِرَجُلٍ فَوُزِنْتُ بِهِ فَوَزَنْتُهُ ثُمَّ قَالَ زِنْهُ

کي یوې د بلي څخه پوښتنه وکړه ایا دا هغه دی ؟ دویمي ورته وویل هو ، لومړنۍ وویل د یو سړي سره دی وزن کړه

بِعَشْرَةٍ فَوُزِنْتُ بِهِمْ فَرَجَحْتُهُمْ ثُمَّ قَالَ زِنْهُ بِمِائَةٍ فَوُزِنْتُ بِهِمْ فَرَجَحْتُهُمْ

نو زما وزن وکړل سو او زه د هغه سړي څخه دروند سوم بیا هغه ملائکي وویل ښه دی د سلو خلکو سره دی وزن کړه نو وزن کړل سوم او زه د سلو خلکو په مقابله کي هم دروند سوم

ثم قال زنه بالف فوزنت بهم فرجحتهم كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِمْ يَنْتَثِرُوْنَ عَلَي

بیا هغه ملائکي وویل د سلو خلکو سره یې وزن کړه نو وزن کړل سوم او زه پر سلو خلکو هم دروند سوم بیا هغه ملائکي وویل ښه دی اوس یې د زرو خلکو سره وزن کړه زه پر هغوئ هم دروند سوم ګویا هغه زر خلک زه اوس هم وینم چي

مِنْ خِفَّةِ الْمِيْزَانِ قَالَ فَقَالَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ لَوْ وَزَنْتَهُ بِأُمَّتِهِ لَرَجَحَهَا.

رواهُما الدارمي.

په کومه پله کي هغوئ وه ، هغه دومره پورته سوی وه چي هغوئ پر ما را لویدونکي دي ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل : بیا هغه دواړو ملائکو یوې بلي ته وویل که دی د ټول امت سره هم وتلې نو تر ټول امت به هم دروند سي .

**تخريج**: سنن الدارمي في المقدمة ۱\۲۱، رقم: ۱۴.

## پر رسول الله ﷺ باندي په هر حالت كي قرباني فرض وه

﴿۵۵۲۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ كُتِبَ عَلَيَّ النَّحْرُ وَلَمْ يَكْتُبْ عَلَيْكُمْ وَأُمِرْتُ بِصَلاَةِ الضُّحٰى وَلَمْ تُؤْمَرُوْا بِهَا. رواه الدار قطني.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پر ما باندي په هر حال كي قرباني فرض سوې ده او پر تاسو نه ده فرض يوې او ما ته د څاښت د لمانځه حكم وسو او تاسو ته ونه سو. دار قطني.

**تخريج**: سنن الدار قطني ۴\۲۸۲، رقم: ۴۲.

**د لغاتو حل**: النحر: اى الاضحية (قرباني)

==========

# بَابُ اَسْمَاءِ النَّبِيِّ ﷺ وَصِفَاتِهِ

## (د نبي كريم ﷺ د مباركو نومو او صفتو بيان)

د ذكر سوي عنوان دوې برخي دي، د يوې تعلق د رسول الله ﷺ د مباركو نومو سره دی او د دوهمې برخي تعلق د صفتو سره دی مګر دلته د صفتو څخه مراد د رسول الله ﷺ اخلاق، باطني اوصاف او طريقې دي چي د هغه يادونه به په بل باب كي وي، بلكه د صفاتو څخه مراد د رسول الله ﷺ حليه مباركه، قد او ظاهري شكل او صورت وي.

### د رسول الله ﷺ د مباركو نومو شمېر:

د رسول الله ﷺ نومان ډېر دي چي په هغو كي د يو څو يادونه په قرآن كريم كي راغلې دې او ځيني په پخواني آسماني كتابو كي تر لاسه كيږي، د ځينو يادونه د نبيانو عليهم السلام په ژبه سره سوې ده او ځيني په حديثو كي مذكور دي، د دغه نومونو د شمېر په اړه هيڅ يو قول نسته، په مواهب لدنيه كي ليكلي دي چي د رسول الله ﷺ نومونه او لقبونه په قرآن كريم كي ډېر راغلي دي، ځينو علماؤ نهه نيوي (۹۹) نومونه جمع كړي دي چي د الله جل جلاله د مباركو نومو

شمېر هم دی، د قاضي عياض رحمة الله عليه څخه منقول دي چي الله جل جلاله د خپلو نومو څخه دېرش نومونه د خپل حبيب لپاره خاص کړي دي ، ځينو حضراتو ليکلي دي که چيري په پخواني آسمانو کتابو، قرآن کريم او حديثو کي د رسول الله ﷺ د نومو پلټنه وکړل سي نو د هغو شمېر به تر درو سوو پوري ورسيږي ، او د يوه قول سره سم څلورو سوو ته رسيږي او قاضي ابوبکر ابن الغربي چي د مالکي مذهب له لويو علماوو څخه دی، ليکلي دي چي د ځينو صوفيانو قول دی چي د الله جل جلاله زر نومونه دي او د هغه د حبيب هم زر نومونه دي او دا چي له نومو څخه مراد هغه صفتونه دي چي په هغه سره د رسول الله ﷺ ذات مبارک متصف دی او د هر صفت څخه يو نوم راوځي، سيوطي رحمة الله عليه هم په ځانګړې توګه يو کتاب تاليف کړی دی چي په هغه کي يې د رسول الله ﷺ نومونه راجمع کړي دي، او طيبي رحمة الله عليه دوه ويشت نومونه ذکر کړي دي او د ټولو وضاحت يې کړی دی ، او کوم چي د مشکوٰة د مؤلف تعلق دی نو هغه په دې اړه يوازي دوه حديثونه نقل کړي دي چي په هغو کي د رسول الله ﷺ زيات نومونه نقل سوي دي .

**اصل نوم مبارک**: د رسول الله ﷺ اصل نوم مبارک چي تر ټولو زيات مشهور او رواج دی، محمد (ﷺ) دی، دغه د رسول الله ﷺ د نيکه حضرت عبدالمطلب ايښودل سوی نوم دی، منقول دي چي کله عبدالمطلب ته يو چا وويل چي تاسو دخپل لمسي نوم د خپلو پلرونو او نيکونو په نامه ولي نه دی ايښی، او يو داسي نوم ته مو ترجيح ورکړې ده چي ستاسو په قوم او کورنۍ کي مخکي د هيچا داسي نوم نه دی راغلی، نو هغه جواب ورکړ: ما د خپل لمسي دغه نوم په دې وجه ايښی دی چي ټوله د دنيا خلک دده په صفت کي صفت کوونکي وي او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي پر آسمانو باندي الله جل جلاله دده تعريف او توصيف وکړي او پر ځمکه يې خلک صفت کونکي وي، په يوه روايت کي راغلي دي چي د رسول الله ﷺ د زېږېدو څخه ډېر مخکي حضرت عبدالمطلب په خوب کي وليدل چي د هغه د ملا څخه د سپينو زرو يو ځنځير ووتی چي د هغه يوه لړۍ تر آسمان پوري ولاړل او يوه لړۍ يې د ختيځ تر آخري حدو پوري او يوه لړۍ يې د مغرب تر حدو پوري ورسېدل، ددې څخه وروسته هغه ځنځير د يو درختي په شکل بدل سو او د هغه درختي پر هر بلګ باندي نور خپور سو بيا هغه وليدل چي د هغه نوراني بلګو لاندي له ختيځ څخه تر مغرب پوري خلګ جمع دي، عبدالمطلب د ويښېدو څخه وروسته ددغه عجيب او غريب خوب يادونه خلکو ته وکړل، تعبير ورکونکو په خوب اورېدو سره مبارکي ورکړه چي ستا په نسل کي به يو داسي سړی پيدا سي چي د هغه د پيروي کوونکو لړۍ به له ختيځ څخه تر لويديځ پوري خپره سي او په ځمکه او آسمان کي به د هغه تعريف کيږي ، او

همدارنګه د رسول الله ﷺ مور، بي بي آمنې هم د حامله کېدو څخه وروسته په خوب کي ليدلي وه چي يو سړي هغه ته وويل: ستا په نس کي د دغه امت سردار او پيغمبر دی، کله چي دغه ماشوم پيدا سي نو نوم يې محمد کښېږدئ.

په روايتو کي راغلي دي چي د رسول الله ﷺ د زېږدو مخکي د هيچا نوم محمد نه وو ايښودل سوی، مګر کله چي هل اکتابو په خپل آسماني کتابو کي د ذکر سوو وړاندوينو سره سم خلکو ته وښودل چي هغه زمانه راتلونکې ده چي د الله ﷻ آخري پيغمبر به پيدا سي او د هغه نوم به محمد وي، نو ددې په اورېدو سره څلورو خلکو د خپلو زامنو نوم محمد کښېښود ددې لپاره چي د نبوت په شرف مشرف سي، مګر دا څلور نومونه هم د رسول الله ﷺ د نوم څخه مخکي نه وه ځکه چي دغه څلورو هم د رسول الله ﷺ د نامه په اورېدو سره د خپلو زامنو نوم محمد کښېښود.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### اسماء النبي ﷺ (د نبي کريم ﷺ مبارک نومونه)

﴿۵۵۲۸﴾: عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ سَمِعْتُ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د جبير بن مطعم رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه واورېدل چي فرمايل يې:

اِنَّ لِيْ اَسْمَاءً اَنَا مُحَمَّدٌ وَاَنَا أَحْمَدُ وَاَنَا الْمَاحِي الَّذِي يُمْحُو اللهُ بِيَ الْكُفْرُ وَاَنَا

زما ډېر نومونه دي، زه محمد يم زه احمد يم زه ماحي يم يعني زما په ذريعه الله ﷻ کفر محوه کوي او زه

الْحَاشِرُ الَّذِي يُحْشَرُ النَّاسُ عَلَى قدمي وَاَنَا الْعَاقِبُ وَالْعَاقِبُ الَّذِي لَيْسَ بَعْدَهُ نَبِيٌّ. متفق عليه

حاشر يم چي د قيامت په ورځ به خلک زما پر قدم پورته کېږي (يعني د قبر څخه زما د تلو څخه وروسته به نور خلک د قبرونو څخه د باندي راوځي) او زه عاقب يم او عاقب هغه نبي دی چي د هغه څخه وروسته بل نبي نه وي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\ ٥٥٤، رقم: ٣٥٣٢، ومسلم ٤\ ١٨٢٨، رقم: ١٢٤- ٢٣٥٤.

**تشريح**: په ځينو روايتو کي د محمد او احمد سره يو نوم محمود هم منقول دی، ددغه درو سره

نومانو اشتقاق يو دی يعني حمد، د محمود مطلب هغه ذات دی چي د هغه د ذات او صفاتو تعريف په دنيا کي هم سوی دی او په آخرت کي هم، د محمد مطلب هغه ذات دی چي د هغه ډېر تعريف سوی وي، د احمد مطلب دی هغه ذات چي د هغه تعريف په مخکني او وروستني اسماني کتابو کي تر ټولو زيات سوی وي، د احمد معنی دا هم بيان سوې ده چي هغه ذات چي صاحب د حمد وي او د خپل مولی حمد او ثناء دومره زياته او په ښه انداز کي وکړي چي د چا د علم او ګمان تر هغه پوري نه رسيږي لکه څرنګه چي د قيامت په ورځ په مقام محمود کي به وي.

د ماحي معنی د بېخ کښنونکي ده، يعني الله ﷻ د ټولو نبيانو او رسولانو د دعوت او تبليغ په نسبت تر ټولو زيات د رسول الله ﷺ د دعوت او تبليغ په ذريعه د کفر بېخ وکښی.

د حاشر معنی د جمع کونکي ده يعني د قيامت په ورځ به تر ټولو مخکي رسول الله ﷺ د خپل قبر څخه په راپاڅېدو سره د حشر ميدان ته راځي، د رسول الله ﷺ څخه وروسته به نور ټول خلک د خپلو خپلو قبرو څخه په راوتلو سره د حشر په ميدان کي جمع کيږي.

د عاقب معنی ده تر ټولو وروسته راتلونکی يعني رسول الله ﷺ د الله ﷻ هغه نبي او رسول دی چي د ټولو رسولانو او نبيانو څخه وروسته دنيا ته راغلی دی او د رسول الله ﷺ څخه وروسته هيڅ بل نبي او رسول دنيا ته راتلونکی نه دی.

﴿۵۵۲۹﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَمِّي لَنَا نَفْسَهُ أَسْمَاءً فَقَالَ أَنَا مُحَمَّدٌ وَأَحْمَدُ وَالْمُقَفِّي وَالْحَاشِرُ وَنَبِيُّ التَّوْبَةِ وَنَبِيُّ الرَّحْمَةِ. رواه مسلم.

د حضرت ابو موسی اشعري رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ زموږ په وړاندي خپل دومره نومونه ښودلي وه يعني دا چي زه محمد يم او زه احمد يم، زه مقفي يم (يعني تر ټولو پيغمبرانو وروسته يا په آخر کي راتلونکی) زه حاشر يم (يعني د قيامت په ورځ خلک جمع کونکی) زه نبي توبه يم، او زه نبي رحمت يم لکه چي په قرآن کريم کي دي: (وما ارسلناك الا رحمة للعالمين) مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۱۸۲۸، رقم: ۱۲۶- ۲۳۵۵.

**د لغاتو حل**: المقفي: اى المتبع (پيرو)

**تشريح**: د توبې نبي، يا خو په دې اعتبار يې وفرمايل چي خلقت د رسول الله ﷺ په لاس توبه وکړه او د رسول الله ﷺ مخکي د تېر ژوند اعمال که هغه کفر او شرک وي يا ګناه او معصيت

شخه د بېزارۍ پوخ عهد کولو سره د دين اسلام د کاملي تابعدارۍ اقرار يې وکړ يا دا چي رسول الله ﷺ به توبه او استغفار ډېر کوی او رجوع الی الله د رسول الله ﷺ د ژوند مبارک بنيادي محور وو او دا د رسول الله ﷺ د ذات مبارک فيض وو چي د رسول الله ﷺ د امت خلک که په پاخه عهد او يقين سره په ژبه توبه وباسي نو الله ﷻ د هغوئ زباني توبه قبلوي، حال دا چي د تېرو امتو خلک به تر هغه وخته پوري د معافي وړ نه ګرځېدل تر څو چي د هغوئ د قصور او جرم سزا په قتل يا بل صورت کي هغوئ ته ورنه کړل سوه ځکه د رسول الله ﷺ يو نوم نبي التوبة هم سو.

نبي الرحمة يعني د رحمت نبي، دا د قرآن کريم شخه اخيستل سوی دی لکه څرنګه چي الله ﷻ فرمايي: (وما ارسلناک الا رحمة للعالمين)، يعني موږ تاسو د ټول عالم لپاره رحمت رالېږلي ياست.

## رسول الله ﷺ او د کافرانو ښکنځل

﴿۵۵۳۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا تَعْجَبُونَ كَيْفَ يَصْرِفُ اللّٰهُ عَنِّي شَتْمَ قُرَيْشٍ وَلَعْنَهُمْ يَشْتِمُونَ مُذَمَّمًا وَيَلْعَنُونَ مُذَمَّمًا وَأَنَا مُحَمَّدٌ. رواه البخاري.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه شخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا تاسو پر دې تعجب نه کوئ چي الله تعالی ما څرنګه د قريشو د ښکنځلو او لعنتونو شخه ساتي هغوئ مذمم ته ښکنځل کوي او پر مذمم لعنت وايي او زه محمد يم (قريشو مشرکينو د رسول الله ﷺ د نامه په مقابله کي مذمم نوم ايښی وو او هغوئ به مذمم ته ښکنځل کول په دې وجه هغه ښکنځل پر محمد ﷺ نه بلکه پر مذمم پرېوتل). بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۵۵۴، رقم: ۳۵۳۳.

**تشريح**: مذمم د معنی په اعتبار د محمد ضد دی يعني هغه سړی چي د هغه بدوينه سوې وي، دغه لفظ د مکې د قريشو د بغض او عناد مظهر وو، هغه بدبختو به رسول الله ﷺ ته د محمد پر ځای مذمم ويل، او د دغه نامه په اخيستلو سره به يې د رسول الله ﷺ په اړه بدوينه کول، رسول الله ﷺ به خپلو صحابه کرامو ته په ډاډ ورکولو سره وفرمايل چي د مکې قريشو کومه بدوينه کوي او د بدويني غشي راغورځوي پر هغه باندي د خفه کېدو ضرورت نسته، هغوئ بدبخته

خو مذمم خپله نبنه جوړوي او پر مذمم باندي لعن او طعن کوي او زه مذمم نه يم بلکه محمد يم ، دا خو د الله جَلَّ جَلَالُهُ فضل دی چي هغه زما نوم محمد چي د ذات مظهر دی ددغه حاسدانو د ښکنځلو او بدويلو څخه بند کړی دی .

## د رسول الله ﷺ د مخ مبارک، وېښته مبارک او د نبوت د مهر ذکر

﴿۵۵۳۱﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ

د حضرت جابر بن سمره رضی الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ

شَمِطَ مُقَدَّمُ رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ وَكَانَ إِذَا ادَّهَنَ لَمْ يَتَبَيَّنْ وَإِذَا شَعِثَ رَأْسُهُ تَبَيَّنَ

د سر او ږيري مبارکي د مخکي برخي څه وريښتان سپين سوي وه ، رسول الله ﷺ چي به پر هغه وريښتانو باندي تيل ولګول نو هغه سپين والی به نه معلوميدی او کله چي به د رسول الله ﷺ. وريښتان تار په تار وه نو سپين وريښتان به پکښي معلوميدل

وَكَانَ كَثِيرَ شَعْرِ اللِّحْيَةِ فَقَالَ رَجُلٌ وَجْهُهُ مِثْلُ السَّيْفِ قَالَ لَا بَلْ كَانَ

او د رسول الله ﷺ د ږيري وريښتان ډېر وه ، جابر رضی الله عنه چي دا بيان وکړ نو يو سړي وويل د رسول الله ﷺ مخ مبارک د توري په ډول وو (يعني په ځلا کي) مګر ددې تشبيه څخه دا هم معلوميده

مِثْلَ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ وَكَانَ مُسْتَدِيرًا وَرَأَيْتُ الْخَاتَمَ عِنْدَ كَتِفِهِ مِثْلَ بَيْضَةِ الْحَمَامَةِ يُشْبِهُ جَسَدَهُ. رواه مسلم.

چي د رسول الله ﷺ مخ مبارک اوږد وو په دې وجه جابر رضی الله عنه وويل بلکه د رسول الله ﷺ مخ مبارک دلمر او سپوږمۍ په ډول وو ، او د رسول الله ﷺ مبارک مخ غونډ وو او ما د رسول الله ﷺ د نبوت مهر اوږې ته نژدې وليدی چي د کوتري د هګۍ په ډول غونډ وو او د هغه رنګ د رسول الله ﷺ د بدن مبارک په ډول وو . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۱۸۲۳، رقم: ۱۰۹- ۲۳۴۴.

**د لغاتو حل**: شمط : شاب (زلمی). يتبين: ای ظهر (ښکاره سو)

**تشريح**: د تېلو په لګولو سره وېښتان موښلي ځکه د رسول الله ﷺ هغه سپين وېښتان چي په شمېر کي ډېر کم وه په تېلو لګېدلو وېښتانو کي بۀ نه معلومېدل او کله چي به د رسول الله ﷺ

وېښتان مبارک وچ وه او تېل به پکښې نه وه نو هغه سپين وېښتان به ځلېدل ځکه بېله تېلو وېښتان ښېل ښېل وي او که سپين وېښتان وي نو هغه معلومېږي ، په روايتو کي راغلي دي چي د رسول الله ﷺ په آخري عمر کي هم د سر او ږيري د سپينو وېښتانو شمېر تر شلو زيات نه وو بلکه په يوه روايت کي تر دې هم کم ذکر سوي دي .

په ږيره کي ډېر زيات وېښتان دي، ددې مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ ږيره مبارکه ګڼه وه لکه چي په يوه روايت کي د كث اللحية الفاظ هم دي چي رسول الله ﷺ دګڼې ږيري څښتن وو ، په دې اړه يوه واضحه خبره ثابته نه ده ، د صحابه کرامو او نورو بزرګانو د ږيري په اړه څرګند روايتونه منقول دي، د حضرت علي ﷺ ږيره دومره اوږده وه چي د هغه ټوله سينه به تر اوږو پوري پټه وه او د حضرت ابن عمرو ﷺ په اړه منقول دي چي هغه تر موټ زياته ږيره نه پرېښودل، د حضرت شيخ عبدالقادر جيلاني ﷫ په اړه ليکل سوي دي چي د هغه ږيره ډېره اوږده او پلنه وه، په هر حال د ږيري تر موټ کمول روا نه دي مګر د موټ څخه د زياتي ږيري په اړه مختلف روايتونه او آثار منقول دي .

بلکه د لمر او سپوږمۍ په ډول وو ، هغه سړي چي د رسول الله ﷺ مخ مبارک ته د توري سره مشابهت ورکړ نو ددې څخه يو ګمان دا هم پيدا کيدای سو چي د رسول الله ﷺ مخ مبارک اوږد وو چي هغه ته بيضوي يا کتابي مخ ويل کيږي، نو حضرت جابر ﷺ څرګنده کړل چي د رسول الله ﷺ مخ مبارک اوږد نه وو بلکه ګردی وو ، څرګنده دي وي چي دلته په حديث کي د مستدير لفظ راغلی دی او يا د لمر او سپوږمۍ يادونه راغلې ده نو د هغه څخه دا وهم پيدا کېدل نه دي پکار چي د رسول الله ﷺ مخ مبارک د لمر او سپوږمۍ په ډول بالکل ګردی وو ، په يوه حديث کي وضاحت دی : لم يكن بالمكلثم، يعني د رسول الله ﷺ مخ مبارک نه بالکل ګردی وو او نه بالکل اوږد وو بلکه مستدير يعني ګردی معنی اخيستل سوې ده، په يوه روايت کي د بل مثل القمر الفاظ دي يعني بالکل د سپوږمۍ په ډول وو ، په يوه روايت کي دا منقول دي: وكان وجهه قطعة قمر، يعني د رسول الله ﷺ مخ مبارک داسي وو لکه د سپوږمۍ يوه ټوټه، په يوه روايت کي راغلي دي چي د رسول الله ﷺ مخ مبارک داسي ځلانده وو لکه د څورلسمي سپوږمۍ چي ځلانده وي، او په يوه حديث کي دا بيان سوي دي چي کله به رسول الله ﷺ د خوشحالۍ په حالت کي وو نو مخ مبارک به يې د هنداري په ډول وو چي د دېوال عکس به د رسول الله ﷺ په مخ کي ځلېدی، په واهب لدنيه کي ليکلي دي چي ددغه تشبيهاتو تعلق د خلکو د خپلي پوهي سره سم او د رواجي طرز په توګه تشبيه ورکړې ده مګر د رسول الله ﷺ د

جمال یا کمال شیان او د رسول الله ﷺ د حسن او تازګۍ سره هیڅ شی هم مشابه کیدای نه سي.

کسي بحسن و ملاحت بیار مانه رسید ترا درین سخن انکار کارما نه رسد
هزار نقش بر آید زکلک صنع ولي یکي بخوبي نقش ونګار ما نه رسد

ما د رسول الله ﷺ مهر مبارک ولیدی چي اوږو ته نژدې وو، په یو بل روایت کي منقول دي چي مهر مبارک د دواړو اوږو په منځ کي وو، په دواړو روایتو کي تضاد نسته، په اصل کي مهر نبوت چپه اوږې ته نژدې وو، چا دا بیان کړی دی چي چپې اوږې ته نژدې وو او چا دا بیان وکړ چي د دواړو اوږو په منځ کي وو.

د هغه رنګ د رسول الله ﷺ د بدن مبارک په ډول وو، ددې مطلب دادی چي مهر نبوت پر بدن باندي د داغ په ډول نه وو چي هغه د بدن د رنګ څخه بېل معلومېدی بلکه څرنګه چي د رسول الله ﷺ بدن مبارک او د ټولو اندامو رنګ وو همدارنګه مهر نبوت هم وو، د هغه د رنګ او د بدن رنګ هیڅ فرق نه وو.

**د مهر نبوت حقیقت** : مهر نبوت چي د رسول الله ﷺ پر بدن مبارک د زېږېدني د وخت څخه وو او د هغه صورت دا وو چي د رسول الله ﷺ د دواړو اوږو په منځ کي د کوترې د هګۍ په اندازه په بیضوي شکل کي د بدن مبارک څخه لږ پورته سوی وو، دغه خاص پورته والي ته یې خاتم نبوت ویل، د مقدار او رنګ په اړه روایتونه مختلف دي مګر د دغه روایتو په منځ کي مطابقت دادی چي د هغه حجم به کمېدی او زیاتیدی، او د هغه رنګ به هم مختلف کېدی او همدارنګه په دې اړه هم مختلف روایتونه دي چي پر هغه مهر نبوت باندي څه لیکلي وه که یا؟ په ځینو روایتو کي دي چي پر هغه محمد رسول الله، لیکلي وه او په ځینو روایتو کي دي چي پر مهرنبوت باندي دا عبارت وو: وحده لاشریک له توجه حیث کنت فانک منصور، په روایاتو کي دا هم راغلي دي چي په مهر نبوت کي دومره نورانیت او دومره ځلا وه چي سترګو نه سوه ورته کتلای د رسول الله ﷺ ددغه مهر نبوت ذکر په مخکنیو آسماني کتابو، تورات، انجیل وغیره کي موجود وو، او انبیاء علیهم السلام په آخره زمانه کي چي د رسول الله ﷺ د ظهور کوم زیری ورکړنو دا علامه به یې په خاصه توګه ښودل چي د هغه پر ملا به مهر نبوت وي، په حاکم مستدرک کي وهب ابن منبه څخه دا روایت نقل سوی دی چي داسي هیڅ نبي او رسول نه دی تېر سوی چي د هغه پر راسته لاس د نبوت نښه نه وي مګر زموږ د حضرت محمد ﷺ د نبوت نښه د هغه پر ملا مبارکه د دواړو اوږو په منځ کي وه او ددغه نښي حیثیت د مهر په ډول وو، چي یو فرمان د تغیر او تبدیلۍ څخه د خوندي کېدو لپاره په هغه کي ثبت کیږي، څرګنده دي وي چي د

رسول الله ﷺ مهر نبوت ته د ظاهري شيانو لکه د کوتري هګۍ او داسي نورو سره تشبيه ورکول يوازي د خلکو د پوه کولو لپاره دي ، او اصل حقيقت يو داسي عظيم راز او د قدرت نښه ده چي د الله ﷻ څخه ماسوا بل څوک نه په پوهيږي .

﴿۵۵۳۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَرْجِسَ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن سرجس ﵁ څخه روايت دی چي ما نبي کريم ﷺ وليدی

وَأَكَلْتُ مَعَهُ خُبْزًا وَلَحْمًا أَوْ قَالَ ثَرِيدًا ثُمَّ دُرْتُ خَلْفَهُ فَنَظَرْتُ إِلَى خَاتَمِ

او ډوډۍ او غوښه مي ورسره وخوړل ، يا ما ثريد (ښوروا) ورسره وخوړل ، بيا زه د رسول الله ﷺ د شا خوا ته راغلم او مهر نبوت مي وليدی

النُّبُوَّةِ بَيْنَ كَتِفَيْهِ عِنْدَ نَاغِضِ كَتِفِهِ الْيُسْرَى جُمْعًا عَلَيْهِ خِيلَانٌ كَأَمْثَالِ الثَّآلِيلِ. رواه مسلم.

چي د دواړو اوږو په منځ کي د چپه وږي نرم هډوکي سره د موټ په ډول وو پر هغه د زخو په ډول خالونه وه. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۸۲۳، رقم: ۱۱۲- ۲۳۴۶.

**د لغاتو حل**: ناغض: اعلى الكتف (د اوږي لوړ). خيلان: جمع خال وهو الشامة في الجسد . (خال)

## پر کوچنيانو شفقت

﴿۵۵۳۳﴾: وَعَنْ أُمِّ خَالِدٍ بِنْتِ خَالِدِ بْنِ سَعِيدٍ قَالَتْ أُتِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ام خالد بنت خالد بن سعيد (رض) څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ ته

وَسَلَّمَ بِثياب فيها خميصة سوداء صغيرة فَقَالَ ائْتُونِي بِأُمِّ خَالِدٍ فَأُتِيَ بِهَا

جامې راوړل سوې چي په هغه کي يو کوچنی تور کمبل هم وو ، رسول الله ﷺ وفرمايل : ام خالد ما ته راولئ ، نو ام خالد چي ماشومه وه په غيږ کي راوستل سوه ،

تُحْمَلُ فَأَخَذَ الْخَمِيصَةَ بِيَدِهِ فَأَلْبَسَهَا قَالَ أَبْلِي وَأَخْلِقِي ثُمَّ أَبْلِي وَأَخْلِقِي

رسول الله ﷺ هغه كمبل را پورته كړه او په خپل لاس مبارك يې ام خالد ته واغوستل، بيا يې وفرمايل: ته دا زوړ كړې او بيا يې زوړ كړې (يعني هر كله چې به رسول الله ﷺ نوې جامه اغوستل يا بل چا ته به يې ور اغوستل نو دا دعاء به يې ورته كول ددې دعاء مطلب دا دى چې ډير ژوندى اوسې)،

وَكَانَ فِيهَا عَلَمٌ أَخْضَرُ أَوْ أَصْفَرُ فقَالَ يَا أُمَّ خَالِدٍ هَذَا سِنَاهُ وهي بِالْحَبَشِيَّةِ

او په دغه كمبل كې شين يا ژړ پلو وو، رسول الله ﷺ وفرمايل: ام خالد دا ډيره ښه جامه ده،

حَسَنة قَالَتْ فَذَهَبْتُ أَلْعَبُ بِخَاتَمِ النُّبُوَّةِ فَزَبَرَنِي أَبِي فقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهَا. رواه البخاري.

ام خالد وايي بيا زه د رسول الله ﷺ د شا خوا ته ورغلم او مهر نبوت سره مې لوبې كولې، زما پلار منعه كړم رسول الله ﷺ ورته وفرمايل دا پريږده. بخاري.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٨٣، رقم: ٣٠٧١.

**د لغاتو حل:** سناه: اى حسن (ښكلا). فزبرني: اى صاح على وزجرني ونهاني (منعه يې كړم)

## د رسول الله ﷺ حليه مباركه

﴿۵۵۳۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ بِالطَّوِيلِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ نه خو د اعتدال د حد څخه اوږد وو

الْبَائِنِ وَلَا بِالْقَصِيرِ وَ ليس بِالْأَبْيَضِ الْأَمْهَقِ وَلَا بِالْآدَمِ وَلَيْسَ بِالْجَعْدِ الْقَطَطِ

او نه لنډ قدى او نه بيخي سپين رنګى وو او نه بيخي غنم رنګى، او د رسول الله ﷺ د سر

وَلَا بِالسَّبْطِ بَعَثَهُ اللهُ عَلَى رَأْسِ أَرْبَعِينَ سَنَةً فَأَقَامَ بِمَكَّةَ عَشْرَ سِنِينَ وَبِالْمَدِينَةِ

مبارك ويښتان نه ډېر تاو تاو وه او نه بالكل سيده وه، الله تعالى رسول الله ﷺ د څلويښتم كال په سر كې مبعوث كړ، رسول الله ﷺ لس كاله په مكه كې وو

عَشْرَ سِنِينَ وَتَوَفَّاهُ اللهُ عَلَى رَأْسِ سِتِّينَ سَنَةً وَلَيْسَ فِي رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ عِشْرُونَ

او لس کاله په مدينه کي، او الله جَلَّ‌جَلَالُهُ رسول الله ﷺ د شپيتو کالو په عمر کي وفات کړ، د رسول الله ﷺ په سر او ږيره مبارکه کي يوازي شل سپين ويښتان وه،

شَعَرَةً بَيْضَاءَ، وفي رواية يَصِفُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ رَبْعَةً مِنَ

او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ خپل په قوم کي ميانه قد وو نه ډير اوږد نه

الْقَوْمِ لَيْسَ بِالطَّوِيلِ وَلَا بِالْقَصِيرِ أَزْهَرَ اللَّوْنِ وقال كان شعر رسول الله ﷺ

لنډ، رنګ يې صفا او ځلانده وو او د رسول الله ﷺ د سر مبارک ويښتان

الى انصاف اذنيه وفي رواية بين اذنيه وعاتقه. متفق عليه وفي رواية للبخاري

د غوږونو تر نيمايي پوري وه، او په يوه روايت کي راځي چي د غوږونو او اوږو تر منځ پوري وه، بخاري او مسلم، د بخاري په يو بل روايت کي دي چي

قال كان ضخم الراس والقدمين لم اربعده ولا قبله مثله و كان بسط الكفين وفي اخرى قال كان شثن القدمين والكفين.

انس رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ وايي د رسول الله ﷺ سر مبارک غټ وو او دواړه قدمونه يې هم غټ وه او ما د رسول الله ﷺ څخه نه مخکي او نه وروسته هيڅوک د هغه په ډول ليدلی دی او د رسول الله ﷺ ورغوي پراخه وي، او د بخاري په يوه روايت کي راځي چي انس رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ وويل د رسول الله ﷺ دواړه قدمونه او ورغوي مبارک غوښين وه.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٦٤، رقم: ٣٥٤٨، ومسلم ۴\١٨٢۴، رقم: ١١٣- ٢٣۴٧.

**د لغاتو حل:** الامهق: الذي بياضه خالص (خالص سپين) سبط: وهو الشعر المنبسط المسترسل. شثن: اى غليظ الاطراف.

**تشريح:** قد يې نه ډېر اوږد وو او نه لنډ وو، مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ قد ميانه او اوږدوالي ته نژدې وو چي زموږ په محاوره کي ورته ميانه قده وايي، په ځينو رواياتو کي دا راغلي دي چي رسول الله ﷺ به په يوه مجلس کي ودرېدی نو تر ټولو به لوړ معلومېدی، که څه هم په هغه مجلس کي به جګ سړي وو، نو ددې مطلب دا نه دی چي د رسول الله ﷺ قد ډېر زيات اوږد وو بلکه ددې مقصد د رسول الله ﷺ اعجازي حيثيت بيانول دي چي الله جَلَّ‌جَلَالُهُ د رسول الله

ﷺ ذات مبارک ته کوم عظمت او رفعت ورکړی وو هغه په هر وخت د رسول الله ﷺ قد ته هم ورکول کېدی، تر دې که چیري رسول الله ﷺ به د جګو خلکو په منځ کي ودرېدی نو الله ﷻ به د رسول الله ﷻ وجود تر ټولو زیات څرګندوی .

د رسول الله ﷺ رنګ نه بالکل سپین وو...... الخ: ددې مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ رنګ نه بالکل د چونې په ډول سپین وو چي په هغه کي د سوروالي ځلا نه وه او نه ډېر غنم رنګه وو ، بلکه داسي غنم رنګه وو چي هغه ته سور ویل کیږي، همدارنګه د رسول الله ﷺ د سر مبارک وېښتان نه دومره پیچلي وه لکه څرنګه چي د افریقایي او حبشي خلکو وي او نه بالکل سیده وه بلکه د دغه دواړو په منځ کي وه .

په مدینه کي د رسول الله ﷺ د قیام وخت لس کاله خو په اتفاق سره ثابت دی او په دې کي اختلافي روایت نسته مګر په رسالت باندي د فائز کېدو څخه وروسته په مکه کي د قیام د وخت په اړه اختلافي اقوال دی، په تحقیقي توګه چي کوم قول زیات صحیح منل سوی دی هغه ددیارلسو کالو وخت دی، په دې اعتبار د رسول الله ﷺ عمر مبارک درو شپیته کاله کیږي، په دغه روایت کي چي شپیته کاله ویل سوي دي نو ددې توجیه داده چي راوي په دغه روایت کي د کسور ذکر ته اهمیت نه ورکولو سره دیارلس کاله ته لس کاله وویل او درو شپیته کاله ته یې شپیته کاله وویل، ځکه چي په هغه زمانه کي په عامه توګه دا رواج وو چي د اعدادو بیانولو پر وخت به یې د کسور ذکر کول ضروري نه ګڼل .

د رسول الله ﷺ د سر مبارک د وېښتانو په اړه مختلف روایتونه دي، دوه روایتونه خو دلته نقل سول، په یوه روایت کي د دواړو غوږو تر نرمې پوري الفاظ دي او په بل روایت کي د اوږو نژدې یادونه ده، د روایتونو ددغه اختلاف سبب په اصل کي دادی چي کله به رسول الله ﷺ وېښتان په تیلو غوړولو او ژمونځولو سره سم کړل نو هغه وخت به وېښتان اوږده معلومېدل او کله چي به یې وېښتان نه غوړول نو هغه وخت به کوچني معلومېدل، همدارنګه په مجمع البحار کي لیکلي دي چي کله به د وېښتانو د سمولو ډېر وخت تېر سو نو په قدرتي توګه به وېښتان اوږده معلومېدل او کله چي به یې سم کړل نو دوېښتانو اوږدوالی به کمېدی، کوم چا چي په کوم حالت کي د رسول الله ﷺ وېښتان ولېدل د هغه مطابق روایت یې بیان کړ ، د مجمع البحار ددغه روایت څخه دا معلومه سول چي رسول الله ﷺ به کله نا کله خپل وېښتان پرې کول او کوم چي د وېښتانو د خریلو تعلق دی نو ددې ثبوت په هیڅ روایت کي نه تر لاسه کیږي، مګر یوازي د حج او عمرې په وخت کي د رسول الله ﷺ د سر خریل ثابت دي .

سر مبارک يې غټ او پښې غوښني وې، د پښو غوښين کېدل د شجاعت او ثابت قدمی نښه ده. او د سر غټېدل د سرداری، عظمت او پوهي نښه ده ځکه په عربو کي د غټ سر سړي ته د عزت په سترگه کتل کېدل، ددې پر خلاف د کوچني سر کېدل د عيب او بې پوهي نښه گڼل کيدل همدارنگه د رسول الله ﷺ دواړي تلي هم ډيري غوښني وي او دا هم د قوت او ميړاني نښه گڼل کيږي.

﴿۵۵۳۵﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ كَانَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرْبُوعًا بَعِيدَ

د حضرت براء ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ميانه قده وو، د دواړو اوږو په منځ کي يې

مَا بَيْنَ الْمَنْكِبَيْنِ لَهُ شَعَرٌ يَبْلُغُ شَحْمَةَ أُذُنِهِ رَأَيْتُهُ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ لَمْ أَرَ شَيْئًا

پراختيا وه ، د سر مبارک وريښتان يې د غوږونو د نرمی پوري وه ،ما رسول الله ﷺ په سره جامه کي ليدلی وو (يعني په جامو کي يې سرې ليکي وې) ما د رسول الله ﷺ څخه زيات

قَطُّ أَحْسَنَ مِنْهُ. متفق عليه وفي رواية لمسلم قال مَا رَأَيْتُ مِنْ ذِي لِمَّةٍ

ښکلی هيڅوک نه دی ليدلی . بخاري او مسلم.او د مسلم په يوه روايت کي دي چي براء ﷺ

أَحْسَنَ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَعْرُهُ يَضْرِبُ مَنْكِبَيْهِ بَعِيدَ مَا بَيْنَ الْمَنْكِبَيْنِ لَيْسَ بِالطَّوِيلِ وَلَا بِالْقَصِيرِ.

وويل ما هيڅ وريښتانو والا سړی په سره جامه کي د رسول الله ﷺ څخه غوره نه دی ليدلی او وريښتان يې تر اوږو مبارکو پوري وه دواړه وږې يې پراخي وي ، رسول الله ﷺ نه ډير اوږد او نه ډير لنډ وو

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٦٥، رقم: ٣٥٥١، ومسلم ١٤\١٨١٨، رقم: ٩١- ٢٣٣٩.

**تشريح**: محدثينو د تحقيق وروسته ليکلي دي چي د سرو جامو څخه مراد دادی چي د رسول الله ﷺ پر بدن مبارک چي د کومي جامې لونگ او څادر وو، په هغه کي سرې ليکي وې، همدارنگه په کومو حديثو کي چي د شنې جامې ذکر دی د هغه څخه هم دا مراد دی چي هغه جامه دداسي ټوکر وه چي په هغه کي شنې ليکي وې.

په عربي کي د انسان د سر دوښتانو لپاره په عامه توگه دري الفاظ استعماليږي يو جمه،

ددې څخه هغه وېښتان مراد دي چې د غوږو د نرميو څخه دومره لاندي وي چې اوږو ته رسيږي او كله ددغه لفظ اطلاق پر مطلق وېښتانو باندي كيږي كه هغه كوچني وي او كه لوی، دوهم لفظ د لمه دی ، دغه لفظ د وېښتانو د هغه زلفو لپاره استعماليږي چې د غوږو د نرميو څخه زيات تېر وي مگر اوږو ته نه رسيږي ، او دريم لفظ د وفره دی چې د غوږو تر نرميو پوري وي او د زړېدلو وېښتانو په معنی كي هم استعماليږي .

﴿۵۵۳۶﴾: وَعَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

حضرت سماک بن حرب رحمه الله د حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه څخه روايت كوي چې رسول الله ﷺ

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَلِيعَ الْفَمِ أَشْكَلَ الْعَيْنِ مَنْهُوسَ الْعَقِبَيْنِ قِيلَ لِسِمَاكٍ مَا

غټ خولی وو (په عربو كي د نارينه لپاره غټه خوله د تعريف وړ ده) او د سترگو مباركو په سپينو كي يې سرخي وه ، پوندي يې كوچنۍ او كم غوښي وې، د سماک څخه پوښتنه وسول

ضَلِيعُ الْفَمِ قَالَ عَظِيمُ الْفَمِ قبل مَا أَشْكَلُ الْعَيْنِ قَالَ طَوِيلُ شَقِّ الْعَيْنِ قبل مَا مَنْهُوسُ الْعَقِبِ قَالَ قَلِيلُ لَحْمِ الْعَقِبِ. رواه مسلم.

چې ضليع الفم څه ته وايي ده وويل غټه خوله لرونكي ، ورته وويل سول چې اشكل العين څه ته وايي ده وويل چې د سترگو خانې يې اوږدې وې ، ورته وويل سول چې منهوش العقبين څه ته وايي، ده وويل چې د پوندۍ غوښي يې لږ وي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۱۸۲۰، رقم: ۹۷- ۲۳۳۹.

**د لغاتو حل**: ضليع الفم: اي وسيعه (پراخه خوله). منهوش: اي مفرقهما.

**تشريح**: د پراخي خولې څخه مراد دادی چې د رسول الله ﷺ د خولې كاسه لويه وه او دا شی په عربو كي د نارينو لپاره د تعريف وړ گڼل كيږي او كله چې د يو چا خوله كوچنۍ وي نو دا عيب گڼل كيږي او ځينو حضراتو د پراخي خولې څخه فصاحت او بلاغت مراد اخيستی دی .

د سترگو په سپينوالي كي سوروالی، ددې څخه مراد دادی چې د رسول الله ﷺ په سترگو مباركو كي سرې ليكي زياتي څرگنده وي ، څرگنده دي وي چې حضرت سماک رحمة الله عليه چې د اشكل العين كومه معنی بيان كړې ده چې د سترگو لوی كېدل نو دا د هغه سهوه ده اصل معنی هغه ده چې په ترجمه كي ذكر سوې ده ، د لغتو ټولو امامانو دغه معنی ليكلې ده .

﴿۵۵۳۷﴾: وَعَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ أَبْيَضَ مَلِيحًا مُقَصَّدًا. رواه مسلم.

د حضرت ابو طفيل رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ وليدی چي سپين مالګين رنګی وو او په ټولو اعضاوو او اوصافو کي تناسب وو. مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم: ۴\۱۹۲۰، رقم: ۹۹- ۲۳۴۰،

**د لغاتو حل:** مقصدا: ای متوسطا معتدلا (درمیانه)

## رسول الله ﷺ خضاب (تکريزي) نه دي استعمال کړي

﴿۵۵۳۸﴾: وَعَنْ ثَابِتٍ قَالَ سُئِلَ أَنَسٌ عَنْ خِضَابِ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ثابت رضي الله عنه څخه روايت دی چي د حضرت انس رضي الله عنه څخه د رسول الله ﷺ د خضابو په اړه

وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّهُ لَمْ يَبْلُغْ مَا يَخْضِبُ لَوْ شِئْتُ أَنْ أَعُدَّ شَمَطَاتِهِ فِي لِحْيَتِهِ. وفي

پوښتنه وسول نو هغه وويل: رسول الله ﷺ دومره عمر ته نه وو رسيدلی چي خضاب يې لګولی وای که ما غوښتلي وای چي د رسول الله ﷺ د ږيري مبارکي سپين وريښتان وشميرم نو شمير کړي به مي وای، او په يوه

رواية لَوْ شِئْتُ أَنْ أَعُدَّ شَمَطَاتٍ كُنَّ فِي رَأْسِهِ فَعَلْتُ. متفق عليه وفي رواية لمسلم إِنَّمَا كَانَ الْبَيَاضُ فِي عَنْفَقَتِهِ وَفِي الصُّدْغَيْنِ وَفِي الرَّأْسِ نَبْذٌ.

روايت کي داسي دي که ما هغه سپين وريښتان شميرلای کوم چي د رسول الله ﷺ په سر مبارک کي وه نو ما به شميرلي وای. بخاري او مسلم.. او د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي سپين وريښتان د رسول الله ﷺ د ږيري مبارکي په لاندينۍ برخه کي او څه په سر مبارک کي وه.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۵۱، رقم: ۵۸۹۵. ومسلم ۴\۱۸۲۱، رقم: ۱۰۳- ۲۳۴۱.

**تشريح:** د رسول الله ﷺ عمر مبارک دومره چيري وو....الخ: ددې څخه مراد دادی چي د رسول الله ﷺ وصال په کوم عمر کي وسو هغه داسي عمر نه وو چي په هغه کي پر سړي باندي سپين ږيرتوب خپور سي، دغه عمر ته د سپين ږيرتوب پيل ويل کيږي، څرګنده ده چي په دغه

عمر کي د رسول الله ﷺ وېښتان مبارک دومره سپین سوي نه وه چي د خضاب (نکریزو) ضرورت ورته پېښ سوی وي؛ کوم لږ وېښتان چي سپین سوي وه د هغو مقدار دومره کم وو چي د لیري څخه نه معلومېدل.

## د رسول الله ﷺ بدن مبارک

﴿۵۵۳۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَزْهَرَ اللَّوْنِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ رنګ ځلانده وو

كَأَنَّ عَرَقَهُ اللُّؤْلُؤُ إِذَا مَشَى تَكَفَّأَ وَلَا مَسِسْتُ دِيبَاجَةً وَلَا حَرِيرًا أَلْيَنَ مِنْ

او د رسول الله ﷺ خوله (عرق) د ملغلرو په شان وه، رسول الله ﷺ چي به پر لاره تلی نو د مخ په لور به کښته وو او ما دیباج او د ریښم هیڅ جامه

كَفِّ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا شَمِمْتُ مِسْكًا وَلَا عَنْبَرَةً أَطْيَبَ مِنْ

رَائِحَةِ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. متفق عليه.

د رسول الله ﷺ د ورغوي څخه زیات نرمه نه ده لیدلې او ما هیڅ مشک او عنبر داسي نه دي بوی کړي چي په هغه کي د نبي کریم ﷺ د بدن مبارک څخه زیاته خوشبويي وي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٦٦، رقم: ٣٥٦١، ومسلم ٤\١٨١٥، رقم: ٨٢- ٢٣٣٠.

**د لغاتو حل**: تكفا: اى تمايل الى قدام. (مخته خوا ته میل)

**تشريح**: مخته په کښته کېدو سره تلل، ددې مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ په تګ کي یو خاص ډول وقار وو چي په هغه کي خاکساري شامله وه او دا تګ داسي وو لکه یو سړی چي د لوړي څخه راکښته کېږي، یا ددې جملې دا معنی ده چي رسول الله ﷺ به کله تګ کوی نو داسي به یې قدم پورته کوی لکه یو بهادر او قوي سړی چي قدم پورته کوي، داسي نه وه چي د تللو په وخت کي به د رسول الله ﷺ په تګ کي ناتواني محسوس کېدل یا پر مځکه باندي د پښو په کشولو سره به تلی.

## د رسول الله ﷺ خوله مبارکه

﴿۵۵۴۰﴾: وَعَنْ أُمِّ سُلَيْمٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَاتيها فيقيل

د حضرت ام سليم (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به زموږ کره تشريف راوړی او غرمه

عندها فتبسط نطعا فيقيل عليه وكان كثير العرق فكان تجمع عرقه

به يې آرام کوی ، هغې به د پوست بستره ورته اواره کړه او رسول الله ﷺ به پر هغې قيلوله کول او پر رسول الله ﷺ به خوله زياته راتلل هغې به يې خوله يو ځای کول

فتجعله في الطيب فقال النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أُمَّ سُلَيْمٍ ما هذا

او په خپلو عطرو کي به يې يو ځای کول ، يوه ورځ رسول الله ﷺ هغه په جمع کولو وليدل نو پوښتنه يې ځيني وکړه اې ام سليم دا څه دي ؟

قالت عرقك نجعله في طيبنا وهو من اطيب الطيب وفي رواية قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ نَرْجُو بَرَكَتَهُ لِصِبْيَانِنَا قَالَ أَصَبْتِ. متفق عليه.

هغې ورته وويل ستاسو دا خوله موږ په خپله خوشبويي ګډوو او دا خوله غوره خوشبويي ده ، او په يوه روايت کي داسي دي چي ام سليم وويل اې دالله رسوله ! موږ دا خوله ماشومانو لپاره دبرکت باعث ګڼو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل تا رښتيا وويل او ښه دي وويل . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\ ٧٠، رقم: ٦٢٨١، ومسلم ١٤\ ١٨١٥، رقم: ٨٣- ٢٣٣١.

**د لغاتو حل**: نطعا: كعنب بساط من الاديم. (د پوست بستره)

**تشريح**: بي بي ام سليم ﷺ د حضرت انس ﷺ مور ده چي د رسول الله ﷺ خاص خادم وو، نوموړې ډېره هوښياره او فاضله ښځه وه، الله ﷻ خپل، د خپل دين او د خپل رسول ﷺ د ميني زياته برخه هغې ته ورکړې وه ، د يو رضاعي يا نسبي قرابت په وجه د رسول الله ﷺ د محرم ښځو څخه وه ځکه رسول الله ﷺ د غرمې په وخت کي کله ناکله د هغې په کور کي د غرمې خوب کوی

**د ماشومانو سره مينه**

﴿۵۵۴۱﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر بن سمره ﷺ څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ سره

صَلَاةَ الْأُولَى ثُمَّ خَرَجَ إِلَى أَهْلِهِ وَخَرَجْتُ مَعَهُ فَاسْتَقْبَلَهُ وِلْدَانٌ فَجَعَلَ

د ماپښين لمونځ وکړ، بيا رسول الله ﷺ خپل کور ته د تلو لپاره د مسجد څخه ووتې او زه هم د مسجد څخه راووتم، د رسول الله ﷺ مخته يو څو هلکان راغلل، رسول الله ﷺ

يَمْسَحُ خَدَّيْ أَحَدِهِمْ وَاحِدًا وَاحِدًا قَالَ وَأَمَّا أَنَا فَمَسَحَ خَدِّي قَالَ فَوَجَدْتُ

د هر يوه پر مخ لاس مبارک را تير کړ زما پر مخ يې هم لاس راتير کړ ما د رسول الله ﷺ مبارک

لِيَدِهِ بَرْدًا أَوْ رِيحًا كَأَنَّمَا أَخْرَجَهَا مِنْ جُؤْنَةِ عَطَّارٍ. رواه مسلم وذكر حديث جابر سموا باسمي في باب الاسامي وحديث السائب بن يزيد نظرت الى خاتم النبوة في باب احكام المياه. رواه مسلم.

لاس يخ او خوشبودار محسوس کړي ما فکر وکړی چي رسول الله ﷺ اوس د عطرو د دبلي څخه لاس را ايستلی دی. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۱۹۱۴، رقم: ۸۰- ۲۳۲۹.

**د لغاتو حل**: بردا: اي راحة. جؤنة: اي سلته او حقنة. (دبلی، کوتی)

**تشريح**: (و اما انا فمسح خدي) او بيا يې زما پر باړخوګانو لاس راتېر کړ، په دغه جمله کي د خدي لفظ د دال په زېر او د ياء په جزم سره د مفرد په صيغه دی او په ځينو نسخو کي دغه لفظ د دال په زېر او د يا په تشديد سره د تثنيه لفظ دی لکه څرنګه چي د ترجمې څخه څرګنده سول، مګر ملا علي قاري رحمة الله عليه دا ليکلي دي چي په اکثرو نسخو کي دغه لفظ د تثنيې په صيغه دی او په يوه نسخه کي د مفرد په صيغه دی چي د هغه څخه جنس مراد دی.

دلته په حديث کي د رسول الله ﷺ د بدن مبارک د خوشبويي يادونه ده چي د هغه څخه دا څرګنديږي چي د رسول الله ﷺ بدن مبارک خوشبويي لرونکی وو، کله چي به رسول الله ﷺ خوشبويي استعمال نه کړل نو بيا به هم د رسول الله ﷺ د بدن مبارک څخه خوشبويي راتلل مګر دديې سره رسول الله ﷺ به خوشبويي هم استعمالول چي د ملائکو سره د يو ځای کېدو، د وحي ترلاسه کولو او د مسلمانانو سره د ناستي په وخت کي زيات معطر وي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

## د رسول الله ﷺ قد مبارک

﴿۵۵۴۲﴾: عَنْ عَلِيِّ بن ابي طالب قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت علي ابن ابي طالب رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ

ليس بِالطَّوِيلِ وَلَا بِالْقَصِيرِ ضَخْمَ الرَّأْسِ وَاللِّحْيَةِ شَثْنَ الْكَفَّيْنِ وَالْقَدَمَيْنِ

نه جګ وو او نه ټيټ، سر مبارک يې غټ وو او ږيره مبارکه يې ګڼه وه، ورغوي او پښې مبارکي يې غوښني وې،

مشربا حمرة ضَخْمَ الْكَرَادِيسِ طَوِيلَ الْمَسْرُبَةِ إِذَا مَشَى تَكَفَّأَ تَكَفُّؤًا كَأَنَّمَا

رنګ مبارک يې سور او سپين وو، د هډوکو بندونه يې غټ وه د سينې څخه تر نامه پوري د

انْحَطَّ مِنْ صَبَبٍ لَمْ أَرَ قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ مِثْلَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح.

وريښتانو يوه اوږده ليکه وه، کله چي به رسول الله ﷺ تلی نو د مخ طرف ته به يې ميلان (د زړه غوښتنه) وو لکه د لوړي څخه چي څوک مخ پر کښته ځي، ما د رسول الله ﷺ په شان بل څوک نه مخکي او نه وروسته ليدلی دی، پر رسول الله ﷺ دي د الله رحمتونه او سلامونه وي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۵۸، رقم: ۳۶۳۷.

**د لغاتو حل**: المسربة: الشعر المستدق الذي ياخذ من الصدر الى السرة. (د سينې څخه تر نامه وېښتان)

**تشريح**: مخته په کښته کېدو سره به تلی، د دې يو مطلب خو هغه دی چي مخکي تېر سو، او رسول الله ﷺ به د قوي او زړه ور خلګو په ډول تلی، يعني په قوت سره به يې پښې د مخکي څخه پورته کولې او ايښودلې، او ځينو حضراتو دا مطلب بيان کړی دی چي د رسول الله ﷺ په تګ کي کبر او غرور نه وو بلکه د مسکينۍ او خاکسارۍ تګ به يې اختيار وی.

﴿۵۵۴۳﴾: وَعَنْهُ كَانَ إِذَا وَصَفَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمْ يَكُنْ بِالطَّوِيلِ

د حضرت علي بن ابي طالب ﷛ څخه روايت دی چي کله به ده د رسول الله ﷺ وصف بیانوی نو فرمايل به يې: رسول الله ﷺ نه جګ وو

الْمُمَّغِطِ وَلَا بِالْقَصِيرِ الْمُتَرَدِّدِ وَكَانَ رَبْعَةً مِنَ الْقَوْمِ وَلَمْ يَكُنْ بِالْجَعْدِ الْقَطَطِ وَلَا

او نه ټيټ بلکه د متوسط قد خاوند وو په قوم کي، ويښتان مبارک يې نه ګڼ وه او نه بالکل

بِالسَّبِطِ كَانَ جَعْدًا رَجِلًا وَلَمْ يَكُنْ بِالْمُطَهَّمِ وَلَا بِالْمُكَلْثَمِ وَكَانَ فِي الْوَجْهِ تَدْوِيرٌ

سيده بلکه څه ګڼ وه، نه زيات غټ اندامو والا وو نه بالکل نرى او کمزورى، مخ مبارک يې

أَبْيَضُ مُشْرَبٌ أَدْعَجُ الْعَيْنَيْنِ أَهْدَبُ الْأَشْفَارِ جَلِيلُ الْمُشَاشِ وَالْكَتَدِ أَجْرَدُ ذُو

غونډ او سور سپين وو، سترګي مبارکي يې توري وي او بانو ګان يې اوږده وه د هډوکو سرونه يعني بندونه يې غټ وه او اوږي يې غټي وې،

مَسْرُبَةٍ شَثْنُ الْكَفَّيْنِ وَالْقَدَمَيْنِ إِذَا مَشَى تَقَلَّعَ كَأَنَّمَا يَمْشِي فِي صَبَبٍ وَإِذَا الْتَفَتَ

پر بدن مبارک يې ويښتان نه وه يوازي د ويښتانو يو خط وو چي د سينې مبارکي څخه تر نامه پوري تللى وو، لاس او پښې يې غوښين وه د تلو لپاره به يې قدم په قوت سره پورته کوى لکه د لوړي څخه چي کښته ته راتلى او کله چي به يې يو کار ته کتل

الْتَفَتَ مَعًا بَيْنَ كَتِفَيْهِ خَاتَمُ النُّبُوَّةِ وَهُوَ خَاتَمُ النَّبِيِّينَ أَجْوَدُ النَّاسِ صَدْرًا

نو پوره به متوجه کيدى د دواړو اوږو په منځ کي يې د نبوت مهر وو او دى خاتم النبيين وو، په خلکو کي زيات پراخ زړه والا، سخي

وَأَصْدَقُ النَّاسِ لَهْجَةً وَأَلْيَنُهُمْ عَرِيكَةً وَأَكْرَمُهُمْ عِشْرَةً مَنْ رَآهُ بَدِيهَةً هَابَهُ

د ژبي ربښتونى او په ډيرو صفا الفاظو کي به يې خبري کولې، د طبيعت د لحاظ څخه ډير نرم او د قوم د لحاظ څخه ډير شريف او بزرګ وو، چا چي به ناڅاپه وليدى نو پر هغه به هيبت راتلى او

وَمَنْ خَالَطَهُ مَعْرِفَةً أَحَبَّهُ يَقُولُ نَاعِتُهُ لَمْ أَرَ قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ مِثْلَهُ صلى الله عليه

وسلم . رواه الترمذي.

کوم چا چي به ورسره شناخت او محبت ساتی نو رسول الله ﷺ به ورسره محبت کوی ، د رسول الله ﷺ صفتونه بیانونکی حضرت علي رضی الله عنه وايي چي ما د رسول الله ﷺ په شان بل څوک نه مخکي او نه وروسته لیدلی دی، پر رسول الله ﷺ دي د الله جل جلاله رحمتونه وي . ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۵۵۹، رقم: ۳۶۳۸.

**د لغاتو حل**: المطهم: ای الفاحش السمین. المکلثم: المدور وجهه غایة التدیر (گردی مخ). ادعج: ای اسود العینین مع سعتهما (تورسترگی).

**تشریح**: پر بدن مبارک یې وېښتان نه وه...الخ: د دغه جملې څخه په ظاهره دا معلومیږي چي د سینې څخه تر نامه پوري د وېښتانو د یوې لیکي څخه ماسوا د رسول الله ﷺ پر بدن مبارک بل ځای وېښتان نه وه، او د ځینو روایتو څخه دا معلومیږي چي د سینې یا نامه څخه ماسوا هم پر ځینو ځایو باندي لکه مړوند، موټ، پنډۍ او څنګلو باندي وېښتان وه ، نو دا ویل کیږي چي دلته د اجرد لفظ د اشعر په مقابله کي استعمال سوی دی او د اشعر څخه مراد هغه سړی وي چي د هغه پر ټول بدن وېښتان وي او اجرد هغه سړي ته ویل کیږي چي د هغه پر ټول بدن وېښتان نه وي.

.... نو د ټول بدن سره به متوجه کېدی. ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به راسته او چپه خوا ته چا ته کتل یو یوې خوا ته به متوجه کېدی، او په بې پرواهي سره به یې چا ته نه کتل بلکه په پوره توګه سره به هغه ته متوجه کیدی، یا دا مطلب دی چي راسته او چپه خوا ته د متوجه کېدو لپاره د خلکو په ډول یوازي غاړه یې نه ګرځول بلکه د یو همدرد په ډول یې خپل مخ مبارک په ګرځولو سره د ټول بدن په تاوېدو سره هغه ته کتل او د خپلي پوره توجه اظهار یې به یې کوی.

د زړه د سخي څخه مراد دادی چي رسول الله ﷺ به په ځان او مال سره سخاوت کوی چي د هغه یو فطري جذبه او محض د اخلاص تقاضا وه نه د ښوونې او ځان لیدنې لپاره ، یادا چي په زور او جبر به رسول الله ﷺ سخاوت کوی، ملا علي قاري رحمه الله ددې معنی دا لیکلې ده که چیري د اجود لفظ د جورت څخه ماخوذ وګڼل سي نو په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي رسول الله ﷺ به د خپلو ملګرو د ناخوښو خبرو او ناخوښو کړنو څخه نه په تکلیف کېدی ، او که چیري د اجود لفظ د جود څخه ماخوذ وګڼل سي چي د هغه معنی د ورکړي او بخښي ده نو بیا به مطلب دا وي چي رسول الله ﷺ د یو شي په ورکولو کي هیڅ بخل هم نه کوی که هغه مال وو یا

علم او اخلاقي روزنه وي . همدارنګه په ژبه ربښتوني وو، يوه معنی خو يې هغه ده چي د
ترجمې څخه څرګنده ده چي د رسول الله ﷺ څخه زيات ربښتوني او حق ويونکي بل هيڅوک نه
وو او د لفظ لهجة د رعايت څخه يوه معنی دا هم کيدای سي چي د رسول الله ﷺ خبري اتري
ډيري باوقاره او لهجه يې ډېره په زړه پوري او ژبه يې ډېره پاکه وه ، د الفاظو ادا کول به يې ډير
مناسب او د ځای سره سم وه .

چا چي به رسول الله ﷺ په اول وار وليدی..... الخ: ددې مطلب دادی چي کله به يو څوک د
رسول الله ﷺ په ذاتي صفتونو، خصلتونو او اخلاقي طرز خبر نه وو او په اول وار به يې د رسول
الله ﷺ سره ولېدل نو پر هغه به د رسول الله ﷺ د باوقار شخصيت دومره رعب خپور سو چي هغه
به ډېره محسوس کړل مګر کله چي به د رسول الله ﷺ په مجلس کي کښېنستی او د رسول الله ﷺ
د اخلاقو او طبيعت تجربه به يې تر لاسه کړل او د رسول الله ﷺ د صحبت اثر به يې محسوس کړ
نو يو دم به د رسول الله ﷺ د ميني بنديوال سو .

## د رسول الله ﷺ خوشبويي

﴿۵۵۴۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ لَمْ يَسْلُكْ طَرِيْقًا فَيَتْبَعُهُ أَحَدٌ إِلاَّ عَرَفَ أَنَّهُ قَدْ سَلَكَهُ مِنْ طِيْبِ عَرْقِهِ أَوْ قَالَ مِنْ رِيْحِ عَرْقِهِ. رواه الدارمي.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ پر يو لاره تير سو نو دده مبارک
څخه وروسته چي به يو څوک پر هغه لاره تير سو نو هغه ته به معلومه سوه چي رسول الله ﷺ پر
دغه لاره تير سوی دی ، يعني د رسول الله ﷺ د بدن د خولې د خوشبويي څخه يا د رسول الله ﷺ
د خولې د خوشبو داره هواء څخه به هغه معلومه کړه . دارمي

**تخريج**: سنن الدارمي: ۱\۴۵، رقم: ٦٦.

**تشريح**: (او قال): دا د راوي شک دی چي په دغه وخت کي يې د من طيب عرفه الفاظ وويل
او که د من ريح عرقه، په دواړو صورتو کي مفهوم يو دی .

د عرف لغوي معنی د بوی ده که هغه خوشبويي وي يا بدبويي وي، مګر دغه لفظ زيات
وختونه د خوشبويي لپاره استعماليږي، په هر حال د حديث مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به پر
کومه لار تېر سو نو د بدن مبارک يا دخولې په خوشبويي سره به په ټوله لاره کي خوشبويي
پورته کېدل ، څوک چي به د رسول الله ﷺ وروسته پر هغه لار تېر سو نو هغه خاص خوشبويي به

يې محسوس کړل چې رسول الله ﷺ پر دغه لار تېر سوی دی او دغه خوشبويي به د رسول الله ﷺ د ذات مبارک وه نه دا چې د رسول الله ﷺ په جامو يا بدن باندې نوره وهل سوې خوشبويي.

## د رسول الله ﷺ بدن د لمر په ډول وو

﴿۵۵۴۵﴾: وَعَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ مُحَمَّدِ بن عمار بْنِ يَاسِرٍ قَالَ قُلْتُ لِلرَّبِيعِ بِنْتِ مَعُوِّذِ بْنِ عَفْرَاءَ صِفِي لِنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ يَا بُنَيَّ لَوْ رَأَيْتَهُ رَأَيْتَ الشَّمْسَ طَالِعَةً. رواه الدارمي.

د حضرت ابوعبيده بن محمد بن عمار بن ياسر رضي الله عنه څخه روايت دی چې ما بي بي ربيع بنت مسعود بن عفراء ته وويل: ته موږ ته د رسول الله ﷺ صفت بيان کړه، هغې وويل: زويه! که تا رسول الله ﷺ ليدلی وای نو ويلي به دي وای چې لمر راختلی دی، دارمي

**تخريج**: سنن الدارمي ۱\ ۴۴، رقم: ۶۰.

**تشريح**: مطلب دادی چې د رسول الله ﷺ داسي دبدبه او جلال وو او د رسول الله ﷺ وجود مبارک دومره له نوره ډک وو چې رسول الله ﷺ ته کتل لکه ځلانده لمر ته کتل داسي وه.

## د سپوږمۍ څخه غوره

﴿۵۵۴۶﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه څخه روايت دی چې ما رسول الله ﷺ وليدی

فِي لَيْلَةٍ إِضْحِيَانٍ فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِلَى

د سپوږمۍ په شپه کله به مي سپوږمۍ ته کتل او کله به مي رسول الله ﷺ ته کتل، دغه وخت

الْقَمَرِ وَعَلَيْهِ حُلَّةٌ حَمْرَاءُ فَإِذَا هُوَ عِنْدِي أَحْسَنُ مِنَ الْقَمَرِ. رواه الترمذي.

رسول الله ﷺ سره جامه اغوستې وه او ما ته د رسول الله ﷺ حسن او ښکلا تر سپوږمۍ ښکلې معلوميده. ترمذي او دارمي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۰۹، رقم: ۲۸۱۱، والدارمي ۱\ ۴۴، رقم: ۵۷.

**لغاتو حل**: اِضحيان: اي مقمرة من اولها الى اخرها. (سر تر پايه سپوږمۍ)

**تشریح**: د رسول الله ﷺ ښکلا ته د سپوږمۍ څخه زیات ځکه ویل سوي دي چي سپوږمۍ خو د یو خاص نوعیت صرف ظاهري حسن لري حال دا چي د رسول الله ﷺ پر ذات مبارک باندي د ظاهري حسن او ښکلا څخه ماسوا د بې مثاله حسن او ښکلا عکس هم وو ، پاته سوه دا خبره چي حضرت جابر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د ښکلا اظهار د (زما په نزد) په الفاظو سره ولي مقید کړ، نو ددې مقصد دددې څخه ماسوا بل هیڅ نه وو چي هغه د خپل ذاتي جذباتو او میني اظهار وکړ ، په حقیقت کي حضرت جابر رضي الله عنه نه بلکه د ټولو انسانانو په نزد د رسول الله ﷺ ښکلا د سپوږمۍ تر ښکلا زیاته وه .

## د رسول الله ﷺ تګ

**﴿۵۵۴۷﴾**: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ مَا رَأَيْتُ شَيْئًا أَحْسَنَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما تر رسول الله ﷺ ښکلی هیڅ شی نه دی لیدلی

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَأَنَّ الشَّمْسَ تَجْرِي فِي وَجْهِهِ وَمَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَسْرَعَ فِي مِشْيَتِهِ

لکه لمر چي د رسول الله ﷺ په مبارک مخ کي جاري وو او نه ما د رسول الله ﷺ څخه تیز تګ کونکی څوک لیدلی دی ګویا مځکه د رسول الله ﷺ لپاره را ټوله سوې وه،

مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَأَنَّمَا الْأَرْضُ تُطْوَى لَهُ إِنَّا لَنُجْهِدُ أَنْفُسَنَا وَإِنَّهُ لَغَيْرُ مُكْتَرِثٍ. رواه الترمذي.

موږ به د رسول الله ﷺ سره د تلو کوښښ کوی مګر رسول الله ﷺ به په بې پرواهۍ (یعني عادي تګ) سره تلی . ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۵۶۳، رقم: ۳۶۴۸.

**تشریح**: موږ به د رسول الله ﷺ سره د تلو کوښښ کوئ ... الخ: ددغه جملې په ذریعه حضرت ابو هریره رضي الله عنه دې ته اشاره وکړل چي کله موږ له رسول الله ﷺ سره پر لاره تللو نو موږ به په پوره هڅه او کوښښ سره خپل تګ زیاتوی او رسول الله ﷺ ته رسېدل موغوښتل مګر رسول الله ﷺ به بېله تکلف کولو په خپل معمولي تګ سره تر ټولو مخکي وو، دا د رسول الله ﷺ معجزه وه چي نور خلک به په ځغاسته هم د رسول الله ﷺ د معمولي تګ برابر نه وه.

## د رسول الله ﷺ پنډۍ، ستركي او مسكا

﴿۵۵۴۸﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ فِي سَاقَيْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُمُوشَةٌ وَكَانَ لَا يَضْحَكُ إِلَّا تَبَسُّمًا وَكُنْتُ إِذَا نَظَرْتُ إِلَيْهِ قُلْتُ أَكْحَلُ الْعَيْنَيْنِ وَلَيْسَ بِأَكْحَلَ. رواه الترمذي.

د حضرت جابر بن سمره رضی الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ پونډۍ مباركي نرمي او نازكي وې، هيڅكله به يې په قهقهه نه خندل بلكه په مسكا سره به يې خندل، كله چي به ما رسول الله ﷺ ته وكتل نو په خپل زړه كي به مي ويل چي رسول الله ﷺ رانجه په ستر ګو كي اچولي دي حال دا چي رسول الله ﷺ به رانجه په ستر ګو كي نه وه اچولي . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۶۲، رقم: ۳۶۴۵.

**د لغاتو حل**: جُموشة: ای دقة ولطافة مناسبة لسائر اعضائه. (د ټولو اندامونو نرموالی)

**تشريح**: مطلب دا دی چي د رسول الله ﷺ ستر ګي مباركي په حقيقت كي د توروالي په وجه ډېري ښكلي معلومېدلې.

بسان سرمه سيه كرده خانه مردم
دوچشم تو كه سياه اند سرمه ناكرده

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د رسول الله ﷺ غاښونه مبارك

﴿۵۵۴۹﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْلَجَ الثَّنِيَّتَيْنِ إِذَا تَكَلَّمَ رُئِيَ كَالنُّورِ يَخْرُجُ مِنْ بَيْنِ ثَنَايَاهُ. رواه الدارمي.

د ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ مخكني دوه غاښونه مبارك پراخ وه چي خبري به يې كولې نو داسي به محسوس كېدل چي د دواړو مباركو غاښو څخه يې نور وځي. دارمي

**تخريج**: سنن الدارمي ۱\۴۴، رقم: ۵۸.

**د لغاتو حل**: افلج: تباعد ما بين الاسنان (د غاښونو په منځ كي فاصله)

**تشريح**: مخامخ سربېره او لاندي دوو غاښو ته په عربي كي ثنيان او ثنايا وايي، ثنيان تثنيه ده او ثنايا جمع ده، همدارنګه دغه دواړو غاښو راسته او چپه خوا ته چي كوم دوه غاښونه دي

هغه ته رباعيات وايي، د حديث څخه معلومه سول چي د رسول الله ﷺ د مخ دوه غابنونه د يو بل سره موښتي نه وه بلکه د دواړو په منځ کي خالي ځای وو، او د حديث د الفاظو څخه دا هم مفهوم کيږي چي دغه خالي ځای يوازي په سرېږه غابنو کي نه وو بلکه د لاندي په غابنو کي هم وو.

## د خوښي د اظهار طريقه

﴿۵۵۵۰﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ إِذَا سُرَّ اسْتَنَارَ وَجْهُهُ حَتّٰى كَأَنَّ وجهه قِطْعَةُ قَمَرٍ وَكُنَّا نَعْرِفُ ذٰلِكَ. متفق عليه.

د حضرت کعب بن مالک ﷛ څخه روايت دی چي کله به پر رسول الله ﷺ د يو خوشحالۍ حالت راغلی نو مخ مبارک به يې داسي معلوميدی لکه د سپوږمۍ ټوټه او موږ ددې څخه خبر وو. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٦٥، رقم: ٣٥٥٦، ومسلم ۴\٢١٢٠، رقم: ۵٣- ٢٧٦٩.

**د لغاتو حل**: ولوا: من ولي الامر يليه، ای کونوا والي امر اخيكم.

**تشريح**: د حديث د آخري الفاظو مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ د مخ مبارک تازګي او ځلا په لېدو سره به سړي پوهيدی چي دغه وخت رسول الله ﷺ ډېر خوشحاله دی او د رسول الله ﷺ د خوشحالۍ او مسرت دغه علامه به پر مخ مبارک داسي څرګنده وه چي هغه وخت به يوازي زه نه بلکه ټول خلک په دې خبره پوهېدل.

## په تورات کي د نبي ﷺ صفت

﴿۵۵۵۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ غُلَامًا يَهُودِيًا كَانَ يَخْدِمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دی چي يو يهودي هلک به د رسول الله ﷺ خدمت کوی،

فَمَرِضَ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُهُ فَوَجَدَ أَبَاهُ عِنْدَ رَأْسِهِ يَقْرَأُ

يو وار هغه هلک ناروغ سو نو رسول الله ﷺ د هغه پوښتني ته ورغلی، رسول الله ﷺ وليدل چي د هغه هلک پلار د هغه سر ته ناست دی

التَّوْرَاةَ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا يَهُودِيُّ أُنْشِدُكَ بِاللّٰهِ الَّذِي

تورات وايي، رسول الله ﷺ د هغه پلار ته وفرمايل: اې يهودي! زه په خدای ﷻ سره قسم

أَنْزَلَ التَّوْرَاةَ عَلٰى مُوْسٰى هَلْ تَجِدُ فِي التَّوْرَاةِ نَعْتِيْ وَصِفَتِيْ وَمَخْرَجِيْ قَالَ لاَ قَالَ

درکوم چي هغه پر موسی ﷺ تورات نازل کړی دی ایا ته په تورات کي زما د صفتونو او زما د پیدا کیدو حال هم وینې ، هغه وویل :یا ، هغه هلک وویل :

الْفَتٰى بَلٰى وَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّا نَجِدُ لَكَ فِي التَّوْرَاةِ نَعْتَكَ وَصِفَتَكَ وَمَخْرَجَكَ

هو قسم په خدای اې دالله رسوله ! موږ ستاسو صفات ستاسو اوصاف او ستاسو د پیدا کیدو حال په تورات کي وینو

وَإِنِّيْ أَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلٰهَ إِلاَّ اللّٰهُ وَأَنَّكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ لِأَصْحَابِهِ أَقِيْمُوْا هٰذَا مِنْ عِنْدِ رَأْسِهِ وَلُوْا أَخَاكُمْ . رواه البيهقي في دلائل النبوة.

او زه ددې شاهدي او اعتراف کوم چي د الله ﷻ څخه ماسیوا بل څوک د عبادت وړ نه سته او تاسو د الله تعالی ربښتونی رسول یاست ، د دې اوریدو سره رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وفرمایل دده پلار دده د سر څخه ولاړ کړئ او تاسو د خپل ورور والي او ساتونکي جوړ سئ . بیهقي

**تخريج**: رواه البيهقي في دلائل النبوة.

**تشريح**: زما د وتلو، یو مطلب خو د هیواد یعني مکې څخه په هجرت کولو مدینې ته راتلل دي او دا هم کیدای سي چي لفظ د مخرج دلته د بعث په معنی کي وي .

د نعت او صفت په لغوي توګه یوه معنی ده ، یوازي دا فرق دی چي دلته د نعت څخه مراد درسول الله ﷺ ذاتي او باطني اوصاف دي او د صفت څخه ظاهري اوصاف مراد دي .

## درسول الله ﷺ بعثت د الله ﷻ د رحمت ظهور دی

﴿۵۵۵۲﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ إِنَّمَا أَنَا رَحْمَةٌ مُّهْدَاةٌ. رواه الدارمي والبيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت ابوهریره ؓ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زه د الله ﷻ را لیږل سوی رحمت یم . دارمي او بیهقي.

**تخريج**: سنن الدارمي ١\٢١، رقم: ١٥. والبيهقي في شعب الايمان ٢\١٦٤، رقم: ١٤٤٦.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د دغه وینا مطلب دادی چي زما وجود ، زما رسالت او زما راوړی دین

د الله جلاله هغه عظیم رحمت دی چي هغه د ټولو کائناتو لپاره د تحفې په توګه دنیا ته را واستوی، کومو خلکو چي د الله جلاله دغه تحفه قبوله کړل نو هغوئ کامیاب سول او چا چي قبوله نه کړل نو هغوئ په تاوان کي پاته سول، دغه ارشاد د مضمون په اعتبار د قرآن کریم د دغه الفاظو عکس دی :

وما ارسلناک الا رحمة للعالمین.

ژباړه: (اې محمد ﷺ!) موږ تاسو د ټولي نړۍ لپاره رحمت را لېږلي یاست.

د دغه حدیث څخه د امت محمدي عظمت او کرامت ښکاره کېږي ځکه چي شاهي تحفه هغه خلکو ته ورکول کېږي چي باعظمته او باکرامته وي.

===========

# بَابُ فِيْ اَخْلاَقِهِ وَشِمَائِلِهِ ﷺ

## (د رسول الله ﷺ د اخلاقو او عاداتو بیان)

اخلاق د خُلق جمع ده او معنی یې د طبعي خصلت او باطني وصف ده، او همدارنګه شمائل د شمال جمع ده چي معنی یې د عادت او خوی ده، په تېر سوي باب کي د کتاب مؤلف د رسول الله ﷺ د ظاهري شکل او صورت سره اړوند حدیثونه نقل کړل چي هغه ته صورت او خلق ویل کېږي، اوس د دغه باب په قائمولو سره هغه حدیثونه نقل کړل سوي دي چي په هغو کي د رسول الله ﷺ باطني اوصاف او خصائل ذکر سوي دي، چي هغه په سیرت او اخلاق سره تعبیر کېږي. د باطني اوصافو یا سیرت او خلق څخه مراد مېړانه، شجاعت، سخاوت، نرمي، مینه، تحمل، تواضع، رحم، کرم، شرم، حیاء او داسي نور دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### بې مثله اخلاق

﴿۵۵۵۳﴾: عَنْ اَنَسٍ قَالَ خَدَمْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرَ سِنِينَ فَمَا قَالَ لِي أُفٍّ وَلَا لِمَ صَنَعْتَ وَلَا أَلَّا صَنَعْتَ. متفق علیه.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما لس کاله د رسول الله ﷺ خدمت وکړ، رسول الله ﷺ

هيڅكله ما ته اُف هم نه دي كړي او نه يې هيڅكله دا وفرمايل چي تا دا كار ولي وكړ او يا دا كار دي ولي ونه كړ. بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۵٦، رقم: ٦۰۲۸، ومسلم ۴\۱۸۰۴، رقم: ۵۱- ۲۳۰۹.

**تشريح:** د مسلم په روايت كي د نهه كالو الفاظ دي، په هرحال رسول الله ﷺ چي د مكې څخه هجرت وفرمايه او مديني ته ولاړى نو هغه وخت د حضرت انس رضي الله عنه عمر سره له اختلافه اته كاله يا لس كاله وو، د هغه مور بي بي او د هغه ځيني قريبان چي د انصارو څخه وه، هغه يې رسول الله ﷺ ته راوست او د رسول الله ﷺ په خدمت كي يې وركړ، حضرت انس رضي الله عنه د هغه ورځي څخه تر دغه وخته پوري چي رسول الله ﷺ په مدينه منوره كي د لسو كالو هستوګني څخه وروسته له دنيا څخه رخصت سو، د رسول الله ﷺ پرله پسې خدمت يې كوى، او په دغه حديث كي هغه د رسول الله ﷺ سره د اوږده وخت د خدمت اړوند تجربه بيانوي چي رسول الله ﷺ په دغه وخت كي زما پر غلطۍ او كوتاهۍ باندي رټل خو پرېږده پر يوه خبره يې اف هم نه دي راكړي، اُف د الف په پېښ او د فاء په تشديد او زير سره دى، په يوه نسخه كي په تنوين مكسوره سره دى، دغه لفظ د انسان د ژبي څخه هغه وخت راوځي كله چي د يو ناخوښه يا تكليف وركونكي صورت سره مخامخ سي.

تا دا كار ولي وكړ .... الخ: د دغه جملې په ذريعه هم حضرت انس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ ښه چلن او اخلاق بيان كړل چي په دغه اوږده وخت كي هيڅكله داسي ونه سول چي ما يو كار كړى وي او رسول الله ﷺ اعتراض پر كړى وي چي تا زما د خوښي څخه پرته دا كار ولي وكړ، يا رسول الله ﷺ ما ته د يو كار ويلي وي او ما هغه كار نه وي كړي او رسول الله ﷺ را څخه پوښتنه كړې وي چي تا دا كار ولي ونه كړ، مګر ښكاره دي وي چي حضرت انس رضي الله عنه دغه معامله او چلن د دنياوي امورو يا د ذاتي خدمت اړوند بيان كړي دي نه د ديني معاملاتو او كړنو په اړه، ځكه چي د يو ديني كار كولو يا نه كولو پر اعتراض باندي څه نه ويل روا نه دي.

طيبي رحمة الله عليه ليكلي دي: د حديث څخه خپله د حضرت انس رضي الله عنه ښېګڼه هم ظاهرېږي يا داسي به وو ايو چي حضرت انس رضي الله عنه هم خپل تعريف بيان كړى دى چي ما داسي هيڅ كار نه دى كړى چي رسول الله ﷺ زما پر كار اعتراض كړى واى او يا زما څخه يې شكايت كړى وي مګر دا خبره مناسبه نه معلومېږي، د حديث سياق او سباق او د حضرت انس رضي الله عنه د نبوي اخلاقو په اړه چي د كومو احساساتو اظهار كول غواړي د هغه سره سم د حديث اصل مفهوم هغه دى چي مخكي تېر سو.

## شفقت او مروت

﴿۵۵۵۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د اخلاقو په اعتبار تر ټولو غوره وو ،

خُلُقًا فَأَرْسَلَنِي يَوْمًا لِحَاجَةٍ فَقُلْتُ وَاللهِ لَا أَذْهَبُ وَفِي نَفْسِي أَنْ أَذْهَبَ لِمَا

يوه ورځ يې زه په يو کار پسي ليږلم ما وويل قسم په خدای زه نه ځم، مګر زما اراده وه چي د هغه کار کولو لپاره چي

أَمَرَنِي بِهِ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجْتُ حَتَّى أَمُرَّ عَلَى صِبْيَانٍ

د هغه حکم نبي ﷺ کړی وو ولاړ سم ، بيا زه د کور څخه د باندي راووتم!و پر هغه هلکانو تير

وَهُمْ يَلْعَبُونَ فِي السُّوقِ فَإِذَا رَسُولُ اللهِ ﷺ قَدْ قَبَضَ بِقَفَايَ مِنْ وَرَائِي قَالَ

سوم چي په بازار کي يې لوبي کولې، ناڅاپه د شا د خوا رسول الله ﷺ راغلی او زما څټ يې

فَنَظَرْتُ إِلَيْهِ وَهُوَ يَضْحَكُ فَقَالَ يَا أُنَيْسُ أَذْهَبْتَ حَيْثُ أَمَرْتُكَ قَالَ قُلْتُ

نَعَمْ أَنَا أَذْهَبُ يَا رَسُولَ اللهِ . رواه مسلم

ونيوی ما چي شا ته وکتل نو رسول الله ﷺ مسکا کول، رسول الله ﷺ وفرمايل :اې انيسه ! ايا ته په هغه کار پسي ولاړې چي ما درته ويلي وه ما وويل هو زه اوس ځم..مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۸۰۵، رقم: ۵۴- ۲۳۰۱.

**د لغاتو حل**: بقفاي: مؤخر العنق (څټ)

**تشريح**: حضرت انس رضی اللہ عنہ دغه پېښه د هغه زمانې بيان کړې ده چي د هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کي د راتللو ډېر وخت نه وو سوی او تر اوسه د کم عمر وو ، دا وجه ده چي رسول الله ﷺ هغه چيري استول غوښتل نو سره ددې چي د هغه اراده د رسول الله ﷺ د حکم د پر ځای کولو وه مګر د ماشومتوب په ناپوهي د هغه د ژبي څخه دا راووتل چي زه خو نه ځم، نو رسول الله ﷺ د هغه پر دې خبره د تاديب ضرورت محسوس نه کړ بلکه د هغه سره يې د خندا، نرمی او شفقت معامله وکړل.

أُنيس د انس تصغير دی او رسول الله ﷺ د حضرت انس رضي الله عنه اصلي نوم په انس سره د مخاطب كولو پر ځای د هغه نوم په تصغير (انيس) سره مخاطب كړ چي د هغه لپاره د رسول الله ﷺ د شفقت او محبت اظهار وو .

## تحمل او خوش اخلاقي

﴿۵۵۵۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ كُنْتُ أَمْشِي مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه په رسول الله ﷺ پسي تر شا روان وم او رسول الله ﷺ

بُرْدٌ نَجْرَانِيٌّ غَلِيظُ الْحَاشِيَةِ فَأَدْرَكَهُ أَعْرَابِيٌّ فَجَبَذَهُ بِرِدَائِهِ جَبْذَةً شَدِيدَةً

د نجران څادر اچولی وو چي د هغه غاړه سخته وه ، په لاره كي ورسره يو صحرايي يو ځای سو چي رسول الله ﷺ يې تر څادر ونيوی او دومره په سختي سره يې را كش كړ چي

ورجع نبي الله ﷺ في نجر الاعرابي حَتَّى نَظَرْتُ إِلَى صَفْحَةِ عَاتِقِ رَسُولِ اللّٰهِ

نبي كريم ﷺ بې اختياره ور وګرځېدی ، ما چي وليدل نو د رسول الله ﷺ د څادر څوكو په غاړه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَثَّرَتْ بِهَا حَاشِيَةُ الْبُرْدِ مِنْ شِدَّةِ جَبْذَتِهِ ثُمَّ قَالَ يَا

كي تغمې كړې وې د ډېر زور څخه د څادر ، بيا هغه صحرايي وويل اې محمد (ﷺ)! ستا سره

مُحَمَّدُ مُرْ لِي مِنْ مَالِ اللّٰهِ الَّذِي عِنْدَكَ فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ ضَحِكَ ثُمَّ أَمَرَ لَهُ بِعَطَاءٍ. متفق عليه

چي د الله تعالی مال دی د هغه څخه ما ته راكړه ، رسول الله ﷺ هغه ته وكتل ورته وه يې خندل او بيا رسول الله ﷺ د يو څه وركولو حكم وكړ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۶\۲۵۱، رقم: ۳۱۴۹، ومسلم ۲\۷۳۰، رقم: ۱۲۸– ۱۰۵۷.

**د لغاتو حل**: عاتق: وهو موضع الرداء من المنكب. (د څادر څوكه)

**تشريح**: په يو بل روايت كي دي چي د (مال الله الذي عندك) څخه وروسته هغه صحرايي دا هم وويل : لامن مالك ولامن مال ابيك، يعني نه يې ستاسو د ذاتي مال څخه غواړم او نه يې ستاسو د پلار له مال څخه ، او د الله جل جلاله د مال څخه مراد د زكوة مال دی .

دغه حديث د خلکو پر سختو خبرو او بداخلاقۍ باندي د رسول الله ﷺ د تحمل او صبر دليل دی، په دې اړه د رسول الله ﷺ يو داسي کړنه وړاندي کوي چي د هغه هيڅ مثال نه سي بيان کېدلای، ځرګنده دي وي چي ذکر سوي صحرائي ډېر بداخلاقه او بې ادبه وو، هغه نه اخلاق او تهذيب زده کړي وه او نه د اخلاقو او ادب په مراتبو خبر وو ځکه هغه رسول الله ﷺ ته په دومره نامناسب انداز کي خپله غوښتنه ظاهره کړل.

ددغه حديث څخه يوه خبره خو دا معلومه سول چي د حاکم او مشر لپاره مستحب دي چي دخپل رعيت او ناپوهانو پر تکليف باندي صبر او تحمل وکړي او بله خبره دا چي د خپل حيثيت او د خپل وقار د ساتني لپاره چا ته څه ورکول د پوهي تقاضا ده.

**درسول الله ﷺ اکمليت او جامعيت**

﴿۵۵۵۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د حسن او ښکلا، فضل او کمال او د

وَأَجْوَدَ النَّاسِ وَأَشْجَعَ النَّاسِ قَالَ وَلَقَدْ فَزِعَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ ذَاتَ لَيْلَةٍ فَانْطَلَقَ

صفات حميده په اعتبار په خلکو کي ډېر سخي، دلاور او شجاع وو، يوه شپه د مديني خلک (د دښمنانو څخه) وبېريدل او پريشاني پکښي پيدا سوه،

النَّاسُ قِبَلَ الصَّوْتِ فَاسْتَقْبَلَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ سَبَقَ النَّاسَ

خلک د آواز په لوري روان سول نو نبي کريم ﷺ مخته ورته راغلی چي مخکي تر خلکو هلته

إِلَى الصَّوْتِ وَهُوَ يَقُولُ لَنْ تُرَاعُوا لَنْ تُرَاعُوا وَهُوَ عَلَى فَرَسٍ لِأَبِي طَلْحَةَ عُرْيٍ مَا عَلَيْهِ سَرْجٌ فِي عُنُقِهِ سَيْفٌ فَقَالَ لَقَدْ وَجَدْتُهُ بَحْرًا. متفق عليه.

تللی وو په اواز پسي او ويل يې مه بېرېږئ مه بېرېږئ. دغه وخت رسول الله ﷺ د ابوطلحه پر آس سپور وو او پر آس زين نه و او د رسول الله ﷺ په مبارکه غاړه کي يې توره وه، رسول الله ﷺ وفرمايل: ما خو دا آس درياب وليدی. (يعني ډېر تيز مي وليدی). بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۵۵، رقم: ۶۰۳۳، ومسلم ۴\۱۸۰۲، رقم: ۴۸-۲۳۰۷

**د لغاتو حل:** تراعوا: الفزع والخوف (بېره)

**تشريح**: په يوه روايت کي دا وضاحت هم دی چي آس ډېر سست او سرکښه وو، مګر د هغه ورځي څخه وروسته هغه آس داسي تېز سو چي هيڅ آس د هغه څخه مخکي کېدای نه سو، نو دا د رسول الله ﷺ د معجزاتو څخه دي چي د هغه اس حالت د رسول الله ﷺ دلږ سپرتيا په برکت داسي بدل سو.

دداغه حديث څخه معلومه سول که يوې خوا ته د ښمن ډېره محسوس کړل سي نو د صورت حال د تحقيق لپاره سبقت کول او هغه خوا ته يوازي روانېدل زړه توب هم دی او مستحب هم دي، په شرط ددې چي د هلاکت يقين نه وي همدارنګه د حديث څخه دا هم څرګنده سول چي په کرايه او استعارې سره غوښتل سوی آس باندي جهاد کول جائز دي او د توري په غاړه کول مستحب دي.

## هيڅ کله يې سائل نه دی جواب کړی

﴿۵۵۵۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ مَا سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا قَطُّ فَقَالَ لَا. متفق عليه.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ څخه به يو شی وغوښتل سو نو انکار يې نه دی کړی (که به شی ورسره وو ور به يې کړی او که به نه وو ورسره سکوت به يې کوی). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۵۵، رقم: ۶۰۳۴. ومسلم ۴\۱۸۰۵، رقم: ۵۶-۲۳۱۱

**تشريح**: علامه ابن حجر رحمة الله عليه دا مطلب بيان کړی دی چي کله به يو سړي له رسول الله ﷺ څخه يو شی وغوښتی نو سمدستي به يې ورکوی او کله چي به هغه شی نه وو او د غوښتونکي د سوال پر پوره کولو به قادر نه وو نو په دغه صورت کي به يې ښکاره انکار نه کوی بلکه پټه خوله به سو، او يا به يې په مناسبو الفاظو عذر بيانوی او يا به يې ددعاء په الفاظو ورته ويل، يعني رسول الله ﷺ به په هيڅ حالت کي پر خپله ژبه ښکاره د انکار الفاظ نه راوړل.

او شيخ عزالدين ليکلي دي: ددغه حديث مطلب دادی چي د لا (انکار) لفظ د رسول الله ﷺ پر ژبه هيڅکله نه دی راغلی چي يو چا له رسول الله ﷺ څخه يو شی غوښتی وي او رسول الله ﷺ د هغه سوال رد کړی وي، دا بېله خبره ده چي د سوال پوره کول د رسول الله ﷺ په توان کي نه وه او رسول الله ﷺ د عذر په بيانولو سره يا د بل مقصد لپاره د (لا احد ما احملکم عليه)

الفاظ ويلي دي، مشهور شاعر فرزدق د رسول الله ﷺ ددغه صفت په اړه په شعر کي داسي ويلي دي:

ما قال لا قط الا في تشهده لو لا التشهد كانت لاؤه نعم.

همدغه مضمون د فارسي ژبي يو شاعر داسي بيان کړی دی:

نه رفت کلمه لا بر زبان او هرگز مگر باشهدان لااله الاالله

## دور کړي او بخښي کمال

﴿۵۵۵۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَنَمًا بَيْنَ جَبَلَيْنِ فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ فَأَتَى قَوْمَهُ فَقَالَ أَيْ قَوْمِ أَسْلِمُوا فَوَاللّٰهِ إِنَّ مُحَمَّدًا لَيُعْطِي عَطَاءً مَا يَخَافُ الْفَقْرَ. رواه مسلم.

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي يو سړي د رسول الله ﷺ څخه دومره پسونه وغوښتل چي د دوو غرونو په منځ کي شيله ډکه کړي، رسول الله ﷺ ورته هغومره پسونه ورکړل بيا هغه سړی خپل قوم ته راغلی او ورته وه يې ويل: مسلمانان سئ قسم په خدای محمد ﷺ دومره ورکړه کوي چي د فقيری څخه هم نه بيريږي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۸۰۶، رقم: ۵۸- ۲۳۱۲.

**تشريح**: کيدای سي د سوال کوونکي په گمان کي هم نه وو، چي د هغه دومره لوی سوال په دومره اسانه پوره کړل سي، کله چي رسول الله ﷺ په خپل تصرف کي موجود ټول پسونه ورکړل او د هغه سوال يې پوره کړ نو هغه په تعجب کي سو چي رسول الله ﷺ د توکل او قناعت او استغناء کومه درجه باندي وو، هغه د هغه مذهب عکس کيدای سي چي د هغه رسول جوړولو سره رسول الله ﷺ دې دنيا ته را استول سوی دی ځکه هغه خپل قوم ته په تللو سره مخلصانه تقلين وکړ که چيري تاسو لوړ اخلاقي اقرار او د لوړ انساني کردار عظمت تر لاسه کول غواړئ نو د اسلام پيروان سئ او د محمد عربي ﷺ پيروان سئ چي د سائل سوال داسي پوره کوي چي د هغه سره څه وي د خپل ضرورت څخه په بې پروا کېدو سره ټول ورکوي د خپل فقر او افلاس بېره هم هغه د سائل د طلب او خواهش پوره کولو څخه نه منع کوي.

هر چه آمدت بدست بدادي تو بيش ازان اين جود آن کسي ست کش از فقر عار نيست

## نبوي اخلاق

﴿۵۵۵۹﴾: وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ بَيْنَمَا هُوَ يَسِيرُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه څخه روايت دی چي د حنين د غزا څخه په راګرځېدو کي هغه د

وَسَلَّمَ مَقْفَلَهُ مِنْ حُنَيْنٍ فَعَلِقَهُ الاعراب يَسْأَلُونَهُ حَتَّى اضْطَرُّوهُ إِلَى سَمُرَةٍ

رسول الله ﷺ سره راتلی چي صحرايان په رسول الله ﷺ پسي ومونښتل او د غنيمت مال يې غوښتی، رسول الله ﷺ يې تر دې پوري تنګ کړ چي رسول الله ﷺ يې د يو کيکر د درختي

فَخَطِفَتْ رِدَاءَهُ فَوَقَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَعْطُونِي رِدَائِي لَوْ كَانَ

لاندي بوتلی، د کيکر د درختي سره د رسول الله ﷺ څادر ومونښتی، نبي کريم ﷺ ودرېدی او وه يې فرمايل ما ته زما څادر راکړی که

لِي عَدَدُ هَذِهِ الْعِضَاهِ نَعَمًا لَقَسَمْتُهُ بَيْنَكُمْ ثُمَّ لَا تَجِدُونِي بَخِيلًا وَلَا كَذُوبًا وَلَا جَبَانًا. رواه البخاري.

زما سره د دغه ازغو لرونکو درختو په اندازه حيوانان وای نو هغه به ما ستاسو د ټولو په منځ کي ويشلي وای هغه وخت به زه تاسو بخيل، درواغجن او بېرېدونکي (د فقر څخه) نه وای بللی. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٥، رقم: ٢٨٢١.

**د لغاتو حل**: مقفلة: اي عند رجوعه او وقت رجوعه (د ستنېدو وخت)

**تشريح**: د حنين غزا هغه مشهوره جګړه ده چي د مکې د فتح څخه سمدستي وروسته د طائف او مکې په منځ کي د پراته بنوهوازن، بنوثقيف او د هغوئ د حليفو قبائلو سره رامنځته سو، د دغه جګړې په پيل کي د څه پريشانۍ او تکليف وروسته مسلمانانو ته ستره کاميابي په برخه سول، د دښمن د شپږو زرو بنديانو څخه ماسوا د غنيمت په مال کي ۴۴ زره اوښان د ۴۴ زره څخه زيات پسونه او څلور زره اوقيه سپين زر د مسلمانانو لاس ته ورغلل، په دغه جګړه کي د مدينې لس زره مهاجرين او انصارو څخه ماسوا د مکې هغه دوه زره خلک هم شامل وه چي د مکې د فتح په وخت کي نوي په اسلام کي داخل سوي وه، رسول الله ﷺ د غنيمت ټول مال د جګړې ميدان ته نژدې د جعرانه په ځای کي د جمع کولو حکم وکړ او د هغه ځای څخه د طائف په

لور ولاړل ، د طائف په فتح سره جعرانه ته راستانه سول او هلته يې د غنيمت د مال ويشل پيل کړل، زيات مال د زړه مائلولو لپاره د مکې مسلمانانو ته ورکړل سو ، نورو کسانو ته يې هم ورکړ او يو سړي ته يې د هغه په غوښتنه زيات پسونه ورکړل، دا هغه پېښه ده چي د هغه يادونه په تېر حديث کي وسول ، همدارنګه کله چي رسول الله ﷺ د هغه ځای څخه روان سو نو ټول مال او سامان يې په ويشلو سره ختم کړی وو ، پر مخ تللو باندي په لاره کي ځينو صحرايانو د رسول الله ﷺ څخه سوال وکړ نو رسول الله ﷺ د هغوئ سوال پوره نه کړ ، يوې خوا ته دا مجبوري وه چي ټول مال او سامان د ختمېدو په وجه رسول الله ﷺ هغوئ ته څه نه سوو رکولای، بلي خوا ته په څرګند انکار کولو سره د هغوئ د زړه ماتول يې هم خوښ نه وه مگر کله چي هغه خلک د رسول الله ﷺ د تنګولو او پريشانه کولو تر کوم حد پوري په رسول الله ﷺ پسي ولګېدل نو رسول الله ﷺ هغوئ ته ذکر سوې جمله وفرمايل، د هغې مطلب دا وو چي ستاسو د سوال نه پوره کولو حقيقي سبب دادی چي دغه وخت زما سره هيڅ نه دي پاته سوي، کوم مال او سامان چي زما سره وو هغه ټول مي وويشی او که زما سره په دغه ځنګل کي ددغه ازغي لرونکو درختو په اندازه مال وای نو ما به ټول په تاسو کي ويشلی وای، هغه وخت به تاسو ته تجربه سوې وای چي زه نه بخيل يم چي مصرفول نه غواړم، نه دا خبره ده چي د خپل مال د ساتلو لپاره د درواغو په دعوه کولو سره د غوښتونکو څخه ځان خلاصه کړم، او نه دا چي زه د کوچني زړه خاوند يم، او ددې بېري څخه تاسو ته څه درکول نه غواړم که تاسو ته يې درکړم نو زما سره به څه پاته نه سي او خپله به زه په فقر او مسکنت کي اخته سم، خلاصه دا چي د بخل او درواغو هيڅ عادت په ما کي نسته ، د رسول الله ﷺ په دغه ارشاد کي ددې خبري دليل دی چي د باور پيدا کولو لپاره د نه پوهېدونکو په وړاندي د حميده صفتو په ذريعه دومره تعريف کول جائز دی .

**د الله ﷻ پر مخلوق باندي شفقت او همدردي**

﴿۵۵۶۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى الْغَدَاةَ جَاءَ خَدَمُ الْمَدِينَةِ بِآنِيَتِهِمْ فِيهَا الْمَاءُ فَمَا يَاتون بِإِنَاءٍ إِلَّا غَمَسَ يَدَهُ فِيهَا فَرُبَّمَا جَاءُوهُ فِي الْغَدَاةِ الْبَارِدَةِ فَيَغْمِسُ يَدَهُ فِيهَا. رواه مسلم.

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د سهار دلمانځه څخه فارغ سو نو د مديني خادمان به د اوبو د لوښو سره حاضرېدل ، رسول الله ﷺ به د هر يوه په لوښي کي لاس

دننه کوی او په ډېر یخ کي به هم سهار چي دوئ به لوښي راوړل نو رسول الله ﷺ به خپل لاس په دغه اوبو کي دننه کوی (لپاره د برکت). مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۸۱۲، رقم: ۷۴- ۲۳۲۴.

**تشريح**: دغه حديث نه یوازي د رسول الله ﷺ شفقت، مینه او همدردي څرګندوي چي رسول الله ﷺ د خپل امت سره درلودل بلکه دا هم لاربښوونه کوي چي که د تکليف او پريشانۍ په زغملو سره د الله ﷻ مخلوق ته ګټه رسېدای سي نو بايد له هغه څخه بايد ځان منع نه کړل سي.

## د غريبو او ستونزمنو سره معامله

﴿۵۵۶۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَتْ أَمَةٌ مِنْ إِمَاءِ أَهْلِ الْمَدِيْنَةِ تَأْخُذُ بِيَدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَنْطَلِقُ بِهِ حَيْثُ شَاءَتْ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چي د مديني والاوو يوه مينځه وه چي د رسول الله ﷺ لاس به يې نيوی او چيري چي به يې زړه غوښتل رسول الله ﷺ به يې بيوی. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۸۹، رقم: ۶۰۷۲.

**تشريح**: مطلب دا که چيري هغه به ضرورت وګڼی نو رسول الله ﷺ به يې د مديني څخه د باندي ليري ځکه بوتلی چي هلته خپله پريشاني ورته بيان کړي او څه چي به يې ويل غوښتل هغه به يې ويل او اورېدل، ددې څخه اندازه لګيږي چي رسول الله ﷺ ته د خپل امت د خلکو سره تر دې چي د کښتني درجې د خلکو سره څومره مينه او تعلق وو او د تواضع او خاکسارۍ پر کوم لوړ مقام باندي وو.

﴿۵۵۶۲﴾: وَعَنْهُ أَنَّ امْرَأَةً كَانَ فِي عَقْلِهَا شَيْءٌ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّ لِي

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چي يوه ښځه وه چي د هغې په عقل کي خلل وو (يعني دماغ يې سم نه وو) يوه ورځ هغې وويل اې د الله رسوله!

إِلَيْكَ حَاجَةً فَقَالَ يَا أُمَّ فُلَانٍ انْظُرِي أَيَّ السِّكَكِ شِئْتِ حَتَّى أَقْضِيَ لَكِ حَاجَتَكِ فَخَلَا مَعَهَا فِي بَعْضِ الطُّرُقِ حَتَّى فَرَغَتْ مِنْ حَاجَتِهَا. رواه مسلم.

ستاسو سره زما يو کار دی، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د فلانۍ مور! کومي کوڅې ته چي

ته وايي درسره به ځم او ستا كار به كوم (يعني كومه پټه خبره چي ته كول غواړې زه به درسره سم) نو رسول الله ﷺ د هغې سره يو كوڅې ته تشريف يووړ او دهغې كار يې وكړ. مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم ۴\۱۸۱۲، رقم: ۷۶- ۲۳۲۶.

**تشريح:** دغه حديث هم د رسول الله ﷺ د سترو اخلاقو دليل دی چي رسول الله ﷺ نه يوازي دا چي هغه ناپوهي ښځي ته توجه ورکړل بلکه هغې چي چيري غوښتل د خپلي خبري اورولو لپاره رسول الله ﷺ بوتلی او ددغه جديث څخه معلومه سول چي د رسول الله ﷺ د هغه ښځي سره په يوه کوڅه کي يوازيوالی اختيارول په کور کي د ښځي سره د يوازيوالي اختيارولو په ډول نه وو ځکه چي په هغه کوڅه کي رسول الله ﷺ د هغه ښځي سره يوازي نه وو بلکه هغه خلک هلته موجوده د چا چي کورونه هلته وه مګر د ادب په لحاظ هغه خلک د هغه ځای څخه پر څه فاصله باندي ولاړ وه چيري چي رسول الله ﷺ د هغه ښځي خبره اورېدل.

## د رسول الله ﷺ اوصاف حميده

﴿۵۵۶۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ لَمْ يَكُنْ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَّاشًا ولاسَبَّابًا وَلَا لَعَّانًا كَانَ يَقُولُ عِنْدَ الْمَعْتِبَةِ مَا لَهُ تَرِبَ جَبِينُهُ. رواه البخاري

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ نه فحش ويونکی ، نه لعنت کونکی او نه ښکنځل کونکی وو، کله چي به رسول الله ﷺ يو چا ته په غصه سو نو يوازي دومره به يې فرمايل: په ده څه سوي دي تندی دي يې په خاورو ولړل سي. بخاري

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۵۲، رقم: ۶۰۳۱،

**د لغاتو حل:** ترب: دعاء على المقول له بمعنى رغم انفک او سجد الله وجهک.

**تشريح:** د فحش اصل معنی په يوه خبره کي يا د يوې خبرې په جواب ورکولو کي تر حد زياتوب دي ، ددغه لفظ زيات استعمال په هغه کلام کي کيږي چي په هغه کي د جماع يا جماع سره اړوند خبرو څرګند ذکر وي لکه بې حياء او بې شرمه خلک چي د مور او پلار ښکنځل او بې حياء خبري کوي او اهل حياء او شريف خلک د داسي خبري پر ژبه راوړل خو پرېږده ، د هغه اورېدل هم نه زغمي بلکه هغوئ ته که د داسي خبري کولو ضرورت پېښ سي نو هغه په اشاره او کنايه سره وايي تر دې چي د لويو او تشو بولو يادونه هم د قضاء حاجت په ډول مهذبو الفاظو کي د کنايې په توګه کوي ، همدارنګه د فحش لفظ د هري سختي خرابي ګناه، هر ډول خراب او

بد خصلت او د زنا لپاره هم استعمالیږي.

د لعن لغوي معنی د شړلو، محروم کولو او ښکنځل کولو ده، د لعن یا لعنت نسبت که الله ﷻ ته وي نو د هغه مطلب به دا وي چې د پروردګار د قرب څخه لیري کول او د خپل رحمت څخه محروم کول، او که چیري د دغه لفظ نسبت بنده ته وي نو ددې څخه مراد بد ویل، د الله ﷻ د رحمت څخه لیري والي او د محرومۍ ښېرا کول دي، د مثال په توګه که چیري دا وویل سي چې الله ﷻ لعنت پر وکړ، یا پر فلاني باندي د الله ﷻ لعنت نازل سو نو ددې مطلب به دا وي چې الله ﷻ هغه سړی د خپل قرب د مقام څخه لیري کړ او د خپل رحمت څخه یې محروم کړ، او که دا وویل سي چې فلاني سړي لعنت وکړ یا فلاني سړي لعنت ولیږی نو ددې مطلب به دا وي چې هغه سړي د الله ﷻ د رحمت څخه د لیري والي او محرومۍ ښېرا وکړل.

څرګنده دي وي چې پر هغه چا د لعنت کول چې د لعنت مستحق نه وي سخته ګناه ده او په وار وار لعنت کول کبیره ګناه ده او د علماؤ پر دې خبره اتفاق دی چې پر یو لعین سړي باندي لعنت ویل حرام نه دي همدارنګه که په بدۍ کي په اخته خلکو باندي په مجموعي انداز کي لعنت وکړل سي د مثال په توګه دا وویل سي چې پر کافرانو یا ظالمانو یا سودخوړونکو دي د الله ﷻ لعنت وي نو دا حرام نه دي، په دې خبره باید پوه سو چې د لعنت دوه ډولونه دي یو خو د الله ﷻ د رحمت او د جنت څخه محرومي او لیري والي او په همیشه عذاب او تباهۍ کي د اخته کېدو ښېرا ده دغه ډول لعنت د کافرانو سره مخصوص دی او دوهم ډول دادی چې د الله ﷻ رحمت خاص، د هغه قرب او د سابقینو د درجو څخه د محرومۍ ښېرا کول دي د دغه لعنت تعلق د ګناه کارو او بدکارو سره دی، د لعنت د ډولونو په فکر کي ساتلو سره په دغه مسئله کي پیدا کېدونکي ډېر سوالونه لیري کیږي.

د هغه تندی دي په خاورو سي، دغه جمله د ذلت او خواري څخه کنایه ده، مطلب دا چې د غصې او ناخوښۍ په وخت کي د رسول الله ﷺ له خوا چې کوم سخت رد عمل څرګندېدی نو هغه به دغه جمله وه چې دژبې مبارکي څخه به یې وتل او په دې کي هم رسول الله ﷺ هغه سړي ته خطاب نه کوی چې د هغه د غصې او ناخوښۍ سبب به وو بلکه د هغه د ذات څخه په مخ اړولو سره به یې د غائب صیغه استعمالول، همدارنګه یوه جمله: د هغه پزه دي په خاورو سي، هم راځي چې په دغه معنی او محل کي به استعمالېدل مګر څرګنده دي وي چې دواړي جملې د متضادو معناوو محتمل دي لکه څرنګه چې دغه جمله پر ښېرا باندي په محمول کولو سره د ذلت او خوارۍ څخه کنایه ده همدارنګه دغه دواړي جملې پر دعاء باندي په محمول کولو سره

د عبادت او سجدې کولو څخه کنايه هم ورته ويل کيږي ځکه چې د عبادت او سجدې کونکي تندي او پزه په خاورو کيږي ، په دغه صورت کې ددغه جملو مفهوم به دا وي چې : سجد الله وجهک، الله جَلَّ‌جَلَالُهُ دې ستا مخ په خپل حضور کې پر سجده کړي .

## دښمنانو ته به يې هم ښيرا نه کول

﴿۵۵۶۴﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ عَلَى الْمُشْرِكِينَ قَالَ إِنِّي لَمْ أُبْعَثْ لَعَّانًا وَإِنَّمَا بُعِثْتُ رَحْمَةً. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې وويل سول اې د الله رسوله ! د کافرانو لپاره ښيرا وکړه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : زه د لعنت کولو لپاره نه يم راليږل سوی بلکه زه رحمت راليږل سوی يم. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲۰۰۶\۴، رقم: ۸۷- ۲۵۹۹.

**تشريح**: زه په رحمت ګرځولو سره را لېږل سوی يم، دکافرانو په اړه ښېرا څرنګه کولای سم که څه هم هغوئ زما دښمنان دي .

د مؤمنانو په اړه د رسول الله ﷺ رحمت کېدل خو څرګند دي، پاته سوه د کافرانو خبره نو دهغوئ په اړه رحمت کېدل په دې اعتبار دي چې د الله جَلَّ‌جَلَالُهُ دين او د هغه د رسول د سختي نافرماني ، سرکښۍ او دښمنۍ سربېره محض د رسول الله ﷺ د بابرکته وجود په باعث د هغوئ څخه د دنيا عذاب پورته کړل سوی دی لکه چې الله جَلَّ‌جَلَالُهُ فرمايي : (وكان ليعذبهم وانت فيهم) په داسې حالت کې چې تاسو په دوئ کې موجود ياست د الله جَلَّ‌جَلَالُهُ عذاب پر دوئ (په دنيا کې) نه نازلوي .

بلکه حقيقت خو دادی چې الله جَلَّ‌جَلَالُهُ د رسول الله ﷺ دغه برکت تر ژوند مبارک پورې محدود کړی نه دی بلکه د تل لپاره يې دا برکت باقي ساتلی دی او فيصله يې کړې ده چې د کلي استيصال عذاب به تر قيامته پورې نه نازليږي ، حال دا چې څومره تېر امتونه د خپلو پيغمبرانو د ښېرا په وجه په کلي توګه نيست او نابود سوي دي او دهغوئ هيڅ وجود هم پاته سوی نه دی .

طيبي رحمه الله ويلي دي: د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد مطلب دادی چې زه ددې لپاره نه يم راغلی چې څوک د الله جَلَّ‌جَلَالُهُ له رحمت څخه ليرې کړم بلکه دنيا ته زما د رالېږلو مقصد دادی چې زه د الله جَلَّ‌جَلَالُهُ نازل سوی هدايت ، خپل تعليمات او د خپل خلاقو په توان سره خلق الله د هغه رحمت

ته نژدې کړم، په داسي صورت کي کله چي د چا په حق کي ښېرا کول یا پر چا لعنت کول زما د شان څخه لیري او زما د حال سره نامناسب دي نو زه د دغه کافرانو په اړه څرنګه ښېرا وکړم او څرنګه پر هغوئ لعنت ووایم.

## د رسول الله ﷺ شرم او حیاء

﴿۵۵۶۵﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ أَشَدَّ حَيَاءً مِنَ الْعَذْرَاءِ فِي خِدْرِهَا فَإِذَا راى شَيْئًا يكرهه عرفناه فِي وَجْهِهِ. متفق عليه.

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ډېر حیاداره وو، د هغه پیغلي انجلۍ څخه هم زیات حیاداره کومه چي په پرده کي وي، او کله چي به یو خبره د رسول الله ﷺ د مزاج خلاف وه نو موږ به د رسول الله ﷺ د مخ څخه د هغوئ ناخوښي پېژندل. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۱۳، رقم: ۶۱۰۲، ومسلم ۱۴\۱۸۰۹، رقم: ۶۷ - ۲۳۲۰.

**تشریح**: خدر، پردې ته وايي، (په پرده کي پیغله انجلۍ) دا په دې اعتبار ورته ویل سوي دي چي څومره زیات شرم او حیاء په هغه پیغله انجلۍ کي وي چي په پرده کي وي او د کور څخه د باندي قدم نه ایږدي او هغه پیغله انجلۍ له هغو څخه نه وي چي بې پردې وي او د کور څخه د باندي وځي.

د حدیث د آخري برخي مطلب دادی چي کله به رسول الله ﷺ ته یوه داسي خبره پېښه سوه چي په طبعي توګه به ناخوښه وه یا د غیر شرعي کېدو په وجه به د رسول الله ﷺ د مزاج خلاف وه نو د هغه د ناخوښۍ په اثر به د رسول الله ﷺ مخ مبارک سمدستي بدل سو او موږ په په هغه بدلون سره د رسول الله ﷺ ناخوښي محسوس کول او د هغه د دفع هڅه مو کول نو د رسول الله ﷺ د مخ مبارک څخه به د ناخوښۍ اثر ختمېدی او دا به محسوس کېدل چي رسول الله ﷺ بالکل په غصه سوی نه وو، مګر دا به په هغه صورت کي وو کله چي د هغه د مزاج خلاف خبري تعلق به د یو طبعي شي سره وو یا د یو داسي شرعي شي سره به وو چي د هغه کول به حرام او ناجائز نه وه بلکه مکروه به وه.

نووي رحمة الله علیه دا مطلب لیکلی دي چي کله به د طبیعت خلاف یوه خبره پېښه سول نو د حیاء له کبله به رسول الله ﷺ د هغه د ناخوښۍ اظهار په ژبه سره نه کوی بلکه د هغه اثرات به د رسول الله ﷺ پر مخ ښکاره کېدل، صحابه کرامو به د رسول الله ﷺ د مخ مبارک په بدلون سره د رسول

الله ﷺ ناخوښي او ناراضي محسوس كول.

ددغه حديث څخه نه يوازي دا چي د شرم او حياء فضيلت معلوم سو بلكه دا سبق هم تر لاسه كيږي چي دغه وصف په ځان كي زيات پيدا كول ضروري دي تر څو ددې په وجه د يو شرعي او انساني فرض په ادا كولو كي خنډ رامنځته نه سي او د يو ډول تاوان رامنځته كېدو بېره نه وي.

## د رسول الله ﷺ خندا

﴿۵۵۶۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَجْمِعًا قَطُّ ضَاحِكًا حَتّٰى أَرٰى مِنْهُ لَهَوَاتِهِ إِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ. رواه البخاري.

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت دی چي ما هيڅكله رسول الله ﷺ پر داسي خندا كولو نه دی ليدلی چي تالو مبارك يې ووينم، رسول الله ﷺ چي به خندل نو يوازي تبسم به يې كوی. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۰۴، رقم: ۶۰۹۲.

**د لغاتو حل**: مستجمعا: المعنى ما رايته ضاحكا كل الضحک بجميع الفم. (په ټوله خوله خندل)

**تشريح**: مطلب دادی چي څرنگه نور خلک په زوره خاندي او هغه وخت د هغوئ خوله دومره زياته خلاصه سي چي دننه وری، تالو او ستوني معلوميږي همدارنگه رسول الله ﷺ نه دي خندلي، زيات وختونه به رسول الله ﷺ د خوشحالۍ او مسرت په وخت كي پر تبسم اكتفاء كول او كله نا كله به يې لږ خندل، ددې تفصيل مخكي ددغه موضوع سره اړوند باب كي تېر سوی دی.

## د خبرو كولو انداز

﴿۵۵۶۷﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَسْرُدُ الْحَدِيثَ كَسَرْدِكُمْ كَانَ يُحَدِّثُ حَدِيثًا لَوْ عَدَّهُ الْعَادُّ لَأَحْصَاهُ. متفق عليه.

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به بې ترتيبه (پرله پسې) خبري نه كولې لكه څرنگه چي تاسو په خپل منځ كي خبري كوئ، رسول الله ﷺ به يوه يوه خبره بيله بيله كول، كه يو چا به د رسول الله ﷺ جملې شميرل غوښتل نو شميرلای به يې سوه. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۵۶۷، رقم: ۳۵۶۸. ومسلم ۴\۱۹۴۰، رقم: ۱۶۰ - ۲۴۹۳.

**تشريح**: معلومه سول چي د رسول الله ﷺ د خبرو اترو انداز او طرز ډېر عام فهمه او زړه

وړونکی وو، د ډېر مهذب، هوښيار او پوهو خلکو په ډول به رسول الله ﷺ په کراره کراره يوه يوه جمله په غوره لهجه کي ادا کول ، که چا به غوښتل چي د رسول الله ﷺ الفاظ او جملې وشمېري نو يقينا په اساني سره يې شمېرلای سول، د رسول الله ﷺ د خبرو انداز داسي نه وو لکه څرنګه چي د عامو خلکو وي چي خبري کوي نو پرله پسې او په تيزي سره ژبه چلوي ، په دغه تيزۍ کي نه د جملو ترتيب مناسب وي او نه د الفاظو ادا کول صفا وي چي په هغه سره مخاطب ته په پوهېدو کي ستونزه رامنځته کيږي .

﴿۵۵۶۸﴾: وَعَنِ الْأَسْوَدِ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ فِي بَيْتِهِ قَالَتْ كَانَ يَكُونُ فِي مِهْنَةِ أَهْلِهِ يَعْنِي خِدْمَةَ أَهْلِهِ فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ. رواه البخاري.

د حضرت اسود رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه چي رسول الله ﷺ به په کور کي څه کول؟ هغې وويل د کور په کارو کي به يې مرسته راسره کول، يعني د خپل کور والاوو خدمت به يې کوی او کله چي به د لمانځه وخت سو نو لمانځه ته به تلی. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲/۱۶۲، رقم: ۶۷۶.

**تشريح**: د مَهنة يا مِهنة معنی د خدمت کولو او کاروبارو کولو ده، خپله بي بي عائشې رضي الله عنها ددغه لفظ وضاحت وفرمايه چي ددې څخه مراد د کورنۍ خدمت کول او د کور په چارو کي لګېدل دي لکه د ميږي شېدې لويشل، څپلۍ سمول ، د جامو ګنډل او داسي نور، ددې څخه معلومه سول چي د کور کار کول او د کورنۍ مرسته کول د انبياؤ سنت او د صالحينو طريقه ده،

د حديث راوي حضرت اسود، د سترو تابعينو څخه دی، نوموړي د نبوت زمانه تر لاسه کړې وه او د خلفاء اربعه رضي الله عنهم په زيارت مشرف سو ، د سترو صحابه کرامو څخه يې د حديثو د اورېدو شرف حاصل کړی دی، نوموړي لوی عابد، زاهد، نيک او متقي انسان وو، د اتيا حجونو او عمرو سعادت يې تر لاسه کړی دی ، د ژوند تر آخره پوري همېشه به يې روژې نيولې او هره شپه به يې دوه واره قرآن کريم ختم کوی، د لوړي درجې فقيه وو او ډېر زيات روايتونه يې نقل کړي دي .

## ذاتي بدله نه اخيستل

﴿۵۵۶۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا خُيِّرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ ته په

أَمْرَيْنِ قط إِلَّا أَخَذَ أَيْسَرَهُمَا مَا لَمْ يَكُنْ إِثْمًا فَإِنْ كَانَ إِثْمًا كَانَ أَبْعَدَ النَّاسِ

دوو کارونو کي د يو کار د اختيارولو موقع ورکړل سوه نو رسول الله ﷺ به په هغو کي آسانه کار اختياروی، که هغه به گناه نه وه او که هغه کار به د گناه سبب وو نو رسول الله ﷺ به د هغه کار

مِنْهُ وَمَا انْتَقَمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهِ فِي شئ إِلَّا أَنْ تُنْتَهَكَ حُرْمَةُ اللّٰهِ فَيَنْتَقِمَ لِلّٰهِ بِهَا. متفق عليه.

څخه ډير ليري اوسيدی ، او رسول الله ﷺ د خپل ذات لپاره هيڅکله په يوه خبره کي د چا څخه بدل نه دی اخيستی، البته که د الله جل جلاله حرام کړی کار به چا وکړ نو رسول الله ﷺ به د الله جل جلاله لپاره د هغه بدله اخيستل . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٦٦، رقم: ٣٥٦٠، ومسلم ۴\۱۸۱۳، رقم: ۷۷ – ۲۳۲۷.

**تشريح**: د دغه حديث په وضاحت کي علماؤ او شارحينو ليکلي دي چي د اختيار ورکولو تعلق د الله جل جلاله څخه هم کيدای سي او د خلکو څخه هم، که د الله جل جلاله له خوا د اختيار حاصلېدل مراد وي نو په دغه صورت کي دا سوال پيدا کيږي چي د رسول الله ﷺ معصوم عن الخطاء کېدل د نص څخه ثابت دي او يوې گناه ته د رسول الله ﷺ نسبت نه سي کيدای، ځکه چي د الله جل جلاله له خوا رسول الله ﷺ ته د داسي دوو شيانو څخه د يوه خوښولو اختيار څرنگه ورکول کيدای سو چي په هغه کي يو شی د گناه سبب وي، د دغه سوال جواب دادی ، په شرط د دې چي په هغه کي د گناه يو شی وي، دلته د گناه څخه مراد هغه شی دي چي خپله خو گناه نه وي مگر هغه په يوه درجه کي گناه ته د رسېدو احتمال ولري د مثال په توگه الله جل جلاله رسول الله ﷺ ته اختيار ورکړی وو چي د دنياوي ژوند تېرولو لپاره د دنيا د خزانو څخه واخلي چي رسول الله ﷺ ته به ورکړل سي او که د ضرورت په اندازه پر روزۍ باندي قناعت وکړي، په دغه دواړو کي دوهم شی رسول الله ﷺ اختيار کړ او لومړی يې ځکه خوښ نه کړ که هم څه هم د دنيا مال او سامان د گناه شيان نه دي مگر د دې احتمال خامخا وي چي يو سړی په هغه کاروبار او معاملاتو کي داسي

اخته سي چي عبادت او ديني چارو ته توجه ورنه کړلای سي،

که د دغه حديث اطلاق د الله ﷻ له خوا پر اختيار باندي وکړل سي نو دا خبره بايد په ذهن کي وي چي د ګناه څخه مراد واقعي ګناه نه ده بلکه هغه شی مراد دی چي د ګناه احتمال ظاهرونکی وي او داسي شی خپله په ګناه کي نه شمېرل کيږي، د خلکو له خوا د اختيار تر لاسه کولو دوه صورتونه دي يو د کافرانو له خوا د اختيار تر لاسه کېدل مراد دي، په دې اړه بالکل ځرګنده ده چي په دغه دوو شيانو کي يو شی د ګناه سبب خامخا وي او دوهم چي د مسلمانانو له خوا اختيار تر لاسه کېدل مراد وي نو په دغه صورت کي به د ګناه څخه مراد هغه شی وي چي د ګناه سبب ګرځي لکه د مجاهدې او اقتصاد (ميانه روی) په منځ کي اختيار تر لاسه کول، ځرګنده ده چي مجاهده که څه هم خپله ګناه نه ده مګر په مجاهده کي دومره زياتوب او سختي کول چي هلاکت ته ورسيږي نو بيا مجاهده به ناجائز وي.

د الله ﷻ له خوا د اختيار تر لاسه کېدو يو صورت هغه هم مراد کېدای سي چي د هغه تعلق د رسول الله ﷺ سره نه وي بلکه د رسول الله ﷺ په واسطه د نورو سره وي، د مثال په توګه اختيار ورکړل سوی وي چي تاسو د خپل امت په اړه د فلانی ګناه په هغه دوو سزاوو کي يوه سزا خوښه کړئ نو رسول الله ﷺ به هغه سزا خوښول کوم چي به سپکه او اسانه وه، يا که ورته ويل سوي وای چي تاسو د خپل امت په حق کي د هغه دوو شيانو څخه يو شی خوښ کړي چي د سزا سبب نه وي، يا د مثال په توګه رسول الله ﷺ ته اختيار ورکړل سوی وي چي کوم کفار ستا تر واک لاندي راسي نو که هغوئ قتل کړئ او که په جزيه اخيستلو سره د هغوئ د ځان او مال ساتنه وکړئ، رسول الله ﷺ د جزيې صورت خوښ کړي، يا رسول الله ﷺ ته د الله ﷻ په حق کي اختيار ورکړل سوی وي چي د هغه په عبادت کي مجاهده خوښه کړي او يا ميانه روي، نو رسول الله ﷺ ميانه روي خوښه کړل.

د خپل ځان لپاره يې هيڅ بدله نه اخيستل، په دې اړه ابن حجر رحمه الله ليکلي دي چي د دې څخه مراد دادی چي رسول الله ﷺ هيڅکله د يوې غلطۍ او جرم سزا د خپل ذاتي بدلې اخيستلو يا د خپل طبعي خواهش لپاره نه ورکول، په دغه وضاحت سره د رسول الله ﷺ پر هغه عمل سوال نه پيدا کيږي چي رسول الله ﷺ د ځينو خلکو د وژلو حکم وکړ چي رسول الله ﷺ ته يې سخت تکليفونه رسولي وي، هغوئ حرامي خبري کړي وي او د اسلام په دښمنۍ کي تر حد د تجاوز په سبب د الله ﷻ له خوا د سزا وړ ګرځېدلي وه.

## رسول الله ﷺ هيڅکله څوک نه دی وهلی

﴿۵۵۷۰﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ مَا ضَرَبَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا قَطُّ

د حضرت عائشي ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د الله ﷻ په لار کي د جهاد کولو د حالت

بِيَدِهِ وَلَا امْرَأَةً وَلَا خَادِمًا إِلَّا أَنْ يُجَاهِدَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَمَا نِيلَ مِنْهُ شَيْءٌ

څخه پرته هيڅکله په خپل لاس سره څوک نه دی وهلی يعني نه ښځه او نه خادم، او هر کله چي به

قَطُّ فَيَنْتَقِمَ مِنْ صَاحِبِهِ إِلَّا أَنْ يُنْتَهَكَ شَيْءٌ مِنْ مَحَارِمِ اللّٰهِ فَيَنْتَقِمَ لِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ. رواه مسلم

رسول الله ﷺ ته د يو چا څخه يو تکليف ورسيدی نو د هغه بدل به يې نه اخيستی مگر که يو چا به د الله ﷻ حرام کړي شی استعمال کړ يا منع کړل سوی کار به يې وکړ نو رسول الله ﷺ به خامخا هغه ته د الله ﷻ لپاره سزا ورکول. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۱۸۱۴، رقم: ۷۹- ۲۳۲۸.

**تشريح**: د حديث په معني کي د د سړي قيد ځکه لګول سوی دی چي په ځينو ځايو کي د سړلی د حيوانانو وهل منقول دي، د خادم اطلاق پر سړي او ښځه دواړو باندي کيږي او په دغه ارشاد کي د خادم او ښځي يادونه ځکه سوې ده چي په عامه توګه دغه دواړه په کمزور ګڼلو سره زيات وهل کيږي او د سړي په عام ژوند کي د دغه دواړو سره ډېر تعلق وي، د کورني معاملاتو ډېر انحصار پر دوئ وي او په دې وجه د هغوئ له خوا د غصې او ناراضي موقع زياته پېښيږي ځکه د دوئ دواړو په خاصه توګه ذکر کولو سره دې ته اشاره وفرمايل سول چي په دې اړه دغه دواړه بې ارزښته ونه ګڼل سي، داسي نه وي چي د دوئ دواړو د کمزوری او لاچارۍ څخه په فائده پورته کولو د هغوئ سره هر چلن روا وګڼل سي، او پر معمولي خبره باندي هغوئ وهل کيږي، که څه هم په ځينو حالاتو کي په نورو شرطو سره د هغوئ لږ څه وهل جائز دي مګر په دغه حالاتو کي هم د وهلو څخه ځان ساتل غوره ګرځول سوي دي، پر دغه مسئله باندي د اولاد د وهلو مسئله بايد قياس نه سي ځکه چي د هغوئ تاديب تر ټولو مقدم دی او په دې اړه د رعايت ګنجائش نسته، د دې وجه داده چي اولاد وهل د هغوئ د اصلاح لپاره وي او د غلام او ښځي وهلو تعلق زيات وختونه د نفس په غلطه تقاضا سره کيږي، د صحيح روزني او تربيې

لپاره د اولاد پر غلطۍ باندي وهل ښه خبره ده او د نفس پر تقاضا او غصې باندي د واک درلودلو لپاره له دغه دواړو (خادم او ښځي) سره د عفو او بخښني معامله کول غوره وګرځول سول.

ماسوا دهغه صورت څخه چي رسول الله ﷺ به د الله ﷻ په لاره کي جهاد کوی، د الله ﷻ په لاره کي جهاد د الله ﷻ له دښمنانو سره وي ځکه هغه وخت به رسول الله ﷺ دچا سره د عفو او بخښني معامله نه کول، د احد په غزا کي د خدای ﷻ دښمن، ابی ابن خلف رسول الله ﷺ په خپل لاس قتل کړ او دلته د الله ﷻ په لاره کي د جهاد اطلاق يوازي د الله ﷻ د دښمنانو پر وژلو باندي نه بلکه د شرعي حدودو پر ځای کول او د شرعي سزاوو جاري کول هم مراد دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د خادمانو سره چلن

﴿۵۵۷۱﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ خَدَمْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا اِبْنُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ خدمت پيل کړی دی

ثَمَانَ سِنِيْنَ خَدَمْتُهُ عَشَرَ سِنِيْنَ فَمَا لَامَنِيْ عَلٰى شَيْءٍ قَطُّ أُتِيَ فِيْهِ عَلٰى يَدَيَّ

د اتو کالو د عمر څخه او لس کاله مي د رسول الله ﷺ خدمت کړی دی مګر رسول الله ﷺ هيڅکله زما د لاسه د يو شي په ضائع کيدو پر ما ملامتيا نه ده کړې

فَإِنْ لَامَنِيْ لَائِمٌ مِنْ أَهْلِهِ قَالَ دَعُوْهُ فَإِنَّهُ لَوْ قُضِيَ شَيْءٌ كَانَ . هٰذَا لَفْظُ الْمَصَابِيْحِ وَرَوى البيهقي في شعب الإيمان مع تغيير يسير.

او که د رسول الله ﷺ د کوروالاوو څخه به يو چا پر ما ملامتيا وکړه نو رسول الله ﷺ به فرمايل: پريږدئ هر کله چي يو خبره کيدونکي وي هغه به ضرور کيږي. بيهقي.

**تخريج**: البغوي في المصابيح ۵۷/۱۴، رقم: ۴۵۳۸، والبيهقي في شعب الايمان ۳۱۶/۱۱، رقم: ۱۹۴.

**تشريح**: کومه خبره چي کېدونکي وي ..... الخ: ددې مطلب دادی چي د يو شي ماتېدل او ضائع کېدل د قضاء او قدر الهي مطابق وي، که څه هم د هغه ظاهري سبب بل څه وي، که يو څوک د يو شي د ضائع کېدو ظاهري سبب ګرځي نو د هغه د ملامتيا هيڅ ګټه نسته، ددې سره سم په يو حديث کي فرمايل سوي دي که د مينځي يا خادم په لاس لوښي مات سي نو هغه مه

وهئ ځکه چي د هر شي لپاره فناء ده او د هغه د پاته کېدو يو وخت تاکل سوی دی.

## د رسول الله ﷺ اوصاف حميده

﴿۵۵۴۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمْ يَكُنْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَلَا مُتَفَحِّشًا وَلَا صَخَّابًا فِي الْأَسْوَاقِ وَلَا يَجْزِي بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ وَلَكِنْ يَعْفُو وَيَصْفَحُ. رواه الترمذي.

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ نه فحش ويونکی او نه يې په تکلف سره فحش ويل، او نه په بازارونو کي شور کونکی وو او نه به يې د بدی بدله په بدی سره اخيستل بلکه معافي او بخښنه به يې کول. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۲۴، رقم: ۲۰۱۶.

## په رسول الله ﷺ کي تواضع او انکساري

﴿۵۵۴۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَعُوْدُ

حضرت انس رضي الله عنه به د رسول الله ﷺ صفات داسي بيانول چي رسول الله ﷺ به د ناروغ پوښتنه

الْمَرِيْضَ وَيَتْبَعُ الْجَنَازَةِ وَيُجِيْبُ دَعْوَةَ الْمَمْلُوْكِ وَيَرْكَبُ الْحِمَارَ لَقَدْ رَأَيْتُهُ

کول. د جنازې سره به تلی، د مريي دعوت به يې قبلوی، پر خره به يې سپرلي کول،

يَوْمَ خَيْبَرَ عَلَى حِمَارٍ خِطَامُهُ لِيْفٌ. رواه ابن ماجه والبيهقي في شعب الإيمان

د خيبر په ورځ ما رسول الله ﷺ پر يو خره سپور ليدلی دی چي د هغه مهار د خرماوو د پوست څخه وو. ابن ماجه او بيهقي.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۳۹۸، رقم: ۴۱۷۸، والبيهقي في شعب الايمان ۶\۲۸۹، رقم: ۸۱۹۰.

**د لغاتو حل**: خطامه: ای زمامه (مهار)

**تشريح**: د مملوک څخه مراد هغه غلام دی چي د خپل مالک په اجازه به يې د رسول الله ﷺ مېلمستيا کول، د دې څخه ثابته سول چي کله رسول الله ﷺ د يو غلام مېلمستيا ردول نه

خوښول نو د یو آزاد سړي مېلمستیا خو به یې بالکل نه ده رد کړې.
په دغه حدیث کې چې د رسول الله ﷺ د کومو غوره صفتو ذکر سوی دی هغه ټول د رسول الله ﷺ پر خاکسارۍ. تواضع او بېله فرقه له ټولو انسانانو سره د رسول الله ﷺ د میني او شفقت او د خپلي لوئي د اظهار او تکبر څخه پر پرهېز باندي دلالت کوي، د ضرورت په وخت کي یې د خره د سپرتیا څخه هم منع نه کول او په خاصه توګه د خیبر په ورځ چې د شان او شوکت د اظهار ورځ وه، پر خر سپرېدی، دا ددې خبري علامه ده چې په رسول الله ﷺ کي د پاچاهانو او شتمنو په ډول خویونه نه وه او نه رسول الله ﷺ تکلف او ظاهري لوړتیا ښکاره کول خوښول.

## خپل څپلۍ به یې خپله ګنډلې

﴿۵۵۷۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْصِفُ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به خپل څپلۍ په خپله جوړولې،

نَعْلَهُ وَيَخِيْطُ ثَوْبَهُ وَيَعْمَلُ فِيْ بَيْتِهِ كَمَا يَعْمَلُ أَحَدُكُمْ فِيْ بَيْتِهِ وَقَالَتْ كَانَ بَشَرًا مِنَ الْبَشَرِ يَفْلِيْ ثَوْبَهُ وَيَحْلُبُ شَاتَهُ وَيَخْدِمُ نَفْسَهُ. رواه الترمذي.

خپله جامه به یې په خپله ګنډل، او په خپل کور کي به یې داسي کار کوی لکه څرنګه چې تاسو په خپلو کورونو کي کار کوئ، او بي بي عائشې ﷺ وویل: رسول الله ﷺ د خلکو څخه یو سړی وو په خپلو جامو کي به یې خپله کتل او د خپل مېږي شیدې به یې په خپله لویشلې او خپل کارونه به یې په خپله کول. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي في الشمائل المحمدية ص: ۱۸۱، رقم: ۳۳۵.

**تشریح**: په خپلو جامو کي به یې کیکي خپله کتلې، د دې مطلب دادی چې خپلي جامې به یې خپله کتلې چې کیکي پکښي نه وي، نو دا خبره ددې خلاف نه ده چې په هغه کي راغلي دي چې رسول الله ﷺ به کیکو نه په تکلیف کوی، په مواهب لدنیه کي دي چې د رسول الله ﷺ په جامو یا بدن مبارک کي هیڅکله کیکي نه وې، همدارنګه امام فخر الدین رازي نقل کړي دي چې د رسول الله ﷺ پر بدن مبارک هیڅکله مچ نه دي کښېنستلی او نه غوماشي یا بل شی رسول الله ﷺ په تکلیف کړی دی.

رسول الله ﷺ همدارنګه یو انسان وو..... الخ: ددغه جملې په اړه طیبي رحمة الله علیه وایي چې بي بي عائشې ﷺ دغه خبره د تمهید (مقدمې) په توګه وفرمایل چې د راتلونکي خبري

څرګندول يې مقصد وو، کله چي بي بي عائشې ﷺ ولېدل او اورېدل چي کفار او مشرکين دا وايي که محمد ﷺ د الله ﷻ نبي او رسول واى نو خپله هستوګنه او طريقه به يې د عامو خلکو په ډول نه واى، يعني د هغه کفارو په نزد د الله ﷻ رسول بايد د هغه پاچا او مشر په ډول خپل ژوند تېر کړي چي د عامو خلکو د هستوګني او طريقو څخه پرهيز کوي، هغوئ په شان او شوکت سره اوسيږي او خپله لوئي څرګندوي، د کفارو دغه خبره، قرآن کريم هم په دغه الفاظو سره نقل کړې ده: (مالهذا الرسول ياكل الطعام ويمشي في الاسواق)، په دغه رسول څه سوي دي چي د عامو خلکو په ډول خوراک کوي او په بازارونو کي ګرځي.

نو بي بي عائشې ﷺ د کفارو ددغه خيال او قول په ترديد کي وفرمايل چي رسول الله ﷺ د الله ﷻ د مخلوقاتو څخه يو مخلوق وو، او همدارنګه يو انسان وو لکه څرنګه چي د آدم ﷺ په اولاده کي نور انسانان دي، که په نورو انسانانو او رسول کي فرق واى نو دا چي الله ﷻ، رسول الله ﷺ د خپل رسالت او نبوت پر منصب مشرف کړ او رسول الله ﷺ يې د انسانيت په لوړو مرتبو مزين کړ او د اخلاقو او طريقو هغه ښېګڼه يې ورکړې ده چي په هغه سره د رسول الله ﷺ ذات مبارک د انسانيت د شرف او امتياز مظهر او نمونه وګرځيدى، لکه چي په قرآن کريم کي هم فرمايل سوي دي: (قل انما انا بشر مثلكم يوحى الي) اې پيغمبره! ته دوئ ته ووايه چي زه ستاسو په ډول يو انسان يم، يوازي دا فرق دى چي پر ما وحي نازليږي.

د ذاتي عظمت او انساني اخلاقو د لوړتيا تر دې لوى مثال به نه سي کيداى چي رسول الله ﷺ د شرف او مرتبې تر ټولو لوړ مقام باندي د مشرف کېدو سربېره د يو عام انسان په ډول ژوند تېروى او د الله ﷻ د عامو بندګانو په ډول په ډېره سادګي او خاکساري سره اوسېدى، د عامو خلکو سره د ګډون، د هغوئ په ډول اوسېدل، د هغوئ په ډول محنت او مشقت او د هغوئ سره د همدردى، او مرستي د رسول الله ﷺ د لوړو اخلاقو عکس هم وو او د رسول الله ﷺ په دغه عمل او کړنو کي د نورو خلکو لپاره دا تعليم او تلقين هم وو چي تواضع او خاکساري د انساني کردار لوړي وګڼل سي او د الله ﷻ پيغام او د هغه هدايت د هغه مخلوق ته د رسولو ذمه داري يو داسي منصب وګڼل سي چي د هغه د فرائضو په سرته رسولو کي د عوامي تړون څخه پرته ممکن نه ده او عوامي تعلق هغه وخت تر لاسه کيږي چي کله خپل نفس د خودبينۍ څخه په ايستلو سره او د ظاهري شان او شوکت څخه په پرهېز کولو سره خپل ځان د يو عام انسان په صورت کي وړاندي کړي.

## عوامي تعلق

﴿۵۵۷۵﴾: وَعَنْ خَارِجَةَ بْنِ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ دَخَلَ نَفَرٌ عَلٰى زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ

د حضرت خارجه بن زيد بن ثابت رضي الله عنه څخه روايت دی چي د خلکو يوه ډله زيد بن ثابت رضي الله عنه ته

فَقَالُوا لَهُ حَدِّثْنَا أَحَادِيْثَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُنْتُ جَارُهُ

راغلل او هغه ته يې وويل موږ ته د رسول الله ﷺ حديثونه بيان کړه ، زيد بن ثابت رضي الله عنه وويل زه د

فَكَانَ إِذَا نَزَلَ عليه الْوَحْيُ بَعَثَ إِلَيَّ فَكَتَبْتُهُ لَهُ فَكَانَ إِذَا ذَكَرْنَا الدُّنْيَا ذَكَرَهَا

رسول الله ﷺ همسايه وم کله چي به پر رسول الله ﷺ باندي وحي راتلې نو زه به يې را غوښتلم ، زه به يې په خدمت کي حاضر سوم او وحي به مي ليکلې او د رسول الله ﷺ دا عادت وو چي کله

مَعَنَا وَإِذَا ذَكَرْنَا الْآخِرَةَ ذَكَرَهَا مَعَنَا وَإِذَا ذَكَرْنَا الطَّعَامَ ذَكَرَهُ مَعَنَا فَكُلُّ هٰذَا أُحَدِّثُكُمْ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه الترمذي.

به موږ ددنيا ذکر کوی نو رسول الله ﷺ به هم زموږ سره ددنيا ذکر کوی او کله چي به موږ د آخرت ذکر کوی نو رسول الله ﷺ به هم زموږ سره د آخرت ذکر کوی او کله چي به موږ د خوراک او څښاک ذکر کوی نو رسول الله ﷺ به هم زموږ سره د خوراک او څښاک ذکر کوی او دا ټولي خبري زه د رسول الله ﷺ څخه درته بيان کوم . ترمذي.

**تخريج**: الترمذي في الشمائل المحمدية ص: ۱۸۲، رقم: ۳۳۶.

**تشريح**: زه د رسول الله ﷺ په همسايتوب کي اوسېدم.... الخ : ددغه جملې په ذريعه حضرت زيد رضي الله عنه دې ته اشاره وکړل چي ما ته په روحاني او بدني دواړه ډوله سره ډېر زيات قربت تر لاسه وو، په دې اعتبار د رسول الله ﷺ د کورني او ټولنيز ژوند تفصيل او د رسول الله ﷺ د ورځني معاملاتو او حالاتو علم د نورو په نسبت ما ته ډېر زيات معلوم دی .

د حديث څخه معلومه سول چي د رسول الله ﷺ او عوامو په منځ کي ډېر ژور ټولنيز تعلق وو او رسول الله ﷺ دخپلو صحابه کرامو او ملګرو سره ډېر د خوشحالۍ او بې تکلفه تعلقات درلودل، رسول الله ﷺ به دهغوئ ټولنيز ژوند ، عملي بحث ، ديني خبرو او د هغوئ دنياوي معاملاتو او اخبار کي په مساوي توګه برخه اخيستل، چي د هغه تعلق به د ټولني مختلفو

احوالو ، پښتو او د خلکو د حقوقو او عاداتو سره وو، مګر دغه خبري اتري او په هغه کي د رسول الله ﷺ د ګډون تعلق به يوازي د هغه خبرو سره وو چي مذموم او مکروه به نه وې او کوم چي د مذموم او بدو خبرو تعلق دی نو دا نه سوه کيدای چي د رسول الله ﷺ په مجلس کي او د رسول الله ﷺ په مخکي د هغه يادونه راسي او نه په هغه ذکر او اذکارو کي د رسول الله ﷺ تصور کيدای سو ، نو دا حديث ددغه روايت خلاف نه دی : (انه صلی الله عليه وسلم کان يخزن لسانه الا فيما يعينه وان مجلسه علم) رسول الله ﷺ به خپله ژبه مبارکه خوندي کول پرته د هغه خبرو څخه چي ضروري وې ، يقينا د رسول الله ﷺ مجلس به يوازي علمي مجلس وو .

په دې کي شک نسته چي ډېر واره د دنياوي معاملاتو په ذکر سره ډير علمي، ټولنيز او ادبي ګټي هم تر لاسه کيږي نو په کوم مجلس کي چي داسي خبري وې چي د هغه څخه د ذکر سوو شيانو ګټي تر لاسه کيږي نو هغه مجلس به په علمي مجلس کي شمېرل کيږي او که د يو دنياوي معاملې سره اړوند د غير مذهبي خبرو په باره کي دا هم فرض کړل سي چي هغه د ذکر سوو ګټو څخه خالي وې نو په هغه صورت کي هغه خبري او په هغه کي د رسول الله ﷺ ګډون کول به پر جواز باندي محمول کړل سي، د هغه مطلب به دا وي چي رسول الله ﷺ به دخپلو صحابه کرامو سره په مباح کارو کي هم خبري اتري کولې چي صحابه کرام د هغه په جواز پوه سي او د بيان جواز لپاره په داسي خبرو کي برخه اخيستل پر رسول الله ﷺ واجب هم وه .

دا ټولي خبري تاسو ته د رسول الله ﷺ بنيم، حضرت زيد رضي الله عنه دغه خبره د حديث د صحيح او مستند کېدو لپاره وکړل او د حديث د روايت د شرطونو پوره کولو لپاره يې وکړې .

## مصافحه او مواجهه

﴿۵۵۷۶﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا صَافَحَ الرَّجُلُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ د يو چا سره مصافحه (دلاس

لَمْ يَنْزِعْ يده من يده حتي يكون هو الذي ينزع يده وَلَا يَصْرِفُ وَجْهَهُ عَنْ

روغبړ) کوی نو خپل لاس به يې تر هغه وخته پوري نه بيل کوی تر څو پوري چي هغه سړي به خپل لاس نه وو بيل کړی، رسول الله ﷺ به تر هغه وخته پوري د هغه څخه مخ نه اړوی تر څو

وَجْهِهِ حتى يكون هو الذي يصرف وجهه عن وجهه وَلَمْ يُرَ مُقَدِّمًا

رُكْبَتَيْهِ بَيْنَ يَدَيْ جَلِيسٍ لَهُ. رواه الترمذي.

پوري چي هغه به مخ نه وو گرځولی، او رسول الله ﷺ مي هيڅكله په داسي حال كي نه دی ليدلی چي د خپل ملگري مخته دي يې پښې غزولي وي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۶۴، رقم: ۲۴۹۰.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ دغه دوه صفتونه، چي تر څو پوري مصافحه كونكي به خپل لاس ايسته كړی نه وای او تر څو پوري چي هغه سړي به خپله د رسول الله ﷺ د مخ څخه آخوا سوی نه وای نو رسول الله ﷺ به هغه ته متوجه وو، او د هغه څخه به يې خپل مبارک نه اړوی، دا د رسول الله ﷺ پر لوړو اخلاقو او ډېر تحمل او خاكساری باندي دلالت كوي.

د رسول الله ﷺ په نزد دا خبره هم د مجلس د ادب خلاف وه چي خپل ځان ښكاره، غوره او لوی څرگندولو لپاره په مجلس كي د خپل برابر ناست سړي څخه په مخكي كېدو سره كښيني، كله چي به رسول الله ﷺ په يو مجلس كي ناست وو نو د ټولو سره به په يوه صف كي برابر كښېنستی او د خپلو پښو او زنگنو په مخكي كولو سره به نه كښېنستی لكه چي د مغرورو خلكو عادت وي، ځينو شارحينو ليكلي دي چي ددې جملې مقصد دا دی چي رسول الله ﷺ به د مجلس د ادابو رعايت په مهذبه طريقه باندي عمل او د اهل مجلس د تعظيم لپاره د خپلو زنگنو په درولو سره نه كښېنستی، او ځينو علماؤ دا ليكلي دي چي د ركبتين څخه مراد دواړي پښې دي او د هغه د مخكي كولو څخه مراد په مجلس كي د پښو غزول دي، په دغه صورت كي به مطلب دا وي چي رسول الله ﷺ د مجلس د ادابو په لحاظ ساتلو سره هيڅكله د چا په مخكي پښې نه غزولې، په هر حال په دغه حديث كي دامت لپاره دا ښوونه ده چي د رسول الله ﷺ په طريقه باندي په عمل كولو سره د هر مسلمان ورور تعظيم او تكريم كول ضروري دي كه څه هم هغه په مرتبه كي دده څخه كم وي.

## د سبا لپاره شيان نه جمع كول

﴿۵۵۷۷﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لاَ يَدَّخِرُ شَيْئًا لِغَدٍ. رواه الترمذي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د سبا لپاره هيڅ شی نه ذخيره كوی. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۰۱، رقم: ۲۳۶۲.

## پټه خوله اوسيدل

﴿۵۵۷۸﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَوِيْلَ الصَّمْتِ. رواه في شرح السنة.

د جابر بن سمره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به زيات پټه خوله اوسيدی. شرح السنه.

**تخريج:** البغوي في شرح السنة ١٣\٢٥٦، رقم: ٣٦٩٥.

**تشريح:** مطلب دادی چي لږ خبري كول د رسول الله ﷺ صفت وو، كه چيري يوه ضروري خبره به وه نو هغه به يې كول كنه نو پټه خوله به وو.

بخاري، مسلم او نورو محدثينو يو روايت نقل كړی دی: من كان يؤمن بالله واليوم الاخر فليقل خير او ليسكت، څوک چي په الله جل جلاله او د اخرت په ورځ ايمان لري نو هغه بايد د ژبي څخه د خير خبره راوباسي او يا پټه خوله سي.

حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه به فرمايل: ليتني كنت اخرس الاعن ذكر الله، ارمان چي زه ګونګی وای مګر د الله جل جلاله د ذكر لپاره ويل راكړل سوي وای.

## د رسول الله ﷺ د خبرو انداز

﴿۵۵۷۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ فِيْ كَلَامِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرْتِيْلٌ أَوْ تَرْسِيْلٌ. رواه ابوداؤد.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي كله به رسول الله ﷺ خبري كولې نو يوه يوه جمله به يې بيله بيله ادا كول او په كراره كراره به يې خبري كولې. ابوداؤد.

**تخريج:** سنن ابي داود ۵\١٧١، رقم: ۴٨٣٨.

**د لغاتو حل:** ترسيل: اى تمهيل في حديثه (په خبرو كي ځنډ)

**تشريح:** د ترتيل او ترسيل دواړو يوه معنی ده، يعني د يو شي د ويلو په وخت كي يو يو حرف په ځرګنده ويل، ځينو حضراتو په دواړو الفاظو كي دا فرق بيان كړی دی چي د ترتيل معنی د هر حرف برابر ايستل او د ترسيل معنی په ويلو كي تلوار او تيزي نه كول دي بلكه په كراره كراره خبره كول دي، په ښكاره دا معلوميږي چي په دغه حديث كي د ترتيل تعلق د رسول الله ﷺ د قرآن كريم د تلاوت سره دی او د ترسيل تعلق د رسول الله ﷺ د عامو خبرو سره دی.

﴿۵۵۸۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْرُدُ سَرْدَكُمْ هٰذَا وَلٰكِنَّهُ كَانَ يَتَكَلَّمُ بِكَلَامٍ بَيْنَهُ فَصْلٌ يَحْفَظُهُ مَنْ جَلَسَ إِلَيْهِ. رواه الترمذي.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به داسي خبري نه کولې لکه څرنګه چې تاسو پرله پسې خبري کوئ بلکه داسي خبري به يې کولې چې يوه يوه جمله به يې بيله بيله وه او هغه څوک چې ورسره ناست به وو يادولې به يې. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۰۰، رقم: ۳۶۳۹.

## پر شونډو به يې اکثره مسکاوه

﴿۵۵۸۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ قَالَ مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَكْثَرَ تَبَسُّمًا مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه الترمذي.

د حضرت عبد الله بن حارث بن جزء ﷛ څخه روايت دی چې ما د رسول الله ﷺ څخه زيات تبسم کونکی هيڅوک نه دی ليدلی. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۶۱۱، رقم: ۳۶۴۱.

## د وحي انتظار

﴿۵۵۸۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَلَسَ يَتَحَدَّثُ يُكْثِرُ أَنْ يَرْفَعَ طَرْفَهُ إِلَى السَّمَاءِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت عبد الله بن سلام ﷛ څخه روايت دی چې کله به رسول الله ﷺ د خبرو کولو لپاره کښېنستی نو اکثر به يې نظر د آسمان په لور وو. (يعني د وحي انتظار به يې کوی). ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابوداود ۵\۱۷۱، رقم: ۴۸۳۷.

**تشريح**: يعني رسول الله ﷺ به د خلګو سره د خبرو کولو په وخت کي هم کله نا کله آسمان ته کتل او دا به د رسول الله ﷺ د هغه انتظار د کيفيت اظهار وو چې د حضرت جبرائيل ﷤ د

نازلېدو او د وحي راتللو په وخت کي به وو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د اهل او عيال په اړه شفقت او محبت

﴿۵۵۸۳﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ سَعِيدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ مَا رَأَيْتُ أَحَدًا كَانَ أَرْحَمَ

حضرت عمرو بن سعيد رضي الله عنه د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت کوي چي ما پر اهل او عيال تر

بِالْعِيَالِ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ إِبْرَاهِيمُ مُسْتَرْضِعًا

رسول الله ﷺ مهربان هيڅوک نه دی ليدلی ، د رسول الله ﷺ زوی ابراهيم رضي الله عنه د مديني لوړي خوا ته په يو کلي کي وو د رضعي مور شيدې يې رودلې

لَهُ فِي عَوَالِي الْمَدِينَةِ فَكَانَ يَنْطَلِقُ وَنَحْنُ مَعَهُ فَيَدْخُلُ الْبَيْتَ وَإِنَّهُ لَيُدَّخَنُ

او رسول الله ﷺ به هغه کلي ته د هغه د ليدو لپاره تشريف وړی، موږ به هم د رسول الله ﷺ سره وو ، رسول الله ﷺ به کور ته دننه تشريف يووړ

وَكَانَ ظِئْرُهُ قَيْنًا فَيَأْخُذُهُ فَيُقَبِّلُهُ ثُمَّ يَرْجِعُ قَالَ عَمْرٌو فَلَمَّا تُوُفِّيَ إِبْرَاهِيمُ

چي هغه کور به د دود څخه ډک وو ځکه چي د دايي (شيدو ورکونکي) ميړه پښ وو ، رسول الله ﷺ به خپل زوی په غيږ کي واخيستی مچوی به يې بيا به راغلی، د عمر بن سعيد رضي الله عنه بيان دی کله چي د رسول الله ﷺ زوی ابراهيم رضي الله عنه وفات سو

قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ ابْنِي وَإِنَّهُ مَاتَ فِي الثَّدْيِ وَإِنَّ لَهُ لَظِئْرَيْنِ تُكَمِّلَانِ رَضَاعَهُ فِي الْجَنَّةِ. رواه مسلم.

نو رسول الله ﷺ وفرمايل : دا ابراهيم زما زوی دی چي د شيدو خوړلو په حالت کي مړ سوی دی په جنت کي د ده لپاره دوې دايانې دي چي د شيدو ورکولو تر وخته پوري به شيدې ورکوي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۸۰۸/۴، رقم: ۶۳-۲۳۱۶.

**د لغاتو حل**: عوالي: اى القرى التي عند المدينة (مديني ته نژدې کلي). الغداة : الفجر (سهار).

**تشریح**: د ظئر معنی د تي ورکونکي ده، او همدارنګه د تي ورکونکي خاوند ته هم ظئر وايي، د عربو د پخواني رواج مطابق د رسول الله ﷺ زوی ابراهیم چي د تي ورکولو لپاره کومي ښځي ته ورکړل سوی وو د هغې نوم بي بي ام سیف وه او د هغې د خاوند نوم ابوسیف وو چي د کسب په اعتبار پښ وو، ابراهیم رضي الله عنه د تي رودلو په وخت کي وفات سوی وو، د هغه عمر شپاړس یا اووه لس میاشتي وو ځکه د رسول الله ﷺ په برکت او د رسول د زوی کېدو نسبت لري، الله جل جلاله هغه ته دا درجه ورکړل چي نه یوازي د وفات څخه وروسته هغه سمدستي جنت ته ورسول سو بلکه پر وفات کېدو باندي د هغه لپاره په جنت کي دوې دایاني (تی ورکوونکي) وټاکل سوې، هغوئ ته دا خدمت ورکړل سو چي هغوئ ابراهیم ﷺ ته د تي رودلو په وخت کي تی ورکوي.

## د رسول الله ﷺ غوره اخلاق او یو یهودي

﴿۵۵۸۴﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّ يَهُودِيًّا كَانَ يُقَالُ لَهُ فُلَانٌ حِبْرٌ كَانَ لَهُ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي یو یهودي وو چي هغه ته به فلانی عالم ویل کیدل، د

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَنَانِيْرُ فَتَقَاضَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ يَا

هغه پر رسول الله ﷺ یو څو دیناره پور وو، هغه د رسول الله ﷺ څخه غوښتنه وکړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل اې

يَهُوْدِيُّ مَا عِنْدِيْ مَا أُعْطِيْكَ قَالَ فَإِنِّيْ لَا أُفَارِقُكَ يَا مُحَمَّدُ حَتّٰى تُعْطِيَنِيْ فَقَالَ

یهودي زما سره اوس هیڅ نسته چي زه یې درکړم، هغه ورته وویل اې محمد (ﷺ)! زه تر هغه وخته پوري ستا څخه نه جلا کیږم تر څو پوري چي زما پور ادا نه کړې، رسول الله ﷺ ورته

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذًا أَجْلِسَ مَعَكَ فَجَلَسَ مَعَهُ فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ

وفرمایل ښه دی زه ستا سره کښینم، نو رسول الله ﷺ د هغه سره کښېنستی او رسول الله ﷺ د

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ الْآخِرَةَ وَالْغَدَاةَ وَكَانَ

ماپښین، مازدیګر، ماښام، ماخستن او بیا د سهار لمونځ هلته وکړ،

أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ يَتَهَدَّدُوْنَهُ وَيَتَوَعَّدُوْنَهُ فَفَطِنَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَا الَّذِيْ

د رسول الله ﷺ صحابه کرامو هغه یهودي ته خبرداری ورکړ او وه یې بیروی، رسول الله ﷺ چي

محسوس کړل چي صحابه کرام هغه ته خبرداری ورکوي نو هغوئ یې منع کړل، صحابه کرامو

يَصْنَعُوْنَ بِهِ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ يَهُوْدِيٌّ يَحْبِسُكَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنَعَنِيْ

عرض وکړ اې د الله رسوله ! ایا یو یهودي تاسو بندي کولای سي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : الله تعالی زه ددې څخه منع کړی یم چي

رَبِّيْ أَنْ أَظْلِمَ مُعَاهِدًا وَغَيْرَهُ فَلَمَّا تَرَجَّلَ النَّهَارُ قَالَ الْيَهُوْدِيُّ أَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلٰهَ إِلاَّ

زه پر دغه سړي ظلم وکړم چي زموږ په پناه کي دی یا پر هغه چا باندي چي زموږ په پناه کي نه دی ، بیا چي سهار سو نو هغه یهودي وویل زه شاهدي ورکوم چي د الله ﷻ څخه پرته بل څوک د

اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ وَشَطْرُ مَالِيْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ أَمَا وَاللهِ مَا فَعَلْتُ بِكَ

عبادت وړ نسته او دا شاهدي ورکوم چي تاسو د الله ﷻ رسول یاست، او زما د مال نیمه برخه د الله ﷻ په لاره کي صدقه ده، قسم په خدای ما چي کومه معامله ستاسو سره کړې ده هغه

الَّذِيْ فَعَلْتُ بِكَ إِلاَّ لِأَنْظُرَ إِلٰى نَعْتِكَ فِي التَّوْرَاةِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ مَوْلِدُهُ بِمَكَّةَ

یوازي ددې لپاره وه چي زه ووینم چي کوم صفات په تورات کي مذکور دي هغه په تاسو کي سته که نه، په تورات کي لیکلي دي چي محمد بن عبدالله (ﷺ) به په مکه کي پیدا کیږي د

وَمُهَاجَرُهُ بِطِيْبَةَ وَمُلْكُهُ بِالشَّامِ لَيْسَ بِفَظٍّ وَلاَ غَلِيْظٍ وَّلاَ سَخَّابٌ فِي الْأَسْوَاقِ وَلاَ

طیبې په لور به هجرت کوي او د هغه حکومت به په شام کي وي ، هغه بد ژبانه او سخت زړه به نه وي او نه به په بازارونو کي شور کونکی او نه به فحش ویونکي

مُتَزَيِّ بِالْفُحْشِ وَلاَ قَوْلِ الْخَنَا أَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَأَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ وَهٰذَا

او نه پالتو خبري کونکی وي، زه شاهدي ورکوم چي د الله ﷻ څخه پرته بل څوک د عبادت وړ نه سته او تاسو د الله رسول یاست، دا

مَالِيْ فَاحْكُمْ فِيْهِ بِمَا أَرَاكَ اللهُ وَكَانَ الْيَهُوْدِيُّ كَثِيْرَ الْمَالِ. رواه البيهقي في دلائل النبوة

زما مال موجود دی څه حکم چي تاسو مناسب ګڼئ وه یې کړئ ، یعني د الله تعالی د حکم سره کوم ځای چي یې غواړئ خرڅ یې کړئ، د راوي بیان دی چي دا یهودي ډېر شتمن وو . بیهقي

**تخریج**: رواه البیهقي في دلائل النبوة.

**د لغاتو حل**: متزی: ای متصف. الخنا: ای الفحش والخشونة (فحش)

**تشریح**: او بیا یې د سهار لمونځ ادا کړ، ددې څخه معلومه سول چي رسول الله ﷺ ټوله ورځ په یو ځای کي ناست تېره کړل او ټوله شپه همدا رنګه د یهودي سره ناست وو، نه بېده سو او نه یې ارام وکړ، په ښکاره خو دا معلومیږي چي دغه پېښه په مسجد نبوي کي پېښه سوې وه مګر یو احتمال دا هم دی چي رسول الله ﷺ په بل ځای کي وو او هلته هغه یهودي راغلی، په هغه ځای کي رسول الله ﷺ د هغه یهودي سره ټوله ورځ او ټوله شپه ناست وو.

... یا هغه بل څوک وي، ددغه تخصیص څخه وروسته تعمیم دی یعني رسول الله ﷺ مخکي په خاصه توګه د معاهد ذکر وکړ چي دا یهودي د هغه ذمیانو څخه دي چي موږ په خپله پناه او ساتنه کي ورسره عهد کړی دی، که زه ددغه پور ورکولو څخه ماسوا دده څخه بېل سم او دده سره د ناستي څخه انکار وکړم نو دا به زما له خوا پر ده ظلم وي او څرګنده ده چي پر یو معاهد باندي د ظلم کولو څخه الله ﷻ زه منع کړی یم، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل، معاهد خو پرېږده زه پر هر سړي باندي د ظلم کولو څخه منع کړل سوی یم که هغه معاهد وي یا غیر معاهدي وي، که مسلمان وي او که کافر وي، دلته رسول الله ﷺ د تعمیم څخه وروسته د تخصیص پر ځای د تخصیص څخه وروسته د تعمیم طرز ځکه اختیار کړ چي دغه موقع ددغه طرز متقاضي ده یا رسول الله ﷺ دا خبره په نظر کي وساتل که په دنیا کي د یو مسلمان حق تلفي وي یا د هغه سره د ظلم معامله وي نو د قیامت په ورځ به هغه مسلمان ته د حق خوړونکي یا ظلم کونکي مسلمان د نیکۍ په ورکولو سره راضي کول به یې ممکن وي، مګر کافر ذمي ته د هغه حق خوړونکي یا پر هغه باندي د ظلم کونکي مسلمان نیکي کولو سره هم راضي کول به ممکن نه وي ځکه چي نه خو د مسلمان نیکي هغه ته ورکول کیږي او نه هغه نیکي د هغه په کار ورتلای سي، په دې اعتبار د قیامت په ورځ د معاهد له خوا د یو مسلمان خلاف د ظلم او د هغه د حق خوړلو به زیاته سخته مرحله وي، نو رسول الله ﷺ ددغه ارزښت څرګندولو لپاره مخکي په خاصه توګه د معاهد ذکر وکړ او ددې وروسته یې په عامه توګه د هر یو ذکر وکړ.

دلته یو سوال پیدا کیږي چي کله رسول الله ﷺ هغه وخت د هغه یهودي د پور ادا کولو څخه دومره معذور وو چي د هغه یهودي له خوا د دومره سختي پابندۍ سره د رسول الله ﷺ مخامخ کېدل سول نو ایا هلته موجود صحابه کرام د هغه د پور پر ادا کولو قادر نه وه؟ ددې جواب دادی چي اول خو دا خبره ده چي هغه صحابه کرام د رسول الله ﷺ پر هغه پور ادا کولو

باندي قادر نه وه، دوهم دا چي د هغه يهودي اصل مقصد دا وو چي د كومو صفتونو يادونه په تورات كي راغلې ده د هغه امتحان واخلي او له دې كبله د صحابه كرامو له خوا د هغه پور په ادا كولو راضي نه وو.

دغه زما مال حاضر دی، هغه دغه جمله مال ته يا هغه ځای ته چيري چي هغه مال پروت وو، په اشاره كولو سره وويل، او بيا هغه رسول الله ﷺ مختار كړ چي رسول الله ﷺ هغه مال د الله ﷻ د رضا او خوښي او د دين او ملت په ګټه كي ځرنګه چي مصرف كول مناسب ګڼي هم هغسي دي مصرف كړي، په ظاهره دا معلوميږي چي دلته د هغه مراد خپل ټول مال وو، مخكي خو هغه د خپل ټول مال نيمه برخه د الله ﷻ په لاره كي د وړاندي كولو اعلان وكړ مګر كله چي د ايمان نور د هغه په زړه كي په ښه ډول ځای پيدا كړ او د الله ﷻ او رسول ﷺ مينه پر هغه غالبه سول نو هغه نه يوازي دا چي ټول مال د الله ﷻ په لار كي وركړ بلكه د خپل سر وړاندي كولو اراده يې هم وكړل.

## د غريبانو سره ښه سلوك

﴿۵۵۸۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالله بن ابي اوفى رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د

وَسَلَّمَ يُكْثِرُ الذِّكْرَ وَيُقِلُّ اللَّغْوَ وَيُطِيلُ الصَّلَاةَ وَيُقَصِّرُ الْخُطْبَةَ وَلَا يَأْنَفُ أَنْ يَمْشِيَ مَعَ الْأَرْمَلَةِ وَالْمِسْكِينِ فَيَقْضِيَ لَهُ الْحَاجَةَ. رواه النسائي والدارمي.

الله ﷻ ډېر ذكر كوی، دنياوي خبري به يې كمي كولې، لمونځ به يې اوږد كوی خطبه يې به لنډه وه، او د كونډو او مسكينانو سره تلل به يې پيغور نه ګڼې، او د هغوئ هر يو كار به يې كوی.. نسائي او دارمي

**تخريج**: سنن النسائي ۳\۱۰۹، رقم: ۱۴۱۳، والدارمي ۱\۴۸، رقم: ۷۴.

**تشريح**: د ذكر څخه مراد د الله ﷻ ذكر او هر هغه شی دی چي د ذكر الله سره تعلق لري، او حقيقت دادی چي زيات او په مختلفو نوعيتو هر وخت او هره لمحه به رسول الله ﷺ په ذكر الله كي بوخت وه.

د لغو او پالتو خبرو څخه مراد هره هغه خبره ده چي د ذكر الله ﷻ څخه ماسوا د نورو دنياوي كارو سره تعلق لري، ځرګنده دي وي چي د داسي دنياوي كارو ذكر هم چي د حكمت

څخه وي د ذکر حقيقي په اعتبار په پالتو خبرو کي شامل دي، ځکه امام غزالي رحمة الله عليه وايي: ضيعت قطعة من العمر العزيز في تاحيف البسيط والوسيط والوجيز، ما د خپل عمر قدرمنه برخه په خپلو کتابونو، بسيط، وسيط او وجيز په تاليف کي ضائع کړل.

که څه هم داسي دنياوي خبري چي د حکمت څخه خالي نه وي په حقيقي معنی کي د لغو او پالتو خبرو په حکم کي نه راځي مګر د هغه ظاهري صورت او انجام په اعتبار او د هغه د حقيقت څخه قطع نظر پر هغه د لغو او پالتو اطلاق سوی دی، د دغه تعبير څرګندولو لپاره د عارفينو دا قول دی چي: حسنات الابرار سيئات المقربين، د لغو د دغه حقيقي معنی په لايعني او باطل کي مراد اخيستل به هم صحيح نه وي چي د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه هيڅکله يوه پالتو خبره نه ده راوتلې او نه دا ممکن وه ځکه چي الله جل جلاله د ټولو مؤمنانو دا صفت بيانوي: (والذين هم عن اللغو معرضون)، نو د رسول الله ﷺ په اړه د لغو او پالتو خبرو تصور څرنګه کيدای سي

ځينو علماؤ دا ويلي دي چي دلته د قليل (لږ) لفظ د عدم په معنی کي استعمال سوی دی، مطلب دا چي رسول الله ﷺ هيڅکله پالتو خبره د ژبي څخه نه ده را ايستلې او ددې په دليل کي هغه حضرات وايي چي قليل لفظ مطلق نفي او اظهار عدم په معنی کي هم استعماليږي لکه چي په قرآن کريم کي فرمايل سوي دي: (قليلا مايؤمنون) نو دغه قول که څه هم د لغو په اړه ډېر بحثونه ختموي مګر حقيقت دادی چي د حديث په سباق کي دغه قول زيات مناسب نه معلوميږي ځکه چي د تکثير لفظ چي د يقل لپاره د کومي معنی تقاضا کوي هغه، هغه ده کوم چي مخکي ذکر سول.

لمونځ به يې اوږد او خطبه به يې لنډه ويل، دلته په خاصه توګه د جمعې لمونځ مراد دی ځکه چي د خطبې سره دا خبره مناسب معلوميږي، او کوم چي د خطبې د لنډوالي خبره ده نو هغه داسي هم صحيح ده چي رسول الله ﷺ به د جمعې په خطبه کي کوم الفاظ او جملې استعمالوې هغه به ډيري جامع او مانع وې، هره جمله که څه هم د الفاظو په اعتبار به لنډه وه مګر د مفهوم او معاني درياب به يې په ځان کي درلودی، او د خطبې د لنډوالي خبره د اکثريت په اعتبار بيان سوې ده، او کله چي به زيات نصيحت کول مقصد وو نو رسول الله ﷺ به په تفصيل سره اوږده خطبه هم فرمايل، په هر حال د دغه جملې اصل مقصد دا بيانول دي چي د رسول الله ﷺ خطبه به د لمانځه په نسبت مختصره وه، په يو بل حديث کي چي په باب الجمعه کي تېر سوی دی، منقول دي چي د لمانځه اوږدېدل او د خطبې مختصر کېدل د فهم او پوهي علامه ده، ددې وجه په ظاهره دا معلوميږي چي لمونځ د مؤمن معراج او د پروردګار د مناجاتو موقع ده ځکه

اوږدوالی يې په دغه مناسبت سره دی ، او د خطبې تعلق خلکو ته د متوجه کېدو او هغوئ حق ته د رابللو لپاره وي چې په هغه کي د بيان د اثر لپاره پر فصاحت او بلاغت باندي توجه ورکول وي او دا داسي وي چې په هغه کي د ريا گمان کيدای سي ځکه نو د خطبې مختصر کول غوره دي.

## د مکې قريشو د رسول الله ﷺ تکذيب ولي وکړ؟

﴿۵۵۸۶﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّ أَبَا جَهْلٍ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا لَا نُكَذِّبُكَ وَلَكِنْ نُكَذِّبُ بِمَا جِئْتَ بِهِ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ. رواه الترمذي.

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چې ابوجهل نبي کريم ﷺ ته وويل موږ تا درواغجن نه بلکه هغه شی درواغ گڼو کوم چې تا راوړی دی ، نو الله تعالی د ابوجهل وغيره په اړه دا آيت نازل کړ : (فانهم لا يكذبونک ولكن الظالمين ....): (هغوئ تا نه درواغجن کوي بلکه دا ظالمان د الله جل جلاله آياتونه درواغ گڼي). ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۲۴۳، رقم: ۳۰۶۴.

**تشريح**: څه چې تا راوړي دي، ددې څخه مقصد وحي الهي يعني کتاب او شريعت دی، د ابوجهل مطلب دا وو چې ستا سره زموږ اختلاف د هغه دين او شريعت په اړه دی چې هغه ته، ته موږ رابولې ، موږ خو ستا تکذيب ځکه کوو چې ستا راوړی کتاب او شريعت ريښتوني نه منو که د غه کتاب او شريعت ستا څخه وو نو بيا ستا سره زموږ هيڅ جگړه نسته، مگر هغه لعين دومره پوه نه سو چې کله رسول الله ﷺ په دنياوي معاملاتو کي د خلکو سره درواغ نه وايي او د صادق وصف د هغه دی چې د هغه اعتراف او اقرار خپله د مکې قريش هم کوي نو بيا د دين او آخرت په اړه هغه خلکو ته درواغ ولي ووايي، ولي به هغوئ درواغو ته رابولي او پر الله جل جلاله به ولي تهمت لگوي، اصل خبره داده چې د مکې د قريشو ټول لوی سرداران د رسول الله ﷺ سره د سخت بغض او عناد ښکار وه ، هغوئ ټول په دې خبره سوځېدل چې دغه يتيم او امي سړي ته دومره لويه مرتبه ولي تر لاسه سول، او موږ چې دومره دنياوي شان او شوکت لرو دده پيروي ولي وکړو او څرنگه هغه لوی او د پيروي وړ ومنو ، او د دغه سوځېدو په وجه به هغوئ د ول ډول خبري کولې چې په هغه کي به معقوليت وو او نه ريښتونتوب.

په تفسير کشاف کي د ذکر سوي آيت په تفسير کي دوه مطالب ليکل سوي دي يو خو دا

چي اې محمد ! دا کافران چي تا ته درواغجن وايي ، يا دديې منلو څخه انکار کوي چي ته په حقيقت کي د خپل پروردګار له خوا د لوی کتاب او شريعت سره راغلی يې نو دوئ تا نه درواغجن کوي ، په حقيقت کي د الله ﷻ نازل سوي آياتونو او د هغه نازل سوي دين ته درواغ وايي، يعني د الله ﷻ دغه فرمان مثال داسي دي لکه يو مالک چي خپل غلام ته ، چي خلک يې په ناروا توګه پريشانه کوي او تکليف ورکوي دا ووايي چي دغه خلک تاته تکليف نه درکوي بلکه ماته يې راکوي، نو ته ګوره چي زه د دوئ سره څرنګه معامله کوم، دوهم مطلب دادی چي اې محمد ﷺ! دغه کافران تاته درواغجن نه وايي ځکه چي ته د دوئ په نزد ډېر رېښتوني او امين يې او ستا صداقت او امانت په دوئ کي د ضرب المثل حيثيت لري ، مګر دغه خلک د الله ﷻ آياتونه او د هغه دين ته درواغ وايي، دغه مطلب د حديث سره زيات مناسبت او مطابقت لري .

## رسول الله ﷺ د ځان لپاره شتمنتوب خوښ نه کړ

﴿۵۵۸۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَائِشَةَ لَوْ

د حضرت عائشې (رض ) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : اې عائشې ! که

شِئْتُ لَسَارَتْ مَعِيْ جِبَالُ الذَّهَبِ جَاءَنِيْ مَلَكٌ وَإِنَّ حُجْزَتَهُ لَتُسَاوِيْ الْكَعْبَةَ

زه د الله تعالی ﷻ څخه مال او دولت غواړم نو زما سره به د سرو زرو غرونه روان سي ، ما ته يو ه ملائکه راغلل چي د هغې ملا د کعبې برابر وه ،

فَقَالَ إِنَّ رَبَّكَ يَقْرَأُ عَلَيْكَ السَّلَامَ وَيَقُوْلُ إِنْ شِئْتَ نَبِيًّا عَبْدًا وَإِنْ شِئْتَ نَبِيًّا

هغې ووېل : ستا رب پر تاسو سلام وايي او وايي : که تاسو غواړئ نو بنده پيغمبر جوړ سئ (يعني هغه پيغمبر چي د بندګۍ او فقر صفت سره موصوف وي) او که غواړئ نو پاچا پيغمبر

مَلِكًا فَنَظَرْتُ إِلٰى جِبْرِيْلَ عَلَيْهِ السَّلَامَ فَأَشَارَ إِلَيَّ أَنْ ضَعْ نَفْسَكَ وَفِيْ رِوَايَةِ ابْنِ

جوړ سئ ، ما جبرائيل عليه السلام ته وکتل (يعني د هغه څخه مي مشوره وغوښتل) هغه راته ووېل : تاسو ځان کښته کړئ (يعني بندګي او فقر خوښ کړئ) ، او د ابن عباس ﷺ په روايت

عَبَّاسٍ فَالْتَفَتَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى جِبرِيْلَ كَالْمُسْتَشِيْرِ لَهُ

كي دا الفاظ دي چي د ملائكي الفاظ اوريدو سره رسول الله ﷺ جبرائيل عليه السلام ته وكتل، مطلب دا چي د هغه څخه يې مشوره غوښتل،

فَأَشَارَ جِبْرِيلُ بِيَدِهِ أَنْ تَوَاضَعْ فَقُلْتُ نَبِيًّا عَبْدًا قَالَتْ فَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ

جبرائيل عليه السلام ورته په اشاره سره وښودل چي تواضع اختيار كړه، ما ورته وويل زه بنده پيغمبر

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذٰلِكَ لَا يَأْكُلُ مُتَّكِأً يَقُولُ آكُلُ كَمَا يَأْكُلُ الْعَبْدُ وَأَجْلِسُ كَمَا يَجْلِسُ الْعَبْدُ. رواه في شرح السنة.

جوړيدل غواړم، د بي بي عائشي رضي الله عنها بيان دی ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ هيڅكله په تكيه لګولو سره خوراک نه دی كړی، رسول الله ﷺ به دا فرمايل: زه داسي خورم لكه څرنګه چي غلام خوراک كوي او داسي كښينم لكه څرنګه چي غلام كښيني. شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۳\۲۴۷، رقم: ۳۶۸۳.

**د لغاتو حل**: حجزته: معقد ازاره (د لونګ تړلو ځای)

**تشريح**: كښته والی او خاكساري اختيار كړه، يعني د فقر، ستونزو او تنګی ژوند اختيار كړه چي په هغه كي د دنيا په لحاظ خاكساري ده مګر د الله جل جلاله په نزد لوړتيا ده، ددې پر خلاف د پاچاهي او شتمنی ژوند د سركښی او د الله جل جلاله د هېرولو سبب او د تكبر او ناشكری ذريعه ګرځي، چي د هغه په اختيارولو سره انسان د خپل پروردګار د قرب څخه ليري كيږي، حضرت جبرائيل عليه السلام دغه خبره د غالب حال په اعتبار وښودل او ځكه اكثر انبياء، علماء او صالحين د فقر او تنګی ژوند اختيار كړی دی او هغوئ همېشه د مال او دولت او عيش او آرام پر ژوند باندي د محنت او مشقت ژوند ته ترجيح وركړل: اللهم اجعلنا منهم واحشرنا معهم.

چي غلام يې خوري، ددې مطلب دا وو چي څرنګه يو غلام ته د هغه مالک خوراک وركوي نو هغه يې په صبر او شكر سره خوري كه څه هم هغه هر څومره ناخوښه او د كښتي درجې وي، همدارنګه ما ته چي كوم خوراک تر لاسه سي هغه په صبر او شكر سره خورم نه د ادنا خوراک خواهش مي وي او نه د ادنا خوراک په خوړلو سره تنګي او ناخوښي محسوس كيږي.

لكه څرنګه چي غلام كښېني، ددې څخه د التحيات په شكل ناسته مراد ده او د ناستي غوره حالت همدغه دی، يا د خوراک كولو په وخت كي هغه هيئت مراد دی چي په هغه كي يو زنګون پورته وي او پر كوناټي كښيني په عامه توګه رسول الله ﷺ به په دغه ډول كښېنستی.

# بَابُ الْمَبْعَثِ وَبَدْءِ الْوَحْيِ

## (د رسول الله ﷺ د بعثت او د وحي د نازلېدو بيان)

د مبعث لفظ د بعث او د بعث د زمانې په معنی دی او د بعث معنی د پورته کولو او لېږلو ده، دلته د دغه لفظ څخه مراد دادی چي الله جَلَّ جَلَالُهُ، حضرت محمد عربي ﷺ د خپل نبي او رسول په ګرځولو سره ټول مخلوق ته راولېږی.

د بدء لفظ د پيل او شروع په معنی دی، په ځينو روايتو کي د بدء پر ځای د بدو لفظ دی او ددې معنی د ظهور ده، د مفهوم او مطلب په اعتبار په دواړو کي فرق نسته مګر غوره او مناسب لومړنی روايت دی چي په هغه کي د بدء لفظ دی.

د وحي اصلي معنی د اشاره کولو، ليکلو او په کنايه کي د خبرو کولو، پيغام لېږلو، القاء او الهام کولو ده، په مشارق الانوار کي ليکلي دي چي د وحي اصلي مفهوم په تېزي سره په پټه توګه د پيغام وړل دي، پر رسول الله ﷺ او نورو نبيانو عليهم السلام باندي د وحي د نازلېدو مختلف صورتونه وه، ځينو ته په ژوندی بڼه د الله جَلَّ جَلَالُهُ سره د تکلم شرف تر لاسه وو لکه حضرت موسی عليه السلام ته او ددې ثبوت د قرآن کريم څخه تر لاسه کيږي، يا زموږ پيغمبر حضرت محمد ﷺ ته هم د معراج په شپه کي دغه شرف تر لاسه سوی وو، دوحي دوهم صورت رسالت او د ملائکي وساطت دی چي حضرت جبرائيل عليه السلام د الله جَلَّ جَلَالُهُ د پيغام او هدايت په راوړلو سره راتلی او حرف په حرف به يې رسول او نبي ته رسوی،

د وحي اکثر او زيات دغه صورت په عمل کي راتلی، دوحي دريم صورت القاء ده يعني د الله جَلَّ جَلَالُهُ له خوا د يوې خبري او يو مضمون په زړه کي اچول لکه رسول الله ﷺ وفرمايل: القی في روعي، دغه خبره زما په زړه کي واچول سول، اووايي چي پر حضرت داؤد عليه السلام باندي به کومه وحي راتلل هغه زيات وختونه په دغه صورت کي وه دا خو د هغه وحي ذکر وو چي د هغه نسبت نبيانو ته کيږي، په قرآن کريم کي په ځينو ځايو کي د وحي نسبت د نبيانو څخه ماسوا نورو ته هم سوی دی نو څرګنده دې وي چي په داسي ځايو کي د وحي لفظ د الهام په معنی کي استعمال سوی دي لکه چي په يو ځای کي فرمايي: (واوحينا الی ام موسی) او موږ د موسی عليه السلام مور ته په زړه کي ور واچول، له دې کبله د وحي لفظ د امر په معنی کي هم راځي لکه چي په يو آيت کي دي: (واوحينا الی الحواريين) او موږ حوارينو ته حکم وکړ، او د وحي څخه مراد د طبعي

خاصې پیدا کول هم دي لکه چي الله ﷻ فرمايي :
(واوحی ربک الی النحل) او ستا پروردګار د عسلو موچۍ ته په طبيعت کي دا وروا چول.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### رسول الله ﷺ د څلوېښتو کالو په عمر په نبوت مشرف سو

﴿۵۵۸۸﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بُعِثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَرْبَعِينَ سَنَةً فَمَكُثَ بِمَكَّةَ ثَلَاثَ عَشْرَةَ سَنَةً يُوحَى إِلَيْهِ ثُمَّ أُمِرَ بِالْهِجْرَةِ فَهَاجَرَ عَشْرَ سِنِينَ وَمَاتَ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ. متفق عليه.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د څلوېښتو کالو په عمر کي پيغمبر سو ، ددې وروسته ديارلس کاله په مکه کي وو په دغه دوران کي به وحي راتلې، بيا ورته د هجرت حکم وسو او د هجرت څخه وروسته لس کاله په مدينه کي وو او د درو شپيته کالو په عمر کي وفات سو . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۲۲۷، رقم: ۳۹۰۲، ومسلم ۴\۱۸۲۶، رقم: ۱۱۷- ۲۳۵۱.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د عمر مبارک په اړه مختلف روايتونه منقول دي مګر زيات صحيح دا روايت دی چي د ۶۳ کالو په عمر له دنيا څخه رخصت سو ، او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په خپل روايت کي د پنځه شپېته کالو په عمر کي د وفات ذکر دی او د حضرت انس رضي الله عنه په روايت کي چي مخته راځي د شپېتو کالو په عمر کي د وفات ذکر دی، په ظاهره دا معلومېږي چي حضرت ابن عباس رضي الله عنه په مخکني روايت کي د سن ولادت او سن وفات هم پوره کال شمېرل سوی دی او هغه دوه کاله په يو ځای کولو سره ټول ۶۵ کاله يې بيان کړل او حضرت انس رضي الله عنه د درو شپېتو څخه کسر يعني د درو شمېر حذف کړ او د شپېتو کالو يادونه يې وکړله.

### د وحي ابتداء

﴿۵۵۸۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ أَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ خَمْسَ عَشْرَةَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ (د نبوت تر لاسه کيدو وروسته) پنځلس کاله په مکه کي قيام وکړ ،

سَنَةً يَسْمَعُ الصَّوْتَ وَيَرَى الضَّوْءَ سَبْعَ سِنِينَ وَلَا يَرَى شَيْئًا وَثَمَانَ سِنِينَ

په دغه وخت کي به يې راسته او چپه خوا ته د (دجبرائيل عليه السلام) اواز اوريدی او په تاريکۍ کي به يې رڼا ليدل، او ددې څخه پرته به يې نه ليدل، تر اوو کلو پوري دغه معامله وه

يُوحَىٰ إِلَيْهِ وَأَقَامَ بِالْمَدِينَةِ عَشْرًا وتوفي وهو ابن خمس وستين سنة. متفق عليه

بيا تر اته کاله پوري وحي راتلل او په مدينه کي يې لس کاله قيام وکړ او د پنځه شپيتو کالو په عمر کي وفات سو. بخاري او مسلم.

**تخريج:** لم نجده في صحيح البخاري ومسلم ۴\۱۸۲۷، رقم: ۱۲۲- ۲۳۵۳.

**تشريح:** د ۶۵ کالو وضاحت په تېر سوي تشريح کي وسو، د رسالت پر منصب باندي د شرف تر لاسه کېدو وروسته په مکه کي د رسول الله ﷺ د قيام وخت ۱۵ کاله ښودل سوي دي او په ذکر سوي حديث کي د ۱۳ کالو ذکر دی، نو دلته هم دا وضاحت کيږي چي حضرت ابن عباس رضي الله عنه په دغه روايت کي د ولادت او د هجرت پوره پوره کالونه شمېرلي دي او د ۱۳ کالو پر ځای يې ۱۵ کاله ذکر کړل.

دغه حديث پر دې خبره دلالت کوي چي د رسول الله ﷺ د ذکر سوي آواز اورېدل او هغه عجيبه رڼا لېدل پر منصب نبوت باندي د فائز کېدو څخه وروسته په مکه کي د ۱۵ کالو د قيام په لومړني اووه کالو کي پېښېدل: د تاريخي رواياتو او ځينو نورو حديثو څخه دا معلوميږي چي دغه صورت حال د ظهور نبوت څخه مخکي پېښ سوی وو او په دې کي حکمت دا وو چي رسول الله ﷺ د عالم ملکوت سره آشنا سي او داسي نه وي چي د ماوراء الدنيا د حالاتو او کيفياتو په ناڅاپه ظهور سره، د انساني او بشري حالت او قوت زغملو څخه عاجز سي.

## وفات

﴿۵۵۹۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ تَوَفَّاهُ اللّٰهُ عَلَىٰ رَأْسِ سِتِّينَ سَنَةً. متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي الله جل جلاله رسول الله ﷺ د شپيتو کالو په عمر کي وفات کړ. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۳۵۶، رقم: ۵۹۰۰، ومسلم ۴\۱۸۲۴، رقم: ۱۱۳- ۲۳۴۷.

**د رسول الله ﷺ او خلفاء راشدينو عمر**

﴿۵۵۹۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قُبِضَ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ وَأَبُو بَكْرٍ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ وَعُمَرُ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ . رواه مسلم قال محمد ابن اسماعيل البخاري ثلث وستين اكثر .

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د درو شپيتو کالو په عمر کي وفات سو او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه هم د درو شپيتو کالو په عمر کي وفات سو او حضرت عمر رضي الله عنه هم د درو شپيتو کالو په عمر کي وفات سو . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۸۲۵، رقم: ۱۱۴– ۲۳۴۸.

**تشريح**: لکه څرنگه چي مخکي يادونه وسول چي د رسول الله ﷺ د عمر مبارک په اړه صحيح روايت دادى چي د ۶۳ کالو په عمر کي د دنيا څخه تشريف يوور، همدارنگه د خليفه اول حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په اړه بېله اختلافه ثابته ده چي د هغه عمر ۶۳ کاله وو، د خلافت صديق وخت دوه کاله او څلور مياشتي دى، همدارنگه حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه چي د رسول الله ﷺ څخه وروسته څومره وخت ژوندئ وو هغومره ورځي تر رسول الله ﷺ کشر وو، د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د عمر په اړه مختلف روايتونه دي، صحيح روايت د ۶۳ کالو دى ، په ځينو روايتو کي د ۵۹ کالو ذکر دى ، خپله د مشکوة مؤلف ليکلي دي چي د مغيره ابن شعبه غلام ابولولوء د ۲۶ ذي الحجې ۲۳ هجري کال د چار شنبې په ورځ په مدينه کي په خنجر سره په حمله کولو حضرت عمر رضي الله عنه زخمي کړ او ۱۰ محرم الحرام ۲۴ هجري کال د يکشنبې په ورځ د هغه ښخېدل وسول، هغه وخت د هغه عمر ۶۳ کاله وو او دا قول زيات صحيح دى، د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت وخت لس کاله او شپږ مياشتي وو .

حضرت عثمان غني رضي الله عنه د واقدي د روايت مطابق په ۱۸ ذي الحجه ۲۵ هجري کال د جمعې په ورځ د يو مصري سرکښ اسود تجيبي د لاسه د شهادت جام نوش کړ او د شنبې په ورځ په جنت البقيع کي دفن کړل سو ، په هغه ورځ د هغه عمر ۸۲ کاله وو ، ځينو علماؤ ليکلي دي چي ۸۸ کاله وو ، د دوئ په اړه ځيني نور روايتونه هم نقل کيږي ، د حضرت عثمان د خلافت زمانه څو ورځي کم دوولس کاله وو ، حضرت علي رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت په ورځ خليفه وټاکل سو او په ۱۷ د رمضان ۱۰ هجري کال د جمعې په ورځ يو سړي عبدالرحمن ابن ملجم په

کوفه کي پر هغه قاتلانه حمله وکړل چي د هغه په نتیجه کي سخت زخمي سو او د هغه حملې څخه درې ورځي وروسته په حق ورسېدی یعني شهادت يې په برخه سو، نوموړی په نجف کي دفن کړل سو، په هغه ورځ دده عمر ۶۳ کاله وو، د نوموړي د خلافت زمانه څو ورځي زیات څلور کاله او نهه میاشتي وو.

د امام بخاري رحمة الله علیه د قول مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ د عمر په اړه چي مختلف روایتونه منقول دي په هغو کي تر ټولو زیات صحیح روایت د ۶۳ کالو د قول دی نور اقوال لکه ۶۰ کاله، یا ۶۵ کاله په اړه کم روایتونه دي، ځکه اصل اعتبار د هغه روایت کیږي چي په هغه کي د ۶۳ کاله د عمر ذکر وي او د روایتونو ددغه اختلاف مدار د ظهور نبوت څخه وروسته د قیام مکه پر وخت باندي دی چي رسول الله ﷺ دنبوت پر منصب باندي د مشرف کېدو څخه وروسته په مکه کي لس کاله وو که دیارلس کاله او که پنځلس کاله، او تر ټولو زیات صحیح روایت ددیارلسو کالو دي، او کوم چي د رسول الله ﷺ د زېږېدو د نېټي تعلق دی نو د صحیح او مشهور روایت مطابق د رسول الله ﷺ ولادت مبارک د فیل د پېښي په کال وسو بلکه قاضي عیاض رحمة الله علیه لیکلي دي چي د تاریخ پوهانو او علماؤ پر دې اجماع ده، د یوم ولادت په اړه دا خبره خو علماؤ او مؤرخینو په اتفاق سره منلې ده چي رسول الله ﷺ د ربیع الاول په میاشت کي د دوشنبې په ورځ پیدا سو مگر د تاریخ په اړه اختلاف دی چي دوولسم تاریخ وو او که اتلسم یا لسم، د رسول الله ﷺ وفات هم د ربیع الاول په میاشت کي د دوشنبې په ورځ د څاښت په وخت کي وسو.

## دوحي د پیل تفصیل

﴿۵۵۹۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روایت دی چي تر ټولو لومړنی شي چي د رسول الله ﷺ سره پیل سو

مِنَ الْوَحْيِ الرُّؤْيَا الصَّادِقَةَ فِي النَّوْمِ فَكَانَ لَا يَرَى رُؤْيَا إِلَّا جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ

د وحي په لړ کي هغه په خوب کي د ریښتوني خوبو لیدل وه، رسول الله ﷺ چي به کوم خوب ولیدی د هغه تعبیر به د ځلانده ورځي په ډول معلومیدی

الصُّبْحِ ثُمَّ حُبِّبَ إِلَيْهِ الْخَلَاءُ وَكَانَ يَخْلُو بِغَارِ حِرَاءٍ يَتَحَنَّثُ فِيهِ وَهُوَ التَّعَبُّدُ

بیا د رسول الله ﷺ کناره کېدل خوښ سول، او رسول الله ﷺ به په غار حراء کي کناره کېدی

(يعني خلوت به يې کوی)، په غار حراء کي به يې عبادت کوی

اللَّيَالِيَ ذوات الْعَدَدِ قَبْلَ أَنْ ينزع إِلَى أَهْلِهِ وَيَتَزَوَّدُ لِذَلِكَ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى خَدِيجَةَ

او په شماريو څو شپې به په عبادت کي بوخت وو تر هغو پوري چي کورته به يې خواهش کيدی، رسول الله ﷺ به د ځان سره خوراک وړی او هر کله چي به هغه ختم سوه نو بي بي خديجې

فَيَتَزَوَّدُ لِمِثْلِهَا حَتَّى فَجِئَهُ الْحَقُّ وَهُوَ فِي غَارِ حِرَاءٍ فَجَاءَهُ الْمَلَكُ فَقَالَ اقْرَأْ

ته به راتلی او څو مره ورځي چي به يې په غار حراء کي د پاته کيدو اراده وه د هغومره ورځو توښه به يې د ځان سره وړل تر دې چي رسول الله ﷺ ته حق راغلی (يعني د حق پيغام)، رسول الله ﷺ هغه وخت په غار حراء کي وو ، ملائکه ورته راغلل ورته وه يې ويل ووايه!

فَقَالَ مَا أَنَا بِقَارِئٍ قَالَ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَقَالَ

رسول الله ﷺ وفرمايل : زه لوستونکی نه يم، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : ملائکي زه ونيولم ښه زوريې راکړتر دې چي زه ستړی سوم ، بيا ملائکي زه پريښودلم او راته وه يې ويل :

اقْرَأْ فقُلْتُ مَا أَنَا بِقَارِئٍ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّانِيَةَ حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدَ ثُمَّ

ووايه! ما ورته وويل : زه لوست نه سم کولای، هغه ملائکي زه بيا ونيولم او ښه يې کښېښلم تر دې چي زه ستړی سوم بيا

أَرْسَلَنِي فَقَالَ أَقْرَأْ فَقُلْتُ مَا أَنَا بِقَارِئٍ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّالِثَةَ حَتَّى بَلَغَ مِنِّي

ملائکي زه پرېښودلم او وه يې ويل : ووايه! ما ورته وويل زه ويونکی نه يم ، هغه ملائکي زه بيا ونيولم او په دريم واريې بيا زه ښه کښېښلم تر دې چي زه ستړی سوم ،

الْجَهْدَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَقَالَ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ

بيا هغه ملائکي زه پرې ښودلم او راته وه يې ويل : (اقرا باسم ربک الذي خلق.....تر پايه)، (د خپل هغه پروردګار په نامه سره ووايه چي هر شي يې پيدا کړ چي انسان يې د يخی سويويني ټخه پيدا کړ

اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ عَلَّمَ الْإِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ فَرَجَعَ بِهَا

او ستا پروردګار تر ټولو بزرګ دی هغه پروردګار چي د قلم په ذريعه يې علم وښودی او انسان

ته يې هغه شي وښودی چې په هغه نه پوهيدی)، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دد غه وحي

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ برجف فواده فدَخَلَ عَلَى خَدِيجَةَ فَقَالَ زَمِّلُونِي

سره (مكي ته) راوګرزيدی، او حالت دا وو چې د رسول الله ﷺ مبارک زړه رپيدی، بي بي خديجې ته په رسيدو سره يې ورته وفرمايل پر ما جامه واچوه

زَمِّلُونِي فَزَمَّلُوهُ حَتَّى ذَهَبَ عَنْهُ الرَّوْعُ فَقَالَ لِخَدِيجَةَ وَأَخْبَرَهَا الْخَبَرَ لَقَدْ

پر ما جامه واچوه (چې تود سم)، نو جامه پر واچول سوه، تر دې چې بيره يې ولاړه بيا يې بي بي خديجې ته ټوله پېښه بيان کړه، او ورته وه يې فرمايل:

خَشِيتُ عَلَى نَفْسِي فَقَالَتْ خَدِيجَةُ كَلَّا وَاللهِ لَا يُخْزِيكَ اللهُ أَبَدًا إِنَّكَ لَتَصِلُ

زما سره د ځان بيره ده، بي بي خديجې ورته وويل تاسو بالكل مه بيريږئ، داسي به نه وي په الله ﷻ دي مي قسم وي هغه به مو هيڅكله ذليل او رسوا نه کړي تاسو د خپلوانو سره ښه چلن کوئ

الرَّحِمَ وَتَصْدُقُ الْحَدِيثَ وَتَحْمِلُ الْكَلَّ وَتَكْسِبُ الْمَعْدُومَ وَتَقْرِي الضَّيْفَ

، رښتيا وايا ست، د غريبانو او مسكينانو مرسته كوئ د مسكينانو لپاره ګټه كوئ، د ميلمنو ميلمستيا كوئ

وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الْحَقِّ فَانْطَلَقَتْ بِهِ خَدِيجَةُ الى وَرَقَةَ بْنَ نَوْفَلِ بْن عَمِّ

او په قدرتي پېښو كي د خلكو مرسته كوئ، بيا بي بي خديجې د خپل اكا زوی ورقه بن نوفل ته

خَدِيجَةَ فَقَالَتْ لَهُ يا ابن عَمِّ اسْمَعْ مِنِ ابْنِ أَخِيكَ قَالَ له وَرَقَةُ بْنُ نَوْفَلٍ يَا ابْنَ

بوتلی او هغه ته يې وويل د اكا زويه! د خپل وراره (يعني رسول الله ﷺ) خبره واوره، ورقه بن نوفل رسول الله ﷺ ته وويل ولي اې

أَخِي مَاذَا تَرَى فَأَخْبَرَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَبَرَ مَا رَآهُ فَقَالَ وَرَقَةُ

زما وراره! څه خبره ده، رسول الله ﷺ ټوله پېښه ورته بيان کړه چې رسول الله ﷺ ليدلي وه، ددې اوريدو سره ورقه وويل:

هَذَا النَّامُوسُ الَّذِي أَنْزَلَ الله عَلَى مُوسَى يَا لَيْتَنِي كنت فِيهَا جَذَعًا يَا لَيْتَنِي

دا هغه ناموس (ملائكه) دى چي د الله تعالى له لوري پر موسى عليه السلام نازل سوى وو ، كاش چي زه هغه وخت زلمى واى چي ته به خپل قوم ته تبليغ كوې ، يا كاش چي زه

أَكُونُ حَيًّا إِذْ يُخْرِجُكَ قَوْمُكَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او مخرجيهم

تر هغه وخت پوري ژوندى واى چي ستا قوم به تا وباسي، (د مكې څخه) رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه زما قوم به ما د مكې څخه باسي؟

قَالَ نَعَمْ لَمْ يَأْتِ رَجُلٌ قَطُّ بِمِثْلِ مَا جِئْتَ بِهِ إِلَّا عُودِيَ وَإِنْ يُدْرِكْنِي يَوْمُكَ

ورقه ورته وويل هو كوم شى چي تا راوړى دى (يعني نبوت او رسالت) نو كوم يو چا چي دا راوړى دى د هغه سره دښمني سوې ده كه زه په هغه ورځو كي واى

أَنْصُرْكَ نَصْرًا مُؤَزَّرًا ثُمَّ لَمْ يَنْشَبْ وَرَقَةُ أَنْ تُوُفِّيَ وَفَتَرَ الْوَحْيُ . متفق عليه و زاد

نو زه به ستا ښه مرسته وكړم، ددې پېښې څخه وروسته ورقه وفات سو او د څه وخت لپاره وحي بنده سوه، بخاري او مسلم، او بخاري دا الفاظ زيات كړي دي چي

البخاري حَتَّى حَزِنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا بَلَغَنَا حُزْنًا غَدَا مِنْهُ مِرَارًا

رسول الله ﷺ لكه څرنګه چي موږ ته د حديثو څخه معلومه سوې ده د وحي لړۍ په بنديدو سره ډير غمګين سو دومره غمګين چي څو واره رسول الله ﷺ په سهار كي

كَيْ يَتَرَدَّى مِنْ رُءُوسِ شَوَاهِقِ الْجِبَالِ فَكُلَّمَا أَوْفَى بِذِرْوَةِ جَبَلٍ لِكَيْ يُلْقِيَ مِنْهُ

ددې ارادې سره غرونو ته ولاړى چي ځان د غره د څوكي څخه را وغورځوي نو هر وخت چي به غره ته وختى چي خپل ځان لاندي را وغورځوي

نَفْسَهُ تَبَدَّى لَهُ جِبْرِيلُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ حَقًّا فَيَسْكُنُ لِذَلِكَ جَأْشُهُ وَتَقِرُّ نَفْسُهُ.

نو جبرائيل عليه السلام به ورته ښكاره سو او فرمايل به يې اې محمد ! بې شكه ته د الله رسول يې ، ددې الفاظو اوريدو سره به يې پريشاني او خفګان دفع سو او زړه به يې مطمئن سو.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\ ٢٢، رقم: ٣. ومسلم ١١\ ١٣٩، رقم: ٢٥٢- ١٦٠.

**د لغاتو حل**: الکل: وهو ما لایستقل بامره ای انک تتحمل مونة الکل. جذعا: ای جلدا شابا قویا. (زلمی)

**تشریح**: بي بي عائشې ﷞ دغه روایت د وحي نازلېدو د پیل تهول تفصیل یا خو خپله له رسول الله ﷺ څخه اورېدلی دی او یا یې له یو صحابي څخه په نقل کولو سره بیان کړی دی، ځکه چي د نبوت د ظهور په لومړنۍ زمانه کي د بي بي عائشې ﷞ وجود هم نه وو.

رسول الله ﷺ په خوب کي ریښتوني خوبونه لېدل، په دې اړه شارحینو دا قول نقل کړی دی چي د ظهور نبوت څخه مخکي د ریښتونو خوبونو لېدلو وخت شپږ میاشتي وو او د ریښتوني خوب حقیقت دا دی چي الله ﷻ د بنده سړي پر زړه او دماغ او د هغه پر احساساتو باندي د هغه شیانو عکس اچوي کوم چي واقع کېدونکي وي، یا مخکي واقع سوي وي مګر د هغه چا په علم کي نه وي، همدارنګه د ویښې په حالت کي د انسان زړه، دماغ او احساس هم بېداره وي، همدارنګه د الله ﷻ په حکم سره د هغه بنده سړي ادراک او احساس هم بېداره کیږي او نیتجه یې داسي چي هغه سړي په خوب کي څه ویني هغه بعینه عملي او وجودي تعبیر د هغه د ویښېدو څخه وروسته ویني او په پوهیږي، دغه کار د الله ﷻ په حکم او قدرت سره وي او په عملي دنیا کي ناممکن نه دی، هغه قادر مطلق پر هر شي باندي قدرت لري چي د هغه د فعل په لاره کي خنډ نه سي واقع کیدای.

رسول الله ﷺ په غار حراء کي ناسته اختیار کړل، حراء د هغه مشهور غره نوم دی چي د مکې شاوخوا واقع دی، دغه غره ته جبل ثور هم ویل کیږي، ددغه ځای څخه کعبه شریفه معلومیږي او کیدای سي په دې وجه رسول الله ﷺ د الله ﷻ د عبادت لپاره په دغه غره کي دغه غار ټاکلی وو، ویل کیږي چي حضرت عبدالمطلب هم د فیل د پیښې په وخت کي دغه غر خپل پناه ګاه ګرځولی وو او دلته په دعاء او مناجاتو کي بوخت وو، د حدیث ددغه جملې په اړه شارحینو د خلوت او یوازیوالي په اړه ګټوري خبري لیکلي دي، د مثال په توګه خلوت (یوازیوالی) اختیارول د الله ﷻ د نیکو او صالحو بندګانو یو خاص شان وي ځکه د نبوت د ظهور څخه مخکي رسول الله ﷺ ددغه شان شوقي سو او ددې حکمت دادی چي په خلوت او یوازیوالي کي زړه او دماغ ته پوره سکون او فراغت حاصلیږي، الله ﷻ ته د پوره متوجه کېدو موقع ترلاسه کیږي، د دنیاوي تعلقاتو او فکرو څخه د انساني دماغ قطع کیږي، د الله ﷻ یاد او د هغه په عبادت کي خشوع او خضوع، نورانیت او طمانیت ترلاسه کیږي مګر ددې مطلب دا نه دی چي په هر حالت او هر وخت کي خلوت او یوازیوالی تر ټولو ښه شي او د شریعت په نظر کي زیات غوره دی، بلکه حقیقت دادی چي د خلوت او عزلت په ډول د جلوت او اختلاف هم

ارزښت دی او په دواړو کي کوم صورت چي افضل دی ددې مدار د راتلونکو حالاتو او معاملاتو پر ښه والي او بدوالي باندي دی او په دواړو کي د هر یوه صورت د هغه د شرائطو او ضروریاتو سره سم چي د هغه په شریعت کي اعتبار دی ، پر خپل خپل ځای باندي افضل او غوره دي ، که په یوې ټولنه کي خرابي خپره سوې وي او د خلکو سره په ګډون کي د دین او ایمان د تاوان ښېره وي او هیڅوک د نصیحت اورېدو ته تیار نه وي نو په دغه صورت کي خلوت او یوازیوالی افضل دی او که د دین او ایمان خطره نه وي خلک د تعلیم او نصیحت اړتیا لري او دا خبره معلومه وي چي خلکو ته د تعلیم او نصیحت په ذریعه د نیکۍ روزنه ورکول کیدای سي نو په دغه صورت کي د ټولو سره ګډ اوسېدل او ټولنیز ژوند اختیارول افضل دي .

د تحنث معنی د شپې عبادت کولو ده، لکه څرنګه چي خپله بي بي عائشې ﷺ یا بل راوي د (فیتحنث فیه) څخه وروسته د (وهو التعبد اللیالي) په ذریعه د دغه لفظ وضاحت کړی دی، په هرحال د ډېرو شپو څخه مراد څو ورځي او شپې دي او په خاصه توګه د شپو ذکر په دې وجه سوی دی چي د خلوت سره د شپې زیات مناسبت وي او دا چي د ډېرو قید لګول سوی دی نو له دې څخه قلت ته اشاره کول مراد ده چي د پرله پسې شپو او ورځو د عبادت د بوختیا لړۍ به تر زیاتو ورځو پوري نه وه بلکه تر څو ورځو پوري به وه، مګر ځینو حضراتو د دې څخه مراد د کثرت مراد کېدل هم د امکان څخه ایستلې نه دي ځکه چي د یو تسلسل ذکر کولو ضرورت په هغه صورت کي وي چي کله هغه په غیر معمولي توګه اوږد وي او پر زیاتو ورځو مشتمل وي.

تر څو چي د کورنۍ شوق به یې پیدا سوی نه وو، ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به د دغه غار حراء څخه په وتلو سره ښار ته هغه وخت راتلی چي کله به پرله پسې د څو ورځو بوختیا وروسته د کورنۍ د خبر اخیستلو او د هغوئ د حقوقو او اړتیاوو پوره کولو لپاره هغوئ ته د راتلو خواهش پیدا سو ، دلته دا ذکر کول ضروري دي چي په یوه روایت کي د ینزع پر ځای د یرجع لفظ راغلی دی .

د راتلونکو شپو په اندازه د شیانو په اخیستلو سره به بېرته غار ته تلی، ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به تر څو ورځو پوري په خلوت کي وو، د رسول الله ﷺ د ا معمول وو چي د عبادت لپاره به غار حراء ته تلی او کله چي به هلته د خوراک او څښاک سامان ختم سو نو په ښار کي خپل کور ته به راتلی او د بي بي خدیجې ﷺ څخه به یې د نورو ورځو خوراکي توکي اخیستل او غار ته به تلی، او ددغه شیانو د وړلو مقصد دا وو چي د لوږي او تندي سختي په خلوت کي خنډ نه سي او په پوره اطمینان او ارامه سره په عبادت کي بوخت سي، ددې څخه

معلومه سول چي د ضرورت په اندازه خوراكي توكي د ځان سره ساتل د توكل خلاف نه دي ، محققينو ليكلي دي چي د رسول الله ﷺ د خلوت وخت به په هر كال كي يوه مياشت وو او هغه به د رمضان مباركه مياشت وه .

په دې اړه مختلف قولونه دي چي رسول الله ﷺ د نبوت څخه مخكي په پخوانيو شريعتو كي د يوه شريعت پيروي كول او كه په خپل عقل سره كوم عمل چي به يې خوښ وګڼی په هغه به يې عمل كوی، او كه د هر شريعت څخه به يې هغه عمل اختياروی كوم چي رسول الله ﷺ افضل ګڼی ، او دا چي د پخوانيو شريعتو څخه د يوه شريعت اتباع يې كول نو هغه كوم شريعت وو چي ډېرو علماؤ كه څه هم دا قول اختيار كړی دی چي رسول الله ﷺ د خپل نبوت او شريعت د ظهور څخه مخكي د حضرت ابراهيم عليه السلام په دين عمل كوی ځكه په يوه روايت كي د يتحنث پر ځای د يتحنف لفظ راغلی دی، ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ پر دين حنيف يعني د حضرت ابراهيم عليه السلام په دين عمل كوی مګر په دې اړه صحيح او مناسبه خبره دا معلوميږي چي د نبوت څخه مخكي رسول الله ﷺ په عملي توګه د يو دين او شريعت تابع نه وو ، بلكه د الله جل جلاله له خوا د رسول الله ﷺ زړه او دماغ ته د بصيرت هغه نور وركړل سوی وو چي نيک او ښه عمل ته يې د رسول الله ﷺ لارښوونه كول، او همدارنګه رسول الله ﷺ به خپله هغه كار كوی چي د الله جل جلاله په نزد به غوره او مقبول وو ، دلته يو سوال پيدا كيږي چي د رسول الله ﷺ د عبادت تعلق د ذكر او شغل سره وو او كه د ذكر او استغراق سره ؟ په دې اړه څو قولونه دي او صحيح قول دادی چي د رسول الله ﷺ به د ذكر او شغل په صورت كي وو نه د فكر او استغراق په صورت كي .

زه په ويلو نه پوهېږم، د دې مطلب يا خو دا وو چي زه په ښه ډول پر لوستلو قادر نه يم يا دا چي د رسول الله ﷺ د ژبي مباركي څخه دا جواب د هغه د بيري په وجه ووتی چي ناڅاپه د يوې ملائكي د لېدو په وجه د رسول الله ﷺ پر زړه او دماغ باندي خپور سوی وو ، نو دا ګمان دي نه كيږي چي رسول الله ﷺ دغه جواب ځكه وركړ چي رسول الله ﷺ امي وو او په حقيقت كي په ويلو قادر نه وو ، ځكه چي امي هغه سړي ته وايي چي په ويلو نه پوهيږي او څرګنده ده چي د يو چا په ښودلو سره ويل يعني د چا د ژبي څخه د يو عبارت او جملې په اورېدو سره په خپله ژبه ادا كول د امي كېدو خلاف نه دي، په خاصه توګه د داسي سړي په حق كي چي په فصاحت او ذهانت كي كامل وي ، او كوم چي د ليكلي عبارت په لېدو سره ويل يا د ليكلو تعلق دی نو دا د امي كېدو خلاف دی، په قاموس كي ليكلي دي : امي هغه سړي ته وايي چي په ليكلو او ليک ويلو باندي نه پوهيږي او په تحرير ورقو كي ما ته يو ليكلی شی نه معلوميږي نو زه څه ووايم، ددغه

روایت په رڼا کي د (زه په ویلو نه پوهېږم) معنی زیاته واضح او مناسب ټاکل کیدای سي.

تر دې چي زه پریشانه سوم، د (حتی بلغ مني الجهد) دغه ترجمه په هغه صورت کي ده چي کله د جهد په لفظ کي د دال حرف منصوب (زور لرونکی) یعني جَهدَ وویل سي، نو مطلب به دا وي چي حضرت جبرائیل علیه السلام د رسول الله ﷺ د خپلي سینې سره په لګولو سره په ډېر زور ونیوی چي په هغه سره رسول الله ﷺ ته تکلیف هم محسوس سو او د حضرت جبرائیل علیه السلام دغه عمل په اصل کي د رسول الله ﷺ په پاک وجود کي ملکوتي نور او په زړه مبارک کي د وحي د منتقل کولو یو داسي صورت وو چي د هغه مقصد رسول الله ﷺ ته د وحي الهي د عظمتونو د تحمل طاقت او قوت ورکول وو، او که د جهد لفظ د دال په پېښ سره یعني جهدُ وویل سي نو په دغه صورت کي به ترجمه دا وي چي حضرت جبرائیل علیه السلام زه دومره په زور ونیولم چي خپله هغه په ډېر تکلیف سو.

چا چي ته او هر شی پیدا کړی دی، ددې مطلب دادی چي تا لره د خپل ذاتي صلاحیت او طاقت یا د بل چا پر مرسته باور او اعتمادل کول نه دي پکار او د هغه مرسته غوښتونکی نه سې ځکه چي هغه هر شی پیدا کړی دی او هغه پر هر شي قادر دی، دلته یو خاص بحث ته اشاره کول ضروري دي، په دې اړه اختلافي قولونه دي چي تر ټولو مخکي د قرآن کریم کوم سورت نازل سوی دی لکه څرنګه چي ددغه روایت څخه هم ثابتېږي، د جمهورو علماؤ او مفسرینو قول دادی چي تر ټولو مخکي سورة اقراء نازل سوی دی مګر ځینو ویلي دي چي تر ټولو مخکي نازلېدونکی سورت یا ایها المدثر دی، که څه هم دغه قول د ډېر کمزوري کېدو په وجه د توجه وړ نه دی مګر ملا علي قاري رحمة الله علیه په دې اړه چي څه لیکلي دي د هغه څخه د دواړو قولو په منځ کي ډېر ښه تطبیق کیږي، هغه ویلي دي: زما په نزد دا ویل زیات غوره معلومیږي چي سورة اقرا خو حقیقي لومړنی سورت دی او یا ایها المدثر اضافي لومړنی سورت دی یعني د لومړنی وحي (سورة اقرا) نازلېدو څخه وروسته د نزول وحي چي کومه لړۍ تر څه وخته پوري قطع سوې وه او بیا دغه لړۍ په دوهم وار پیل سول نو هغه وخت تر ټولو مخکي د یا ایهاالمدثر سورت نازل سو، دلته ددې خبري یادونه هم مناسب معلومیږي چي دغه روایت د هغه حضراتو دلیل دی چي وایي: بسم الله الرحمن الرحیم د سورة جزء نه دی بلکه ددې نزول د دوو سورتو په منځ کي د فصل قائمولو لپاره سوی دی.

چي هغه د قلم په ذریعه د ډېر علم تعلیم ورکړ، دلته د قلم څخه مراد هغه قلم قدرت هم کیدای سي چي د الله جل جلاله په حکم سره اولین او آخرین ټول علوم یې په تحریر کي راوستل، او

ټول آسماني کتابونه په وجود کي د راوستلو لومړنۍ ذریعه جوړه کړه او زموږ د دنیا دا قلم هم مراد کیدای سي چي په حقیقت کي په دغه کائناتو انساني کي د قلم قدرت مظهر او مثال دی او ددې په ذریعه انسان د الله ﷻ ورکړی د نور علم او ذهانت په مرسته د ګومره علومو او حقائقو اظهار او انکشاف کوي، په مشهور تفسیر کشاف کي د دغه آیت په تفسیر کي لیکلي دي چي : زموږ دغه قلم د الله ﷻ د قدرت د کمال عظیم مظهر دی چي څرنګه عجیب او غریب علوم ددې په ذریعه لیکل کیږي .

انسان ته یې هغه شی وښودی چي هغه نه په پوهېدی، ددې مطلب دادی چي د انسان د خپل تاوان خبره نه وه چي په زمان او مکان کي هره لمحه د وجود راتلو نوي نوي شیانو علم او انکشاف باندي قادر سي دا خو د الله ﷻ د ورکړل سوي هغه نور علم او ذهانت ننبه ده چي د انسان د علم او معرفت لوړتیا ته رسوي ، کیدای سي چي دلته د انسان څخه مراد انسان کامل یعني د رسول الله ﷺ ذات مبارک مراد وي، په دغه صورت کي به ویل کیږي چي دلته د الله ﷻ دغه ارشاد ته اشاره ده : (وعلمک ما لم تکن تعلم وکان فضل الله علیک عظیما) او هر هغه شی یې تاته وښودی چي تا ته معلوم نه وو او دا پر تا د الله ﷻ لوی فضل دی .

ما ته دخپل ځان بېره ده، د رسول الله ﷺ ددغه بیري اظهار مختلفي وجهي کیدای سي، یا خو د هغه صورت سره ناڅاپه پر رسول الله ﷺ باندي دومره سخته بېره خپره سوې وه چي رسول الله ﷺ د هلاکت یا دماغي توازن خرابېدو بېره محسوس کړې وه یا دا چي رسول الله ﷺ ته دا بېره وه چي د منصب نبوت بار د زغملو څخه ونه وځي یا ددغه منصب په ادا کولو کي چي کوم مصیبتونه او پریشانۍ راځي د قوم له خوا د کومو تکلیفو سره مخامخ کیږي ، د وژني او ظلم اختار ورکول کیږي او خلک چي څرنګه د تکذیب او استهزاء چلن کوي پر هغه صبر وکړل سي ، یا رسول الله ﷺ ته دا بېره وه چي هیوادوال به ما د خپل ښار او هیواد څخه وباسي چي د هغه په وجه د خپل خواږه هیواد او کعبة الله قرب به راڅخه پاته سي .

تاسو د نورو بار پورته کوئ، دا د (تحمل الکَل) معنی ده، او کل په اصل کي باور ته وایي او په دې مناسبت سره چي د کورنۍ خبر ایستل او د هغوئ د اړتیاوو پوره کول یو بار وي ځکه نور کورنۍ ته هم کل ویل کیږي، نو ددې جملې مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ یو لوی صفت دا هم دی چي رسول الله ﷺ د خپلي کورنۍ مصرف او د هغوئ د ذمه دارۍ بار په ډېره ښه توګه پورته کوي او په دغه لار کي راتلونکي تکلیفونه هم رسول الله ﷺ نه په تکلیف کوي، که څه هم هغه کسان چي رسول الله ﷺ د هغوئ بار پورته کوي له رسول الله ﷺ سره د تعلق ختمولو او

بزدلۍ معامله کوي ، څرګنده دي وي چي دلته د بار پورته کولو په معنی کي د کمزورو، يتيمانو، کونډو او مسکينانو باندي مصرف کول هم شامل دي .

تاسو په غريبانو او مسکينانو باندي د مصرف کولو لپاره ګټه کوئ، دا د (تکسب المعدوم) معنی ده او دغه معنی په هغه صورت کي ده چي تکسب د تاء په زور سره وويل سي لکه څرنګه چي صحيح او مشهور دی او په ځينو روايتو کي دغه لفظ د تاء په پېښ سره هم منقول دی په دغه صورت کي به معنی داسي وي چي تاسو د غريبانو او مسکينانو په ګټه کي مرسته کوئ يعني هغوئ ته روپۍ او مال ورکوئ چي هغه خلک د يو کسب او کار په صورت کي خپل حالت سم کړي او د مسکنۍ څخه خلاصون تر لاسه کړي، په هر حال په دواړو صورتو کي مفهوم يو دی يعني په نيکو کارو کي د خپل مال مصرف کول ، ځينو حضراتو د معدوم مصداق يوازي پر فقير کړی دی چي عدم تصرف او بالکل د محتاج کېدو په اعتبار پاته وي په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي تاسو خپل مال په فقيرانو باندي د مصرف کولو په وجه د هغوئ په ژوند کي حرکت او عمل پيدا کولو سبب ګرځئ .

تاسو د خلکو په حقيقي پېښو او مصيبتو کي د هغوئ مرسته کوئ، دا د تعين علی غائب الحق معنی ده، نوائب په اصل کي د نائبة جمع ده چي د هغه معنی د هغه مصيبت او ضرورت ده چي رانازلېږي، مطلب دا چي رسول الله ﷺ د هر هغه سړي مرسته کوي چي د يو حقيقي پېښي او مصيبت په سبب عاجزه سي د مثال په توګه يو څوک د پور او ديت په ادا کولو باندي قادر نه وي او په مفلسۍ کي اخته کېدو په وجه د خپل مصيبت څخه خلاصون نه سي تر لاسه کولای نو رسول الله ﷺ هغه ته د مالي مرستي په ورکولو سره د هغه مصيبت څخه خلاصون ورکوي، د نوائب الحق د قيد څخه معلومه سول چي د هغه مصيبت وهلي مرسته او کومک ښه کار او مطلوب دی چي په قدرتي توګه مجبور او لاچاره وي، که يو څوک د خپل مصيبت خپله سبب سوی وي او هغه د خپلو کړنو او بدوعملو په وجه پر ځان مصيبت نازل کړی وي لکه د اسراف په صورت کي يې خپل مال برباد کړی وي يا په ناروا توګه په غضب او غصه کولو سره د ځان او يا مال تاوان يې کړی وي نو د هغه مرسته کول ښه او مطلوب نه دي .

بي بي خديجې ﷺ په دغه وخت کي د رسول الله ﷺ محاسن او صفتونو په ذکر کولو سره رسول الله ﷺ ته څرنګه ډاډ ورکړ، او ددې څخه معلومه سول چي ښه اخلاق او ښه صفتونه انسان په آفت او تاوان کي د لوېدو څخه ساتي او الله ﷻ يې د هغه صفتو او ښېګڼو په برکت ساتي، ځکه بي بي خديجې ﷺ دا دليل ونيوی چي ته د دومره زياتو ښېګڼو خاوند يې ځکه الله

ﷻ به تاسو د دين او دنيا د هر مصيبت او آفت څخه خوندي وساتي ، ددې څخه د بي بي خديجې ﷺ په اړه دا ثابته سول چي هغه د ډيري پوهي، بصيرت، معرفت او فقاهت خاونده وه ، او ولي به نه وه چي هغه تر ډيره وخته پوري د رسول الله ﷺ په زوجيت او خدمت کي وه او په رسول الله ﷺ باندي يې تر ټولو مخکي په حقيقت کي ايمان راوړ ، په دغه صفت کي د هغې هيڅوک شريک نسته ، رضي الله عنها ، ددغه حديث څخه معلومه سول چي يو څوک د يو شي په اړه پريشانه وي نو هغه ته اطمينان او ډاډ ورکول او د هغه په وړاندي د امن او سلامتيا اسباب ذکر کول ښه کار دی او په دغه حديث کي دې ته اشاره ده چي د رسول الله ﷺ مسکنت اختيارول خپل اختيار سوی شي او خوښ وو ، نه دا چي اضطراري او ناخوښه وو چي د هغه اصل بنياد د سخاوت او کرم اظهار وو ، ددې څخه ماسوا دا خبره هم څرګنده سول چي په رسول الله ﷺ کي ددغه نيکيو او ښېګڼو موجود کېدل تر نبوت مخکي ددې دليل دی چي دغه ټول انساني او اخلاقي صفتونه او محاسن د رسول الله ﷺ په ذات مبارک کي طبعي وه او په خلقي توګه وه .

ورقه بن نوفل د بي بي خديجې ﷺ د سکه اکا زوی وو ځکه چي هغه د خالد ابن اسد ابن عبدالعزى لور وه او ورقه د نوفل ابن اسد ابن عبدالعزى زوی وو ، ورقه که څه هم د مکې د مشرکينو سره نسبي تعلق درلود مګر هغه د جاهليت په زمانه کي د نصرانيت مذهب اختيار کړی وو ، او بيا يې په انجيل کي لويه پوهه تر لاسه کړل او په عربي کي د هغه ترجمه يې هم وکړل ، د نبوت د ظهور په وخت کي کله چي بي بي خديجې ﷺ، رسول الله ﷺ هغه ته وروستی نو په هغه زمانه کي هغه ډېر ضعيف او سپين ږيری سوی وو تر دې چي د هغه بينائي هم له منځه تللې وه .

اې د اکا زويه! د خپل وراره مشکل واوره، د بي بي خديجې ﷺ ، رسول الله ﷺ ته د ورقه وراره ويل محض د ورقه د سپين ږېرتوب په وجه او د هغه د عزت له موخي وويل، نه دا چي رسول الله ﷺ په حقيقت کي د ورقه وراره وو ، په عربو کي دا رواج وو چي خلکو به په خپلو کي د ليدني او مخاطبت په وخت کي يو بل ته اکا او وراره ويل .

دا خو هغه ناموس (ملائکه) ده ... الخ : ناموس په اصل کي هغه سړي ته وايي چي د پاچا رازدار او باوري کس وي، په دغه مناسبت سره اهل کتابو به حضرت جبرائيل ﷺ ته ناموس ويل، ځينو علماؤ ويلي دي چي ناموس د خير راز دار ته وايي او جاموس د شر راز دار ته ويل کيږي، ورقه ابن نوفل د نصرانيت پيروان وو په دې اعتبار سره د هغه لپاره مناسب دا وه چي هغه داسي ويلي وي دا هغه ناموس دی چي الله ﷻ د وحي په راليږلو سره حضرت عيسى ﷺ ته

رالېږي، مګر هغه بې ځايه د خپل ديني تعصب په وجه د حضرت عيسى عليه السلام د ذکر کولو پر ځای د حضرت موسى عليه السلام يادونه وکړل ځکه چي حضرت موسى عليه السلام د کتاب او شريعت د جامعيت په اعتبار زيات جليل القدر پيغمبر وو.

نو په پوره توان او قوت سره به ستا مرسته وکړم، په دې اړه ځينو علماؤ او شارحينو ليکلي دي چي پر رسول الله ﷺ باندي د ورقه د ايمان راوړلو اختلاف نسته، د هغه په صحابي کېدو کي اختلاف دی، که څه هم دغه پېښه د نبوت د ظاهرېدو څخه وروسته ده نو ظاهره ده چي ورقه ته به صحابي ويل کيږي او که د دغه پېښې تعلق د اظهار نبوت د لومړني پړاو سره وي نو په دغه صورت کي به ورقه ته صحابي نه ويل کيږي، ملا علي قاري رحمه الله د قاموس په حواله ليکلي دي چي د ورقه د ايمان او اسلام په اړه اختلاف سوی دی.

او بيا پر رسول الله ﷺ د وحي راتللو لړۍ پرې سول، يعني پر رسول الله ﷺ باندي د لومړنۍ وحي راتلل او د رسول الله ﷺ د نبوت ظاهرېدل وسول او د هغه څخه وروسته وحي راتلل موقوف سول، ځينو حضراتو ويلي دي چي بيا تر درو کالو پوري وحي نه راغلې، ځينو حضراتو دغه وخت شپږ مياشتي او ځينو دوې نيمي مياشتي ښودلی دی، علامه ابن حجر رحمه الله ليکلي دي چي د وحي د لړۍ د پرې کېدو دا مطلب نه دی چي د سورة اقرء او يا ايها المدثر د نزول په منځ کي رسول الله ﷺ ته د حضرت جبرائيل عليه السلام د راتګ لړۍ هم قطع سوې وه بلکه د وحي د قطع کېدو څخه مراد د قرآن کريم د نزول موقوف کېدل دي، په دغه وخت کي به حضرت جبرائيل عليه السلام راتلی مګر قرآن به يې نه راوړی، او د څه وخت لپاره د وحي د نازلېدلو موقوف کېدو حکمت دا وو چي په لومړنۍ مرحله کي د رسول الله ﷺ په زړه کي کوم بېره پيدا سوې وه د هغه اثرات زائل سي او د هغه بېرې پر ځای د شوق او انتظار جذبه را پيدا سي:

ديرست که دلدار پيامي نه فرستاد ننوشت سلامي و کلامي نه فرستاد

## د انقطاع څخه وروسته بيا وحي

﴿۵۵۹۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُ عَنْ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه د رسول الله ﷺ د وحي د بنديدو حال داسي

فَتْرَةِ الْوَحْيِ قَالَ فَبَيْنَا أَنَا أَمْشِي سَمِعْتُ صَوْتًا مِنَ السَّمَاءِ فَرَفَعْتُ بَصَرِي

اوريدلی دی چي رسول الله ﷺ فرمايي زه روان وم چي د آسمان څخه ما ته يو آواز وسو چي لوړ

فَإِذَا الْمَلَكُ الَّذِي جَاءَنِي بِحِرَاءٍ قَاعِدٌ عَلَى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ فَجَئِثْتُ

مي وکتل نو وینم چي ما ته هغه ملائکه معلومه سوه چي په غار حراء کي ما ته راغلې وه ، دا ملائکي د مځکي او آسمان په منځ کي پر یو تخت باندي ناسته وه زما په زړه کي د هغه څخه

مِنْهُ رعبا حَتَّى هَوَيْتُ إِلَى الْأَرْضِ فَجِئْتُ أَهْلِي فَقُلْتُ زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي فَزَمَّلُونِي

رعب او بیره پیدا سوه تر دې چي زه پر مځکه را ولویدم ، بیا زه خپل کور ته راغلم (کوروالا ته مي وویل چي پر ما جامه واچوئ نو جامه (شړې یا توس) را باندي واچول سو ،

فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنْذِرْ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ . ثُمَّ حَمِيَ الْوَحْيُ فَتَتَابَعَ . متفق عليه.

نو الله تعالی دا آیت نازل کړل : (یا ایها المدثر قم فانذر وربک فکبر وثیابک فطهر والرجز فاهجر)، (اې جامه اغوستونکې! ولاړ سه او مخلوق د الله ﷻ د عذاب څخه وبیروه د خپل پروردګار لویي بیان کړه او خپل جامه د نجاست څخه پاکه کړه او ناپاکي پریږده)، ددې څخه وروسته وحي پر له پسې راتلل پیل سول. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱ ۲۷۱، رقم: ۴. ومسلم ۱۱ ۱۴۳، رقم: ۲۵۵ - ۱۶۱.

**د لغاتو حل**: فجُئثت: اى خفت و فزعت (و بېرېدم).

**تشريح**: او مخلوق و بېروه، مطلب دا چي کافران د الهي عذاب څخه و بېروه چي د کفر او شرک لار پرېږدي او د ایمان او اسلام پر لار روان سي او مؤمنانو ته د ثواب او زیری خبر ورکړه چي د ښه کار کولو جذبه او تحریک پکښي پیدا سي .

او خپل رب لوی ګڼه، مطلب دا چي د لوئي او کبریایي مالک یوازي پروردګار وګڼه او په دې اعتبار یوازي هغه د تعظیم وړ منه او د هغه په وړاندي سر کښته کوه، د هغه په ډول بل هیڅوک لوی مه ګڼه او کله چي د غیر الله له خوا یوه خبره رامنځته سي نو الله اکبر ووایه ، منقول دي چي کله دا حکم نازل سو نو د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه بېله قصده د الله ﷻ اکبر نعره ووتل، او بیا بي بي خدیجې رضي الله عنها هم دغه نعره (الله اکبر) ووایه او هغوئ ته ډېره خوشحالي او اطمینان تر لاسه سو او دا یقین ورته حاصل سو چي دا د الله ﷻ له خوا نازلېدونکي وحي دي .

او خپلي جامې پاکي کړه، يعني خپل جامې او لباس د نجاست او مرداري څخه خوندي ساته او پاکۍ ته خيال کوه، ځينو حضراتو دا ويلي دي چي د جامو په پاکولو کي د جامو څخه مراد انساني صفات او محاسن دي او د پاکولو څخه مراد د خرابو عادتو او خرابو خبرو څخه پرهيز کول دي،

او مرداري پرېږده، د مردارۍ څخه مراد شرک او ګناه دي او پر دغه پرهيز په پابندي سره قائم اوسه. ځينو شارحينو ليکلي دي چي د دغه حديث راوي د اقتصار او اختصار له موخي د ذکرسوو آياتونو آخري برخي نه دي نقل کړي چي دا دي:

(ولاتمنن تستکثر و لربک فاصبر) او هيچا ته يې له دې کبله مه ورکوه (چي بيا بل وخت) زيات وغواړې او د خپلي خوښي لپاره صبر کوه.

په تفسير مدارک کي ذکرسوی روايت د حضرت جابر ﷺ په الفاظو کي داسي منقول دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه يوه ورځ په غار حرا کي وم چي يو چا ما ته په دغه الفاظو ږغ وکړ: يا محمد انک رسول الله، اې محمد! بېله شکه ته د الله ﷻ رسول يې، ما راسته او چپه خوا ته وکتل بيا مي لوړ وکتل نو وينم چي ما ته ږغ کونکې يوه ملائکه ده چي د ځمکي او آسمان په منځ کي پر يو تخت ناسته ده، دهغې په لېدو سره زه و بېرېدم او بي بي خديجې ﷺ ته بېرته راغلم چي پر ما تهو کړ واچوه، نو بي بي خديجې ﷺ پر ما تهو کړ واچوی، بيا جبرائيل ﷺ راغلی او ما ته يې دا وښودل: يا ايها المدثر ... الخ، تر دې وروسته د روايت هغه الفاظ دي کوم چي مخکي ذکر سول.

## وحي څنګه راتلل

﴿۵۵۹۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ الْحَارِثَ بْنَ هِشَامٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چي حارث بن هشام ﷺ رسول الله ﷺ ته عرض وکړ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَيْفَ يَأْتِيكَ الْوَحْيُ فَقَالَ رَسُولُ

اې دالله رسوله! تاسو ته وحي څنګه راځي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

اللّٰهِ ﷺ أَحْيَانًا يَأْتِينِي مِثْلَ صَلْصَلَةِ الْجَرَسِ وَهُوَ أَشَدُّهُ عَلَيَّ فَيُفْصَمُ عَنِّي

کله خو د هغه اواز د شپېلکي په ډول وي دا پر ما سخت ترين وحي وي، بيا وحي موقوف سي او

څه چي ما د ملائکي څخه اوريدلي دي هغه زه ياد کړم

وَقَدْ وَعَيْتُ عَنْهُ مَا قَالَ وَأَحْيَانًا يَتَمَثَّلُ لِي الْمَلَكُ رَجُلًا فَيُكَلِّمُنِي فَأَعِي مَا

او کله داسي وي چي د وحي ملائکه د يو سړي په شکل ما ته راسي او زما سره خبري کوي او څه

يَقُولُ قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وَلَقَدْ رَأَيْتُهُ يَنْزِلُ عَلَيْهِ الْوَحْيُ فِي الْيَوْمِ الشَّدِيدِ الْبَرْدِ فَيَفْصِمُ عَنْهُ وَإِنَّ جَبِينَهُ لَيَتَفَصَّدُ عَرَقًا. متفق عليه.

چي زه واورم هغه ياد کړم ، بي بي عائشه وايي ما پر رسول الله ﷺ وحي نازليدل ليدلي دي د يخ په ورځو کي به چي پر رسول الله ﷺ د وحي راتللو څخه وروسته ملائکه ولاړل نو ما به وليدل چي د رسول الله ﷺ د تندي مبارک څخه به خوله جاري وه. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۸\۱، رقم: ۲. ومسلم ۱۸۱۶\۴، رقم: ۸۶- ۲۲۳۳.

**د لغاتو حل**: فيفصم: اي ينقطع على (پر ما قطع کېدی)

**تشريح**: او دغه وحي پر ما تر ټولو سختي وحي وي، يعني ددغه وحي الفاظ او مفهوم په پوهېدو کي سخت تکليف راته پېښيږي ځکه چي په داسي خبره پوهېدل چي د هغه الفاظ په غير مانوس آواز (لکه د زنګ آواز) کي وي نو سخت تکليف وي، ددې په نسبت هغه خبره په اساني سره په پوهه کي راځي چي د يو انسان سره د همکلامۍ او مخاطبت په صورت کي وي.

ملائکي د انسان په شکل اختيارولو سره ...... الخ: په دې اړه شارحينو دا مشهور قول ليکلی دی چي کله به حضرت جبرائيل الطَیِّلاً د انسان په شکل کي راتلی نو زيات وختونه به د يو صحابي حضرت دحيه کلبي په شکل او صورت کي راتلی او علماؤ ليکلي دي چي استفاده او استفاضه (يعني د فيض تر لاسه کولو) لپاره دا بنيادي شرط دی چي د خبره کونکي او خبري اورېدونکي په منځ کي هغه مناسبت وي چي يو د بل څخه بېره نه وي، د حضرت جبرائيل الطَیِّلاً په ذريعه په رسول الله ﷺ باندي د وحي د نزول لپاره چي دواړي ذکر سوي طريقې په عمل کي راتلې په هغو کي به ددې شرط لحاظ وو ، کله به داسي وه چي د حضرت جبرائيل الطَیِّلاً ملکيت او روحانيت به پر رسول الله ﷺ غالب سو او د څه وخت لپاره به رسول الله ﷺ د بشريت څخه بېل کړل سو چي په هغه سره به رسول الله ﷺ ته د حضرت جبرائيل الطَیِّلاً سره ملکوتي مناسبت تر لاسه کېدی ، دا به هغه صورت وو چي هغه ته رسول الله ﷺ د وحي د نزول لومړنۍ طريقې ته اشاره

وکړل او کله به داسي وه چي د رسول الله ﷺ بشريت به پر حضرت جبرائيل ؑ غالب کړل سو او هغه به د څه وخت لپاره د بشريت د وصف خاوند سو چي په هغه سره به د رسول الله ﷺ او حضرت جبرائيل ؑ په منځ کي بشري مناسبت پيدا کيدی ، دا هغه دوهم صورت وو چي هغه ته رسول الله ﷺ د وحي د نزول دوهمه طريقه بيانولو سره اشاره وکړل مګر دا ټول بحث د هغه وخت دی کله چي دا ومنل سي چي رسول الله ﷺ کوم شی د ژنګ په آواز سره تعبير کړ هغه د نفس وحي آواز وو لکه څرنګه چي د حديث د ظاهري عبارت څخه څرګنديږي،

ځيني حضرات وايي چي د ژنګ د آواز په ډول هغه آواز په اصل کي د حضرت جبرائيل ؑ خپل آواز وو، چي د وحي رسولو څخه مخکي به ځيني ظاهرېدی، او مخکي د هغه ددغه اواز ظاهرېدو حکمت دا وو چي رسول الله ﷺ په پوره توګه ورته متوجه سي او د رسول الله ﷺ اورېدل د وحي د الفاظو اورېدو لپاره داسي تيار او خالي سي چي د وحي څخه ماسوا د بل آواز لپاره د هغه په اورېدو کي ځای پاته نه سي، او له دې کبله د وحي د نازلېدو دغه لومړنی صورت به پر رسول الله ﷺ ډېر سخت وو، چي د رسول الله ﷺ د ټول فکري طاقت په جمع کېدو سره يوازي وحي ته متوجه وي.

...... نو د رسول الله ﷺ تندی مبارک به د خولو څخه ډک معلومېدی، په ظاهره دا معلوميږي چي دغه کيفيت به په هغه صورت کي پيښېدی چي کله به د وحي د نزول لومړنی طريقه په عمل کي راتلل مګر دا هم کيدا ی سي چي په دواړو صورتو کي به دغه کيفيت وو.

## دوحي کيفيت

﴿۵۵۹۵﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ كرب لذالك وتربد وجهه وفي رواية نَكَسَ رَأْسَهُ وَنَكَسَ أَصْحَابُهُ رُءُوسَهُمْ فَلَمَّا أُتْلِيَ عَنْهُ رَفَعَ رَأْسَهُ. رواه مسلم.

د حضرت عباده بن صامت ؓ څخه روايت دی چي کله به پر رسول الله ﷺ وحي نازليدل نو هغه وخت به رسول الله ﷺ پريشانه سو او د مخ مبارک رنګ به يې بدل سو، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي کله به پر رسول الله ﷺ وحي راتلل نو خپل سر مبارک به يې کښېته کړ او صحابه کرامو به هم سرونه کښېته کړل او کله چي به وحي ختم سوه نو سر مبارک به يې پورته کړ

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\ ۱۸۱۷، رقم: ۸۸- ۲۳۳۴.

**تشريح**: نو رسول الله ﷺ ته به سخت غم پېښېدی، ددې مطلب دادی چي څرنګه يو سړی يوه لويه ذمه داري په غم او فکر کي اخته کوي همدارنګه رسول الله ﷺ به د هغه وحي يادولو، او نورو ته د رسولو ذمه دارۍ سخت په غم او فکر کي کړاو د هغه ذمه دارۍ د ادا کولو بندوبست به رسول الله ﷺ د بار څخه سپکوی ځکه الله ﷻ فرمايي:

لاَ تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ ، إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ

اې پيغمبره! ته د وحي د ختمېدو څخه مخکي په قرآن باندي خپله ژبه چلوه چي ته هغه ژر په ياد کړې، دا قرآن ستا په زړه کي جمع کول او خوندي کول زموږ پر ذمه دی. يا دغه غم او فکر به رسول الله ﷺ ته له دې کبله وو چي په نازلېدونکي وحي کي د غضب او عذاب اظهار کوونکي آياتونه هم وه او رسول الله ﷺ به د هغه آياتو په وجه د خپل امت په حق کي په غم کي سو چي زما د امت خلک ددغه غضب او عذاب وړ نسي، د صحابه کرامو سر کښته کول يا خو له دې کبله وو چي هغه وخت پر رسول الله ﷺ باندي کوم کيفيات خپرېدل، د کمال تعلق او ميني په وجه د هغه اثر په صحابه کرامو کي هم سرايت کوی، يا دا چي کله به صحابه کرامو، رسول الله ﷺ په داسي حالت کي وليدی نو د پيروۍ له موخي به هغوئ هم خپل سرونه کښته کول.

## د الله تعالی ددين اول دعوت

﴿۵۵۹۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ خَرَجَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله دا آيت نازل سو: (وانذر عشيرتک الاقربين)، (خپل نژدې خپلوان وبيره)،

النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّي صَعِدَ الصَّفَا جَعَلَ يُنَادِي يَا بَنِي فِهْرٍ يَا بَنِي

نو نبي کريم ﷺ د صفا غونډۍ ته وختی او نعرې يې کړلې اې د فهر اولاده! اې د عدي اولاده!

عَدِيٍّ لِبُطُونِ قُرَيْشٍ حَتَّى اجْتَمَعُوا فَجَعَلَ الرَّجُلُ إِذَا لَمْ يَسْتَطِعْ أَنْ يَخْرُجَ

همداسي د قريشو ټولو قبيلو ته يې نوم په نامه اواز وکړ، تر دې چي ټول يو ځای سول، داسي هم وه چي د قبيلې يو لوی سړی به په يو سبب نه سو تللای

أَرْسَلَ رَسُولًا لِيَنْظُرَ مَا هُوَ فَجَاءَ أَبُو لَهَبٍ وَقُرَيْشٌ فَقَالَ أَرَأَيْتَكُمْ لَوْ

نو د خپل طرف څخه به يې يو بل څوک وليږي، غرض دا چي ابولهب او د قريشو ټول خلک راجمع سول، رسول الله ﷺ هغوئ ته وفرمايل:

أَخْبَرْتُكُمْ أَنَّ خَيْلًا تخرج من صفح هذا الجبل وفي رواية ان خيلا تخرج

که زه تاسو ته دا خبر درکړم چي د دغه غره شا ته سل سپاره دي، او په يوه روايت کي دي چي په

بِالْوَادِي تُرِيدُ أَنْ تُغِيرَ عَلَيْكُمْ أَكُنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ قَالُوا نَعَمْ مَا جَرَّبْنَا عَلَيْكَ إِلَّا

دغه ځنګل کي، چي پر تاسو حمله کول غواړي نو ايا تاسو به دا خبره رښتيا وګڼئ او ما به رښتوني وګڼئ، خلکو وويل موږ په تجربه کي ته هميشه رښتونی ثابت کړی يې په دې وجه

صِدْقًا قَالَ فَإِنِّي نَذِيرٌ لَكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ فَقَالَ أَبُو لَهَبٍ تَبًّا لَكَ أَلِهَذَا جَمَعْتَنَا فَنَزَلَتْ تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ. متفق عليه.

موږ ستا خبره صحيح ګڼو، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: زه تاسو د هغه عذاب څخه بيروم کوم چي ستاسو په مخکي دی، ددې اوريدو سره ابولهب وويل، ته هلاک او تباه سې ددې خبري لپاره تا موږ راجمع کړي يو، پر دې خبره باندي سورة تبت يدا ابي لهب وتب، نازل سو، (يعني د ابولهب دواړه لاسونه دي هلاک سي او هغه دي هم هلاک سي). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۵۰۱، رقم: ۴۷۷۰.

**تشريح**: په (تبت يدا ابي لهب) کي د يدا لفظ (چي معنی يې د دواړو لاسو ده) زائد دی، يا له دواړو لاسو څخه مراد د هغه ټول بدن دی او څرنګه چي په ټولو اندامو کي لاس داسي اندام دی چي انسان په هغه سره خپل ټول خارجي کار کوي او د هغه زيات انحصار پر لاسو وي، له دې کبله د لاس په ذکر کولو سره ټول بدن مقصد دی لکه چي په يو بل ځای کي الله جل جلاله فرمايي: (ذلک مما قدمت يداک) همدارنګه په ځينو روايتو کي راغلي دي چي په دغه وخت کي د ابولهب په دواړو لاسو کي ډبري وې او کله چي هغه د رسول الله ﷺ له ژبې مبارکي څخه ذکر سوي الفاظ واورېدل نو په ډېره غصه کي يې هغه ډبري د رسول الله ﷺ خوا ته وغورځولې، په دغه صورت کي به معنی دا وي چي د ابولهب لاسونه دي مات سي او هغه دي برباد سي.

## د دعوت په بدله کي د قريشو بدچلن

﴿۵۵۹۷﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ بَيْنَمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ (يو وار) د کعبې شريفې

يُصَلِّي عِنْدَ الْكَعْبَةِ وَجَمْعُ قُرَيْشٍ فِي مَجَالِسِهِمْ إِذْ قَالَ قَائِلٌ أَيُّكُمْ يَقُوْمُ إِلَى

نژدې لمونځ کوی او د قريشو يو ډله د کعبې څخه شاوخوا د خپل مجلس حلقه جوړه کړې ناست وه، چي ناڅاپه يو سړی وويل په تاسو کي څوک داسي سته چي د فلاني سړي اولاد ته ولاړ سي

جَزُوْرِ آلِ فُلَانٍ فَيَعْمِدُ إِلَى فَرْثِهَا وَدَمِهَا وَسَلَاهَا ثُمَّ يُمْهِلُهُ حَتَّى إِذَا سَجَدَ وَضَعَهُ

چي اوښ يې ذبح کړی دی او د هغه نجاست لری، کولمې وغيره راوړي، بيا انتظار وکړي او هر کله چي دی (يعني محمد ﷺ) سجدې ته ولاړ سي

بَيْنَ كَتِفَيْهِ فَانْبَعَثَ أَشْقَاهُمْ فَلَمَّا سَجَدَ وَضَعَهُ بَيْنَ كَتِفَيْهِ وَثَبَتَ النَّبِيُّ صَلَّى

نو هغه ټول شيان دده پر اوږو کښېږدي، په هغوئ کي يو بدبخته (چي د هغه نوم عقبه ابي معيط وو) ولاړ سو او هغه شيان يې راوړل، کله چي رسول الله ﷺ سجدې ته ولاړی نو د رسول الله ﷺ د دواړو اوږو مبارکو په منځ کي يې کښېښودل،

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاجِدًا فَضَحِكُوْا حَتَّى مَالَ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ مِنَ الضَّحِكِ

رسول الله ﷺ پر سجده پروت وو، هغوئ بدبختان ددې په ليدو سره په خندا سول دومره يې وخندل چي د ډېري خندا څخه يو پر بل پريوتل،

فَانْطَلَقَ مُنْطَلِقٌ إِلَى فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَام وَهِيَ جُوَيْرِيَةٌ فَأَقْبَلَتْ تَسْعَى وَثَبَتَ

بيا يو سړی بي بي فاطمې ته ورغلی، بي بي فاطمه رضي الله عنها په منډه راغلل، رسول الله ﷺ هم هغسي

النَّبِيُّ ﷺ سَاجِدًا حَتَّى أَلْقَتْهُ عَنْهُ وَأَقْبَلَتْ عَلَيْهِمْ تَسُبُّهُمْ فَلَمَّا قَضَى رَسُوْلُ اللّٰهِ

پر سجده پروت وو، بي بي فاطمې رضي الله عنها هغه نجاست د رسول الله ﷺ د شا څخه ليري کړ او وه يې غورځول، او کافرانو ته يې بد رد وويل، کله چي رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغ سو

ﷺ الصَّلَاةَ قَالَ اللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ ثلثا وكان اذا ادعا دعا ثلثا واذا سال سال

نو دا دعاء وکړل اې الله ! ته قریش په سختي سره ونیسئ (درې واره رسول الله ﷺ دا الفاظ وفرمایل)، د رسول الله ﷺ دا عادت مبارک وو چې کله به یې دعاء کول یا د الله ﷻ څخه به یې

ثلاثا اللَّهُمَّ عَلَيْكَ بِعَمْرِو بْنِ هِشَامٍ وَعُتْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ وَشَيْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ وَالْوَلِيدِ

یو څه غوښتل نو درې واره به یې هغه الفاظ ویل، اې الله ! ته عمرو بن هشام سخت ونیسې، اې الله ! ته عتبه بن ربیعه په سختۍ سره ونیسې، اې الله ! ته شیبه بن ربیعه سخت ونیسې، اې

بْنِ عُتْبَةَ وَأُمَيَّةَ بْنِ خَلَفٍ وَعُقْبَةَ بْنِ أَبِي مُعَيْطٍ وَعُمَارَةَ بْنِ الْوَلِيدِ قَالَ عَبْدُ اللهِ

الله ! ته ولید بن عتبه، امیه بن خلف، عقبه بي ابي معیط او عماره بن ولید سخت ونیسې، د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه بیان دی

فَوَاللهِ لَقَدْ رَأَيْتُهُمْ صَرْعَى يَوْمَ بَدْرٍ ثُمَّ سُحِبُوا إِلَى الْقَلِيبِ قَلِيبِ بَدْرٍ ثُمَّ قَالَ

قسم په خدای ما دا ټول خلک چې رسول الله ﷺ ورته ښیرا کړې وه د بدر په ورځ پر مځکه مړه پراته ولیدل، بیا هغوئ د جنګ د میدان څخه را وایستل سول او د بدر په څاه کې وغورځول سول، او په څاه کې د اچولو څخه وروسته

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأُتْبِعَ أَصْحَابُ الْقَلِيبِ لَعْنَةً. متفق عليه.

رسول الله ﷺ وفرمایل: پر دغه ډلې چې په څاه کې اچول سوي دي د الله ﷻ لعنت سوی دی. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\ ۵۹۴، رقم: ۵۲۰، ومسلم ۳\ ۱۴۱۸، رقم: ۱۰۷ - ۱۷۹۴.

**د لغاتو حل**: سلاها: وهو الجلد الرقيق الذي يخرج فيه الولد من بطن امه (د رحم پرده)

**تشریح**: ناڅاپه په هغوئ کي يو سړي وويل: په دې اړه شارحينو ليکلي دي چې هغه سړی ابو جهل وو، همدارنګه په يوه روايت کي دا هم دی چې د رسول الله ﷺ د لمانځه او عبادت په لېدلو سره او رسول الله ﷺ ته په اشاره کولو سره په هغوئ کي يو سړي وويل: (الا ينتظرون الى هذا المرائي) يعني دغه رياء کونکي ته وګورئ.

د دغه پېښې په وخت د حضرت فاطمې رضي الله عنها عمر ډېر کم وو ځکه د هغې د زېږېدني په وخت کي د رسول الله ﷺ عمر يو څلوېښت کاله وو مګر په دغه کم عمرۍ کي هم دا د حضرت فاطمې رضي الله عنها لوړهمتي وه چې هغې د دغه خبر په اورېدو سره د قريشو په ډله کي راوځغستل، او نه يوازي

دا چي د رسول الله ﷺ څخه يې هغه شيان پورته کړل بلکه هغه ټولو کافرانو ته يې مخامخ بد
وويل او هيچا ته د هغې د مقابلې کولو توان نه وو.

رسول الله ﷺ چي د مکې د مشرکينو څخه د کومو کسانو په نامه اخيستلو سره ښېرا وکړل ، هغوئ په اصل کي د الله جل جلاله د دين او د رسول الله ﷺ سخت دښمنان وه او د قريشو په مشرانو کي شمېرل کېدل او همدغه کسان وه چي رسول الله ﷺ ته په تکليف ورکولو کي وړاندي وه ، رسول الله ﷺ د هغوئ پر تکليفو د بې مثاله صبر او تحمل ثبوت ورکړ ، تر ډېره وخته يې له زغم څخه کار اخيستی ، په پای کي کله چي الله جل جلاله د هغوئ د بربادي فيصله وفرمايل نو د رسول الله ﷺ په ژبه يې د هغوئ لپاره ښېرا جاري کړل او ټوله بدبختان په خپله سزا ورسېدل.

لطف حق گرچه موا ساها کند ليک چون از حد بشد رسوا کند

دغه کسان چي په څاه کي وغورځول سول، ملعون وګرځېدل، رسول الله ﷺ دغه الفاظ صحابه کرامو ته په مخاطب کېدو سره وفرمايل ، له دې وروسته رسول الله ﷺ په څاه کي غورځول سوو مشرکانو ته مخاطب سو او ويې فرمايل: بېله شکه موږ هغه شی (فتح) تر لاسه کړل کوم چي زموږ رب يې وعده کړې وه او بېله شکه تاسو هم هغه شی (يعني عذاب او سزا) تر لاسه کړل کوم چي ستاسو رب يې ستاسو سره وعده کړې وه، د حديث دغه آخري الفاظ دلته نقل سوي نه دي مګر د کتاب الجهاد په يوه روايت کي نقل سوي دي، همدارنګه ددغه ټولو قريشي مشرانو په اړه دا ويل چي هغوئ ټول د بدر په غزا کي هلاک او برباد سول او هغوئ په څاه کي وغورځول سول، د اکثر په اعتبار دی چي په هغوئ کي د زياتو مشرکانو دغه حال سو او په هغوئ کي ځيني مشرکان د مثال په توګه عماره بن وليد په اړه ويل کيږي چي هغه د بدر په غزا کي شريک نه وه بلکه په حبشه کي مړ سو، همدارنګه عقبه بن ابو معيط د بدر په غزا کي وژغورل سو مګر وروسته په بد ډول ووژل سو، همدارنګه اميه بن خلف د بدر په غزا کي ووژل سو مګر د هغه بدن دومره وروست سوی وو چي د دروند کېدو په وجه څاه ته نه سو راوړل کيدای، دغه ټول تفصيل د سيرت او تاريخ په کتابو کي مذکور دي.

ددغه حديث په اړه دا سوال پيدا کيږي چي کله د رسول الله ﷺ پر ملا مبارکه باندي ناپاکه شيان واچول سول نو يقينا د رسول الله ﷺ بدن مبارک او جامې ناپاکه سولې ، نو ددې سره رسول الله ﷺ په لمانځه کي څرنګه بوخت وو؟ ددې جواب دادی چي دغه پېښه د هغه وخت ده کله چي دويني او مشرکانو د ذبيحې په اړه د حرمت حکم نازل سوی نه وو، له دې کبله د رسول الله ﷺ پر لمانځه هيڅ اثر و نه لويدی لکه چي د شرابو د حرمت نازلېدو مخکي کله چي به پر

جامو شراب ولګېدل نو پر هغه جامو يې لمونځ کوی او لمونځ کيدی.

## د عقبه سخت مصائب او د رسول الله ﷺ تحمل

﴿۵۵۹۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ يَارَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ أَتَى

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چي ما عرض وکړ اې د الله رسوله! ايا د احد د ورځي

عَلَيْكَ يَوْمٌ كَانَ أَشَدَّ مِنْ يَوْمِ أُحُدٍ فَقَالَ لَقَدْ لَقِيتُ مِنْ قَوْمِكِ وَكَانَ أَشَدَّ مَا

څخه هم زياته سخته ورځ پر تاسو تيره سوې ده؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: ما ستا د قوم څخه هغه څه ليدلي دي چي تر احد هم زيات سخت دي، او تر ټولو سخته ورځ

لَقِيتُ مِنْهُمْ يَوْمَ الْعَقَبَةِ إِذْ عَرَضْتُ نَفْسِي عَلَى ابْنِ عَبْدِ يَالِيلَ بْنِ عَبْدِ

چي پر ما تيره سوې ده چي په هغه کي ما ستا د قوم څخه داسي تکليف پورته کړی دی چي په ټول عمر کي مي هم نه دی زغملی، هغه د عقبه ورځ او د عقبه مصائب دي (عقبه يو ځای دی چي هلته د حج په ورځو کي ډبري ويشتل کيږي دې ته جمره عقبه هم وايي) ما خپل ځان (يعني

كُلَالٍ فَلَمْ يُجِبْنِي إِلَى مَا أَرَدْتُ فَانْطَلَقْتُ وَأَنَا مَهْمُومٌ عَلَى وَجْهِي فَلَمْ أَسْتَفِقْ

خپل دعوت) د ابن عبد يا ليل بن عبد کلال په مخکي وړاندي کړ او کوم شی چي ما هغه ته وړاندي کړ د هغه يې هيڅ جواب نه راکړ زه د هغه ځای څخه غمګين ولاړم،

إِلَّا بِقَرْنِ الثَّعَالِبِ فَرَفَعْتُ رَأْسِي فَإِذَا أَنَا بِسَحَابَةٍ قَدْ أَظَلَّتْنِي فَنَظَرْتُ فَإِذَا

مقام قرن ثعالب ته چي ورسيدم نو ما ته هوښ راغلی (يعني د پريشانۍ حالت راڅخه ليري سو) ما چي سر پورته کړ نو د وريځي يوه ټوټه راته معلومه سوه چي پر ما باندي يې سايه کړې

فِيهَا جِبْرِيلُ فَنَادَانِي فَقَالَ إِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ قَدْ سَمِعَ قَوْلَ قَوْمِكَ وَمَا رُدُّوا

وه بيا ما په هغه کي جبرائيل عليه السلام وليدی، جبرائيل عليه السلام ما ته وويل: الله تعالی ستا د قوم خبره واوريده او ستا د خبري چي هغوئ څه جواب وکړ هغه يې هم واوريدل (يعني تا ته ستا د قوم بد او رد ويل او درواغ ګڼل هر څه خدای ﷻ ته معلوم دي)

عَلَيْكَ وَقَدْ بَعَثَ إِلَيْكَ مَلَكَ الْجِبَالِ لِتَأْمُرَهُ بِمَا شِئْتَ فِيهِمْ قَالَ فَنَادَانِي

اوس الله تعالی تاسو ته د غرونو ملائكه رالیږلې ده چې د دغه خلكو په اړه تاسو څه حكم كوئ؟ هغه یې پر ځای راوړي ، رسول الله ﷺ وفرمایل : د دې څخه وروسته د غرونو ملائكي پر ما

مَلَكُ الْجِبَالِ فَسَلَّمَ عَلَيَّ ثُمَّ قَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ اللهَ قَدْ سَمِعَ قَوْلَ قَوْمِكَ وَأَنَا

سلام ووايه ، بيا يې راته وويل اې محمد! الله تعالى ستا د قوم خبره واوريده او زه

مَلَكُ الْجِبَالِ وَقَدْ بَعَثَنِي رَبُّكَ إِلَيْكَ لِتَأْمُرَنِي بِأَمْرِكَ إِنْ شِئْتَ أَنْ أُطْبِقَ

د غرونو ملائكه یې ستا په خدمت كي رالیږلې یم چې زه ستا حكم پر ځای راوړم، كه تاسو

عَلَيْهِمُ الْأَخْشَبَيْنِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلْ أَرْجُو أَنْ يُخْرِجَ

وایاست نو زه به داخشبین دواړه غرونه پر دې كفارو را نسكور كړم، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل (زه نه غواړم چې دوئ هلاك سي) بلكه زه امید لرم چې

اللهُ مِنْ أَصْلَابِهِمْ مَنْ يَعْبُدُ اللهَ وَحْدَهُ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا. متفق عليه.

الله تعالی به د دوئ په اولاد كي داسي خلك پیدا كړي چې د یوازي د یوه الله ﷻ عبادت به كوي او شرك به نه كوي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣١٢، رقم: ٣٢٣١، ومسلم ٣\١٤٢٠، رقم: ١١١– ١٧٩٥.

**د لغاتو حل**: الثعالب: جبل بين مكة والطائف (د مكې او طائف په منځ كي د یو غره نوم)

**تشريح**: عقبه ، په اصل كي هغه لاري ته وایي چې د دوو غرو په منځ كي تیریږي مگر دلته له عقبه څخه مراد هغه ځای دی چې په منی كي واقع دی او هغه ته د جمره په نسبت كولو سره جمرة العقبه وايي، د رسول الله ﷺ دا معمول وو چې د حج په زمانه كي او د عامو اجتماعو په ځای كي یې د اسلام دعوت كوی او هغوئ ته یې د الله ﷻ پیغام وړاندي كوی، هغوئ ته یې د نیكو كارو تلقین او تبليغ كوی او له بدو كارو څخه یې منع كول او د الله ﷻ د عذاب څخه یې بېرول، په دغه ورځ هم داسي وسول چې رسول الله ﷺ د عقبه پر ځای د خلكو په مجمع كي اسلام وړاندي كړ او ټولو قبیلو ته یې د الله ﷻ د دین قبلولو تبليغ وفرمایه، له دې سره رسول الله ﷺ له هغه ځای څخه ولاړی او د ثقیف قبیلې ته ورسېدی او د هغه قبیلې یو سردار ابن عبد یا لیل ابن كلال ته یې د اسلام دعوت وركړ مگر نه یوازي دا چې پر هغه خلكو د رسول الله ﷺ د دعوت

او تبلیغ هیڅ اثر ونه سو او هیچا د رسول الله ﷺ خبره ونه منل بلکه د هغه ځای ظالمانو او ناپوهانو له رسول الله ﷺ سره ډېر بد چلن وکړ، رسول الله ﷺ ته یې بښکنځل وکړل، سخت تکلیف یې ورکړ، نتیجه دا چې پر رسول الله ﷺ یې ډبري ویشتل پیل کړل چې په هغه سره له رسول الله ﷺ څخه ویني را توی سوې.

زوراغیار واز دیوار سنگ یار مي بارد بلائي دردمندان از در و دیوار مي بارد

یوې خوا ته د هغوئ له حق څخه سرغړونه، د دعوت او تبلیغ ناکامي، بلې خوا ته د هغه بدبختانو دومره تکلیف ورکول چې ټول بدن مبارک په وینو سور سو، دغه سخت غم او تکلیفونو پر رسول الله ﷺ ډېره بد حواسي خپره کړل، نه دا خبر وو چې له کومه ځایه روان دی نه دا شعور وو چې چیري ځي، نه د لاري معلومات وو نه د منزل پېژندنه، چیري چې یې مخ سو هلته روان سو، همداسي روان وو چې په لږ هوش کي سو او زړه او د ماغ کار کول پیل کړل نو معلومه سول چې د قرن ثعالب ځای ته رسېدلی دی، دا هغه ځای دی چیري چې د نجد میقات دی او هغه ته قرن منازل وایي، په دغه ځای کي د وریځي په یوې ټوټې کي حضرت جبرائیل علیه السلام څرگند سو او همدلته د غرو ملائکو پر ظالمانو د عذاب نازلولو اجازه وغوښتل، مگر دا د رسول الله ﷺ رحمت او شفقت وو چې په دغه سخت حال کي یې د هغوئ خلاف هیڅ فیصله کول ونه غوښتل او دا امید یې وکړ چې که چیري هغوئ ته هدایت په برخه نه سو نو د هغوئ په اولاد کي به یقینا الله جل جلاله داسي خلک پیدا کړي چې د کفر او شرک لاره به پرېږدي او د ایمان او اسلام په غیږ کي به راسي.

## د احد په غزا کي زخمي کېدل

﴿۵۵۹۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُسِرَتْ رَبَاعِيَتُهُ يَوْمَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چې د احد د غزا په ورځ د رسول الله ﷺ د مخکي څلورو

أُحُدٍ وَشُجَّ فِي رَأْسِهِ فَجَعَلَ يَسْلُتُ الدَّمَ عَنْهُ يَقُولُ كَيْفَ يُفْلِحُ قَوْمٌ شَجُّوا رَاسَ نَبِيِّهِمْ وَكَسَرُوا رَبَاعِيَتَهُ. رواه مسلم.

غاښو څخه یو غاښ مبارک مات سو، او سر مبارک یې ژوبل سو، رسول الله ﷺ به خپله وینه وچول او فرمایل به یې: هغه قوم کله خلاصون تر لاسه کولای سي چې د خپل نبي سر (مبارک) زخمي کړي او د هغه غاښ مات کړي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۴۱۷، رقم: ۱۰۴- ۱۷۹۱.

**د لغاتو حل**: رباعيته: السن التي بين الثنية والناب.

**تشریح**: رباعیه، په عربي کي دوو لوړو او دوو کښته غاښو ته وایي چي د ثنایا او انیاب په منځ کي وي، د رسول الله ﷺ د لاندنیو دوو غاښو څخه راسته خوا ته یو غاښ مات سوی وو له دې سره په لاندي ورۍ کي هم زخم پیدا سوی وو، څرګنده دي وي چي د غاښ ماتېدو دا معنی نه ده چي هغه غاښ له بېخه وتلی وو بلکه د غاښ یوه برخه ماته سوې او بېله سوې وه، همدارنګه کوم سړي چي پر رسول الله ﷺ حمله وکړل او د غه غاښ یې مات کړی وو د هغه نوم عقبه بن ابي وقاص د مشهور صحابي حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه ورور وو،

په دې اړه اختلافي قولونه دي چي وروسته عقبه ابن ابي وقاص مسلمان سوی وو او د صحابي کېدو شرف یې تر لاسه کړی وو که یا، همدارنګه منقول دي چي د هغه په کورنۍ کي پیدا کېدونکی هر سړی چي کله به بالغ سو نو د هغه مخکنی غاښ به خپله ولویدی، په دغه روایت کي د سر مبارک د ژوبل کېدو یادونه ده او په ځینو روایتو کي د تندي ژوبل کېدو یادونه سوې ده، همدارنګه دا هم منقول دي چي د رسول الله ﷺ ژوبل کونکی د یو پاڼ په رالوېدو سره زخمي سو او هم هلته ذره ذره سو، د اُحد په غزا کي رسول الله ﷺ ته نور هم سخت تکلیفونه پېښ سوي دي، کافرانو د جنګ په میدان کي ځای پر ځای کندي کښلي وې او د وښو په ذریعه یې پټي کړي وې، رسول الله ﷺ د خپل آس سره په داسي یوه کنده کي ولوېدی، ددې په لېدو سره حضرت طلحه ابن عبیدالله رضي الله عنه په ځغاسته راغلی او رسول الله ﷺ یې په خپل غېږ کي راواخیست او له هغه کندي څخه یې راوکښی، رسول الله ﷺ وفرمایل: اوجبه طلحه، یعني طلحه د خپل ځان لپاره جنت واجب کړ، همدارنګه د رسول الله ﷺ پر سر مبارک د اوسپني جنګي خولۍ وه د هغه خولۍ دوې کړۍ د رسول الله ﷺ پر باړخو مبارک ولګېدې، کله چي ابوعبیده بن الجراح رضي الله عنه هغه په خپلو غاښو راکش کړې نو د هغه غاښ مات سو، حضرت مالک ابن سنان رضي الله عنه راوړاندي سو او د رسول الله ﷺ د زخم وینې یې پاکولې، په دغه وخت کي هم رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي زما وینه په ځوېښلو سره پاکه کړي نو دهغه لپاره جنت واجب سو، د سر مبارک د زخم پاکولو لپاره حضرت علي رضي الله عنه په خپل سپر کي اوبه راوړلې او حضرت فاطمې رضي الله عنها د کونۍ یوه ټوټه وسوځل او په هغه زخم کي یې کېښېښودل چي په هغه سره وینه راتلل بند سول، په ځینو روایتو کي منقول دي چي د بشریت په تقاضا سره کله چي د رسول الله ﷺ د سر د زخم په وجه په مزاج کي تغیر پیدا سو نو دغه آیت نازل سو :

لَيْسَ لَكَ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ

ژباړه: تاسو ته هيڅ دخل نسته تر دې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ هغوئ ته متوجه سي او يا پر هغوئ سزا نازله کړي ځکه هغوئ سخت ظلم کړی دی.

دا هم منقول دي چي کله د رسول الله ﷺ له زخمو څخه وينه بهېدل پيل سول نو رسول الله ﷺ د ويني پر مځکه توئېدو څخه منع کولو لپاره پاکول او فرمايل يې: که چيري زما د وينو يو ثاڅکی پر مځکه ولوېږي نو پر دغه کافرانو باندي له آسمان څخه عذاب نازلېدل هيڅوک منع کولای نه سي، په يوه روايت کي دا هم راغلي دي چي د اُحد په ورځ د رسول الله ﷺ پر مخ مبارک د توري اوويا وارونه وسول مګر الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه له اثر څخه خوندي کړي.

**د رسول الله ﷺ په لاس وژل سوي به په سخت عذاب کي وي**

﴿۵۶۰۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَدَّ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پر هغه قوم د الله جَلَّ جَلَالُهُ

غَضَبُ اللَّهِ عَلَى قَوْمٍ فَعَلُوا بِنَبِيِّهِ يُشِيرُ إِلَى رَبَاعِيَتِهِ اشْتَدَّ غَضَبُ اللَّهِ عَلَى

سخت غضب وسو چي هغوئ د خپل نبي سره داسي وکړل، دې فرمايلو سره رسول الله ﷺ خپل مخکني غاښو ته اشاره وکړه (چي په هغو کي يو غاښ کي د احد په غزا کي شهيد کړل سوی وو) او الله جَلَّ جَلَالُهُ پر هغه سړي ډير غضبناک سو چي

رَجُلٍ يَقْتُلُهُ رَسُولُ اللَّهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ. متفق عليه. وهذا الباب خال عن الفصل الثاني.

د خدای رسول يې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کي ووژی. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۳۷۲، رقم: ۴۰۷۳، ومسلم ۳\۱۴۱۷، رقم: ۱۰۶- ۱۷۹۳.

**تشريح**: د جهاد د قيد په ذريعه په حد او قصاص کي وژل سوي کسان مستثنی دي چي هغه کسان په وعيد کي داخل نه دي، همدارنګه د (الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول) څخه يا خو رسول الله ﷺ خپل ځان مراد واخيست او يا هر پيغمبر مراد دی، او د پيغمبر په لاس وژل سوي کسان د الله جَلَّ جَلَالُهُ د سخت عذاب وړ ځکه ورته ويل سوي دي چي د يو سړي د پيغمبر په لاس وژل کېدل د دې ثبوت

وي چي هغه سړی په هيڅ صورت کي د عفو وړ نه وي او د هيڅ ډول رعايت وړ نه وي او د هغه د وژني فيصله د شک او شبهې څخه ماسوا پر حقيقت مبني وي، په دغه صورت کي د هغه واجب القتل او دوږخي کېدل يقيني خبره وي.

## په دې باب کي دويم فصل نسته

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۵۶۰۱﴾: عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ قَالَ سَأَلْتُ أَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَوَّلِ

د حضرت يحيی بن ابي کثير رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د ابو سلمه بن عبد الرحمن رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي

مَا نَزَلَ مِنَ الْقُرْآنِ قَالَ يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُلْتُ يَقُولُونَ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ

په قرآن کريم کي کوم شی تر ټولو وړاندي نازل سوی دی؟ هغه وويل: يا ايها المدثر، ما ورته وويل خلک وايي چي تر ټولو وړاندي: اقرا باسم ربک، نازل سوی دی،

قَالَ أَبُو سَلَمَةَ سَأَلْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنْ ذَلِكَ وَقُلْتُ لَهُ مِثْلَ

ابوسلمه رضي الله عنه وويل: ما د دې په اړه د حضرت جابر رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه او ما هم هغه ته دا الفاظ ويلي وه کوم چي تا ما ته اوس وويل،

الَّذِي قُلْتَ لِي فَقَالَ لِي جَابِرٌ لَا أُحَدِّثُكَ إِلَّا مَا حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

حضرت جابر رضي الله عنه جواب راکړ چي رسول الله ﷺ موږ ته بيان کړی وو، يعني رسول الله ﷺ دا

وَسَلَّمَ قَالَ جَاوَرْتُ بِحِرَاءٍ فَلَمَّا قَضَيْتُ جِوَارِي هَبَطْتُ فَنُودِيتُ فَنَظَرْتُ عَنْ

وفرمايل چي زه په غار حراء کي تر يوه مياشت پوري په خلوت کي وم کله چي زما داعتکاف شپه پوره سوه او زه د غره څخه راکښته سوم نو ما ته آواز راغلی، ما راسته او چپه خوا ته وکتل

يَمِينِي فَلَمْ أَرَ شَيْئًا وَنَظَرْتُ عَنْ شِمَالِي فَلَمْ أَرَ شَيْئًا وَنَظَرْتُ خَلْفِي فَلَمْ أَرَ شَيْئًا

نو ما هيڅ شی و نه ليدی، بيا ما شا ته وکتل نو ما هيڅ شی و نه ليدی بيا چي سر مي پورته کړ نو

فَرَفَعْتُ رَأْسِي فَرَأَيْتُ شَيْئًا فَأَتَيْتُ خَدِيجَةَ قُلْتُ دَثِّرُونِي فَدَثَّرُونِي وَصَبُّوا عَلَيَّ

يو شى مي وليدى (يعني ملائكه)، ددې څخه وروسته بي بي خديجې ته راغلم ورته مي وويل پر ما جامه واچوه پر ما جامه واچوه، پر ما يې جامه واچوه،

مَاءً بَارِدًا فَنَزَلَتْ يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنْذِرْ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ و ثيابك فطهر وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ ، وذالك قَبْلَ أَنْ تُفْرَضَ الصَّلَاةُ. متفق عليه.

بيا يې پر ما يخي اوبه واچولې ، بيا دا سورة يعني : ياايها المدثر قيم فانذر ....، نازل سو او دا پېښه د لمانځه د فرض كيدو څخه مخكي ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۶۷۶، رقم: ۴۹۲۲، ومسلم ۱\۱۴۳، رقم: ۲۵۵- ۱۶۱.

**تشريح**: په ښکاره دا معلومېږي چي د حديث د روايت كولو په وخت كي د راوي د هيري په وجه مسئله په ذهن كي په پوره توګه خوندي سوې نه وه چي د هغه په وجه هغه دغه حديث داسي بيان كړ چي دغه حديث ددې خبري دليل دى چي تر ټولو لومړى وحي د يا ايها المدثر ..الخ، دي ، حال دا چي په حقيقت كي تر ټولو مخكي وحي د اقراء باسم ربک... الخ، نازل سوي دي، مګر دا ضرور دي چي د اقرا باسم ربک ، وروسته د وحي نزول تر څه وخت لپاره منقطع سوى وو او دغه لړى بي دوهم وار پيل سوه نو هغه وخت تر ټولو مخكي چي كومه وحي نازل سوه هغه د يا ايها المدثر...الخ، وه، لكه چي په دې اړه تفصيلي يادونه مخكي د حضرت عائشې ﷺ په روايت كي وسول، نو د يا ايها المدثر..الخ، اوليت اضافي دي نه حقيقي، خپله د حضرت جابر ﷺ روايت مخكي تېر سوى دى او په هغه كي يې دا بيان كړى دى چي رسول الله ﷺ د وحي د انقطاع په اړه وفرمايل: زه روان وم چي ناڅاپه ما د آسمان څخه راتلونكى آواز واورېدى ، لوړ مي وكتل نو وه مي لېدل چي هغه ملائكه ده چي ما ته په حراء كي راغلې وه...الخ، له دې څخه هم په ښكاره توګه دا خبره ثابتيږي چي دلته په دغه حديث كي د حضرت جابر ﷺ اضافي اوليت مراد اخيستى دى.

يا دا هم ويل كيداى سي چي ددغه حديث راوي له اختصار څخه كار اخيستى دى او تر ټولو لومړنى نازلېدونكي وحي د اقراء باسمک ربک...الخ، په حذف كولو سره يې هغه وحي ذكر كړل چي د انقطاع وروسته په دوهم وار شروع كېدونكي وحي كي تر ټولو لومړنى نازله سول.

===========

# بَابُ عَلَامَاتِ النُّبُوَّةِ

## (د نبوت د نښو بیان)

علامات، د علامت جمع ده او علامت په اصل کي مطلق نښي ته وايي او په خاصه توګه هغه نښي ته وايي چي د لاري په.شروع کي درول کيږي او د هغه مقصد مسافرو او تېرېدونکو ته د لاري او د هغه د پړاو معلومات ورکوي، له همدغه قبيل څخه دوه نور الفاظ، معلم او علم هم په همدغه معنی دي، مګر دلته د علامات څخه مراد هغه نښي دي چي د رسول الله ﷺ پیغمبري ثابتوي او د رسول الله ﷺ پر ذاتي او اخلاقي صفاتو او خصوصياتو، د رسول الله ﷺ پر فضائلو او شمائلو او د رسول الله ﷺ پر کړنو او حالاتو باندي داسي دلالت کوي چي هر یو هوښیار او پوه سړی د هغه په ذریعه د نبوت او رسالت یقین تر لاسه کولای سي، همدارنګه په پخوانیو آسماني کتابو کي چي د رسول الله ﷺ د کومو صفاتو او ځانګړتیاوو یادونه ده هغه هم د دغه قبیل څخه دي.

څرګنده دي وي چي د الله ﷻ له خوا رسول الله ﷺ ته څو مره معجزې ورکړل سوي دي هغه ټول د رسول الله ﷺ د نبوت او رسالت له نښو څخه دي، په دې اعتبار دا خبره په پوهه کي نه راځي چي د مشکوة مؤلف دوهم باب قائم کړی دی یو خو دغه (د نبوت د نښو بیان) او دوهم (د معجزو بیان)، ددې څه وجه ده او د علامو او معجزو په منځ کي یې څه فرق په ذهن کي ساتلی دی، حال دا چي په دواړو کي د معجزو یادونه ده، د مشکوة شارحینو د ډېر فکر کولو څخه وروسته هم ددې وجه بیانولو څخه قاصر پاته سوي دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د شق صدر واقعه

﴿۵۶۰۲﴾: عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَاهُ جِبْرِيلُ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ته جبرائیل علیه السلام راغلی (په وړکتوب کي)

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ فَأَخَذَهُ فَصَرَعَهُ فَشَقَّ عَنْ قَلْبِهِ

او هغه د کوچنیانو سره لوبي کولې، رسول الله ﷺ یې ونیوی او پرېې یې ایستی، بیا د رسول

الله ﷺ سینه مبارکه يې د زړه په لور څیري کړل

فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ عَلَقَةً فَقَالَ هَذَا حَظُّ الشَّيْطَانِ مِنْكَ ثُمَّ غَسَلَهُ فِي طَسْتٍ

او د رسول الله ﷺ د زړه څخه يې د يخی سوي ويني يوه ټوټه راوکښل او وه يې ويل دا ستا په بدن کي د ننه د شیطان برخه وه، ددې ويلو سره جبرائیل ؑ هغه

مِنْ ذَهَبٍ بِمَاءِ زَمْزَمَ ثُمَّ لَأَمَهُ ثُمَّ أَعَادَهُ فِي مَكَانِهِ وَجَاءَ الْغِلْمَانُ يَسْعَوْنَ إِلَى

د سرو زرو په تالی کي واچوی او د زمزم په اوبو سره يې پریولی، بیا يې وګنډی او پر خپل ځای کښېښودی او سینه يې يو ځای کړه، ماشومانو چي د رسول الله ﷺ سره لوبي کولې رامنډې

أُمِّهِ يَعْنِي ظِئْرَهُ فَقَالُوا إِنَّ مُحَمَّدًا قَدْ قُتِلَ فَاسْتَقْبَلُوهُ وَهُوَ مُنْتَقِعُ اللَّوْنِ قَالَ أَنَسٌ فَكُنْتُ أَرَى أَثَرَ الْخَيْطِ فِي صَدْرِهِ. رواه مسلم.

کړې د رسول الله ﷺ مور يعني دايي ته راغلل او ورته وه يې ويل چي محمد ﷺ ووژل سو، خلک د رسول الله ﷺ خوا ته راغلل او رسول الله ﷺ يې په داسي حال کي وليدی چي د مخ مبارک رنګ يې بدل وو، انس ﷜ وايي ما به د رسول الله ﷺ پر سینه مبارکه د ګنډلو نښنه لیدل. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱۱ ۱۴۷، رقم: ۲۶۱- ۱۶۲.

**تشریح**: په جامع الاصول کي د (عن قلبه) څخه وروسته د (واستخرجه) لفظ هم منقول دی او ټول عبارت داسي دی: (فشق عن قلبه واستخرجه فاستخرج منه علقه)، په دغه صورت کي به معنی داسي وي: بیا هغوئ د رسول الله ﷺ (سینه) زړه ته نژدې پرې کړل او زړه يې را وایستی او بیا يې له زړه څخه د ويني يوه توره ټوټه را وایستل (چي دبدیو او ګناهو بنیاد وي) او سرو زرو په تالی کي د زمزم په اوبو يې پرېولل، د سرو زرو د تالی استعمال د رسول الله ﷺ د عظمت او کرامت د اظهار لپاره وو، او کوم چي د سرو زرو د استعمال د منع سوال دی نو د هغه تعلق ددغه دنیا د عام ژوند سره دی چي د هغه مقصد د دغه دنیا په ژوند کي د ډیرو داسي شیانو څخه منع کول د هغه د بندګی امتحان اخیستل دي چي په هغه کي د کامیاب کېدو وروسته په آخرت کي هغه شیان هغه ته د اجر او انعام په توګه حاصلیږي، ځکه نو په آخرت کي نه یوازي دا چي د سرو استعمال جائز کیږي بلکه د جنت لوښي هم د سرو زرو وي،
نو د شق صدر دغه ټوله پېښنه چي په دغه وخت يا د معراج په شپه کي رامنځته سول له دغه :نیا

سره تعلق نه لري بلکه د غالم غيب او بلي دنيا سره تعلق لري، پرته له دې دغه نقطه هم بايد په ذهن کي وي چي د سرو زرو د تالی استعمال خپله د رسول الله ﷺ له خوا نه وو سوی بلکه د هغه استعمال ملائکي کړي وو چي په احکامو او مسائلو کي زموږ په ډول مکلف نه دي، دا خبره هم کيدای سي چي د سرو زرو د تالی استعمال د هغه وخت وي کله چي احکام او مسائل جاري سوي نه وه او په شرعي توګه د هيڅ شي د حلت او حرمت حکم نازل سوی او معلوم سوی نه وو.

د حديث له دغه برخي څخه دا ثابته سول چي د زمزم اوبه تر ټولو اوبو افضل او غوره دي تر دې چي د جنت پر اوبو هم فضيلت لري او په دې کي هيڅ شک نسته چي هغه اوبه چي د معجزې په توګه د رسول الله ﷺ د ګوتو څخه راوتلي وې هغه د زمزم تر اوبو هم فضيلت لري ځکه هغه اوبه د رسول الله ﷺ د لاس مبارک په اثر راوتلي وې او د زمزم اوبه د حضرت اسماعيل ؑ د پښو په اثر راوتلي وې.

دغه حديث او داسي نور حديثونه له دې سره تعلق لري چي د هغه منل واجب دي او د مجاز په توګه د تاويل او توجيه په ذريعه د هغه له ظاهري مفهوم او معنی څخه اعراض کول نه خو جائز دي او نه يې هيڅ اړتيا سته ځکه په دغه حديثو کي چي څه بيان سوي دي هغه له انساني عقل او فهم څخه دومره ليري ولي نه وي ، د هغه د حق او ريښتيا کېدو لپاره دا خبره کافي ده چي د هغه تعلق د قادر مطلق الله ﷻ د قدرت له ظهور څخه دی او دا هغه خبري دي چي د هغه خبر صادق و مصدوق ﷺ ورکړی دی ، ځکه نو د دهغه صداقت د شک او شبهې څخه لوړ دی.

**په شق صدر (د سينې په څېرلو) کي حکمت**: د رسول الله ﷺ د سينې مبارکي په څېرلو او د زړه مبارک په پاکولو کي دا حکمت وو چي د رسول الله ﷺ باطن پاک او زړه مبارک داسي ځلانده سي چي د وحي الهي د نور په جذب کولو کي هيڅ شی خنډ نه سي، او د منصب رسالت د بار په پورته کولو کي زړه او دماغ له مخکي څخه تيار وي، له نفساني وسوسو څخه د رسول الله ﷺ تېرېدل هم نه وي او شيطان له رسول الله ﷺ څخه غافل کولو کي نه يوازي دا چي کامياب نه سي بلکه له رسول الله ﷺ څخه بالکل مايوس سي لکه چي د حضرت جبرائيل ؑ دغه الفاظ (هذا حظ الشيطان منک) هم دې ته اشاره کوي.

دا ښودل ضروري دي چي له رسول الله ﷺ سره د شق صدر (سينې څېرلو) پېښه څلور واره رامنځته سوې ده ، يو وار په وړکتوب کي له حليمه ؓ سره چي د هغه يادونه په دغه حديث کي ده، دوهم وار د لسو کالو په عمر کي، دريم وار د نبوت د ظاهرېدو په وخت کي او څلورم وار د معراج په شپه کي دي کله چي جبرائيل ؑ د رسول الله ﷺ د بيولو لپاره راغلی.

په دې اړه د علماؤ اختلاف دی چې د سینې مبارکې څېرل او د زړه مبارک پرېولل یوازې د رسول الله ﷺ لپاره خاص وه او که له نورو پیغمبرانو سره هم داسې کېدل، له حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه چې کوم روایت د تابوت او سکینه په اړه منقول دی په هغه کې یې دا بیان کړی دی چې په هغه تابوت کې (له نورو تبرکاتو سره) هغه تالۍ هم وه چې په هغه کې د نبیانو علیهم السلام زړونه پرېولل کېدل، له دغه روایت څخه د هغه علماؤ تائید کېږي چې وایي د رسول الله ﷺ په ډول د نورو نبیانو علیهم السلام سینې هم څیرې کېدلې او د هغوئ زړونه هم پرېولل کېدل.

﴿۵۶۰۳﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِنِّي لَأَعْرِفُ حَجَرًا بِمَكَّةَ كَانَ يُسَلِّمُ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ أُبْعَثَ إِنِّي لَأَعْرِفُهُ الْآنَ. رواه مسلم.

د حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: زه د مکې هغه کاڼی پېژنم چې زما د نبي کېدو څخه مخکې به یې ماته سلام کوی هغه اوس هم پېژنم. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱۷۸۲\۱۴، رقم: ۲- ۲۲۷۷.

**تشریح**: ما ته به یې سلام کوی، یعني کله چې به زه د هغه ډبرې سره تېرېدلم نو ما به د السلام علیک یا نبي الله، آواز اورېدی، ځینو محدثینو ویلي دي چې د دغه ډبرې څخه مراد حجر اسود دی او ځینو ویلي دي چې د دې څخه مراد هغه ډبره ده چې په زقاق الحجر سره مشهور ده، او هغه تر اوسه پورې په مکه کې موجود ده، دغه ډبره چې چیرې پرته ده هغه د مسجد حرام او بي بي خدیجې رضي الله عنها د کور په منځ کې واقع دی.

په یوه روایت کې د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه منقول دي چې هغې وویل: **رسول الله** ﷺ ما ته وفرمایل: کله چې حضرت جبرائیل علیه السلام ما ته د رسالت په راوړلو سره راغلی **او زه یې** د نبوت او رسالت په منصب مشرف کړلم نو تر دې وروسته کله چې به د یوې ډبرې **یا** درختې سره تېرېدم نو هغه به ویل: السلام علیک یا رسول الله.

## د شق قمر معجزه

﴿۵۶۰۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ إِنَّ أَهْلَ مَكَّةَ سَأَلُوا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُرِيَهُمْ آيَةً فَأَرَاهُمُ الْقَمَرَ شِقَّتَيْنِ حَتَّى رَأَوْا حِرَاءً بَيْنَهُمَا. متفق علیه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چې د مکې خلکو رسول الله ﷺ ته وویل: چې دوئ ته یو

معجزه وښيي رسول الله ﷺ ورته سپوږمۍ دوې ټوټې کړې وښودل او هغوئ حراء غر د هغه دوو ټوټو په منځ کي وليدی. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۸۲، رقم: ۳۸۶۸، ومسلم ۴\۲۱۵۹، رقم: ۴۶- ۲۸۰۲.

﴿۵۶۰۵﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ انْشَقَّ الْقَمَرُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِرْقَتَيْنِ فِرْقَةً فَوْقَ الْجَبَلِ وَفِرْقَةً دُونَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْهَدُوا. متفق عليه.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي سپوږمۍ شق سوه (يعني پر منځ دوې ټوټې سوه يوه ټوټه د غره سربيره خوا ته وه او دويمه لاندي خوا ته) رسول الله ﷺ کافرانو ته وويل زما دنبوت شاهدان اوسئ . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۶۱۷، رقم: ۴۸۶۴، ومسلم ۴\۲۱۵۸، رقم: ۴۳- ۲۸۰۰.

**تشريح**: شاهدان اوسئ ، ددې يوه معنی ځينو حضراتو دا ليکلې ده چي راسئ او دغه معجزه وګورئ، ددغه معنی په صورت کي به د شهدوا لفظ د شهادت څخه مشتق وي او د لومړنۍ معنی په صورت کي به د شهدوا لفظ د شهود څخه مشتق وي .

د شق القمر معجزه، يعني د رسول الله ﷺ د لاس په اشاره سره د سپوږمۍ دوې ټوټې کېدل يوه حقيقي پېښه ده چي د هغه په صداقت کي د هيڅ شک او شبهې ګنجائش نسته، ددغه پېښي سره اړوند روايت د صحابه کرامو او تابعينو يوې لوی ډلي بيان کړی دی او د هغوئ په واسطه ډېرو محدثينو دغه روايت نقل کړی دی، علامه ابن سبکي رحمه الله د ابن حاجب په مختصره شرح کي ليکلي دي: زما په نزد صحيح دادی چي د شق قمر روايت متواتر دی او بخاري، مسلم او نورو د حديثو امامانو په دومره زياتو طريقو سره نقل کړی دی چي په دې کي د شک او شبهې ځای نسته ، ددې څخه ماسوا ددې معجزې د صداقت تر ټولو لوی ثبوت خپله قرآن کريم دی، د ټولو مفسرينو پر دې اتفاق او اجماع ده چي په دغه آيت کريمه :

اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانشَقَّ الْقَمَرُ، وَإِن يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ

ژباړه: قيامت نژدې سو او سپوږمۍ وچاودل او کله چي دغه کافران يوه معجزه ويني نو مخ اړوي اووايي چي دا خو ښکاره جادو دی .

دلته په دغه آیت کریمه کي هغه شق قمر مراد دی چي د رسول الله ﷺ د معجزې په توګه واقع سو ، نه هغه شق قمر چي د قیامت په ورځ به واقع کیږي، ددې ځرګند دلیل خپله د آیت الفاظ (ان یروا ایة یعرضو.....الخ) دي، ډیرو بې دینو او فلسفیانو ددې ځخه معجزې ځخه انکار کړی دی، د هغوئ د انکار بنیاد پر دې عقیده دی چي په فلکیاتو کي خرق او التیام ممکن نه دی، په دې اړه لومړی خو باید دا خبره په ذهن کي وي چي الله ﷻ د فلکیاتو خالق او قادر مطلق دی ، ټول فلک د هغه د قدرت مسخر او د هغه د حکم تابع دی، په دغه کائناتو کي ځه چي دي ، که ځمکه ، که آسمان ، سپوږمۍ او ستوري یا لمر په دې کي چي کوم یو غواړي هغه په ماتولو سره یوې خوا ته کولای سي ، خپله الله ﷻ ښودلي دي چي د قیامت په ورځ به هغه آسمان داسي راونغاړي لکه ځرنګه چي کاغذ را نغښتل کیږي، دوهمه خبره دا چي په فلکیاتو کي د خرق او التیام د محال نظریه چي هغه وخت هم د ځینو فلاسفوو په نزد د نظر محل وو، د تحقیق او تجربي ځخه وروسته اوس بالکل باطل سوې ده، د اوس زماني انسان سپوږمۍ ته په رسېدو سره د شق القمر معجزې ته ستر تائید رسولی دی، نو د خرق او التیام بحث کولو سره ددې معجزې خلاف دلیل قائمول بالکل بې معنی خبره سوې ده، ددغه معجزې انکار کونکي یو بل اعتراض کوي ، هغوئ وایي چي په سپوږمۍ کي دومره لوی بدلون کېدل چي هغه په دوو ټوټو وویشل سول ، دا یو معمولي خبره نه وه ، که چیري په حقیقت کي داسي سوي وای نو ددې لیدنه به یوازي تر مکې پوري محدود نه وای بلکه دغه کړنه به ټولو د ځمکي اوسیدونکو لیدلې وای، او بېله فرق کولو ټولو مؤرخینو ته به په تواتر سره ددې یادونه کولای، ددې جواب دادی چي اول خو ددغه معجزې واقع کېدل د یو څو خاصو خلکو په غوښتنه سوی وو او هغوئ ته دا وښودل سول ، ددې ځخه ماسوا دا د شپې پېښه وه چي د یوه ګړي لپاره وه،

ځرګنده ده چي په داسي وخت کي چي ډېر خلک په خوب کي وي ددغه یو ګړي کړني لیدنه ځرنګه ممکن ده ، دوهم دا چي د اختلاف مطالع په وجه دا ممکن کیدای نه سي چي سپوږمۍ په یوه وخت کي پر یو مطلع باندي د دنیا ټول خلک ویني، ځکه ددغه معجزې د واقع کېدو په وخت کي د سپوږمۍ د دنیا خطو ځخه چا ته معلومه سول او چا ته معلومه نه سول، لکه چي د سپوږمۍ تندره نیولو په وخت کي کیږي، نو هغه وخت په ځینو خطو کي معلومیږي او په ځینو کي نه معلومیږي، ددې ځخه ماسوا په ځینو روایتو کي راځي چي هغه ورځ د عربو ځخه ماسوا کوم خلک چي مکې مکرمې یا د هغه نژدې سیمو ته راغلي وه هغوئ ټولو خپلو خپلو ښارو او سیمو ته په رسېدو سره ددغه واقعې خبر ورکړ، او کوم چي په تاریخ کي ددغه عجیبه پیښي

(شق قمر) د یادوني تعلق دی نو په اسلامي تاریخ او د سیرت په کتابو کي د دغه واقعې ذکر په تواتر سره موجود دی ، که څه هم د اسلام مخالفين او له دين څخه بېزاره خلک د دې څخه انکار وکړي مگر د اسلامي تاريخ څخه ماسوا د ځينو نورو قومو نو په يادونه او حالاتو کي هم د دې ذکر تر لاسه کيږي، لکه د هندوستان مليبار يا د مالوه ښار وهار راجه په اړه منقول دي چي هغه خو يوازي د دغه پېښي د ليدني يا تصديق په وجه په اسلام شرف سوی وو.

## ابوجهل ته خبرداری

﴿۵۶۰۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ أَبُو جَهْلٍ هَلْ يُعَفِّرُ مُحَمَّدٌ وَجْهَهُ بَيْنَ

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي ابوجهل (د مکې کفارو يا قريشو ته) وويل: ايا محمد (ﷺ) ستاسو په مخ کي مخ په خاورو لړي (يعني لمونځ او سجده کوي)،

أَظْهُرِكُمْ فَقِيلَ نَعَمْ فَقَالَ وَاللَّاتِ وَالْعُزَّى لَئِنْ رَأَيْتُهُ يَفْعَلُ ذَلِكَ لَأَطَأَنَّ

ورته وويل سول هو ، هغه ورته وويل په لات او عزى (د بتانو نومونه) دي مي قسم وي که زه هغه پر داسي کولو ووينم نو غاړه به يې پرې کړم،

عَلَى رَقَبَتِهِ فَأَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّي زَعَمَ لِيَطَأَ عَلَى

نو هغه (په دې اراده سره) رسول الله ﷺ ته راغلی دغه وخت رسول الله ﷺ لمونځ کوی هغه د رسول الله ﷺ پر غاړه مبارکه قدم ايښودلو لپاره قصد وکړ

رَقَبَتِهِ فَمَا فَجِئَهُمْ مِنْهُ إِلَّا وَهُوَ يَنْكُصُ عَلَى عَقِبَيْهِ وَيَتَّقِي بِيَدَيْهِ فَقِيلَ لَهُ

نو ناګاه ابوجهل مخ پر شا حرکت شروع کړی چي پوندي يې لګولې او د ځان ساتنه يې په خپل دواړو لاسونو کول ، د هغه څخه پوښتنه وسوه چي

مَا لَكَ فَقَالَ إِنَّ بَيْنِي وَبَيْنَهُ لَخَنْدَقًا مِنْ نَارٍ وَهَوْلًا وَأَجْنِحَةً فَقَالَ رَسُولُ

څه وسول؟ هغه وويل ما وليدل چي زما او د محمد (ﷺ) په منځ کي د اور يو خندق بيره ونکی منظر او وزرونه دي (ملائکي دي چي د رسول الله ﷺ ساتنه کوي) نبي کريم ﷺ وفرمايل:

اللَّهِ ﷺ لَوْ دَنَا مِنِّي لَاخْتَطَفَتْهُ الْمَلَائِكَةُ عُضْوًا عُضْوًا . رواه مسلم.

که ابوجهل ما ته رانژدې سوی وای نو ملائکو به ټوټې ټوټې کړی وای . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۴\ ۲۱۵۴، رقم: ۳۸ - ۲۷۹۷.

**د لغاتو حل**: ينكص: اي يرجع (راګرځي)

## يوه پيشګوئي

﴿۵۶۰۷﴾: وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ بَيْنَا أَنَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ

د حضرت عدي بن حاتم رضي الله عنه څخه روايت دى چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر وم چي

أَتَاهُ رَجُلٌ فَشَكَا إِلَيْهِ الْفَاقَةَ ثُمَّ أَتَاهُ آخَرُ فَشَكَا إِلَيْهِ قَطْعَ السَّبِيلِ فَقَالَ يَا عَدِيُّ

يو سړى راغلى د فقر او مفلسۍ شكايت يې وكړ، بيا يو بل سړى راغلى هغه د لوټ كيدو شكايت وكړ، رسول الله ﷺ وفرمايل: اې عدي!

هَلْ رَأَيْتَ الْحِيرَةَ فَإِنْ طَالَتْ بِكَ حَيَاةٌ لَتَرَيَنَّ الظَّعِينَةَ تَرْتَحِلُ مِنَ الْحِيرَةِ حَتَّى

تا حيره ښار ليدلى دى؟ (حيره كوفې ته نژدې يو ښار دى)، كه ته ژوندى پاته سوې نو وه به وينې چي يوه ښځه به يوازي د حيره څخه سفر كوي

تَطُوفَ بِالْكَعْبَةِ لَا تَخَافُ أَحَدًا إِلَّا اللّٰهَ وَلَئِنْ طَالَتْ بِكَ حَيَاةٌ لَتُفْتَحَنَّ كُنُوزُ

او د كعبې شريفي طواف به كوي او د الله تعالى څخه پرته به د هيچا څخه نه بيريږي، كه ته ژوندى پاته سوې نو وه به وينې چي د كسرى خزانې به خلاصي كړل سي

كِسْرَى وَلَئِنْ طَالَتْ بِكَ حَيَاةٌ لَتَرَيَنَّ الرَّجُلَ يُخْرِجُ مِلْءَ كَفِّهِ مِنْ ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ

او كه ته ژوندى پاته سوې نو وه به وينې چي سړى به يو موټ ډک سره زر يا سپين زر راوباسي

يَطْلُبُ مَنْ يَقْبَلُهُ فَلَا يَجِدُ أَحَدًا يَقْبَلُهُ مِنْهُ وَلَيَلْقَيَنَّ اللّٰهَ أَحَدُكُمْ يَوْمَ يَلْقَاهُ

او هغه سړى به لټوي چي دده دا خيرات قبول كړي او هغه ته به يو سړي هم داسي په لاس ورنه سي، او البته د قيامت په ورځ به په تاسو كي يو سړى په داسي حال كي د الله جل جلاله سره يو ځاى

وَلَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ تَرْجُمَانٌ يُتَرْجِمُ لَهُ فَلَيَقُولَنَّ أَلَمْ أَبْعَثْ إِلَيْكَ رَسُولًا فَيُبَلِّغَكَ

سي چي د هغه او د الله جل جلاله په منځ كي به هيڅ ترجمان نه وي چي الله جل جلاله ته د هغه حال بيان كړي، بيا به الله جل جلاله د هغه څخه پوښتنه وكړي ايا ما تاسو ته رسول نه وو درليږلى چي د دين احكام در ته ورسوي؟

فَيَقُولُ بَلَى فَيَقُولُ أَلَمْ أُعْطِكَ مَالًا وَأُفْضِلْ عَلَيْكَ فَيَقُولُ بَلَى فَيَنْظُرُ عَنْ يَمِينِهِ

هغه به ورته وايي هو راليږلی دی وو ، بيا به ورته فرمايي ايا ما تا ته مال نه وو درکړی او فضل مي درباندي نه وو کړی مال مي هم درکړی وو او احسان مي هم درباندي کړی وو هغه به وايي هو، بيا به هغه سړی خپل راسته خوا ته وګوري

فَلَا يَرَى إِلَّا جَهَنَّمَ وَيَنْظُرُ عَنْ يَسَارِهِ فَلَا يَرَى إِلَّا جَهَنَّمَ اتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقَّةِ

نو دوږخ به ورته معلوم سي او چپه خوا ته چي وګوري نو هم به دوږخ ورته معلوم سي ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : اې خلکو ! د دوږخ د اور څخه ځان وساتئ که څه هم د

تَمْرَةٍ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَبِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ قَالَ عَدِيٌّ فَرَأَيْتُ الظَّعِينَةَ تَرْتَحِلُ مِنَ الْحِيرَةِ

خرما په يوې ټوټې خيرات کولو سره وي او د چا سره چي دا هم نه وي نو د سوال کونکي سره دي په نرمۍ او ښو اخلاقو سره خبره کوي، عدي بن حاتم راوي وايي ما د رسول الله ﷺ د ارشاد

حَتَّى تَطُوفَ بِالْكَعْبَةِ لَا تَخَافُ إِلَّا اللَّهَ وَكُنْتُ فِيمَنِ افْتَتَحَ كُنُوزَ كِسْرَى بْنِ

سره سم د حيره څخه کعبې شريفي پوري ښځه په سفر وليدل په داسي حال کي چي طواف يې کوی او هغه د الله ﷻ څخه پرته د بل چا څخه نه بيريده، او بيا زه په هغه خلکو کي شامل وم چي

هُرْمُزَ وَلَئِنْ طَالَتْ بِكُمْ حَيَاةٌ لَتَرَوُنَّ مَا قَالَ النَّبِيُّ أَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخْرِجُ مِلْءَ كَفِّهِ. رواه البخاري

هغوئ د کسری خزانې خلاصي کړې او که تاسو ژوندي پاته سواست نو د رسول الله ﷺ دريم ارشاد به هم په خپلو سترګو ووينئ يعني خلک به ډک موټ سره زر ګرځوي او هيڅوک اخيستونکی به نه وي . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٦١٠. رقم: ٣٥٩٥.

**د لغاتو حل**: الفاقة: اي الفقر وشدة الحاجة (مسکنت او سخته اړتيا). الظعينة: المراة المسافرة.

**تشريح**: په دغه حديث کي رسول الله ﷺ د درو خبرو وړاند وينه وفرمايل: يو خو دا چي د عربو په هيواد کي به پوره امن سي، د غلا او لوټ په ډول جرمونه چي عام ژوند په بهره کي اخته کوي ليري دي. د هغه ځای څخه به يوه ښځه د بيت الله د طواف لپاره تر مکې پوري پر اوښ يا

بل سپړلۍ باندي يوازي سفر كوي او د هغې ځان او مال ته به هيڅ خطره نه وي، دوهم دا چي الله جَلَّ‌جَلَالُهُ به د اسلام د مجاهدينو په لاس د فارس (ايران) ستره پاچاهي فتح كړي او د هغه د پاچا كسرى پر خزانو باندي به د مسلمانانو واک سي، او دريم دا چي په اسلامي پاچاهۍ كي به اقتصادي خوشحالي، او د مال اودولت په پراخۍ سره ځيني خلک يا يوه خاصه طبقه نه بلكه ټول خلک به داسي برخمن سي چي د زكوة او خيرات وركونكي به په خپلو لاسو كي سره زر او روپۍ ګرځوي مګر صدقه او خيرات اخيستونكى به نه وي، ځكه په ټوله اسلامي نړۍ كي به مسكين او محتاج پاته نه سي نو د صدقې او خيرات اخيستونكى به څوک وي ، په دغه درو وړاند وينو كي دوې خو پوره سوي دي او د هغه مشاهده خپله د حديث راوي حضرت عدي ابن حاتم رَضِيَ‌اللّٰهُ‌عَنْهُ وكړل ، او د دريمي وړانديويني په اړه ځيني علماء دا وايي چي دا به په آخره زمانه كي د حضرت عيسى عَلَيْهِ‌السَّلَام د نزول وروسته پوره كيږي چي د هغه په پاچاهي كي به هيڅوک وږى او محتاج نه وي او د عامي خوشحالۍ به دا حال وي چي په پلټنه كولو سره به هم څوک د خيرات او زكوة اخيستونكى نه پيدا كيږي، په دې اړه يادونه په هغه حديث كي تېره سوې ده چي د حضرت عيسى عَلَيْهِ‌السَّلَام د نزول په باب كي نقل سوى دى، او ځيني علماء وايي چي دغه دريمه وړاند وينه هم د حضرت عمر ابن عبدالعزيز رَحِمَهُ‌اللّٰه د خلافت په زمانه كي پوره سوې ده، بيهقي دا قول په جزم سره اختيار كړى دى، د هغه په زمانه كي د عامو خلكو اقتصادي حالت دومره غوره وو چي د صدقې او خيرات اخيستونكى به نه پيدا كېدى، كله چي رسول الله صَلَّى‌اللّٰهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّم لومړۍ وړاندوينه وفرمايل هغه په اصل كي د هغه سړي په جواب كي وه چي هغه د غلاوو شكايت كړى وو، او دوهمه وړاند وينه د هغه سړي په جواب كي وه چي هغه د فقر او مفلسۍ شكايت كړى وو ، ، مګر رسول الله صَلَّى‌اللّٰهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّم ، حضرت عدي ابن حاتم رَضِيَ‌اللّٰهُ‌عَنْهُ مخاطب كړ چي هغه وخت هغه په مجلس كي حاضر وو مګر خطاب عام وو، مقصد دا وو چي د دغه خبرو زيرى ټول صحابه كرام واوري او په دې ضمن كي د هغه دواړو شكايت كونكو جواب هم تر لاسه سي چي په هغه سره هغوئ ته ډاډ تر لاسه سي.

د دغه زيري وركولو څخه وروسته پر مسلمانانو باندي د اقتصادي خوشحالۍ او مالي پراختيا زمانه راتلونكې ده، رسول الله صَلَّى‌اللّٰهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّم دا څرګندول هم ضروري وګڼل چي د مال پراختيا انسان په عيش او عشرت كي اچوي او د آخرت څخه يې غافل كوي ځكه نو مؤمنانو ته پكار ده چي د پراخۍ په زمانه كي دا خبره هېره نه كړي چي په دنيا كي د مال او دولت راحت په اصل كي د آخرت د تنګۍ او سختۍ او د پښيمانۍ سبب دى ، مګر كه چيري مال او دولت د خير په كارو

کي مصرف کړل سي او د آخرت توښه ګرځولو توفيق هم د الله ﷻ له خوا تر لاسه سي نو په دنيا او اخرت دواړو ځايو کي به اساني او راحت وي، خلاصه دا چي رسول الله ﷺ د خپل نبوت سره سم چي رسول الله ﷺ د نيکيو زيری ورکوونکی هم دي او د خرابيو څخه بېرونکی هم دی د مسلمانانو د رزق د پراختيا او د ژوند د فراغت زيری هم ورکړ او د قيامت د ورځي د سختۍ او شدت څخه يې بېرول هم.

ترجمان، هغه سړي ته وايي چي يوه خبره د يوې ژبي څخه په بله ژبه بيان کړي چي هغه ته مترجم هم وايي، نو د هغه او د الله ﷻ په منځ کي به ترجمان نه وي، ددې مطلب دادی چي د قيامت په ورځ به د الله ﷻ او د هغه بنده په منځ کي د هيڅ يو مترجم يا بل چا واسطه نه وي، د پروردګار په حضور کي به د بنده مخامخ وړاندي کېدل او خبري اتري وي.

ايا ما تاته مال او زر نه وه درکړې، دا استفهام اقراري دي، يعني ما ته په مال او دولت سره مشرف کړی وي، پر تا مي خپل فضل او انعام وکړ، د هغه دولت مصرف کولو، د هغه څخه د ګټي اخيستلو او په مستحقو او اړو کسانو باندي د هغه د مصرف کولو توان مي درکړی وو.

راسته او چپه خوا ته د دوږخ د کتلو ذکر په اصل کي ددې خبري څخه کنايه ده چي په هغه ورځ به بنده د ټولو خواوو څخه د دوږخ په منځ کي راګير وي، او ددغه خطرناکه ځای څخه د خلاصون لپاره به ددې څخه ماسوا نور هيڅ نه وي چي هغه به پر دوږخ سربېره پر پل صراط باندي تيرېږي، که چيري په دنيا کي يې د ايمان او تقوا ژوند اختيار کړی وي او د الله ﷻ فضل ورسره وي نو پر هغه به په تېرېدو سره جنت ته ورسيږي او کنه نو په دوږخ کي به ولوېږي، د الله ﷻ ارشاد دی:

وَإِن مِّنكُمْ إِلاَّ وَارِدُهَا كَانَ عَلَى رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا ، ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوا

ژباړه: اوپه تاسو کي هيڅوک داسي نسته چي پر دوږخ سربېره به نه تيرېږي، دا ستاسو د رب حتمي فيصله ده، بيا به موږ پرهېزګارو ته خلاصون ورکړو.

ځکه رسول الله ﷺ وفرمايل: خپل ځان د دوږخ څخه وژغورئ او ددې يوه غوره طريقه صدقه او خيرات هم دی، څومره چي مالي پراختيا وي هغومره همت وي د هغه سره سم د غريبانو، مسکينانو، او اړو کسانو مالي مرسته کولو سره د الله ﷻ په لاره کي خپل مال مصرف کړئ، که يو غوښتونکی ستا سو په وړاندي خپل لاس وغزوي نو ته چي څه ورکولای سي هغه ورکړه که څه هم د خرما يوه ټوټه وي، او که بالکل د څه ورکولو توان نه وي نو کم از کم دا وکړه چي د سخت جواب ورکولو په ذريعه د هغه د زړه ماتولو پر ځای په ډېره نرمۍ او ښه اخلاقو سره

هغه ته خپل عذر بیان کړه، او په داسي طرز کي هغه ته جواب ورکړه چي هغه ستا د چلن څخه خوشحاله سي، په شرط د دې چي په هغه کي د دین سپکاوی نه وي.

## د دین په لار کي سخت تکلیفونه زغمل

﴿۵۶۰۸﴾: وَعَنْ خَبَّابِ بْنِ الْأَرَتِّ قَالَ شَكَوْنَا إِلَى النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت خباب بن ارت رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د کعبې شریفي په سایه کي تر

وَهُوَ مُتَوَسِّدٌ بُرْدَةً فِي ظِلِّ الْكَعْبَةِ وقد لقينا من المشركين شد فقلنا الا

سر لاندي کمبل ایښی پروت وو، موږ د کفارو څخه سختی (تکلیفونه) لیدلي وه بیا موږ

تدعو الله فقعد وهو محمر وجهه قَالَ كَانَ الرَّجُلُ فِيمَنْ قَبْلَكُمْ يُحْفَرُ لَهُ

وویل: تاسو د کافرانو لپاره د الله جل جلالہ څخه ښیرا ولي نه غواړئ، د دې او ریدو سره رسول الله ﷺ کښېنستی او مخ مبارک یې سور سو، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: ستاسو څخه مخکي داسي خلک تیر سوي دي چي د هغوئ لپاره به په مځکه کي کنده وکښل سوه

فِي الْأَرْضِ فَيُجْعَلُ فِيهِ فَيُجَاءُ بِالْمِنْشَارِ فَيُوضَعُ عَلَى رَأْسِهِ فَيُشَقُّ بِاثْنَتَيْنِ

بیا به په هغه کنده کي سړی کښېنول سو او بیا به اره کړل سو او پر منځ به دوې ټوټې کړل سو،

فَمَا يَصُدُّهُ ذَلِكَ عَنْ دِينِهِ وَيُمْشَطُ بِأَمْشَاطِ الْحَدِيدِ مَا دُونَ لَحْمِهِ مِنْ عَظْمٍ

مګر د دغه عذاب څخه به هم هغوئ د دین څخه نه اوښتل، او د خلکو بدنونه به د اوسپني په ږمونځ ږمونځېدل چي په هغه سره به د هغوئ غوښه د هډوکو څخه ایسته سوه

أَوْ عَصَبٍ وَمَا يَصُدُّهُ ذَلِكَ عَنْ دِينِهِ وَاللّٰهِ لَيُتِمَّنَّ هَذَا الْأَمْرَ حَتَّى يَسِيرَ

او هغوئ به د دین څخه نه اوښتل، په الله جل جلالہ دي مي قسم وي دا دین به پوره وي او تر دې حده به پر مختګ کوي

الرَّاكِبُ مِنْ صَنْعَاءَ إِلَى حَضْرَمَوْتَ لَا يَخَافُ إِلَّا اللّٰهَ أَوِ الذِّئْبَ عَلَى غَنَمِهِ وَلَكِنَّكُمْ تَسْتَعْجِلُونَ. رواه البخاري.

چي يو يوازي سپور به د صنعاء څخه تر حضر موت پوري يوازي سفر كوي، او د الله ﷻ څخه پرته به د هيچا څخه نه بيريږي او رمې والا به پرته د شرموښ څخه د بل چا څخه په بيره كي نه وي، مګر تاسو تلوار كوئ (يعني د صبر او استقامت څخه كار مه اخلئ). بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۳۱۵، رقم: ۶۹۴۳.

**تشريح**: مخ مبارك يې سور سو، دا په اصل كي د هغه دنني كيفيت اظهار وو چي د صحابه كرامو د ژبي څخه د كافرانو او د دين د ښمنانو د ظلم او دهغوئ په تكليفو رسولو سره پر رسول الله ﷺ خپور سو، يا دا چي رسول الله ﷺ ته دا خوښه نه وه چي د كافرانو پر ظلم باندي صحابه كرام د بې صبرۍ اظهار وكړي او پر ژبه د شكايت الفاظ راوړي ځكه هغه صحابه كرام چي د كفارو د مخالفت او دښمنۍ څخه شكايت وكړنو د ناخوښۍ او غصې په وجه د رسول الله ﷺ مخ مبارك سور سو، رسول الله ﷺ چي وروسته څه وفرمايل ، هغه ته په كتلو سره دغه وضاحت زيات مناسب معلوميږي .

صنعاء، د مشق (شام) په شاوخوا كي د يو كلي نوم وو لكه چي په قاموس كي ليكلي دي ، او دا په اصل كي د جزيره عرب د مشهور هيواد يمن تر ټولو لوی ښار او پلازمينه دی، د اوبو د زياتوالي او د درختو د زياتوب په وجه د يمن شنګيا ډېره مشهوره ده .

حضرت موت هم د يمن يوه برخه وه او د يو ځای نوم وو، مګر اوس د عدن ختيځي خوا ته پر يوې لوي سيمي باندي مشتمل د ډېرو ښارونو مجموعي نوم دی، په يوه زمانه كي د لته صحابه كرام او اولياء دومره زيات وه چي دا مقوله ويل كيدل، حضرت موت ، منبت الاولياء، يعني حضرت موت هغه ځای دی چي اولياء الله پكښي پيدا كيږي، ددغه ځای نوم حضرت موت په دې وجه مشهور دی چي ستر پيغمبر حضرت صالح عليه السلام دلته وفات سوی وو او د وفات پر وخت هغه دا جمله فرمايلې وه، حضرت الموت، يعني مرګ حاضر سو ، د هغه وخت څخه ددغه ځای نوم حضرت موت سو ، او ځينو حضراتو ليكلي دي چي يو پيغمبر حضرت جرجيس عليه السلام هم دلته وفات سوی وو او د هغه وخت څخه ددغه ځای نوم حضرت موت سو .

يو سړي ته د خپلو پسو په اړه ... الخ: ددغه جملې اصلي معنی مقصد نه ده يعني دا مطلب نه دی چي په حقيقت كي د شرموښانو پر پسو حمله كول او د هغوئ ښكار كېدل پرېږدئ ځكه چي په عادت كي داسي ممكن نه ده، كه څه هم په آخره زمانه كي چي حضرت عيسی عليه السلام دنيا ته را نازل سي او عام انتظام به دهغه په لاس كي وي نو هغه وخت به دومره د بركت او امن وي چي شرموښان به هم پر پسو باندي د حملې كولو څخه منع كيږي بلكه ددغه جملې اصلي

مقصد د انسانانو یو پر بل باور ، د امن او امان ظاهرول دي چي هغه وخت به خلک د یو بل د ظلم او زیاتي څخه خوندي او مامون وي او ټوله ټولنه به داسي په امن او عافیت کي وي چي د هغه تصور هم د جاهلیت په زمانه کي نه سو کیدای .

مګر تاسو تلوار کوئ، د دغه جملې په ذریعه رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته ډاډ ورکړ چي تاسو په وېره او پرېشاني کي مه اخته کېږئ چي د کوم عظیم مقصد په لاره کي تاسو لګیدلي یاست ، هغه به ښېله تکلیف او پرېشانۍ ژر تر سره کړئ، په دغه لاره کي ډېر خنډونه هم دي او سخت مصیبتونه هم ، او د دغه مصیبتو د زغملو لپاره سخت تکلیفونه پر ځان ورل پکار دي ، او پر مصیبتو باندي د صبر او استقامت لمن هم ټینګول پکار دي ، زه تاسو ته یقین درکوم که الله جَلَّ جَلَالُهُ وغوښتل نو د اسلام او د مسلمانانو د دښمنانو د عناد رویه به ختمه سي او د الله جَلَّ جَلَالُهُ دین به لوړ وي نو تاسو د دین په لاره کي پر ټولو مصیبتو باندي صبر کوئ لکه څرنګه چي د تېرو امتونو او مؤمنانو پر مصیبتو باندي د خپل یقین او د ایمان د قوت په مرسته صبر وکړ چي تاسو ته د پېښېدونکو مصیبتو او تکلیفو څخه زیات دردناک او سخت وه .

## یو خوب او دعاء

﴿۵۶۰۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ عَلَى أُمِّ

د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د ام حرام بنت ملحان کره تلی راتلی،

حَرَامٍ بِنْتِ مِلْحَانَ وَكَانَتْ تَحْتَ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ فَدَخَلَ عَلَيْهَا يَوْمًا

ام حرام د عباده بن صامت ښځه وه ، یوه ورځ رسول الله ﷺ د ام حرام کور ته تشریف راوړ ،

فَأَطْعَمَتْهُ ثُمَّ جَلَسَتْ تَفْلِي رَأْسَهُ فَنَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ

ام حرام په رسول الله ﷺ باندي خوراک وخوړی بیا کښېنستل ، د رسول الله ﷺ په سر مبارک کي سپږي کتلې رسول الله ﷺ بیده سو ، بیا رسول الله ﷺ په خندا را پورته سو ،

وَهُوَ يَضْحَكُ قَالَتْ فَقُلْتُ مَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي عُرِضُوا

ام حرام پوښتنه وکړه اې د الله رسوله ! تاسو ولي وخندل؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : زما په امت کي یوه ډله (په خوب کي) داسي زما په مخکي وړاندي کړل سول چي

عَلَيَّ غُزَاةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَرْكَبُونَ ثَبَجَ هَذَا الْبَحْرِ مُلُوكًا عَلَى الْأَسِرَّةِ أَوْ مِثْلَ

هغوئ د الله ﷻ په لار کي جهاد کوي او په دریاب کي سپاره دي لکه څرنګه چي پاچا پر تخت

الْمُلُوكِ عَلَى الْأَسِرَّةِ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ فَدَعَا لَهَا ثُمَّ

ناست وي یا دپاچاهانو په دول چي پر خپل تخت وي، ام حرام وايي ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! د الله ﷻ څخه دعاء وغواړه چي په دغه مجاهدینو کي ما هم شامله کړي، رسول الله ﷺ دعاء وکړه د دې څخه

وَضَعَ رَأْسَهُ فَنَامَ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا يُضْحِكُكَ قَالَ

وروسته رسول الله ﷺ (پر تکیه) سر مبارک ولګوی او بیده سو ، بیا په خندا را پورته سو ، ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! تاسو ولي خاندئ ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل

نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي عُرِضُوا عَلَيَّ غُزَاةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَمَا قَالَ فِي الْأُولَى فَقُلْتُ يَا

زما په امت کي ځیني خلک د الله ﷻ په لاره کي جنګ کونکي راته وښودل سول (لکه څرنګه چي لومړی وار رسول الله ﷺ وفرمایل همداسي یې دا وار هم وفرمایل)، ما عرض وکړ اې د الله

رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ قَالَ أَنْتِ مِنَ الْأَوَّلِينَ فَرَكِبَتْ أُمُّ حَرَامٍ

رسوله ! دعاء وکړئ چي الله ﷻ ما په دوئ کي شامله کړي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ته په لومړنۍ ډله کي شامله یې ،(او همداسي وسول چي) د معاویه ؓ په زمانه کي ام حرام د دریاب په کښتۍ کي سپره سوه

الْبَحْرَ فِي زَمَنِ مُعَاوِيَةَ فَصُرِعَتْ عَنْ دَابَّتِهَا حِينَ خَرَجَتْ مِنَ الْبَحْرِ فَهَلَكَتْ.

متفق عليه.

او د دریاب څخه چي کښته کیدل او پر خپلي سپرلۍ سپریده نو را ولویده او وفات سوه. بخاري او مسلم. (ام حرام (رض) د رسول الله ﷺ محرمه وه یعني یا یې رضعي خاله وه یا یې د پلار یا نیکه خاله وه ، د حضرت انس ؓ خاله وه د ام سلیم خور وه او په اسلام مشرفه وه) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٧٠-٧١، رقم: ٦٢٨٢، ومسلم ١٣\١٥١٨، رقم: ١٦٠-١٩١٢.

**د لغاتو حل**: ثبج: اي وسطه ومعظمه . (درميان)

**تشريح**: ام حرام ؓ د بلحان ابن خالد لور وه، د بني نجار د قبیلې سره یې تعلق درلود ، د حضرت انس ؓ خاله ده او د هغه مور د بي بي ام سلیم خور وه ، دغه دواړي مبارکي ښځي

يعني بي بي ام حراء ﷞ او بي بي ام سليم ﷞ د تي رودلو په وجه يا د يو بل قرابت په وجه د رسول الله ﷺ خاله ګاني وې ، امام نووي ﷫ ليکلي دي : د ټولو علماؤ پر دې اتفاق دی چي بي بي ام حرام ﷞ د رسول الله ﷺ محرم وه ځکه رسول الله ﷺ په بې تکلفۍ سره په غرمه کي د هغې په کور کي قيلوله (د غرمې آرام) کوی مګر د محرميت په کيفيت کي د علماؤ اختلاف دی ، چا ورته په يوه تعلق محرم ويلي دي او چا په بل تعلق ، بي بي ام حرام ﷞ په اسلام مشرفه سول او د رسول الله ﷺ په لاس مبارک يې بيعت وکړ او د حضرت عثمان ﷛ د خلافت په زمانه کي د خپل خاوند حضرت عباده ابن صامت ﷛ سره چي د انصارو څخه يو ستر صحابي دی، د الله ﷻ په لاره کي د جهاد لپاره ووتل او د روم هيواد ته په رسېدو سره د شهادت پر مرتبه ونازول سول،

په سر مبارک کي د سپږو کتلو لپاره کښېنستل، مخکي دا تحقيق تېر سوی دی چي د رسول الله ﷺ د بدن مبارک په هيڅ برخه کي هم شپږي نه وې ، د بي بي ام حرام ﷞ اصل مقصد د رسول الله ﷺ د وېښتانو مبارکو څخه د ګرد او غبار پاکول وو او دا کتل وه چي سپږه خو به نه وي ،

يا دا يې وفرمايل چي د پاچاهانو په ډول پر تخت وي، دلته راوي د خپل شک اظهار کړی دی چي دلته رسول الله ﷺ د (ملوكا على الاسرة ) الفاظ وفرمايل، يا د (مثل الملوك على الاسرة) الفاظ وفرمايل، په دواړو جملو کي لږ فرق دی، د اصل او مفهوم په اعتبار دواړي جملې يو ډول دی، په دغه جمله کي د رسول الله ﷺ د درياب سينه د مځکي په مخ سره او کشتۍ ته له تخت سره مشابهت ورکړ او په کشتۍ کي سپرېدل يې د پاچاهي پر تخت باندي د ناستي مشابه وګرځول، همدا رنګه رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي هغه خلک که څه هم د خپل ځان په تکليف کولو سره په دومره خطرناک کار پسي روان وه مګر د مقصد له موخي د اخلاص او يقين او الهي رضا جذبه يې درلودل او له دې کبله د هغوئ په زړو کي بېره نه وه ، هغوئ دومره په اطمينان او سکون سره په درياب کي سفر کوئ او پر کشتو ناست وي لکه يو پاچا چي په خپل خوندي او مامون محل کي د پاچاهي پر تخت په اطمينان سره ناست وي .

ته په لومړنۍ ډله کي يې، د دې څخه څرګندېږي چي رسول الله ﷺ ته په دوهم وار خوب کي کومه ډله ښکاره سوې وه د هغه ډلي څخه ماسوا پر نورو خلکو باندي مشتمل وو کوم چي په لومړي ځل ښکاره سوي وه ، دلته دې ته اشاره وه چي د دغه امت يوه ډله به د درياب په سفر کولو سره د الله ﷻ په لاره کي جهاد کوي ، کله به يو لښکر په جګړه وي او کله به بل لښکر د درياب په سفر کولو سره پر دښمنانو حمله کوي، کله چي ام حرام ﷞ په دوهم وار رسول الله ﷺ ته د دعاء غوښتنه وکړل نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ، ستا په اړه په لومړي ځل دعاء قبوله سوې ده او

ته په هغه ډله کي يې چي تر ټولو مخکي د دریاب په سفر کولو سره د الله ﷻ په لاره کي جهاد کوي، ددې شخه دا هم معلومه سول چي ددغه خلکو مرتبه چي هغوئ ته د اول جهاد سعادت په برخه سو د وروسته مجاهدينو شخه لوړه ده.

د روايت د آخري الفاظو شخه په ظاهره دا معلوميږي چي د جهاد په سفر کي د بي بي ام حرام ﷺ روانېدل او د سپرلۍ شخه په ايله کېدو سره د شهادت تر لاسه کېدو پېښه د حضرت امير معاويه ﷺ دحکومت د زمانې ده، او په اسماء الرجال او د سيرت په کتابو کي د هغې شهادت د حضرت عثمان ﷺ د خلافت په زمانه کي بيان سوی دی يعني د حضرت عثمان ﷺ د خلافت په زمانه کي کله چي حضرت معاويه ﷺ عامل او والي وو نو هغه وخت دا پېښه رامنځه سوې وه او دا پېښه د هغه وخت وه کله چي حضرت معاويه ﷺ د امارت پر تخت ناست وو، ددغه وضاحت شخه د دواړو روايتو په منځ کي هيڅ تضاد نه پاته کيږي.

## د رسول الله ﷺ اعجاز

﴿۵۶۱۰﴾: وَعَنْ عَبَّاسٍ قَالَ اِنَّ ضِمَادًا قَدِمَ مَكَّةَ وَكَانَ مِنْ أَزْدِ شَنُوءَةَ وَكَانَ يَرْقِي

د حضرت عباس ﷺ شخه روايت دی چي قبيله شنوء د ازد بناخ يو سړی چي د هغه نوم ضماد وو مکې ته راغلی، ضماد به منتر وايه

مِنْ هَذِهِ الرِّيحِ فَسَمِعَ سُفَهَاءَ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ يَقُولُونَ إِنَّ مُحَمَّدًا مَجْنُونٌ فَقَالَ

او د پيريانو وغيره لپاره به يې دم کوی، هغه د مکې د جاهلانو شخه واوريدل چي محمد ﷺ ليونی سوی دی، ددې اوريدو سره هغه وويل

لَوْ أَنِّي رَأَيْتُ هَذَا الرَّجُلَ لَعَلَّ اللّٰهَ يَشْفِيهِ عَلَى يَدَيَّ قَالَ فَلَقِيَهُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنِّي

که زه دا سړی ووينم نو کيدای سي چي زما په علاج سره الله تعالی هغه ته صحت ورکړي، د ابن عباس ﷺ بيان دی چي ضماد د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او وه يې ويل: ای محمد

أَرْقِي مِنْ هَذِهِ الرِّيحِ فَهَلْ لَكَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْحَمْدَ

(ﷺ)! زه د پيريانو منتر وايم که ستاسو خوښه وي نو علاج به مو وکړم؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ټول تعريفونه الله ﷻ لره دي

لِلّٰهِ نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِينُهُ مَنْ يَهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ

موږ د هغه حمد کوو او د هغه څخه مرسته غواړو، هغه چي چا ته سيده لاره وښيي نو هغه څوک گمراه کولای نه سي او څوک چي گمراه کړي نو هغه ته څوک هدايت نه سي کولای

وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ أَمَّا بَعْدُ

او زه ددې اقرار او شهادت کوم چي د الله ﷻ څخه ماسيوا بل څوک د عبادت وړ نه سته هغه يوازي يو دی هيڅوک د هغه شريک نه سته او زه ددې شاهدي کوم چي محمد ﷺ د الله ﷻ بنده او د هغه رسول دی، امابعد! ددې څخه وروسته

فَقَالَ أَعِدْ عَلَيَّ كَلِمَاتِكَ هَؤُلَاءِ فَأَعَادَهُنَّ عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رسول الله ﷺ خطبه وركول غوښتل مگر پته خوله سو او څه چي يې فرمايلي وه هغه يې بس وګڼل، ضماد چي د رسول الله ﷺ الفاظ واوريدل نو عرض يې وکړ څه چي تاسو وفرمايل هغه دويم وار وفرماياست، نو رسول الله ﷺ هغه الفاظ درې واره وفرمايل،

ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَقَالَ لَقَدْ سَمِعْتُ قَوْلَ الْكَهَنَةِ وَقَوْلَ السَّحَرَةِ وَقَوْلَ الشُّعَرَاءِ فَمَا

ضماد وويل: ما د کاهنانو اقوال اوريدلي دي او د ساحرانو کلمات مي اوريدلي دي او د شاعرانو اشعار مي اوريدلي دي

سَمِعْتُ مِثْلَ كَلِمَاتِكَ هَؤُلَاءِ وَلَقَدْ بَلَغْنَ قَاعُوسَ الْبَحْرِ هَاتِ يَدَكَ أُبَايِعْكَ عَلَى

مگر ستاسو د کلماتو په ډول هيڅ کلام مي نه دی اوريدلی، ستاسو دا کلمې (په فصاحت او بلاغت کي) د درياب بيخ ته رسيدلي دي تاسو خپل لاس را وړاندي کړئ چي زه ستاسو په لاس

الْإِسْلَامِ قَالَ فَبَايَعَهُ. رواه مسلم وفي بعض نسخ المصابيح بلغنا ناعوس

بيعت وکړم، ابن عباس رضي الله عنه وايي، ضماد د رسول الله ﷺ پر لاس مبارک بيعت وکړ او مسلمان سو، مسلم، او په بعضو نسخو د مصابيح کي داسي لفظ دی بلغنا ناعوس

البحر وذكر حديثا ابي هريرة وجابر بن سمرة يهلك كسرى والاخر لتفتحن عصابة في باب الملاحم. وهذا الباب خال عن الفصل الثاني.

البحر، او ذکر سوي دي دوه حديثونه د ابوهريره رضي الله عنه او جابربن سمره رضي الله عنه حديثونه (يهلک

كسرى ...او بل لتفتحن عصابة) په باب الملاحم كي بيان سوي دي.

**تخريج:** صحيح مسلم ۲\۵۹۳، رقم: ۴۶- ۸۶۸،

**د لغاتو حل:** قاموس البحر: اي معظم بحر الكلام والمعنى بلغت غاية الفصاحة (ډېر فصيح)

**تشريح:** ضماد د ضاد په زېر او په پای كي په كسره (ضِمادِ) دی، مگر ځينو حضراتو دا نوم د آخري لفظ په ميم سره (ضمام) نقل كړی دی، شنوءة د يمن د يوې لوي سيمي نوم دی او ازد ددغه قبيلې يو ښاخ ته وايي، ضماد د خپل وخت يو لوی طبيب هم وو او دم كوونكی هم وو، د علم سره يې خاص تعلق درلودی، عمليات يعني دم او چوپ د هغه خاص فن او كسب وو، د نبوت د زمانې څخه مخكي له رسول الله ﷺ سره يې شناخت وو ځكه د نبوت د اعلان څخه وروسته چي هغه مكې ته راغلی او د مكې د بدو مشركينو د عناد او شر په ذريعه هغه ته دا خبره ورسېدل چي (نعوذبالله) په حضرت محمد ﷺ باندي د پيريانو او نورو شيانو اثر دی، يا د ليونتوب ناروغي پر غالبه سوې ده، چي د هغه په وجه نابلده خبري كوي، نو هغه د خپل تير تعلق په وجه په خپله د رسول الله ﷺ د علاج كولو اراده ظاهره كړل او د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو، رسول الله ﷺ د هغه د خبرو په اورېدو سره مناسب وګڼل چي د اسلام د مخالفينو په اثر هغه چي كومه رايه قائمه كړې ده د هغه ترديد په ډاګه ونه كړل سي بلكه د الله ﷻ پيغام او ددين خبره د هغه په مخكي وړاندي كړل سي چي په هغه سره هغه خپله پوه سي چي كوم څوك بې عقل، ليونی او مرضي ورته وايي هغه په حقيقت كي كوم حيثيت لري، او د عقل او پوهي پر كوم مقام باندي فائز دی، رسول الله ﷺ د هغه په وړاندي پر پند او نصيحت باندي مشتمله خطبه د حمد او ثناء تمهيدي جملې وفرمايلې او د اما بعد ويلو سره يې اصل خطبه ويل وغوښتل چي د رسول الله ﷺ اعجازته د وړاندي څه ويلو ضرورت پاته نه سو هغه ته د خطبې د تمهيدي جملو په ويلو سره د خپل زړه او دماغ دنيا بدلېدل محسوس سول، هغه په غوښتنه كولو سره په وار وار د رسول الله ﷺ دغه الفاظ واورېدل او كله چي د هغه دماغ شاهدي وركړل چي دا سړی نه ليونی دی او نه مرضي دي بلكه په حقيقت كي د الله ﷻ رسول او پيغمبر دی او د هغه په اړه چي د مخالفينو كوم ګمان دی د هغه اصل مقصد ددغه سړي څخه او ددغه ريښتوني خبرو څخه ليري كول دي نو هغه سمدستي د رسول الله ﷺ په لاس مبارك بيعت وكړ او مسلمان سو، همدارنګه ضماد رضي الله عنه د هغه خوشبختو صحابه كرامو څخه دی چي په لومړني اسلام كي د دين دمنلو شرف ورپه برخه سو، رضي الله عنه،

په قاموس البحر كي اصل لفظ د قاموس دی يا ناعوس، په دې اړه د مسلم شارح ، امام نووي رحمة الله عليه ليکلي دي چي موږ دوه ډوله يعني ناعوس هم نقل کړی دی او قاموس هم، زموږ سره چي د صحيح مسلم کومي نسخې تر لاسه کيږي په هغه کي ناعوس لفظ دی ، مګر د صحيح مسلم څخه ماسوا په نورو کتابو کي د قاموس لفظ ليکلی دی، او قاضي عياض رحمة الله عليه ليکلي دي چي ځينو حضراتو د ناعوس لفظ نقل کړی دی او زموږ شيخ ابو الحسن رحمة الله عليه ويلي دي چي د ناعوس هغه معنی ده کوم چي د قاموس ده مګر توربشتي رحمة الله عليه ويلي دي چي صحيح لفظ د قاموس دی ، دناعوس لفظ خطا او د راوي وهم دی ، دا يادونه کول هم ضروري دي چي د ځينو حضراتو په نزد دغه لفظ قاعوس هم نقل سوی دی او د لغت په مشهورو کتابو کي د ناعوس لفظ نه تر لاسه کيږي .

په دغه باب کي دوهم فصل نسته.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د قيصر روم په دربار کي د ابوسفيان شاهدي

﴿۵۶۱۱﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي سُفْيَانَ ابن حرب مِنْ فِيهِ إِلَى فِيَّ قَالَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي ابو سفيان بن حرب رضي الله عنه ما ته دا حديث بيان کړ چي

انْطَلَقْتُ فِي الْمُدَّةِ الَّتِي كَانَتْ بَيْنِي وَبَيْنَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

په هغه زمانه کي چي زما او د رسول الله صلى الله عليه وسلم په منځ کي صلح وه (يعني صلح حديبيه) ما سفر وکړ

فَبَيْنَا أَنَا بِالشَّأْمِ إِذْ جِيءَ بِكِتَابٍ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى هِرَقْلَ قَالَ

زه په شام کي مقيم وم چي د نبي کريم صلى الله عليه وسلم ليک مبارک د هرقل په نامه راغلی او هغه ليک

وَكَانَ دَحْيَةُ الْكَلْبِيُّ جَاءَ بِهِ فَدَفَعَهُ إِلَى عَظِيمِ بُصْرَى فَدَفَعَهُ عَظِيمُ بُصْرَى إِلَى

دحيه کلبي راوړی وو ، دحيه کلبي هغه ليک د بصری امير ته ورسوی، او د بصری امير هغه

هِرَقْلَ فَقَالَ هِرَقْلُ هَلْ هَا هُنَا أَحَدٌ مِنْ قَوْمِ هَذَا الرَّجُلِ الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ

ليک د هرقل په خدمت کي وړاندي کړ، هرقل وويل : ايا ددغه سړي د قوم يو څوک دلته سته چا چي د نبوت دعوه کړې ده ؟

قَالُوا نَعَمْ فَدُعِيتُ فِي نَفَرٍ مِنْ قُرَيْشٍ فَدَخَلْنَا عَلَى هِرَقْلَ فَأُجْلِسْنَا بَيْنَ يَدَيْهِ

خلکو ویل هو سته، نو د قریشو د یو ډلي سره زه را وستل سوم، موږ هرقل ته ورسیدو او د هغه مخته کښېنستو،

فَقَالَ أَيُّكُمْ أَقْرَبُ نَسَبًا مِنْ هَذَا الرَّجُلِ الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ قَالَ أَبُو سُفْيَانَ

هغه پوښتنه وکړه په تاسو کي څوک هغه ته زیات په نسب کي نژدې دی کوم چي ځان ته نبي وايي، د ابو سفیان بیان دی

فَقُلْتُ أَنَا فَأَجْلَسُونِي بَيْنَ يَدَيْهِ وَأَجْلَسُوا أَصْحَابِي خَلْفِي ثُمَّ دَعَا بِتَرْجُمَانِهِ فَقَالَ

ما وویل زه ورته نژدې يم، هر قل زه د ځان سره نژدې کښېنولم او د قریشو نور خلک زما شاته کښېنستل، بیا هر قل ترجمان وغوښتی او هغه ته يې وویل

قُلْ لَهُمْ إِنِّي سَائِلٌ هَذَا عَنْ هَذَا الرَّجُلِ الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ فَإِنْ كَذَبَنِي

ته دغه خلکو ته ووایه چي زه د ابو سفیان څخه د هغه سړي حال معلوموم، که ابو سفیان یو درواغ

فَكَذِّبُوهُ قَالَ أَبُو سُفْيَانَ وَايْمُ اللَّهِ لَوْلَا مَخَافَةُ أَنْ يُؤْثِرُوا عَلَيَّ الْكَذِبَ لَكَذَبْتُ

خبره وکړي نو تاسو ورته دروا غجن ووایاست، او د ریښتوني خبر څخه ما خبر کړئ، د ابو سفیان بیان دی که زما سره دا بیره نه وای چي خلک به ما ته دروا غجن ووايي نو ما به خامخا دروا غ خبري کړي وای،

ثُمَّ قَالَ لِتَرْجُمَانِهِ سَلْهُ كَيْفَ حَسَبُهُ فِيكُمْ قَالَ قُلْتُ هُوَ فِينَا ذُو حَسَبٍ قَالَ

ددې څخه وروسته هر قل خپل ترجمان ته وویل چي د ابو سفیان څخه پوښتنه وکړه چي ستاسو په منځ کي ددغه سړي حسب څه شي دی ؟ ابو سفیان په جواب کي وویل : هغه سړی په موږ کي صاحب حسب دی (یعني په حسب کي ښه دی خانداني سړی دی)، بیا هر قل پوښتنه وکړه

فَهَلْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مَلِكٌ قُلْتُ لَا قَالَ فَهَلْ كُنْتُمْ تَتَّهِمُونَهُ بِالْكَذِبِ قَبْلَ أَنْ

د هغه په پلرونو او نیکونو کي یو څوک پاچا تیر سوی دی ؟ ما وویل : یا، بیا هغه پوښتنه وکړه ایا د نبوت د دعوې څخه مخکي تاسو هغه دروا غجن لیدلی دی ؟

يَقُولَ مَا قَالَ قُلْتُ لَا قَالَ أَيَتَّبِعُهُ أَشْرَافُ النَّاسِ أَمْ ضُعَفَاؤُهُمْ قَالَ قُلْتُ بَلْ

ابو سفيان وويل : يا، بيا هرقل پوښتنه وکړه : کوم خلک چي پر هغه ايمان راوړي هغه شريف خلک دي که کمزوري او ضعيف؟ ما وويل

ضُعَفَاؤُهُمْ قَالَ يَزِيدُونَ أَوْ يَنْقُصُونَ قَالَ قُلْتُ لَا بَلْ يَزِيدُونَ قَالَ هَلْ يَرْتَدُّ

ضعيف او کمزوري خلک پر هغه ايمان راوړي، هرقل پوښتنه وکړه د هغه د پيروانو حلقه زياتيږي که کميږي؟ ما وويل زياتيږي، هرقل پوښتنه وکړه د هغه په دين کي د داخليدو څخه

أَحَدٌ مِنْهُمْ عَنْ دِينِهِ بَعْدَ أَنْ يَدْخُلَ فِيهِ سَخْطَةً لَهُ قَالَ قُلْتُ لَا قَالَ فَهَلْ

وروسته څوک په پټه سره مرتد کيږي هم ؟ما وويل يا داسي نه کيږي، هرقل پوښتنه وکړه ايا

قَاتَلْتُمُوهُ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَكَيْفَ كَانَ قِتَالُكُمْ إِيَّاهُ قَالَ قُلْتُ تَكُونُ الْحَرْبُ بَيْنَنَا

د هغه سره ستاسو جنګ هم سوی دی ؟ ما وويل هو، هرقل پوښتنه وکړه د هغه سره ستاسو د جنګ پای څه وو؟ ما ورته وويل زموږ او د هغه په منځ کي د جنګ نتيجه دا وي

وَبَيْنَهُ سِجَالًا يُصِيبُ مِنَّا وَنُصِيبُ مِنْهُ قَالَ فَهَلْ يَغْدِرُ قُلْتُ لَا وَنَحْنُ مِنْهُ فِي

لکه سلواغې چي کله هغه پر موږ غالب سي او کله موږ پر غالب سو، کله زموږ څخه هغه ته مصيبت رسيږي او کله د هغه څخه موږ ته مصيبت رسيږي، هرقل پوښتنه وکړه ايا هغه خپل قول ماتوي؟ ما وويل: قول ماتول نه کوي، نن سبا زموږ او د هغه په منځ کي صلح ده،

هَذِهِ الْمُدَّةِ لَا نَدْرِي مَا هُوَ صَانِعٌ فِيهَا قَالَ وَاللهِ مَا أَمْكَنَنِي مِنْ كَلِمَةٍ أُدْخِلُ فِيهَا

موږ نه سو ويلای چي دده صلح په معامله کي به د هغه کردار څه وي، د ابو سفيان بيان دی چي په دغه ټولو خبرو کي پرته د آخري خبري څخه ما د خپل لوري هيڅ ونه ويل، (يعني د رسول الله ﷺ خلاف ددې خبري څخه پرته چي د اوسني صلح په اړه هيڅ نه سم ويلای چي دده به پای څه وي نور مي هيڅ نه سوای ويلای)،

شَيْئًا غَيْرَ هَذِهِ قَالَ فَهَلْ قَالَ هَذَا الْقَوْلَ أَحَدٌ قَبْلَهُ قُلْتُ لَا ثُمَّ قَالَ لِتُرْجُمَانِهِ

هرقل پوښتنه وکړه دا ډول خبره ددغه څخه مخکي يو چا کړې ده ؟ ما وويل :يا، ددې څخه

وروسته هرقل د خپلو سوالونو وضاحت پيل کړاو ترجمان ته يې وويل

قُلْ لَهُ إِنِّي سَأَلْتُكَ عَنْ حَسَبِهِ فِيكُمْ فَزَعَمْتَ أَنَّهُ فِيكُمْ ذُو حَسَبٍ وَكَذَلِكَ

ابو سفيان ته ووايه چي زما څخه د هغه سړي د حسب پوښتنه کړې وه نو تا وويل چي هغه ستاسو

الرُّسُلُ تُبْعَثُ فِي أَحْسَابِ قَوْمِهَا وَسَأَلْتُكَ هَلْ كَانَ فِي آبَائِهِ مَلِكٌ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا

په قوم کي صاحب حسب دی، ښېښه داده چي نبي د قوم د اشرافو خلکو څخه وي بيا ما ستا څخه پوښتنه وکړه چي د هغه په پلرونو او نيکونو کي يو څوک پاچا تير سوی وو نو دا خيال کيدای.

فَقُلْتُ لَوْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مَلِكٌ قُلْتُ رَجُلٌ يَطْلُبُ مُلْكَ آبَائِهِ وَسَأَلْتُكَ عَنْ أَتْبَاعِهِ

سو چي هغه د خپل خانداني حکومت غوښتونکی وي، بيا ما ستا څخه پوښتنه کړې وه چي د هغه تابعداران کوم خلک دي؟

أَضُعَفَاؤُهُمْ أَمْ أَشْرَافُهُمْ فَقُلْتَ بَلْ ضُعَفَاؤُهُمْ وَهُمْ أَتْبَاعُ الرُّسُلِ وَسَأَلْتُكَ هَلْ

اشرف يا ضعيف او کمزوري خلک؟ تا وويل ضعيف او کمزوري خلک د هغه پيروان دي، او په حقيقت کي هم داسي خلک د رسول تابعدار وي، بيا ما پوښتنه وکړه ايا

كُنْتُمْ تَتَّهِمُونَهُ بِالْكَذِبِ قَبْلَ أَنْ يَقُولَ مَا قَالَ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا فَعَرَفْتُ أَنَّهُ لَمْ

تاسو هغه درواغجن گڼئ او پر هغه د درواغو تور لگوی؟ تا وويل: يا، نو زه پوه سوم چي څوک

يَكُنْ لِيَدَعَ الْكَذِبَ عَلَى النَّاسِ ثُمَّ يَذْهَبَ فَيَكْذِبَ عَلَى اللهِ وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَرْتَدُّ

په انسانانو کي درواغ نه وايي هغه پر خدای ﷻ څرنگه درواغ تړلای سي، بيا ما پوښتنه وکړه ايا د هغه د دين څخه څوک اوښتی دی

أَحَدٌ مِنْهُمْ عَنْ دِينِهِ بَعْدَ أَنْ يَدْخُلَ فِيهِ سَخْطَةً لَهُ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا وَكَذَلِكَ

يعني د هغه د مذهب قبلولو څخه وروسته د هغه څخه يا د هغه د مذهب څخه يو څوک ناراضه کيدو سره مرتد سوي دي؟ تا وويل: يا، هر کله چي ايمان په زړه کي ځای ونيسي او

الْإِيمَانُ إِذَا خَالَطَ بَشَاشَةَ الْقُلُوبِ وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَزِيدُونَ أَمْ يَنْقُصُونَ فَزَعَمْتَ

زړه د هغه د خوند څخه خبر سي نو دا حال د ایمان دی ، او ما ستا څخه پوښتنه وکړې وه چې د هغه د پیروانو شمیر زیاتیږي که کمیږي ؟ نو تا ځرګنده کړه چې

أَنَّهُمْ يَزِيدُونَ وَكَذَلِكَ الْإِيمَانُ حَتَّى يَتِمَّ وَسَأَلْتُكَ هَلْ قَاتَلْتُمُوهُ فَزَعَمْتَ أَنَّكُمْ

هغه زیاتیږي ، او د ایمان هم دا کیفیت وي چې هغه زیاتیږي تر دې چې پوره سي ،ما بیا پوښتنه وکړې وه چې تاسو د هغه سره جنګ کوئ ؟ تا وویل هو ،

قَاتَلْتُمُوهُ فَتَكُونُ الْحَرْبُ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ سِجَالًا يَنَالُ مِنْكُمْ وَتَنَالُونَ مِنْهُ

جنګ ورسره کوو او د جنګ مثال لکه د سلواغو چې کله هغه را باندي غالب سي او کله موږ هغه ته ستاسو څخه مصیبت رسیږي او تاسو ته د هغه څخه

وَكَذَلِكَ الرُّسُلُ تُبْتَلَى ثُمَّ تَكُونُ لَهُمُ الْعَاقِبَةُ وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَغْدِرُ فَزَعَمْتَ أَنَّهُ لَا

او خبره داده چې د رسولانو څخه هم داسي امتحان اخیستل کیږي او بیا د هغه فتح نصیب کیږي، بیا ما پوښتنه کړې وه چې ایا هغه قول ماتوي ؟ تا وویل هغه وعده ماتونکی نه دی

يَغْدِرُ وَكَذَلِكَ الرُّسُلُ لَا تَغْدِرُ وَسَأَلْتُكَ هَلْ قَالَ هَذَا الْقَوْلَ أَحَدٌ قَبْلَهُ فَزَعَمْتَ

او رسولان همداسي وي ، ما بیا پوښتنه وکړه ددې څخه مخکي ستاسو قوم کي یو چا داسي دعوا کړې ده ؟ تا وویل چې

أَنْ لَا فَقُلْتُ لَوْ كَانَ قَالَ هَذَا الْقَوْلَ أَحَدٌ قَبْلَهُ قُلْتُ رَجُلٌ ائْتَمَّ بِقَوْلٍ قِيلَ قَبْلَهُ

یا ، نو زه په زړه کي پوه سوم که یو چا ددې څخه مخکي ددغه ډول دعوا کړې وي نو ویل کیدای سوه چې هغه د هغوئ پیروي کړې ده ، د ابوسفیان بیان دی ددې څخه وروسته

قَالَ ثُمَّ قَالَ بِمَ يَأْمُرُكُمْ قَالَ قُلْتُ يَأْمُرُنَا بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ وَالصِّلَةِ وَالْعَفَافِ

هرقل زما څخه پوښتنه وکړه چې هغه سړی تاسو ته د کومي خبري حکم درکوي ؟ ما ورته وویل هغه موږ ته وایي چې لمونځ کوئ ، زکوة ورکوئ ، صله رحمي کوئ او د خپلوانو سره مینه او ښه

قَالَ إِنْ يَكُ مَا تَقُولُ حَقًّا فَإِنَّهُ نَبِيٌّ وَقَدْ كُنْتُ أَعْلَمُ أَنَّهُ خَارِجٌ وَلَمْ أَكُ أَظُنُّهُ

چلن کوئ او حرامو څخه ځان وساتئ ، هرقل وویل که ستا بیان صحیح وي نو یقینا هغه سړی

نبي دی او زه په دې پوهيدم چي يو نبي پيدا كيدونكی دی

مِنكُمْ وَلَوْ أَنِّي أَعْلَمُ أَنِّي أَخْلُصُ إِلَيْهِ لَأَحْبَبْتُ لِقَاءَهُ وَلَوْ كُنْتُ عِنْدَهُ لَغَسَلْتُ عَنْ

مګر زه په دې نه پوهيدم چي هغه به ستاسو په قوم كي پيدا كيږي كه زه هغه ته رسيدلای سوای نو هغه مي به ليدلی وای او د هغه سره به مي ملاقات ډير خوښ سوی وای او زه به د هغه په خدمت كي حاضر سوای وای او د هغه پښې مباركي به مي په خپلو لاسونو سره پريولي وای

قَدَمَيْهِ وَلَيَبْلُغَنَّ مُلْكُهُ مَا تَحْتَ قَدَمَيَّ ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

او زه تاسو ته ښيم چي د هغه حكومت به دغه ځكي ته را رسيږي كومه چي نن زما تر قدم لاندي ده ، بيا هرقل د رسول الله ﷺ مبارک ليكل وغوښتی او

وَسَلَّمَ فَقَرَأَهُ. متفق عليه وقد سبق تمام الحديث في باب الكتاب الى الكفار.

هغه يې ووايه . بخاري او مسلم ، او دا پوره حديث مخكي هم په باب الكتاب الى الكفار كي تير سوی دی.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۳۱- ۳۲، رقم: ۷. ومسلم ۳\۱۳۹۳، رقم: ۷۴- ۱۷۷۳.

**د لغاتو حل:** سخُطة: اي كراهة. العدة: اي مدة الهدنة والصلح الذي جرى يوم الحديبية.

**تشريح:** ابوسفيان ماته مخامخ دا بيان وكړ، ددې مطلب طيبي رحمه الله دا ليكلي دی چي حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا وضاحت كړی دی چي ابوسفيان خپله دغه پېښه ما ته مخامخ خپله بيان كړې ده، دا نه چي په يوې واسطې ما ته را رسېدلې ده مګر دا ويل زيات صحيح معلوميږي چي حضرت ابن عباس رضي الله عنه د دغه الفاظو په ذريعه دا واضحه كړل چي كله ابوسفيان دغه پېښه ماته بيان كړل نو هغه وخت زما څخه ماسوا بل څوک موجود نه وو نو د حدثني لفظ هم پر دغه مطلب دلالت كوي .

په دغه وخت كي چي زما او د رسول الله ﷺ په منځ كي وو ، دلته د وخت څخه مراد د صلح حديبيه زمانه ده ، دغه صلح په شپږم هجري كال كي سوې ده او د صلح له موخي د دې وخت لس كاله كرځول سوي وو مګر خپله د مكې كفارو دغه صلح داسي ختمه كړې وه چي هغوئ د رسول الله ﷺ د حليف قبيلې، خزاعه ځيني خلک ناحق قتل كړي وه چي د هغه په وجه رسول الله ﷺ ته د مكې د كفارو جګړه كول پرېوتل او د هغه په نتيجه كي مكه فتح سول، دا د اتم هجري كال واقعه ده .

کله چي د نبي کریم ﷺ لیک، هرقل ته ورسېدی، د هرقل لفظ د هاء په زیر او د راء په زبر او د قاف په جزم سره یعني (هِرَقْل) هم راغي او د هاء په زور، د راء په جزم او د قاف په زور سره (یعني هرقل) هم منقول دی، دا د هغه وخت د رومي پاچاهۍ د پاچا نوم وو، په اصل کي رومي پاچاهي د خپل وخت لوی نړیوال طاقت وو او د هغه تر اثر لاندي سیمو کي ټول بر اعظم، یورپ، مصر او کوچنۍ آسیا شامل وه، او د څلورمي عیسوي پېړۍ په اول کي په دوو برخو کي ویشل سو، نو د ختیځي برخي پلازمینه روماشو او د ختیځي برخي پلازمینه قسطنطنیه وګرځېدل لکه څرنګه چي په پخواني او متحد رومي پاچاهي حکمرانانو ته به یې قیصر ویل همدارنګه د دغه دواړو تقسیم سوي رومي سلطنت حکمرانانو هم د ځان لپاره قیصر لقب اختیار کړ، دا وجه ده چي د قسطنطنیه پاچاه ته یې هم د روم قیصر په نامه ویل چي د هغه لاندي مصر، حبش، فلسطین، شام او کوچنۍ آسیا او د بلقان هیوادونه وه، د دغه ختیځ رومي پاچاهۍ د شان او شوکت او قوت په وړاندي د لویدیځ روم هیڅ حیثیت نه وو، د رسول الله ﷺ زېږېدني په وخت کي په قسطنطنیه کي سخته سرکښي وسول او د هغه وخت قیصر (فوقا) د پاچاهۍ د تخت څخه په کښته کولو سره قتل کړ او د افریقي مقبوضاتو والي مصر ته یې د قسطنطنیه د تخت سنبالولو دعوت ورکړ، د افریقي والي د بوډاتوب په وجه نه راغلی مګر د هغه زلمی زوی، هرقل قسطنطنیه ته په رسېدو سره د دغه عظیمي پاچاهۍ پاچا سو، او د سلطنت ارکان هم د هرقل په خوښه ومنل سول، د پوه پاچاهۍ په ډول خپله هرقل هم عیسائي وو، پر دینار باندي په ټاپه لګولو سره هغه ته شکل ورکوونکی لومړنی پاچا هرقل وو، په عیسائي نړۍ کي دا امتیاز هم هغه ته حاصل دی چي د عیسایانو عبادت ګاه په لومړۍ ځل هغه جوړه کړل، او رسول الله ﷺ د نورو پاچاهانو او مشرانو په ډول د روم قیصر ته چي د اسلام مبارک لیک لیږلی وو هغه دا هرقل د قسطنطنیه د پاچاهۍ مشرتابه وو.

بُصری، په شام کي د یو ښار نوم وو او د قسطنطنیه د روم د قیصر تر واک لاندي وو، د دغه ښار حاکم د روم د قیصر د والي په حیثیت سره د پاچاهۍ له دربار سره نژدې تعلق درلود، نو رسول الله ﷺ د روم د قیصر په نامه خپل مبارک لیک د حضرت دحیه کلبي رضی الله عنه په ذریعه د بصری حاکم ته لیږلی وو او هغه لیک مبارک د روم قیصر ته رسول سوی وو.

په تاسو کي څوک د دغه سړي نژدې قریب دی، په دې اړه علماؤ لیکلي دي چي د یو سړي حالات او کوائف هغه سړي ته په زیاته توګه معلوم وي او هغه یې په ښه توګه بیانولای سي چي په نسب او قرابت کي د رسول الله ﷺ نژدې قریب وي نو هغه (یعني ابو سفیان) یې د سوال

او جواب لپاره منتخب کړ.
او زما ملګري يې زما شاته کښېنول، هرقل د صحيح جوابو تر لاسه کولو لپاره دا احتياط وکړ چي د ابوسفيان ټول ملګري يې د هغه شاته کښېنول ، که چيري ابوسفيان په جواب کي غلط بيان وکړي نو د هغه ملګري به د هغه په ترديد کولو کي د څه خدشې ښکار نه سي ، يا د هغه خلکو شاته کښېنولو کي د هرقل مقصد دا هم کيدای سو که ټول خلک د ابوسفيان سره يو ځای يا د هغه مخته ناست وي نو کيدای سي هغه خلک د سترګي يا لاس په اشاره سره ابوسفيان د يوې خبري کولو څخه منع کړي.
که دا بېره نه وای چي دلته موجود زما ملګري به مکې ته په تللو سره زما د قوم په مخکي دا وواېي چي ابوسفيان دهرقل په دربار کي د غلط بيان په ذريعه د محمد ﷺ خلاف ويلو کوښښ وکړ او هر څومره که زما د قوم خلک د اوس لپاره خوشحاله سي مګر په داسي کولو به زما درواغجن کېدل مشهور سي، چي په هغه سره به د قوم په نظر کي زما د کردار عظمت پاته نه سي نو هغه وخت چي د رسول الله ﷺ کوم بغض او عناد ما درلود د هغه سره سم دهرقل په مخکي به خامخا غلط بيان کړې وای او د رسول الله ﷺ په اړه مي به هغه صحيح خبري هيڅکله نه کولای چي په هغه سره د رسول الله ﷺ دنبوت دعوه پر حق کېدل ثابتېدل، مګر ملا علي قاري رحمة الله عليه واېي: زما په نزد ددغه جملې صحيح مطلب دادی که ما ته دا بېره نه وای چي زه په دغه وخت کي غلط بيان وکړم نو دلته موجود زما ملګري به زما ترديد وکړي او دهرقل په مخکي به زما درواغجن کېدل ثابت سي نو ما به د هرقل د سوالو په جوابو کي خامخا د غلط بيان کولو څخه کار اخيستی وای او د رسول الله ﷺ په اړه به مي صحيح خبري نه وای کړې.
هغه سړی په موږ کي د حسب خاوند دی، د حسب لغوي معنی د شريف الاصل کېدو او د صفت ده، يعني هغه په ذاتي، پلرني او کورنۍ صفاتو او ځانګړتياوو چي يو سړي ته په شرف او فضيلت ورکولو سره په ټولنه کي مفتخر وي، په دې اعتبار د حسب سره دنسب مفهوم هم راځي نو ابوسفيان ددغه جواب په ذريعه دې ته اشاره وکړل چي هغه سړی (محمد ﷺ) د ډيري شريفي کورنۍ څخه دی او د هغه نسبي تعلق د بني هاشم سره دی چي په قريشو کي تر ټولو افضل دي، په بخاري کي د حسب پر ځای دنسب لفظ دی د هغه عبارت داسي دی: کيف نسبه فيکم...الخ: په تاسو خلکو کي د هغه نسب څرنګه دی.
د هغه پيروي کوونکي څوک دي، شريفان دي که کمزوري او ضعيف خلک، د شريفانو څخه مراد هغه خلک دي چي د دنيا په نظر کي د عزت او عظمت خاوندان وي او هغوئ خپله پر

خپل حیثیت باندي مغرور وي، کنه نو څرګنده ده که د شریفانو لغوي او عرفي معنی مراد واخیستل سي نو دبني هاشم سره تعلق لرونکي حضرت عباس، حضرت حمزه رضي الله عنهما او داسي نور د قریشو د اکابرو سره تعلق لرونکي حضرت ابوبکر، حضرت عمر، حضرت عثمان او نور جلیل القدر قریشي صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه زیات شریف څوک کیدای سو، چي د هرقل او ابوسفیان د دغه سوال او جواب څخه مخکي په اسلام مشرف سوي وه.

د هغه پیروان کمزوري او ضعیف خلک دي، د ابواسحاق په روایت کي دلته د ابوسفیان جواب په دغه الفاظو نقل سوی دی چي د هغه اتباع کومو خلکو کړې ده ایا هغه کمزوري، ضعیف، مسکین او ځوانان دي، کوم چي د لوړ نسب د شرف لرونکو تعلق دی نو هغوئ د هغه پیروي نه ده کړې که ابوسفیان په دغه الفاظ، کي جواب ورکړی وي نو ددې مطلب دادی چي هغوئ دا خبره د اکثر او اغلب په اعتبار کړې ده.

د پیروانو شمېر ورځ په ورځ زیاتیږي او که کمیږي، د هرقل د سوال مطلب دا وو چي ایا دا صورت دی چي د هغه سړي منونکي او پر هغه د ایمان راوړنکو په شمېر کي ورځ په ورځ د نوو خلکو زیاتوب کیږي یا د هغه د پیروانو په شمېر کي داسي کمیږي چي یو وار کومو خلکو ایمان پر راوړی دی هغوئ خو ایمان راوړ اوس که په هغوئ کي څوک د دین په پرېښودو سره خپل مخکني دین یعني کفر او شرک ته ستنیږي یا یو سړی مړ سي نو د هغه د کمي او نقصان پوره کولو لپاره نوي خلک د هغه په دین کي نه داخلیږي، ددې جواب ابوسفیان دا ورکړي چي د هغه د پیروانو شمېر په هیڅ صورت کي هم نه کمیږي بلکه ورځ په ورځ زیاتیږي.

د پیغمبرانو پیروان کمزوري او ضعیف خلک وي، هرقل دا خبره په پای کي وکړل چي کله د حق آواز پورته کیږي نو هغه ته د لبیک ویلو لپاره تر ټولو مخکي کمزوري او مفلس خلک رامخته کیږي، او کوم چي د شتمنو او عزت لرونکو خلکو تعلق دی نو هغوئ په خپل کاروبار او تکبر کي د بوختیا په وجه د دغه سعادت څخه محروم وي، مګر کله چي مجبور سي او د حق پناه تر لاسه کولو څخه پرته بله د خلاصون لار نه وي نو بیا هغوئ هم د مؤمنانو په صف کي ګډون کوي.

د خلکو سره د درواغ ویلو پرهیز کوي او د الله جل جلاله په نسبت درواغ وایي، یعني په دې هر څوک پوهیږي چي د خپل خالق او پروردګار په حق کي درواغ ویل او په هغه پسي درواغ تړل ډېر بد دي، نو کوم څوک چي ستاسو په اقرار خلکو ته هیڅکله درواغ نه دي ویلي نو هغه سړی د الله جل جلاله په اړه دومره لوی درواغ ویل وایي چي الله جل جلاله هغه د خپل رب په جوړولو سره رالېږلی

دی ، خپله ستاسو د اقرار څخه ثابته ده چې هغه سړی په خپله خبره کې رېښتونی دی او یقینا د الله ﷻ پاک رسول دی .

او پای کې هغه تکمیل او اتمام ته رسېږي، ددې مطلب دادی چې د الله ﷻ دین همداسې پرمختګ کوي او خپرېږي چې یوې خواته د هغه د پیروانو او مرسته کونکو شمېر ورځ په ورځ زیاتیږي او بلې خوا ته خپله ددین اصولي او بنیادي احکام او قوانین په تدریج سره نازلیږي تر دې چې هغه عروج ته ورسیږي، او هلته په رسېدو سره دین آخري او کامل شکل اختیاروي، او مؤمنانو ته ستره غلبه تر لاسه کیږئ نو د اسلام د دین معامله داسې سوه چې یوې خوا ته د رسول الله ﷺ په پرله پسې هڅو سره د مسلمانانو شمېر ورځ په ورځ زیاتیدی او بلې خوا ته د اسلام احکام او قوانین لکه لمونځ، روژه، زکوة ، حج او داسې نور فرائض نازلیدل او بیا هغه ورځ راغلل چې کله الله ﷻ د رسول الله ﷺ د عمر په پای کې د خپل دین نوم اخیستونکو ته ستره غلبه هم ورکړل او د دین په کامل او مکمل کولو سره دغه آیت هم نازل سنو :

الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي...

ژباړه: نن ورځ ما ستاسو لپاره ستاسو دین بشپړ کړ او تاسو ته مې خپل ټول نعمتونه درکړل .

زما دا خیال نه وو چې هغه به ستاسو په قوم کې پیدا کیږي، د هرقل مطلب دا وو چې د حضرت ابراهیم ﷺ څخه وروسته زیات نبیان زموږ د قوم یعنې د حضرت اسحاق ﷺ د اولادې څخه وي ځکه نو زما ګمان وو چې نبئ آخر زمان ﷺ به هم د دوئ د نسل څخه وي، ستاسو د قوم یعنې د حضرت اسماعیل ﷺ د نسل څخه به نه وي چې د عربو مورث اعلی دی او د هرقل ، ابوسفیان ته دا ویل چې تا کومې خبرې بیان کړې دي که هغه رېښتیا وي نو هغه سړی یقینا پیغمبر دی، دا ددې خبرې نښه ده چې هرقل د پخوانې آسماني کتابو علم درلود او په هغه کتابو کې د رسول الله ﷺ د نبوت او رسالت په اړه نښې لیکلې وې ځکه هرقل چې د خپل علم سره سم دا یقین تر لاسه کړ چې د هغه د نبوت په دعوه کې دغه ټولې نښې تر لاسه کیږي نو هغه ابوسفیان ته څرګنده کړل چې ددغه سړي په نبي او رسول کېدو کې د هیڅ شک او شبهې ګنجائش نسته، ددې څخه ماسوا هرقل د نجم علم او په کهانت کې هم ماهر وو ، او ددغه علم په ذریعه هم هغه د رسول الله ﷺ د نبوت او رسالت ذکر سوي نښې و پېژندلې، لکه څرنګه چې د بخاري په یوه روایت کې ابن ناطور د حاکم بیت المقدس په حواله سره بیان کړې دي چې کله د روم پاچا هرقل په بیت المقدس کې مقیم وو نو یوه ورځ سهار په بېره کې را پورته سو ، یو سړي

ددغه پریشانۍ سبب ځيني وپوښتنې نو هرقل ورته وويل: نن شپه ما ستورې وليدې،
نو ښکاره شوه چي د مختون قوم پر ټولو هيوادو باندي غالب کېدونکی دی، ددې څخه وروسته هغه پوښتنه وکړل چي هغه کوم قوم دی چي په هغوئ کي د ختنې (سنت کولو) رواج دی، نو هغه ته وښودل سول چي په عربو کي د ختنې رواج دی مگر دا د هرقل تر ټولو لويه بدبختي وه چي هغه خپل علم او ذهانت څخه د رسول الله ﷺ د نبوت او رسالت حقيقت پېژندلو سربېره د ايمان د دولت څخه بې برخه پاته سو، او د خپل علم څخه يې گټه تر لاسه نه کړل، هغه نه يوازي دا چي د رسول الله ﷺ پر دعوت په لبيک ويلو سره اسلام قبول نه کړ بلکه د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو پر خلاف په جگړه سو، هغه د اسلام او مجاهدينو پر خلاف کله د رومي پاچاهۍ لښکر رالېږی او او له اسلامي لښکر سره په جگړه کېدل، مگر د الله ﷻ مرسته د خپل نامه اخيستونکو سره وه ځکه د جنگ په هر ميدان کي او په هر وخت کي د هرقل فوج ته سخته ماته وه او دهغه د لښکر ډېر کم خلک د جنگ د ميدان څخه د صحيح او سالم ستنېدو موقع په برخه سوه، هرقل د خپل ستر سلطنت او ډېر فوج په طاقت د اسلام او مسلمانانو د زياتيدونکي اسلامي طاقت ختمولو کي ټول عمر مصروف وو مگر الله ﷻ تل د اسلام په مقابله کي مغلوب کړ، تر دې چي هغه مسلمانانو ته د ماتي ورکولو په ارمان کي مړ سو او د هغه د عظيم سلطنت يوه لويه برخه لکه د شام هيواد اونور هيوادونه مسلمانانو فتح کړل، د هرقل وروسته د هغه زوی پر تخت کښېنست مگر د اسلام په مقابله کي زوال پذير رومي سلطنت ته هم هغه مرسته ور نه کړل سول او د هغه د مرگ څخه وروسته د هغه د سلطنت وجود ختم سو او بيا هغه زمانه راغلل چي په دغه روميانو (ترک) کي الله ﷻ د ايمان او اسلام سعادت ورکړ،

دغه قوم د خپلي بې پايه مېړانه او د ايمان په ستر طاقت سره نه يوازي دا چي په خپله زمانه کي د ټولي عيسائي نړۍ طاقت تر پښو لاندي کړ، د کفر او شرک په مقابله کي يې د اسلام ساتنه وکړل، بلکه ځان ته مسلمان ويونکو د رافضيه ډلي بېخ يې هم له منځه يووړ، چي د مکر او فلان په ذريعه د اسلامي حکومت ختمولو او د اسلام او مسلمانانو په له منځه وړلو کي بوخت وه، دا ترک وو چي الله ﷻ د حرمين شريفين دجوړولو او پرمختگ، د مکې او مدينې د ساتني او مالي مرستي او د علماؤ او مشائخو تعظيم او تکريم کوم اخلاص او کوم عقيده ورکړل د هغه مثال نه سي تر لاسه کيدای، ددې څخه معلومه سول چي چا ته الله ﷻ هدايت ور په برخه کړي نو هغه هيڅوک گمراه کولای نه سي او څوک چي الله ﷻ په گمراهي کي واچوي نو هغه ته څوک هدايت نه سي کولای، يوې خوا ته خو هرقل وو چي هغه ته د رسول الله ﷺ پوره

حقیقت معلوم وو ، مگر د هغه ریښتوني معلومات د هغه هیڅ په کار نه راغلل لکه څرنګه چي د هغه اصل مقصد هغه پاچاهي وه چي هغه په هیڅ حال کي پرېښودل نه غوښتل او د مال هغه مینه یې وه چي د هغه پر زړه او دماغ باندي د حقیقت خوښولو څخه زیاته خپره سوې وه نو هغه د توفیق الهي او همېشني سعادت څخه محروم پاته سو او د همیشه بدبختۍ مستحق وګرځول سو ، بلي خوا د هغه سیمه او د هغه د قوم سره تعلق لرونکي هغه خلک وه چي د خپل همیشني سعادت په وجه نه یوازي دا چي د ایمان او اسلام په دولت برخمن سول بلکه د دنیا د ستر طاقت او عظیمي پاچاهۍ حکمرانان سول .

دلته د هرقل د هغه ښېګڼي یادونه هم پکار ده چي کله هغه ته د رسول الله ﷺ مبارک لیک ورسېدی نو هغه نه یوازي دا چي په شوق یې وو ایه بلکه د هغه تعظیم او تکریم یې وکړ او د هغه مبارک لیک د خوندي ساتلو سخت بندوبست یې وکړ ، د هغه نتیجه دا سوه چي هغه خپله هم په ټول ژوند کي د پاچاهۍ مالک وو او د هغه اولاد هم تر یوې اوږدې مودې پوري پر اقتدار وو ، ددې پر خلاف د فارس (ایران) پاچا کسری ، د رسول الله ﷺ د مبارک لیک بې عزتي وکړل او هغه بدبخته د لیک په څېرلو سره ټوټې ټوټې کړ ، نو ددې په بدله کي الله ﷻ د هغه پاچاهي هم ټوټې ټوټې کړل او د هغه اولاد هم په ذلت او رسوایي سره دربدر سو ، او هغه په راتلونکي نسل کي هیچا ته هم د پاچاهۍ تخت او تاج په برخه نه سو .

په صحیح بخاري کي دا روایت نقل سو دی چي هرقل د روم قیصر د رسول الله ﷺ د مبارک لیک په ویلو سره د خپل هیواد مشران او لویان خلک په خپل محل کي راجمع کړل ، او بیا په بنده کوټه کي د هغوئ مجلس جوړ سو او ټولو ته یې وویل : اې خلکو ! که تاسو خپل مقصد ته رسېدل غواړئ او د کامیابۍ خواهش لرئ نو ددغه نبي ﷺ دعوت قبول کړئ او ایمان پر راوړئ ، ددې په اورېدو سره هغه ټولو خلکو د سختي غصې او نفرت اظهار وکړ او دومره په غصه سول چي هرقل د هغوئ د رد عمل په لیدو سره وبېرېدی ، هغه وویل : تاسو مه په غصه کېږئ ، پر خپل دین قائم اوسئ ، ما خو یوازي ددغه امتحان لپاره چي تاسو په خپل دین او عقیده کي څومره ټینګ او مستحکم یاست ، دا خبره کړې وه ، بیا هغه مشران خوشحاله سول او د هغه په مخکي پر سجده سول .

ځینو حضراتو د هرقل ایمان ته اشاره کړې ده او د مختلفو آثارو او قرائنو په رڼا کي یې هغه ته مؤمن ویلي دي مګر راجح قول او حقیقت هم دا دی چي هغه پر کفر او شرک عامل وو او کافر او مشرک مړ سو ، د ایمان او اسلام دولت یې په برخه نه سو ، په مسند امام احمد کي یو

روایت نقل سوی دی چي هغه د تبوک څخه رسول الله ﷺ ته لیکلي وه چي زه مسلمان یم، مګر رسول الله ﷺ وفرمایل: هرقل درواغ وایي ، هغه پر نصرانیت قائم دی، په هر حال د هرقل د واقعې په لېدو سره منل پکار دي چي علم او پوهي د هدایت تر لاسه کولو لپاره کافي نه دي تر څو چي د الله ﷻ توفیق او د فطرت سلیم لاربښوونه هغه ته تر لاسه نه سي چي د حق منلو ته یې رسوي،

عشق کاریست که موقوف هدایت باشد ، او دا هم څرګنده سول چي د دنیا مینه او د عزت حرص د حق په لاره کي تر ټولو لوی خنډ وي .

==========

# بَابُ فِيْ الْـمِعْرَاجِ

## (د معراج بیان)

د معراج لفظ د عروج څخه اخیستل سوی دی چي معنی یې د ختلو ده، معراج هغه شي ته وایي چي د لوړ تللو ذریعه وګرځي یعني زینه، الله ﷻ په نبي کریم ﷺ د آسمانو لېدنه وکړل او هلته خاص نښي ورته وښودل سوې، دې ته معراج ځکه ویل کیږي چي ګویا رسول الله ﷺ ته زینه کښېښودل سوه چي پر هغه باندي په ختلو سره آسمان ته ولاړ، په یوه روایت کي د معراج یعني زینې یادونه هم راغلې ده کله چي د رسول الله ﷺ د لوړي نړۍ سفر پیل سو نو د رسول الله ﷺ لپاره یوه زینه کښېښودل سول چي د هغه په ذریعه آسمان ته ولاړی او دا هغه زینه ده چي د هغه په ذریعه ملائکي آسمان ته تګ راتګ کوي او پر هغه باندي د انسانانو روحونه آسمان ته خیژي .

**د معراج زمانه**: د اکثرو علماؤ قول دی چي معراج د نبوت په دوولسم کال یعني د هجرت څخه یو کال مخکي د ربیع الاول په میاشت کي رامنځته سو او ځیني حضرت وایي چي د رمضان په اووه ویشتمه نېټه رامنځته سو ، د ځینو حضراتو قول د ۲۷ رجب دی او په عامو خلکو کي دغه مشهوره ده، ځیني حضرات د هجرت څخه درې میاشتي مخکي او ځیني د هجرت څخه پنځه کاله مخکي د معراج رامنځته کېدو ویونکي دي .

**د معراج او اسراء فرق** : باید پوه سو چي یو خو معراج دی او یو اسراء، اسراء هغه سفر ته وایي چي رسول الله ﷺ په دغه شپه کي د مسجد حرام څخه مسجد اقصی پوري وکړ او د

مسجد اقصی څخه تر آسمان پوري سفر ته معراج ویل کیږي، د اسراء لفظ د قرآن کریم څخه ثابت دی او له دې څخه انکار کول د اسلام څخه وتل دي، معراج د مشهورو او متواترو حدیثو څخه ثابت دی او د دې څخه انکار کونکي ته ګمراه او بدعتي ویل کیږي .

**په خوب کي که په ویښه**! په دې اړه د علماؤ اختلاف دی چي د رسول الله ﷺ معراج د خوب په‌ښه ده او که د ویښي؟ دغه پېښه یو ځل رامنځته سوې ده او که څو واره؟ یا دا چي یو وار په ویښه رامنځته سوه او په خوب کي څو واره رامنځته سوه، یا دا چي دغه پېښه په خوب هم رامنځته سوه، نو ایا هغه اصل پېښه ده یا د هغه حقیقي پېښي پیل او تمهید وو چي په ویښه کي رامنځته سو، او د دې مقصد دا وو چي په بدني توګه د آسمانونو لېدلو څخه مخکي رسول الله ﷺ په روحاني او نفسیاتي توګه د لوړي نړۍ سره یو ډول مناسبت او تعلق پیدا سي، لکه چي د نبوت په پیل کي په رؤیا صادقه، وحي او د لوړي نړۍ سره د رسول الله ﷺ د مناسبت ذریعه جوړه سوې ده یا دا چي اسراء یعني د مسجد حرام څخه مسجد اقصی ته او بیا لوړي نړۍ ته تلل محض په روحاني توګه پېښ سوي دي، په هر حال دغه ټولو قولونو او د دې سره اړوند بحثونو ته په فکر کولو سره دا ښودل کافي دي چي په دې اړه کوم قول تحقیقي او زیات صحیح ګڼل کیږي هغه دا ویل دي چي د معراج پېښه یو وار رامنځته سوې ده او په ویښه کي د بدن او روح سره لومړی رسول الله ﷺ د مسجد حرام څخه تر مسجد اقصی پوري او بیا د مسجد اقصی څخه تر آسمانو پوري او بیا د آسمانو څخه هغه خاصو ځایو ته تر څو چي الله ﷻ غوښتل، رسول الله ﷺ بو تلل سو ،

د جمهورو فقهاؤ ، علما، محدثینو او متکلمینو دا مذهب دی او په دې اړه د رسول الله ﷺ حدیثونه او د صحابه کرامو اقوال ډېر منقول دي چي په هغو کي شک او شبهې ورتیا نسته او حقیقت دا دی که چیري د معراج د پېښي تعلق محض د خوب سره وای نو دغه پېښه به په غیر معمولي اندازه نه بیان کېدای او نه به د دې سره اړوند هغه ټول بحثونه کیدای کوم چي علماؤ او محققینو کړي دي، د دې څخه ماسوا د دغه مسئلې په راپورته کولو سره ځینو خلکو چي کومي فتنې کړي دي نه به هغه وای او نه به دا مسئله د اختلاف او انکار سبب جوړېدای .

### معراج د رسول الله ﷺ ځانګړی شرف دی :

په بدن او روح سره د معراج تر لاسه کېدل د رسول الله ﷺ ځانګړی شرف دی، دغه مرتبه بل نبي او رسول ته نه ده تر لاسه سوې، الله ﷻ په خاصه توګه د خپل آخري نبي ﷺ د عظمت او بزرګۍ څرګندولو لپاره دغه خارق العادت قدرت څرګند کړ، نو د معراج پېښي ته په دغه سیاق

او سباق سره کتل اړین دي ، دغه مسئله د عقل او قیاس په پیمانه سره تلل بې کټې هم دی او د هغه حقیقت ته د دماغي قابلیت په زور خپل ځان پوه کول اوبل پوهول د عقل د توان څخه وتلې خبره ده، دغه مسئله یوازي د یقین او عقیدې ده ، یوازي پر دې ایمان راوړل او حقیقت یې الله ﷻ ته سپارل عین سعادت دی، همدارنګه نبوت، وحي او معجزي هم د عقل او قیاس څخه لوړ شیان دي ، کوم څوک چې دغه شیان د قیاس تابع او خپل عقل او فهم باندي موقوف کوي او وایي چې دغه شیان ترڅو پوري په عقل کي رانسي نو زه یې نه منم او پر دې عقیده نه لرم ، نو باید پوه سي چې هغه د ایمان د خپلي برخي څخه محروم دی، مګر اولیاء الله او عارفین بېله شکه د معرفت یو خاص مقام ته د رسېدو وروسته دومره صلاحیت تر لاسه کولای سي چې پر دوئ باندي د شیانو حقیقت څلانده او واضح کیږي او کوم کسان چې د معرفت دغه مقام ته نه وي رسېدلي نو د هغوئ د ایمان تقاضا داده چې الله ﷻ او رسول ﷺ څه فرمایي یوازي هغه ومني او بېله بحث کولو پر هغه ایمان راوړي ، د سلامتیا او خلاصون لاره بېله دې بله نسته.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د رسول الله ﷺ د معراج سفر

﴿۵۶۱۲﴾: عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ مَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا

د حضرت قتاده رضي الله عنه څخه روایت دی چې ما ته انس بن مالک رضي الله عنه بیان وکړ او انس رضي الله عنه وایي هغه ته مالک بن صعصعه رضي الله عنه بیان وکړ چې

أَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَهُمْ عَنْ لَيْلَةِ أُسْرِيَ بِهِ بَيْنَمَا أَنَا فِي

نبي کریم ﷺ د معراج د شپې حال صحابه کرامو ته بیان کړ چې په هغه کي رسول الله ﷺ (آسمان ته ) بیول سوی وو، نو رسول الله ﷺ وفرمایل : زه په

الْحَطِيمِ وَرُبَّمَا قَالَ فِي الْحِجْرِ مُضْطَجِعًا إِذْ أَتَانِي آتٍ فَشَقَّ مَا بَيْنَ هَذِهِ إِلَى هَذِهِ

حطیم یا حجر (کعبه) کي پر بغل پروت وم چې یوه ملائکه ما ته راغلل او ددې ځای څخه تر دې ځایه پوري یې زما سینه څیري کړل،

يَعْنِي مِنْ ثُغْرَةِ نَحْرِهِ إِلَى شِعْرَتِهِ فَاسْتَخْرَجَ قَلْبِي ثُمَّ أُتِيتُ بِطَسْتٍ مِنْ ذَهَبٍ

مالک ﷺ وايي رسول الله ﷺ د سينې د اوږې ځخه تر نامه پورې اشاره کولو سره وفرمايل چې ددې ځايه ځخه تر دې ځايه پورې يې زما سينه څيرې کړل او بيا يې زما زړه راوکښی ، هغه يې د سرو زرو په يو تالۍ کې کښېښود چې

مَمْلُوءَةٍ إِيمَانًا فَغُسِلَ قَلْبِي ثُمَّ حُشِيَ ثُمَّ أُعِيدَ وفي رواية ثم غسل البطن بماء

د ايمان ځخه ډک وو او په هغه کې يې زما زړه پريولی ، بيا زما زړه د الله ﷻ د محبت ځخه ډک کړل سو او بيا زړه په سينه کې کښېښودل سو ، او په يوه روايت کې دا الفاظ دي چې زما نس د

زمزم ثم ملئ ايمانا و حكمة ثُمَّ أُتِيتُ بِدَابَّةٍ دُونَ الْبَغْلِ وَفَوْقَ الْحِمَارِ أَبْيَضَ

زمزم په اوبو سره پريولل سو بيا د ايمان او حکمت ځخه ډک کړل سو ، بيا د سپرلۍ يو حيوان راوستل سو چې د غاترې ځخه کوچنی او تر خره لوړ وو ، دا حيوان سپين وو

فَقَالَ لَهُ الْبُرَاقُ يَضَعُ خَطْوَهُ عِنْدَ أَقْصَى طَرْفِهِ فَحُمِلْتُ عَلَيْهِ فَانْطَلَقَ بِي جِبْرِيلُ

ددې نوم بُراق وو ، (يعني د بريښنا په ډول ځغستونکی) ، د هغه يو قدم د نظر تر حده پورې رسيدی بيا زه پر هغه سپور کړل سوم ، جبرائيل عليه السلام زه بوتلم ،

حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ الدُّنْيَا فَاسْتَفْتَحَ قبلَ مَنْ هَذَا قَالَ جِبْرِيلُ قِيلَ وَمَنْ مَعَكَ

تر دې چې زه د دنيا آسمان ته ورسيدم ، جبرائيل عليه السلام د دروازې خلاصولو طلب وکړ ، پوښتنه وسول څوک يې ؟ جبرائيل عليه السلام وويل : زه جبرائيل يم ، بيا پوښتنه وسول ستا سره څوک دی ؟

قَالَ مُحَمَّدٌ قِيلَ وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيلَ مَرْحَبًا بِهِ فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ

ورته يې وويل : محمد ﷺ دی ، بيا پوښتنه وسول ايا دی راغوښتل سوی دی ؟ هغه ورته وويل :هو ، ملائکو ورته وويل : محمد ﷺ ته دې ښه راغلاست وي ، دده راتلل دې مبارک وي

فَفَتَحَ فَلَمَّا خَلَصْتُ فَإِذَا فِيهَا آدَمُ فَقَالَ هَذَا أَبُوكَ آدَمُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ فَسَلَّمْتُ

، ددې ځخه وروسته د آسمان دروازه خلاصه سوه ، (رسول الله ﷺ فرمايي) کله چې زه په آسمان کې داخل سوم نو ما حضرت آدم عليه السلام وليدی ، جبرائيل عليه السلام راته وويل دا ستا پلار حضرت آدم عليه السلام دی ، ده ته سلام وکړه ، ما ورته سلام وکړ ،

عَلَيْهِ فَرَدَّ السَّلَامَ ثُمَّ قَالَ مَرْحَبًا بِالِابْنِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ بِي

آدم علیه السلام د سلام جواب راکړ او وه يې فرمايل : اې نيک بخته زويه او صالحه نبي! هر کله راسې ، ددې څخه وروسته زه حضرت جبرائيل علیه السلام پورته بوتلم ،

حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ الثَّانِيَةَ فَاسْتَفْتَحَ قِيلَ مَنْ هَذَا قَالَ جِبْرِيلُ قِيلَ وَمَنْ مَعَكَ

دويم آسمان ته راغلو او د هغه د خلاصولو غوښتنه يې وکړه، پوښتنه وسول څوک دى؟ جبرائيل علیه السلام وويل زه جبرائيل يم، بيا پوښتنه وسوه ستا سره څوک دى؟

قَالَ مُحَمَّدٌ قِيلَ وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيلَ مَرْحَبًا بِهِ فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ

جبرائيل علیه السلام ورته وويل : محمد ﷺ دى، پوښتنه وسول ايا دى راغوښتل سوى دى؟ جبرائيل علیه السلام وويل :هو، ملائکي وويل محمد ﷺ دې په خير راسي ، د راتلونکي راتلل دې مبارک وي،

فَفَتَحَ فَلَمَّا خَلَصْتُ إِذَا يَحْيَى وَعِيسَى وَهُمَا ابْنَا الْخَالَةِ قَالَ هَذَا يَحْيَى و هذا

وروسته (د دويم آسمان) دروازه خلاصه سوه او زه دويم آسمان ته ورسيدم نو وينم چې يحيى علیه السلام او عيسى علیه السلام ولاړ دي چې يو بل د خاله زامن وه ، جبرائيل علیه السلام وويل : دا يحيى علیه السلام او دا

عِيسَى فَسَلِّمْ عَلَيْهِمَا فَسَلَّمْتُ فَرَدَّا ثُمَّ قَالَا مَرْحَبًا بِالْأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ

عيسى علیه السلام دى دوئ ته سلام وکړه، ما سلام ادا کړ او دواړو د سلام جواب راکړ، او وه يې ويل : زموږ نيک بخته وروره او صالح نبي ! ستا راتلل دې مبارک وي،

الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ بِي إِلَى السَّمَاءِ الثَّالِثَةِ فَاسْتَفْتَحَ قِيلَ مَنْ هَذَا قَالَ جِبْرِيلُ

بيا زه جبرائيل علیه السلام پورته بوتلم يعني د دريم آسمان په لور، او د هغه دروازې رسيدو سره يې د هغه د خلاصولو طلب وکړ، پوښتنه وسول څوک يې ؟ جبرائيل علیه السلام وويل زه جبرائيل يم،

قِيلَ وَمَنْ مَعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيلَ وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيلَ مَرْحَبًا بِهِ

بيا پوښتنه وسول ستا سره څوک دى؟ جبرائيل علیه السلام ورته وويل : محمد ﷺ دى ، (د دريم آسمان) ملائکو وويل: ايا دى را غوښتل سوى دى ، وويل سوه هو، وه يې ويل : محمد ﷺ دي

فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ فَفُتِحَ فَلَمَّا خَلَصْتُ إِذَا يُوسُفُ قَالَ هَذَا يُوسُفُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ

په خير راسي او دده راتلل دي مبارک وي، ددې ويلو سره دروازه خلاصه سوه زه دريم آسمان ته ورسيدم وه مي ليدل چي يوسف علیہ السلام ولاړ دی، جبرائيل علیہ السلام وويل: دا يوسف علیہ السلام دی ده ته سلام وکړه،

فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ ثُمَّ قَالَ مَرْحَبًا بِالْأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ بِي

ما ورته سلام ادا کړ او حضرت يوسف علیہ السلام د سلام جواب راکړ، او وه يې فرمايل اې نيک بخته وروره او صالحه نبي! په خير راغلې، بيا جبرائيل علیہ السلام زه پورته بوتلم

حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ الرَّابِعَةَ فَاسْتَفْتَحَ قِيلَ مَنْ هَذَا قَالَ جِبْرِيلُ قِيلَ وَمَنْ مَعَكَ

د څلورم آسمان دروازې ته په رسيدو سره يې د هغه د خلاصولو طلب وکړ، پوښتنه وسوه څوک دی؟ جبرائيل علیہ السلام ورته وويل زه جبرائيل يم، بيا پوښتنه وسول ستا سره څوک دی؟

قَالَ مُحَمَّدٌ قِيلَ أَوَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيلَ مَرْحَبًا بِهِ فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ

جبرائيل علیہ السلام وويل: محمد ﷺ دی، پوښتنه وسول ايا دی راغوښتل سوی دی؟ جبرائيل علیہ السلام وويل: هو، (د څلورم آسمان) ملائکو وويل د محمد ﷺ راتلل دي مبارک وي غوره راتلونکی دی،

فَفُتِحَ فَلَمَّا خَلَصْتُ فاذا إِدْرِيس فقَالَ هَذَا إِدْرِيسُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ

بيا دروازه خلاصه سوه، او زه څلورم آسمان ته داخل سوم وينم چي ادريس علیہ السلام هلته ولاړ دی، جبرائيل علیہ السلام وويل دا ادريس علیہ السلام دی ده ته سلام ادا کړه، ما سلام ورته ادا کړه

فَرَدَّ ثُمَّ قَالَ مَرْحَبًا بِالْأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ بِي حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ

او هغه د سلام جواب راکړ، او وه يې فرمايل: اې خوش نصيبه وروره! او صالحه نبي! په خير راغلې، بيا جبرائيل علیہ السلام زه بوتلم

الْخَامِسَةَ فَاسْتَفْتَحَ قِيلَ مَنْ هَذَا قَالَ جِبْرِيلُ قِيلَ وَمَنْ مَعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ

د پنځم آسمان په لور، دروازې ته چي ورسيدو د دروازې د خلاصولو لپاره طلب وکړ، پوښتنه وسول: څوک دی؟ جبرائيل علیہ السلام ورته وويل: زه جبرائيل يم، بيا پوښتنه وسول ستا سره څوک دی؟ جبرائيل علیہ السلام ورته وويل: محمد ﷺ دی،

قِيلَ وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيلَ مَرْحَبًا بِهِ فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ فَلَمَّا خَلَصْتُ

پوښتنه وسول ايا دى راغوښتل سوى دى؟ جبرائيل عليه السلام ورته وويل: هو، ملائكو وويل محمد ﷺ دي هر كله راسي غوره راتلونكى دى ددې څخه وروسته دروازه خلاصه كړل سوه او موږ پنځم آسمان ته ورسيدو

فَإِذَا هَارُونُ قَالَ هَذَا هَارُونُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ ثُمَّ قَالَ مَرْحَبًا

هلته هارون عليه السلام ولاړ وو، جبرائيل عليه السلام وويل دا هارون عليه السلام دى ده ته سلام وكړه، ما سلام ادا كړ او هغه د سلام جواب راكړ او وه يې فرمايل:

بِالْأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ بِي حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ السَّادِسَةَ فَاسْتَفْتَحَ

اې خوش نصيبه وروره او صالح نبي! ستا راتلل دې مبارك وي، بيا جبرائيل عليه السلام زه د شپږم آسمان په لور بوتلم، هلته په رسيدو سره د دروازې خلاصولو غوښتنه يې وكړه،

قِيلَ مَنْ هَذَا قَالَ جِبْرِيلُ قِيلَ مَنْ مَعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيلَ وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ

پوښتنه وسول څوك دى؟ جبرائيل عليه السلام ورته وويل زه جبرائيل يم، بيا پوښتنه وسول ستا سره څوك دى؟ جبرائيل عليه السلام ورته وويل: محمد ﷺ دى، پوښتنه وسول ايا دى راغوښتل سوى دى؟ جبرائيل عليه السلام ورته وويل:

نَعَمْ قَالَ مَرْحَبًا بِهِ فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ فَلَمَّا خَلَصْتُ فَإِذَا مُوسَى قَالَ هَذَا مُوسَى

هو، ملائكو وويل ده ده راتلل دې مبارك وي څه ښه راتلونكيدى، ددې څخه وروسته دروازه خلاصه سوه او شپږم آسمان ته ورسيدو هلته وينم چې موسى عليه السلام ولاړ دى، جبرائيل عليه السلام وويل دا موسى عليه السلام دى

فَسَلِّمْ عَلَيْهِ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ ثُمَّ قَالَ مَرْحَبًا بِالْأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ

ده ته سلام وكړه، ما ورته سلام وكړ او هغه د سلام جواب راكولو سره وفرمايل خوش نصيبه ورور او صالح نبي دې په خير راسې،

فَلَمَّا جَاوَزْتُ بَكَى قِيلَ لَهُ مَا يُبْكِيكَ قَالَ أَبْكِي لِأَنَّ غُلَامًا بُعِثَ بَعْدِي يَدْخُلُ

زه د هغه څخه مخ ته تير سوم نو موسى عليه السلام په ژړا سو، پوښتنه څيني وسول: ولي ژاړې؟ موسى عليه السلام وويل: يو زلمى هلك زما څخه وروسته راوليږل سو

الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِهِ أَكْثَرُ مِمَّنْ يَدْخُلُهَا مِنْ أُمَّتِي ثُمَّ صَعِدَ بِي إِلَى السَّمَاءِ السَّابِعَةِ

او د هغه د امت خلک به زما د امت د خلکو څخه زيات په جنت کي داخل سي، بيا جبرائيل عليه السلام زه د اووم آسمان په لور بوتلم،

فَاسْتَفْتَحَ جِبْرِيلُ قِيلَ مَنْ هَذَا قَالَ جِبْرِيلُ قِيلَ وَمَنْ مَعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيلَ

هلته د دروازې خلاصولو طلب وکړ، پوښتنه وسول: څوک دی؟ جبرائيل عليه السلام وويل: زه جبرائيل يم، پوښتنه وسول ستا سره څوک دی؟ جبرائيل عليه السلام ورته وويل محمد ﷺ دی، بيا

وَقَدْ بُعِثَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قَالَ مَرْحَبًا بِهِ فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ فَلَمَّا خَلَصْتُ فَإِذَا

پوښتنه وسول ايا دی رابلل سوی دی؟ جبرائيل عليه السلام ورته وويل هو، (د اووم آسمان ملائکو) وويل: محمد ﷺ ته دي هرکلی وي، ښه راتلونکی راغلی، ددې څخه وروسته دروازه خلاصه

إِبْرَاهِيمُ قَالَ هَذَا أَبُوكَ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ قَالَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ السَّلَامَ ثُمَّ قَالَ

سوه، نو ما وليدل چي ابراهيم عليه السلام ولاړ دی، جبرائيل عليه السلام راته وويل دا ستا پلار ابراهيم عليه السلام ولاړ دی، سلام ورته وکړه ما هغه ته سلام وکړ او هغه د سلام جواب راکړ او وه يې فرمايل:

مَرْحَبًا بِالِابْنِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ ثُمَّ رُفِعَتْ إِلَيَّ سِدْرَةُ الْمُنْتَهَى فَإِذَا نَبْقُهَا

اې نيک بخته زويه او صالح نبي ستا راتلل دي مبارک وي، بيا زه سدرة المنتهى ته بوتلل سوم، ما وليدل چي د سدرة المنتهى ميوې

مِثْلُ قِلَالِ هَجَرَ وَإِذَا وَرَقُهَا مِثْلُ آذَانِ الْفِيَلَةِ قَالَ هَذِهِ سِدْرَةُ الْمُنْتَهَى وَإِذَا

د مقام هجر د منګيانو په اندازه دي، او ددې بلګونه د فيلانو د غوږونو برابر دي، جبرائيل عليه السلام راته وويل دا سدرة المنتهى ده، ما وليدل چي هلته

أَرْبَعَةُ أَنْهَارٍ نَهْرَانِ بَاطِنَانِ وَنَهْرَانِ ظَاهِرَانِ فَقُلْتُ مَا هَذَانِ يَا جِبْرِيلُ قَالَ أَمَّا

يو څو ويالې دي، دوې ويالې پټې او دوې ويالې ښکاره دي، ما د جبرائيل عليه السلام څخه پوښتنه وکړه دا دوه ډوله ويالې څنګه دي؟ جبرائيل عليه السلام وويل:

الْبَاطِنَانِ فَنَهْرَانِ فِي الْجَنَّةِ وَأَمَّا الظَّاهِرَانِ فَالنِّيلُ وَالْفُرَاتُ ثُمَّ رُفِعَ لِي الْبَيْتُ

دا دوې ويالې چي پټې دي د جنت ويالې دي (يعني کوثر او سلسبيل) او دا ښکاره چي دي نيل

او فرات دي، ددې ځخه وروسته ما ته بيت المعمور وښودل سو (بيت المعمور د كعبې شريفي سربيره په اووم آسمان كي د يو مسجد نوم دی)،

الْمَعْمُورُ ثُمَّ أُتِيتُ بِإِنَاءٍ مِنْ خَمْرٍ وَإِنَاءٍ مِنْ لَبَنٍ وَإِنَاءٍ مِنْ عَسَلٍ فَأَخَذْتُ اللَّبَنَ

بيا ما ته يو لوښی د شرابو او يو لوښی د شيدو او يو د شاتو راوړل سول، په هغو كي ما د شيدو لوښی واخيست،

قَالَ هِيَ الْفِطْرَةُ أَنْتَ عَلَيْهَا وَأُمَّتُكَ ثُمَّ فُرِضَتْ عَلَيَّ الصَّلَوَاتُ خَمْسِينَ صَلَاةً كُلَّ

جبرائيل عليه السلام وويل شيدې فطرت دي يعني هغه فطرت چي پر هغه به ته او ستا امت قائم دی، (ددې ځخه مراد اسلام دی) ددې ځخه وروسته پر ما لمونځ فرض سو، يعني په شپه او ورځ كي پنځوس لمنځونه راباندي فرض سول،

يَوْمٍ فَرَجَعْتُ فَمَرَرْتُ عَلَى مُوسَى فَقَالَ بِمَا أُمِرْتَ قلت أُمِرْتُ بِخَمْسِينَ صَلَاةً كُلَّ

بيا زه را روان سوم، د موسی عليه السلام سره تېر سوم، موسی عليه السلام را ځخه پوښتنه وكړه تا ته ځه حكم دركړل سو، ما وويل په شپه او ورځ كي د پنځوسو لمنځونو حكم راكړل سو،

يَوْمٍ قَالَ إِنَّ أُمَّتَكَ لَا تَسْتَطِيعُ خَمْسِينَ صَلَاةً كُلَّ يَوْمٍ وَإِنِّي وَاللَّهِ قَدْ جَرَّبْتُ

موسی عليه السلام راته وويل ستا امت په شپه او ورځ كي د پنځوسو لمنځونو ادا كولو قوت نه لري، قسم په خدای ما ستا ځخه مخكي خلك (بني اسرائيل) ازمويلي دي

النَّاسَ قَبْلَكَ وَعَالَجْتُ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَشَدَّ الْمُعَالَجَةِ فَارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ

هغوئ اصلاح قبوله نه كړلای سول، ته خپل پروردګار ته بيرته ولاړ سه او د خپل امت لپاره په

التَّخْفِيفَ لِأُمَّتِكَ فَرَجَعْتُ فَوَضَعَ عَنِّي عَشْرًا فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى فَقَالَ مِثْلَهُ

لمنځو كي كمي وغواړه، زه د الله جل جلاله په دربار كي حاضر سوم نو لس لمنځونه كم كړل سول، زه بيا موسی عليه السلام ته راغلم هغه راته بيا هم هغسي وويل،

فَرَجَعْتُ فَوَضَعَ عَنِّي عَشْرًا فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى فَقَالَ مِثْلَهُ فَرَجَعْتُ فَوَضَعَ عَنِّي

زه بيا د الله جل جلاله په دربار كي حاضر سوم نو لس لمنځونه نور كم كړل سول، بيا موسی عليه السلام ته

راغلم هغه بیا راته هم هغسي وویل زه بیا (په دریم ځل) په دربار الهي کي حاضر سوم او لس

عَشْرًا فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى فَقَالَ مِثْلَهُ فَرَجَعْتُ فَأُمِرْتُ بِعَشْرِ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ

لمنځونه نور کم کړل سول، زه بیا موسی علیه السلام ته ورغلم نو هغه را ته بیا هم هغسي وویل، زه بیا (په څلورم وار) د رب العزت په دربار کي حاضر سوم نو لس منځونه نور کم کړل سول

فَرَجَعْتُ فَقَالَ مِثْلَهُ فَرَجَعْتُ فَأُمِرْتُ بِخَمْسِ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ فَرَجَعْتُ إِلَى

زه بیا موسی علیه السلام ته ورغلم نو هغه بیا هم هغسي راته وویل، زه بیا ولاړم او د رب العزت په دربار کي حاضر سوم نو په شپه او ورځ کي د پنځو لمنځو حکم وسو، زه موسی علیه السلام ته راغلم

مُوسَى فَقَالَ بِمَ أُمِرْتَ قُلْتُ أُمِرْتُ بِخَمْسِ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ قَالَ إِنَّ أُمَّتَكَ لَا

هغه راته بیا هم هغسي وویل، ما ورته وویل اوس ما ته په شپه او ورځ کي د پنځو لمنځونو حکم سوی دی، موسی علیه السلام راته وویل ستا امت به

تَسْتَطِيعُ خَمْسَ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ وَإِنِّي قَدْ جَرَّبْتُ النَّاسَ قَبْلَكَ وَعَالَجْتُ بَنِي

په شپه او ورځ کي پنځه لمنځونه هم ادا نه کړای سي، ما ته پر مخکنیو خلکو تجربه تر لاسه ده،

إِسْرَائِيلَ أَشَدَّ الْمُعَالَجَةِ فَارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ التَّخْفِيفَ لِأُمَّتِكَ قَالَ سَأَلْتُ

او بني اسرائیل مي پوره ازمویلي دي، ته خپل پروردګار ته ورسه او نوره کمي وغواړه، ما ورته وویل ما په څو څو واره

رَبِّي حَتَّى اسْتَحْيَيْتُ وَلَكِنِّي أَرْضَى وَأُسَلِّمُ قَالَ فَلَمَّا جَاوَزْتُ نَادَى مُنَادٍ أَمْضَيْتُ فَرِيضَتِي وَخَفَّفْتُ عَنْ عِبَادِي. متفق علیه.

خپل پروردګار ته د کمۍ سوال کړی دی اوس ما ته حیا راځي، زه په دغه (پنځو لمنځو) راضي یم، هر کله چي راتیر سوم نو یو آواز کونکي اواز وکړ چي ما خپل فرض جاري کړل او پر خپلو بندګانو باندي مي اسانتیا وکړه، (یعني په پنځوسو لمنځو کي مي کمي وکړه مګر هغوئ ته به ثواب د پنځوسو لمنځو رسیږي). بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۶\۳۰۲، رقم: ۳۲۰۷، ومسلم ۱\۱۵۱، رقم: ۲۶۵-۱۶۴.

**د لغاتو حل**: شعرته: اي عانته. نبقها: اي ثمرها (مېوه يې). قلال: قلة العرب كالجرة الكبيرة.

**تشريح**: حطيم، د كعبې شريفې د شمالي دېوال څخه د يو نيم گز په فاصله د يو سپوږمېږ دېوال نوم دی، د دغه دېوال دننه برخې ته حطيم ويل کيږي، او حجر د حاء په زېر سره هم دغه حطيم ته ويل کيږي، دغه ځای (يعني حطيم يا حِجر) په اصل کې د کعبې شريفې برخه ده، د معراج په شپه کله چې حضرت جبرائيل عليه السلام د رسول الله ﷺ د بېولو لپاره راغلی نو رسول الله ﷺ په دغه ځای کې آرام کوی.

د دغه ځای څخه تر هغه ځای پورې برخه يې څيرې کړل: د شق صدر (سينې څېرلو) دغه پېښه د هغه پېښې څخه جلا ده چې په وړکتوب کې رامنځته سوې وه ، هغه وخت (په وړکتوب کې) د رسول الله ﷺ د سينې مبارکې څېرلو مقصد د رسول الله ﷺ څخه د هغه مادې ايستل وو چې د هغه په ذريعه د انسانانو د گمراه کولو شيطان ته موقع په لاس ورځي يا د هغه په سبب خپله د انسان نفس په گمراهۍ او بدۍ کې اخته کيږي، او په دغه وخت کې (يعني د معراج په شپه) د شق صدر (سينې څېرلو) مقصد د رسول الله ﷺ زړه مبارک د علم او معرفت د کمال څخه ډکول وو.

د سرو زرو تالۍ راوړل سول چې د ايمان څخه ډکه سوې وه، دا د کنايې او بېلگې په توگه ويل سوي دي يا دا چې ايمان ته د ظاهري جسم په ورکولو سره چې په حقيقت کې هغه تالۍ ډکه سول چې هغه په ميزان کې وتلل سي .

د هغه نوم براق وو، د رسول الله ﷺ د سپرلۍ لپاره د هغه خاص حيوان نوم براق په دې مناسبت سره کېښېښودل سو چې هغه د برق (برېښنا) په ډول تېز او رڼا په ډول ځلانده وو، د هغه د تيزوالي په اړه يې دا وفرمايل چې د هغه يو قدم به پر مدنظر باندې لويدی نو د دې څخه ځينو حضراتو دا استدلال کړی دی چې هغه براق به په يوه قدم آسمان ته رسېدلي وي ځکه چې د مځکې څخه د هغه مدنظر آسمان وو، په دې اعتبار تر اووم آسمان پورې هغه په اوو قدمو رسېدلی دي، د دغه براق په اړه ځينو حضراتو ويلي دي چې هغه براق د ټولو انبياؤ د سپرلۍ لپاره ټاکل سوی وو او ځيني حضرات وايي چې د هر نبي لپاره د هغه د حيثيت او مرتبې سره سم جلا جلا براق جوړ سوی وو، د حديث د دغه جملې څخه هم ثرگند يږي چې دغه براق د رسول الله ﷺ د سپرلۍ لپاره خاص او متعين وو .

زه پر هغه باندې سپور کړل سوم: په دغه جمله کې دې ته اشاره ده چې پر هغه براق باندې د رسول الله ﷺ سپرېدل محض د الله جل جلاله په مرسته او قدرت سره ممکن سو او دا هم ويل کيږي چې حضرت جبرائيل عليه السلام د خپل قوت ملکيت په ذريعه رسول الله ﷺ پر هغه براق سپور کړ، او

دا خبره د امکان څخه ليري ځکه نه سي کيداى چي پر رسول الله ﷺ باندي د وحي نازلېدو او رسول الله ﷺ ته د فيص الهي رسېدو اصل ذريعه حضرت جبرائيل علیه السلام وو، او د معراج په سفر کي هم دهغه حيثيت د هغه د سفر ملگری او خادم وو چي د هغه مقصد هر ډول راحت او مرسته کول وي، په يوه روايت کي راغلي چي حضرت جبرائيل علیه السلام د رسول الله ﷺ رکاب (پېزوان) نيولی وو او ميکائيل علیه السلام د براق واگي نيولي وې.

تر دې چي زه د دنيا آسمان ته ورسېدم: دلته په ښکاره دا معلومېږي چي رسول الله ﷺ د براق د سپرلۍ په ذريعه په آسمان کي داخل سو او کوم حضرات چي وايي چي د معراج پېښه ددغه شپې څخه ماسوا د يوې بلي شپې پېښه وه چي په هغه کي يوازي اسراء يعني تر بيت المقدس پوري سفر رامنځه سوی وو، او هغه ته ليلة الاسراء ويل کيږي، هغوئ ددغه حديث څخه استدلال کوي ، د هغوئ وينا ده چي په دغه روايت کي تر بيت المقدس پوري د سفر هيڅ يادونه نسته بلکه د مسجد حرام څخه پر براق باندي په سپرېدو سره د روانېدو يادونه ده، ددې څخه معلومه سول چي اسراء يعني تر بيت المقدس پوري سفر په دوهمه شپه کي رامنځته سوی وو ، د معراج په وخت کي کله چي رسول الله ﷺ آسمان ته تشريف يوړ نو پر براق باندي سپور وو يا د زينې په ذريعه وختی، په دې اړه هم د علماؤ اختلاف دی ، ددغه روايت څخه دا معلومېږي چي پر براق باندي په سپرېدو سره آسمان ته ولاړی حال دا چي د بل روايت څخه دا ثابتيږي چي تر آسمان پوري د رسول الله ﷺ ختل د زينې په ذريعه وسول ، ملا علي قاري رحمۃ اللہ علیہ د روايتو ددغه اختلاف ختمولو لپاره ليکلي دي چي دلته په دغه روايت کي راوي د اختصار څخه کار اخيستی دی او ددغه پېښي د تفصيلي يادوني کولو پر ځای يې پر اجمالي يادوني اکتفاء کړې ده، د روايت په تفصيل کي دا بيان سوي دي چي رسول الله ﷺ پر براق باندي په سپرېدو سره بيت المقدس ته ورسېدی او هلته يې براق د کړۍ سره وتړی چي په هغه سره انبياء عليهم السلام خپل براقونه تړل، د بيت المقدس د بوختياوو (لکه انبياء عليهم السلام ته لمونځ ورکول، د هغوئ سره لېدنه او نورو) څخه د فارغه کېدو وروسته رسول الله ﷺ آسمان ته وختی او دا عين ممکن ده چي د زينې په ذريعه رسول الله ﷺ آسمان ته تللی وي ، راوي ددغه درمياني تفصيل په حذف کولو سره يوازي آسمان ته د رسېدو يادونه وکړل او دا هم ممکن ده چي رسول الله ﷺ پر براق باندي په سپرېدو سره د زينې په ذريعه آسمان ته تللی وي لکه څرنگه چي د ځينو علماؤ قول دی، ددغه وضاحت په رڼا کي ټول روايتونه متفق کيږي .

پو ښتنه وسول چي څوک دی؟ حضرت جبرائيل علیه السلام وويل: زه جبرائيل يم ، ددې څخه

معلومه سول چي په آسمان كي حقيقتا دروازې دي او پر هغه دروازو باندي څارونكي ټاكل سوي دي، او ويل كيږي چي هغه دروازې د بيت المقدس په شاوخوا كي دي، د حديث ددغه جملې څخه دا هم ثابته سول كه د چا كور ته په ورتلو سره دروازه وټكول سي يا آواز وكړي او د كور څخه دننه پوښتنه وسي چي څوك دی نو دهغه په جواب كي دي يوازي دا نه وايي چي زه يم لكه څرنګه چي د عامو خلكو عادت دی او ددې څخه منع هم منقول ده، بلكه د خپل نامه په اخيستلو سره دي جواب وركړل سي د مثال په توګه داسي دي ووايي چي زه زيد يم،

دوئ ته سلام وكړ، په دې اړه علماؤ ليكلي دي چي د حضرت جبرائيل عليه السلام له خوا رسول الله ﷺ ته په سلام كي د سبقت حكم د تواضع او شفقت د اظهار لپاره وو ځكه چي په دغه وخت كي رسول الله ﷺ ته هغه لوړه مرتبه او مقام حاصل سوی وو چي د هغه څخه د لوړي مرتبې او مقام تصور هم د بل چا لپاره نسي كيدای نو پر رسول الله ﷺ باندي لازم وه چي د تواضع، خاكسارۍ او شفقت اظهار وكړي او په سلام كي سبقت (مخته والی) ددې غوره ذريعه ده، او ځينو حضراتو دا هم ليكلي دي چي هغه وخت رسول الله ﷺ پر هغه انبياء عليهم السلام باندي تېرېدی او په دې اعتبار رسول الله ﷺ د هغه چا په حكم كي وو چي ولاړ وي او انبياء عليهم السلام پر خپل خپل ځای د مخكي څخه موجود وه او په دې اعتبار هغوئ د هغه چا په حكم كي وه چي ناست وي او اصل دادی كه يو سړی ولاړ وي او بل سړی ناست وي نو ولاړ سړی دي مخكي سلام ادا كوي كه څه هم هغه د ناست سړي څخه افضل وي نو انبياء عليهم السلام ته د رسول الله ﷺ مخكي سلام ادا كول دا سوال نه پيدا كوي چي رسول الله ﷺ تر ټولو نبيايو عليهم السلام څخه افضل دی ځكه په سلام كي رسول الله ﷺ ته د مخته والي حكم ولي وركړل سو.

زه خوشبخته زوی او پيغمبر صالح ته ښه راغلاست وايم، نه يوازي حضرت آدم عليه السلام بلكه په حديث كي ذكر سوو ټولو نبيانو د رسول الله ﷺ په ښه راغلاست او تعريف كي د خوشبختۍ يادونه وكړل، ددې څخه معلومه سوه چي خوشبختي هغه عظيمه مرتبه او لوړ مقام دی چي د ټولو انساني او اخلاقي ښېګڼو او خيرونو ټولګه ده، ځكه ويل سوي دي چي صالح يعني نيک هغه سړی دی چي د الله جل جلاله او د هغه د بندګانو ټولو لازمي حقوقو ادا كولو باندي قائم وي او الله جل جلاله هم په قرآن كريم كي د نبيانو اصل وصف صلاح بيان كړی دی لكه چي فرمايي : (وكل من الصالحين، او و كلا جعلنا صالحين).

ددغه امت خلک زما د امت د خلكو څخه زيات په جنت كي داخليږي، په دې اړه علماؤ ليكلي دي چي حضرت موسى عليه السلام د خپلي ژړا سبب بيان كړ نو ددې مطلب دا نه دی چي د رسول

الله ﷺ د امت د فضيلت په وجه د حضرت موسی علیه السلام په زړه کي حسد وو، ځکه چي حسد هغه خرابه جذبه ده چي د هغه څخه عامو مؤمنانو ته هم د ځان ساتني تلقين سوی دی او په هغه دنيا (آخرت) کي خوبه د معمولي درجې مؤمن د زړه څخه هم دغه جذبه وايستل سي، نو بيا دا څرنګه ممکن ده چي د حضرت موسی علیه السلام په ډول عظيمٔ ذات دي په دغه جذبه کي اخته سي چي الله جل جلاله خپل غوره بنده ګرځولی دی، د نبوت پر منصب او رسالت يې فائز کړ او د تکلم په شرف يې ونازوی، نو ويل کيږي چي په دغه وخت کي د حضرت موسی علیه السلام ژړا به ددغه افسوس او حسرت په وجه وي چي د هغه د امت خلکو د الله جل جلاله د احکامو او تعليماتو په مخالفت کولو سره سرکښي او نافرماني وکړل او ملي حيثيت ته يې سخت تاوان ورسوی، دهغه نتيجه دا سول چي خپله د حضرت موسی علیه السلام هغه اجر او انعام هم ولاړی چي په هغه سره د هغه د مرتبو او درجو د پرمختګ لار خلاصه وه، همدارنګه د هغه د امت خلکو يوازي خپل تاوان ونه کړ بلکه د خپل پيغمبر د اجر او ثواب د تاوان سبب هم سول ځکه هر پيغمبر ته د هغه چا ثواب ورکول کيږي چي د هغه پيروي کوي، کومو خلکو ته چي خپل ثواب نه تر لاسه کيږي نو هغوئ د خپل پيغمبر په اجر او ثواب کي د پرمختګ سبب څرنګه ګرځېدای سي چي دا يو ډول دهغه پيغمبر لپاره تاوان دی، ددې خبري زيات وضاحت دادی که چيري د حضرت موسی علیه السلام د امت خلکو د هغه د خبري په منلو سره د سرکښۍ او نافرمانۍ څخه ځان ساتلی وای او د الله جل جلاله د طاعت او فرمانبردارۍ پر لاره تللي واي نو حضرت موسی علیه السلام ته به هم هغه ثواب تر لاسه کېدی چي د هغه حقدار د هغه د امت خلک دي ځکه چي څومره ثواب هغه سړي ته تر لاسه کيږي چي نيک عمل کوي هغومره ثواب د هغه نيک عمل لارښوونکي ته هم ورکول کيږي نو د موسی علیه السلام د قوم په سرکښۍ او نافرمانۍ سره حضرت موسی علیه السلام ته تر لاسه کېدونکي اجر او ثواب ولاړ، ددې پر خلاف کله چي هغه د رسول الله ﷺ فضيلت او دهغه لوړه مرتبه او درجې ولېدلې نو د رسول الله ﷺ د امت د پيروۍ او فرمانبردارۍ په وجه چي رسول الله ﷺ ته کوم ثواب تر لاسه کېدونکي وو هغه د خپل اجر او ثواب پر محرومۍ باندي د افسوس په وجه وژړل.

ځينو علماؤ دا ليکلي دي چي د حضرت موسی علیه السلام ژړا په اصل کي د خپل قوم پر حال باندي د افسوس او شفقت اظهار وو، کله چي هغه وليدل چي يو ځوان ته زما د امت خلک دي چي الله جل جلاله اوږده عمرونه ورکړي وه، په قوت سره يې نازولي دي مګر هغوئ زما د اتباع څخه هغه ګټه ترلاسه نه کړل کوم چي د حضرت محمد ﷺ امت د لږ عمر او کمزورۍ سربېره د خپل پيغمبر په اتباع کي تر لاسه کړل او نه زما د امت خلک زيات سول کوم چي د حضرت محمد ﷺ

د خلکو په برخه کیږي نو د دغه شفقت په وجه چي د خپل امت په اړه د یو پیغمبر په زړه کي وي، حضرت موسی علیه السلام په ژړا سو، د هغه خیال وو چي دا یو داسي مبارک وخت دی چي په هغه کي د الله جل جلاله د رحم او کرم دریاب په جوش کي وي، کیدای سي الله جل جلاله د دغه وخت په برکت زما پر امت هم رحم وکړي او د هغوئ سره سخته معامله ونه کړي کوم چي هغوئ یې مستحق سوي دي.

او ځینو علماؤ لیکلي دي چي هغه وخت د حضرت موسی علیه السلام د ژړا مقصد زموږ د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د زړه خوشحاله کول وو، یعني هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په وړاندي دا اقرار وکړ چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د پیروانو شمېر به ډېر زیات وي او په جنت کي چي څومره نور امتونه داخلیږي تر هغوئ ټولو به د رسول الله صلی الله علیه وسلم امتیان په زیات شمېر جنت ته داخلیږي، څرګنده دي وي چي په دغه وخت کي حضرت موسی علیه السلام دا وویل: یو زلمی چي زما وروسته په رسول ګرځولو سره دنیا ته راواستول سو...الخ: نو د دې څخه د رسول الله سپکاوی یا توهین مقصد نه دی بلکه دغه جمله د الله جل جلاله پر قدرت او کرم باندي د اظهار تعجب په توګه وه، دغه جمله داسي ده لکه چي هغه وویل: د پروردګار د قدرت لوئي به څه بیان کړو هغه خو یو زلمي ته په کم عمرۍ کي هغه مرتبه او فضل ورکړ چي مخکنیو نبیانو ته یې په لوی عمر کي نه دي ورکړي، او دا هم کیدای سي چي هغه د غلام لفظ د رسول الله صلی الله علیه وسلم د عمر په اعتبار استعمال کړی وي ځکه چي هغه وخت د انبیاء کرامو د عمرونو په نسبت چي هغوئ په دنیا کي تېر کړی دی او بیا څومره ډېر وخت هغوئ په عالم برزخ کي تېر کړ، د رسول الله صلی الله علیه وسلم عمر یقینا ډېر کم وو او د هغوئ په وړاندي رسول الله صلی الله علیه وسلم بالکل زلمی وو، دلته سوال پیدا کیږي چي په آسمانو کي د کومو نبیانو سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم لېدنه وسول هغوئ د بدن او روح سره هلته موجود وه او که د هغوئ موجودتیا محض روحاني وه؟

که چیري هغوئ د جسم په لحاظ هلته موجود وي نو بیا دا سوال پیدا کیږي چي د هغوئ بدنونه خو په قبرو کي وه، په آسمانو کي د هغوئ موجودتیا څرنګه وه؟ په دې اړه علماؤ چي څه لیکلي دي د هغه خلاصه داده چي د هغه انبیاؤ اجسام اهلیه خو په قبرو کي وه او الله جل جلاله د هغوئ ارواح په اجسام مثالیه متمثل کولو سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لېدني لپاره جمع کړل مګر رسول الله صلی الله علیه وسلم، حضرت عیسی علیه السلام په آسمان کي په اصلي جسم سره ولیدی ځکه چي هغه د جسم سره ژوندی آسمان ته خېژول سوی دی، همدارنګه حضرت ادریس علیه السلام یې هم په اصلي جسم ولېدی هغه هم آسمان ته ژوندی پورته کړل سوی دی، یا دا چي الله جل جلاله د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اکرام لپاره هغه نبیان مع اجسام عنصر په مسجد اقصی او آسمانو کي جمع کړل، همدارنګه رسول

الله ﷺ ټول نبیان د هغوئ د اصلي جسدونو سره ولېدل او د الله ﷻ د قدرت په وړاندي هيڅ ناممکن نه دي چي د يوې شپې دپاره دهغه نبيانو اجسام عنصريه د هغوئ د قبرو څخه بيت المقدس او بيا پر آسمانو باندي جمع کړي او بيا بېرته هغوئ خپلو قبرو ته واستوي.

يو بل سوال پيدا کيږي چي په آسمانو کي هغه څو نبيان د رسول الله ﷺ د ليدني لپاره ولي خاص کړل سول او په دې کي څه حکمت وو؟ په دې اړه علماؤ ليکلي دي چي ددغه څو نبيانو سره د رسول الله ﷺ د ليدني او په هغوئ کي د هر نبي د تفاوت او درجو په ترتيب سره د يوه يوه آسمان سره د خاصولو هغه خاص حالاتو ته اشاره مقصد وه چي رسول الله ﷺ ته وخت پر وخت وروسته رامنځته سول، په لومړي آسمان کي د حضرت آدم ؑ سره د ليدني خاصيت دا وو چي حضرت آدم ؑ تر ټولو لومړنی نبي دی او د هر انسان پلار دی ځکه تر ټولو مخکي د هغه سره ملاقات وکړل سو، په دغه ملاقات کي هجرت ته اشاره وه لکه څرنګه چي حضرت آدم ؑ د خپل دښمن (ابليس) په وجه د آسمان او جنت څخه مځکي ته هجرت وکړ همدارنګه رسول الله ﷺ به هم د خپلو دښمانو په وجه دمکې څخه مدينې ته هجرت وکړي، او د حضرت آدم ؒ په ډول به پر رسول الله ﷺ هم د خپل هيواد بېلوالی سخت وي.

پر دوهم آسمان باندي د حضرت عيسی ؒ سره د ليدني ځانګړتيا دا وه چي په ټولو نبيانو کي د کوم نبي سره چي رسول الله ﷺ ته تر ټولو زيات نژدې زمانه حاصله وي هغه حضرت عيسی ؑ دی او حضرت عيسی ؑ به په آخره زمانه کي د دجال د وژني لپاره د آسمان څخه راکښته کيږي او په امت محمديه کي د يو مجدد په حيثيت سره به شريعت محمدي جاري کوي او د قيامت په ورځ به د ټولو خلکو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضريږي او رسول الله ﷺ ته به د شفاعت درخواست کوي، ددغه وجهو څخه د حضرت عيسی ؑ سره ملاقات وکړل سو ، او د حضرت عيسی ؑ سره د حضرت يحيی معيت (موجود کېدل) محض د هغه د نسبي قرابت په وجه وو.

په دريم آسمان کي د حضرت يوسف ؑ سره د ليدني ځانګړتيا دا وه چي د حضرت عيسی ؑ څخه وروسته رسول الله ﷺ ته د حضرت يوسف ؑ سره په دې وجه تر ټولو زيات خاص قرب حاصل دی چي کله د رسول الله ﷺ امت په جنت کي داخليږي نو د حضرت يوسف ؑ په شکل او صورت به وي او په دغه ليدنه کي دې ته اشاره ده چي د حضرت يوسف ؑ په ډول رسول الله ﷺ ته به هم د خپل کورنۍ وړونو او قريبانو څخه سخت تکليفونه زغمل وي او په پای کي به رسول الله ﷺ پر هغوئ غالب سي او هغوئ به معاف کړي.

په څلورم آسمان کي د حضرت ادریس علیه السلام سره د لیدني ځانګړتیا دا وه چي الله جل جلاله د حضرت ادریس علیه السلام په اړه وفرمایل : (ورفعناه مکانا علیا) او په اوو آسمانو کي درمیاني او معتدل څلورم آسمان دی ځکه هغه پر څلورم آسمان باندي وساتل سو ، او په دغه ملاقات کي دې ته اشاره ده چي رسول الله صلی الله علیه وسلم به د نړۍ پاچاهانو ته خطونه واستوي ځکه چي د خط او لیکني اول موجد حضرت ادریس علیه السلام دی،

په پنځم آسمان کي د حضرت هارون علیه السلام سره د لیدني ځانګړتیا دا وه چي هغه د حضرت موسی علیه السلام د ورور کېدو په وجه هغه ته ډېر نژدې هم وو او د حق د دعوت په لاره کي د هغه مرستیال هم وو ، په دې اعتبار هغه د حضرت موسی علیه السلام د آسمان سره نژدې په پنځم آسمان کي وساتل سو د هغوئ سربېره پر شپږم آسمان حضرت موسی علیه السلام وساتل سو ځکه چي هغه د کلیم الله د فضیلت درلودلو په وجه د نورو نبیانو سربېره په شپږم آسمان کي موزونیت درلود ، نو په دغه ملاقات کي دې ته اشاره ده چي څرنګه حضرت موسی علیه السلام د شام په هیواد کي دجبارینو سره د جهاد او قتال لپاره ولېږل سو او الله جل جلاله هغه ته فتح ورکړه همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم به هم د دین د دښمنانو سره د جهاد او قتال دپاره د شام هیواد ته داخل سي ، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د شام په هیواد کي د تبوک د غزا دپاره تشریف یووړاو د دومة الجندل رئیس د جزیې په ورکولو سره د صلح درخواست وړاندي کړ او رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه د صلح درخواست ومنی او څرنګه چي د شام هیواد د حضرت موسی علیه السلام څخه وروسته د حضرت یوشع علیه السلام په لاس فتح سو ،

همدارنګه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وروسته د حضرت عمر رضی الله عنه په لاس د شام ټول هیواد فتح سو ، حضرت ابراهیم علیه السلام د الله جل جلاله خلیل دی په دې اعتبار زموږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وروسته په ټولو نبیانو کي هغه تر ټولو افضل او اشرف دی نو هغه تر ټولو نبیانو سربېره په اووم آسمان کي وساتل سو ، حضرت ابراهیم علیه السلام د کعبې باني (بنیاد اېښودونکی) هم دی ځکه په دغه آخرني ملاقات کي دې ته اشاره وه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم به دوفات څخه مخکي د بیت الله شریفي حج وکړي او په پای کي به مکه مکرمه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په لاس فتح سي .

علماؤ لیکلي دي، دلته دا احتمال دی چي په دغه شپه کي په آسمان کي د ټولو نبیانو جمع کولو پر ځای ددغه څو خاصو نبیانو جمع کول کافي وګڼل سول ، د بلي خوا دا احتمال هم سته چي نور ټول نبیان دي هم جمع کړل سوي وي او په دغه وخت کي هغوئ ټول دخپل حیثیت او درجې سره سم پر مقاماتو باندي په آسمانو کي موجود وه مګر په یادونه کي یوازي ددغه څو خاصو او مشهورو نبیانو په آسمانو کي اکتفاء سوې وي او د پاته نبیانو یادونه اړینه ګڼل سوې نه وي.

ددې وروسته زه سدرة المنتهى ته ورسول سوم، سدرة المنتهى په اووم آسمان كي د بيري يوه درخته ده چي د هغې رېښې په شپږم آسمان كي دي ، د سدره معنى د بيري د درختي ده او د منتهى معنى د هغه شي ده چي هلته د يو شي په رسېدو سره ودرول سي، د مځكي څخه چي كوم شي پورته ځي هغه پر سدرة المنتهى باندي دريږي او بيا لوړ خېژول كيږي ، همدارنګه د ملاء اعلي څخه چي كوم شى راكښته كيږي هغه پر سدرة المنتهى باندي درول كيږي او بيا لاندي راوړل كيږي، يعني دا هغه مقام دى چي د هغه وړاندي ملائكي هم نه سي تللاى، دغه سعادت يوازي زموږ پيغمبر ﷺ ته تر لاسه سو چي رسول الله ﷺ ددغه مقام څخه هم وړاندي تشريف يووړ، د رسول الله ﷺ څخه ماسوا بل څوک ددغه ځاى څخه وړاندي نه دى تللى .

(واذا ورقها آذان الفيلة) او دهغه بلګونه د فيل د غوږو په اندازه وې، په دغه جمله كي د فيلة لفظ په اصل كي د فيل جمع ده او د ديک پر وزن دى چي د ديک جمع ده، د سدرة المنتهى ميوه د لويو لويو منګيانو برابر او د هغه بلګو ته د فيل د غوږونو په اندازه ويل د عوامو د پوهېدو او په عقل كي د راوستلو لپاره دي . حقيقت دادى چي په لفظي توګه نه خو ددغه درختي اوږدوالي په فهم كي راتلاى سي او نه د ميوو او بلګو اندازه لګول كيداى سي .

جبرائيل عليه السلام وويل: دا سدرة المنتهى ده، د حضرت جبرائيل عليه السلام دا ويل يا خو د رسول الله ﷺ ددغه مقام سره متعارف كول او ددې خبري زيرى وركول وو چي تاسو دغه مقام ته را رسېدلي ياست چي د ټول خلائق د عقل او علم منتهى ده او تر دې وړاندي ستاسو څخه ماسوا د بل چا رسېدل ممكن نه دي ، يا د حضرت جبرائيل عليه السلام ددغه وينا مقصد دا عذر بيانول وو چي اوس هغه مقام راغلى دى چي تر هغه وړاندي ما ته هم د تللو اجازه او توان نسته ځكه زه ددغه ځاى څخه وړاندي ستاسو ملګرتيا نه سم كولاى .

دا د باطن دوې ويالې د جنت دي، په دې اړه طيبي رحمه الله ليكلي دي چي د جنت هغه دوې ويالې يو سلسبيل وو او دوهم كوثر وو، دغه دواړو ويالو ته باطن (پټ) په دې اعتبار ويل سوي دي چي هغه په جنت كي بهيږي او د هغه ځاى څخه راوځي او ځينو حضراتو ويلي دي چي د جنت دغه دواړو ويالو ته باطن په دې اعتبار ويل سوي دي چي عقل د هغه د صفتو او ځانګړتياوو او حقيقت ادراک نه سي كولاى .

او دغه ظاهر دوې ويالې نيل او فرات دي، په دې اړه په ظاهره دا معلوميږي چي ددغه دواړو ويالو څخه مراد د مصر د نيل سند او د عراق د فرات سند مراد دي چي د هغه په اړه په حديث كي دي چي دغه دواړه سندونه په اصل كي د سدرة المنتهى د ريښو څخه په راوتلو سره

مځکي ته راغلي دي او د مځکي په هغه سيمو کي بهيږي ، او ځينو حضراتو ويلي دي چي دغه دواړي ويالو په نيل او فرات سره تعبير کول يا خو د تشبيه په توګه دي چي د نيل او فرات اوبه د خوږوالي او ګټور کېدو په اعتبار د جنت د اوبو مشابه دي يا محض اسم اشتراک دی چي د مځکي د دوو سندو نوم نيل او فرات دی همدارنګه د جنت د دوو ويالو نوم هم نيل او فرات دی.

بيا ما ته بيت المعمور وښودل سو ، بيت المعمور هم د الله ﷻ کور دی چي د ملائکو قبله ده او په اووم آسمان کي واقع دی، د هغه محل او وقوع د خانه کعبې په شاوخوا کي دی که چيري هغه ولويږي نو پر عين کعبه به راولويږي، په دې اړه يادونه په راتلونکي حديث کي راځي.

شېدې فطرت دی...الخ: د فطرت څخه مراد د اسلام دين دی چي الله ﷻ د هر انسان د پيدائش او خلقت بنياد ګرځولی دی، په شېدو او فطرت يعني د اسلام په دين کي مماثلت او مناسبت دادی چي څرنګه د اسلام دين د انسان روحاني او اعتقادي تخليف اوله خښته ده همدارنګه شېدې د انسان د بدني روزني بنيادي عنصر دی، همدغه شېدې دي چي په هغه سره د انسان د پېداکېدو سره د هغه روزنه پيل کيږي او بيا په شېدو کي چي کومي فطري ښېګڼي، پاکوالی، خوږوالي او ګټه ده نو له دې سره دين فطرت يعني اسلام ته ډېر مناسبت تر لاسه دی ځکه په لوړه نړۍ کي د دين او علم مثال د شېدو سره ګرځول سوی دی، او علماء وايي که يو سړی په خوب کي ويني چي هغه شېدي څښي نو ددې تعبير به دا وي چي هغه سړي ته به د دين او علم څخه زيات برخه او بې شمېره ګټي تر لاسه کيږي .

ته او ستا امت به پر دغه فطرت ياست، دا د حضرت جبرائيل عليه السلام له خوا زيری وو چي رسول الله ﷺ د شېدو پياله اختيار کړل ، ځکه ثابته سول چي رسول الله ﷺ او د هغه د امت خلک به د دين او علم پر لار روان سي، د شېدو په مقابله کي شراب دي چي د هري خرابي بنياد ښودل سوي دي او رسول الله ﷺ د هغه په پرېښودو سره د خپل امت خلک يې په عامه توګه د بدۍ پر لار تللو څخه منع کړي دي ، په يو حديث کي دا منقول دي چي جبرائيل عليه السلام هم دا ويلي وه که چيري تاسو د شرابو پياله اخيستې وای نو بيا به ستاسو په امت کي د فتنې او فساد يعني د ټولو خرابيو بنياد اېښودل سوی وای ، څرګنده دي وي چي د معراج پېښه د هغه زمانې ده کله چي شراب څښل مباح وه، په خاصه توګه د جنت شراب چي رسول الله ﷺ ته په هغه وخت کي وړاندي کړل سول، د هغه حيثيت بل وو مګر ددې سربېره په لوړه نړۍ کي کوم شی چي د خرابۍ او بدۍ مثال وګرځول سو هغه شراب دي، اوس پاته سوه د عسلو خبره ، که څه هم عسل يو پاک او نرم شی دی او هغه ته د شفاء ذريعه هم ويل سوي دي مګر ددې لطافت، پاکي او ګټي تر

شېدو زياتي نه دي بلكه د هغه ځخه كمي دي، او ددې حيثيت هم د شېدو په نسبت غير اهم دى، ځكه رسول الله ﷺ د شېدو په مقابله كي عسلو ته هم ترجيح ور نه كړل، وړاندي چي كوم حديث راځي په هغه كي د عسلو يادونه هم نسته يوازي د شېدو او شرابو د پيالې يادونه ده او ددغه حديث ځخه دا معلومېږي چي د ذكر سوو شيانو پيالې د رسول الله ﷺ په وړاندي هغه وخت وړاندي كړل سوې كله چي رسول الله ﷺ د سدرة المنتهى سره وو،

حال دا چي د راتلونكي حديث ځخه دا ثابتېږي چي دغه پيالې رسول الله ﷺ ته په بيت المقدس كي وړاندي كړل سوې ، علماؤ ليكلي دي چي دغه پيالې رسول الله ﷺ ته دوه واره وړاندي كړل سوې دي يو وار په مسجد اقصى كي د لمانځه ځخه د فارغه كېدو وروسته ، هغه وخت يوازي دوې پيالې وړاندي كړل سوې يعني يوه د شېدو او يوه د شرابو، لكه چي په تېر سوي حديث كي ذكر دي، او دوهم وار په آسمان كي د سدرة المنتهى سره درې پيالې وړاندي كړل سوې چي په هغو كي يوه پياله د شېدو ، يوه د عسلو او يوه د شرابو وه .

ته بيا خپل پروردګار ته ورسه او د خپل امت لپاره په پنځو لمونځو كي هم د كمي درخواست وكړه، په دې اړه خطابي رحمة الله عليه ويلي دي : د حضرت موسى عليه السلام په وار وار د رسول الله ﷺ ، الله جل جلاله ته استول او د هغه په مشوره الله جل جلاله ته د لمونځو په شمېر كي د كمي درخواست كول، ددې خبري نښه ده چي حضرت موسى عليه السلام ته د مخكي ځخه دا معلومه وه چي د الله جل جلاله له خوا د لمونځو د فرضيت كوم ابتدائي حكم چي صادر سوى دى هغه د وجوب قطعي په توګه نه دى، په هغو كي د بدلون امكان سته ، كه چيري حضرت موسى عليه السلام ته دا خبره معلومه نه واى نو هغه به په وار وار د كمي كولو مشوره نه وركولاى او د رسول الله ﷺ له خوا په وار وار د كمي درخواست كول او هر وار د هغه درخواست قبلېدل هم ددې دليل دى چي د الله جل جلاله لومړنى حكم د وجوب په توګه نه وو ځكه كوم حكم چي د وجوب په توګه جاري كيږي په هغه كي د كمي امكان نه وي، ملا علي قاري رحمة الله عليه د خطابي رحمة الله عليه دغه قول د طيبي رحمة الله عليه په حواله نقل كولو ځخه وروسته د خپل ځان ځخه هم ليكنه كړې ده چي خلاصه يې داده: د هغه په نزد د خطابي خبره وزن لرونكې نه ده ، د هغه وينا ده چي د كمي درخواست كول په اصل كي ددې خبري نښه وه چي د الله جل جلاله حكم د وجوب په توګه وو ځكه چي كوم شى واجب نه وي په هغه كي د كمي درخواست كولو اړتيا نه وي او په دې اړه صحيح خبره هغه ده چي ځينو حضراتو نقل كړې ده چي الله جل جلاله په پيل كي پنځوس لمونځونه فرض كړي وه بيا د خپلو بندګانو پر حال په رحم كولو سره د پنځو لمونځو حكم جاري او نافذ كړ لكه چي په نورو احكامو كي هم د بدلون او

منسوخې عمل سوی دی.

## اسراء او د معراج ذکر

﴿۵۶۱۳﴾: وَعَنْ ثَابِتٌ الْبُنَانِيٌّ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت ثابت بناني رحمه الله څخه روايت دی چي انس رضي الله عنه روايت وکړ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

أُتِيتُ بِالْبُرَاقِ وَهُوَ دَابَّةٌ أَبْيَضُ طَوِيلٌ فَوْقَ الْحِمَارِ وَدُونَ الْبَغْلِ يَقَعُ حَافِرُهُ عِنْدَ

ما ته براق راوستل سو، دا د سپين رنګ يو حيوان وو، چي تر خره لوړ او تر غاتري کښته وو، د هغه قدم د نظر تر حده پوري پورته کيدی

مُنْتَهَى طَرْفِهِ فَرَكِبْتُهُ حَتَّى أَتَيْتُ بَيْتَ الْمَقْدِسِ فَرَبَطْتُهُ بِالْحَلْقَةِ الَّتِي يَرْبِطُ بِهَا

زه پر هغه سپور سوم او بيت المقدس ته راغلم او ما براق پر هغه حلقه وتړی چي د هغه سره به

الْأَنْبِيَاءُ قَالَ ثُمَّ دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ فَصَلَّيْتُ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجْتُ فَجَاءَنِي

انبياؤو براقونه تړل، بيا زه په مسجد اقصی کي داخل سوم دوه رکعته لمونځ مي وکړ بيا زه د مسجد څخه دباندي راووتم او ما ته راوړل

جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَام بِإِنَاءٍ مِنْ خَمْرٍ وَإِنَاءٍ مِنْ لَبَنٍ فَاخْتَرْتُ اللَّبَنَ فَقَالَ

جبرائيل عليه السلام يوه پياله د شرابو او يوه پياله د شيدو ، ما د شيدو پياله واخيستل، وويل

جِبْرِيلُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخْتَرْتَ الْفِطْرَةَ ثُمَّ عَرَجَ بِنَا إِلَى السَّمَاءِ وساق

جبرائيل عليه السلام : تا فطرت (يعني دين اسلام) اختيار کړ او بيا جبرائيل عليه السلام زه د آسمان په لور

مثل معناه قال فَإِذَا أَنَا بِآدَمَ فَرَحَّبَ بِي وَدَعَا لِي بِخَيْرٍ وقال في السَّمَاءِ الثَّالِثَةِ

بوتلم د دې څخه وروسته انس رضي الله عنه د تير سوي حديث هم معنا حديث بيان کړ او بيا يې وفرمايل: رسول الله ﷺ وفرمايل: ما آدم عليه السلام وليدی هغه ما ته وويل هر کله راسې او وه يې ويل زما لپاره دعاء وکړه، او د دريم آسمان حال بيانولو سره رسول الله ﷺ وفرمايل:

فَإِذَا أَنَا بِيُوسُفَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا هُوَ قَدْ أُعْطِيَ شَطْرَ الْحُسْنِ فَرَحَّبَ وَدَعَا

هلته ما ته يوسف عليه السلام په نظر راغلی چي هغه ته الله تعالی د دنيا نيم حسن ورکړی دی، هغه راته هم مرحبا وويل او زما لپاره يې د خير دعاء وکړل،

لِي بِخَيْرٍ ولم يذكر بكاء موسى صلى الله عليه وسلم وقال في السماء السابعة

انس رضی الله عنه په دې لړۍ کي د موسی عليه السلام د ژړا ذکر ونه کړ، د اووم آسمان په اړه رسول الله ﷺ وفرمايل:

فَإِذَا أَنَا بِإِبْرَاهِيمَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْنِدًا ظَهْرَهُ إِلَى الْبَيْتِ الْمَعْمُورِ وَإِذَا هُوَ

ناڅاپه هلته د حضرت ابراهيم عليه السلام سره يو ځای سوم چي ملا يې د بيت المعمور سره لګولې وه،

يَدْخُلُهُ كُلَّ يَوْمٍ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ لَا يَعُودُونَ إِلَيْهِ ثُمَّ ذَهَبَ بِي إِلَى السِّدْرَةِ

په بيت المعمور کي هره ورځ اويا زره ملائکي داخليږي او کومي ملائکي چي يو وار داخلي سي هغوئ ته دويم وار د داخليدو موقع نه سي ورکول کيدلای، بيا زه سدرة المنتهی ته بوتلل سوم

الْمُنْتَهَى وَإِذَا وَرَقُهَا كَآذَانِ الْفِيلَةِ وَإِذَا ثَمَرُهَا كَالْقِلَالِ قَالَ فَلَمَّا غَشِيَهَا مِنْ أَمْرِ

ددغه درختي پاڼي د فيل د غوږونو برابر دي او ددې ميوې د منګيانو برابري دي، سدرة المنتهی د الله جل جلاله په حکم هغه شی پټ کړی دی څه سره چي

اللهِ مَا غَشِيَ تَغَيَّرَتْ فَمَا أَحَدٌ مِنْ خَلْقِ اللهِ يَسْتَطِيعُ أَنْ يَنْعَتَهَا مِنْ حُسْنِهَا

الله تعالی د هغه پټول مناسب وګڼل چي د هغه علم الله تعالی ته دی، ددې څخه وروسته د سدرة المنتهی حالت بدل سو او اوس هيڅوک د الله تعالی د مخلوقاتو څخه د هغه ښکلا نه سي بيانولای،

فَأَوْحَى إِلَيَّ مَا أَوْحَى فَفَرَضَ عَلَيَّ خَمْسِينَ صَلَاةً فِي كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ فَنَزَلْتُ إِلَى مُوسَى

بيا الله تعالی ما ته وحي راوليږل، بيا پر ما پنځوس لمنځونه فرض سول په شپه او ورځ کي، زه را کښته سوم او موسی عليه السلام ته راغلم،

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا فَرَضَ رَبُّكَ عَلَى أُمَّتِكَ قُلْتُ خَمْسِينَ صَلَاةً قَالَ

هغه را څخه پوښتنه وکړه ستا پروردګار ستا پر امت څه فرض کړل، ما ورته وويل په شپه او ورځ کي پنځوس لمنځونه، موسی عليه السلام وويل:

ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ التَّخْفِيفَ فَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا يُطِيقُونَ ذَلِكَ فَإِنِّي قَدْ بَلَوْتُ بَنِي

خپل پروردګار ته ولاړ سه او د تخفیف خواست وکړه ځکه چي ستا امت دومره طاقت نه لري ، ما

إِسْرَائِيلَ وَخَبَرْتُهُمْ قَالَ فَرَجَعْتُ إِلَى رَبِّي فَقُلْتُ يَا رَبِّ خَفِّفْ عَلَى أُمَّتِي فَحَطَّ

بني اسرائیل ازمویلي دي او د هغوئ امتحان مي اخیستی دی ، زه بیرته ولاړم او عرض مي وکړ اې پروردګاره ! زما پر امت اساني وکړې او په لمنځونو کي کمي راکړې ،

عَنِّي خَمْسًا فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى فَقُلْتُ حَطَّ عَنِّي خَمْسًا قَالَ إِنَّ أُمَّتَكَ لَا يُطِيقُونَ

نو الله تعالی پنځه لمنځونه کم کړل ، موسی علیه السلام راته وویل ستا امت دومره طاقت نه لري

ذَلِكَ فَارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ التَّخْفِيفَ قَالَ فَلَمْ أَزَلْ أَرْجِعُ بَيْنَ رَبِّي تَبَارَكَ

ته بیا خپل پروردګار ته ورسه او کمي وغواړه، رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چي زه د خپل پروردګار او موسی علیه السلام په منځ کي تلم راتلم

وَتَعَالَى وَبَيْنَ مُوسَى عَلَيْهِ السَّلَام حَتَّى قَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنَّهُنَّ خَمْسُ صَلَوَاتٍ كُلَّ

او د کمی لړۍ جاري وه تر دې چي الله تعالی وفرمایل : اې محمد ! دا پنځه لمنځونه په شپه او

يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ لِكُلِّ صَلَاةٍ عَشْرٌ فَذَلِكَ خَمْسُونَ صَلَاةً وَمَنْ هَمَّ بِحَسَنَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا

ورځ کي فرض سوي دي او په دې کي د هره لمانځه ثواب د لسو لمونځو برابر دی، داسي دا پنځه لمنځونه په ثواب کي د پنځوسو لمنځونو برابر دي، چا چي د نیکي اراده وکړه او د یو عذر په سبب یې هغه ونه کړلای سوه

كُتِبَتْ لَهُ حَسَنَةً فَإِنْ عَمِلَهَا كُتِبَتْ لَهُ عَشْرًا وَمَنْ هَمَّ بِسَيِّئَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا لَمْ

نو د هغه په حساب کي یوازي په ارادې سره یوه نیکي لیکل کیږي او هر کله چي هغه نیکي وکړي نو د هغه په حساب کي لس نیکۍ لیکل کیږي ، او څوک چي د خراب کار اراده وکړي او هغه ونه کړلای سي یا وه یې نه کړي

تُكْتَبْ له شَيْئًا فَإِنْ عَمِلَهَا كُتِبَتْ سَيِّئَةً وَاحِدَةً قَالَ فَنَزَلْتُ حَتَّى انْتَهَيْتُ إِلَى

نو هیڅ یې نه لیکل کیږي ، او که هغه خراب کار وکړي نو یوازي یوه بدي د هغه په حساب کي لیکل کیږي ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل : زه د رب العزت د دربار څخه راکښته

مُوسَى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ التَّخْفِيفَ

سوم او حضرت موسی علیه السلام ته راورسیدم او هغه مي حقيقت څخه خبر کړ هغه بيا هم هغه مشوره راکړه چي خپل پروردګار ته ورسه او دکمي خواست ورته وکړه،

فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ فَقُلْتُ قَدْ رَجَعْتُ إِلَى رَبِّي حَتَّى اسْتَحْيَيْتُ مِنْهُ. رواه مسلم

رسول الله ﷺ وفرمايل: ما حضرت موسی علیه السلام ته وويل: زه په څو څو واره د الله جل جلاله په دربار کي حاضر سوم اوس خو هلته د ورتلو څخه ما ته حيا راځي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ١\ ١٤٥، رقم: ٢٥٩- ١٦٢.

**تشريح**: بيا زه مسجد اقصی ته داخل سوم، په دې اړه ملا علي قاري رحمه الله ليکلي دي چي پر اسراء يعني تر تر مسجد اقصی پوري پر سفر باندي د ټولو اتفاق دی او هيچا د هغه د واقعيت څخه انکار نه دی کړی مګر د مسجد اقصی څخه تر آسمان پوري سفر يعني د معراج په پېښه کي ځينو کسانو لکه معتزله، اختلاف کړی دی او د هغوئ دغه اختلاف هم د پخواني علماؤ د دغه نظريې منلو سره دی چي په آسمان کي خرق او التيام محال دی.

او دوه رکعته لمونځ مي وکړ: دا د تحية المسجد دوه رکعته وه چي رسول الله ﷺ په مسجد اقصی کي د داخلېدو وروسته ادا کړل او صحيح خبره داده چي دا د هغه لمانځه يادونه ده چي په هغه کي رسول الله ﷺ امامت وکړ او د نورو نبيانو عليهم السلام چي د رسول الله ﷺ په اکرام کي په بيت المقدس کي جمع کړي وه د رسول الله ﷺ اقتداء کړې وه، راوي په دغه وخت کي د امامت يادونه يا د اختصار له کبله ونه کړل او يا يې ذکر کول هېر سول لکه څرنګه چي په مخکني حديث کي د رسول الله ﷺ مسجد اقصی ته د تللو يادونه هم نسته.

جبرائيل رحمه الله ما ته يوه پياله د شرابو او يوه پياله د شېدو راوړل، کيدای سي چي راوي دلته د اختصار څخه په کار اخيستلو يوازي د دوو پيالو يادونه وکړل او دريمه پياله يعني د عسلو د پيالې يادونه يې ضروري ونه ګڼل او څرنګه چي مخکي بيان سول دا هم ممکن ده چي په مسجد اقصی کي د رسول الله ﷺ په وړاندي دوې پيالې يعني د شرابو او د شېدو پيالې راوړل سوي وي مګر په آسمان کي درې پيالې وړاندي سوي وي چي په هغو کي يوه پياله د عسلو وه.

بيا موږ آسمان ته پورته کړل سو، دا د (ثم عرج بنا الی السماء) لفظ ژباړه ده، په دغه جمله کي د عرج لفظ د عين او راء په زور سره دی لکه چي نووي او سيوطي رحمة الله عليهما ليکلي

دي، په دغه صورت کي د عرج فاعل یا خو حضرت جبرائیل ﷺ دی یا دا چي رسول الله ﷺ
مخکي د بنا لفظ فرمایلي دی ځکه د عرج فاعل الله ﷻ سو، مطلب دا چي بیا الله ﷻ زه او
جبرائیل ﷺ آسمان ته ورسولو، او دا هم ممکن ده چي د بنا لفظ د تعجب لپاره وي نو بیا د عرج
فاعل حضرت جبرائیل ﷺ کیږي، په یوه نسخه کي د عرج لفظ مجهول نقل سوی دی، په دغه
صورت کي به ژباړه داسي وي: بیا موږ لوړ آسمان ته ورسول سوو.

حضرت یوسف ﷺ مي ولیدی چي هغه ته نیمه ښکلا ورکړل سوې وه، د نیمي ښکلا څخه
څه مراد دی، په دې اړه صحیح او تحقیقي قول دادی چي رسول الله ﷺ دا څرګنده کړل چي د
حضرت یوسف ﷺ په زمانه کي څومره ښکلا په ټولو خلکو کي وه د هغه نیمه برخه یوازي
حضرت یوسف ﷺ ته ورکړل سوې وه، او ځینو حضراتو ددغه جملې څخه د رسول الله ﷺ دا
مراد بیان کړی دی چي حضرت یوسف ﷺ ته زما د ښکلا نیمه برخه ورکړل سوې ده یعني رسول
الله ﷺ ته چي کومه ښکلا ورکړل سوې ده د هغه نیمه برخه حضرت یوسف ﷺ ته ورکړل سوې
وه، ددې څخه دا خبره څرګنده سول چي حضرت یوسف ﷺ په ښکلا او جمال کي زموږ تر
پیغمبر ﷺ زیات نه وو بلکه ډېرو علماؤ لیکلي دي چي رسول الله ﷺ تر حضرت یوسف ﷺ د
ډېري ښکلا او جمال خاوند وو، او ددې یو دلیل دا بیان سوی دی چي د حضرت یوسف ﷺ په
اړه دا هیڅ ځای نه دي راغلي چي د حضرت یوسف ﷺ د صورت د جمال عکس په مثل د
هنداري پر دېوال لوېدی او مخته شیان به معلومېدل حال دا چي د رسول الله ﷺ په اړه دا نقل
سوي دي چي د رسول الله ﷺ جمال دا ډول وو، دا بېله خبره ده چي الله ﷻ د رسول الله ﷺ ددغه
جمال ډېره برخه د رسول الله ﷺ په صحابوو کي پټه اېښې وه که داسي نه وای نو د رسول الله ﷺ
د مخ ښکلا او نور به د خپلي پوره ځلا سره څرګند وای .هیچا به توان نه درلودای او نه به هیچا
ته د رسول الله ﷺ د نوراني مخ د لیدني سعادت تر لاسه کېدای، حال دا چي د حضرت یوسف
ﷺ کوم حسن او ښکلا چي وه هغه د ټولو په وړاندي څرګنده وه، او په هغه کي هیڅ برخه پټه نه
وه ساتل سوې، په دې اړه شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله یوه بله خبره لیکلې ده، د هغه
وینا ده، د حضرت یوسف ﷺ په شان کي او د هغه د حسن او ښکلا په تعریف کي چي کومي
خبري منقول او ثابت دي په هغو کي ځیني شیان داسي دي چي په ذهن کي دا خبره اچوي چي د
حضرت یوسف رحمه الله حسن او جمال بې مثله وو لکه چي د معراج د پېښي سره اړوند په یوه
روایت کي منقول دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په هغه شپه ما یو سړی (یعني حضرت یوسف
ﷺ) هم ولیدی او د هغه سره یو ځای سوم چي د قدرت تر ټولو ښکلی تخلیق وو چي د الله ﷻ

په مخلوق کي تر ټولو زيات ښکلی وو ، لکه چي په ټولو ستورو کي سپوږمۍ تر ټولو زياته روښانه معلوميږي مګر بلي خوا ته هغه حديث هم سته چي ترمذي د حضرت انس رضي الله عنه څخه نقل کړی دی چي الله جل جلاله هيڅ نبي او رسول داسي نه دی را استولی چي ښکلی او خوش آوازه نه وي او تر ټولو زيات ښکلی او خوش آوازه ستاسو پيغمبر صلی الله علیه وسلم وو ،

او کوم چي د معراج د پيښې ددغه حديث تعلق دی چي شيخ عبدالحق دهلوي رحمة الله علیه وړاندی کړی دی نو دا ويل کيدای سي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپل ځان په بېلولو سره دا خبره فرمايلې ده يعني د رسول الله صلی الله علیه وسلم مطلب دا وو چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه ماسوا په ټول مخلوق کي تر ټولو زيات ښکلی حضرت يوسف علیه السلام وو او ددغه تاويل امکان داسي هم کيدای سي چي خبري کوونکی په عمومي خطاب کي داخل نه وي، شيخ ابن حجر مکي رحمة الله علیه د شمائل ترمذي په تشريح کي ليکلي دي : پر رسول الله صلی الله علیه وسلم د کامل ايمان څخه يوه برخه دا عقيده هم ده چي څومره ښکلا د رسول الله صلی الله علیه وسلم ذات اقدس او ظاهري شکل و صورت ته ورکړل سوې وه هغومره ښکلا او جمال د هيڅ انسان ذات او ظاهري شکل ته نه وه ورکړل سوې ، څومره فضل او کمال چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په باطن کي اېښودل سوی وو دومره فضل او کمال د بل هيڅ انسان په باطن کي نه وو ، د يو انسان ظاهر د هغه د باطن مظهر وي ځکه نو څرنګه چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم باطن بې مثله وو همدارنګه ظاهر يې هم بې مثله وو ، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ظاهري او باطني ښکلا په تعريف کي دا خبره د اصول درجه لري چي د الله جل جلاله څخه ماسوا د فضل او کمال چي نوري څومره مرتبې او درجې کېدای سي هغه ټولي د رسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره ثابتي دي او د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه زيات نه بلکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم برابر هيڅ کامل انسان تر ننه پوري پيدا سوی نه دی او نه به په راتلونکي کي پېدا سي .

کسي بحسن و ملاحت بيار ما نرسد ترا درين سخت انکار کار ما نرسد
هزار نقد بـــــازار کائنات آرند يکي بسکه صاحب عيار ما نرسد

دغه حقيقت په يو بل انداز کي يو شاعر داسي بيا کړی دی :

يا صاحب الجمال ويا سيد البشر من وجهک المنير لقد نور القـــمر
لايمکـــــن الثناء کما کان حقه بعد از خدا بزرگ توئي قصه مختصر

سدرة المنتهی د الله جل جلاله په حکم سره پټونکی شی پټ کړ ، په دې اړه مختلف اقوال دي چي کوم شی سدرة المنتهی پټ کړی وو ، ځيني حضرات وايي چي بې شمېره ملائکو سدرة المنتهی راچاپېره کړې وه ، د هغوئ د وزرونو رڼا او ځلا پر ټوله درخته باندي د نور او جمال څادرونه

اچولي وه او ځيني حضرات وايي چې د الله ﷻ د جلال او عظمت نور د سرو زرو د پتنګانو په ډول پر هغه اوربدل چې تر هغه لاندي تهوله درخته پټه سوې وه، ځينو حضراتو دا ويلي دي چې د سروزرو پتنګانو او نورو عجيبو شيانو چې د هغه حقيقت او کيفيت چا ته معلوم نه دی، سدرة المنتهی يې پټه کړې وه.

بيا الله ﷻ چې کومه وحي غوښتل، ما ته يې راولېږل، دا هغه وخت دی چې رسول الله ﷺ د الله ﷻ دربار ته نژدې ورسېدی او د نور السماوات والارض جمال يې د حجاب څخه وليدی او بېله واسطې په کلام الهي او وحي سره ونازول سو، هغه کلام څه وو او هغه وحي په کومو الفاظو کي وې، دا يو راز دی چې د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ څخه ماسوا بل څوک نه په پوهيږي، د ادب او احتياط تضاضا ده چې دا مبهم او مجمل وساتل سي او په دې اړه د وضاحت او پلټني هڅه ونه کړل سي.

الله ﷻ زما په وجه زما د امت لپاره پنځه لمونځونه کم کړل، د دغه حديث څخه څرګندېږي چې په پنځوسو لمونځو کي کومه کمي وسول هغه هر وار د پنځه پنځه لمونځو کمېدو په صورت کي وسول، حال دا چې په تېر سوي حديث کي هر وار د لس لس او په پای کي د پنځو لمونځو کمېدو يادونه سوې ده، نو کېدای سي چې دلته اصل عبارت داسي وي چې زما د امت په اړه پنځه او بيا پنځه لمونځونه کم کړل سول، يعني په هر وار پنځه پنځه کولو سره لس لمونځونه کم کړل سوي وي او په داسي به د تېر سوي حديث سره مطابقت پېدا سي، مګر صحيح خبره داده چې هر وار د پنځو پنځو لمونځو کمېدل او په تېر سوي حديث کي د اوږدوالي څخه د ساتني لپاره هر وار د پنځو پنځو يادونه کولو پر ځای د لسو لسو ذکر کولو سره کلام مختصر کړل سو، د دې تائيد د دغه حديث د دغه الفاظو څخه هم کيږي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: بيا زه حضرت موسی علیہ السلام ته راغلم او هغه ته مي وويل چې زما په درخواست باندي پنځه لمونځونه کم کړل سول.

نو د هغه په حساب کي هغه نيکي لس برابر ليکل کيږي: يعني نيکي خو يوه کوي مګر د هغه په عملنامه کي ثواب د لسو نيکيو ليکل کيږي، په قرآن کريم کي الله ﷻ دغه زيری داسي ورکړی دی: (من جاء بالحسنة فله عشر امثالها) څوک چې يوه نيکي وکړي نو هغه ته به د لسو نيکيو ثواب ورکول کيږي.

او په غير حرم کي د زياتېدو دا تر ټولو ادنا درجه ده يعني د حرم شريف څخه ماسوا په نورو ځايو کي کيدونکي يو نيک عمل چې څو برابر زيات د ثواب وعده فرمايل سوې ده په هغه کي

لس برابر تر ټولو ادنا درجه ده، د نورو حديثو څخه ثابته ده چي په ځينو صورتو کي پر يو عمل باندي تر لس برابر زيات تر دې چي تر اووه سوه پوري ثواب ورکول کيږي بلکه د صدق او اخلاص د حيثيت او کيفيت په اندازه تر اووه سوه هم زيات ثواب ورکول کيږي.

او بيا يې هغه بد کار ونه کړلای سو، نو د هغه په حساب کي هغه بدي نه ليکل کيږي، يعني که چيري يو سړی د يو بدکار کولو اراده وکړي او بيا د يو وجه ماسوا يا په يو داسي سبب سره چي مباح وي هغه بدکار ونه کړي نو د هغه په عملنامه کي هيڅ بدي نه ليکل کيږي، په شرط ددې چي هغه اراده محض په سطحي توګه پيدا سوې وي په زړه کي ټينګه او پخه سوې نه وي او که چيري هغه د بدکار داسي اراده کړې وي چي د زړه په ټينګښ سره وه او بيا هغه بد کار ونه کړ نو کتل کيږي چي هغه د پخې ارادې سربېره هغه بدکار په کوم سبب ونه کړ که دا سبب وي چي هغه د ارادې څخه وروسته د هغه پر زړه باندي د الله ﷻ بېره غالبه سول او هغه محض د الله ﷻ د رضا لپاره هغه بد.کار ونه کړ نو په دغه صورت کي د هغه په عملنامه کي يوه بدي ليکل کيږي.

نو د هغه په حساب کي به يوازي هغه يوه بدي ليکل کيږي، ددې مطلب دادی چي څرنګه پر يوې نيکۍ کولو باندي په عملنامه کي لس نيکۍ ليکل کيږي همدارنګه پر يوې بدي کولو باندي په عملنامه کي هغه بدۍ لس برابر نه ليکل کيږي بلکه يوه بدي ليکل کيږي ځکه چي د کميت په اعتبار بدي څو برابر کيږي او د الله ﷻ ارشاد دی:

ومن جاء بالسيئة فلا يجزي الا مثلها وهم لايظلمون، او څوک چي يوه بدي راوړي نو هغه ته به هم هغه سزا ورکول کيږي او پر هغوئ به ظلم نه کيږي.

او پر هغوئ به ظلم نه کيږي، ددې څخه څرګنده سول چي د بدۍ څو برابر نه کېدل د الله ﷻ د عدل اظهار دی حال دا چي د نيکۍ څو برابر کېدل د الله ﷻ فضل او مهرباني ده.

## د معراج ذکر

﴿۵۶۱۴﴾: وَعَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ أَبُو ذَرٍّ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى

حضرت ابن شهاب رضي الله عنه د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت کوي چي ابوذر رضي الله عنه بيان وکړ چي رسول

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فُرِجَ عَنْ سَقْفِ بَيْتِي وَأَنَا بِمَكَّةَ فَنَزَلَ جِبْرِيلُ صَلَّى اللّٰهُ

الله ﷺ وفرمايل: زه په مکه کي وم چي زما د سرای بام خلاص کړل سو او د هغه څخه جبرائيل عليه السلام راکښته سو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَفَرَجَ صَدْرِي ثُمَّ غَسَلَهُ بِمَاءِ زَمْزَمَ ثُمَّ جَاءَ بِطَسْتٍ مِنْ ذَهَبٍ

هغه زما سینه څیري کړل او د زمزم په اوبو سره يې پريولل، بيا د سرو زرو يو تالی راوړل سول

مُمْتَلِئٍ حِكْمَةً وَإِيمَانًا فَأَفْرَغَهُ فِي صَدْرِي ثُمَّ أَطْبَقَهُ ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِي فَعَرَجَ بِي إِلَى

چي د حکمت او ایمان څخه ډک وه هغه زما په سینه کي دننه توی کړل سو ، بيا زما سینه خپل ځای ته وروسته سوه، بيا جبرائيل علیه السلام زما لاس ونيوی زه يې بوتلم

السَّمَاءِ فَلَمَّا جِئْتُ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا قَالَ جِبْرِيلُ لِخَازِنِ السَّمَاءِ افْتَحْ قَالَ مَنْ

د آسمان په لور ، ددنيا آسمان ته چي راورسيدو ، جبرائيل علیه السلام د آسمان ساتونکی ته وويل دروازه خلاصه کړه ساتونکي پوښتنه وکړه څوک يې ؟

هَذَا قَالَ هَذَا جِبْرِيلُ قَالَ هَلْ مَعَكَ أَحَدٌ قَالَ نَعَمْ مَعِي مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

جبرائيل علیه السلام وويل زه جبرائيل يم ، ساتونکي بيا پوښتنه وکړه بل څوک هم درسره سته؟ جبرائيل علیه السلام وويل هو زما سره محمد ﷺ دی،

وَسَلَّمَ فَقَالَ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ فَلَمَّا فَتَحَ عَلَوْنَا السَّمَاءَ الدُّنْيَا فَإِذَا رَجُلٌ قَاعِدٌ

ساتونکي بيا پوښتنه وکړه ايا دی رابلل سوی دی ، جبرائيل علیه السلام وويل هو ، کله چي دروازه خلاصه سوه نو موږ د دنيا آسمان ته ورسيدو ، ناڅاپه پر يو سړي مي نظر ولويدی چي هلته ناست وو

عَلَى يَمِينِهِ أَسْوِدَةٌ وَعَلَى يَسَارِهِ أَسْوِدَةٌ إِذَا نَظَرَ قِبَلَ يَمِينِهِ ضَحِكَ وَإِذَا نَظَرَ قِبَلَ

او د هغه راسته خوا ته تور شيان دي او چپه خوا ته يې هم تور شيان دي هغه چي پر راسته خوا وکتل نو وه به يې خندل او چي چپه خوا ته به يې وکتل

شماله بَكَى فَقَالَ مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالِابْنِ الصَّالِحِ قُلْتُ لِجِبْرِيلَ مَنْ هَذَا

نو وه به يې ژړل ، هغه راته وويل اې صالحه نبي او نيک بخته زويه : هر کله راسې ، ما د جبرائيل علیه السلام څخه پوښتنه وکړه دا څوک دی ؟

قَالَ هَذَا آدَمُ وَهَذِهِ الْأَسْوِدَةُ عَنْ يَمِينِهِ وَشِمَالِهِ نَسَمُ بَنِيهِ فَأَهْلُ الْيَمِينِ مِنْهُمْ

هغه راته وويل دا آدم علیه السلام دی او دا راسته او چپه خوا ته چي دا تور تور شيان دي دده د اولاد

أَهْلُ الْجَنَّةِ وَالْأَسْوِدَةُ الَّتِي عَنْ شِمَالِهِ أَهْلُ النَّارِ فَإِذَا نَظَرَ عَنْ يَمِينِهِ ضَحِكَ وَإِذَا

روحونه دي ، په دوئ کي چي کوم خلک راسته خوا ته دي هغه جنتيان دي او دا تور کوم چي چپه خوا ته ناست دي هغه دوږخيان دي ، آدم علیه السلام چي راسته خوا ته وگوري نو خوشحاله سي او

نَظَرَ قِبَلَ شِمَالِهِ بَكَى حَتَّى عَرَجَ بِي إِلَى السَّمَاءِ الثَّانِيَةِ فَقَالَ لِخَازِنِهَا افْتَحْ فَقَالَ

وخاندي او کله چي چپه خوا ته وگوري نو خفه سي او په ژړا سي ، بيا جبرائيل عليه السلام زه دويم آسمان ته بوتلم او د هغه ساتونکي ته يې وويل دروازه خلاصه کړه ، ساتونکي هم هغه

لَهُ خَازِنُهَا مِثْلَ مَا قَالَ الْأَوَّلُ قَالَ أَنَسٌ فَذَكَرَ أَنَّهُ وَجَدَ فِي السَّمٰوَاتِ آدَمَ

پوښتني ځيني وکړې ، د انس رضی الله عنه بيان دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم په آسمانونو کي آدم علیه السلام ،

وَإِدْرِيسَ وَمُوسَى وَعِيسَى وَإِبْرَاهِيمَ صَلَوَاتُ اللّٰهِ عَلَيْهِمْ وَلَمْ يُثْبِتْ كَيْفَ

ادريس علیه السلام ، موسی علیه السلام ، عيسی علیه السلام او ابراهيم علیه السلام سره د ملاقات کولو ذکر وکړ ، مگر د هغوئ

مَنَازِلُهُمْ غَيْرَ أَنَّهُ ذَكَرَ أَنَّهُ وَجَدَ آدَمَ فِي السَّمٰوَاتِ الدُّنْيَا وَإِبْرَاهِيمَ فِي السَّمَاءِ

د مقاماتو او منازلو کيفيت يې بيان نه کړ ، يوازي د آدم علیه السلام سره په لومړني آسمان کي د يو ځای کيدو ذکر يې وکړ ، او په آسمان کي يې د حضرت ابراهيم علیه السلام ليدل ظاهر کړل ،

السَّادِسَةِ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَأَخْبَرَنِي ابْنُ حَزْمٍ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ وَأَبَا حَبَّةَ الْأَنْصَارِيَّ

ابن شهاب رضی الله عنه وايي ما ته ابن حزم رضی الله عنه ښودلي دي چي ابن عباس رضی الله عنه او ابو حبه انصاري رضی الله عنه

كَانَا يَقُولَانِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ عُرِجَ بِي حَتَّى ظَهَرْتُ لِمُسْتَوًى

ويل چي نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل : زه وخېژول سوم تر دې چي زه يو هوار او لوړ ځای ته ورسيدم

أَسْمَعُ فِيهِ صَرِيفَ الْأَقْلَامِ قَالَ ابْنُ حَزْمٍ وَأَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

هلته د قلمونو د ليکلو اوازونه راتلل ، ابن حزم او انس وايي نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَفَرَضَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى أُمَّتِي خَمْسِينَ صَلَاةً فَرَجَعْتُ بِذٰلِكَ حَتَّى

بیا الله تعالی زما پر امت پنځوس لمنځونه فرض کړل او زه د هغه لمنځونو د حکم سره د الله ﷻ د دربار څخه راوګرځېدم

مَرَرْتُ عَلَى مُوسَى فَقَالَ مَا فَرَضَ اللَّهُ لَكَ عَلَى أُمَّتِكَ قُلْتُ فَرَضَ خَمْسِينَ صَلَاةً

او پر موسی علیه السلام تیر سوم، هغه پوښتنه وکړه ستا په ذریعه الله تعالی ستا پر امت څه فرض کړل، ما ورته وویل پنځوس لمنځونه یې فرض کړل،

قَالَ فَارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيقُ ذَلِكَ فَرَاجَعْتُ فَوَضَعَ شَطْرَهَا فَرَجَعْتُ

موسی علیه السلام راته وویل خپل پروردګار ته بیرته ولاړ سه ستا امت دومره طاقت نه لري چي پنځوس لمنځونه ادا کړي، زه د الله ﷻ په دربار کي حاضر سوم او په هغه کي د څو لمنځو کمي

إِلَى مُوسَى قُلْتُ وَضَعَ شَطْرَهَا فَقَالَ رَاجِعْ رَبَّكَ فَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيقُ فَرَاجَعْتُ

وکړل سول، بیا زه موسی علیه السلام ته راغلم ورته وه مي ویل د هغه یو څه برخه معاف کړل سوه، موسی علیه السلام راته وویل بیا خپل پروردګار ته ولاړ سه ستا د امت دومره توان نسته چي دا هم ادا کړلای سي، بیا ولاړم

فَوَضَعَ شَطْرَهَا فَرَجَعْتُ إِلَيْهِ فَقَالَ ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيقُ ذَلِكَ

او یو څو نور لمنځونه راته معاف کړل سول، ددې څخه وروسته بیا موسی علیه السلام ته راغلم هغه راته وویل بیا خپل رب ته ورسه ستا امت ددومره طاقت هم نه لري.

فَرَاجَعْتُهُ فَقَالَ هِيَ خَمْسٌ وَهِيَ خَمْسُونَ لَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ فَرَجَعْتُ إِلَى

زه بیا ولاړم نو الله تعالی وفرمایل پنځه لمنځونه فرض سوي دي چي په ثواب کي د پنځوسو لمنځونو برابر دي او زما قول نه بدلیږي یعني زه به د پنځوسو لمنځونو ثواب درکوم، که څه هم چي د هغه په شمیر کي کمي سوې ده، ددې څخه وروسته زه راغلم

مُوسَى فَقَالَ رَاجِعْ رَبَّكَ فَقُلْتُ اسْتَحْيَيْتُ مِنْ رَبِّي ثُمَّ انْطَلَقَ بِي حَتَّى انْتَهَى بِي

موسی علیه السلام ته هغه بیا زما لیږل غوښتل خو ما ورته وویل اوس ما ته د خپل پروردګار څخه حیا راځي، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل: زه ورسول سوم

إِلَى سِدْرَةِ الْمُنْتَهَى وَغَشِيَهَا أَلْوَانٌ لَا أَدْرِي مَا هِيَ ثُمَّ أُدْخِلْتُ الْجَنَّةَ فَإِذَا فِيهَا جنابذ اللُّؤْلُؤِ وَإِذَا تُرَابُهَا الْمِسْكُ. متفق عليه.

سدرة المنتهى ته پر هغه چي څه رنګونه وه زه يې نه سم ويلای چي هغه څه شي وه، بيا زه په جنت کي داخل کړل سوم په هغه کي ما د ملغلرو ګنبدي وليدلې او د جنت خاوره د مشک وه. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۴۵۸\۱، رقم: ۳۴۹، ومسلم ۱۴۸\۱، رقم: ۲۶۳- ۱۶۳.

**د لغاتو حل:** فرج: اي ازيل. (ايسته سو، خلاص سو). اسودة: الشخص لانه يروى انه اسود من بعيد. نسم: وهي الروح او النفس. صريف الاقلام: اى صوتها عند الكتابة (د ليکني په وخت کي د قلم برغ). جنابذ: وهي ما ارتفع من الشئ واستدار.

**تشريح:** د فُرِجَ، لفظ په تخفيف سره د مجهول صيغه ده او ځينو حضراتو په تشديد سره هم نقل کړی دی، په دواړو صورتو کي معنی يو ده، يعني حضرت جبرائيل عليه السلام د خوني د بام په ليري کولو سره د لوړي څخه راغلی، د اسراء او معراج د سفر پيل د کوم ځای څخه وسو، په دې اړه مختلف او متضاد روايتونه منقول دي، په ځينو روايتو کي د حطيم او په ځينو کي د حجر ذکر دی لکه چي د مخکني حديث څخه معلومه سوه، په ځينو روايتو کي د شعب ابو طالب ذکر دی او په ځينو رواتيو کي دا ذکر دی چي کله حضرت جبرائيل عليه السلام د رسول الله ﷺ د بېولو لپاره راغلی نو هغه وخت رسول الله ﷺ د بي بي ام هانئ په ځای کي د راحت پر بستر آرام کوی او دغه روايت زيات مشهور دی، په دغه ټولو روايتو کي غوره تطبيق هغه دی کوم چي په فتح الباري کي ليکلی دي يعني په دغه شپه کي چي د اسراء او معراج پېښه رامنځته سول نبي کريم ﷺ د بي بئ ام هانئ په خونه کي بېده وو چي په شعب ابي طالب کي واقع وو، حضرت جبرائيل عليه السلام د خوني د بام په څېرلو سره رسول الله ﷺ ته راغلی او د رسول الله ﷺ په وېښولو سره يې کعبې ته راوست چيري چي حطيم او حجر دی، رسول الله ﷺ په حطيم کي پروت وو او د خوب اثر ور باندي وو ځکه رسول الله ﷺ هلته بيا بېده سو، حضرت جبرائيل عليه السلام بيا راويښ کړ او د شق صدر او نورو مرحلو څخه وروسته يې رسول الله ﷺ د مسجد حرام دروازې ته راوست، هلته رسول الله ﷺ پر براق باندي په سپرېدو سره مسجد اقصی ته بوتلل سو نو د اسراء او معراج د سفر پيل په اصل کي د بي بي ام هانئ د کور څخه وسو چي رسول الله ﷺ خپل کور په دې اعتبار ورته وويل چي رسول الله ﷺ په هغه شپه په هغه کور کي مقيم وو.

او بيا زما سينه په يو ځای کولو سره برابره کړل سول، د شق صدر په اړه وضاحت په تېر

سوي فصل کي تېر سوی دی هلته چي د حديث کوم الفاظ وه د هغو څخه دا ظاهرېږي چي د رسول الله ﷺ زړه مبارک د سرو زرو په تالی کي پرېولل سو او د هغه وروسته د علم او ايمان څخه ډک کړل سو مګر دلته چي د حديث کوم الفاظ دي د هغو څخه دا معلومېږي چي مخکي د رسول الله ﷺ سينه مبارکه د زمزم په اوبو سره پرېولل سول او بيا د ايمان او حکمت څخه ډکه تالی راوړل سول او د هغه په سينه کي چپه کړل سول، په دغه دواړو خبرو کي ژور اختلاف نسته ، د پېښي ترتيب دا وو چي د رسول الله ﷺ سينه مبارکه څيري کړل سول بيا د زړه مبارک په راکښلو سره د زمزم په اوبو پرېولل سو بيا د ايمان او حکمت څخه ډکه تالی راوړل سول او په هغه ايمان او حکمت سره د رسول الله ﷺ زړه مبارک ډک کړل سو .

تر دې وروسته حضرت جبرائيل ؈ زما لاس ونيوی او زه يې آسمان ته وخېژولم، دلته نه خو د براق راوستلو او پر هغه باندي د رسول الله ﷺ د سپرتيا ذکر دی او نه مسجد اقصی ته د بېولو ذکر دی ، ځکه ځينو حضراتو دا رايه قائمه کړې ده چي اسراء او معراج دوې بېلي پېښي دي او دواړي پېښي په بېلو شپو کي رامنځته سوې ده او د براق سپرلی د اسراء په شپه وه حال دا چي د معراج په شپه کي د زينې په ذريعه آسمان ته تللی دی .

او دغه خلک چي د هغه راسته او چپه خوا ته ناست دي د هغه د اولاد روحونه دي، په دې اړه شارحينو ليکلي دي چي نقل سوي دي چي د مؤمنانو روحونه په عليين کي آرام کوي او د کافرانو روحونه په سجين کي بنديان دي، دلته دا سوال پيدا کيږي چي هغه ټول روحونه په يو ځای کي يعني په آسمان کي د حضرت آدم ؈ راسته او چپه خوا ته څرنګه جمع سول، ددې جواب دادی چي کېدای سي په يو ټاکلي وخت کي دغه روحونه د حضرت آدم ؈ په وړاندي راوړل کيږي او رسول الله ﷺ چي ددنيا آسمان ته ورسېدی او د حضرت آدم ؈ سره يې ولېدل نو دا هغه وخت وو چي کله ټول روحونه د حضرت آدم ؈ په وړاندي راوستل سوي وه او دا هم کېدای سي چي رسول الله ﷺ د معراج په شپه کي د حضرت آدم ؈ راسته او چپه خوا ته کوم روحونه ليدلي وه هغه د هغه خلکو وه چي تر هغه وخته پوري په دنيا کي نه وه پيدا سوي او هغه روحونه خپل خپل اجسامو ته نه وه تللي، او کېدای سي چي ددغه دواړو د اوسېدو ځای د حضرت آدم ؈ راسته او چپه خوا وي، او حضرت آدم ؈ د هغه روحونو په انجام خبر وو چي کوم روحونه راسته خوا ته دي هغوئ په دنيا کي د نيکو اعمالو او نيکي عقيدې په درلودلو سره جنت ته ځي او کوم روحونه چي چپه خوا ته دي هغوئ په دنيا کي د خرابو عقېدو او بدو عملونو په اختيارولو سره دوږخ ته ځي .

او د حضرت ابرهيم عليه السلام سره په شپږم آسمان کي د ليدني يادونه يې وکړل، د حضرت شهاب رحمة الله عليه دغه روايت چي دا مفهوم ځيني اخيستل کيږي چي د معراج په شپه کي د حضرت ابراهيم عليه السلام د رسول الله ﷺ لېدنه په شپږم آسمان کي سوې وه ، دا د هغه روايت مطابق دی چي د حضرت انس عليه السلام څخه يو بل راوي حضرت شريک نقل کړی دی، ددغه روايتو څخه ماسوا د نورو ټولو روايتو څخه دا ثابتيږي چي د حضرت ابراهيم عليه السلام سره ليدنه په اووم آسمان کي سوې وه که دا وويل سي چي د معراج پېښنه تر يو وار زيات پېښنه سوې ده نو په دغه صورت کي د متضادو روايتو څخه سوال نه پيدا کيږي مگر سوال هغه وخت پيدا کيږي کله چي دا وويل سي چي د معراج پېښنه يو وار پېښنه سوې ده لکه چي مشهور او معتمد قول دی ، په دغه صورت کي به د سوال جواب دا وي چي د معراج په اړه تر ټولو زيات قوي او صحيح روايت هغه دی چي په هغه کي بيان سوی دی چي رسول الله ﷺ د معراج په شپه کي حضرت ابراهيم عليه السلام وليدی نو هغه د بيت المعمور سره شالګولې ناست وو او دا خبره بېله اختلافه ثابته ده چي بيت المعمور په اووم آسمان کي دی ، ددې څخه ماسوا دلته راوي ويلي دي چي رسول الله ﷺ ټولو آسمانو ته د رسېدو او هلته د حضرت آدم عليه السلام او حضرت ادريس عليه السلام او نورو سره د ليدني ذکر وفرمايه مگر دهغه منازل او مقامات يې بيان نه کړل ، ددې څخه دا خبره ثابتيږي چي راجح او د باور وړ روايت هغه ګرځول کيږي چي په هغه کي د هر نبي او رسول په اړه وضاحت ذکر دی چي د کوم نبي سره په کوم آسمان کي ليدنه وسول، خلاصه دا چي د آسمانو په تعين او د نبيانو سره د ليدني په اړه په حديثو کي اختلاف تر لاسه کيږي او هغه اختلاف د راويانو د اشتباه په وجه دی او داهم کېدای سي چي رسول الله ﷺ د حضرت ابراهيم عليه السلام سره په شپږم آسمان کي هم ليدلي وي او په اووم آسمان کي هم، ځکه په ځينو روايتو کي په شپږم آسمان کي د ليدني يادونه ده او په ځينو روايتو کي په اووم آسمان کي دليدني يادونه ده .

چي هلته د قلمونو د ليکني آواز راتلی، دا د صريف الاقلام يادونه ده، صريف الاقلام د قلم هغه آواز ته وايي چي د ليکني په وخت کي پيدا کيږي، مطلب دا چي رسول الله ﷺ ته نور عروج وسو نو هغه لوړ مقام ته ورسېدی چيري چي د قضاء او قدر قلم بوخت وو، ملائکي د الهي چارو په لېکنه او د الله جل جلاله د احکامو د لوح محفوظ څخه په نقل کولو بوخت وې .

ځينو محققينو علماؤ د حديث ددغه جملې په وضاحت کي ليکلي دي چي د رسول الله ﷺ د ارشاد مقصد دادی چي ددغه تګ عروج په دوران کي هغه ځای ته بوتلل سو چيري چي د مرتبې د رفعت په سبب هغه ځای ته رسېدل هم په برخه سول چي د کائناتو د نظام قدرت، الهي

احكامو د صدرو او د مخلوق د ټول نظم ښيله تشبيه مركزي دفتر او صدر مقام دی، هغه ځای ته د رسول الله ﷺ څخه وراندي هيڅوا ته تګ په برخه سوی نه دی، پاته سوه دا خبره چي هغه قلمونه څرنګه وه او د هغه شكل څه وو، نو ددي علم د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ څخه ماسوا بل چا ته معلوم نه دی، په دې اړه پلټنه كول پالتو دي، د قلم د حقيقت په اړه دا ښودل ضروري دي چي دا د هغه شي نوم دی چي د هغه څخه نقشونه او حروف پيدا كيږي او د هغه حقيقيت او حيثيت هر څه كېدای سي، د يو نوک لرونكي قلم په حقيقت كي داخل نه دی ځينو خلكو دلته د قلم په وضاحت كي د تاويل طريقه اختيار كړې ده او د هغه ظاهري معنى يې نه ده اخيستې مګر دا غير مناسب خبره ده، يوازي په اعتقادي لحاظ د تاويل ګنجائش نسته، قلم د هغه پر ظاهري معنى محمول كول پكار دي او د قلم د وجود عقيد درلودل ضروري دي او دا چي د هغه قلم د حقيقت او كيفيت عمل الله ﷻ ته وسپارل سي.

زما قول نه بدليږي، د دغه الفاظو دوې معناوي كېدای سي يو خو دا چي ما د اجر او ثواب په اعتبار پنځه لمونځونه د پنځوسو لمونځو برابر كړه او په دې كي به هيڅ تبديلي نه وي او دوهم دا چي ستا په وار وار ويلو سره ما د پنځوسو لمونځو پر ځای پنځه لمونځونه كړي دي او اوس به په دې كي څه كمي نه وي.

اوس زه د خپل پروردګار څخه شرمېږم، د رسول الله ﷺ مقصد دا وو چي كله الله ﷻ وفرمايل چي اوس په دې كي هيڅ تبديلي نسته نو بيا د هغه په دربار كي حاضرېدل او د نوري كمي درخواست كول د حياء خلاف دی، ددې څخه ماسوا ددې خبري څخه هم د رسول الله ﷺ شرم محسوس سو چي تر اوسه پوري مي د دومره كمی درخواست كړی دی او هر وار په رخصت اخيستلو سره راغلی يم او بيا په درخواست وړلو سره ورځم، نو رسول الله ﷺ، حضرت موسی ؑ ته په دا که وويل چي اوس زه د كمي خواست كولو لپاره نه ځم.

هلته ما د غميانو ګنبده ولېدل، د مسلم په يوه روايت كي داسي بيان سوی دی چي ما د جنت لېدنه كول چي ناڅاپه مي يوه وياله ولېدل چي د هغه پر دواړو څونډو باندي لوی لوی د غميانو ګنبدي وې، او دا مي هم ولېدل چي د جنت خاوره مشک وه او د هغه خوشبويي داسي وه لكه چي د مشكو خوشبويي، يا دا چي د جنت خاوره په اصل كي مشک ده او د هغه خوشبويي دومره زياته ده چي په يو حديث كي فرمايل سوي دي چي د جنت خوشبويي د پنځه سوه كالو مسافت پوري رسيږي.

## سدرة المنتهى

﴿٥٦١٥﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مسعود قال لَمَّا أُسْرِيَ بِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله رسول الله ﷺ د شپې بوتلل سو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْتُهِيَ بِهِ إِلَى سِدْرَةِ الْمُنْتَهَى وَهِيَ فِي السَّمَاءِ السَّادِسَةِ إِلَيْهَا

نو سدرة المنتهی ته ورسول سو او سدرة المنتهی په شپږم آسمان کي ده او د مځکي څخه چي

يَنْتَهِي مَا يُعْرَجُ بِهِ مِنَ الْأَرْضِ فَيُقْبَضُ مِنْهَا وَإِلَيْهَا يَنْتَهِي مَا يُهْبَطُ بِهِ مِنْ

کوم شی پورته ویوړل سي هغه تر دې سدرة المنتهی پوري رسيږي او د دې ځای څخه هغه بلاواسطه پورته وړل کيږي او که يو شی

فَوْقِهَا فَيُقْبَضُ مِنْهَا قَالَ إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَى قَالَ فَرَاشٌ مِنْ ذَهَبٍ

د لوړه څخه راکښته کيږي نو هم دغه درختي ته راورسيږي، د دې څخه وروسته ابن مسعود دا آيت تلاوت کړ: (اذ يغش السدرة .......) هغه وخت چي پټه کړه سدره لره کوم شی چي پټه

قَالَ فَأُعْطِيَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثًا أُعْطِيَ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَ

کړه، او ويلي دي رسول الله ﷺ هغه شی چي سدرة المنتهی يې پټه کړې ده د سروزرو پتنګان دي، د دې څخه وروسته ابن مسعود بيان وکړ چي

وَأُعْطِيَ خَوَاتِيمَ سُورَةِ الْبَقَرَةِ وَغُفِرَ لِمَنْ لَمْ يُشْرِكْ بِاللّٰهِ مِنْ أُمَّتِهِ شَيْئًا الْمُقْحِمَاتُ. رواه مسلم.

د معراج په شپه رسول الله ﷺ ته درې شيان ورکړل سول: پنځه لمنځونه، د سورة بقرې آخري اياتونه ورکړل سول، او د امت محمدي لوی ګناهونه معاف کړل سول . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ١\١٥٧، رقم: ٢٧٩ - ١٧٣.

**د لغاتو حل**: المقحمات: اي الكبائر المهلكات. (لوی ګناهونه)

**تشريح**: سدرة المنتهی په شپږم آسمان کي ده، د دغه جملې په اړه ځينو شارحينو ويلي دي چي دا د يو راوي وهم دی يعني په اصل حديث کي د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه سدرة المنتهی په

اووم آسمان کي ذکر سوې ده مګر د هغه وروسته يو راوي په غلط فهمۍ سره يا په هېره د شپږم آسمان ذکر وکړ، تحقيقي خبره داده چي سدرة المنتهى په اووم آسمان کي ده، جمهورو راويانو دا نقل کړي دي، قاضي رحمة الله عليه وويل: دا خبره زياته صحيح ده چي سدرة المنتهى په اووم آسمان کي ده د اکثرو علماؤ او محققينو همدغه قول دی، يو بل لوی محقق او محدث خليل ويلي دي: سدرة المنتهى په اووم آسمان کي ده چي پر ټولو آسمانو او جنت باندي خپره سوې ده، امام نووي رحمة الله عليه ويلي دي: که چيري دا ومنل سي چي په دغه حديث کي د شپږم آسمان ذکر د يو راوي وهم نه دی بلکه د روايت اصل الفاظ دي نو په دغه صورت کي د دغه روايت او د هغه روايتو چي په هغو کي سدرة المنتهى په اووم آسمان کي ذکر دی، داسي مطابقت پيدا کړل سي چي د سدرة المنتهى ريښې په شپږم آسمان کي دي ځکه پر هغه د شپږم آسمان ذکر سوی دی، د سدرة المنتهى اصل ظهور او ښاخونه په اووم آسمان کي دي ځکه په ډېرو روايتو کي داسي ذکر سوي دي چي هغه په اووم آسمان کي ده.

هغه پر دغه سدرة المنتهى باندي ختميږي ...الخ: ددغه ټول عبارت مطلب دادی چي د مځکي څخه کوم شيان يعني د بندګانو اعمالو او دهغوئ روحونه د ملائکو په ذريعه لوړ وړل کيږي هغه ټول پر دغه سدرة المنتهى باندي درول کيږي، تر دې وړاندي ملائکو ته د تللو اجازه نسته ځکه د دغه ځای څخه هغه شيان د ملائکو پرته الله جل جلاله په خپل قدرت سره پورته کوي، همدارنګه کوم شيان چي د الله جل جلاله څخه پر مځکه نازليږي لکه اوامر، احکام، هغه ټول د لوړي خوا څخه په راتللو سره پر سدرة المنتهى باندي دريږي او هلته متعين ملائکي هغه شيان اخلي او لاندي يې رسوي، نو د مخلوق د علومو او د ملائکو د عروج آخري حد سدرة المتهى ده ددې څخه مخکي او د لوړ اجازه مقربو ملائکو ته هم نسته، دا يوازي زموږ د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم ذات دی چي د سدرة المنتهى څخه هم د مخکي تللو شرف ور په برخه سو، بلکه رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه مقام ته تشريف يووړ چي د لامکان څخه هم ماوراء دی.

هغه وخت چي سدرة المنتهى يې پټه کړل کوم شی چي پټه کړل، دا د دغه آيت کريمه (اذ يغشى السدرة ...الخ) ژباړه ده، چي حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د سدرة المنتهى د ذکر په مناسبت ووايه، يعني الله جل جلاله هم دغه شی مبهم وساتی کوم شی چي سدرة المنتهى پټه کړې ده او په دې کي دې ته اشاره ده چي هغه يو داسي شی دی چي د هغه په حقيقت هيڅوک نه سي پوهېدلای او نه څوک دا ښودلای سي چي هغه شی په مقدار او شمېر کي څومره دی او د کيفيت په اعتبار څرنګه دی او د مبهم انداز بيان مقصد د هغه شی مقصد او کثرت بيانول دی او په

مخکني حدیث کي د رسول الله ﷺ ددغه الفاظو (لا ادري ما هیئته) زه نه پوهېږم چي د هغه هیئت څه وو، څخه هم دا مراد دی، نه دا چي واقعي د علم او ادراک نفي مراد ده، په یو بل روایت کي د سدرة المنتهی په اړه دا راغلي دي چي د هغې پر هره پاڼه یوه ملائکه ولاړه ده چي د الله جل جلاله په تسبیح کي بوخته ده او په یوه روایت کي داسي دي چي د هغه پر ښاخونو او پاڼو باندي شنه مرغان جمع دي، ځینو حضراتو ویلي دي چي هغه شنه مرغان په اصل کي د انبیاء علیهم السلام او اولیاء الله روحونه دي.

هغه شی د سرو زرو پتنګان دي، د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه د هغه شي د سرو زرو په پتنګانو سره تعبیر کول د هغه حقیقت او ماهیت بیانولو لپاره نه دي چي هغه شی په حقیقت کي د سروزرو پتنګان دي بلکه دا خو هغه محض د تشبیه په توګه ذکر کړي دي، مطلب دا چي بې شمېره ملائکي پر سدرة المنتهی باندي تاکل سوي دي، د هغوئ د پېنو ځلا داسي معلومېږي لکه د سروزرو پتنګانو چي سدرة المنتهی پټه کړې وي او په دغه تعبیر کي د فراش استعمال پر سدرة باندي د نازلېدونکي نور اقدس حق تعالی په اړه د هغه ملائکي حیراني او سرګرداني ته اشاره کوي، په یوه روایت کي د جراد من ذهب، د سرو زرو د ملخانو الفاظ هم راغلي دي او دا هم د تمثیل او تشبیه په توګه دي ځکه کله چي ملخان پر یوې درختي باندي ودرېږي نو سربېره تړوله درخته د هغه لاندي پټه سي، همدارنګه د من ذهب الفاظ هم د ځلا څخه کنایه ده او کېدای سي چي ددغه الفاظو ظاهري او حقیقي معنی مراد وي یعني هغه پتنګان یا ملخان په حقیقت کي د سرو زرو وي ځکه چي د الله جل جلاله د قدرت څخه هیڅ شی وتلی نه دی.

د معراج په شپه رسول الله ﷺ ته دري شیان ورکړل سول، حقیقت دادی چي په دغه شپه کي علم او عمل، معرفت او حقائق د اسراء، فیوض او انورو برکاتو د ډول څخه دي چي عظیمي خزانې رسول الله ﷺ ته ورکړل سوې، د هغه لامحدودیت د حصر او شمار څخه لوړ دی، دغه درې شیان خو حضرت ابن مسعود رضی الله عنه هغه بیان کړي دي چي د امت د تعلق څخه خاص شرف او کرامت لري او د هغه د خاص ارزښت په اعتبار د هغو ذکر کېدل ضروري هم وه.

د سورة بقرې آخري آیاتونه ورکړل سول، دلته د آمن الرسول څخه تر پایه پوري آیاتونه مراد دي، او د معراج په شپه ددغه آیاتونو د ورکول کېدو مطلب دادی چي الله جل جلاله ددغه دعاګانو د قبولیت پروانه ورکړل کوم چي په دغه آیاتو کي مذکور دي، نو دا روایت د هغه روایت خلاف نه دی چي په صحیح مسلم او نورو کتابو کي منقول دي چي یوه ورځ حضرت جبرائیل علیه السلام د رسول الله ﷺ سره ناست وو چي هغه ناڅاپه د دروازې خلاصېدو آواز واورېدی، حضرت جبرائیل علیه السلام

لوړ وکتل او بیا یې وویل: دا یوه ملائکه ده چې د نن څخه مخکې هیڅکله مځکې ته نه وه راغلې ، ددې وروسته هغه نوي ملائکي رسول الله ﷺ ته سلام وکړ او رسول الله ﷺ ته یې وویل: تاسو ته دي مبارک وي ، ما دا زیری راوړی دی چې تاسو ته هغه دوه نورونه درکړل سوي دي چې ستاسو څخه مخکې هیڅ نبي ته نه دي ورکړل سوي، یو خو فاتحة الکتاب یعني سورة فاتحه او دوهم د سورة بقره آخري آیاتونه، تاسو چې ددغه دواړو څخه کوم حرف وایاست د هغه په عوض به ونازول سئ ، ګویا د معراج په شپه ددغه آیاتونه ورکول د هغه الهي ورکړي یوه برخه وه چې په هغه سره په دغه ارزښتناک وخت کي نازول سوی دي او د هغه یو یادګار پنځه لمونځونه دي، د مسلم او نورو په دغه روایت کي چې څه بیان سو یدي د هغه مقصد دادی چې د ملائکي د آسمان څخه راکښته کېدل رسول الله ﷺ ته د معراج په شپه کي د ورکړل سوي دغه آیاتونو ارزښت او فضیلت څرګندولو او زیري ورکولو لپاره وو چې رسول الله ﷺ ته تر ټولو لوی شی ورکړل سوی دی، د رسول الله ﷺ څخه مخکي هیڅ نبي ته نه دی ورکړل سوی، په دغه صورت کي د دواړو روایتو په منځ کي سوال نه پیدا کیږي،

مګر دلته یو مشکل پیدا کیږي چې سورة بقره هغه سورت دی چې مدني ورته ویل سوي دي یعني دغه سورت په مدینه منوره کي نازل سوی دی حال دا چې د معراج پېښه د هجرت څخه مخکي د مکې مکرمې د هستوګني په وخت کي رامنځته سوې ده ، په نورو الفاظو د سورة بقره د آیاتونو د معراج په شپه کي د ورکول کېدو مطلب دا سو چې دغه آیاتونه مدني نه دي بلکه مکي دي، ددې جواب محدثینو او شارحینو دا ورکړی دی چې سورة بقره ته په دې لحاظ مدني نه دي ویل سوي دي چې د پیل څخه تر پایه پوري ددغه سورت ټول آیاتونه په مدینه کي نازل سوي دي بلکه په دې اعتبار ورته ویل سوي دي چې ددغه دواړو آیاتو څخه پرته نور ټول آیاتونه په مدینه کي نازل سوي دي .

ابن ملک رحمة الله علیه د حسن، ابن سیرین او مجاهد رحمة الله علیهم څخه دا قول نقل کړی دی چې الله جل جلاله د سورة بقره وحي د حضرت جبرائیل علیه السلام څخه پرته د معراج په شپه په خپله ورکړي دي،د دې مطلب دا سو چې ددغه حضراتو په نزد ټول سورة بقره مکي دي مګر د جمهورو مفسرینو او محدثینو قول دادی چې دغه ټول سورت مدني دی او ددغه قول په رڼا کي ددغه روایت مفهوم چې د سورة بقره آخري آیاتونه د معراج په شپه کي ورکړل سول، ددې دا وضاحت وکړل سي چې د ورکول کېدو مطلب دا نه دي چې بذات خود دغه آیاتونه د معراج په شپه کي رسول الله ﷺ ته ورکړل سول بلکه مطلب دادی چې د آیاتونو الفاظ (غفرانک ...ترپایه) چې

کومه دعاء تقلین کړل سوې ده ، رسول الله ﷺ او ددغه آیاتونو ویونکو په حق کي ددغه دعاء د قبلېدو فضیلت د معراج په شپه کي ورکړل سو .

او د رسول الله ﷺ د امت څخه د هغه سړي د لویو ګناهو معافي ورکړل سول...الخ، ددې مطلب دادی چي د معراج په شپه د امت د بخښني وعده وسول یعني دا چي الله ﷻ چا ته وغواړي بېله عذابه یې هم وبخښي که څه هم هغه د ګناه کبیر کونکی وي مګر شرط دادی چي هغه شرک نه وي کړي ، الله ﷻ وفرمایل: (ان الله لایغفر ان یشرک به ویغفر ما دون ذلک لمن یشاء)، الله ﷻ هغه ګناه نه بخښي چي څوک د هغه سره شریک جوړ کړل سي او ددې څخه ماسوا (نوري ګناوي) کله چي وغواړي بخښي یې .

نو د حدیث ددغه جملې څخه دا ګڼل نه دي پکار چي د لویو ګناهو کونکي ته څرګنده معافي ورکړل سول او هیڅ مؤمن او موحد به د عذاب سره مخامخ نه سي ځکه چي ددغه مؤمنانو او مؤحدینو په عذاب کي اخته کېدل چي د لویو ګناهو کونکي وي ، په نصوص شرعیه او اجماع ثابت دي ، پاته سو دا سوال که چیري د لویو ګناه کونکي د بخښني تعلق د الله ﷻ د رضا سره دی نو بیا په حدیث کي ددې ذکر ولي ونه سو؟ ددې جواب دادی چي د مغفرت انحصار د الله ﷻ پر خوښه کېدل یوه څرګنده خبره ده چي د هغه علم د مخکي څخه ټولو ته حاصل دی ځکه د الله ﷻ د خوښي د ذکر کولو اړتیا محسوس نه کړل سول ، ابن حجر رحمة الله علیه دا لیکلي دي چي د لویو ګناهو د بخښني څخه مراد دادی چي په مؤمنانو کي هیڅوک د تل لپاره په دوږخ کي نه ساتل کیږي که څه هم هغه هر څومره لوی ګناه کړې وي ، حال دا چي مشرکان به تل په دوږخ کي وي مګر ملا علي قاري رحمة الله علیه د ابن حجر رحمة الله علیه پر دغه خبره باندي وار کړی دی ، دهغه وینا ده چي په دغه صورت کي نه خو ددغه امت ځانګړتیا پاته کیږي او نه د هغه د مرتبې لوړوالی څرګندیږي. نو دا ویل زیات مناسب معلومیږي چي د بخښني څخه مراد د امت محمدیه زیاتو کسانو ته د بخښني ورکول دي یعني د نورو امتونو په مقابله کي دغه ځانګړتیا به د رسول الله ﷺ امت ته تر لاسه وي چي د هغه د امت زیات خلک به د خاص رحمت په وجه وبخښل سي او دوئ ته به عذاب نه ورکول کیږي او په دې اعتبار دغه امت ته امت مرحومه ویل سوي دي .

## د قریشو پر سوال باندي بیت المقدس د رسول الله ﷺ مخته راوستل سو

﴿۵۶۱۶﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

رَأَيْتُنِي فِي الْحِجْرِ وَقُرَيْشٌ تَسْأَلُنِي عَنْ مَسْرَايَ فَسَأَلَتْنِي عَنْ أَشْيَاءَ مِنْ

ما خپل ځان په حجر (حطيم) كي وليدى په داسي حال كي چي زه ولاړ يم او قريشو زما څخه شب معراج ته زما دتلو حال وغوښتى هغوئ زما څخه

بَيْتِ الْمَقْدِسِ لَمْ أُثْبِتْهَا فَكُرِبْتُ كُرْبَةً مَا كُرِبْتُ مِثْلَهُ فَرَفَعَهُ اللهُ لِي أَنْظُرُ

د بيت المقدس شيان او نښو پوښتني كولې چي ما ته ياد نه وه ، ددې سره زه ډير غمگين او پريشانه سوم چي دومره غمگين او پريشانه هيڅكله نه وم سوى نو الله تعالى بيت المقدس

إِلَيْهِ مَا يَسْأَلُونِي عَنْ شَيْءٍ إِلَّا أَنْبَأْتُهُمْ وَقَدْ رَأَيْتُنِي فِي جَمَاعَةٍ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ

پورته كړ او هغه زما مخته راغلى ما هغه ته كتل او هغوئ چي زما څخه كومي پوښتني كولې د هغو جواب به مي وركوى او ما خپل ځان په شب معراج كي د انبياؤو په ډله كي وليدى

فَإِذَا مُوسَى قَائِمٌ يُصَلِّي فَإِذَا رَجُلٌ ضَرْبٌ جَعْدٌ كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوءَةَ وَإِذَا

ما ناڅاپه وليدل چي موسى عليه السلام ولاړ دى لمونځ كوي ما وليدل چي موسى عليه السلام د يو متوسط قد سړى دى غونډ بدن ولول وريښتان لكه د قبيله شنوءيو سړى دى ،

عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ عَلَيْهِ السَّلَام قَائِمٌ يُصَلِّي أَقْرَبُ النَّاسِ بِهِ شَبَهًا عُرْوَةُ بْنُ

ناڅاپه زما نظر پر عيسى عليه السلام پريوتى چي ولاړ وو لمونځ يې كوى په شكل او صورت كي د هغه سره زيات مشابه عروه بن

مَسْعُودٍ الثَّقَفِيُّ وَإِذَا إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلَام قَائِمٌ يُصَلِّي أَشْبَهُ النَّاسِ بِهِ

مسعود ثقفي دى ، بيا ما ناڅاپه ابراهيم عليه السلام پر لمانځه وليدى چي د هغه سره ستاسو دوست

صَاحِبُكُمْ يَعْنِي نَفْسَهُ فَحَانَتِ الصَّلَاةُ فَأَمَمْتُهُمْ فَلَمَّا فَرَغْتُ مِنَ الصَّلَاةِ

(يعني خپله رسول الله ﷺ) زيات مشابه دى بيا دلمانځه وخت سو او زه د هغوئ ټولو امام جوړ سوم كوم وخت چي ما لمونځ وركړ نو

قَالَ قَائِلٌ يَا مُحَمَّدُ هَذَا مَالِكٌ خَازِنِ النَّارِ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ فَالْتَفَتُّ إِلَيْهِ فَبَدَأَنِي بِالسَّلَامِ .رواه مسلم.و هذا الباب خال عن الفصل الثاني.

يو سړي ما ته وويل اې محمد ﷺ! دا د دوزخ ساتونکی موجود دی ده ته سلام وکړه ما هغه ته وکتل نو هغه را باندې په سلام کې مخکې سو. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۱۵٦، رقم: ۲۷۸- ۱۷۲.

**د لغاتو حل**: ضرب: ای نوع وسط (درمیانه)

**تشريح**: ما خپل ځان د نبیانو په ډله کې ولېدی، دغه خبره رسول الله ﷺ د هغه وخت کړې ده کله چې د معراج په شپه د مکې څخه روان سو او آسمانو ته د تللو څخه مخکې بیت المقدس ته ولاړی، د علماؤ او محققینو په اتفاق وینا ده چې دغه لېدل د هغه د لېدو څخه ماسوا دي کوم چې په آسمانو کې وو، مطلب دا چې یو وار خو رسول الله ﷺ، نبیان په مسجد اقصی کې هغه وخت ولېدل کله چې رسول الله ﷺ آسمانو ته د تللو څخه مخکې بیت المقدس ته ولاړی او بیا یې هغه نبیان په آسمانو کې ولېدل او د هغوئ سره یې لیدنه وکړل، او ځینو حضراتو ویلي دي چې د نبیانو په آسمانو کې لېدل د هغوئ پر روحو محمول دی یعني هغه نبیان په آسمان کې د خپلو جسمو سره نه وه بلکه د هغوئ روحونه هلته راجمع سوي وه مګر د حضرت عیسی علیه السلام ذات مستثنی دی ځکه چې د هغه په اړه دا ثابته ده چې هغه د خپل بدن سره آسمان ته خېژول سوی دی او هلته موجود دی، همدارنګه ځینو حضراتو د حضرت ادریس علیه السلام په اړه هم دا ویلي دي، پاته سوه د مسجد اقصی خبره چې هلته لمونځ کول پر کوم صورت باندې محمول دي، نو دا هم کیدای سي چې محض د هغوئ روحونو لمونځ کړی وي او دا هم کېدای سي چې هغوئ د خپلو بدنو او روحو سره لمونځ کړي وای،

دغه دوهم احتمال هغه قیاس ته نژدې دی چې نبیان د خپل پروردګار په نزد ژوندي دي او الله جل جلاله د نبیانو بدنونه خوړل پر مځکه حرام کړي دي، یعني د الله جل جلاله په حکم سره مځکه د نبیانو بدن نه خوري او هغوئ په خپلو قبرو کې همدارنګه موجود دي او د هغوئ بدن د عامو بدنونو په ډول کثیف نه دي بلکه د روحونو په ډول لطیف دي، نو د قادر مطلق الله جل جلاله د قدرت په وجه په ملکوت کې چیرې چې د هغوئ په حاضرېدو او جمع کېدو کې یو شی مانع نه دی خپله د حدیث هغه الفاظ هم چې په هغه کې د حضرت موسی او عیسی علیهما السلام د لمانځه کولو

یادونه ده ، ددې خبري تائید کوي چي انبیاء علیهم السلام د لمانځه کولو پر وخت په بیت المقدس کي د خپلو بدنو او روحو دواړو سره موجود وه، ځکه چي د لمانځه مقصد دادی چي هغه مختلف افعال چي د بدن په اندامو صادریږي نه محض په روح سره ،

دلته یو سوال پیدا کیږي چي کله رسول الله ﷺ هغه نبیان په مسجد اقصی کي په لمانځه کولو لیدلي وه بلکه هغوئ ته یې لمونځ ورکړی وو نو بیا یې هغوئ په آسمانو کي څرنګه ولېدل؟ ددې جواب دادی چي مخکي هغه نبیان په مسجد اقصی کي په رسول الله ﷺ پسي لمونځ وکړ او بیا هغوئ د رسول الله ﷺ د ښه راغلاست او تکریم لپاره آسمانو ته ورسول سول، یا دا چي په مسجد اقصی کي د لمانځه کولو وروسته د هغوئ روحونه په آسمانو کي متشکل کړل سول چي رسول الله ﷺ هلته ملاقات ورسره وکړ، مګر حضرت عیسی علیه السلام او حضرت ادریس علیه السلام د خپلو بدنو سره په آسمانو کي وه او دا هم کېدای سي چي هغه نبیانو ته د رسول الله ﷺ د لمانځه ورکولو او د هغوئ سره د جمع کېدو پېښه د سدرة المنتهی څخه د ستنېدو وروسته پېښه سوې وي مګر په دې اړه صحیح خبره داده چي الله جل جلاله قادر مطلق دی د هغه د قدرت څخه هیڅ شی وتلی نه دی هغه چي څرنګه وغوښتل د خپل قدرت کړنه یې ظاهره کړل ، که اولیاء الله په ډېرو صورتو سره په مختلفو ځایو کي خلګ لیدلای سي نو د انبیاؤ سره د داسي صورت په پېښېدو کي څه لیري والي دی او خوارق عادات یعني د معجزو او کراماتو مطلب هم دادی چي کوم شی په عقل او قیاس کي راتلای نه سي هغه د الله جل جلاله په قدرت سره څرګند سي .

حضرت موسی علیه السلام یو میانه قده سړی معلومیدی، دلته میانه قد د جعد معنی ده ، ددغه لفظ په لغت کي مختلفي معناوي دي چي په هغو کي یوه معنی د میانه قد ده، دوهم د سپک یعني ګردي، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي حضرت موسی علیه السلام د ټینګ بدن خاوند وو او دریم د پېچلو وېښتانو والا، مګر څرنګه چي ځینو حضراتو ویلي دي ددغه دریمي معنیٰ اطلاق پر حضرت موسی علیه السلام مناسب نه دي ځکه چي د نورو روایتو څخه ثابته ده چي د حضرت موسی علیه السلام وېښتان پېچل سوي نه وه بلکه د سېده وېښتانو خاوند وو .

کله چي د لمانځه وخت سو نو زه د هغوئ ټولو امام سوم، دلته د هغه نبیانو په مسجد اقصی کي جمع کېدل او لمونځ کول دې خبري ته اشاره کوي چي لمونځ په اصل کي د مؤمن معراج دی یعني دا هغه عبادت دی چي بنده د خپل خالق سره یو ځای کوي او د عبودیت تر ټولو لویه مرتبه ورکول کیږي ځکه چي د خپل رب په وړاندي حضور او د پروردګار د قرب حالت په دغه عبادت سره تر لاسه کیږي او دغه حالت د عاشقانو په نزد تر ټولو لوی خوند او تر ټولو

زیات کیف لرونکی وي، د حدیث د الفاظو څخه په ښکاره دا معلومیږي چي رسول الله ﷺ هغه نبیانو ته لمونځ د آسمان څخه تلو مخکي په بیت المقدس کي ورکړی دی او دا هم کېدای سي چي د هغه نبیانو لمونځ کول او د رسول الله ﷺ د امامت پېښه پر آسمان باندي هم پېښه سوې ده ، که څه هم د حدیث الفاظ دې ته اشاره نه کوي بلکه د دغه پېښي په بیت المقدس کي پېښېدل مراد اخیستل کیږي او د دغه لمونځ چي امامت يې رسول الله ﷺ وکړ یا د تحیې لمونځ وو یا د معراج په مناسبت سره هغه خاص لمونځ وو چي یوازي په هغه وخت کي وکړل سو، دلته هم دا سوال پیدا کیږي چي د مکې څخه تر بیت المقدس پوري او د هغه ځای څخه تر آسمانو پوري د معراج ټوله پېښه د دغه دنیا څخه ماوراء د عالم ملکوت سره تعلق لري او هغه د عالم عبادات او اعمالو هیڅ ذمه داري او مسئولیت نه عائد کوي نو بیانبیانو لمونځ ولي وکړ، ددې جواب دادی چي لومړی خو ټول انبیاء علیهم السلام د خپل حقیقي ژوند سره ژوندي دي او کله چي هغوئ ژوندي دي نو ځکه کېدای سي چي هغوئ د لمونځ د ادا کولو مکلف ګرځول سوي وي ، دوهم دا چي په دغه عالم کي د لمانځه یا بل عبادت وجوب بېله شکه پورته سوی دی مګر د هغه وجود نه دی پورته سوی.

مګر په سلام کولو کي هغه وړاندي سو، یعني د رسول الله ﷺ شان رحمت د دوږخ پر اور او د دوږخ پر څارونکو باندي غالب دی نو د رسول الله ﷺ د دغه لوړوالي او غوره والي په وجه د دوږخ څارونکي په وړاندي کېدو سره سلام وکړ ، په ښکاره دا معلومیږي چي دغه پېښه په آسمان کي رامنځته سوې ده لکه چي د ژباړي په دوران کي هم اشاره وسول.

وهذا الباب خال عن الفصل الثاني = په دې باب کي دویم فصل نسته

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### بیت المقدس د رسول الله مخته راوستل سو

﴿۵۶۱۷﴾: عَنْ جَابِرٍ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَمَّا كَذَّبَتْنِي قُرَيْشٌ قُمْتُ فِي الْحِجْرِ فَجَلَا اللّٰهُ لِي بَيْتَ الْمَقْدِسِ فَطَفِقْتُ أُخْبِرُهُمْ عَنْ آيَاتِهِ وَاَنَا اَنْظُرُ اِلَيْهِ. متفق عليه.

د حضرت جابر ﷺ څخه روایت دی چي هغه د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي هر کله چي قریشو د

معراج په اړه زه د رواغجن وبللم نو زه په مقام حجر کي ودريدم او الله تعالی بيت المقدس زما نظر ته مخامخ کړ ما بيت المقدس ته کتل او هغوئ ته به مي جواب ورکوی. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۹۶۱۷، رقم: ۳۸۸۶، ومسلم ۱۵۶۱۱، رقم: ۲۷۶- ۱۷۰.

**تشريح**: الله ﷻ بيت المقدس زما مخته راوست: ددې مطلب دادی چي په هغه وخت کي کله چي د مکې قريشو د بيت المقدس د عمارت او نښو په اړه زما څخه پوښتني کولې او زما په ذهن کي د بيت المقدس ټوله نقشه او د هغه د نښو نه خوندي کېدو په وجه ما هغه عمارت د دوهم وار لېدو څخه ماسوا د هغوئ د سوالو جوابونه نه سوه ورکولای ، نو قادر مطلق زما داسي مرسته وکړل چي زما او د بيت المقدس په منځ کي ټولي فاصلې يې راټولي کړلې او زما د سترګو په وړاندي يې هغه ټول خنډونه ليري کړل کوم چي زما او د بيت المقدس په مخکي وه، او ما داشتباه او احتمال څخه پرته د هغه يو يو شی په ښه ډول لېدو سره د مکې د قريشو د يوه يوه سوال بالکل صحيح جواب ورکولو باندي قادر سوم، او دا هم کېدای سي چي د بيت المقدس په پورته کولو سره راوړل سوی وي او د رسول الله ﷺ په وړاندي اېښودل سوی وي لکه چي په يوه روايت کي چي د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه منقول دی، بيان سوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مسجد اقصی په پورته کولو سره راوستل سو او د دار عقيل سره کښېښودل سو ، او حقيقت دادی چي د معجزې په ظهور کي کامل صورت هم دادی لکه چي د حضرت سليمان عليه السلام په واقعه کي ثابته ده چي د بلقيس تخت په يوه ګړي کي د حضرت سليمان عليه السلام مخته راوړل سول ، د معراج باب پای ته رسيږي مګر د کتاب مؤلف په دغه باب کي داسي حديث نقل نه کړ چي په هغه کي د الله ﷻ په دربار کي د رسول الله ﷺ د حاضرېدو او د الله ﷻ د لېدو ذکر وي، د علماؤ په دې اړه اختلاف دی چي رسول الله ﷺ ته د معراج په شپه کي د الله ﷻ ليدنه په برخه سوې که يا، او که تر لاسه سوې وي نو هغه د سر په سترګو وه او که د زړه په سترګو سره، څرګنده دي وي چي د زړه په سترګو لېدل يو بېل شی دی او پوهېدل يو بل شی دی، ځينو حضراتو چي په هغو کي صحابه کرامو او تابعين هم دی ، دا ويلي دي چي رسول الله ﷺ ته د معراج په شپه کي د الله ﷻ ليدنه په برخه سوې ده مګر هغه بصري نه وو بلکه قلبي وو ، مګر رسول الله ﷺ د زړه په سترګو سره ولېدی د سر په سترګو نه، حال دا چي د جمهورو صحابه کرامو او تابعينو مذهب دادی چي رسول الله ﷺ خپل پروردګار د سر په سترګو سره ولېدی او د محققينو په نزد دغه قول راجح او حق دی، ددغه مسئلې تفصيل د الله ﷻ د ليدني په باب کي مخکي تېر سوی دی .

# بَابُ فِي الْـمَعْجُزَاتِ

## (د معجزو بیان)

معجزات د معجزة جمع ده او معنی یې د هغه نادره عادت ده چي الله ﷻ یې د یو نبي او رسول په لاس ښکاره کړي او نور خلک د هغه څخه عاجز وي، د معجزې لفظ په اصل کي د عجز څخه مشتق دی چي د هغه معنی د ناتوانه کېدو ده، او د حزم (قادر کېدو) ضد دی. د دغه لفظ څخه معجز جوړ سوی دی چي د هغه معنی د عاجز کونکي ده، الله ﷻ د خپلو نبیانو او رسولانو د ریښتوني ثابتولو لپاره او د هغوئ د نبوت او رسالت د دلیل په توګه چي کومي نادره نښي ښکاره کوي هغه ته معجزه په دغه مناسبت سره ویل کیږئ چي د کوم نبي او رسول په لاس یوه معجزه ښکاره کیږي د هغه امت او د هغه د قوم خلک نه یوازي دا چي په مقابل کي د هغه معجزې په ډول د یو نښي ښودلو او وړاندي کولو څخه عاجز وي بلکه که څوک غواړي چي هغه معجزه ماته کړي نو دا هم ممکن نه ده.

شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله لیکلي دي چي د معجزة لفظ د اعجاز څخه مشتق دی چي د هغه معنی د عاجز کولو ده، او معجزه هغه شي ته وایي چي خارق عادت وي او په هغه سره د نبوت او رسالت دعوه ثابتیږي او کوم خوارق عادات چي د نبوت د ظهور څخه مخکي ظاهریږي هغه ته معجزات نه وایي بلکه ارهاصات ورته وایي چي د ارهاص جمع ده، د ارهاص لغوي معنی په خښته، خاوره او ډبري سره د ټینګولو ده، نو د نبوت د ظهور څخه مخکي ظاهرېدونکي خوارق عادات ګویا د نبوت او رسالت د عمارت د ټینګولو ابتدائي ذریعه وي.

**د خوارق عادات ډولونه**: خارق عادت، یعني د داسي شي پېښېدل چي د روان نظام څخه خلاف او د عادت خلاف وي او هغه عجیبه ګڼل کیږي، ددې مختلف ډولونه دي او په دې اعتبار د هغه بېل بېل ډولونه دي او بیا دغه ډولونه په جلا جلا نومو سره تعبیر سوي دي چي د ټولو خپل خپل حیثیت هم متعین سي او د یو بل څخه ممتاز هم سي، د عادت خلاف کړنو لومړی ډول هغه دی چي د نبي او رسول څخه ښکاره کیږي او هغه ته معجزه وایي، دوهم ډول هغه دی چي د عامو مسلمانانو څخه ښکاره کیږي چي هغه ته معونت ویل کیږي، دریم ډول هغه دی چي داولیاء الله څخه ښکاره کیږي او هغه ته کرامت وایي، څلورم ډول هغه دی چي د کافرانو او فاسقانو څخه ښکاره سي دې ته استدراج ویل کیږي، ددې څخه معلومه سوه چي په دغه څلورو

ډولو کي د لومړي ډول څخه ماسوا پاته درې ډولونه د خپل مفهوم او مصداق په اعتبار د نبوت د دعوې د قيد څخه وتلي يعني په دغه درو ډولو کي هيڅ يوه ته هم معجزه نه سي ويل کيداى ځکه چي معجزه هغه د عادت خلاف کار دى چي د نبوت په دعوه سره وي.

**سحر د عادت خلاف نه دى** : شعبده او سحر يعني جادو ته د عادت خلاف نه سي ويل کيداى ځکه چي د سحر صدور او ظهور د ظاهري اسبابو تابع وي او يو سړى په دغه اسبابو کي د مهارت په تر لاسه کولو سره سحر او جادو ښکاره کوي نو کوم شى چي د ظاهري اسبابو په ذريعه په وجود کي راسي پر هغه د خرق عادت اطلاق نه سي کېداى، په دې وجه د رملنو او طبي تدابيرو ته هم خارق عادت نه سي ويل کيداى، که څوک دې ته خارق عادت وايي نو د ظاهري صورت په اعتبار به وي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د غار ثور واقعه

﴿۵۶۱۸﴾: عَنْ أَنَسٍ ابن مالك اَنَّ أَبَا بَكْر الصديق قَالَ نظرت الى اقدام

د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه څخه روايت دى چي ابوبکر صديق رضي الله عنه د هجرت پېښه بيانولو سره په غار کي د پټيدو حال بيان کړ او وه يې ويل: ما

المشركين على رؤسنا ونحن في الغار فقلت يا رسولَ الله لَوْ أَنَّ أَحَدَهُمْ نَظَر

زموږ د سرونو لوړې خوا ته وکتل نو ما ته د مشرکانو قدمونه معلوميدل، ما عرض وکړ اې دالله رسوله! که په دوئ کي د يوه قدم هم پر خپلو قدمونو پريوتى

الى قَدَمِهِ أَبْصَرَنَا فَقَالَ يَا أَبَا بَكْرٍ مَا ظَنُّكَ بِاثْنَيْنِ اللّٰهُ ثَالِثُهُمَا. متفق عليه.

نو موږ به وويني، رسول الله ﷺ وفرمايل: اې ابوبکر! ستا خيال د هغه دوو خلکو په نسبت څه دى چي د هغوئ دريم ملګرى الله تعالى وي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۸، رقم: ۲۶۵۳، ومسلم ۴\۱۸۵۴، رقم: ۱ - ۲۳۸۱.

**تشريح**: د غار څخه مراد د مشهور غره (جبل ثور) د پورتنۍ برخي هغه غار دى چي په هغه کي رسول الله ﷺ د مکې څخه د مدينې په سفر کي درې شپې هلته تيري کړي وې او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ورسره ملګرى وو، جبل ثور د مکې د جنوب لويديځ څخه تقريبا پر درې نيم سوه

میله فاصله باندي واقع دی ، کله چي رسول الله ﷺ د الله ﷻ په حکم سره د خپل کران هیواد په پرېښودو سره مدینې منورې ته د تللو لپاره د مکې څخه روان سو او د رسول الله ﷺ د روانېدو وروسته د مکې مشرکانو ته معلومه سول نو هغوئ خپل خلک په رسول الله ﷺ پسي واستول ، هغوئ ته حکم ورکړل سو چي څرنګه کېدای سي حضرت محمد ﷺ دي مکې ته بېرته راوستل سي، رسول الله ﷺ د خپل ملګري ، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه سره د جبل ثور په هغه غار کي پټ وو چي ناڅاپه د هغه خلکو یوه ډله هغه غار ته ورسېدل ، د دغه غار محل وقوع داسي دی که یو سړی د غار پر دباندي څوکه باندي ولاړ وي نو په غار کي دننه د موجود سړي نظر د هغه پر پښو لوېږي او که دباندي ولاړ سړی لاندي په نظر کولو سره خپلو پښو ته وګوري نو په هغه غار کي دننه موجود سړی به په ډېره اساني سره ولیدل سي ،

حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ولېدل چي د مکې د مشرکانو خلک د رسول الله ﷺ په پلټنه کي هغه غار ته را رسېدلي دي او هغه خلک بالکل د غار پر غاړه ولاړ دي ، که چیري په هغوئ کي یو سړی خپلو پښو ته وګوري نو موږ به وویني او په دا ډول به پر رسول الله ﷺ د هغوئ موقع تر لاسه سوې وای، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خپلي دغه پریشانۍ اظهار رسول الله ﷺ ته وکړ نو رسول الله ﷺ په ډېر یقین سره هغه ته ډاډ او اطمینان ورکړ چي زه او ته هغه کسان یو چي د هغوئ سره یو بل ذات د الله ﷻ مرسته او نصرت هم دی ، زموږ پروردګار زموږ ساتنه کوي او موږ د خپلو دښمنانو څخه ژغوري، او همدارنګه وسول چي الله ﷻ د خپل خواږه رسول ﷺ او د هغه د ملګري حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه داسي ساتنه وکړل چي هغه د مکې مشرکان چي بالکل د غار پر غاړه ولاړ وه په تېز نظر سره آخوا دېخوا د رسول الله ﷺ پلټنه کول او پر دې یې یقین درلود چي رسول الله ﷺ په دغه غار کي موجود دی ، هغوئ په دغه وخت کي خپل حوصله د لاسه ورکړل ، نه هغوئ ته د رسول الله ﷺ د پلټني کولو موقع په لاس ورغلل او نه هغوئ ته د لاندي کتل په برخه سول ، دا یوازي د الله ﷻ د قدرت نښه او د رسول الله ﷺ د معجزې ظهور وو .

طیبي رحمة الله علیه دا هم لیکلي دي چي په دغه وخت کي رسول الله ﷺ د هغه مشرکانو په حق کي دا ښېرا کړې وه چي اې الله! د دوئ د سترګو رڼا معطل کړې، نو الله ﷻ په خپل قدرت سره هغوئ ټول داسي بې بصر کړل چي هغوئ د غار څلورو خواوو ته وکرځېدل مګر پر دننه کتلو باندي قادر نه سول ، او څرنګه چي په ځینو روایتو کي راغلي دي چي په دغه وخت کي کوترو د غار په خوله کي هګۍ اچولي وې او جولاګیانو ځالي جوړي کړي وې دا هم معجزه وه .

## د هجرت په دوران کي د معجزې ظهور

﴿۵۶۱۹﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ قَالَ لابي بكر يَا أَبَا بَكْرٍ حَدِّثْنِي

براء بن عازب رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت کوي چي هغه ابوبکر صديق رضي الله عنه ته وويل اې ابوبکر !

كَيْفَ صَنَعْتُمَا حِينَ سَرَيْتَ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَسْرَيْنَا

ته چي د شپې د رسول الله ﷺ سره د مکې څخه مدينې ته په هجرت تللی وې نو تا څه وکړل؟
ابوبکر رضي الله عنه وويل: (د غار څخه په وتلو سره) موږ ټوله شپه روان وو،

لَيْلَتَنَا وَمِنْ الْغَدِ حَتَّى قَامَ قَائِمُ الظَّهِيرَةِ وَخَلَا الطَّرِيقُ لَا يَمُرُّ فِيهِ أَحَدٌ

په دويمه ورځ هم تر نيمي ورځي پوري مو سفر وکړ چي غرمه سوه او لمر ودريدی او لار خالي سوه هيڅوک نه تېريدی

فَرُفِعَتْ لَنَا صَخْرَةٌ طَوِيلَةٌ لَهَا ظِلٌّ لَمْ تَأْتِ عَلَيْهِ الشَّمْسُ فَنَزَلْنَا عِنْدَهُ

نو موږ ته يوه ډبره معلومه سوه چي ډيره اوږده وه او تر هغې لاندي سايه وه او لمر پر هغې نه وو راغلی، موږ د هغې په سايه کي کښېنستلو

وَسَوَّيْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَانًا بِيَدِي يَنَامُ عَلَيْهِ وَبَسَطْتُ فِيهِ

او ما د رسول الله ﷺ لپاره په خپلو لاسونو سره يو ځای پاک او هوار کړ چي رسول الله ﷺ پر بيده سي، بيا ما پوستين اوار کړ

فَرْوَةً وَقُلْتُ نَمْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَأَنَا أَنْفُضُ لَكَ مَا حَوْلَكَ فَنَامَ وَخَرَجْتُ أَنْفُضُ

او عرض مي وکړ اې د الله رسوله ! تاسو بيده سئ او زه به آخوا ديخوا ګورم، او ستاسو ساتنه به کوم، نو دی بيده سو او زه راووتم چي د ده چوکيداري مي کول

مَا حَوْلَهُ فَإِذَا أَنَا بِرَاعٍ مُقْبِلٍ قُلْتُ أَفِي غَنَمِكَ لَبَنٌ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ أَفَتَحْلُبُ

ناڅاپه ما يو شپون وليدی چي را روان وو، ما د هغه څخه پوښتنه وکړه ايا ستا په ميږو کي شيدې سته؟ هغه وويل هو سته، ما ورته وويل ايا ته شيدې لوېشې،

قَالَ نَعَمْ فَأَخَذَ شَاةً فَحَلَبَ فِي قَعْبٍ كُثْبَةً مِنْ لَبَنٍ وَمَعِي إِدَاوَةٌ حَمَلْتُهَا

هغه وویل هو ، ددې ویلو سره هغه یوه میږه راونیوله او د لرګي په پیاله کې یې لږ شیدې ولوېشلې ، زما سره یو پتک وو چې ما د رسول الله ﷺ لپاره د اوبو څخه ډک کړی وو

لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْتَوِي مِنْهَا يَشْرَبُ وَيَتَوَضَّأُ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى

چې رسول الله ﷺ به څیښلې هم او اودس به یې هم په کوی ، زه چې بیرته راغلم نو رسول الله ﷺ

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَرِهْتُ أَنْ أُوقِظَهُ فَوَافَقْتُهُ حتى اسْتَيْقَظَ فَصَبَبْتُ مِنْ

بیده سوی وو ، ما راویښول مناسب ونه ګڼل او خپل هم بیده سوم تر دې چې رسول الله ﷺ خپله راویښ سو ما په شیدو کې لږ اوبه ګډې کړې

الْمَاءِ عَلَى اللَّبَنِ حَتَّى بَرَدَ أَسْفَلُهُ فَقُلْتُ اشْرَبْ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ فَشَرِبَ حَتَّى

او هغه شیدې یخې سوې ، بیا مې عرض وکړ اې د الله رسوله ! شیدې وڅښئ، رسول الله ﷺ شیدې وڅښلې

رَضِيتُ ثُمَّ قَالَ أَلَمْ يَأْنِ لِلرَّحِيلِ قُلْتُ بَلَى قَالَ فَارْتَحَلْنَا بَعْدَمَا مَالَتْ

او زه ډیر خوشحاله سوم ، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : د سفر وخت نه دی راغلی ؟ ما عرض وکړ هو وخت سو ، ابوبکر رضي الله عنه وایي موږ روان سوو او زموږ په پیدا کولو پسي

الشَّمْسُ وَاتَّبَعَنَا سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكٍ فَقُلْتُ أُتِينَا يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ لَا تَحْزَنْ

سراقه بن مالک راغلی چې د مکې کافرانو د رسول الله ﷺ په پیدا کولو پسي رالیږلی وو او سل اوښان یې ورته په انعام کې ټاکلي وه ، ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! دښمن راورسیدی ، رسول الله ﷺ وفرمایل : غم مه کوه

إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا فَدَعَا عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَارْتَطَمَتْ بِهِ فَرَسُهُ إِلَى

الله جل جلاله زموږ سره دی ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د سراقه لپاره ښیرا وکړه او سراقه او

بَطْنِهَا فِي جِلْدٍ مِنْ الْأَرْضِ فَقَالَ إِنِّي أُرَاكُمَا دَعَوْتُمَا عَلَيَّ فَادْعُوَا لِي فَاللَّهُ لَكُمَا

اوښ يې تر نس پورې په مځکه کې کښته ولاړل، سراقه وويل زه پوهيږم تاسو دواړو ما ته ښيرا کړې ده تاسو زما د خلاصون دعاء وکړئ زه په الله ﷻ شاهد کولو سره وايم چې

أَنْ أَرُدَّ عَنْكُمَا الطَّلَبَ فَدَعَا لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَجَا فَجَعَلَ لَا يَلْقَى أَحَدًا إِلَّا قَالَ كَفَيْتُمْ مَا هُنَا فَلَا يَلْقَى أَحَدًا إِلَّا رَدَّهُ. متفق عليه.

زه به کفار په تاسو پسې دراتلو څخه منع کړم، رسول الله ﷺ د هغه لپاره دعاء وکړه او هغه خلاص سو، بيا چې کوم سړی به د سراقه سره په لاره کې يو ځای سو نو هغه ته به يې ويل ستاسو لپاره زما لټون کافي دی، دېخوا هغه سړی (يعني رسول الله ﷺ) نه سته د هغه سره به چې څوک يو ځای کيدی نو دغه به يې ورته ويل. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٦٢٢، رقم: ٢٦١٥، ومسلم۴\۲۳۰۹، رقم: ۷۵-۲۰۰۹.

**د لغاتو حل:** انفض: اي انجسس الاخبار واتفحص عن العدو. قعب: اي قدح من خشب (د لرګي کاسه).

**تشريح:** او خپله مي هم د رسول الله ﷺ ملګرتيا وکړل، دا د (فوافقته) ژباړه ده، يعني د رسول الله ﷺ په خوب لېدو سره نه يوازي دا چې ما د رسول الله ﷺ وېښول مناسب ونه ګڼل بلکه د رسول الله ﷺ په ډول خپله هم يوې خوا ته په پرېوتلو سره بېده سوم، په يوه روايت کې دغه لفظ پر فاء باندې د قاف په تقديم سره دی، په دغه صورت کې به معنی دا وي چې ما د رسول الله ﷺ په خوب لېدو سره توقف وکړ يعني د رسول الله ﷺ وېښول مي مناسب ونه ګڼل او تر هغه وخته مي انتظار وکړی ترڅو چې رسول الله ﷺ راوېښ سو.

بيا ما په شېدو کې اوبه واچولې، د عربو عام عادت وو چې د شېدو حرارت زائل کولو لپاره به يې په هغه کې يخې اوبه اچولې او بيا به يې هغه څښلې، په دغه وخت کې حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه هم د عادت سره سم د مېږې په هغه شېدو کې دومره اوبه واچولې چې په هغه سره شېدې ښه يخې سوې.

او زه ډېر خوشحاله سوم، يعني حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ته پر دې خبـــــره خوشحالي محسوس سول چې د هغه په وجه نه يوازي دا چې رسول الله ﷺ ته د څه وخت لپاره د استراحت موقع تر لاسه سوه بلکه دومره شيدې هم تر لاسه سوې چې رسول الله ﷺ په خوش طبعي سره وڅښلې، ددې څخه معلومه سوه چې د محب اصله خوشحالي د محبوب په خوشحالي او راحت کې وي.

دلته دا سوال پیدا کیږي چې د داسي میږي شیدې یې څرنګه ولوېشلې او بیا یې وڅښلې حال دا چې د هغه د مالک اجازه نه وه، ددې جواب دادی چې هغه میږه د یو داسي سړي وه چې د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ملګری او باوري کس وو او حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خپل ملګري د اجازې باور درلود، دوهم جواب دادی چې د عربو او په خاصه توګه د مکې د اوسېدونکو عادت وو چې هغوئ به خپلو شپنیانو ته د مخکي څخه اجازه ورکړې وه که چیري یو مسافر یا وږی سړی ورسره یو ځای سي نو هغه ته دې د شېدو لویشلو اجازه ورکوي، دریم جواب دا کېدای سي چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه به د روپو په ورکولو سره شیدې تر لاسه کړي وي.

سراقه بن مالک د هغه کسانو څخه وو چې د مکې قریشو د رسول الله صلی الله علیه وسلم پر تعاقب مامور کړي وه او دا اعلان یې کړی وو چې کوم سړی محمد صلی الله علیه وسلم ونیسي او موږ ته یې وسپاري نو هغه ته به د انعام په توګه سل اوښان ورکول کیږي، دغه سراقه بن مالک د مکې د فتح څخه وروسته مسلمان سوی دی.

او د هغه د نیوکي څخه یې خلاصون تر لاسه کړ، په یوه روایت کي دي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ښېرا په نتیجه کي د سراقه په مځکه کي غرقېدل او بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دعاء سره خلاصون تر لاسه کولو پېښه درې واره وسول، یعني هغه به هر وار د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دعاء خلاصون تر لاسه کړ او بیا به د رسول الله صلی الله علیه وسلم دنیولو لپاره را وړاندي سو تر دې چې هغه په دریم وار د خپل آس سره په مځکه کي په غرقېدو سو او د هغه په زارۍ کولو سره رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه لپاره دعاء وکړل او هغه خلاصون تر لاسه کړ نو هغه د خپلي دغه خرابي ارادې څخه منع سو او بیا نه یوازي دا چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د نیولو لپاره را وړاندي نه سو بلکه په ستنېدو کي کوم څوک چې به د رسول الله صلی الله علیه وسلم د نیولو لپاره راتلی هغه به یې هم بېرته استوی او هیڅوک یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته نه پرېښودی.

په دغه حدیث کي یوې خوا ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم د معجزې او د ابوبکر صدیق رضي الله عنه د فضیلت اظهار دی بلي خوا ته ډېري ګټوري خبري هم منځته راځي، یو دا چې تابع لره د خپل متبوع په خدمت کي خپل پوره هڅه کول ضروري دي، دوهم دا چې په سفر کي د داسي لوښي د ځان سره درلودل چې په هغه کي اوبه څښل او د اوداسه په کار راتلل ډېر ضروري وي، او دریم دا چې بنده لره په هر حال کي پر الله جل جلاله باندي باور او توکل کول اړین دي چې د نتیجې او انجام غوره والی په دغه صورت کي تر لاسه کیږي.

## د عبدالله بن سلام د اسلام راوړلو پېښه

﴿۵۶۲۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ سَمِعَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ بِمَقْدَمِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي عبدالله بن سلام رضی اللہ عنہ په یو ځای کی د درختو میوې جمع

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي أَرْضٍ يَخْتَرِفُ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

کولې چي هغه د رسول الله ﷺ د مکې څخه مدينې ته د راتلو حال واوريدی هغه د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو عرض يې وکړ:

إِنِّي سَائِلُكَ عَنْ ثَلَاثٍ لَا يَعْلَمُهُنَّ إِلَّا نَبِيٌّ فَمَا أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ وَمَا أَوَّلُ

زه ستاسو څخه د درو خبرو پوښتنه کوم چي پرته د نبي څخه بل څوک يې نه پيژني، يو خو دا چي د قيامت لومړنی نښه به څه وي؟ دويم دا چي د جنتيانو لومړنی

طَعَامِ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَمَا يَنْزِعُ الْوَلَدُ إِلَى أَبِيهِ أَوْ إِلَى أُمِّهِ قَالَ أَخْبَرَنِي بِهِنَّ

خوراک به څه وي، دريم دا چي هغه کوم شی دی چي اولاد مور يا پلار ته د مشابهت په لور بيايي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

جِبْرِيلُ آنِفًا أَمَّا أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ فَنَارٌ تَحْشُرُ النَّاسَ مِنَ الْمَشْرِقِ إِلَى

جبرائيل علیہ السلام همدا اوس زه د دغه خبرو څخه خبر کړی يم، د قيامت لومړنی نښه هغه اور دی چي خلک به د مشرق څخه

الْمَغْرِبِ وَأَمَّا أَوَّلُ طَعَامٍ يَأْكُلُهُ أَهْلُ الْجَنَّةِ فَزِيَادَةُ كَبِدِ حُوتٍ وَإِذَا سَبَقَ مَاءُ

مغرب ته په راکشولو سره بوځي، او د جنتيانو لومړنی خوراک به د ماهي د ځيګر هغه ټوټه وي چي د اينې څخه بيله زړيږي، په اولاد کي د مور او پلار د مشابهت سبب دادی که د نارينه د مني

الرَّجُلِ مَاءَ الْمَرْأَةِ نَزَعَ الْوَلَدَ وَإِذَا سَبَقَ مَاءُ الْمَرْأَةِ نَزَعَتْ قَالَ أَشْهَدُ أَنْ لَا

او به د ښځي د مني تر او بو مخ ته سي نو ماشوم د پلار سره مشابه کيږي، او که د ښځي او به مخ ته سي نو ماشوم د مور مشابه کيږي، د دې اوريدو سره عبدالله بن سلام وويل زه شاهدي ورکوم

إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ الْيَهُودَ قَوْمٌ بُهُتٌ وَإِنَّهُمْ

چي د الله ﷻ څخه پرته بل څوک د عبادت ور نسته او ته د الله ﷻ ربښتونی رسول یې، ددې څخه وروسته عبدالله بن سلام وویل : اې د الله رسوله! یهودیان ډیر تهمت لګونکې قوم دی،

إِنْ يَعْلَمُوا بِإِسْلَامِي قَبْلَ أَنْ تَسْأَلَهُمْ يَبْهَتُونِي فَجَاءَتِ الْيَهُودُ فَقَالَ أَيُّ

هغوئ ته چي زما مسلمان کیدل معلوم سي نو پر ما باندي به د دروا غو تهمتونه ولګوي، په دې سبب غوره داده چي د اسلام حال معلوم مولو څخه مخکي تاسو زما په اړه د هغوئ څخه پوښتنه وکړئ، نو یهود را وغوښتل سول او رسول الله ﷺ د هغه یهودیانو څخه پوښتنه وکړه چي

رَجُلٍ عَبْدُ اللَّهِ فِيكُمْ قَالُوا خَيْرُنَا وَابْنُ خَيْرِنَا وَسَيِّدُنَا وَابْنُ سَيِّدِنَا فَقَالَ

په تاسو کي عبدالله بن سلام څنګه سړی دی ؟ هغوئ وویل په موږ کي غوره او د غوره سړي زوی دی، زموږ سردار دی او زموږ د سردار زوی دی، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَسْلَمَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ قَالُوا أَعَاذَهُ اللَّهُ مِنْ ذَلِكَ فَخَرَجَ عَبْدُ

که عبدالله بن سلام اسلام راوړي ، یهودیانو ویل : الله ﷻ دي هغه د اسلام څخه وساتي او په خپل پناه کي دي هغه وساتي، ددې اوریدو سره عبدالله بن سلام د هغوئ مخته راغلی

اللَّهِ فَقَالَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ فَقَالُوا شَرُّنَا وَابْنُ

او وه یې ویل : زه شاهدي ورکوم چي د الله ﷻ څخه پرته بل څوک د عبادت ور نسته او محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دی، ددې اوریدو سره یهودیانو وویل په موږ کي دا ډیر خراب سړی دی

شَرِّنَا وَانْتَقَصُوهُ قَالَ فَهَذَا الَّذِي كُنْتُ أَخَافُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. رواه البخاري.

د بدترین سړي زوی دی او ډول ډول عیبونه یې پر هغه ولګول ، عبدالله بن سلام وویل اې د الله رسوله ! دا هغه خبره وه چي ما ځیني بیره کول. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۱٦۵، رقم: ۴۴۸۰.

**د لغاتو حل**: يخترف: اي يجتنى من الفواكه. ينزع: نزع الولد الى ابيه اذا اشبهه. المعنى وما يشبه. بهت: جمع بهوت من بناء المبالغة في البهتان (سخت بهتان).

**تشريح**: عبدالله بن سلام ﷺ په يو ځای کي د درختو څخه ميوې شکولې، دلته يا خو د پښتني صورت دا وو چي عبدالله ابن سلام په خپل باغ کي د درختو څخه ميوې راشکولې او جمع کولې، چې د يو چا په ښوونه هغه ته وښودل سول چي د نبوت په دعوه اود اسلام د دين په دعوت کولو سره محمد ﷺ مدينې ته راغلی دی، ددې په اورېدو سره يې خپل کار پرېښود او د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو، يا دا چي عبدالله ابن سلام د رسول الله ﷺ د راتللو په خبر اورېدو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي په تلوار او شوق سره حاضر سي هغه د دغه الفاظو په ذريعه په مبالغې سره بيان سوی دی، مطلب دا که چيري عبدالله ابن سلام غوارې نو د خپل کار کولو څخه وروسته د فراغت په وخت کي او په اطمينان سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضرېدای سي مګر هغه په تورات کي د رسول الله ﷺ صفات او ځانګړتياوي ويلي وي او د نبي آخر زمان ﷺ د راتللو په سخته منتظر وو، ځکه څرنګه چي هغه د رسول الله ﷺ د راتللو خبر سو نو سمدستي د څه توقف کولو څخه پرته د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو.

مدتي برد که مشتاق نقايت بودم  لاجرم روئي ترا ديدار واز جارفتم

د عبدالله بن سلام د نسب لړۍ د حضرت يوسف ﷺ سره يو ځای کيږي، نوموړي د مدينې د يهودو د سردارانو څخه وو، ډېر عقلمند، عالم او په تورات باندي پوره پوه وو، کله چي رسول الله ﷺ د مکې څخه مدينې ته په هجرت کولو سره مدينې ته تشريف راوړ نو سمدستي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او د اسلام په دولت مشرف کېدو سره د لوړي درجې په صحابه کرامو کي وشمېرل سو.. رضي الله عنه.

چي د نبي څخه ماسوا بل څوک نه په پوهيږي، ددې څخه د عبدالله ابن سلام ﷺ مراد دا وو چي زه د کومو درو شيانو پوښتنه کوم د هغه په اړه صحيح معلومات او ښوونه يوازي د نبي کار دی د نبي څخه ماسوا هغه څوک په پوهيږي چي يا خو ور ښودل سوي دي او يا د الله ﷻ د کتاب څخه يې معلومه کړې وي، دا بيان ځکه ضروري دي چي خپله عبدالله ابن سلام ﷺ هم ددغه شيانو په اړه په اجمالي او تفصيلي توګه پوهېدی او هغه ته دا علم د تورات څخه حاصل سوی وو او ددغه سوالو څخه د هغه اصل مقصد د رسول الله ﷺ د نبوت او رسالت تصديق تر لاسه کول وو، ددغه درو شيانو جوابونه د هغه په اړه د رسول الله ﷺ معجزه ثابت سول او هغه ته د رسول الله ﷺ د رسالت او نبوت د علم يقين وسو او غالبا په دغه مناسبت سره دغه حديث دلته د معجزو په باب کي نقل سوی دی.

همدا اوس جبرائيل ﷺ زه په دغه سوالو خبر کړم، د خپلو سوالونو د جواب په اورېدو سره

عبد الله ابن سلام ته دا وهم كېداى سي چي كېداى رسول الله ﷺ د اهل كتاب څخه دغه خبري اورېدلي وي او په دې وجه يې زما د سوالونو جوابونه راكړل، نو رسول الله ﷺ ددغه وهم او شبهې د لاري بندولو لپاره ښكنده كړل چي دغه جوابونه كوم چي زه يې بيانوم د الله ﷻ له خوا جبرائيل عليه السلام ما ته را رسولي دي او ددغه الفاظو څخه د رسول الله ﷺ مقصد د عبد الله بن اسلام رضي الله عنه خبرول وو چي په هوښ سره د خپلو سوالونو جوابونه واوره، ددې څخه ماسوا د هغه د وجود وحي او نزول جبرائيل عليه السلام څخه خبرول هم مقصد وو.

اذا سبق ماء الرجل...الخ: دلته د سبق معنى ملا علي قاري رحمه الله د علا او غلب ليكلې ده او په ترجمه كي ددغه معنى رعايت سوى دى، شيخ عبد الحق رحمه الله ددغه معنى د (پيش ميشود) يعني په رحم كي مخكي رسېدل ليكلي دي، مطلب دادى چي په سړي او ښځه كي د چا اوبه د ښځي رحم ته مخكي ورسيږي د هغه شكل او شباهت په اولاد كي راځي، شيخ عبد الحق رحمه الله وروسته دا هم ليكلي دي چي ددغه حديث څخه معلوميږي چي د اولاد د مور او پلار د مشابه كېدو سبب غلبه او سبقت دواړه ښودل سوي دي په دې اعتبار د سبق معنى د غلبې او سبقت دواړو كيداى سي.

## د بدر د غزا په اړه پيشګويي

﴿۵۶۲۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ اِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاوَرَ حِينَ بَلَغَنَا

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي كله رسول الله ﷺ د ابو سفيان (د شام څخه) د راتګ خبر

إِقْبَالُ أَبِي سُفْيَانَ وَقَامَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَالَّذِي نَفْسِي

واوريدى نو د مدينې والاوو سره يې مشوره وكړه، سعد بن عباده رضي الله عنه ولاړ سو او عرض يې وكړاې دالله رسوله! په هغه ذات دي مي قسم وي چي

بِيَدِهِ لَوْ أَمَرْتَنَا أَنْ نُخِيضَهَا الْبَحْرَ لَأَخَضْنَاهَا وَلَوْ أَمَرْتَنَا أَنْ نَضْرِبَ أَكْبَادَهَا

د هغه په لاس كي زما ساه ده كه تاسو موږ ته دا حكم راكړئ چي موږ خپل آسونه درياب ته ور ننه باسو نو موږ به همداسي كوو او كه تاسو دا فرمايا ست چي موږ د خپلو سپرلو (يعني آسانو

إِلَى بَرْكِ الْغِمَادِ لَفَعَلْنَا قَالَ فَنَدَبَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسَ

او اوښانو) ځيګر تر (برک غماد) پوري وهو نو موږ به داسي وكړو، (برک غماد په يمن كي يو

ښار دی مطلب دادی که تاسو حکم کوئ چي موږ تر برک غماد پوري خپل اوښان او آسونه وځغلوو نو موږ به انکار نه کوو)، د انس رضي الله عنه بيان دی چي رسول الله ﷺ د جنګ لپاره خلک

فَانْطَلَقُوا حَتَّى نَزَلُوا بَدْرًا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا مَصْرَعُ

راوبلل او خلک د رسول الله ﷺ سره روان سول د بدر مقام ته چي ورسيدل، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: دا ځای د فلاني سړي د مړي دي (يعني هغه به دلته مړ کيږي)

فُلَانٍ قَالَ وَيَضَعُ يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ هٰهُنَا هٰهُنَا قَالَ فَمَا مَاطَ أَحَدُهُمْ عَنْ مَوْضِعِ يَدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه مسلم.

او همداسي رسول الله ﷺ به پر مځکه لاس ايښودی په دې ځای کي او په دې ځای کي، ويلي دي انس رضي الله عنه بيا کوم کوم ځايونه چي رسول الله ﷺ ټاکلي وه په هغو کي د هر يوه سره هم هغسي وسول په کوم ځای کي چي رسول الله ﷺ مبارک لاس ايښی وو هغه کافر هم هلته هلاک سو. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۴۰۳/۳، رقم: ۸۳- ۱۷۷۹.

**د لغاتو حل**: الغماد: اي مثلا من المواضع البعيدة. فما ماط: اي مازال وبعد وتجاوز.

**تشريح**: کله چي موږ د ابوسفيان په راتګ خبر سوو، دا د بدر د غزا د لومړي پړاو يادونه ده چي د مکې يو سردار، ابوسفيان د خپلي تجارتي قافلې سره د شام څخه مکې ته راتلی، په قافله کي ځلوېښت کسان وه مګر مال او سامان ډېر زيات وو، کله چي مسلمانانو ته په مدينه کي د ابوسفيان د دغه تجارتي قافلې په اړه معلومه سول نو هغوئ پر اهل مکه باندي د اقتصادي وار کولو لپاره دا موقع غنيمت وګڼل، دهغوئ خيال وو چي د قافلې د ځلوېښتو کسانو په لاندي کولو سره د هغوئ پر ټول مال او سامان باندي قبضه وکړل سي مګر ابوسفيان ته د مسلمانانو د حملې خبر وسو نو هغه د عامې لاري په پرېښودو سره ساحلي لار اختيار کړل چي د مسلمانانو د حملې څخه خوندي سو، دوهم دغه خبر مکې ته هم ورسېدی نو د مکې خلګو د مسلمانانو سره د سخت جنګ کولو اراده وکړل، ابوجهل د کعبې پر بام په ختلو سره د مکې اوسېدونکي يې د مسلمانانو خلاف وبلل، او د هغوئ په مشتعل کولو سره يې جنګ ته اماده کړل، کله چي پوره تياري وسول نو ابوجهل په پوره جنګي طاقت سره د مکې څخه روان سو، په لاره کي ځينو خلکو هغه پوه کړ چي زموږ قافله پر ساحلي سيمه روانه ده او د مسلمانانو د حملې څخه خوندي ده نو د مسلمانانو پر خلاف په جګړه کولو کي عقلمندي نسته، غوره داده چي موږ مکې ته ولاړ سو،

مګر د ابوجهل د زوال وخت راغلی وو، هغه د خلکو دغه مشوره ونه منل او بدر نامي ځای ته ورسېدل، په دغه وخت کي حضرت جبرائیل علیه السلام راغلی او رسول الله ﷺ یې خبر کړ چي الله جل جلاله په دوو صورتو کي د یوه صورت وعده کړې ده، یا دا چي د قافلې په لاندي کولو سره مال تر لاسه کړئ او که په جګړې کولو سره مشوره وکړئ چي ابوسفیان د ساحلي لاري په اختیارولو سره زموږ د حملې څخه خوندي سوی دی اوس ابوجهل زموږ د ماتولو عزم کړی دی او ډېر لښکر یې زموږ د مقابلې لپاره راوستلی دی نو موږ لره کومه طریقه اختیارول پکار دي.

د رسول الله ﷺ دغه مشوره غوښتل په اصل کي د مدینې د انصارو امتحان او د هغوئ په رد عمل پوهېدل وو ځکه چي رسول الله ﷺ په پیل کي د هغوئ څخه بیعت اخیستی وو چي په هغه کي دا خبره شامل نه وه چي هغه به د جهاد لپاره د رسول الله ﷺ سره ځي او د دښمن په مقابله کي به د مسلمانانو ځاني او مالي مرسته کوي، هغوئ نه یوازي پر دغه خبره بیعت کړی وو چي هغوئ به د هغه خلکو څخه د رسول الله ﷺ ساتنه کوي څوک چي پر هغه حمله کوي، هغه وخت دا صورت حال وو چي هغه وخت هیڅ دښمن پر رسول الله ﷺ او مسلمانانو باندي حمله نه کول بلکه خپله د مسلمانانو له خوا د ابوسفیان پر تجارتي قافله باندي د حملې کولو فلان جوړ سوی وو او ددې په جواب کي د مکې اوسیدونکي د مسلمانانو سره د جګړې کولو لپاره راوتلي وه نو رسول الله ﷺ ضروري وګڼل چي د انصارو سره په مشوره کولو د هغوئ په رد عمل پوه سي چي ایا هغوئ په دغه کړنه کي زموږ مرسته کوي که یا، رسول الله ﷺ د انصارو له خوا د حوصلې ډک جواب تر لاسه کړ، هغوئ نه یوازي په دغه وخت کي په مال او ځان سره د قربانۍ ثبوت ورکړ بلکه مخکي هم کله چي داسي وخت راتلی هغوئ په پوره موافقت سره د رسول الله ﷺ او مؤمنانو سره وږه په وږه ولاړ وه، د رسول الله ﷺ په دغه مشوره کولو کي د امت لپاره هم تلقین او ترغیب دی چي په خپلو مسائلو او معاملاتو کي د پوهانو او ملګرو سره مشوره کول د ښه پایلي او برکت ذریعه ده.

سعد ابن عباده ولاړ سو او عرض یې وکړ، لکه چي مخکي ذکر سول چي د مشورې کولو څخه د رسول الله ﷺ اصل مقصد د انصارو په رد عمل پوهېدل وو ځکه د رسول الله ﷺ په ارشاد حضرت سعد ابن عباده د جواب لپاره ولاړ سو چي د انصارو یو مشر وو، هغه رسول الله ﷺ ته جواب ورکړ او د هغه مطلب دا وو چي موږ په هیڅ حالت کي ستاسو د مرسته کولو څخه نه تر شا کیږو، دا خو ډېر نژدې دښمن سره د جګړې خبره ده که موږ ته د لیري سیمو تللو حکم راکړئ که څه هم موږ ته پر مځکه سفر کول یا په دریاب کي کښته کېدل موږ به ستاسو د حکم په عملي

کولو هیڅ منع نه کوو او د خپل سر او مال په لویو قربانیو ورکولو سره به ستاسو او د اسلام د دښمانو سره مقابله کوو .

برک غماد د یوې سیمي نوم وو چي د مدینې څخه ډېر لیري په یمن کي واقع وو، یا دهجر پر غاړه یا د هغه د کلیو څخه پر آخري څو که باندي واقع وو .

د اوښانو یا اسونو ځیګر وهل، دا د سپرلۍ د تېزوالي کنایه ده او دلته لفظي مناسبت دادی چي کله یو سړی پر آس باندي سپور وي او آس تېز ځغلي نو د سپاره سړي پښه د هغه آس د بدن د هغه برخي سره موښلي چیري چي ځیګر دی، ددغه جملې مطلب دا وو که تاسو موږ ته د خپلو سپرلیو د تېز ځغلولو تر برک عماد پوري د دښمن په مقابله کي د رسېدو حکم راکړئ نو موږ به ستاسو د حکم په عملي کولو کي سمدستي روان سو او په یو ځای کي د درېدو څخه پرته به په ډېره تیزي سره برک عماد ته په رسېدو سره ساه اخلو .

د حدیث په پای کي د رسول الله ﷺ د یوې لوی معجزې ذکر دی چي رسول الله ﷺ د بدر ځای ته په رسېدو سره د جنګ پیل کېدو څخه هم مخکي د اوویا کافرانو د مړو د لوېدو د ځایو په باره کي یادونه کړې وه، رسول الله ﷺ د هغوئ ټولو د نومونو په اخیستلو سره او پریوه یوه ځای باندي په لاس اېښودو سره صحابه کرام خبر کړي وه چي په دوئ کي به فلاني سړی په دغه ځای کي په وژل کېدو سره پروت وي او د فلاني سړي مړی به دلته پروت وي، نو همدارنګه وسول ، کله چي جګړه پېل سول او د اسلام مجاهدینو د کافرانو وژل پیل کړل، رسول الله ﷺ چي د کوم کافر لپاره کوم ځای ښودلی وو په هغه ځای کي ووژل سول او د هغه مړی د هغه ځای څخه یوه ذره آخوا دېخوا نه وو .

## د بدر د غزا په ورځ دعاء

﴿۵۶۲۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د بدر په ورځ په خیمه کي وو چي دا

يَوْمَ بَدْرٍ اللّٰهُمَّ اِنِّي اَنْشُدُكَ عَهْدَكَ وَوَعْدَكَ اللّٰهُمَّ اِنْ تَشَأْ لَا تُعْبَدْ بَعْدَ

دعاء یې وکړل اې الله! زه ستا څخه ستا امان او ستا وعدې پوره کول غواړم، اې الله ! که ته غواړې (چي مؤمنان هلاک سي) نو دنن څخه وروسته به ستا عبادت نه کیږي،

الْيَوْمِ فَاَخَذَ اَبُو بَكْرٍ بِيَدِهِ فَقَالَ حَسْبُكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اَلْحَحْتَ عَلَى رَبِّكَ

رسول الله ﷺ دومره فرمايلي وه چي ابوبكر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ مبارك لاس ونيوى او عرض يې وكړې اې د الله رسوله ! بس دومره كافي ده تاسو په خپله دعاء كي خپل پروردګار ته ډيري

فخرج وَهُوَ يَثِبُ فِي الدِّرْعِ وَهُوَ يَقُولُ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ. رواه البخاري.

زاري وكړې ، ددې ځخه وروسته رسول الله ﷺ په تيزي سره د خيمې ځخه دباندي راووتى حال دا چي رسول الله ﷺ زغره اغوستې وه (او په لوړ آواز سره يې ) دا آيت تلاوت كړ : (سيهزم الجمع .....)، (كفار به ډير ژر ماته وخوري او پر شا به وتښتي). بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۶۱۹، رقم: ۴۸۷۵.

**تشريح**: ستا د وعدې پوره كول غواړم، رسول الله ﷺ ددغه جملې په ذريعه دغه آيت كريمه (واذ يعدكم الله احدي الطائفتين) يعني كله چي الله ﷻ ستاسو سره د هغه دوو ډلو په اړه د يوه وعده كول چي هغه به ستاسو لاس ته راسي، ته اشاره وكړل، چي په هغه كي الله ﷻ وعده فرمايلې ده، كه مسلمانان د مكې د كفارو سره جګړه اختيار كړي نو هغوئ ته به په دغه جګړه كي كاميابي په برخه سي ، دلته دا سوال پيدا كيږي چي رسول الله ﷺ خو ډېر عارف باالله وو او ښه پوهيدى چي الله ﷻ كومه وعده وكړي نو هغه پوره كېدونكي وه،

په داسي صورت كي رسول الله ﷺ ولي دعاء وكړل ، ددې جواب دادى چي اول خو ددغه دعاء ځخه د رسول الله ﷺ مقصد د هغه حكم تعميل وو چي بنده لره په هر حال كي د الله ﷻ ځخه د مرستي او مقصد ته رسېدو دعاء كول پكار دي كه څه هم د هغه مقصد تر لاسه كېدل يقيني وي يا نه وي، دوهم دا چي علم باالله پر خپل ځاى الله ﷻ ته د خوف متقاضي وي او نبيان عليهم السلام ددغه خوف ځخه خالي نه وي نو كېداى سي چي رسول الله ﷺ محض ددغه خوف په وجه دعاء كړې وي چي كه چيري الله ﷻ د فتح او نصرت وعده كړې ده مګر داسي نه وي چي خپله زما له خوا يو داسي شى رامنځته سي چي د فتح او نصرت په لاره كي خنډ وګرځي او د الله ﷻ له خوا هغه موعوده فتح او نصرت رد كړل سي او دا هم كيداى سي چي الله ﷻ، د رسول الله ﷺ سره بېله شكه د نصرت وعده كړې وه مګر د نصرت وخت يې ټاكلى نه وي او رسول الله ﷺ د ځنډ كولو ځخه و بيريدى ځكه رسول الله ﷺ دعاء وكړل چي هغه وعده نن پوره سي ، په دې اړه بايد دا خبره هم په ذهن كي وي چي كيداى سي په هغه وخت كي د رسول الله ﷺ ذهن دغه آيت ته

متوجه سوی وي (والله هو الغني الحميد، ان يشايذهبكم ويات بخلق جديد) او دغه آيت (ان الله لغني عن العالمين)، چي د الله ﷻ پر بې پرواهي او بې نيازي باندي دلالت كوي، نو رسول الله ﷺ د دغه آيا تونو په فكر كي ساتلو په وجه د الله ﷻ څخه د مرستي او نصرت دعاء غوښتې وي، دا خبره امام غزالي رحمة الله عليه هم ليكلې ده چي د رسول الله ﷺ احساس او امساك ډېر كامل وو او د الله ﷻ د بې نيازۍ او د هغه د جلال په اړه د رسول الله ﷺ علم او عرفان پراخ وو ځكه رسول الله ﷺ د الله ﷻ د نصرت د وعدې سربېره د فتح دعاء په ډېره عاجزي سره وكړل، حال دا چي د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه نظر محض د الله ﷻ پر ظاهري وعده وو ځكه هغه د زياتي دعاء ضرورت محسوس نه كړ.

د الله ﷻ پر وعده باندي د پوره باور درلودلو سربېره د رسول الله ﷺ دعاء كول او په هغه دعاء كي زارۍ اختيارول يو خاص مقصد درلودی او هغه د مجاهدينو او صحابه كرامو زړه ته تقويت وركول، د هغوئ ثابت قدمه ساتل او په هغوئ كي د حوصلې پيدا كول وو ځكه چي صحابه كرام پوهېدل چي د رسول الله ﷺ دعاء په يقيني توګه قبلېدونكې ده، په خاصه توګه كله چي په ډېرو زاريو سره وي.

د ډېري خوشحالۍ څخه په ډېره تيزي د خپلي خيمې څخه راووتی...الخ: مخكي خو رسول الله ﷺ د خوف او رجاء (بيري او اميد) په منځ كي وو مګر كله چي د الله ﷻ حتمي وعده نازله سوه چي دښمنان به ماته خوري او هغوئ به تېښته كوي نو د اميد اړخ غالب سو، مجاهدينو ته د كفارو د ماتي او د مسلمانانو د كاميابۍ د زيري وركولو لپاره رسول الله ﷺ ذكر سوی آيت په لوړ آواز ويلو سره د خيمې څخه د باندي راووتی، او دا يوه معجزه وه چي د دښمنانو په مقابله كي مسلمانانو ته د فتح خبر چي هغه تر هغه وخته پوري د الله ﷻ څخه ماسوا د بل چا په علم كي نه وو، رسول الله ﷻ د الله ﷻ له خوا په زيري او خبر سره مؤمنان خبر كړل.

## د بدر په غزا كي د جبرائيل عليه السلام شركت

﴿۵۶۲۳﴾: وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ بَدْرٍ هَذَا جِبْرِيلُ آخِذٌ بِرَأْسِ فَرَسِهِ عَلَيْهِ أَدَاةُ الْحَرْبِ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي د بدر په ورځ رسول الله ﷺ وفرمايل: دا جبرائيل عليه السلام دی چي د خپل آس واګي يې نيولي دي، او پر هغه يې د جنګ سامان اچولی دی. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۳۱۲، رقم: ۲۹۹۵.

**تشريح**: په دغه حديث كي د رسول الله ﷺ د هغه معجزې يادونه ده چي رسول الله ﷺ د بدر په غزا كي حضرت جبرائيل عليه السلام وليدی چي د الله جل جلاله په حكم سره كفارو ته د ماتي وركولو او مسلمانانو ته د كاميابۍ وركولو لپاره د آسمان څخه راكښته سوی وو، څرګنده دي وي چي بدر په اصل كي د يو ځاه نوم دی چي د مكې او مدينې په منځ كي پر څلور پړاوه فاصله باندي واقع دی، د مكې د كافرانو او مسلمانانو په منځ كي دا لومړنۍ جګړه وه چي د روژې مباركي پر ۱۷ نېټه په دوهم هجري كال كي د جمعې په ورځ رامنځته سول، دغه جګړه د بدر د ځاه سره نژدې په يو ميدان كي ترسره سول ځكه دې ته د بدر جګړه يا غزوه بدر ويل كيږي.

## د اسماني مرستي مشاهده

﴿۵۶۲۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ يَوْمَئِذٍ يَشْتَدُّ فِي أَثَرِ رَجُلٍ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي په دغه ورځ (يعني د بدر د غزا په ورځ) چي يو مسلمان په يوه مشرک پسې ځغاستی

مِنَ الْمُشْرِكِينَ أَمَامَهُ إِذْ سَمِعَ ضَرْبَةً بِالسَّوْطِ فَوْقَهُ وَصَوْتَ الْفَارِسِ يَقُولُ

[...]په هغه د چابک (غمچيني) اواز واوريدی چي واريې پر هغه كافر ولګيدی بيا هغه د يو سپاره اواز واوريدی چي ويل يې:

[...]دِمْ حَيْزُومُ اذا نَظَرَ إِلَى الْمُشْرِكِ أَمَامَهُ فَخَرَّ مُسْتَلْقِيًا فَنَظَرَ إِلَيْهِ فَإِذَا هُوَ

[...] حيزوم مخكي سه، (حيزوم د جبرائيل عليه السلام د آس نوم دی)، بيا هغه مسلمان چي په هغه مشرك پسې وو وليدل چي هغه د هغه په مخكي پريوتی

قَدْ خُطِمَ أَنْفُهُ وَشُقَّ وَجْهُهُ كَضَرْبَةِ السَّوْطِ فَاخْضَرَّ ذَلِكَ أَجْمَعُ فَجَاءَ

پر پزه يې نښه وه او د هغه مخ چاودلی وو، او پر كوم ځای چي غمچينه لګيدلې وه هغه ټول

الْأَنْصَارِيُّ فَحَدَّثَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ صَدَقْتَ ذَلِكَ مِنْ مَدَدِ السَّمَاءِ الثَّالِثَةِ فَقَتَلُوا يَوْمَئِذٍ سَبْعِينَ وَأَسَرُوا سَبْعِينَ. رواه مسلم.

پوست شين سوى وو ، هغه مسلمان د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو او پېښه يې بيان كړه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ته رښتيا وايي ، بيا يې وفرمايل دغه ملائكه د دريم آسمان د مرستيال فوځ ملائكه وه، په دغه ورځ اويا كافران د مسلمانانو په لاس قتل سول او اويا كافران بنديان سول. مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم ۳\ ۱۳۸۴، رقم: ۵۸- ۱۷۶۳.

**د لغاتو حل:** حيزوم: اسم فرس (د آس نوم). خطم: وهو الاثر على الانف.

**تشريح:** حيزوم مخكي سه، دا د اقدم حيزوم ترجمه سوې ده، د اقدام معنى په اصل كي د دښمن په جګړه كي رابلل ، بېړول او مېړانه ښودل دي، مګر دا معنى په هغه صورت كي مراد اخيستل كيږي كله چي د اقدم لفظ د الف په زور ، د قاف په جزم او ددال په زېر سره وي او كه دغه لفظ د الف او دال په پېښ سره وي نو بيا ددې معنى به د مخكې كېدو وي ، په دغه صورت كي به د اقدم حيزوم معنى دا وي چي حيزوم پر مخ ځه، حيزوم د حضرت جبرائيل عليه السلام د آس نوم دى لكه چي په قاموس كي ذكر سوي دي مګر ځينو حضراتو ويلي دي چي دا د يوې بلي ملائكي د آس نوم دى .

د بدر په جګړه كي مسلمانانو ته د غيبو څخه آسماني مرسته تر لاسه سول او د هغه مرستي تعلق لرونكي د يوې ملائكي دغه كړنه پر يو صحابي باندي په ذكر سوي صورت كي كشف او اظهار وسو، دا په اصل كي د هغه صحابي كرامت دى او د تابع يعني صحابي څخه ظاهرېدونكي كرامت د هغه د متبوع يعني نبي د معجزې يو صورت وي ، په خاصه توګه په داسي حالت كي كله چي هغه كرامت د نبي په موجودتيا كي ظاهر سوى وي په دغه مناسبت سره دغه حديث د معجزاتو په باب كي نقل كول غير مناسب نه دي يا داهم ويل كيږي چي په دغه حديث كي د كومي پېښي ذكر دى د هغه خبر باوري صحابي وركړ او صادق او مصدوق ﷺ د هغه تصديق وكړ او دغه تصديق يوازي د رسول الله ﷺ كار وو چي ددغه تعلق د اعجاز رسالت سره دى نو دغه پېښه د رسول الله ﷺ په معجزاتو كي شمېرل هم صحيح دي .

## د احد په غزا كي د ملائكو د مرستي معجزه

﴿۵۶۲۵﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ عن يمين

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د احد په غزا كي د رسول الله ﷺ

رَسُول اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عن شماله يَوْمَ أُحُدٍ رَجُلَيْن عَلَيْهِمَا ثِيَابٌ

راسته او چپه خوا ته دوه کسان ولیدل چې سپینې جامې یې اغوستې وې او د دښمنانو سره یې

بِيضٌ يُقَاتِلَانِ كَأَشَدِّ الْقِتَالِ مَا رَأَيْتُهُمَا قَبْلُ وَلَا بَعْدُ يعني جبرئيل وميكائيل. متفق عليه.

په ډېره سختۍ سره جنګ کوئ هغه کسان ما هیڅکله نه و لیدلي او نه مې وروسته ولیدل، او دا دواړه جبرائیل علیه السلام او میکائیل علیه السلام ملائکې وې. بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ٧\٣٥٨، رقم: ٤٠٥٤، ومسلم ٤\١٨٠٢، رقم: ٤٦-٢٣٠٦.

**تشريح:** یعني حضرت جبرائیل علیه السلام او میکائیل علیه السلام وو، دغه وضاحت خپله راوي کړی دی او هغه د دغه دواړو ملائکو کېدل یا خو د دې شخه وګڼل چې هغه دواړه یې نه مخکې لیدلي وه او نه یې وروسته ولیدل یا هغه خپله د رسول الله ﷺ شخه اورېدلي وي چې هغه دواړه پردي خلک حضرت جبرائیل علیه السلام او حضرت میکائیل علیه السلام وه.

## د ماتې پښې علاج

﴿٥٦٢٦﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ بَعَثَ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رهطا إِلَى أَبِي رَافِعٍ

د حضرت براء رضي الله عنه شخه روایت دی چې رسول الله ﷺ یوه ډله ابو رافع ته ولیږل، د هغه ډلې شخه

فدخل عَلَيْهِ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَتِيكٍ بيته ليلا وهو نائم فقتله فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ

عبدالله بن عتیک د شپې د ابورافع په کور کې داخل سو چې هغه بیده وو نو مړ یې کړی، د عبدالله بن عتیک بیان دی چې

بن عتيك فَوَضَعْتُ السَّيْفَ فِي بَطْنِهِ حَتَّى أَخَذَ فِي ظَهْرِهِ فَعَرَفْتُ أَنِّي قَتَلْتُهُ

ما د ابورافع پر نس توره کښېښودل تر دې چې د هغه د شا شخه ووتل، زه پوه سوم چې مړ مې کړ

فَجَعَلْتُ أَفْتَحُ الْأَبْوَابَ حَتَّى انْتَهَيْتُ إِلَى دَرَجَةٍ فَوَضَعْتُ رِجْلِي فَوَقَعْتُ فِي

بیا مې د دروازې خلاصول شروع کړل تر دې چې د زینې پای ته ورسیدم، د سپوږمۍ شپه وه

لَيْلَةٍ مُقْمِرَةٍ فَانْكَسَرَتْ سَاقِي فَعَصَبْتُهَا بِعِمَامَةٍ فَانْطَلَقْتُ إِلَى أَصْحَابِي

څرنګه چې ما پښه کښېښودل نو را ولویدم او زما پنډۍ ماته سوه، ما په خپل لنګوټې سره خپل

پنډۍ وتړل او خپلو ملګرو ته را ورسيدم ،

فَانْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَدَّثْتُهُ فَقَالَ ابْسُطْ رِجْلَكَ فَبَسَطْتُ رِجْلِي فَمَسَحَهَا فَكَأَنَّهَا لَمْ أَشْتَكِهَا قَطُّ. رواه البخاري.

بيا د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سوم او پېښه مي ورته بيان کړه ، رسول الله ﷺ راته وفرمايل : خپله پښه را وغزوه ، ما خپله پښه ور وغزول ، رسول الله ﷺ پر هغه لاس مبارک را تير کړ او هغه داسي روغه سوه لکه هيڅکله چي ماته سوې نه وي . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٥٥، رقم: ٣٠٢٢.

**تشريح**: ابورافع يو يهودي تجار وو ، د هغه کنيت ابو الحقيق وو ، ډېر بد خصلته او د رسول الله ﷺ او مسلمانانو سخت دښمن وو مګر هغه د خپل عهد ماتولو او اذيت رسولو په وجه رسول الله ﷺ ډېر سخت په تکليف کړي وو ، دغه بدبخت د رسول الله ﷺ په شان کي بدوينه هم کړې وه ، په پای کي رسول الله ﷺ په مجبوره کېدو سره د هغه خلاف د سختي کړني اراده وفرمايل او د حضرت عبد الله ابن عتيک رضي الله عنه په مشرۍ کي څو انصار زلميان د هغه د بندي کولو او يا وژلو لپاره ولېږل ، هغه د حال په څرګندېدو سره په خپله خوندي قلعه کي محصور سوی وو ، عبد الله ابن عتيک رضي الله عنه په يو ډېر عجيبه او حيرانونکي تدبيره د مخکي څخه د هغه په قلعه کي او بيا چي ابورافع د شپې د خوراک کولو څخه وروسته بېده سوی وو د هغه د خوب په ځای کي داخل سوی وو او په خپله توره يې د هغه کار خلاص کړی وو .

کله چي هغه د خپلي کړني تر سره کولو وروسته راستنېدی او پر يوه زينه کښته کېدی نو د شپې د سپوږمۍ د رڼا په وجه داسي رڼا وه چي هغه معلوم سو ، عبد الله ابن عتيک رضي الله عنه په دې ګڼلو سره قدم پورته کړ چي زينه ختم سوې ده او مخکي ځمکه ده مګر هلته تر اوسه پوري زينه پاته وه او د هغه پښه داسي ولوېدل چي هغه خپل توازن برقرار ونه ساتلای سو ، لاندي راولوېدی چي د هغه په وجه يې پنډۍ ماته سوه ، بيا کله چي هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او ټوله پېښه يې رسول الله ﷺ ته بيان کړل نو رسول الله ﷺ د هغه پر پښه خپل مبارک لاس را تېر کړ چي د هغه په برکت د هغه ماته پنډۍ روغه سول او ټول تکليف يې ولاړ، دا د رسول الله ﷺ معجزه وه .

## د احزاب په غزا کي د خوراک معجزه

﴿۵۶۲۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ إِنَّا يَوْمَ الْخَنْدَقِ نَحْفِرُ فَعَرَضَتْ كُدْيَةٌ شَدِيدَةٌ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي د خندق په غزا کي موږ خندق کيندی چي يو سخته مځکه ښکاره سوه ،

فَجَاءُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا هٰذِهِ كُدْيَةٌ عَرَضَتْ فِي الْخَنْدَقِ فَقَالَ

صحابه کرام د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول او عرض يې وکړ چي يو سخته مځکه په خندق کي راغلل ، رسول الله ﷺ وفرمايل :

أَنَا نَازِلٌ ثُمَّ قَامَ وَبَطْنُهُ مَعْصُوبٌ بِحَجَرٍ وَلَبِثْنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ لَا نَذُوقُ ذَوَاقًا فَأَخَذَ

زه خندق ته ور کښته کيږم ګورم يې ، ددې فرمايلو سره رسول الله ﷺ ولاړ سو او حالت يې دا وو چي د زياتي لوږي له کبله رسول الله ﷺ پر خپل مبارک نس ډبري تړلي وې او د درو ورځو څخه زموږ دا حالت وو چي موږ د څښنلو يو شی نه وو څيښنلی ،

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمِعْوَلَ فَضَرَبَ فَعَادَ كَثِيبًا أَهْيَلَ فَانْكَفَأْتُ إِلَى امْرَأَتِي

رسول الله ﷺ په خپل لاس مبارک تبر پورته کړ او په هغه يې پر مځکي وار وکړ نو هغه سخته ډبره د شګو په ډول ذرې ذرې سول ، د حضرت جابر رضي الله عنه بيان دی ددې څخه وروسته زه د هغه ځای څخه خپل کور ته روان سوم خپلي ښځي ته مي وويل

فَقُلْتُ هَلْ عِنْدَكِ شَيْءٌ فَإِنِّي رَأَيْتُ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمَصًا شَدِيدًا

ستا سره د خوراک يو شی سته ، ما ته معلومه سوې ده چي رسول الله ﷺ سخت وږی دی ،

فَأَخْرَجَتْ جِرَابًا فِيهِ صَاعٌ مِنْ شَعِيرٍ وَلَنَا بُهَيْمَةٌ دَاجِنٌ فَذَبَحْتُهَا وَطَحَنَتْ

زما ښځي يوه کڅوړه راوکښل چي په هغې کي يو صاع اوربشي وې او زموږ په کور کي يو لوی وری وو ما هغه حلال کړ او زما ښځي اوړه وکړل

الشَّعِيرَ حَتّٰى جَعَلْنَا اللَّحْمَ فِي الْبُرْمَةِ ثُمَّ جِئْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بيا ما په کټو کي غوښه واچول او د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم ، کرار مي ورته

فَسَارَرْتُهُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ذَبَحْنَا بُهَيْمَةً لَنَا وَطَحَنت صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ فَتَعَالَ

وویل اې دالله رسوله ! موږ یو وری ذبح کړی دی او یو صاع اوربشي مو اوړه کړي دي تاسو د

أَنْتَ وَنَفَرٌ مَعَكَ فَصَاحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم يَا أَهْلَ الْخَنْدَقِ إِنَّ جَابِرًا

خپلو يو څو ملګرو سره تشريف راوړئ ،ددې اوريدو سره رسول الله ﷺ په لوړ آواز سره
وفرمايل : اې خندق والاوو ! راځئ جابر مېلمستيا تياره کړې ده

صَنَعَ سُورًا فَحَيَّ هَلًا بِكم فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُنْزِلُنَّ

ژر راځئ چي ورسو ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل: تاسو خپل کتهو د نغري

بُرْمَتَكُمْ وَلَا تَخْبِزُنَّ عَجِينَكُمْ حَتَّى أَجِيءَ وَجَاءَ فَأَخْرَجْتُ لَهُ عَجِينًا فَبَصَقَ

څخه مه کښته کوئ او اوړه مه پخوئ تر څو پوري چي زه در نه سم، نو رسول الله ﷺ تشريف راوړ او
اغښلی اوړه د رسول الله ﷺ مخته راوړل سول ، رسول الله ﷺ په هغه اوړو کي د خپل

فِيهِ وَبَارَكَ ثُمَّ عَمَدَ إِلَى بُرْمَتِنَا فَبَصَقَ وَبَارَكَ ثُمَّ قَالَ ادْعِي خَابِزَةً فَلْتَخْبِزْ

خولې مبارک لعاب (ناړي) واچول او د برکت دعاء يې وکړل، بيا زموږ کتهو ته راغلی نو په هغه کي يې
هم لعاب مبارک واچول او د برکت دعاء يې وکړه ، بيا يې زما بي بي ته وفرمايل : ډوډۍ پخونکې
راوغواړه چي ستا سره ډوډۍ پخه کړي

مَعك وَاقْدَحِي مِنْ بُرْمَتِكُمْ وَلَا تُنْزِلُوهَا وَهُمْ أَلْفٌ فَأُقْسِمُ بِاللّٰهِ لَا أَكَلُوا حَتَّى

او غوښي د کتهو څخه راوکاږه او کتهو پر نغري پريږده چي پرته وي، د جابر رضي الله عنه بيان دی چي خندق والا
زر کسان وه ، په الله جل جلاله قسم کولو سره وايم چي ټولو (په ماړه نس) ډوډۍ وخوړل او

تَرَكُوهُ وَانْحَرَفُوا وَإِنَّ بُرْمَتَنَا لَتَغِطُّ كَمَا هِيَ وَإِنَّ عَجِينَنَا لَيُخْبَزُ كَمَا هُوَ. متفق عليه

پاته هم سول او بيرته ولاړل، او زموږ کتهو هم هغسې ډکه وه لکه څرنګه چي د خوراک څخه مخکي وه ،
او اوړه پخيدل چي نه خلاصيدل لکه څرنګه چي په اول کي وه. .بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۳۹۵، رقم: ۴۱۰۱، ومسلم ۳\۱۶۱۰، رقم: ۱۴۱- ۲۰۲۹.

**د لغاتو حل**: كدية: اي قطعة (ټوټه). اهيل: اي سائلا. خمصا : اي خمور في بطنه من الجوع. داجن: سمينة. (چاغ). البرمة: اي القدر من الحجر (د ډبري دېګ). سورا : اي طعاما (خوراک).

**تشريح**: په حديث کي د سُور لفظ چي معنى يې د مېلمستيا په خوراک سره سوې ده، دا په اصل کي د فارسي لفظ دی چي د رسول الله ﷺ پر خوله جاري سو، دغه لفظ د فارسيانو په اصطلاح کي د واده د ډوډۍ لپاره استعمالېږي، ددغه لفظ څخه ماسوا د فارسي نور الفاظ هم پر مختلفو ځايو باندي د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه ادا سوي دي.

د خوراک دغه اندازه د څو کسانو لپاره کافي کېدای سي، نه يوازي دا چي په زرهاوو کسانو په ماړه نس ډوډۍ وخوړل بلکه هم هغسي پاته سول، دا په اصل کي د هغه د ذات د برکت په وجه وو چي د ټولو برکتونو منبع او مخزن دی، او ټول کائنات بلکه مځکه او آسمان دده په برکت معمور دي، همدارنګه بې شمېره معجزې يعني د لږ خوراک زياتېدل، تر ګوتو مبارکو اوبه روانېدل او د لږ اوبه ډېرېدل، دخوراک څخه د تسبيح آواز راتلل، د خرما د درختي زارۍ کول، او داسي نور، دا ټولي داسي پېښې دي چي د حديثو او تاريخ په کتابو کي زياتي مذکور دي او ددې اړوند روايتونه حد تواتر ته رسيدلي دي چي د هغه څخه علم قطعي تر لاسه کيږي، دغه معجزې چي د رسول الله ﷺ د نبوت او رسالت دليل دي، مختلفو محققو علماؤ په ډېر محنت سره په خپلو کتابو کي جمع کړي دي، په دې اړه ډېر ښه کتاب د امام بيهقي رحمه الله دلائل النبوت منل سوی دی.

## د عمار بن ياسر په باره کي پيشګويي

﴿۵۶۲۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِعَمَّارٍ حين يحفر الخندق فجعل يمسح راسه ويقول بوس ابن سمية تَقْتُلُكَ الْفِئَةُ الْبَاغِيَةُ. رواه مسلم.

د حضرت ابو قتاده رضي الله عنه څخه روايت دی چي عمار بن ياسر رضي الله عنه خندق کيندی چي رسول الله ﷺ د هغه پر سر خپل مبارک لاس را تير کړ او وه يې فرمايل: اې د سميه زويه! دومره کوښښ او مشقت، تا به يو سرکښه ډله قتل کړي (نو هغه په جنګ صفين کي قتل کړل سو). مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۴\۲۲۳۵، رقم: ۷۰ – ۲۹۱۵.

**تشريح**: سمية د يوې صحابي مېرمني نوم دی، هغې په پيل کي اسلام قبول کړی وو او د نورو مسلمانانو په ډول دا هم د مکې د کفارو د ظلم او ستم ښکار سوې وه، د ښځي کېدو په وجه هغې د کافرانو د لاسه سخت تکليفونه وزغمل، مګر ددين د لاري څخه يو انچ ليري کېدو ته

تیاره نه سول، په پای کي ابوجهل لعین یوه ورځ هغه مبارکه په شرمګاه کي په خنجر وهلو سره شهیده کړل، حضرت عمار ابن یاسر رضی الله عنه دغه مبارکي ښځي زوی وو، د احزاب د غزا په وخت چي د مدینې د ساتني لپاره صحابه کرامو خندق کیندی نو حضرت عمار رضی الله عنه په پوره مېړانه په دغه کار کي بوخت وو، رسول الله ﷺ هغه ولېدی، د هغه د محنت او مشقت احساس ورته وسو، بیا د عالم الغیب څخه پر رسول الله ﷺ منکشف سول چي د عمار رضی الله عنه مرګ به د باغیانو د لاسه وي نو د رسول الله ﷺ زړه مبارک د عمار په اړه د جذبه ترحم او محبت څخه ډک سو او پر ژبه مبارکه یې ذکر سوي حسرتناک الفاظ جاري سول، په دغه الفاظو کي رسول الله ﷺ یا خو د عمار سختي او مصیبت وکړ مګر مخاطب خپله عمار وو، ددې مطلب دا وو چي اې عماره! زما پر تا باندي ډېر زړه خوږېږي، ته به یوه ورځ په داسي سختي او مصیبت کي وې چي د باغیانو یوه ډله به د امام حق او د وخت خلیفه پر خلاف د بغاوت بېرغ پورته کړي او تا به شهید کړي.

## د حدیث مصداق

د حدیث شارحینو لیکلي دي چي د رسول الله ﷺ دغه وړاند وینه پوره سول، حضرت عمار ابن یاسر رضی الله عنه د صفین په جګړه کي د امیر المؤمنین حضرت علي رضی الله عنه له خوا شریک سو او د حضرت معاویه د ډلي په لاس شهید سو، ددې څخه معلومه سوه چي په دغه جګړه کي حضرت علي رضی الله عنه پر حق وو، ځکه رسول الله ﷺ فرمایلي وه چي د عمار مرګ به د باغیانو په لاس وي او د حضرت معاویه ډلي هغه قتل کړ، په یوه روایت کي نقل سوي دي چي کله حضرت عمار رضی الله عنه شهید سو نو حضرت عمرو ابن العاص چي د حضرت معاویه سره وو ډېر پریشانه سو او حضرت معاویه رضی الله عنه ته راغلی هغه ته یې وویل: دا خو ډېره د پریشانۍ خبره ده چي عمار زموږ د لښکر په لاس ووژل سو، معاویه وویل: ولي؟ په دې کي د پریشانۍ څه خبره ده؟ عمرو بن العاص، معاویه رضی الله عنه ته وویل: ما د رسول الله ﷺ څخه د عمار رضی الله عنه په اړه اورېدلي وه چي تا به د باغیانو یوه ډله قتل کړي، معاویه رضی الله عنه جواب ورکړ، نو عمار رضی الله عنه موږ کله قتل کړی دی، په اصل کي خو علي رضی الله عنه هغه وژلی دی هغه د ځان سره د جنګ لپاره راوستلی وو، دا هم منقول دی چي حضرت معاویه رضی الله عنه ددغه حدیث په الفاظو کي تاویل کوی، دهغه وینا وه چي د باغیه لفظ دلته د بغي څخه مشتق دی چي د هغه معنی د بغاوت ده بلکه د بغاء څخه مشتق دی چي د هغه معنی لټول دي، په دې اعتبار د هغه په نزد د رسول الله ﷺ د ارشاد (تقتلک الفئة الباغیة) معنی دا سوه چي اې عماره! تا به د مطالبه کونکو یوه ډله قتل کړي،

مطلب دا چي کومه ډله د قصاص مطالبه کوي د هغوئ په لاس به عمار قتل سي ، حضرت معاویه ﷜ به ویل چي نحن فئة باغیة طالبة لدم عثمان، (موږ مطالبه کونکې ډله یو چي د حضرت عثمان ﷜ د ویني غوښتونکي یو) مګر د عقل او نقل په رڼا کي د حضرت معاویه ﷜ دا تاویل صحیح نه دی بلکه صریح تحریف دی ، په ځینو روایتو کي دا هم نقل سوي دي چي کله حضرت عمرو بن العاص ﷜ د حضرت معاویه ﷜ په وړاندي ذکر سوې پریشاني ذکر کړل نو معاویه ﷜ هغه ته وویل: ته خو عجیبه سړی یې ، د ځان څخه د کم سړي په اړه دي پښې ښوئیږي یعني عمار خو ستا په مقابله کي یو ادنا سړی وو، بیا دا څه دي چي تا د هغه معامله اخیستې ده او د شک ښکار سوی یې، او زموږ د ملګرتیا څخه جلا کېدل غواړې، مګر ملا علي قاري ﷫ د شیخ اکمل الدین په حواله لیکلي دي چي دغه دواړي خبري پر حضرت معاویه ﷜ باندي افتراء ده ، هغه نه خو د حدیث دغه تاویل کړی دی چي د تحریف مرادف دی او نه یې د حضرت عمار په اړه داسي سپکه خبره کړې ده .

## خبرداری!

بېله شکه د دغه حدیث څخه دا ثابته سول چي د حضرت علي ﷜ او حضرت معاویه ﷜ په منځ کي کومه جګړه رامنځته سوه نو په دې کي حضرت علي ﷜ پر حق وو او کوم خلک چي د هغه د اطاعت څخه په وتلو د جګړې لپاره راوتلي وه هغوئ خروج وکړ مګر ددې دا مطلب هیڅکله نه دی چي خلک د حدیث په لېدو سره او ددې پر محمول او مصداق باندي په پوهېدو سره د حضرت معاویه ﷜ په اړه د لعن او بدویني ژبه اوږده کړي، او د هغوئ ذات د ملامتیا نښه وګرځي، راسخ العقیده او صحیح الفکر مسلمان لره د خلاصون لاره داده چي په دغه نازکه مسئله کي خپله ژبه بنده کړي او د دواړو معامله الله ﷻ ته وسپاري، حضرت معاویه ﷜ یو جلیل القدر صحابي وو، د رسول الله ﷺ په وړاندي یې ډېر عزت او ارزښت درلود، د هغه په شان کي بده خبره د ژبې څخه ایستل د یو صحابي بې ادبي کول دي او د یو صحابي بې ادبي کول د الله ﷻ عذاب ته بلنه ورکول دي، رسول الله ﷺ د خپلو ټولو صحابه کرامو په اړه وفرمایل: اې خلکو ! زما د صحابوو په اړه د الله ﷻ څخه وبیرېږئ، هغوئ د ملامتیا نښه مه ګرځوئ، په یاد ولرئ کوم څوک چي زما د صحابوو سره مینه وکړي نو هغوئ زما سره د مینې درلودلو په وجه د هغوئ سره مینه وکړل او کوم څوک چي زما د صحابه کرامو سره بغض وساتي نو هغوئ زما سره د بغض ساتلو په وجه د هغوئ سره بغض وکړ،

او كوم څوک چي زما صحابوو ته تكليف ورسوي نو هغه په حقيقت كي ما ته تكليف ورسوی او كوم څوک چي ما ته تكليف ورسوي نو هغه ګويا الله ﷻ ته تكليف ورسوی او كوم څوک چي الله ﷻ ته تكليف ورسوي نو هغه به د الله ﷻ په عذاب كي اخته سي، دغه ارشاد ترمذي نقل كړی دی او په دغه كتاب كي هم وړاندي د فضائل صحابه په باب كي داسي ډېر حديثونه راځي، او همدارنګه ډېر حديثونه منقول دي چي د هغه څخه دا ثابتيږي چي پټه خوله كېدل خير دی، په دې كي دا يو حديث د سبق تر لاسه كولو لپاره ډېر كافي دی چي : من سكت سلم و من سلم نجا ، څوک چي پټه خوله سو نو هغه سلامتيا تر لاسه كړل او څوک چي سلامت سو نو هغه خلاصون تر لاسه كړ، ددې څخه ماسوا ځيني حديثونه د حضرت معاويه رضي الله عنه په فضيلت كي منقول دي لكه چي په مخكني باب (علامات النبوة) كي دغه حديث تېر سوی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما په امت كي دداسي خلكو يوه ډله زما په وړاندي راوستل سول چي هغوئ د الله ﷻ په لاره كي جهاد كوی او د درياب پر سر باندي داسي په سفر كولو وښودل سول لكه چي هغوئ د پاچاهانو پر تختو باندي ناست وي...الخ، ددغه حديث مصداق حضرت معاويه رضي الله عنه او د هغه د لښكر خلک وه چي هغوئ تر درياب په تېرېدو د كفارو سره جهاد وكړ، خلاصه دا چي د حضرت معاويه رضي الله عنه په اړه بې ادبي كول ، دهغه سره بغض او نفرت كول او هغه ته بد رد ويلو څخه ځان ساتل پكار دي ځكه دا د رفض او شيعيت د عقائدو څخه دي، الله ﷻ دي موږ دداسي بدو عقيدو څخه خوندي وساتي، ځيني سنيان هم د جهالت او ناپوهی په وجه ددغه فتنې ښكار سي او د صحابي په حق كي د بدو الفاظو اظهار كوي ، ملاعلي قاري رحمه الله په شرح فقه اكبر كي په څرګنده د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت معاويه رضي الله عنه دغه معامله پر خطاء اجتهادي باندي محمول كړې ده، نو اهل سنت ته په خاصه توګه په دې اړه د احتياط لمن نيول پكار دي او خپل زړه د يو صحابي د بغض څخه ساتل پكار دي كه څه هم دهغه تعلق د اهل بيت نبوي سره وي يا د عام صحابه كرامو د ډلي سره وي، او د رسول الله ﷺ په دغه ارشاد په عمل كولو سره پر خپله ژبه د سكوت مهر لګول ضروري دي . (ليحجرک عن الناس ما تعلم من نفسک).

او كله چي د عامو خلكو په اړه دا حكم سوی دی چي (ولاتذكر الناس الا بخير) يعني خلک مه يادوه مګر په خير سره، نو صحابه كرام خو په درجه اولی ددې وړ دي چي د هغوئ په يادونه كي داسي لفظ رانه سي چي په هغه سره د هغوئ پر حيثيت باندي حرف راسي او دا خبره هم بايد په فهم كي وي چي د كومو مقدسو كسانو په اړه الله ﷻ فرمايي :

وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ إِخْوَانًا عَلَى سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ

او د هغوئ په زړونو کي چي کومه کینه وي هغه به موږ لیري کړو او ټول به د ورونو په ډول پر تختونو یو بل ته مخامخ ناست وي، نو ایا دا بدبختي نه ده چي موږ د دغه کسانو په اړه د بد ویلو په ذریعه خپله ژبه چټله کړو .

## یوه پیشګویي چي پوره سوه

﴿۵۶۲۹﴾: وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنَ صُرَدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ أَجْلَى الْأَحْزَابَ عَنْهُ الْآنَ نَغْزُوهُمْ وَلَا يَغْزُونَا نَحْنُ نَسِيرُ إِلَيْهِمْ. رواه البخاري

د حضرت سلیمان بن صرد ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ هغه وخت چي په جنګ احزاب کي کفار په متفرق کیدو سره خپاره سول وه فرمایل :اوس به موږ د هغوئ سره جنګ کوو او هغوئ به زموږ سره جنګ نه کوي موږ به پر هغوئ ورځو . بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۴۰۵، رقم: ۴۱۰۹.

**تشریح**: داد خندق د غزا یادونه ده، کله چي ټول کفار سره د یهودو د زرهاوو په شمېر پر مدینه منوره حمله کونکي سول او د مدینې منورې د ساتني لپاره رسول الله ﷺ د خپلو صحابه کرامو سره په یو ځای کېدو د ښار شاوخوا خندق (کنده) کښلي وو، د قریشو د لښکر مشر ابوسفیان وو، همدارنګه د مشرکانو او کافرانو د نورو ډلوهم خپل خپل مشر وو، دښمن پرله پسې تر یوې میاشتي پوري د مدینې منورې محاصره کړې وه او د خندق بلي خوا ته تیار وه، په دغه وخت کي هیڅ جګړه ونه سول، کله نا کله به د غشي ویشتلو او ډبرو غورځولو لړۍ تر یو وخته روانه وه، په پای کي الله ﷻ خپل غیبي مرسته وکړل، ملائکي نازلې سوې چي د دښمن په مخکي د نه معلومېدو سربېره یې د هغوئ خاتمه وکړل، د باد داسي سخت طوفان راغلی چي د کفارو په لښکر کي سخته تباهي خپره سول او همدارنګه د هغوئ په زړو کي داسي بېره ولوېدل چي ټول لښکر په خپرېد وسره وتښتېدی، په دغه مناسبت سره دې ته د احزاب غزا ویل کیږي، دلته هم رسول الله ﷺ وړاند وینه کړې وه چي نن ورځ د مشرکان همت ختم سوی دی اوس به هیڅکله دښمن ته پر موږ باندي د حملې کولو جرئت نه وي اوس به موږ پر هغوئ حمله کوو ، نو همداسي وسول چي د دغه غزا څخه وروسته د کفارو لښکر پر مدینې حمله ونه کړل بلکه رسول الله ﷺ پر مکې او نورو سیمو باندي حملې وکړلې او الله ﷻ په هر وخت کي فتح ورپه برخه کړل .

## حضرت جبرائيل عليه السلام او د ملائكو د مرستي معجزه

﴿۵۶۳۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا رَجَعَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د جنګ احزاب څخه د راګرځېدو

الْخَنْدَقِ و وَضَعَ السِّلَاحَ وَاغْتَسَلَ أَتَاهُ جِبْرِيلُ وَهُوَ يَنْفُضُ رَأْسَهُ مِنَ الْغُبَارِ

وروسته وسله كښېښودل او د غسل اراده يې وكړه چي جبرائيل عليه السلام تشريف راوړ په داسي حال كي چي رسول الله ﷺ د سر مبارك څخه ګرد او غبار څنډى

فَقَالَ قَدْ وَضَعْتَ السِّلَاحَ وَاللّٰهِ مَا وَضَعْتُهُ اخْرُجْ إِلَيْهِمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى

او ورته يې وويل: تاسو خو وسله ايسته كړه او په الله جل جلاله دي مي قسم وي ما لا تر اوسه وسله نه ده ايسته كړې راځه چي پر كفارو ورځو، رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَيْنَ فَأَشَارَ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ فَخرج النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

چيري؟ جبرائيل عليه السلام د بنو قريظه په لور اشاره وكړه، نو رسول الله ﷺ د بنو قريظه په لور ور

وَسَلَّمَ اِلَيْهِمْ. متفق عليه وفي رواية للبخاري قال انس كاني انظر الى الغبار

ووتى (او فتح يې تر لاسه كړه)، بخاري او مسلم او د بخاري په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي د انس بيان دى چي زه ګويا هغه ګرد او غبار اوس هم وينم

ساطعا في زقاق بني غنم موكب جبرئيل عليه السلام حين سار رسول الله ﷺ الى بني قريظة.

كوم چي د قبيله بنو غنم په كوڅو كي الوتى د هغه سپرو د ډلي څخه د كوم سره چي جبرائيل عليه السلام ملګرى وو كله چي رسول الله ﷺ د بنو قريظه په لور روان وو.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷/۴۰۷، رقم: ۴۱۱۷.

**د لغاتو حل**: غنم موكب: قبيلة من الانصار (د انصارو يوه قبيله).

**تشريح**: د غسل اراده يې كول، ددې څخه دا مراد دى چي رسول اله ﷺ د غسل اراده كړې وه او د لمبېدو لپاره تلى چي حضرت جبرائيل عليه السلام راغلى، په يوه روايت كي دا دي چي كله حضرت

جبرائيل ﷺ راغلی نو رسول الله ﷺ غسل کوی او د سر مبارک یوه برخه پرېولل يې پاته وه، يعني هغه وخت د رسول الله ﷺ غسل پوره سوی نه وو حال دا چي هغه د خپل سر مبارک څخه د خندق د غزا دوړي پاکولې، دلته د هغه ضمير حضرت جبرائيل ﷺ ته هم راجع کېدای سي او رسول الله ﷺ ته هم، خلاصه دا چي د حضرت جبرائيل ﷺ راتلل او د رسول الله ﷺ د بني قريضه سره د جګړې لپاره روانېدل د خندق د غزا څخه وروسته سمدستي رامنځته سوي دي.

د بنو قريظه څخه مراد د يهودو هغه قوم دی چي د مديني څخه دباندي پر دريو يا څلور ميله فاصله باندي اباد وو، هلته د هغوئ سرای او يوه ټينګه قلعه هم وه، هغوئ د وعدې خلاف ورزي وکړل او د رسول الله ﷺ سره د صلح د معاهدې سربېره د خندق په غزا کي د دښمنانو سره ملګري سول او د مسلمانانو د تباهۍ پلان يې جوړ کړی وو، په هر حال رسول الله ﷺ د هغوئ سره جګړه وکړل او الله ﷻ کاميابي ور په برخه کړل، په دې اړه تفصيل د تاريخ او سيرت په کتابو کي ذکر سوی دی.

غنم د انصارو د يوې قبيلې نوم دی، رسول الله ﷺ د بنو قريظه په لور تللو سره د دغه قبيلې پر کلي تيريدی او په ښکاره دا معلوميږي چي هغه وخت د دغه کلي په کوڅه کي د خلګو تګ راتګ نه وو، له دې کبله په کوڅه کي د پورته کېدونکي ګرد په ليدو سره حضرت انس ﷺ دا نتيجه واخيستل چي د ملائکو لښکر روان دی او د هغوئ د قدمو څخه ګرد او غبار پورته کيږي، او غالب ګمان دادی چي د ملائکو د دغه لښکر امير حضرت جبرائيل ﷺ وو.

په دغه حديث کي چي کوم شی د رسول الله ﷺ معجزه څرګندوي هغه يو خو د حضرت جبرائيل ﷺ د خپل لښکر سره د رسول الله ﷺ د مرستي لپاره راتلل دي، او دوهم د ملائکو د قدمونو څخه د ګرد او غبار پورته کېدل دي مګر خپله هغه ملائکي چا ته نه معلومېدلې.

## د ګوتو مبارکو څخه د اوبو وتلو معجزه

﴿۵۶۳۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ عَطِشَ النَّاسُ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دی چي د حديبيې په ورځ کي خلک تږي وه او د رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ يَدَيْهِ رَكْوَةٌ فَتَوَضَّأَ مِنْهَا ثُمَّ أَقْبَلَ النَّاسُ نَحْوَهُ قَالُوا لَيْسَ

مخکي يو پتک پروت وو چي په هغه سره رسول الله ﷺ اودس وکړي بيا يو ډله د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سول او عرض يې وکړ چي

عِنْدَنَا مَاءٌ نَتَوَضَّأُ بِهِ و نَشْرَبُ إِلَّا مَا فِي رَكْوَتِكَ فَوَضَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

زموږ سره د اودس او څښبنلو لپاره اوبه نسته او يوازي دا اوبه دي چي ستاسو سره په پتک کي دي ، ددې اوريدو سره نبي كريم ﷺ

وَسَلَّمَ يَدَهُ فِي الرَّكْوَةِ فَجَعَلَ الْمَاءُ يَفُورُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِهِ كَأَمْثَالِ الْعُيُونِ

خپل لاس مبارک پر پتک کښېښود او د ګوتو څخه په داسي جوش اوبه راوتلې لکه د چينو څخه

قَالَ فَشَرِبْنَا وَتَوَضَّأْنَا قيل لِجَابِرٍ كَمْ كُنْتُمْ قَالَ لَوْ كُنَّا مِائَةَ أَلْفٍ لَكَفَانَا كُنَّا خُمْسَ عَشْرَةَ مِائَةً. متفق عليه.

، د جابر بيان دی چي موږ ټولو خلکو اوبه و څښبنلې او اودس مو هم وکړ ، د جابر ﷺ څخه پوښتنه وسول چي تاسو ټول څو کسان واست؟ هغه وويل که موږ يو لک هم واى نو بيا به هم هغه اوبه بس واى او هغه وخت زموږ شمير پنځلس سوه وو. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۴۴۱، رقم: ۴۱۵۲، ومسلم ۳\۱۴۸۴، رقم: ۷۳-۱۸۵۶.

**د لغاتو حل**: ركوة: اي ظرف ماء من مطهرة او سقاية. (د اوبنو يو لوښى).

**تشريح**: موږ ټولو خلکو ښه اوبه وڅښبنلې، څومره د فخر وړ وه هغه خلک چي هغوئ ته دد غه مقدسو اوبو څښبنلو سعادت په برخه سو او د هغه په برکت د هغوئ په ظاهر او باطن کي څومره پاکي هغوئ ته تر لاسه سول، ځکه چي په مځکه او آسمان کي د هغه اوبو څخه زيات افضل اوبه هيڅ نسته.

که موږ يو لک واى، د حضرت جابر ﷺ دغه جواب يو باريک طنز وو چي د معجزې په اړه د کميت پوښتنه څه معنى لري، هغه وروسته څرګند جواب ورکړ چي هغه وخت زموږ شمېر پنځلس سوه وو او هغه د يو زر او پنځه سوه ويلو پر ځاى پنځلس سوه ځکه وويل چي د کثرت کوم سخت تاثر د پنځلس سوه الفاظو څخه څرګنديږي هغه د يو زر او پنځه سوه الفاظو څخه نه څرګنديږي ، ددې څخه ماسوا د ځينو روايتو څخه معلوميږي چي د صلح حديبيه په وخت کي چي کوم صحابه کرام موجود وه هغوئ د بېلو بېلو ډلو په صورت کي ويل سوي وه او هره ډله پر سلو کسانو باندي مشتمل وه نو جابر ﷺ د پنځلس سوه په ذريعه پنځه لس ډلو ته اشاره وکړل.

## وچ څاه د اوبو څخه ډک سو

﴿۵۶۳۲﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه څخه روایت دی چي د حدیبیې په پېښه کي زموږ شمیر څوارلس

اربع عشرة مائة يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ والحديبية بِئْر فَنَزَحنَاهَا فلم نترك فيها

سوه وو، حدیبیه یو څاه دی موږ د هغه څخه اوبه راوکښلې تر دې چي په هغه کي یو څاڅکی اوبه پاته نه سوې،

قطرة فبلغ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَاهَا فجلس عَلَى شَفِيرِهَا ثُمَّ دعا

نبي کریم ﷺ ته چي ددې خبر ورسیدی نو څاه ته یې تشریف راوړ د څاه پر غاړه کښېنستی، د

باناء مِنْ مَاءٍ فتوضا ثم مضمض وَدَعَا ثُمَّ صبه فيها ثم قَالَ دَعُوهَا سَاعَةً

فَأَرْوَوْا أَنْفُسَهُمْ وَرِكَابَهُمْ حَتَّى ارْتَحَلُوا. رواه البخاري.

اوبو لوښی یې وغوښتی او اودس یې وکړ د اوداسه څخه وروسته یې په خوله مبارکه کي اوبه واخیستلې او دعاء یې وکړل، بیا یې دخولې مبارکي اوبه پکښې واچولې بیا یې وفرمایل: د لږ وخت لپاره څاه پرېږدئ د هغه څخه وروسته خلکو او د هغوئ سپرلیو ښه اوبه وڅښلې او بیا د هغه ځایه روان سول. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴۴۱\۷، رقم: ۴۱۵۰.

**د لغاتو حل**: شفيرها: اي طرفها (څونډه).

**تشريح**: د حضرت جابر رضی الله عنه په روایت کي د پنځلس سوه شمېر بیان سوي وو، حال دا چي د حضرت ابراء رضی الله عنه په روایت کي د څورلس سوه شمېر بیان سوی دی، لکه څرنګه چي ځینو حضراتو ویلي دي چي اصل شمېر تر څورلس سوه زیات او تر پنځلس سوه کم وو، کوم راوي چي د کسر په شمېرلو سره بیان وکړ هغه د پنځلس سوه شمېر بیان کړ او کوم راوي چي کسر پرېښود نو هغه د څورلس سوه شمېر بیان کړ، یا دا چي اهل حدیبیه په ډلو ویشل سوي وه او داسي کېدل چي د اوبو لپاره به ډلي راتللې نو ځیني ډلي به د اوبو په راوړلو سره تلل،

په دغه صورت کي یو وخت به مجموعي شمېر څورلس سوه سو او یو وخت به پنځلس سوه

سو، نو کوم راوي چي کوم شمېر ولیدی هغه يې بیان کړ، او دا هم کیدا سي چي مخکي ټول شمېر پنځلس سوه وو چي حضرت جابر رضي الله عنه بیان کړ او کله چي حضرت براء رضي الله عنه بیان کړ نو هغه وخت د شمېر په کمېدو سره څورلس سوه سوي وي، یو قول دا هم دی چي په هغوئ کي هیڅ راوي هم د یوه یوه سړي په شمېرلو سره یقیني شمېر نه دی بیان کړی بلکه چا چي کوم شمېر بیان کړ، هغه يې د اندازې په توګه بیان کړی دی، چا د څورلس سوه اندازه ولګول او چا د پنځلس سوه اندازه ولګول، او دا هم ویل سوي دي چي په ظاهره دا معلومېږي چي حضرت جابر رضي الله عنه کومه پېښه بیان کړې ده هغه د دغه پېښي څخه چي حضرت براء رضي الله عنه بیان کړې دي د مخکي پېښه ده او په حدیبیه کي داسي معجزې په ډېر واره څرګنده سوي دي نو د ډېرو پېښو په لېدو سره په دواړو روایتو کي د شمېر هیڅ تضاد نه پاته کیږي.

د یوه ساعت لپاره څاه پرېږدئ، ددې مطلب دادی چي د لږ وخت لپاره څاه همداسي پرېږدئ، سمدستي د اوبو راکښلو اراده مه کوئ، لږ څه وخت وروسته به څاه ډک سي نو د هغه څخه اوبه راوکاږئ، کیدای سي رسول الله صلی الله علیه وسلم داسي ارشاد فرمایلي وي چي په څاه کي د اوبو زیاتېدو کومه دعاء چي سوې ده د هغه د قبلېدو ساعت به تدریجي وي.

## په اوبو كي د بركت معجزه

﴿۵۶۳۳﴾: وَعَنْ عَوْفٍ عَنْ اَبِيْ رِجَاءٍ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ كُنَّا فِيْ سَفَرٍ

عوف رضي الله عنه د ابو رجاء څخه او هغه د عمران بن حصین رضي الله عنه څخه روایت کوي چي مونږ په یوه سفر

مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم فَاشْتَكٰى اِلَيْهِ النَّاسُ مِنَ الْعَطْشِ فَنَزَلَ فَدَعَا

کي د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو نو ده مبارک ته خلکو د تندي څخه شکایت وکړ، ددې شکایت اوریدو سره رسول الله صلی الله علیه وسلم راکښېنته سو،

فُلاَنًا كَانَ يُسَمِّيْهِ ابو رجاء ونسيه عوف ودعا عليا فقال اذهبا فابتغيا الماء

یو نفر يې را وغوښتی ابورجا د هغه نفر نوم یاد کړی وو خو د عوف څخه هیر وو او حضرت علي رضي الله عنه يې هم راوغوښتی، بیا يې دواړو ته وفرمایل: تاسو ولاړ سئ اوبه ولټوئ،

فانطلقا فتلقيا امْرَأَةً بَيْنَ مَزَادَتَيْنِ او سطيحتين من ماء فجاءا بها الى

دواړه د اوبو په لټه پسي روان سول، په یو ځای کي یوه ښځه ولیدل چي د اوبو دوه لوی ژي يې

النبي ﷺ فاستنزلوها عن بعيرها ودعا النبي ﷺ باناء ففرغ فيه من

پر اوښ اچولی ناسته وه، دواړو هغه ښځه د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضره کړه ، خلکو هغه ښځه او د اوبو ژی د اوښ څخه راکښته کړل او نبي کريم ﷺ د اوبو لوښی وغوښتی

افواه المزادتين ونودي في الناس اسقوا فاستسقوا قَالَ فَشَرِبْنَا عِطَاشًا

او حکم يې وکړ چي د ژي د خولې څخه دي په لوښي کي اوبه واچول سي، بيا خلکو ته اواز وکړل سو چي راسئ اوبه وڅښئ، نو ټولو خلکو اوبه وڅښلې ، د عمران بن حصين رضي الله عنه بيان دی چي

أَرْبَعِينَ رَجُلًا حَتَّى رَوِينَا فَمَلَأْنَا كُلَّ قِرْبَةٍ مَعَنَا وَإِدَاوَةٍ وَايْمُ اللهِ لَقَدْ أُقْلِعَ عَنْهَا وَإِنَّهُ لَيُخَيَّلُ إِلَيْنَا أَنَّهَا أَشَدُّ مِلْئَةً مِنْهَا حِيْنَ ابْتُدِئَ. متفق عليه.

موږ څلوېښت کسان وو موږ ټولو په ښه ماړه نس اوبه وڅښلې، او خپل ژيان او پټکان مو هم د اوبو څخه ډک کړل ، په خدای دي مي قسم وي موږ ته چي اوبه راکړل سوې نو موږ محسوسه کړه چي هغه ژيان تر مخکي هم زيات ډک دي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۴۴۷، رقم: ۳۴۴، ومسلم ۱\۴۷۴، رقم: ۳۱۲ – ۶۸۲.

**د لغاتو حل**: مزادتين: لما يوضع فيه الزاد. (هغه شی چي تو ښه پکښې اېښودل کيږي).

**تشريح**: د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي موږ ټولو د هغه پټک څخه په ماړه نس اوبه وڅښلې او د چا سره چي کوم لوښی وو هغه يې هم په ښه ډول ډک کړ ، د دې څخه وروسته په هغه پټک (لوښي) کي نه يوازي دا چي اوبه هم هغسي پاته وې بلکه داسي محسوسه سول چي هغه پټک تر مخکي هم زيات ډک سوی دی .

د دغه حديث په پای کي دا الفاظ هم دي چي دلته نه دي نقل سوي دي چي تر دې وروسته رسول الله ﷺ هغه ښځي ته خوراک، غله او نور څه ورکړل ، هغه چي په ستنېدو سره خپل قوم ته راغلل نو خلکو ته يې ټوله قصه بيان کړل او و يې ويل چي هغه سړی يا خو لوی جادوګر دی چي د هغه برابر هيڅ جادوګر په مځکه او آسمان کي نسته او يا هغه سړی په حق نبي دی .

## د درختو د اطاعت معجزه

﴿۵۶۳۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سِرْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى نَزَلْنَا

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره روان وو چي موږ په یو لوی

وَادِيًا أَفْيَحَ فَذَهَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْضِي حَاجَتَهُ فَلَمْ يَرَ شَيْئًا

میدان کي معطله سوو، رسول الله ﷺ د قضاء حاجت لپاره تشریف یووړ، مگر د پردې هیڅ ځای

يَسْتَتِرُ بِهِ وَإِذَا شَجَرَتَيْنِ بِشَاطِئِ الْوَادِي فَانْطَلَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رسول الله ﷺ پیدا نه کړ، ناڅاپه د رسول الله ﷺ نظر د میدان پر غاړه پر دوو درختو ولویدی،

إِلَى إِحْدَاهُمَا فَأَخَذَ بِغُصْنٍ مِنْ أَغْصَانِهَا فَقَالَ انْقَادِي عَلَيَّ بِإِذْنِ اللَّهِ فَانْقَادَتْ

رسول الله ﷺ په هغو کي د یوې درختي خواته ورغلی د هغې یو ښاخ یې ونیوی او وه یې فرمایل: د خدای جل جلاله په حکم سره زما فرمانبرداري وکړه، هغه درختي سمدستي اطاعت وکړ را روانه سول

مَعَهُ كَالْبَعِيرِ الْمَخْشُوشِ الَّذِي يُصَانِعُ قَائِدَهُ حَتَّى أَتَى الشَّجَرَةَ الْأُخْرَى فَأَخَذَ

او د تړلي اوښ په ډول چي د خپل شړونکي اطاعت کوي خپل ښاخونه یې راکښته کړل، بیا رسول الله ﷺ بلي درختي ته ورغلی د هغې یو ښاخ یې ونیوی

بِغُصْنٍ مِنْ أَغْصَانِهَا فَقَالَ انْقَادِي عَلَيَّ بِإِذْنِ اللَّهِ فَانْقَادَتْ مَعَهُ كَذَلِكَ حَتَّى إِذَا

او وه یې فرمایل: د خدای جل جلاله په حکم سره زما اطاعت وکړه هغې هم هغسي اطاعت وکړ را روانه سول او خپل ښاخونه یې پر مځکه راکښته کړل،

كَانَ بِالْمَنْصَفِ مِمَّا بَيْنَهُمَا قَالَ الْتَئِمَا عَلَيَّ بِإِذْنِ اللَّهِ فَالْتَأَمَتَا فَجَلَسْتُ أُحَدِّثُ

بیا رسول الله ﷺ د دواړو درختو منځته تشریف یووړ، او وه یې فرمایل: د خدای په حکم سره تاسو دواړي زما لپاره یو ځای سئ نو دواړي درختي یو ځای سوې، د جابر رضی اللہ عنہ بیان دی، ددې

نَفْسِي فَحَانَتْ مِنِّي لَفْتَةٌ فَإِذَا أَنَا بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُقْبِلًا وَإِذَا

الشَّجَرَتَيْنِ قَدِ افْتَرَقَتَا فَقَامَتْ كُلُّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا عَلَى سَاقٍ. رواه مسلم.

پېښي په لیدو سره زه حیران وم او په خپل زړه کي مي پر دې عجیبه پېښه خبري کولې، ناڅاپه زما نظر پر یو خوا سو وینم چي رسول الله ﷺ را روان دی او هغه درختي مي ولیدې چي دواړې بیرته بیلي سوې او هره درخته بیله بیله پر خپل ځای ودرېدل. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۲۳۰۶\۴، رقم: ۷۴- ۳۰۱۲.

**د لغاتو حل**: افیح: اي واسع (پراخ). المخشوش: هو عویدة تجعل في انف البعیر لیکون اسرع. المنصف: نصف الطریق (نیمه لار).

## پر زخم دم کول

﴿۵۶۳۵﴾: وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ قَالَ رَأَيْتُ أَثَرَ ضَرْبَةٍ فِي سَاقِ سَلَمَةَ بْنِ

د حضرت یزید بن ابي عبیده رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د سلمه بن اکوع رضی الله عنه پر پونډۍ د زخم

الاکوع فَقُلْتُ يَا أَبَا مُسْلِمٍ مَا هَذِهِ الضَّرْبَةُ قَالَ ضَرْبَةٌ أَصَابَتْنِي يَوْمَ خَيْبَرَ

نښه ولیده او ومي ویل اې سلمه ! دا زخم د څه شي دی؟ سلمه راته وویل د خیبر په ورځ دا زخم

فَقَالَ النَّاسُ أُصِيبَ سَلَمَةُ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَفَثَ فِيهِ

ثَلَاثَ نَفَثَاتٍ فَمَا اشْتَكَيْتُهَا حَتَّى السَّاعَةِ. رواه البخاري.

راغلی وو، خلکو وویل سلمه سخت زخمي سو، بیا زه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کي حاضر سوم، رسول الله صلی الله علیه وسلم د زخم ځای درې واره دم کړ بیا تر تنه د هغه تکلیف ما نه دی محسوس کړی. بخاري

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۴۷۵\۷، رقم: ۴۲۰۶.

## د نادیده واقعې خبر ورکولو معجزه

﴿۵۶۳۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ نَعَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدًا وَجَعْفَرًا وَابْنَ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د زید، جعفر او ابن

رَوَاحَةَ لِلنَّاسِ قَبْلَ أَنْ يَأْتِيَهُمْ خَبَرُهُمْ فَقَالَ أَخَذَ الرَّايَةَ زَيْدٌ فَأُصِيبَ ثُمَّ

رواحه د شهید کیدو خبر د مخه خلکو ته ورکړی وو، (یعني تر دې مخکي چي د جنګ د میدان څخه د هغوئ د شهادت خبر راسي)، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چي زید رضی الله عنه په لاس کي بیرغ

أَخَذَ جَعْفَرٌ فَأُصِيبَ ثُمَّ أَخَذَ ابْنُ رَوَاحَةَ فَأُصِيبَ وَعَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ حَتَّى أَخَذَ

واخیستی او شهید کړل سو، بیا بیرغ جعفر رضی الله عنه واخیستی او هغه هم شهید کړل سو بیا ابن

رواحه رضي الله عنه بیرغ واخیست او هغه هم شهید کړل سو ، رسول الله ﷺ دا پېښه بیانول او د سترګو مبارکو څخه یې اوښکي بهېدلې، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : د دې څخه وروسته بیرغ هغه

الرَّايَةَ سَيْفٌ مِنْ سُيُوفِ اللّٰهِ يعني خالد بن وليد حَتّٰى فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ. رواه البخاري

سړي واخیست چي سیف من سیوف الله دی، (یعني د خدای ﷻ د تورو څخه یوه توره ده) ، یعني خالد بن ولید رضي الله عنه تر دې چي الله تعالی مسلمانانو ته پر دښمنانو فتح ورکړه. بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۷\۵۱۲، رقم: ۴۲۶۲.

**تشریح**: دغه پېښه د موته د غزا ده، موته د یو ځای نوم دی چي د شام په هیواد کي واقع دی، دغه جګړه په اتم هجري کال د رومیانو سره سوې ده او رسول الله ﷺ هلته د ذکر سوو درو جلیل القدر صحابه کرامو نومونه واخیستل ، که چیري د جنګ په دوران کي د لښکر امیر ، زید بن حارثه رضي الله عنه شهید سي نو د هغه څخه وروسته به جعفر رضي الله عنه د لښکر امیر وي او د اسلام بېرغ به د هغه په لاس کي وي، او که هغه هم شهید سي نو بیا به د لښکر امیر ابن رواحه رضي الله عنه وي او د اسلام بیرغ به د هغه په لاس کي وي نو په دغه جګړه کي همداسي وسول چي دغه درې سره کسان یو په بل پسې شهیدان سول بیا د اسلامي لښکر مشر حضرت خالد ابن ولید رضي الله عنه وټاکل سو او الله ﷻ د هغه په لاس فتح ورکړل، رسول الله ﷺ په مدینه منوره کي وو او تر هغه وخته پوري د اسلامي لښکر له خوا د جنګ حالات او د صحابه کرامو د شهادت په اړه هیڅ خبر نه وو راغلی، په موته کي د یوې میاشتي د مسافت په اندازه په مدینه منوره کي ناست د دغه پېښي خبر یې ورکړی وو ، دا د رسول الله ﷺ معجزه وه او د دغه حدیث څخه دا هم څرګنده سول چي د مرګ خبر رسول جائز دي .

چي د الله ﷻ د تورو څخه یوه توره وه، د دې مطلب دادی چي د الله ﷻ د غیرتمندو بندګانو څخه یو غیرتي بنده دی، او په دې مناسبت سره د هغه لقب سیف الله (د الله ﷻ توره) دی، نو په دغه جمله کي الله ﷻ ته د توري نسبت په اصل کي د حضرت خالد رضي الله عنه عظمت او د هغه بې مثاله مېړاني څرګندولو لپاره دي، منقول دي چي هغه به د دښمن پر زرو کسانو باندي په حمله کولو سره پر مخکه را غورځول او د هغه ورځ په جګړه کي د هغه په لاس اته توري ماتي سوې.

تر دې چي الله ﷻ مسلمانانو ته بري ورکړ، په دې اړه د محدثینو او شارحینو اختلاف دی

چي په دغه جګړه کي د ښمنانو ته پوره ماته وسول او مسلمانان د غنيمت د مال په اخيستلو سره راستانه سوي دي او که د فتح څخه مراد د مسلمانانو په خپل دفاع کي کامياب کېدل دي، چي اسلامي لښکر د دښمن د زيات قوت او شمېر په مقابله کي صحيح او سلامت راستانه سول.

شيخ عبدالحق رحمة الله عليه دلته ليکلي دي چي د الله جل جلاله له خوا د فتح ورکولو مطلب دادی چي الله جل جلاله د روميانو پر خلاف په جګړه کي د مسلمانانو مرسته وکړل او مسلمانان د هغوئ په لاس د ماتي خوړلو څخه خوندي پاته سول.

## د حنين د غزا معجزه

﴿۵۶۳۷﴾: وَعَنْ عَبَّاسٍ قَالَ شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ

د حضرت عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي په غزوه حنين کي زه د رسول الله ﷺ سره ملګری وم

فَلَمَّا الْتَقَى الْمُسْلِمُونَ وَالْكُفَّارُ وَلَّى الْمُسْلِمُونَ مُدْبِرِينَ فَطَفِقَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى

چي مسلمانانو او کافرانو پر يو بل حملې پيل کړې، نو مسلمانان پر شا کولو سره په تېښته سول، (ددې ليدو سره) رسول الله ﷺ خپل غاتري ته پونده ورکړه

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْكُضُ بَغْلَتَهُ قِبَلَ الْكُفَّارِ قَالَ عَبَّاسٌ وَأَنَا آخِذٌ بِلِجَامِ بَغْلَةِ

او د کفارو پر لور ور مخکي سو، دغه وخت ما د رسول الله ﷺ د غاتري واګي نيولي وې او په

رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكُفُّهَا إِرَادَةَ أَنْ لَا تُسْرِعَ وَأَبُو سُفْيَانَ ابن

دې خيال سره چي هغه يې راټينګوله چي په کافرانو کي په تيزي سره ور دننه نه سي، او ابوسفيان

الحارث آخِذٌ بِرِكَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ

بن حارث د رسول الله ﷺ رکاب نيولی وو، رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْ عَبَّاسُ نَادِ أَصْحَابَ السَّمُرَةِ فَقَالَ عَبَّاسٌ وَكَانَ رَجُلًا صَيِّتًا

اې عباس! اصحاب سمره ته اواز وکړه (سمره د کيکر درختي ته وايي د حديبيې پر موقع ډېرو صحابه کرامو د يو کيکر تر درختي لاندي په جنګېدو د مړ کيدو بيعت کړی وو د دغه بيعت ته بيعت رضوان هم وايي)، د عباس رضي الله عنه لوړ آواز وو

فَقُلْتُ بِأَعْلَى صَوْتِي أَيْنَ أَصْحَابُ السَّمُرَةِ فقَالَ وَاللّٰهِ لَكَأَنَّ عَطْفَتَهُمْ حِينَ سَمِعُوا

ما په لوړ آواز سره وويل اصحاب سمره چيري دي؟ د عباس رضی الله عنه بيان دی قسم په خدای زما د آواز اوريدو سره اصحاب سمره داسي رامنډي کړې لکه څرنګه چي

صَوْتِي عَطْفَةُ الْبَقَرِ عَلَى أَوْلَادِهَا فَقَالُوا يَا لَبَّيْكَ يَا لَبَّيْكَ قَالَ فَاقْتَتَلُوا وَالْكُفَّارَ

غواوي د خپلو بچو په ليدو سره د هغوئ طرف ته ورځي، او وه يې ويل موږ حاضر سو، عباس رضی الله عنه وايي ددې څخه وروسته مسلمانان د کفارو سره وموښتل،

وَالدَّعْوَةُ فِي الْأَنْصَارِ يَقُولُونَ يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ قَالَ ثُمَّ

او انصارو خپل ډلي داسي رابللې اې د انصارو ډلي! اې د انصارو ډلي مرسته وکړئ د دښمنانو سره وجنګيږئ

قُصِرَتْ الدَّعْوَةُ عَلَى بَنِي الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ فَنَظَرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بيا دا بلل يوازي پر قبيله بنو حارث بن خزرج باندي موقوف سول يعني يوازي د حارث اولاد يې را بلی ځکه چي په انصارو کي دا لويه قبيله وه، رسول الله صلی الله علیه وسلم

وَهُوَ عَلَى بَغْلَتِهِ كَالْمُتَطَاوِلِ عَلَيْهَا إِلَى قِتَالِهِمْ فَقَالَ هَذَا حِينَ حَمِيَ الْوَطِيسُ ثُمَّ

پر خپله غاتره سپور وو او غاړه يې پورته کړې وه (جنګ يې کتی) بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم خلک مخاطب کړل چي دا وخت د جنګ د ګرميدو دی،

أَخَذَ حَصَيَاتٍ فَرَمَى بِهِنَّ وُجُوهَ الْكُفَّارِ ثُمَّ قَالَ انْهَزَمُوا وَرَبِّ مُحَمَّدٍ فَوَاللّٰهِ مَا هُوَ

بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم يو څو ډبري په خپل مبارک لاس کي واخيستې او هغه يې د کافرانو مخته وغورځولې، ددې څخه وروسته يې وفرمايل: د محمد صلی الله علیه وسلم په پروردګار دي مي قسم وي کافرانو ماته وخوړل، عباس رضی الله عنه وايي قسم په خدای دا ماته يوازي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ډبرو

إِلَّا أَنْ رَمَاهُمْ بِحَصَيَاتِهِ فَمَا زِلْتُ أَرَى حَدَّهُمْ كَلِيلًا وَأَمْرَهُمْ مُدْبِرًا. رواه مسلم.

غورځولو په سبب کافرانو ته وسول، د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ډبرو غورځولو څخه وروسته تر پايه پوري ما ليدل چي د کافرانو توري او نيزې همداسي پڅي پرتې وي او هغوئ ذليل او خوار سوي وه. مسلم

**تخریج:** صحیح مسلم ۱۳۹۸\۱۳، رقم: ۷۶- ۱۷۷۵.

**د لغاتو حل:** السمرة: وهي الشجرة التي بايعوا تحتها يوم الحديبية. كليلا: اي ضعيفا (ناتوانه).

**تشریح:** حنین د مکې او طائف په منځ کي د عرفات څخه وړاندي د یو ځای نوم دی، چي د مکې د فتح څخه وروسته د شوال په میاشت کي په اتم هجري کال د مسلمانانو او په دغه ځای کي دمیشتو قبائلو هوازن او ثقیف په منځ کي سخته جګړه سوې ده، د جګړې په پیل کي مسلمانان د دښمن د لښکر له خوا د صبح کاذب په تیاره کي د دومره سختي او ناڅاپه حملې سره مخامخ سول چي مسلمانان پرېشانه سول، تر ټولو مخکي په اهل مکه کي نوي ایمان راوړونکو مسلمانانو حوصله د لاسه ورکړل او په تېښته سول، د هغوئ په لېدو سره انصار او مهاجرین هم په پریشاني کي آخوا دېخوا خپاره سول، هغوئ په اصل کي د مرستي او ساتني لپاره په تللو او راتللو سره رسول الله ﷺ ته راتلل مګر په دغه ګڼه ګوڼه کي دا محسوس کېدل چي مسلمانان تېښته کوي، په هر حال په مسلمانانو کي داسي پېښه خامخا رامنځته سوې وه چي په هغه سره د جنګ نقشه د مسلمانانو پر خلاف هم کېدای سول مګر د رسول الله ﷺ میړاني، استقلال او کامیاب حکمت عملي او د الله ﷻ مرستي او نصرت لږ څه وروسته مسلمانان په واک کي کړ او دښمنانو سخته ماته وخوړل.

په دغه جګړه کي رسول الله ﷺ چي پر کومي غاتري سپور وو د هغه نوم دلدل وو، فروه ابن نفاثه چي یو مشرک وو د رسول الله ﷺ په خدمت کي تحفه رالېږلي وه، ددې څخه معلومه سوه چي دمشرکانو تحفه قبلول صحیح دي مګر څرنګه چي په حدیثو کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ د ځینو کافرانو تحفې رد کړي دي نو ځینو ویلي دي چي د رسول الله ﷺ د دلدل تحفه قبلول د هغه عمل ناسخ دی چي رسول الله ﷺ د ځینو مشرکانو هدیه نه وه قبوله کړې، مګر دا قول د نظر وړ دی ځکه د تاریخ په تعین سره دا خبره ثابته نه ده چي د تحفې قبلولو خبره مخکي ده او که د رد کولو، نو دهغه مشرک هدیه یې قبوله کړه چي دهغه د مسلمان کېدو امید وو او د هغه په ذریعه مسلمانانو ته ګټه رسېدل، او د کومو مشرکانو معامله چي ددې برعکس وه د هغوئ تحفه یې رد کړل.

سمره د کیکر درختي ته وایي او په حدیبیه کي رسول الله ﷺ چي د ډېرو صحابه کرامو څخه د کومي درختي لاندي د قربانۍ بیعت اخیستی وو، هغه د کیکر درخته وه، دغه بیعت ته بیعت الرضوان وایي او د کومو صحابه کرامو څخه چي بیعت اخیستل سوی وو هغوئ ته صحاب سمره ویل کیږي.

اصحاب سمره ته ږغ وکړه، ددې څخه د رسول الله ﷺ مقصد دا وو چي کوم خلک د

حديبيه پر موقع موجود وه او هغوئ زما په لاس بيعت کړی دی ، هغوئ ته په ډېر کولو سره ووايه چي دغه وخت ستاسو د امتحان دی د الله ﷻ په لاره کي، او زما د ساتني او حفاظت لپاره د خپلو ځانو قربانولو چي تاسو عهد کړی وو اوس د هغه د پوره کولو لپاره راسئ .

په دغه حديث کي د رسول الله ﷺ د دوو معجزو يادونه ده، يو خو دا چي رسول الله ﷺ د مخکي څخه خبر ورکړی وو چي کفارو ماته وخوړل او دوهمه معجزه دا وه چي رسول الله ﷺ د دښمن مخته شګي وغورځولې او په هغه سره دښمنان د جنګ د ميدان څخه وتښتېدل.

## د حنين په غزا کي د رسول الله ﷺ شجاعت

﴿۵۶۳۸﴾: وَعَنْ أَبِي إِسْحٰقَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِلْبَرَاءِ يَا أَبَا عُمَارَةَ فَرَرْتُمْ يَوْمَ

د حضرت ابو اسحاق رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړي د براء بن عازب رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي اې ابو عماره ! ايا تاسو د حنين په ورځ د کافرانو د مقابلې څخه تښتيدلي واست؟

حُنَيْنٍ قَالَ لَا وَاللّٰهِ مَا وَلّٰى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلٰكِنَّ خَرَجَ

براء بن عازب رضي الله عنه وويل : نه، قسم په خدای رسول الله ﷺ شا کړې نه وه ، پېښه يوازي دومره وه

شُبَّانُ أَصْحَابِهِ لَيْسَ عَلَيْهِمْ كَثِيرُ سِلَاحٍ فَلَقُوا قَوْمًا رُمَاةً لَا يَكَادُ يَسْقُطُ

چي صحابه کرامو يو څو زلميان چي د هغوئ سره زياته وسله نه وه د غشي ويشتونکو کافرانو سره ومونښتل ، دغه کافران داسي غشي ويشتونکي وه چي د هغوئ يو غشي هم پر مځکه نه

لَهُمْ سَهْمٌ فَرَشَقُوهُمْ رَشْقًا مَا يَكَادُونَ يُخْطِئُونَ فَأَقْبَلُوا هُنَاكَ إِلَى رَسُولِ

لويدی، دغه غشي ويشتونکو کافرانو پر هغو داسي غشي اورول چي يو غشي يې نه خطا کيدی ، دا زلميان د دغه ځای څخه رسول الله ﷺ ته ورغلل ،

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورسول الله ﷺ عَلَى بَغْلَتِهِ الْبَيْضَاءِ وَأَبُو سُفْيَانَ

رسول الله ﷺ هغه وخت پر سپيني غاتري سپور وو او ابو سفيان بن حارث د غاتري واګي نيولې

بْنُ الْحَارِثِ يَقُودُهُ فَنَزَلَ وَاسْتَنْصَرَ وَقَالَ أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ أَنَا ابْنُ عَبْدِ

وې ، د دغه زلميانو په ليدو سره رسول الله ﷺ د غاتري څخه راکښته سو او د الله ﷻ مرسته او

فتح یې وغوښتل او وه یې فرمایل: زه نبي یم دا خبره دروا غ نه ده او زه

الْمُطَّلِبْ ثُمَّ صَفَّهُمْ. رواه مسلم وللبخاري معناه وفي رواية لهما قال البراء كنا والله اذا احمر الباس نتقي به وان الشجاع منا للذي يحاذي به يعني النبي صلى الله عليه وسلم.

د عبدالمطلب زوی یم ، ددې څخه وروسته مسلمانان یې یو ځای کړل صف بندي یې وکړل ، مسلم ، او معنا یې د بخاري ده، او د بخاري او مسلم په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي براء بن عازب رضي الله عنه وویل قسم په خدای کله چي جنګ سخت سو نو موږ به رسول الله ﷺ ته پناه وروړل او په موږ کي تر ټولو زیات شجاع او زړه ور هغه سړی شمیرل کیدی کوم چي به د رسول الله ﷺ برابر ولاړ وو.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ٦\١٠٥، رقم: ٢٩٣٠، ومسلم ٣\١٤٠٠، رقم: ٧٨- ١٧٧٦

**تشریح**: رسول الله ﷺ هیڅکله تر شا سوی نه وو، د حضرت براء رضي الله عنه دغه جواب پر ډېره هوښیاري او د رسول الله ﷺ په اړه پر ادب او احترام باندي مبني وو، په اصل کي د پوښتنه کوونکي مطلب دا وو چي ایا تاسو ټول خلک تښتېدلي واست او په ټولو کي د رسول الله ﷺ د ذات سوال هم کېدای سو ځکه حضرت براء رضي الله عنه تر ټولو وړاندي په څرګنده الفاظو کي بیان وکړ چي رسول الله ﷺ نه خو په حقیقت کي تر شا سوی دی او نه په هغه خلکو کي شامل وو چي هغوئ د دښمن څخه پر شا سوي وه چي پر هغوئ باندي صورتا د شا کېدو اطلاق کېدای سو، بیا حضرت براء رضي الله عنه د هغه وخت د اصل صورت حال وضاحت وکړ چي هغه خلک هم په حقیقت کي تر شا سوي نه وه ، کله چي د دښمن سره په مقابله سول نو پر هغوئ باندي یوې ډلي داسي سخت د غشي وارونه کول چي په غشي ویشتلو کي یې ډېر مهارت درلود ، د هغوئ هیڅ غشی نه خطا کېدی ، په داسي صورت کي صحابه کرامو دا مناسب وګڼل چي د خپلو ځانو د ضائع کولو پر ځای د دښمن د مخ څخه آخوا سي او رسول الله ﷺ ته په رسېدو سره د دښمن پر خلاف یو بل محاذ جوړ کړي، د دښمن څخه په موقتي توګه تر شا کېدلو ته هیڅکله تېښته نه وایي هغوئ یوازي د مرستي اخیستلو لپاره راغلي وه چي په مرسته اخیستلو سره د دښمن خلاف په زیات مؤثره توګه جنګ وکړل سي،

دلته یو سوال پیدا کیږي چي مخکي د حضرت عباس رضي الله عنه په روایت کي د تېښتي الفاظ دي حال دا چي حضرت براء رضي الله عنه وایي چي هغه صحابه کرامو ددښمن څخه په آخوا کېدو سره

رسول الله ﷺ ته راغلل ، نو د دواړو په بیان کي تضاد معلومیږي، ددې جواب دادی چي د دښمن د حملې او غشي ویشتني په وخت کي خو داسي وښودل سول لکه چي اسلامي لښکر د جنګ د میدان په پرېښودو سره تښتي مګر سمدستي کله چي رسول الله ﷺ هغوئ ته متوجه سو او حضرت عباس رضی الله عنه د هغوئ رابلل پیل کړل نو په هغه سره په اسلامي لښکر کي د جوش او مېړاني یوه نوې څپه راپیدا سول نو هغوئ د مېدان پرېښودو پر ځای رسول الله ﷺ ته متوجه سول او رسول الله ﷺ ته په نژدې رسېدو سره د جمع کېدو سعادت ورپه برخه سو ، نو همدارنګه هغه عمل چي د تېښتي په صورت کي معلومیدی ، وروسته د قرار او استقامت په صورت کي بدل سو ، نو حضرت عباس رضی الله عنه د لومړني صورت نقشه را وایستل او حضرت براء رضی الله عنه وروسته صورت حال بیان کړ .

او ابوسفیان ابن حارث رضی الله عنه د غاتري واګي نیولي وې، ددغه حدیث دغه جمله هم په ظاهره د حضرت عباس رضی الله عنه د روایت خلاف ده چي په هغه کي دا بیان سوي دي چي د رسول الله ﷺ د غاتري واګي حضرت عباس رضی الله عنه نیولي وې او حضرت ابوسفیان رضی الله عنه د رسول الله ﷺ رکاب نیولی وو مګر په حقیقت کي ددغه دواړو په منځ کي تضاد او تعارض نسته ځکه چي دا خبره پر وار وار نیولو باندي محمول کیږي ، یعني کله به حضرت عباس رضی الله عنه واګي نیولي وي او کله به یې رکاب نیولی وو، نو ابوسفیان رضی الله عنه به واګي نیولي وي او دا هم ممکنه ده چي یوه داسي موقع راغلې وي چي د دواړو لپاره د واګو نیول ضروري سوي وي نو په دواړو روایتو کي بېل بېل د دواړو حضراتو ذکر وسو .

زه نبي یم، په دې کي هیڅ دروا‌غ نسته، زه د عبدالمطلب زوی یم ، دا د (انا النبي لاکذب انا ابن عبدالمطلب) ترجمه ده، او ددغه جملې لفظ د کذب یعني د باء په جزم سره دی چي ددغه جملې پر شعري ترکیب باندي دلالت کوي مګر دغه جمله د رسول الله ﷺ د مناسب طبیعت سره سم بېله قصده د رسول الله ﷺ پر ژبه مبارکه باندي د شعر پر وزن سوې ده نو دې ته شعر نه سي ویل کیدای ، په دغه جمله کي رسول الله ﷺ خپل نسبت خپل پلار حضرت عبدالله ته په نه کولو سره خپل نیکه عبدالمطلب ته وکړ، ددې وجه داده چي په عزت او بزرګۍ کي عبدالمطلب زیات مشهور وو او په دغه جمله کي چي رسول الله ﷺ خپل تعریف وکړ نو دا د غرور او تکبر په توګه نه وو بلکه داسي وو لکه څرنګه چي په عامه توګه د جنګ په میدان کي غازي او مجاهد د دښمنانو په مخکي د خپلي میړاني او شجاعت اظهار کوي ، ددې څخه معلومه سول چي پر داسي موقع باندي او ددغه مقصد لپاره د خپل ځان تعریف کول جائز دي .

هغه وخت په موږ كي زيات شجاع او زړه ور سړی به هغه وو..الخ: يعني هغه وخت د جنګ ميدان دومره سخت او دد ښمن حمله دومره د بيري ډكه وه چي هيڅ مسلمان تر رسول الله ﷺ زيات په مېړانه سره پر درېدو باندي قادر نه وو ، زيات تر زيات داسي وو چي كوم خلك ډېر زړه ور وه هغوئ د آخوا څخه په دېخوا راتللو سره هغه ځاى ته د رسېدو هڅه كول چيري چي رسول الله ﷺ وو ، همدا رنګه هغه خلكو د خپلي دغه حوصلې اظهار كوى چي هغوئ په هيڅ حال كي د رسول الله ﷺ په يوازي پرېښودو سره د جنګ د ميدان څخه نه ځي بلكه د رسول الله ﷺ د مرستي او حوصلې په تر لاسه كولو سره د ښمن مقابلې ته تلل ، كه يو سړی به بې زړه وو نو هغه به يقينا رسول الله ﷺ ته د راتللو پر ځاى په خپله تېښته كي عافيت ليدى ، ددې څخه د رسول الله ﷺ ډېره مېړانه ، شجاعت او د الله ﷻ پر ذات باندي د پوره اعتماد او باور اظهار كيږي.

په دغه حديث كي د رسول الله ﷺ د هغه معجزې ذكر دى چي رسول الله ﷺ په هغه وخت كي د خپلي غاتري څخه په راكښته كېدو د الله ﷻ څخه د فتح او نصرت دعاء غوښتل او د شګو په پورته كولو سره يې د دښمن پر خوا غورځولې چي د هغه په سبب هغه طاقتور لښكر سخته ماته وخوړل.

## د شګو معجزه

| |
|---|
| ﴿۵۶۳۹﴾: وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ |
| د حضرت سلمه بن اكوع رضي الله عنه څخه روايت دى چي موږ د رسول الله ﷺ په ملګرتيا كي په غزوه |
| وَسَلَّمَ حُنَيْنًا فَوَلّٰى صَحَابَةُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا غَشُوا رَسُولَ |
| حنين كي ګډون وكړ ، د رسول الله ﷺ ملګرو تېښته وكړه بيا كافرانو رسول الله ﷺ را ګير كړ نو |
| اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ عَنِ الْبَغْلَةِ ثُمَّ قَبَضَ قَبْضَةً مِنْ تُرَابٍ مِنْ |
| رسول الله ﷺ د سپرلۍ څخه را كښته سو او د مځكي څخه يې يو موټ خاوره پورته كړه او د |
| الْأَرْضِ ثُمَّ اسْتَقْبَلَ بِهِ وُجُوهَهُمْ فَقَالَ شَاهَتْ الْوُجُوهُ فَمَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْهُمْ |
| هغه څخه وروسته يې د كافرانو پر مخ خاوره غورځولو سره وفرمايل د هغوئ مخونه خراب سول يا د هغوئ مخونه دي خراب سي ، بيا چي الله تعالى د هغوئ څخه كوم انسانان پيدا كړي. |

إِنسَانًا إِلَّا مَلَأَ عَيْنَيْهِ تُرَابًا بِتِلْكَ الْقَبْضَةِ فَوَلَّوْا مُدْبِرِينَ فَهَزَمَهُمُ اللَّهُ عَزَّ

وه (يعني كوم كافر چي هلته د خداى په مخلوق كي موجود وو) د هريوه ستركي د خاورو څخه ډكي سوې، او هغوي وتښتېدل او

وَجَلَّ وَقَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ غَنَائِمَهُمْ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ. رواه مسلم.

خداى ﷻ هغوئ ته ماته وركړه او د هغوئ د غنيمت مال رسول الله ﷺ د مسلمانانو په منځ كي وويشى. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴۰۲\۳، رقم: ۸۱- ۱۷۷۷.

**د لغاتو حل**: غشوا: لما قاربوا غشيانه.

**تشريح**: په دغه حديث كي درې معجزې دي، يو خو دا چي رسول الله ﷺ يو موټ خاوره د كافرانو په لور وپاشل او هغه د ټولو ستركو ته ورسېدل، دوهم دا چي په دومره لږ خاوره سره د هغوئ ټولي ستركي ډكي سوې چي د هغوئ شمېر څلور زره وو او دريم دا چي د ظاهري طاقت پرته محض د هغه خاوري او شګو په ذريعه دومره لوى لښكر ماته وخوړل.

**يوه پيشګوئي**

﴿۵۶۴۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ شَهِدْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي موږ په غزوه حنين كي د رسول الله ﷺ سره ګډون

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُنَيْنًا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ مِمَّنْ معه

وكړ، رسول الله ﷺ د يو سړي په اړه چي خپل ځان ته يې مسلمان ويل، دا وفرمايل: چي دا

يَدَّعِي الْإِسْلَامَ هَذَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَلَمَّا حَضَرَ الْقِتَالُ قَاتَلَ الرَّجُلُ مِنْ أَشَدِّ

سړى دوږخي دى بيا چي د جنګ وخت راغلى نو هغه سړى ښه وجنګېدى او پر بدن يې ډېر

الْقِتَالِ وَكَثُرَتْ بِهِ الْجِرَاحُ فجاء رجل فَقَالَ يا رسول الله ارايت الَّذِي

زخمونه راغلل، يو سړى د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو او عرض يې وكړ اې دا الله

تحدث انه مِنْ أَهْلِ النَّارِ قَدْ قَاتَلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ مِنْ أَشَدِّ الْقِتَالِ فَكَثُرَتْ بِهِ

رسوله ! تاسو چي د كوم سړي په اړه دا فرمايلي وه چي هغه دوږخي دي هغه د خداى په لار كي ښه وجنګيدى او ډير زخمونه يې وخوړل،

الْجِرَاحُ فَقَالَ أَمَا إِنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَكَادَ بعض الناس يَرْتَابُ فَبَيْنَمَا هُوَ عَلَى

رسول الله ﷺ وفرمايل : ياد ساتئ هغه دوږخي دى ، نژدې وه چي د ځيني خلكو په زړونو كي ددې پېښي څخه شكونه او شبهې پيدا سوې واى ، (چي ناڅاپه ) هغه سړى چي

ذَلِكَ إِذْ وَجَدَ الرَّجُلُ أَلَمَ الْجِرَاحِ فَأَهْوَى بِيَدِهِ إِلَى كِنَانَتِهِ فَانْتَزَعَ سَهْمًا

د هغه په اړه رسول الله ﷺ د دوږخي كيدو حكم كړى وو د زخمونو د تكليف څخه بې ارامه سو او خپل لاس يې په خپله د غشو د كڅوړي په لور وړاندي كړيو غشى يې راوكښى

فَانْتَحَرَ بِهَا فَاشْتَدَّ رِجَالٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او په هغه يې خپل ځان حلال كړ (يعني ځان يې خپله مړ كړ) ددې ليدو سره ډيرو مسلمانانو د رسول الله ﷺ په طرف را منډي كړې

فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ صَدَّقَ اللَّهُ حَدِيثَكَ قَدْ انْتَحَرَ فُلَانٌ وَقَتَلَ نَفْسَهُ فَقَالَ

او عرض يې وكړ اې د الله رسوله ! خداى جل جلاله ستاسو خبره رېښتونې كړه فلاني سړي خپل ځان خپله وواژه، او خپل ځان يې قتل كړ،

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّهُ أَكْبَرُ أَشْهَدُ أَنِّي عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ يَا بِلَالُ

رسول الله ﷺ وفرمايل : الله اكبر، زه شاهدي وركوم چي زه د الله بنده او د هغه رسول يم، اې بلاله !

قم فاذن لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا مؤمنٌ وَإِنَّ اللَّهَ لَيُؤَيِّدُ هَذَا الدِّينَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ. رواه البخاري.

ولاړ سه او د خلكو په منځ كي اعلان وكړه چي په جنت كي به يوازي مؤمن داخليږي او دا چي الله تعالى دا دين د فاجر سړي په ذريعه هم قوي كوي . بخاري

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٧٩، رقم: ٣٠٦٢، ومسلم ١\١٠٥، رقم: ١٧٨- ١١١.

**د لغاتو حل:** كِنانته: اي جعبته. اشتد : اي عدوا واسرعوا (تېز سوه).

**تشريح**: دلته ددغه ېښني ذکر د حنين دغزا په نسبت سوی دی ، حال دا چي په مواهب لدنيه کي ددغه ېښني يادونه د خيبر د غزا پر موقع سوې ده، په حديث کي چي د کوم سړي يادونه سوې ده د هغه نوم قرمان وو، هغه يو منافق وو که څه هم د هغه منافق کېدل ښکاره نه وه .

يو غشی يې راوکښی او په خپله سينه کي يې چخ کړ، د بخاري په زياتو روايتو کي د سهما پر ځای د جمع صيغه اسهما نقل سوې ده چي مطلب يې دادی : هغه سړي د خپلي کڅوړي څخه په يو وخت کي ډېر غشي راوکښل او هغه ټول يې په خپله سينه کي داخل کړل، د صحيح بخاري په يوه روايت کي نقل سوي دي چي هغه سړي خپله توره پر مځکه کښېښودل او د هغه تېره خوا يې پر خپله سينه کښېښودل او زور يې پر وکړ تر دې چي مړ سو، مګر په دغه دواړو خبرو کي تضاد نسته، کېدای سي چي هغه مخکي د غشي په ذريعه د خپل ځان ختمول غوښتل ، مګر کله چي سمدستي مړ نه سو نو بيا يې د توري په ذريعه د ځان وژني عمل پوره کړی وي، خلاصه دا چي د هغه سړي مرګ په داسي حال کي راغلی چي په هغه کي د دننه خبث باطن (نفاق) وو، او يا دا چي هغه د ځان وژني په سبب د فاسق په مرګ مړ سو .

الله ﷻ دغه دين د فاسق سړي ...الخ: دلته د فاسق څخه مراد يا خو منافق دی يا هغه څوک مراد دی چي د نامه لپاره نېک عمل هم کوي او د ګناه کار هم کوي، يا دا چي ټول عمر نيک عمل کوي مګر په پای کي يو داسي بدعمل وکړي چي په هغه سره يې خاتمه بالخير نه وي، يو احتمال خو دادی چي ددغه جملې تعلق هم د هغه اعلان سره دی چي د هغه حکم رسول الله ﷺ ، بلال رضی الله عنه ته وركړ مګر دوهم احتمال دادی چي ددغه جملې تعلق د هغه اعلان سره نه دی بلکه رسول الله ﷺ دغه جمله جلا وفرمايل او ددې مقصد دا څرګندول وو چي زباني قول او دعوه او ظاهري اعمال په هر صورت د حقيقت ترجمان نه وي داسي هم کيږي چي يو سړی په ژبه سره دخپلي نيکۍ دعوه هم کوي او په ظاهر نيک کار کول هم ښيي مګر په هغه کي د نيت د فساد يا د نفاق داسي خرابي وي چي په هغه سره د هغه حقيقي احوال او د هغه باطن د هغه د ظاهر سره تعلق نه وي که څه هم د هغه د ظاهري اعمالو په سبب دين ته ګټه رسوي ، ددې لوی مثال هغه خلک دي چي محض د مالي مفاد او دنياوي مقصد لپاره ديني کتابونه تصنيف کوي او درس و تدريس کوي يا آذان کوي، امامت کوي ، وعظ او تقرير کوي ، مسجد او مدرسه جوړوي ، داسي خلک په ظاهره په ښه کار کي بوخت معلوميږي او دهغوئ دغه عمل او خدمت اسلام ته او مسلمانانو ته ګټه رسوي او ددين او ملت د تقويت سبب جوړيږي مګر په حقيقت کي هغوئ پر خپل دغه عمل او خدمت باندي د اجر او ثواب څخه بې برخي وي .

## ځان وژونکی دوږخی دی

دغه حديث پر دې خبره دلالت کوي چي ځان وژونکی به دوږخ ته ځي مګر په دې مسئله کي علماؤ ليکلي دي که داسي سړی چي په ځان وژنه يې خپل ځان ختم کړی وي ، مؤمن وي او د ايمان تصديق يې درلود نو په دوږخ کي به تل نه پاته کيږي ، لکه چي د يو مؤمن په قصد سره وژونکي حکم دی، د يو مؤمن خپل ځان وژل داسي دي لکه چي هغه يو بل مؤمن قتل کړی وي، ښکنده دي وي چي د قرآن کريم په يو آيت کي د وژونکي مؤمن په اړه د تل دوږخي حکم بيان سوی دی، مګر علماؤ په دغه آيت کي تاويلونه کړي دي ځکه چي د قرآن کريم د نورو آياتو او حديثو څخه د مؤمن په قصد وژونکي په اړه عدم خلود نار حکم ثابتيږي هغه محدثين چي دهغوئ تعلق د اهل ظواهر سره دی ، هغوئ ويلي دي چي داسي سړی که څه هم مؤمن وي مګر د دوږخ د تل عذاب مستحق به نه وي . يعني دهغوئ په نزد د دوږخ د تل عذاب سره کافران مخصوص نه دي مګر دغه قول شاذ دی او د اهل سنت والجماعة د متفق مذهب بالکل خلاف دی.

### پر رسول الله ﷺ د جادو واقعه

﴿۵۶۴۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سُحِرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حتي انه

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي په رسول الله ﷺ باندي جادو سوی وو (د رسول الله

لَيُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهُ فَعَلَ الشَّيْءَ وَمَا فَعَلَهُ حَتَّى إِذَا كَانَ ذَاتَ يَوْمٍ عِنْدِي دَعَااللّٰه

ﷺ دا حالت سو) چي دا خيال به يې کوی چي يو کار يې کړی دی حال دا چي هغه به يې نه وو کړی (يعني هيره يې زياته سوه) په دغه ورځو کي يو وار رسول الله ﷺ زما سره وو ، د خدای جل جلاله څخه يې دعاء وغوښتل

وَدَعَاه ثُمَّ قَالَ أَشَعَرْتِ يَا عَائِشَةُ أَنَّ اللّٰهَ قد أَفْتَانِي فِيمَا اسْتَفْتَيْتُهُ جاءني

او بيا يې دعاء وکړل (يعني دوه واره يې دعاء وکړل) ، بيا رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل اې عائشي ! تا ته معلومه ده چي ما د خدای عزوجل څخه کومه خبره پوښتلي وه هغه خدای جل جلاله ما ته و

رَجُلَانِ جلس أَحَدُهُمَا عِنْدَ رَأْسِي وَالْآخَرُ عِنْدَ رِجْلَيَّ ثم قَالَ أَحَدُهُمَا

ښودل . او هغه داسي چي دوې ملائکي ما ته راغلې په هغوئ کي يوه زما سر ته کښېنستل او دويمه پښو ته ، بيا په هغوئ کي يوې د بلي څخه پوښتنه وکړه چي

لِصَاحِبِهِ مَا وَجَعُ الرَّجُلِ قَالَ مَطْبُوبٌ قَالَ مَنْ طَبَّهُ قَالَ لَبِيدُ بْنُ الْأَعْصَمِ

د دغه سړي څه ناروغي ده ؟ دویم ورته وویل په ده جادو سوی دی ، بیا اولي پوښتنه وکړه چا جادو په کړی دی ؟ دویمي ورته وویل لبید بن عاصم

اليهودي قَالَ فِيمَاذا قَالَ فِي مُشْطٍ وَمُشَاطَةٍ وَجُفِّ طَلْعِة ذَكَرٍ قَالَ فَأَيْنَ هُوَ

یهودي، لومړني پوښتنه ځیني وکړه په څه شي کي یې جادو کړی دی ؟ دویمي ورته وویل په ږمونځ کي او په هغه ویښتانو کي کوم چي د ږمونځ څخه غورځول کیږي او د خرما د درختي په تازه غونچک کي، لومړني پوښتنه وکړه هغه جادو کړل سوی شی په کوم ځای کي ایښودل

قَالَ فِي بِئْرِ ذَرْوَانَ فَذهب النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أُنَاسٍ مِنْ أَصْحَابِهِ

سوی دی ؟ دویمي ورته وویل د ذروان په څاه کي ، ددې معلومولو سره رسول الله ﷺ د صحابه کرامو سره د هغه څاه په طرف تشریف یووړ،

الى البئر فَقَالَ هذه البئر التي اريتها وكَأَنَّ مَاءَهَا نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ و كَأَنَّ نَخْلِهَا رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ فَاسْتَخْرَجَهُ. رواه البخاري.

او وه یې فرمایل : دا هغه څاه دی چي ما ته ښودل سوی دی ، ددغه څاه اوبه د نکریزو په ډول یخي دي او د خرما د درختي غونچک (چي په څاه کي دی) داسي دي ګویا چي هغه د شیطانانو سرونه دي ، رسول الله ﷺ دا ټول شیان د څاه څخه را وایستل (او د جادو اثر ختم سو). بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\ ٣٣٤، رقم: ٣٢٦٨، ومسلم ۴\ ۱۷۱۹، رقم: ۴۳- ۲۱۸۹.

**د لغاتو حل**: مطبوب: اي مسحور. وجف: وهو وعاء طلع النخل. نقاعة: المعني ان ماءها متغير لونه مثل ماء نقع فيه الحناء.

**تشريح**: د یو شي په اړه به د رسول الله ﷺ خیال وو...الخ: ځینو شارحینو ددغه جملې مطلب دا لیکلی دي چي په رسول الله ﷺ کوم سحر او جادو سوی وو د هغه په اثر د رسول الله ﷺ هیره داسي غالبه سوې وه چي د یو کار کولو یا نه کولو فکر به ورسره وو ، د مثال په توګه د رسول الله ﷺ په فکر کي به دا خبره راتلل چي ما فلانی کار کړی دی حال دا چي هغه به یې نه وو کړی، همدارنګه یو کار به یې کړی وو او دا خیال به یې وو چي هغه کار یې نه دی کړی، ددغه هیري

تعلق يوازي د دنياوي معاملاتو سره وو، په هيڅ يو ديني كار كي دغه صورت هيڅكله نه پيښېدی، په دغه حديث كي د رسول الله ﷺ د ذهني كيفيت او حالت څرگندولو لپاره د يخيل لفظ استعمال سوی دی چي د هغه مثال په قرآن كريم كي د الله ﷻ دغه ارشاد دی چي د حضرت موسی عليه السلام په اړه يې فرمايلی دی: (يخيل اليه من سحرهم انهاتسعی) يعني د موسی عليه السلام په فكر كي دا خبره راغلل چي د جادو په اثر رسۍ ځغلي حال دا چي رسۍ نه ځغلي بلكه د هغه كافرانو جادوگرو له خوا د نظر بندۍ اثر وو چي پر مځكه باندي ساكت رسۍ په فكر كي ځغلېدونكي معلومېدی، يا دا چي هغه جادوگرانو پر رسيو باندي د مخكي څخه يو شی موږلی وي چي هغه رسۍ په لمر كي وغورځول سي نو دلمر په گرمۍ سره د هغه پر ظاهري سطح باندي داسي خپرېدل ظاهر سول چي په هغه سره حضرت موسی عليه السلام ته خيال راغلی چي دغه رسۍ خپله حركت كوي.

په يوه حديث كي د رسول الله ﷺ دغه حالت چي د سحر په اثر په رسول الله ﷺ كي پيدا سوو، داسي بيان سوی دی چي د رسول الله ﷺ په خيال كي به راتلل چي د خپلي يوې بې بي سره كوروالي وكړي مگر بيا به يې نه كول، يعني په رسول الله ﷺ كي به دا خواهش پيدا سو او په دې پوهيدی چي د كوروالۍ طاقت لرم مگر كله چي به بي بي ته ورغلی نو پر هغې به قادر نه وو، څرگنده دي وي چي د نورو ناروغيو په ډول جادو هم يوه ناروغي ده، د انبياء عليهم السلام د بشريت سره سم څرنگه چي پر هغوئ د نورو بدني ناروغيو اثر كيږئ همدارنگه د سحر اثر هم پر هغوئ كېدل د نبوت خلاف نه دي او د رسول الله ﷺ په بدن مبارک كي د جادو تاثير ددغه حكمت اظهار هم وو چي د سحر د تاثير يو حقيقت كيدل داسي ثابت سي چي كله د اشرف المخلوقات ترټولو عظيم شخصيت هم د سحر څخه متاثر كېدای سي نو د نورو څه حيثيت دی، ددې څخه د رسول الله ﷺ د نبوت يو واضح دليل هم د هغه كفارو په مخكي راغلی چي رسول الله ﷺ ته يې ساحر ويل، سحر خپله پر ساحر اثر نه كوي او په رسول الله ﷺ سحر اثر كړی وو نو ثابته سوه چي رسول الله ﷺ ساحر نه وو.

د رسول الله ﷺ سره د سحر كېدو دغه پېښه د ذي الحجه د شپږم كال ده، كله چي رسول الله ﷺ د صلح حديبيه څخه وروسته مدينې منورې ته تشريف راوړی وو او علماؤ ليكلي دي چي د سحر دغه اثر پر رسول الله ﷺ باندي تر څلوېښتو ورځو پوري وو، په يوه روايت كي شپږ مياشتي وخت هم منقول دی او د يو قول مطابق دغه اثر تر يوه كال پوري منقول دی، مگر بيا هم په دغه روايتو كي څه تضاد نسته، غالب گمان دادی چي ددغه سحر اثر په سختي سره تر

ځلوېښتو ورځو پوري وو، او بيا ځيني نښي يې تر شپږو مياشتو پوري وې او پاته لږ اثر يې تر يوه كال پوري وو، په هر حال څرنګه چي بي بي عائشې رضي الله عنها بيان كړى دى، الله جل جلاله په ذكر سوي صورت كي د هغه سحر حقيقت څرګند كړ او د هغه څخه يې خلاصون وركړ.

د الله جل جلاله څخه يې دعاء وغوښتل او بيا يې دعاء وغوښتل، ددې مطلب دادى چي رسول الله ﷺ په وار وار دعاء غوښتل او الله جل جلاله ته په زارى كي پرله پسې مصروف وو، ددې څخه معلومه سوه كه يو ناخوښه او تكليف وركوونكي صورت رامنځته سي نو پر يو آفت نازلېدو باندي الله جل جلاله ته رجوع كول او د خلاصون لپاره دعاء كول مستحب دي.

دلته علماؤ دا نكته بيان كړې ده چي الله جل جلاله د خپل خاص بندګانو په زړه كي د دعاء غوښتل هغه وخت اچوي كله چي د قبوليت ساعت راسي، ددې پر خلاف د عامو خلكو معامله بله وي هغوئ پر خپل حال پرېښودل كيږئ چي هغوئ دعاء كوي تر دې چي د قبوليت وخت راسي نو د هغوئ دعاء قبوله سي.

لبيد بن اعصم يهودي، ځينو حضراتو ليكلي دي چي دلته د لبيد څخه مراد هغه لوښي دي، يعني هغه ملائكي وښودل چي د لبيد بن اعصم لوښو په رسول الله ﷺ باندي سحر كړى دى، دغه حضراتو دغه مراد د قرآن كريم د سورة قل اعوذبرب الفلق د هغه الفاظو پر بنياد بيان كړى دى چي (ومن شر النفاثات في العقد) يعني زه پناه غواړم د يوه كونكو د بدى څخه، د نفاثات معنى پر نفوس سواحر، د جادوګر په ويلو ويلو سره پر تار باندي پوكل او غوټه وركولو هم كيداى سي.

قاضي رحمة الله عليه په خاصه توګه د شر نفاثات څخه د پناه غوښتلو د سبب په ليكني سره بيان كړى دى چي يوې يهودي په رسول الله ﷺ باندي سحر كړى وو او د هغه صورت دا وو چي هغې يهودي د ليندى تار جوړ كړ او هغه ته يې يوولس غوټې وركړې بيا يې هغه تار په څاه كي ښخ كړ نو رسول الله ﷺ د هغه په اثر ناروغ سو، بيا الله جل جلاله معوذتين يعني قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذبرب الناس نازل كړل او حضرت جبرائيل عليه السلام، رسول الله ﷺ ته هغه څاه ور وښودى چيري چي هغې تار ښخ كړى وو، رسول الله ﷺ، حضرت علي رضي الله عنه واستوى، هغه تار راوكښى او را يې وړى، او پر هغه يې دغه سورتونه چف كړل، حضرت علي رضي الله عنه چي به يو آيت پر هغه تار باندي چف كړ نو يوه غوټه به خپله خلاصه سوه، همدارنګه د هر آيت پر يوه يوه غوټه باندي په چف كولو سره ټولي غوټې خلاصي سوې، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ په خپل حالت كي تخفيف محسوس كړ، قاضي رحمة الله عليه دا هم ليكلي دي چي ددغه پېښې څخه د هغه وخت د

کافرانو ددغه خبري رښتیا کېدل نه لازمېږي چي هغوئ ویل: د محمد ﷺ سحر زده دی، هغوئ خو دا خبره په دې معنی کول چي پر محمد ﷺ باندي د یو داسي سحر اثر دی چي په هغه سره (نعوذبالله) د هغه عقل خراب سوی دی او پر هغه لیونتوب خپور سوی دی، حال دا چي د رسول الله ﷺ د سحر اثر بل ډول وو، په هرحال په ښکاره دا معلومېږي چي قاضي رحمه الله کوم روایت بیان کړی دی هغه بله پېښه ده او ددغه پېښي څخه ماسوا ده کوم چي دلته د بي بي عائشي رضي الله عنها په روایت کي بیان سوې ده، دا هم ویل کېږي چي واقعه خو یوه ده مګر په جلا جلا دوو صورتو کي یو ځای پېښه سوې وه یعني خپله لبید هم په خپلو تدبیرونو سره په رسول الله ﷺ باندي سحر وکړ او د هغه لوڼو هم کړی وو، او همدارنګه الله جل جلاله د رسول الله ﷺ د ثواب دوه برابر کولو لپاره د دواړو د سحر په اثر کي اخته کړ.

لکه هغه چي د شیطان سرونه وي، د خرما هغه وړي څه خو د جادو د اثر په وجه او څه په اوبو کي د پاته کېدو په وجه چي څومره زیات په بد شکل کي وې د هغه د ظاهرولو لپاره هغه ته یې د شیطانانو د سرونو سره مشابهت ورکړ ځکه چي عربو د شیطان سره د بدشکلۍ او وحشت علامه ګڼل.

او ځینو حضراتو ویلي دي چي دلته د شیطانانو د سرونو څخه بېرونکي ماران مرادي، په دغه صورت کي مطلب دا وي چي د خرماوي هغه وړي داسي سوې وي لکه چي بېرونکي ماران وي، ددغه پېښي اړوند د حضرت ابن عباس رضي الله عنه هم یو روایت سته چي په هغه کي بیان دی: سحر او د هغه د ځای د معلومېدو څخه وروسته رسول الله ﷺ، حضرت علي رضي الله عنه او حضرت عمار رضي الله عنه د سحر د هغه شیانو را ایستلو لپاره د ذروان څاه ته واستول، کله چي هغوئ دواړو د خرما هغه غونچک د څاه څخه راوکښی نو دهغوئ په خول کي چي د موم څخه جوړ سوی وو د رسول الله ﷺ یو تابوت پیدا کړ، په هغه تابوت کي ستني جګي سوې وي او د هغه سربېره په یوولس غوټو ورکولو سره نغښتي وې، بیا حضرت جبرائیل علیه السلام معوذتین (سورة فلق او سورة الناس) سره نازل سو، د دغه دواړو سورتونو ویل پیل سول نو د هر آیت په ویلو سره یوه غوټه خلاصېدل د هغه تابوت څخه، نو رسول الله ﷺ ته به تسکین او راحت محسوس کېدی، همدارنګه ټولي غوټي خلاصي سوې نو د هغه تابوت څخه ټولي ستني وکښل سوې.

ددغه روایت په اړه شارحینو ویلي دي چي د هغه دواړو کسانو سره به رسول الله ﷺ هم تشریف وړی وي او حضرت علي رضي الله عنه او حضرت عمار رضي الله عنه ته به یې هغه څاه ته په ورتللو سره د هغه شیانو دراکښلو حکم ورکړی وي، په نورو روایتو کي هم دا راغلي دي چي د سحر او جادو

دداغه انکشاف څخه وروسته رسول الله ﷺ د هغه یهودي پر خلاف هیڅ ونه کړل بلکه دا یې وفرمایل چې زه دغه فتنه خپرول نه خوښوم.

## د خوارجو په اړه پیشګوئي چې پوره سول

﴿۵۶۴۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُوْلِ

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چې موږ (په حجرانه نامي ځای کي) د رسول الله

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَقْسِمُ قِسْمًا اَتَاهُ ذُو الْخُوَيْصِرَةِ وَهُوَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي

ﷺ په خدمت کي حاضر وو، او رسول الله ﷺ (د حنین د غزا) د غنیمت مال ویشئ، چې د رسول الله ﷺ په خدمت کي د قبیله بنو تمیم یو سړی حاضر سو چې د هغه نوم ذوالخویصره وو

تَمِيمٍ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اعْدِلْ فَقَالَ وَيْلَكَ فَمَنْ يَعْدِلُ إِذَا لَمْ أَعْدِلْ قَدْ خِبْتَ

او عرض یې وکړ اې دالله رسوله! د عدل او انصاف څخه کار واخلئ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل پر تا دي افسوس وي چې زه عدل او انصاف ونه کړم نو څوک به یې کوي،

وَخَسِرْتَ إِنْ لَمْ أَكُنْ أَعْدِلُ فَقَالَ عُمَرُ ائْذَنْ لِي أَضْرِبْ عُنُقَهُ فَقَالَ دَعْهُ فَإِنَّ لَهُ

بېشکه که زه انصاف ونه کړم نو د نا امیده او تاوانیانو څخه به سم، حضرت عمر رضي الله عنه عرض وکړ اې دالله رسوله! ما ته اجازه راکړئ چې زه یې غاړه ووهم، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل دی پر خپل حال پرېږدئ چې ددغه سړي

أَصْحَابًا يَحْقِرُ أَحَدُكُمْ صَلَاتَهُ مَعَ صَلَاتِهِمْ وَصِيَامَهُ مَعَ صِيَامِهِمْ يَقْرَءُونَ

ځیني خلک ملګري دي چې تاسو به خپل لمنځونه د هغوئ د لمنځونو څخه او خپل روژې د هغوئ د روژو څخه حقیري وګڼئ، دا خلک به قرآن وايي

الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ

مګر قرآن به د هغوئ د حلق څخه نه کښته کیږي، (یعني پر زړه به یې اثر نه وي)، او دا خلک به د دین څخه داسي وځي لکه څرنګه چې غشی د ښکار څخه ووځي

يُنْظَرُ إِلَى نَصْلِهِ إِلَى رِصَافِهِ إِلَى نَضِيِّهِ وَهُوَ قِدْحُهُ إِلَى قُذَذِهِ فَلَا يُوجَدُ فِيهِ شَيْءٌ قَدْ

او ورته وكتل سي تو برې ته نضيي ته چي لړګي دي وزرونو ته دده غشي نو پر هغه شي به بل

سَبَقَ الْفَرْثَ وَالدَّمَ آيَتُهُمْ رَجُلٌ أَسْوَدُ إِحْدَى عَضُدَيْهِ مِثْلُ ثَدْيِ الْمَرْأَةِ أَوْ

پيدا نه كړي ببله دې چي غشي به تير سوى وي تر خوشايو او تر وينو، او ددغه سړي د ځيني تابعدارانو نښه داده چي هغه به د تور رنګ سړى وي چي د هغه په يوه موټ كي به د ښځي د تي

مِثْلُ الْبَضْعَةِ تَدَرْدَرُ وَيَخْرُجُونَ عَلَى خير فُرْقَةٍ مِنَ النَّاسِ قَالَ أَبُو سَعِيدٍ أَشْهَدُ

په ډول غوښه يا د غوښي يوه ټوټه وي چي ښوري به، (يعني د ذوالخويصره هم خيال خلكو كي به يو سړى داسي وي چي د هغه نښه به دغه وي)، او دا خلك (يعني د ذوالخويصره هم خيال او تابعداري به د خلكو د يو غوره ډلي خلاف سركښي كوي، د ابو سعيد خدري ﷺ بيان دى چي

أَنِّي سَمِعْتُ هَذَا الْحَدِيثَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَشْهَدُ أَنَّ عَلِيَّ

زه شاهدي وركوم چي دا حديث ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلى دى او بيا زه دا شاهدي وركوم

بْنَ أَبِي طَالِبٍ قَاتَلَهُمْ وَأَنَا مَعَهُ فَأَمَرَ بِذَلِكَ الرَّجُلِ فَالْتُمِسَ فَأُتِيَ بِهِ حَتَّى نَظَرْتُ

چي حضرت علي ﷺ ددغه خلكو (يعني خوارجو) سره وجنګيدى او زه په هغه جنګ كي د حضرت علي ﷺ سره وم، كله چي حضرت علي ﷺ فتح تر لاسه كړه نو د هغه سړي د لټولو حكم يې وكړ چي د هغه په اړه رسول الله ﷺ فرمايلي وه نو هغه سړى پيدا كړل سو او راوستل سو ما

إِلَيْهِ عَلَى نَعْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي نَعَتَهُ وفي رواية أَقْبَلَ رَجُلٌ غَائِرُ

هغه وليدى د هغه كوم صفت چي رسول الله ﷺ بيان كړى وو په هغه كي موجود وه، او په يوه روايت كي د ذوالخويصره د حاضريدو پر ځاى دا الفاظ دي چي يو سړى د رسول الله ﷺ په

الْعَيْنَيْنِ نَاتِئُ الْجَبهة كَثُّ اللِّحْيَةِ مُشْرِفُ الْوَجْنَتَيْنِ مَحْلُوقُ الرَّأْسِ فَقَالَ يَا

خدمت كي حاضر سو چي د هغه ستركي دننه ژوري وي تندى يې راوتلى وو ږيره يې لړلې وه او بارخوګان يې پړسيدلي وه او سر يې خريلى وو، او رسول الله ﷺ ته يې دا وويل اې محمد!

مُحَمَّدُ اتَّقِ اللَّهَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَنْ يُطِيعُ اللَّهَ إِذَا عَصَيْتُهُ

د الله جل جلاله څخه وبيريږه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل كه زه د خداى نافرماني وكړم نو څوك به د

هغه اطاعت كوي او خداى ﷻ ما د ځمكي په خلكو كي

فَيَأْمَنُنِي اللهُ عَلَى أَهْلِ الْأَرْضِ وَلَا تَأْمَنُونِي فَسَأَلَ رَجُلٌ قَتْلَهُ فَمَنَعَهُ فَلَمَّا وَلَّى

امين ګڼي، ته ما امين نه ګڼې او پر ما اعتماد نه لرې، يو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړه ايا دى قتل كړو؟ رسول الله ﷺ منع وكړه بيا چي هغه سړى ولاړى

قَالَ إِنَّ مِنْ ضِئْضِئِ هَذَا قَوْمًا يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ يَمْرُقُونَ

نو رسول الله ﷺ وفرمايل: ددغه سړي د اصل څخه به يو قوم پيدا كيږي چي قرآن به وايي او قرآن به د هغوئ د حلق څخه لاندي نه ځي (يعني عمل به نه په كوي) دا خلك به د دين اسلام

مِنَ الْإِسْلَامِ مُرُوقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ فيقولون أَهْلَ الْإِسْلَامِ وَيَدَعُونَ أَهْلَ الْأَوْثَانِ لَئِنْ أَدْرَكْتُهُمْ لَأَقْتُلَنَّهُمْ قَتْلَ عَادٍ. متفق عليه.

څخه داسي ووځي لكه څرنګه چي غشى د ښكارلپاره وځي بيا دا خلك به مسلمانان قتل كړي او بت پرسته به پر خپل حال پريږدي، كه زه هغه خلك تر لاسه كړم نو زه به يې داسي هلاك كړم لكه څرنګه چي عاد قوم هلاك كړل سو. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٧٦، رقم: ٣٣٤۴، ومسلم ٢\٧٤١، رقم: ١٤٣- ١٠٦۴.

**د لغاتو حل**: يمرقون: اي يخرجون (راوزي) رصافة: وهو عصب يلوي فوق مدخل النصل. قذذة: ريش السهم (د غشي څوكه). البضعة: قطعة اللحم (د غوښو ټوټه).

**تشريح**: ذوالخويصره نامى سړى چي په حديث كي يې يادونه وسول، په اصل كي منافق وو. او څرنګه چي رسول الله ﷺ وړاند وينه كړې وه د امير المؤمنين حضرت علي رضي الله عنه په زمانه كي كومي ډلي چي د حضرت علي رضي الله عنه خروج او بغاوت لار اختيار كړې وه هغه خوارجو په نامه مشهوره سوه، ددغه ډلي اصل بنياد دغه سړى وو چي د هغه په اړه د قرآن كريم دغه آيت: وَمِنْهُم مَّن يَلْمِزُكَ فِي الصَّدَقَاتِ، نازل سو، يو شارح دا ويلي دي چي ذوالخويصَره د خارجيانو سردار وو نو دا خبره صحيح نه ده ځكه چي د خارجيانو ظهور د حضرت علي رضي الله عنه په زمانه كي سوى دى.

د حنين په غزا كي دغنيمت په توګه چي كوم مال او سامان د اسلامي لښكر په لاس ورغلى وو، رسول الله ﷺ هغه په مسلمانانو كي داسي وويشى چي د كوم چا څومره ضرورت او اړتيا

وه هغه ته يې په هغه اعتبار ورکړل، هغه منافق ، ذوالخويصره ته دا خبره ناخوښه سول اود خپلي بدګمانۍ په اظهار يې دا اعتراض وکړ چي تاسو بايد د غنيمت مال داسي ونه ويشئ، بلکه هر چا ته برابر ورکول پکار دي، ددغه خبري چي رسول الله ﷺ کوم جواب ورکړ د هغه خلاصه دا وه چي د انصاف او عدل پر تقاضا باندي زما څخه زيات څوک پوهېداى سي د غنيمت د مال د وېشلو چي کومه طريقه ما اختيار کړې ده د هغه بنياد د عدل او نصاف څخه ماسوا نور هيڅ نه دی، دعدل مطلب دا نه دی چي هر سړي ته دي برابر ورکړل سي که څه هم د يو سړي ضرورت زيات وي نو هغه ته د ضرورت په اعتبار زيات ورکول پکار دي چي د هغه ضرورت پوره سي او کوم څوک چي لږ ضرورت لري نو هغه ته کم ورکړل سي ، بيا رسول الله ﷺ هغه سړي ته ښکاره کړل چي زه رحمة العالمين دنيا ته را استول سوی يم چي د هر چا سره د عدل او انصاف معامله وکړم که يو څوک زما پر عدالت او انصاف باندي اعتراض کوي نو ددې مطلب دادی چي د هغه په برخه د مايوسۍ او محرومۍ څخه ماسوا نور هيڅ نسته نو ستاسو غوره والی په دې کي ده چي ته زما پر عدل باور وکړې، او که ته زما پر عدل باور نه کوې او ستا په نزد زه انصاف نه کوم نو پوه سه چي ته خپله د خپل ګمان سره سم نااميده او محروم سوې او په تاوان کي سوې .

په شرح السنه کي دي چي رسول الله ﷺ ، حضرت عمر رضي الله عنه د هغه سړي د وژني څخه منع کړ مګر د بل روايت په سبب رسول الله ﷺ د خپل دغه ارادې اظهار وکړ که زه ددغه سړي پيروي کوونکي تر لاسه کړم نو قتل به يې کړم، په دغه دواړو روايتو کي په ښکاره تضاد معلومېږي ، ددې وجه داده چي رسول الله ﷺ د خپل ارادې د اظهار په صورت کي دهغه خلکو قتل ته چي مباح وفرمايل نو ددې تعلق د هغه صورت سره دی چي کله هغه خلک خپله ډله جوړه کړي او ټول په يو ځای کېدو سره د نورو خلکو يعني مسلمانانو سره مخالفت وکړي او دهغوئ خلاف د جنګ اعلان وکړي، حال دا چي د حضرت عمر رضي الله عنه د منع کولو پر وخت دا صورت نه وو ، هغه محض يو سړی وو چي د خپلي بدګمانۍ او نفاق اظهار يې کړی وو ، دغه د فتني ظهور اود فساد پيل د حضرت علي رضي الله عنه په زمانه کي وسو ، حضرت علي رضي الله عنه د هغوئ مقابله وکړل او په هغوئ کي يې ډېره ووژل، مګر صحيح او ښه خبره هغه ده چي يو شارح ليکلې ده چي د رسول الله ﷺ ، حضرت عمر رضي الله عنه ته د هغه سړي د قتل اجازه نه ورکول دا په اصل کي د وسول الله ﷺ حسن اخلاق او تحمل دليل دی چي رسول الله ﷺ هيڅکله د خپل ذات مبارک په اړه د چا څخه بدله اخيستل نه غوښتل حال دا چي هغه سړي د زياتوب او دښمني په اظهار کي هيڅ کمي نه وه کړې

، ځکه رسول الله ﷺ ته مخامخ په مخاطب کېدو سره دا وویل چي د الله ﷻ څخه وېرېږه ،
او په یوه روایت کي د هغه دغه الفاظ هم منقول دي چي اې محمد !(ﷺ) ته چي څرنګه مال
ویشې په هغه کي عدل او انصاف نسته، د هغه داسي الفاظ ددې لپاره کافي دي چي هغه
سمدستي ووژل سي، ځکه چي هغه پر رسول الله ﷺ باندي بدګماني وکړل او پر رسول الله ﷺ
یې عیب ووایه ځکه که یو سړی نن هم د رسول الله ﷺ په اړه داسي الفاظ د خولې څخه وباسي
نو پر هغه دي د کفر او ارتداد حکم ولګول سي مګر ددې سربېره رسول الله ﷺ هغه ته سزا ور نه
کړل او هغه ته یې د قرار واقعي سزا ورکولو اجازه ور نه کړل.

چي د هغوئ دلمونځونو په مقابله کي ستاسو لمونځونه ...الخ: ددې مطلب دادی چي د
هغه سړي پیروان به په ظاهره ډېر دېنداره او د شریعت تابع معلومېږي ، هغوئ به دعامو
مسلمانانو په نظر کي داسي ښه لمونځونه کوي او داسي ښه روژې به نیسي چي لوی لوی پاخه
او رېښتوني مسلمانان به د هغوئ په مقابله کي خپل لمونځونه او روژې کم ګڼي، هغوئ به د
قرآن کریم تلاوت کوي او داسي به کوي چي د ترتیل او تجوید او مخارج حروف د ټولو قواعدو
او ادابو خیال به ساتي مګر د هغوئ په زړه کي به نفاق وي ځکه د هغوئ تلاوت به تر ستوني نه
کښته کېږي، یعني نه به د هغوئ تلاوت او قرائت د الله ﷻ په نزد مقبول وي او نه به د هغوئ
عبادت او اعمال پورته خېژي او نه به نتیجه ورکوي، یا دا چي د هغوئ تلاوت به یوازي د
هغوئ تر ژبو پوري محدود وي، زړه ته به نه ځي او نه به د هغه اثر روح ته رسېږي ، بیا هر کله چي
دغه خلک خپله ټینګه ډله جوړه کړي او د طاقتوري ډلي صورت اختیار کړي نو بیا د دین
اطاعت او فرمانبرداري یا د وخت د امام د اطاعت او یا د اسلام د دائرې څخه داسي وځي لکه
څرنګه چي غشی د لیندۍ څخه وي.

څرنګه چي د ښکار د منځ څخه وتلی غشی په وینه یا نور نجاست نه لړل کېږي همدارنګه
دغه خلک به د دین څخه د وتلو وروسته پر هغوئ د دینداری او اسلام سره د تعلق او د
مسلمانانو سره دمیني د ذرې په اندازه اثر هم نه ښکار کېږي حال دا چي هغوئ ښه لمونځ
کونکي ، ډېر تلاوت کونکي او د تهجد ادا کونکي وي.

هغوئ به د دین څخه داسي وځي...الخ: د حدیث دغه جمله د هغه علماؤ دلیل دی چي د
خوارجو د کافر کېدو قائل دي او خطابي رحمة الله علیه ویلي دي چي د دغه جملې (د دین څخه به وځي)
دا مطلب نه دی چي هغه خلک به بالکل د دین څخه خارج سي بلکه دهغوئ د وخت د امام پر
خلاف سرکښي کول مراد دي.

او سريې خريلي وو: دا د هغه سرې د هغه هيئت او شکل ظاهري مخالفت وو چي پر هغه باندي د رسول الله ﷺ اکثر صحابه کرام وه، اکثرو صحابه کرامو پر سر وېښتان پرېښودل او نه به يې خريل، ماسوا د هغه وخت څخه چي کله د حج څخه دفارغه کېدو وروسته د سر خريل ضروري وي، مګر د حضرت علي رضي الله عنه په اړه منقول دي چي هغه به زيات وختونه سر خرايه او هغه هم له دې کبله چي د غسل کولو په وخت کي سر ته اوبه ورسېږي.

لکه څرنګه چي د عاد قوم خلک وژل سوي وه، دلته د وژني څخه مراد هغوئ اجتماعي هلاکت او د هغوئ له منځه وړل دي او د غه هلاکت په قتل سره تعبير کول محض د مشابه کېدو لپاره دي، او کوم چي د حقيقت تعلق دی نو د عاد قوم قتل سوي نه وه بلکه د سخت طوفان په ذريعه داسي هلاک سوي وه چي ټول قوم نيست او نابود سو.

## د ابوهريره رضي الله عنه د مور اسلام راوړلو واقعه

﴿۵۶۴۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كُنْتُ أَدْعُو أُمِّي إِلَى الْإِسْلَامِ وَهِيَ مُشْرِكَةٌ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما به خپل مور ته چي مشرکه وه همېشه د اسلام راوړلو دعوت ورکوی،

فَدَعَوْتُهَا يَوْمًا فَأَسْمَعَتْنِي فِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَكْرَهُ فَأَتَيْتُ

يوه ورځ ما هغې ته د اسلام راوړلو دعوت ورکړي نو هغې د رسول الله ﷺ په شان کي داسي خبره وکړه چي پر ما بده ولګېدل،

رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَبْكِي قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَهْدِيَ

زه په ژړا ژړا رسول الله ﷺ ته راغلم او عرض مي وکړې اې د الله رسوله! د الله جل جلاله څخه دعاء وغواړه چي زما مور ته هدايت وکړي چي اسلام راوړي،

أُمَّ أَبِي هُرَيْرَةَ فَقَالَ اللَّهُمَّ اهْدِ أُمَّ أَبِي هُرَيْرَةَ فَخَرَجْتُ مُسْتَبْشِرًا بِدَعْوَةِ النَّبِي

رسول الله ﷺ وفرمايل: اې الله! د ابوهريره مور ته د اسلام راوړلو هدايت وکړې، زه د رسول الله ﷺ په دعاء سره خوشحاله سوم بېرته راغلم

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا صِرْتُ إِلَى الْبَابِ فَإِذَا هُوَ مُجَافٌ فَسَمِعَتْ أُمِّي خَشْفَ

او د خپلې مور د کور دروازې ته ورسيدم، نو وينم چې دروازه بنده وه، زما مور زما د قدمونو

قَدَمَيَّ فَقَالَتْ مَكَانَكَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ وَسَمِعْتُ خَضْخَضَةَ الْمَاءِ فَاغْتَسَلَتْ فَلَبِسَتْ

اواز واوريدی نو هغې وويل: لږ تم سه، بيا ما د اوبو توئيدلو اواز واوريدی (يعني د غسل کولو) زما مور غسل وکړ او جامه يې واغوستل او

دِرْعَهَا وَعَجِلَتْ عَنْ خِمَارِهَا فَفَتَحَتْ الْبَابَ ثُمَّ قَالَتْ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ أَشْهَدُ أَنْ لَا

پوړنی يې پر سر کړی لا نه وو چې دروازه يې خلاصه کړه او وه يې ويل: اې ابوهريره! زه شاهدي ورکوم چې د الله ﷻ څخه پرته

إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ فرجعت الى رسول الله صلى الله عليه وسلم وَأَنَا أَبْكِي مِنْ الْفَرَحِ فَحَمِدَ اللَّهَ وَقَالَ خَيْرًا. رواه مسلم

بل څوک د عبادت وړ نه سته او زه شاهدي ورکوم چې محمد ﷺ د الله بنده او د هغه رسول دی. (ابوهريره رضي الله عنه وايي) زه بيرته ولاړم رسول الله ﷺ ته ما د خوشحالۍ څخه ژړل، رسول الله ﷺ د خدای تعريف وکړ او زما د مور پر اسلام راوړلو يې ښه وويل. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۹۳۸/۴، رقم: ۱۵۸- ۲۴۹۱.

**د لغاتو حل**: مجاف: اي مردود. خشف: اي صوتهما وقيل حركتهما. عجلت: اي تركت خمارها.

**تشريح**: او د خوشحالۍ څخه په اوښکو تويولو سره ...الخ: حقيقت دادی چې انسان محض د غم په وخت کې اوښکې نه بيوي بلکه په ډېره خوشحالۍ کې هم د سترګو څخه اوښکې بهيږي، يو هوښيار سړي ډېره ښه خبره کړې ده چې د خوشحالۍ ژړا له دې کبله وي چې غم د اوښکو په صورت کې په بهېدو سره وتل غواړي.

او ښه يې وفرمايل، ددې يو مطلب خو دادی چې رسول الله ﷺ د دغه زيرې په اورېدو سره پر دعاء او زيرې باندې مشتمله يوه ښه خبره وفرمايل، او يا دا چې د خير لفظ د يو داسې عبارت سره تعلق لري چې الفاظ خو مذکور نه دي مګر د هغه مفهوم مراد سوی دی يعني رسول الله ﷺ داسې وفرمايل: اې ابوهريره! ته د خپلې مور د اسلام راوړلو په سبب د اجر او انعام مستحق سوې.

په دغه حديث کې د رسول الله ﷺ د هغه معجزې يادونه ده چې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه مور پر کفر او انکار باندې سخته ولاړه وه او د اسلام سره يې سخت بغض او نفرت درلودی مګر د

رسول الله ﷺ دعاء سمدستي اثر وکړ او د هغې په زړه او دماغ کي حیرانوونکي بدلون راغلی چي د اسلام غیږي ته راغلل.

## دابوهریره ﷺ ډیر روایتونه

﴿۵۶۴۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ اِنَّكُمْ تَقُوْلُوْنَ اَكْثَرَ اَبُوْهُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابوهریره ﷺ څخه روایت دئ چي هغه تابعینو ته په مخاطب کولو سره وویل چي تاسو وایاست چي ابوهریره د نبي کریم ﷺ څخه زیات حدیثونه نقل کوي

وَسَلَّمَ وَاللّٰهُ الْمَوْعِدُ وَإِنَّ إِخْوَتِي مِنَ الْمُهَاجِرِينَ كَانَ يَشْغَلُهُمُ الصَّفْقُ بِالْأَسْوَاقِ

او الله ﷻ وعده ګاه دی (یعني د قیامت په ورځ زموږ د الله ﷻ په مخکي حاضریدل دي) که ما په حدیث بیانولو کي یو خیانت کړی وي نو ما ته به خدای ﷻ سزا راکړي، پښبنه داده چي زما مهاجرو وروڼو به په بازار کي کاروبار کوی

وَإِنَّ إِخْوَتِي مِنَ الْأَنْصَارِ كَانَ يَشْغَلُهُمْ عَمَلُ أَمْوَالِهِمْ وَكُنْتُ امْرَأً مِسْكِينًا

او د هغوئ دغه بوختیا به هغوئ د رسول الله ﷺ په خدمت کي د زیاتي حاضرۍ څخه منع کول، او انصار وروڼه به په مالي کارونو کي بوخت وه، هغوئ ته به هم د حاضرۍ زیاته موقع په لاس نه ورتلل، او زه یو مسکین سړی وم چي

أَلْزَمُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى مِلْءِ بَطْنِي وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

نس به مي موړ سو نو پر هغه به مي قناعت وکړ او د رسول الله ﷺ په خدمت کي به پروت وم، یوه ورځ نبي کریم ﷺ وفرمایل: دا

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا لَنْ يَبْسُطَ أَحَدٌ مِنْكُمْ ثَوْبَهُ حَتَّى أَقْضِيَ مَقَالَتِي هَذِهِ ثُمَّ

هیڅکله نه سي کیدلای چي په تاسو کي دي یو څوک خپله جامه وغوړوي (یعني زما د حدیث اوریدو لپاره دي لمن هواره کړي) او تر هغه وخته پوري دي غوړولې لري چي زه خپله خبره پای

يَجْمَعَهُ إِلَى صَدْرِهِ فَيَنْسَى مِنْ مَقَالَتِي شَيْئًا أَبَدًا فَبَسَطْتُ نَمِرَةً لَيْسَ عَلَيَّ

ته ورسوم، او بیا به هغه خپله جامه د خپل سینې سره لګوي، او بیا دي زما حدیث ځیني هیر

سي. (يعني كوم سړی چي په پوره توجه سره زما سره خبره واوري او تر پايه پوري يې واوري او بيا هغه په سينه كي محفوظ كړي هغه هيڅكله زما خبره نه سي هيرولای)

ثَوْبٌ غَيْرُهَا حَتَّى قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقَالَتَهُ ثُمَّ جَمَعْتُهَا إِلَى

دا رسول الله ﷺ د خپلو صحابه كرامو په اړه دعاء كړې وه، نو ما خپله شړۍ خلاصه كړل ځكه چي بله يو جامه زما سره نه وه تر دې چي رسول الله ﷺ حديث پوره كړ بيا ما هغه د

صَدْرِي فَوَالَّذِي بَعَثَهُ بِالْحَقِّ مَا نَسِيتُ مِنْ مَقَالَتِهِ ذالك إِلَى يَوْمِي هَذَا. متفق عليه.

خپل سينې سره ولګول، په هغه ذات دي مي قسم وي چي محمد ﷺ يې په حق سره راليږلی دی ما د رسول الله ﷺ د حديثونو څخه تر اوسه پوري هيڅ نه دي هير كړي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲۸\۵، رقم: ۲۳۵۰، ومسلم ۱۹۳۹\۴، رقم: ۱۴۹- ۲۴۹۲.

**د لغاتو حل**: الصفق: اي ضرب اليد على اليد عند البيع (چكچكي). نمرة: اي شملة مخططة من مآزر الاعراب.

**تشريح**: د الله ﷻ وعده حق ده، دلته د الله ﷻ د وعدې څخه مراد د قيامت ورځ ده، په دغه خبره دابوهريره ﷺ مطلب دا وو چي د قيامت په ورځ موږ ټولو ته د الله ﷻ په مخكي حاضرېدل دي كه ما د رسول الله ﷺ د حديث په بيانولو كي كمي اوزياتوب يا خيانت كړی وي نو يقينا الله ﷻ به د قيامت په ورځ ما ته سزا راكړي ځكه رسول الله ﷺ فرمايلي: كوم څوك چي پر ما دروغ ووايي يعني زما له خوا د دروغو په نسبت كولو سره حديث بيان كړي نو هغه دي خپل ځای په دوږخ كي تيار وګڼي.

د نورو صحابه كرامو په نسبت، حضرت ابوهريره ﷺ د رسول الله ﷺ څخه زيات حديثونه ولي بيانوي، نوموړي خپله ددې دوه سببه بيان كړي دي، لومړی دا چي د رسول الله ﷺ په خدمت كي تر ټولو زيات د حاضرېدو سعادت هغه ته تر لاسه وو، لكه چي ابوهريره ﷺ بيان وكړ چي مهاجر صحابه كرام زيات تجارت كوونكي وه، دخپل تجارت او كاروبار د بوختيا په وجه د رسول الله ﷺ په خدمت كي هر وخت نه حاضرېدل، همدارنګه انصار په خپلو مځكو او باغو كي د بوختيا په وجه د رسول الله ﷺ په خدمت كي په خاصو وختو كي حاضرېدل، ددغه ټولو پرخلاف د حضرت ابوهريره ﷺ كاروبار نه وو هغه يو مفلس او فقير سړی وو، د هغه د

قناعت لپاره دا بس وه چي د خوراک او څښاک يو شی پيدا سي او خپله لوږه په ختمه کړي، ددې څخه ماسوا هغه ته د بل هيڅ شی ضرورت نه وو، له دې کبله به هغه تقريبا خپل ټول وخت د رسول الله ﷺ په خدمت کي تېروی، او له دې کبله د رسول الله ﷺ د حالاتو او معاملاتو د لېدلو او اورېدلو زياته موقع هغه ته تر لاسه وه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه چي دوهم سبب بيان کړ هغه په اصل کي د رسول الله ﷺ د ارشاد اورېدو سره په خپل دماغ کي د خوندي ساتلو هغه خاص صفت وو چي د يو سعادت په توګه هغه ته د اعجاز نبوي په برکت تر لاسه سو، ددغه سعادت د تر لاسه کولو چي کومه پېښه وه او حضرت ابوهريره رضي الله عنه د هغه يادونه په کومو الفاظو کي وکړل، د هغه وضاحت دادی چي رسول الله ﷺ غوښتل چي زما دامت خلک زما څخه يو حديث واوري نو هغه په ښه ډول ياد کړي چي د هغه په ذريعه د هدايت او اصلاح لړۍ جاري وساتل سي، رسول الله ﷺ يوه ورځ وفرمايل: دغه وخت زه د خپل پروردګار څخه دا دعاء غواړم چي زما صحابه کوم حديثونه واوري هغه د هغوئ په دماغ کي پوره خوندي سي،

په دغه وخت کي چي کوم څوک خپله جامه وغوړوي او زما د دعاء تر ختمېدو پوري هغه جامه غوړولې وي او بيا دهغه جامې په راټولولو سره د سينې سره ولګوي نوددغه دعاء په برکت به د هغه حافظه دومره قوي سي چي هغه زما کوم حديث واوري ټول عمر به ځيني هېر نه سي، حضرت ابوهريره رضي الله عنه خپله کمبله چي هغه وخت دده سره يوازينی جامه وه، سمدستي وغوړول، رسول الله ﷺ دعاء کول پيل کړل او تر څو پوري چي رسول الله ﷺ دعاء غوښتل تر هغه وخته يې خپله کمبله غوړولې وه او ناست وو، کله چي رسول الله ﷺ دعاء ختمه کړل نو حضرت ابوهريره رضي الله عنه خپله کمبله راټوله کړل او د سينې سره يې ولګول، د هغه اثر دا سو چي ابوهريره رضي الله عنه به د رسول الله ﷺ څخه يو ارشاد واورېدی نو هغه به يې په دماغ کي خوندي سو . همدارنګه د هغه سينه او دماغ د احاديث نبوي يوه زيرمه جوړه سول .

## د حضرت جرير رضي الله عنه لپاره دعاء

﴿۵۶۴۵﴾: وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِاللهِ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جرير بن عبدالله رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل :

أَلَا تُرِيحُنِي مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ فَقُلْتُ وكنت اِلَا أَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ فَذَكَرْتُ

ايا ته په ذي الخلصه ماتولو سره ما ته آرام نه راکوې؟ (ذي الخلصله يوه بت خانه وه چي رسول الله ﷺ

ته د هغه ځخه ډیر روحاني تکلیف رسیدی)، ما عرض وکړ: هو، زه به هغه ماته کړم تاسو به خوشحاله کړم زما حالت دا وو چي ما پر آس په ښه ډول سپرلی نه سوای کولای او کله کله به د آس ځخه را ایله سوم

ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَرَبَ يَدَهُ عَلٰى صَدْرِيْ حَتّٰي رَاَيْتُ اَثَرَ

، ددې ذکر ما رسول الله ﷺ ته وکړ، رسول الله ﷺ زما پر سینه خپل مبارک لاس راتیر کړ چي اثر

يَدِهٖ فِيْ صَدْرِيْ وَقَالَ اَللّٰهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا قَالَ فما وقعت عن

یې زما زړه ته ورسیدی، بیا یې وفرمایل: اې الله! دی ثابت کړې، دی سیده لار ښوونکی او سیده لار تر لاسه کونکی جوړ کړې، د جریر بیان دی چي ددې ځخه وروسته زه هیڅکله د آس

فرسي بعد فانطلق في مائه وخَمْسِينَ فَارِسًا مِنْ أَحْمَسَ فحرقها بالنار وكسرها. متفق عليه.

ځخه نه یم را ایله سوی، بیا زه د یونیم سل سپرو سره د ذوالخلصه ماتولو لپاره روان سوم دا سپاره د قبیله احمس (قریش) وه، جریر ﷺ ذوالخلصه وسوځول او ما ته یې کړل. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۷۰، رقم: ۴۳۵۸، ومسلم ۴\۱۹۲۵، رقم: ۱۳۶- ۲۴۷۶.

**د لغاتو حل:** الخصلة: هو بيت الخثعم يدعى كعبة اليمامة. احمس: الشجاع (مېړانه).

**تشريح:** ذوالخَلصه یا ذوالخُلصه د عربو د قبیلې (خثعم) د بت خانې نوم وو، دغه بت خانې ته به یې کعبة اليمامه هم ویل، په دې کي یو ډېر لوی بت وو چي د هغه نوم خلصه وو، د دغه بت ډېر عبادت کیدی. دغه صورت حال رسول الله ﷺ ته ډېر تکلیفي وو ځکه رسول الله ﷺ. حضرت جریر ﷺ ته وفرمایل چي ته دغه بت خانه ماته کړه چي ما ته ارام ورسیږي.

ددې ځخه معلومه سول چي نفوس قدسه او کاملینو ته د غیر الله ﷺ په عبادت او د شریعت خلاف کارو په لېدو سره سخت غم رسیږي او اذیت محسوس کوي.

احمس چي د احمر پر وزن دی په اصل کي د حماسه ځخه جوړ سوی دی چي معنی یې د مېړاني او شجاعت ده، د قریشو ځیني قبیلې چي په شجاعت او مېړانه کي یې امتیازي حیثیت درلودی هغوئ ته احمس ویل کېدل.

او بیا د احمس ځخه د یونیم سل سپرو کسانو سره جابر ﷺ روان سو...الخ: د روایت د دغه برخي په اړه شارحینو لیکلي دي چي دا د راوي الفاظ دي چي هغه دغه روایت د جریر ﷺ ځخه

نقل کړې دی مګر ځینو حضراتو ویلي دي چې دغه جمله هم د اصل روایت ده او د حضرت جریر رضي الله عنه خپل الفاظ دي چې هغه ته التفات ویل کیږي یعني په دغه جمله کي هغه د خپل یادوني لپاره د متکلم د صیغې په پرېښودو سره د غائب صیغه اختیار کړل.

## د ژبي مبارکي څخه وتلی لفظ حقیقت سو

﴿۵۶۴۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ إِنَّ رَجُلاً كَانَ يَكْتُبُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چې یو سړي به د رسول الله ﷺ وحي لیکل (چې لومړی

فَارْتَدَّ عَنِ الْإِسْلَامِ وَلَحِقَ بِالْمُشْرِكِيْنَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نصراني وو او بیا مسلمان سوی وو) بیا هغه مرتد سو (یعني د دین څخه واوښتی) او د مشرکانو سره یو ځای سو، رسول الله ﷺ د هغه په اړه وفرمایل:

إِنَّ الْأَرْضَ لَا تَقْبَلُهُ فَأَخْبَرَنِيْ أَبُوْ طَلْحَةَ أَنَّهُ أَتَى الْأَرْضَ الَّتِيْ مَاتَ فِيْهَا

مځکه به دی قبول نه کړي، د انس رضي الله عنه بیان دی چې ما ته طلحه رضي الله عنه وویل زه هغه ځای ته ورسیدم په کوم کي ځای چې هغه سړی مړ سوی وو،

فَوَجَدَهُ مَنْبُوْذًا فَقَالَ مَا شَأْنُ هٰذَا فَقَالُوْا دَفَنَّاهُ مِرَارًا فَلَمْ تَقْبَلْهُ الْأَرْضُ.

متفق علیه

ما ولیدل چې هغه د قبر څخه د باندي پروت دی ابو طلحه وایي ما پوښتنه وکړه دا څه حال دی؟ خلکو راته وویل چې موږ څو واره دی په مځکه کي ښخ کړی دی مګر مځکه دی قبول نه کړي. بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۶\۶۲۴، رقم: ۳۶۱۷، ومسلم ۴\۲۱۴۵، رقم: ۱۴- ۲۷۸۱.

**تشریح**: هغه سړي مخکي نصراني (عیسایي) وو بیا یې ایمان راوړ او مسلمان سو، مګر په لیکلو او ویلو باندي پوهېدی ځکه رسول الله ﷺ د وحي پر لیکنه مامور کړ مګر بیا معلومه نه ده چې څه وسول چې هغه د اسلام څخه مرتد سو او بېرته نصراني سو، او د اسلام د مخالفینو یعني مشرکانو په صف کي شامل سو، په دغه خبري سره رسول الله ﷺ ته سخت تکلیف پېښ سو او د ژبي مبارکي څخه یې دغه الفاظ ووتل چې دغه سړی به مځکه قبول نه کړي، د هغه مړی به د باندي راغورځوي، نو همداسي وسول کله چې هغه مړ سو او مشرکانو د هغه ښخول

وغوښتل نو په سهار كي هغوئ ولېدل چي د هغه مړي د قبر څخه دباندي پروت دی، هغوئ
وويل چي دا د محمد (ﷺ) او دهغه دملګرو كار دی چي د قبر په كښلو سره يې د هغه مړی
دباندي غورځولی دی، او بيا يې په ډېر كوښښ سره ګتهه كنده وكښل او هغه يې پكښې ښخ كړ،
بيا كله چي سهار راغلل نو وه يې لېدل چي قبر هغه د باندي راغورځولی دی، اوس هغوئ ته
احساس وسو چي دا د يو سړي كار نه دی نو هغوئ نااميده ولاړل او مړی يې پر هغه ځای پرېښود.

## د يهوديانو د قبرو انكشاف

﴿۵۶۴۷﴾: وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ وَجَبَتْ الشَّمْسُ فَسَمِعَ صَوْتًا فَقَالَ يَهُودُ تُعَذَّبُ فِي قُبُورِهَا. متفق عليه.

د حضرت ابو ايوب رضی الله عنه څخه روايت دی چي لمر لويدلی وو او رسول الله ﷺ د باندي تشريف
راوړ او يو آواز يې واورېدی ، وه يې فرمايل : دا آواز د يهوديانو دی چي هغو ته په قبر كي
عذاب وركول كيږي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۴۱\۳، رقم: ۱۳۷۵، ومسلم ۴\۲۲۰۰، رقم: ۶۹ – ۲۸۶۹.

**تشريح**: يو آواز يې واورېدی، په دې اړه شارحينو ليكلي دي چي هغه آواز يا خو د هغه
ملائكي وو چي په قبر كي په آواز كولو مامور ده او يا د هغه يهوديانو وو چي هغوئ ته په قبر
كي عذاب وركول كيدی، د حديث د عبارت : يهود تعذب في قبورها، سره سم دوهم احتمال
قياس ته ډېر نژدې دی .

ددغه حديث څخه د قبر عذاب ثابتيږي او د رسول الله ﷺ دغه معجزه ښكاره سول چي پر
رسول الله ﷺ باندي د يهودو د قبر حال منكشف سو او رسول الله ﷺ هغه بيان كړ .

## د طوفان په لېدو سره د يو منافق د مرګ خبر وركول

﴿۵۶۴۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ سَفَرٍ فَلَمَّا

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دی چي يو وار رسول الله ﷺ د يو سفر څخه تشريف راوړ ، كله

كَانَ قُرْبَ الْمَدِينَةِ هَاجَتْ رِيحٌ شَدِيدَةٌ تَكَادُ أَنْ تَدْفِنَ الرَّاكِبَ فَزَعَمَ أَنَّ

چي مديني منورې ته نژدې سو نو تيز باد راغلی دومره تيز نژدې وو چي سپور سړی پر مځکه را ايله کړي او په مځکه کي يې ښخ کړي،

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بُعِثَتْ هٰذِهِ الرِّيحُ لِمَوْتِ مُنَافِقٍ فَلَمَّا قَدِمَ الْمَدِينَةَ فَإِذَا مُنَافِقٌ عَظِيمٌ مِنَ الْمُنَافِقِينَ قَدْ مَاتَ. رواه مسلم.

رسول الله ﷺ وفرمايل: دا هواء د يو منافق د مرګ لپاره راليږل سوې ده، بيا چي مديني ته داخل سوه نو معلومه سوه چي يو لوی منافق مړ سوی دی. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۱۴۵، رقم: ۱۵- ۲۷۸۲.

**تشريح**: ځينو علماؤ دا ليکلي دي چي د مړ کېدونکي منافق نوم رفاعه بن دريد وو، او دغه پېښه دهغه وخت ده کله چي رسول الله ﷺ د تبوک د غزا څخه را ستون سو او ځينو حضراتو ويلي دي چي د هغه منافق نوم رافع وو او دا د هغه وخت پېښه ده چي کله رسول الله ﷺ د بني مصطلق د غزا څخه راستون سو.

د هغه لوی منافق پر مرګ باندي د دومره سخت باد راتلل په اصل کي د هغه د وحشت، بدحالۍ او چټلي د قدرت له خوا اظهار وو چي د هغه سره منافق د مرګ په وخت کي مخامخ کيږي، او دا ددې خبري نښه ده چي په آخرت کي هم د داسي خلکو په د اسي حالت سره چي پريشان او په تباهۍ کي اخته وي، مخامخ کيږي.

## د مديني د ساتني لپاره معجزانه خبر

﴿۵۶۴۹﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره (د مکې څخه د

وَسَلَّمَ حَتَّى قَدِمْنَا عُسْفَانَ فَأَقَامَ بِهَا لَيَالِيَ فَقَالَ النَّاسُ مَا نَحْنُ هَا هُنَا فِي

مديني په لور) روان سوو، کله چي موږ عسفان ته ورسيدو نو رسول الله ﷺ يو څو ورځي تم سو ځيني خلکو وويل موږ دلته څه کوو، (يعني ولي بيکاره ناست يو)،

شَيْءٍ وَإِنَّ عِيَالَنَا لَخُلُوفٌ مَا نَأْمَنُ عَلَيْهِمْ فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

حال دا چي زموږ اهل او عيال تر شا پاته دي، او موږ د هغوئ څخه مطمئن نه يو، هر کله چي

وَسَلَّمَ فَقَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا فِي الْمَدِينَةِ شِعْبٌ وَلَا نَقْبٌ إِلَّا عَلَيْهِ

وه يې فرمايل : په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په لاس کي زما ساه ده د مدينې هيڅ لاره او هيڅ کوڅه داسي نه ده چي پر

مَلَكَانِ يَحْرُسَانِهَا حَتَّى تَقْدَمُوا إِلَيْهَا ثُمَّ قَالَ ارْتَحِلُوا فَارْتَحَلْنَا وَأَقْبَلْنَا إِلَى

هغه ملائکي تاکلي نه وي، يعني په هره لاره او په هره کوڅه کي دوې ملائکي د ساتني لپاره موجود دي، او تر هغه وخته پوري به وي تر څو پوري چي تاسو مدينې ته ورسيږئ،

الْمَدِينَةِ فَوَالَّذِي يُحْلَفُ بِهِ مَا وَضَعْنَا رِحَالَنَا حِينَ دَخَلْنَا الْمَدِينَةَ حَتَّى أَغَارَ

رسول الله ﷺ د سفر حکم وکړ او موږ روان سوو، او مدينې ته ورسيدو ، په هغه ذات دي مي قسم وي چي په هغه قسم اخيستل کيږي چي موږ لا د اوښانو کجاوې کښته کړي له وې او مدينې ته داخل سوي وو چي

عَلَيْنَا بَنُو عَبْدِ اللَّهِ بْنِ غَطَفَانَ وَمَا يَهِيجُهُمْ قَبْلَ ذَلِكَ شَيْءٌ. رواه مسلم.

بنو عبد الله بن عطفان پر موږ راغلل (زموږ د لوټلو لپاره) او زموږ د راتلو څخه مخکي هغوئ هيڅ شی نه وو پورته کړی . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۰۰۱/۲، رقم: ۴۷۵- ۱۳۷۴.

**د لغاتو حل**: عسفان: موضع على مرحلين وهي مايساوي مسافة القصر من مكة. نقب: اي طريق بين الجبلين. (د دوو غرونو په منځ کي لاره).

**تشريح**: د شعب لغوي معنی د هغه لاري ده چي د غره په منځ کي تېريږي، همدارنګه د نقب معنی هم د هغه لاري ده چي په ښار او کلي کي د تګ راتګ ذريعه وي، د نقب څخه مراد هغه لاره ده چي دواړو خواوو ته د جوړ سوو سرايو تر منځ وي چي هغه ته کوڅه هم وايي، لکه چي په يو حديث کي راغلي دي : پر انقاب مدينه، يعني د مدينې پر کوڅو ملائکي تاکل سوي دي، د هغوئ په وجه نه طاعون راځي او نه به دجال داخلېدلای سي .

بنو عبد الله ابن غطفان پر موږ راوختل، بنوعبد الله ا بن غطفان د يوې قبيلې نوم دی ، مطلب دادي چي زموږ په نه موجودتيا کي مدينه بالکل خوندي وه لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ

د معجزې په توګه موږ ته ښودلي وه او تر هغه وخته پورې زموږ د هيڅ دښمن د جارحانه ارادو په لاره کې د ملائکو د ساتنې څخه ماسوا هيڅ ظاهري خنډ نه وو ، مدينې ته د رسېدو څخه وروسته موږ د رسول الله ﷺ د ورکړې هغه خبر د صداقت مشاهده وکړل چې تر څو پورې چې موږ مدينې ته رسېدلي نه وو ، د ملائکو د ساتنې په وجه هيڅ دښمن حمله نه سوه کولای ، د هغه حملې په سبب چې زموږ د راتګ څخه مخکې پيدا سوی نه وو دا محسوس سوه چې محض موږ ته د تاوان رسولو لپاره هغه دښمن پر موږ حمله وکړل او زموږ په نه شتون کې د هغوئ د ارادو د تکميل غوره موقع وه مګر دغه غيبي طاقت وو چې د هغه دښمن څخه يې زموږ د کورنيو ساتنه وکړل او هغوئ يې زموږ په نه شتون کې په مدينه کې د داخلېدو څخه منع کړل او پر مدينې باندې د حملې کولو څخه يې منع کړل .

## د باران اړوند د قبوليت دعاء

﴿۵٦۵۰﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ أَصَابَتْ النَّاسَ سَنَةٌ عَلَى عَهْدِ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې وچ کالي سول ، په دغه

وَسَلَّمَ فَبَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ فِي يَوْمِ جُمُعَةٍ قَامَ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ

ورځو کې رسول الله ﷺ د جمعې په ورځ خطبه فرمايل چې يو صحرايي ودريدی او عرض يې

يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلَكَ الْمَالُ وَجَاعَ الْعِيَالُ فَادْعُ اللَّهَ لَنَا فَرَفَعَ يَدَيْهِ وَمَا نَرَى فِي

وکړ اې دالله رسوله ! حيوانان هلاک سول او ماشومان د لوږې څخه مړه کيږي زموږ لپاره د الله جل جلاله څخه د دعاء لاس پورته کړه ، رسول الله ﷺ دعاء وکړل، هم هغه وخت

السَّمَاءِ قَزَعَةً فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا وَضَعَهَا حَتَّى ثَارَ السَّحَابُ أَمْثَالَ الْجِبَالِ

پر آسمان د وريځې يوه ټوټه هم نه وه ، په هغه ذات دې مې قسم وي چې د چا په واک کې زما ساه ده ، رسول الله ﷺ د دعاء څخه لاس کښته کړی لا نه وو چې د غرونو په شان وريځ را پورته سول

ثُمَّ لَمْ يَنْزِلْ عَنْ مِنْبَرِهِ حَتَّى رَأَيْتُ الْمَطَرَ يَتَحَادَرُ عَلَى لِحْيَتِهِ فَمُطِرْنَا يَوْمَنَا ذَلِكَ

او رسول الله ﷺ د منبر څخه کښته سوی لا نه وو چې د باران اوبه د رسول الله ﷺ پر ږيره مبارکه څڅيدلې ، په هغه ورځ ،

وَمِنْ الْغَدِ وَمن بَعْدَ الْغَدِ حَتَّى الْجُمُعَةِ الْأُخْرَى وَقَامَ ذٰلِكَ الْأَعْرَابِيُّ وغَيْرُهُ

په دويمه ورځ او په دريمه ورځ حتى تر بلي جمعې پوري باران واوريدی، تر دې چې هغه صحرايي يا بل څوک راغلی

فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ الْبِنَاءُ وَغَرِقَ الْمَالُ فَادْعُ اللّٰهَ لَنَا فَرَفَعَ يَدَيْهِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ

او عرض يې وکړ اې دالله رسوله ! سرايونه ونړيدل، حيوانان ډوب سول، د الله جَلَّ جَلَالُهُ څخه دعاء وغواړه، رسول الله ﷺ د دعاء لپاره لاس پورته کړ او وه يې فرمايل: اې الله !

حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا فَمَا يُشِيرُ بِيَدِهِ إِلَى نَاحِيَةٍ مِنْ السَّحَابِ إِلَّا انْفَرَجَتْ وَصَارَتْ

زموږ شاوخوا کي يې واوروې (يعني په کښتو وغيره کي) او پر موږ يې (يعني پر ابادۍ) يې مه اوروې، رسول الله ﷺ چي به کومي خوا ته اشاره کول وريځ به هغه خوا ته تلل،

الْمَدِينَةُ مِثْلَ الْجَوْبَةِ وَسَالَ الْوَادِي قَنَاةُ شَهْرًا وَلَمْ يَجِئْ أَحَدٌ مِنْ نَاحِيَةٍ إِلَّا

د مديني سربيره وريځ صفا سوه او آسمان صفا په نظر راتلی او د اوبو لښتيان تر يوې مياشتي پوري جاري وه او د شاوخوا څخه به چي يو څوک راغلی هغو به په کثرت سره د باران اوريدو

حَدَّثَ بِالْجَوْدِ وفي رواية قال اللّٰهُمَّ حوالينا ولا علينا عَلَى الْآكَامِ وَالظِّرَابِ

خبره کول، او په يوه روايت کي داسي دي چي نبي کريم ﷺ داسي دعاء وکړه اې الله! زموږ پر شاوخوا يې واوروې او پر موږ يې مه اوروې، اې الله ! پر غونډيو، غرونو

وَبُطُونِ الْأَوْدِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ قَالَ فَأَقْلَعَتْ وَخَرَجْنَا نَمْشِي فِي الشَّمْسِ .

متفق عليه.

او ناليو کي او ددرختو او کښتونو د شنه کيدو پر ځايونو يې واوروې، د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان دی ددې دعاء څخه وروسته وريځ صفا سوه او موږ د باندي راووتلو په داسي حال کي چي په لمر کي روان وو. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۲\۴۱۳، رقم: ۹۳۳، ومسلم۲\۶۱۴، رقم: ۹- ۸۹۷،

**د لغاتو حل**: قزعة: اي قطعة من السحاب. (د وريځي ټوټه). الجوبة: الفرجة من السحاب. الظراب: الجبال الصغار. (کوچني غرونه).

**تشريح**: د يتحاد لفظ په اصل کي د ينزل و يقطر معنى ظاهروي مگر دلته په حديث کي دغه لفظ د يتساقط په معنى کي دى، مطلب دا چي د باران اوبه د رسول الله ﷺ پر ږيره مباركه رالوېدې.

د مشکوة په ځينو نسخوکي د (على لحيته) الفاظ دي، دغه معنى ددغه په لحاظ سوې ده مگر په ځينو نسخو کي د (عن لحيته) الفاظ دي، شيخ عبدالحق رحمه الله په دې اعتبار سره معنى کړې ده چي د باران اوبه د رسول الله ﷺ پر ږيره مباركه څڅېدل پيل سول، خلاصه دا چي رسول الله ﷺ د باران لپاره دعاء وکړل او تر اوسه د منبر څخه را کښته سوى نه وو او د مسجد څخه وتلى نه وو چي سخت باران پيل سو.

امام نووي رحمه الله ددغه حديث په تشريح کي ليکلي دي: ددغه حديث څخه معلومه سول چي کله د باران لړۍ سخته او اوږده سي او دهغه په وجه کورو او نورو شيانو ته تاوان رسيږي نو دغه دعاء کول مستحب دي چي اې الله! اوس زموږ پر کورو باران مه اوروه، مگر ددغه دعاء لپاره لمونځ کول او د کورو څخه دباندي صحراء ته وتل مشروع نه دي.

## د اسطوانه حنانه معجزه

﴿٥٦٥١﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا خَطَبَ اِسْتَنَدَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي کله به رسول الله په مسجد کي د جمعې په ورځ خطبه

اِلٰى جِذْعِ نَخْلَةٍ مِنْ سَوَارِيْ الْمَسْجِدِ فَلَمَّا صُنِعَ لَهُ الْمِنْبَرَ فَاسْتَوٰى عَلَيْهِ

ويل نو د خرما پر هغه تنه چي د ميل په توگه په مسجد کي ولاړه وه تکيه کول، بيا چي د نبي کريم ﷺ لپاره منبر تيار سو،

صَاحَتِ النَّخْلَةُ الَّتِيْ كَانَ يَخْطُبُ عِنْدَهَا حَتّٰي كَادَتْ اَنْ تَنْشَقَّ فَنَزَلَ النَّبِيُّ

نو رسول الله ﷺ پر هغه کښېنستى او خطبه يې ويل، نو هغه خرما چي پر هغه به يې تکيه کول، او خطبه به يې ويل هغه خرما چغې کړې (يعني د نبي ﷺ پر بيلتون په ژړا سوه)

ﷺ حَتّٰي اَخَذَهَا فَضَمَّهَا اِلَيْهِ فَجَعَلَتْ تَاِنُّ اَنِيْنَ الصَّبِيِّ الَّذِيْ يُسَكَّتُ حَتّٰي

او نژدې وه چي د بيلتون د شدت څخه وچوي، نو رسول الله ﷺ د منبر څخه راکښته سو هغه ميل د خرما يې په خپلو لاسونو مبارکو سره ونيوى او د ځان سره يې جوخته کړل، بيا هغه درختي د هغه ماشوم په ډول سلگۍ پيل کړې کوم چي کرار کړل سي، تر دې چي

اسْتَقَرَّتْ قَالَ بَكَتْ عَلَى مَا كَانَتْ تَسْمَعُ مِنَ الذِّكْرِ . رواه البخاري.

هغه درختي ته سکون حاصل سو ، رسول الله ﷺ وفرمايل : دغه درختي ځکه ژړل چي کوم بيان به هغې مخکي اوريدی هغه يې نه واوريدی . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۳۱۹، رقم: ۲۰۹۵.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ په زمانه کي د مسجد نبوي ستني د خرماوو د تنو وې، په لومړنۍ زمانه کي چي منبر نه وو تيار سوی، رسول الله ﷺ به پر هغه ستنو باندي په تکيه کولو سره دريدی، مګر کله چي منبر تيار سو او رسول الله ﷺ پر هغه ستنو باندي د تکيې کولو پر ځای پر منبر باندي ودريدی نو هغه ستني د خپل سعادت د محرومۍ په وجه په چغو په ژړا سوې ، رسول الله ﷺ وفرمايل: د الله ﷻ د ذکر يعني د خطبې په وخت کي هغوئ ته زما نژدېوالي حاصل وو او زما خطبه يې ډېره نژدې اوريدل د هغه څخه د محرومۍ په وجه په ژړا مجبوره سوې ، د دغه پېښي په وجه هغه ستنو ته اسطوانه حنانه ويل پيل سول .

دغه حديث چي په هغه کي د ستنو د ژړا يادونه ده د ډېرو صحابه کرامو څخه منقول دي اوپه دې اړه هيڅ شک او شبه نه سي کيدای او ځينو محدثينو دغه حديث ته متواتر ويلي دي، دا په اصل کي د رسول الله ﷺ يوه لويه معجزه وه چي د خرما د درختي د تني په ډول بې ساه شی د رسول الله ﷺ د نژدې والي څخه د محرومۍ په سبب ژاړي او د هغه د ژړا آواز په مسجد نبوي کي موجود صحابه کرامو په خپلو غوږو سره واوريدل، د حضرت حسن بصري رحمة الله عليه په اړه منقول دي چي کله به هغه دغه حديث بيانوی نو بې اختياره به په ژړا سو او ويل يې: اې خلګو! د خرماوو وچ سوي لرګي د رسول الله ﷺ په مينه او شوق کي ژړل تاسو لره د هغه څخه زيات د رسول الله ﷺ په مينه او شوق کي بې کراري کول پکار دي .

## د ناحقه عذر بيانونکي معذور سو

﴿۵۶۵۲﴾: وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ أَنَّ رَجُلًا أَكَلَ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشِمَالِهِ فَقَالَ كُلْ بِيَمِينِكَ قَالَ لَا أَسْتَطِيعُ قَالَ لَا اسْتَطَعْتَ مَا مَنَعَهُ إِلَّا الْكِبْرُ قَالَ فَمَا رَفَعَهَا إِلَى فِيهِ. رواه مسلم

د حضرت سلمه ابن اکوع رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړي د رسول الله ﷺ په مخکي په چپه

لاس سره خوراک کوی ، رسول الله ﷺ ورته و فرمایل : په خپل راسته لاس یې خوره ، هغه وویل : زه یې په راسته لاس سره نه سم خوړلای، رسول الله ﷺ وفرمایل : ته دي په راسته لاس سره د خوړلو قدرت تر لاسه نه کړې. هغه د درواغ عذر کړی وو او په خپل چپه لاس سره یې یوازي د تکبر او غرور په وجه خوراک کوی، د راوي بیان دی د رسول الله ﷺ د ښیرا سره هغه خپل راسته لاس تر خولې پوري نه سو رسولای . مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۵۹۹، رقم: ۱۰۷- ۲۰۲۱.

**تشریح**: هغه سړي د غرور په وجه په خپل راسته لاس خوراک نه کوی، دا د راوي الفاظ دي چي د هغه په ذریعه یې دا وضاحت کړی دی چي رسول الله ﷺ د رحمة للعالمین کېدو سربېره د هغه سړي په اړه کومه ښېرا وکړل نو د هغه وجه داوه چي هغه سړي د رسول الله ﷺ د نصیحت په اورېدو سره د صحیح عمل کولو پر ځای د خپل غلط عمل درواغ تاویل وکړ او د درواغو عذر یې بیان کړ ، د هغه سړی په چپه لاس خوړل په دې وجه نه وو چي د هغه په راسته کي یوه خرابي وه یا هغه په راسته لاس د خوراک څخه معذور وو بلکه هغه د یو مغرور په ډول بېله واقعي عذر په خپل چپه لاس سره خوراک کوی او د رسول الله ﷺ د نصیحت یې په ډېره بې باکي سره جواب ورکړ نو رسول الله ﷺ د هغه په اړه ښېرا وکړل ، د هغه د ښېرا اثر دا سو چي هغه سړی په راسته لاس خوراک باندي هیڅکله قادر نه سو او د هغه راسته لاس بېکاره سو چي د کوښښ کولو سره یې تر خولې پوري رسولای نه سو .

## د رسول الله ﷺ د سپرتیا په برکت اس تېز سو

﴿۵۶۵۳﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ أَهْلَ الْمَدِينَةِ فَزِعُوا مَرَّةً فَرَكِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي یو وار د غلو یا د ښمنانو د بیري له کبله د مدینې خلک

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لِأَبِي طَلْحَةَ كَانَ يَقْطِفُ أَوْ كَانَ فِيهِ قِطَافٌ فَلَمَّا رَجَعَ قَالَ

وبیریدل ، نبي کریم ﷺ د ابو طلحه پر اس پرته د زین څخه سپور سو چي ډېر کرار وو ، رسول الله ﷺ چي را وګرځیدی نو وه یې فرمایل :

وَجَدْنَا فَرَسَكُمْ هٰذَا بَحْرًا فَكَانَ بَعْدَ ذٰلِكَ لَا يُجَارَى، وفي رواية فما سبق بعد ذالك اليوم . رواه البخاري.

ما خو دا آس د دریاب په ډول ولیدی (یعني ډیر تیز) بیا هغه آس تیز شو چي هیڅ یو آس نه سو پسي رسیدلای، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي د هغه ورځي څخه وروسته هیڅ یو آس د هغه څخه مخکي کیدلای نه سو. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦١\٧٠ ،رقم: ٢٨٦٧، ومسلم ٤\١٨٠٢، رقم: ٤٨- ٢٣٠٧.

**د لغاتو حل**: يقطف: اي يمشي مشيا ضيقا. بحرا: اي جلدا.

## په خرماوو کي د برکت معجزه

﴿٥٦٥٤﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ تُوُفِّيَ اَبِيْ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ فَعَرَضْتُ عَلٰى غُرَمَائِهِ اَنْ يَّاْخُذُ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي زما پلار وفات سو او پر هغه یو څه پور باندي وو، ما پور غوښتونکی ته وویل چي د پور په بدله کي

وَالتَّمَرَ بِمَا عَلَيْهِ فَاَبَوْا فَأَتَيْتُ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ قَدْ عَلِمْتَ أَنَّ

زموږ تولي خرماوي واخله، خو هغه د داسي کولو څخه انکار وکړ، ما د رسول الله ﷺ په خدمت کي عرض وکړ تا ته معلومه ده چي

وَالِدِي قَدْ اسْتُشْهِدَ يَوْمَ أُحُدٍ وَتَرَكَ دَيْنًا كَثِيرًا وَإِنِّي أُحِبُّ أَنْ يَرَاكَ الْغُرَمَاءُ

زما پلار د احد په غزا کي شهید سوی دی پر هغه ډیر پور پاته سوی دی زما دا خوښه ده چي ته هغه پوروړي ووینې،

فَقَالَ اذْهَبْ فَبَيْدِرْ كُلَّ تَمْرٍ عَلَى نَاحِيَةٍ فَفَعَلْتُ ثُمَّ دَعَوْتُهُ فَلَمَّا نَظَرُوا إِلَيْهِ كَأَنَّهُمْ

رسول الله ﷺ وفرمایل: ولاړ سه د هر ډول خرماوو بیل بیل کوتي جوړي کړه، نو ما همداسي وکړه او رسول الله ﷺ ته مو د تشریف راوړلو لپاره وویل، پور غوښتونکي چي کله رسول الله

أُغْرُوا بِي تِلْكَ السَّاعَةَ فَلَمَّا رَأَى مَا يَصْنَعُونَ طَافَ حَوْلَ أَعْظَمِهَا بَيْدَرًا ثَلَاثَ

ﷺ ولیدی نو په سختۍ سره یې د پور غوښتنه وکړه هغه پر ما زړه ور سوي وو، نو رسول الله ﷺ چي د پور غوښتونکي طرز عمل وکتی، نو رسول الله ﷺ ولاړ سو او د خرماوو د لوی کوتي څخه شا وخوا دري واره وګرځیدی،

مَرَّاتٍ ثُمَّ جَلَسَ عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ ادْعُ لِي أَصْحَابَكَ فَمَا زَالَ يَكِيلُ لَهُمْ حَتَّى أَدَّى

بيا پر کوتي کښېنستی او وه يې فرمايل: خپل پوروړي را وغواړه (نو هغوئ راغلل) او د رسول الله ﷺ په حکم سره خرماوي تلل پيل سول تر دې چي

اللَّهُ عَنْ وَالِدِي أَمَانَتَهُ وَأَنَا أَرْضَى أَنْ يُؤَدِّيَ اللَّهُ أَمَانَةَ وَالِدِي وَلَا أَرْجِعَ إِلَى

الله ﷻ زما د پلار ټول پور ادا کړ او زه په دې راضي وم چي الله ﷻ په دغه خرماوو سره زما د پلار ټول پور ادا کړي، که څه هم چي

أَخَوَاتِي بِتَمْرَةٍ فَسَلَّمَ اللَّهُ الْبَيَادِرَ كُلَّهَا وَحَتَّى إِنِّي أَنْظُرُ إِلَى الْبَيْدَرِ الَّذِي كَانَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَأَنَّهَا لَمْ تَنْقُصْ تَمْرَةً وَاحِدَةً. رواه البخاري.

زما خويندو ته يوه خرما هم پاته نه سي، (الله ﷻ د رسول الله ﷺ د دعاء د برکته ټول پور ادا کړ او) او د خرماوو کوټه چي څرنګه وه هم هغسي پاته سوه پر کومه کوټه چي رسول الله ﷺ ناست وو، ما هغې ته کتل داسي معلومېدل چي د هغه څخه يوه خرما هم نه ده کمه سوې. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴۱۳\۵، رقم: ۲۷۸۱.

**د لغاتو حل**: الغرماء: اي عندي لعلهم يراعوني. فبيدر: اي اجمع كل نوع صبرة على حدة.

**تشريح**: د حضرت جابر رضي الله عنه پلار په خپلو وارثانو کي څو لوڼې هم پرې اېښي وې چي د حضرت جابر رضي الله عنه خويندي وې، د حضرت جابر رضي الله عنه مطلب دا وو چي په خرماوو کي د ځان لپاره يا د خويندو لپاره زما خواهش نه وو، زه خو په دې خوشحاله وم چي په يوه طريقه زما د پلار ټول پور ختم سي که څه هم زموږ لپاره په هغه خرماوو کي هيڅ پاته نه سي مګر الله ﷻ د رسول الله ﷺ په برکت او د هغه د معجزې په طفيل د هغه خرماوو په ذريعه نه يوازي زما د پلار ټول پور ادا کړ بلکه ټولي خرماوي همداسي پاته سوې.

## د غوړو معجزه

﴿۵۶۵۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ أَنَّ أُمَّ مَالِكٍ كَانَتْ تُهْدِي لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي بي بي ام مالک به رسول الله ﷺ ته د تحفې په توګه پ

عُكَّةٍ لَهَا سَمْنًا فَيَأْتِيهَا بَنُوهَا فَيَسْأَلُونَ الْأُدْمَ وَلَيْسَ عِنْدَهُمْ شَيْءٌ فَتَعْمِدُ

کپې کي غوړي راليږل نو ددې زامن به راغلل ددې څخه به يې کتغ غوښتې حال دا چې د هغې سره به د کتغ د ډول څخه هيڅ شی نه وو ، نو ام مالک به د هغه کپې په لور متوجه سوه

إِلَى الَّذِي كَانَتْ تُهْدِي فِيهِ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَجِدُ فِيهِ سَمْنًا فَمَا

کومه کي به يې چې رسول الله ﷺ ته غوړي ليږل او په هغې کي به يې غوړي تر لاسه کول او همېشه به د ام مالک د کور کتغ د غه غوړي وه بيا چې ام مالک هغه غوړي وتوږل (ټول

زَالَ يُقِيمُ لَهَا أُدْمَ بَيْتِهَا حَتَّى عَصَرَتْهُ فَأَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَصَرْتِيهَا قَالَتْ نَعَمْ قَالَ لَوْ تَرَكْتِيهَا مَا زَالَ قَائِمًا. رواه مسلم.

راوکښل) نو برکت ځيني ولاړې ، ام مالک د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوه او ددې خبري يادونه يې وکړه ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ايا تا هغه غوړي ټوله راوکښل ، هغې وويل هو ، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل که تا هغه پر حال پرې ايښی وای نو په هغو کي به هميشه لپاره غوړي پاته وای . مسلم.

**تخريج** : صحيح مسلم ۴\ ۱۷۸۴، رقم: ۸– ۲۲۸۰.

**د لغاتو حل** :عكة: قربة صغيرة.

## په خوراک کي د برکت معجزه

﴿۵۶۵۶﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ أَبُو طَلْحَةَ لِأُمِّ سُلَيْمٍ لَقَدْ سَمِعْتُ صَوْتَ رَسُولِ اللَّهِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چې ابو طلحه رضي الله عنه ام سليم ته وويل : نن ما د رسول الله ﷺ

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَعِيفًا أَعْرِفُ فِيهِ الْجُوعَ فَهَلْ عِنْدَكِ مِنْ شَيْءٍ فَقَالَتْ

آواز کمزوري واوريدی ، زما په خيال رسول الله ﷺ وږی دی، ايا ستا سره د خوراک يو شی شته؟ بي بي ام سليم وويل :

نَعَمْ فَأَخْرَجَتْ أَقْرَاصًا مِنْ شَعِيرٍ ثُمَّ أَخْرَجَتْ خِمَارًا لَهَا فَلَفَّتِ الْخُبْزَ بِبَعْضِهِ

هو شته، ددې ويلو سره ام سليم د اوربشو يو څو ډوډۍ راوکښلې بيا يې خپل پوړنی راواخيست په هغه کي يې ډوډۍ ونغښتل

ثُمَّ دَسَّتْهُ تَحْتَ يَدِي وَلَاثَتْنِي بِبَعْضِهِ ثُمَّ أَرْسَلَتْنِي إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د پوړني بل طرف يې زما پر لاس شا وخوا را وپيچی او زه يې رسول الله ﷺ ته ولېږلم نو يومې

وَسَلَّمَ فَذَهَبْتُ بِهِ فَوَجَدْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ وَمَعَهُ

وړلې هغه وخت رسول الله ﷺ په مسجد كي تشريف فرماوو او يو څو كسان هم ورسره ناست وه،

النَّاسُ فَسلمت عَلَيْهِمْ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آرْسَلَكَ أَبُو

ما سلام وكړ ، رسول الله ﷺ زما څخه پوښتنه وكړه ايا ابوطلحه رالېږلی يې ،

طَلْحَةَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ بِطَعَامٍ قُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ما عرض وكړ هو ، بيا يې پوښتنه وكړه ډوډۍ يې دركړې ده ، ما عرض وكړ هو ، رسول الله ﷺ

لِمَنْ مَعَهُ قُومُوا فَانْطَلَقَ وَانْطَلَقْتُ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ حَتَّى جِئْتُ أَبَا طَلْحَةَ فَأَخْبَرْتُهُ

هغه خلكو ته چي هلته موجود وه وفرمايل : را ولاړ سئ (يعني راځئ چي ورسو) ددې فرمايلو سره ټول خلک د رسول الله ﷺ سره د ابو طلحه كور ته روان سول ، زه ځيني مخكي مخكي روان

فَقَالَ أَبُو طَلْحَةَ يَا أُمَّ سُلَيْمٍ قَدْ جَاءَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاسِ

وم، ابو طلحه ته چي ورسيدم نو د رسول الله ﷺ د راتلو څخه مي خبر كړ، ابو طلحه ام سليم ته وويل :
رسول الله ﷺ تشريف راوړي، او صحابه كرام هم ورسره دي

وَلَيْسَ عِنْدَنَا مَا نُطْعِمُهُمْ فَقَالَتْ اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ فَانْطَلَقَ أَبُو طَلْحَةَ حَتَّى لَقِيَ

او زموږ سره دومره د خوراک سامان نسته چي په ټولو يې وخورو ، بي بي ام سليم وويل : الله او د هغه رسول ښه پوهيږي، ابو طلحه د ښه راغلاست ويلو لپاره د كور څخه دباندي ووتی

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَقْبَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو

او د رسول الله ﷺ سره يې ملاقات وكړ ، بيا رسول الله ﷺ د ابو طلحه سره تشريف راوړ او وه يې

طَلْحَةَ مَعَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلُمِّي يَا أُمَّ سُلَيْمٍ مَا عِنْدَكِ

فرمايل : اې ام سليم ! څه خوراک چي دي درسره وي هغه راوړه، ام سليم هغه ډوډۍ راوړه او

فَأَتَتْ بِذَلِكَ الْخُبْزِ فَأَمَرَ بِهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَفُتَّ وَعَصَرَتْ أُمُّ

رسول الله ﷺ ابو طلحه ته حکم وکړ چې هغه ډوډۍ ټوټې ټوټې کړي نو هغه ټوټې ټوټې کړل سول او ام سليم د کپۍ څخه غوړي راوکښل

سُلَيْمٍ عُكَّةً فَأَدَمَتْهُ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهِ مَا شَاءَ اللّٰهُ أَنْ

چې کتغ سو ، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : (یعني دعاء یې وکړل) ددې څخه وروسته رسول الله

يَقُولَ ثُمَّ قَالَ ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ فَأَذِنَ لَهُمْ فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا ثُمَّ خَرَجُوا ثُمَّ قَالَ

ﷺ حکم وکړ چې لس لس کسان را غواړئ ، نو لسو کسانو ته د خوراک اجازه ورکړل سوه ، هغوئ په ماړه نس ډوډۍ وخوړل بیا هغوئ ولاړل بیا یې وفرمایل

ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ ثم لعشرة فَأَكَلُوا القوم كلهم حَتَّى شَبِعُوا وَالْقَوْمُ سَبْعُونَ أَوْ

اجازه ورکړه نورو لسو کسانو ته ، نور لس کسان راغلل ددې څخه وروسته بیا لس کسان وغوښتل سول تر دې چې همداسي ټولو خلکو ښه په ماړه نس ډوډۍ وخوړل ، دا ټول اویا یا

ثَمَانُونَ رَجُلًا ، متفق عليه وفي رواية لمسلم انه قال ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ فَدَخَلُوا

اتیا کسان وه ، بخاري او مسلم ، او د مسلم په یوه روایت کي دا الفاظ دي چې رسول الله ﷺ ابو طلحه رضی الله عنه ته وفرمایل : لس کسان راوغواړه ، هغوئ راغلل

فَقَالَ كُلُوا وَسَمُّوا اللّٰهَ فَأَكَلُوا حَتَّى فَعَلَ ذَلِكَ ثَمَانِينَ رَجُلًا ثُمَّ أَكَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

نو رسول الله ﷺ وفرمایل : خورئ او د الله جل جلاله نوم اخیستو سره خورئ ، هغوئ وخوړل ، همداسي اتیا کسانو سره وسول بیا نبي کریم ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَهْلُ الْبَيْتِ وَتَرَكَ سُؤْرًا ، وفي رواية للبخاري قال أَدْخِلْ عَلَيَّ

او د کور خلکو ډوډۍ وخوړل او خورک لا پاته هم سو ، او د بخاري په یوه روایت کي داسي راغلي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : لس کسان ما ته راولئ

عَشَرَةً حَتَّى عَدَّ أَرْبَعِينَ ثُمَّ أَكَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ هَلْ

همداسي څلوېښت کسان يې وشميرل ، د هغه څخه وروسته نبي كريم ﷺ وخوړل او ما كتل چي

نَقَصَ مِنْهَا شَيْءٌ، وفي رواية لمسلم ثُمَّ أَخَذَ مَا بَقِيَ فَجَمَعَهُ ثُمَّ دَعَا فِيهِ بِالْبَرَكَةِ قَالَ فَعَادَ كَمَا كَانَ فَقَالَ دُونَكُمْ هذا .

په خوراک کي هيڅ کمي نه ده سوې ، او د مسلم په يوه روايت کي دي چي بيا رسول الله ﷺ پاته خوراک يو ځای کړ او دعاء يې وکړه نو هغه خوراک هم هغسي سو لکه څرنګه چي مخکي وو ، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل د دې څخه يې خورئ .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٨٦، رقم: ٣٥٧٨، ومسلم ٣\١٦١٢، رقم: ١٤٢- ٢٠٤٠.

**تشريح**: په رسول الله ﷺ او صحابه كرامو ﷺ باندي د ډوډۍ خوړلو او په لږ خوراک کي د بركت دغه پېښه داسي وه لکه څرنګه چي د حضرت جابر ﷺ سره پېښه سوې وه او د حضرت جابر ﷺ د پېښي په ډول دغه پېښه هم د خندق د غزا ده، نو د حضرت انس ﷺ دغه الفاظ چي رسول الله ﷺ هغه وخت په مسجد کي وو ، دلته د مسجد څخه مراد خندق ته نژدې هغه ځای دی چي رسول الله ﷺ د ښمنانو له خوا د مدينې د محاصرې او خندق کښلو په وخت کي د لمانځه کولو لپاره ټاکلی وو ، د رسول الله ﷺ پر دغه سوال چي ايا ته ابو طلحه ﷺ را استولی يې؟ او د حضرت انس ﷺ هو ويل د دې خلاف نه وو چي د هغه په وينا ام سليم ﷺ، حضرت انس ﷺ ته د ډوډۍ په وركولو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي لېږلی وو.

ايا د خوراک په دركولو سره يې را استولی يې؟ د رسول الله ﷺ د دغه خبري د لومړنۍ خبري (ايا ته ابو طلحه را استولی يې) څخه بېل پوښتنه كول يا خو د پوهولو لپاره وو يا د وحي او علم د تاخير په وجه وو ، يعني مخکي خو رسول الله ﷺ ته د وحي په ذريعه يوازي د دې خبري علم سوی وو چي انس ﷺ د ابو طلحه ﷺ په وينا را استول سوی دی نو رسول الله ﷺ دا سوال وكړ چي ايا ته ابو طلحه ﷺ را استولی يې؟ بيا وروسته كله چي دوهم وار د وحي په ذريعه رسول الله ﷺ ته دا علم وسو چي د انس ﷺ سره خوراک هم دی نو رسول الله ﷺ بيا دا پوښتنه وكړل چي ايا د خوراک سره يې را استولی يې ؟

ولاړ سئ (د ابو طلحه كور ته ځو) ، په دې اړه شارحينو ليكلي دي چي رسول الله ﷺ ته د وحي په ذريعه دا معلومه سوې وه چي د انس ﷺ سره څو ډوډۍ دي نو رسول الله ﷺ دا خوښه نه كړل چي په دومره لويه ډله كي خپله يوازي يا د دوو درو كسانو سره د خوراک لپاره كښېني او

پاته خلک وږي پاته سي، په دې سره د رسول الله ﷺ اراده د دغه معجزې د اظهار هم وسوه چي د هغه په نتیجه کي په یو څو ډوډیو سره ټول په ماړه نس ماړه سول او د دې تر څنګ د وهمه معجزه (د ابو طلحه په کور کي کښینئ) کي د خیر او برکت په صورت کي هم ظاهرېږي چي هغه او د هغه کورنی د رسول الله ﷺ په اړه د کوم اخلاص، میني او خدمت د جذبې او عمل اظهار وکړ د هغه میوه هغوئ ته د برکت تر لاسه کېدو په صورت کي حاصل سو،، نو رسول الله ﷺ د صحابه کرامو سره د ابو طلحه رضي الله عنه کور ته ولاړل.

الله جل جلاله او د هغه رسول ﷺ ښه پوهیږي، د دغه جواب په ذریعه ام سلیم رضي الله عنها ابو طلحه رضي الله عنه ته اطمینان ورکړ که رسول الله ﷺ د دومره صحابه کرامو سره راسي نو په دې وجه موږ باید په ببره کي نه سو چي موږ به دومره لږ خوراک په دومره زیاتو کسانو څرنګه بس کوو، ځکه په دې کي خامخا یو حکمت وی چي الله جل جلاله او د هغه رسول ﷺ ښه په پوهیږي، او د خپلو صحابه کرامو سره د رسول الله ﷺ راتګ به یقینا زموږ لپاره د خیر او برکت سبب وي، یعني ام سلیم رضي الله عنها سمدستي محسوسه کړل چي د رسول الله ﷺ د یوې معجزې د اظهار لپاره دی، د دې څخه د ام سلیم رضي الله عنها دینداري، پوهي او د یقین اظهار کیږي چي هغې ته د صحابه کرامو په راتګ هیڅ پریشانه پېښه نه سول بلکه سمدستي یې په دماغ کي دا خبره راغلل چي رسول الله ﷺ ته د خوراک اندازه ښه معلومه ده، که چیري په دې کي یو حکمت نه وای نو د ټولو راوستلو ضرورت به یې ولي محسوس کولای، نو د رسول الله ﷺ هیڅ فعل د حمت څخه خالي نه دی ځکه د صحابه کرامو سره د رسول الله ﷺ په راتګ کي یقینا یو حکمت دی، دا هم د رسول الله ﷺ اعجاز وو چي د هغه زمانې یوې ښځي زموږ د زمانې د ډېرو نارینو څخه زیات یقین او ایمان درلود، رضي الله عنها وعن اهل عصرها وجعلنا في زمرتهم یا رب العالمین.

هغه یې وفرمایل چي الله جل جلاله غوښتل، د دې مطلب دا دی چي رسول الله ﷺ د خیر او برکت دعاء وکړل، یا د اسماء الهي په ویلو سره یې پر هغه خوراک دم کړ، او په یوه روایت کي دادي چي رسول الله ﷺ دغه الفاظ وفرمایل: (بسم الله اللهم اعظم فیها البرکة).

بیا رسول الله ﷺ حکم وکړ چي لس کسان راوغواړئ، رسول الله ﷺ ټولو خلکو ته د خوراک ورکولو پر ځای د لسو لسو کسانو په رابللو سره د خوراک ورکولو حکم وکړ ځکه په کوم لوښي کي چي خوړاک وو هغه دومره لوی وو چي د هغه چاپیره لس کسان په اطمینان سره کښېنستلای سول، او ځینو حضراتو لیکلي دي چي په خونه کي د ځای د کموالي په وجه یې د لسو لسو کسانو رابللو حکم وکړ.

او دغه ټول اویا یا اتیا کسان وه، ددې په وضاحت کي ابن حجر رحمة الله عليه ليکلي دي چي دلته شمېر د شک سره ذکر سوی دی، مګر په بل روايت کي په تعين سره د اتيا شمېر ذکر دی، او په دغه روايت کي د اتيا څخه د زيات ذکر دی، مګر په دواړو روايتو کي اختلاف نسته ځکه چي د اتيا کسانو په روايت کي احتمال دی چي راوي د شمېر ذکر کولو په وخت کي کسر حذف کړی وي مګر په يو بل روايت کي چي امام احمد رحمة الله عليه نقل کړی دی دا بيان سوي دي چي د هغه خوراک څخه ځلوېښتو کسانو خوراک وکړ او بيا هم هغه خوراک هم هغسي پاته وو، يا دلته د امام بخاري رحمة الله عليه دوهم روايت چي نقل سوی دی او په هغه کي د ځلوېښتو کسانو د خوراک او د هغوئ څخه وروسته د رسول الله ﷺ د خوراک يادونه ده، نو په دې سره په روايتونو کي د پېښي زياتوالی معلومېږي يعني په دغه روايتو کي د يوې واقعې ذکر نه دی بلکه د بېلو بېلو دوو پېښو يادونه ده، که په يوه پېښه کي اتيا کسانو خوراک کړي وي نو په بله پېښه کي به ځلوېښتو کسانو خوراک کړي وي مګر يو شارح ويلي دي چي دغه پېښه څو واره نه ده رامنځته سوې بلکه يوه وه چي د هغه يادونه په دغه روايتو کي ده او په دغه روايتو کي تطبيق دادی چي هغه اتيا کسانو په دوه واره خوراک کړي وي، لومړی يې د لسو لسو په کولو سره ځلوېښت کسان فارغ سوي وي او دهغه څخه وروسته ځلويښتو کسانو خوراک کړی وي چي د راتلو مخکي ځلوېښت کسانو څخه وروسته پاته سوي وه، يا دا چي رسول الله ﷺ هغوئ وروسته رابللي وي، ددغه تطبيق په رڼا کي د بخاري ددوهم روايت دغه الفاظ چي ځلوېښتو کسانو خوراک وکړ او دهغوئ څخه وروسته رسول الله ﷺ خوراک وکړ، ددې وضاحت وسو چي کله ځلوېښت کسان د خوراک څخه فارغ سول نو د ځلوېښتو کسانو د دوهمي ډلي د راتلو څخه وروسته رسول الله ﷺ خوراک وکړ، همدارنګه د رسول الله ﷺ برکت لومړی ډلي ته هم حاصل سو او دوهمي ډلي ته هم.

## د ګوتو څخه د اوبو وتلو معجزه

﴿۵۶۵۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِإِنَاءٍ وَهُوَ بِالزَّوْرَاءِ فَوَضَعَ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په زوراء نامي ځای د مدينې د بازار سره

يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ فَجَعَلَ الْمَاءُ يَنْبُعُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِهِ فَتَوَضَّأَ الْقَوْمُ قَالَ قَتَادَةُ

کي خپل مبارک لاس کښېښود او اوبه د رسول الله ﷺ د مبارکو ګوتو څخه رواني سوې او خلکو په هغه سره اودس وکړ و

قُلْتُ لِأَنَسٍ كَمْ كُنْتُمْ قَالَ ثَلَاثَ مِائَةٍ أَوْ زُهَاءَ ثَلَاثِ مِائَةٍ. متفق عليه

قتاده د انس څخه پوښتنه وکړه چي هغه وخت تاسو څومره کسان واست، هغه ورته وویل درې سوه یا دې ته نژدې، بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦١\٥٨٠، رقم: ٣٥٧٢ ومسلم ١٤\١٧٨٣، رقم: ٦ – ٢٢٧٩.

**د لغاتو حل**: الزوراء: وهي البئر البعيدة القعر (ژور څاه).

**تشريح**: د ګوتو مبارکو په منځ کي د اوبو بهېدل پیل سول، د دې په وضاحت کي دوه قوله دي، یو خو دا چي د خپلو ګوتو مبارکو څخه یې اوبه بهېدل پیل سوي وه، دا قول د مزني رحمة الله عليه دی او د اکثرو علماؤ رجحان دې ته دی او ددې تائید ددغه روایت څخه کیږي چي د هغه الفاظ دادي: فرايت الماء من اصابعه، یعني ما د رسول الله ﷺ د ګوتو مبارکو څخه اوبه بهېدل ولیدل او په دې کي څه شک نسته چي داصل معجزې لوی والي هم ددې خبري څخه ثابتیږي او د رسول الله ﷺ ددغه معجزې د حضرت موسی علیه السلام د هغه معجزې څخه افضل کېدل هم ظاهریږي چي د هغه د لکړي په وهلو سره د اوبو چینې رواني سوې، دوهم قول دادی چي د هغه په لوښي کي چي مخکي کومي اوبه موجود وې هغه د لاس مبارک په برکت سره الله جل جلاله دومره زیاتي کړې چي د رسول الله ﷺ د ګوتو مبارکو څخه د فوارې په ډول اوبه رواني سوې.

## د خوراک څخه د تسبیح د اواز راتلو معجزه

﴿٥٦٥٨﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ كُنَّا نَعُدُّ الْآيَاتِ بَرَكَةً وَأَنْتُمْ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چي موږ خلکو به د قرآن کریم آیاتونه یا نبوي

تَعُدُّونَهَا تَخْوِيفًا كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَقَلَّ الْمَاءُ

معجزې د برکت سبب ګڼل، او تاسو یې د کافرانو د بیرولو سبب ګڼئ، یو وار موږ په یو سفر کي د رسول الله ﷺ سره وو چي اوبه کمي سوې،

فَقَالَ اطْلُبُوا فَضْلَةً مِنْ مَاءٍ فَجَاءُوا بِإِنَاءٍ فِيهِ مَاءٌ قَلِيلٌ فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِي

رسول الله ﷺ موږ ته حکم راکړ چي یو لږ پاته سوي اوبه راوړئ، صحابه کرامو په لوښي کي لږ

پاته سوي او به راوړي، رسول الله ﷺ په هغه لوښي کي خپل مبارک لاس کښېښود،

الْإِنَاءِ ثُمَّ قَالَ حَيَّ عَلَى الطَّهُورِ الْمُبَارَكِ وَالْبَرَكَةُ مِنَ اللَّهِ فَلَقَدْ رَأَيْتُ الْمَاءَ

اووه يې فرمايل راځئ پاکونکو د برکت ناکو اوبو په لور متوجه سئ، او برکت د خدای د طرف څخه دی، ما وليدل چي اوبه

يَنْبُعُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَقَدْ كُنَّا نَسْمَعُ تَسْبِيحَ الطَّعَامِ وَهُوَ يُؤْكَلُ. رواه البخاري.

د رسول الله ﷺ د ګوتو مبارکو څخه رواني وې او موږ د هغه خوراک تسبيح هم اوريدل کوم چي خوړل کيدل. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٨٧، رقم: ٣٥٧٩.

**تشريح**: د آيات څخه مراد يا خو د قرآن کريم آياتونه دي چي د آسمان څخه نازل سوي وه يا هغه معجزې مراد دي چي الله جل جلاله يې د رسول الله ﷺ په ذريعه څرګندوي، زيات صحيح او د حديث د سياق څخه زيات مناسب دادي چي د آيات څخه مراد معجزات واخيستل سي، د حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه د ارشاد مطلب دا وو چي آيات که څه هم د کافرانو او منکرانو د بېرولو لپاره وي مګر د اهل ايمانو په حق کي چي د دغه آيات محب او معتقد وي د زيری او برکت او د ايمان د زياتوب موجب دی، دغه وضاحت شيخ عبدالحق د طيبي په حواله سره نقل کړی دی او ملا علي قاري رحمه الله ليکلي دي چي د آيات څخه مراد يوازي معجزې او کرامات دي، نوموړي څرګنده کړې ده چي دلته د آيات څخه مراد د قرآن کريم آياتونه اخيستل غير مناسب دي.

د دغه حديث د الفاظو څخه په صريحه معلوميږي چي د رسول الله ﷺ د ګوتو مبارکو څخه اوبه بهېدلې لکه څرنګه چي د جمهورو علماؤ قول دی او په دې نسبت سره د رسول الله ﷺ دغه معجزې ته د ډېري څخه د اوبو تلو، د حضرت موسى عليه السلام پر معجزه ترجيح ورکول کيږي، نو دغه قول ناقابل اعتناد ګرځي، چي اوبه د ګوتو مبارکو څخه نه دي وتلي بلکه د ګوتي لږ اوبه چي په لوښي کي موجود وي هغه زياتي سوې او دومره زياتي سوې چي د رسول الله ﷺ د ګوتو مبارکو د منځ څخه د فوارې په ډول بهېدلې، دغه قول په اصل کي د حديث د الفاظو تاويل دی او معلومه نه ده چي د حديث د دغه واضح مفهوم سربېره د دې تاويل ضرورت ولي پېښ سو،

مگر دا سوال پیدا کیږي چي د اوبو ددغه معجزې اظهار خو د خالي لوښي په ذریعه هم کیدای سو بیا د لږ اوبو په پلټنه کي څه ضرورت وو، په دې کي یقینا یو حکمت او مصلحت وو، مگر هغه حکمت څه وو؟ محدثینو او شارحینو د ډېر غور او فکر څخه وروسته ددې مقصد ته رسېدلي نه دي نو ددې علم الله ﷻ ته سپارل او پټه خوله کېدل غوره دي.

## د اوبو معجزه

﴿۵۶۵۹﴾: وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ خَطَبَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّكُمْ

د حضرت ابو قتاده رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ زموږ په وړاندي خطبه وفرمایل، په هغه کي یې بیان وکړ چي تاسو به

تَسِيرُونَ عَشِيَّتَكُمْ وَلَيْلَتَكُمْ وَتَأْتُونَ الْمَاءَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ غَدًا فَانْطَلَقَ النَّاسُ لَا

ددغه شپې په اوله برخه کي او آخره برخه کي سفر کوئ او سبا ته به انشاء الله یو اوبو ته ورسیږئ، نو خلک بې اختیاره روان سول داسي چي

يَلْوِي أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ قَالَ أَبُو قَتَادَةَ فَبَيْنَمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسِيرُ

د یو بل یې څه پروا نه وه، د ابو قتاده رضی الله عنه بیان دی چي د هغه شپې په اوله برخه کي رسول الله ﷺ

حَتَّى ابْهَارَّ اللَّيْلُ فَمَالَ عَنِ الطَّرِيقِ فَوَضَعَ رَأْسَهُ ثُمَّ قَالَ احْفَظُوا عَلَيْنَا صَلَاتَنَا

روان وو چي نیمه شپه تیره سوه او رسول الله ﷺ د لاري څخه آخوا سو یو ځای یې سر مبارک کښېښود، بیا یې وفرمایل: زموږ د لمانځه حفاظت کوئ (یعني د سهار د لمانځه پر وخت

فَكَانَ أَوَّلَ مَنِ اسْتَيْقَظَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالشَّمْسُ فِي ظَهْرِهِ ثُمَّ

مي راویښ کړئ) تر ټولو وړاندي د رسول الله ﷺ سترګي ولغړېدلې چي لمر د رسول الله ﷺ شا مبارکي ته را رسیدلی وو،

قَالَ ارْكَبُوا فَرَكِبْنَا فَسِرْنَا حَتَّى إِذَا ارْتَفَعَتِ الشَّمْسُ نَزَلَ ثُمَّ دَعَا بِمِيضَأَةٍ كَانَتْ

رسول الله ﷺ وفرمایل: سپاره سئ نو موږ ټول سپاره سو او سفر مو تر هغه وخته پوري جاري وساتئ تر څو پوري چي لمر پورته سو، بیا رسول الله ﷺ د سپرلی څخه راکښته سو او د اوداسه کولو لوښی یې وغوښتی چي

مَعِي فِيهَا شَيْءٌ مَنْ مَاءٍ فَتَوَضَّأَ مِنْهَا وُضُوءًا دُونَ وُضُوءٍ قَالَ وَبَقِيَ فِيهَا شَيْءٌ

زما سره وو او په هغه کي لږ اوبه وې ، رسول الله ﷺ په هغه سره اودس وکړ ، مختصر اودس ، د ابو قتاده رضي الله عنه بيان دی د اوداسه څخه وروسته لږ اوبه په هغه لوښي کي پاته سوې ،

مِنْ مَاءٍ ثُمَّ قَالَ احْفَظْ عَلَيْنَا مِيضَأَتَكَ فَسَيَكُونُ لَهَا نَبَأٌ ثُمَّ أَذَّنَ بِلَالٌ بِالصَّلَاةِ

رسول الله ﷺ وفرمايل : د خپل اوداسه لوښي زموږ لپاره خوندي وساتئ يا دي اوبه خوندي وساتل سي ، ځکه چي ډير ژر به ددې څخه يو نور ظهور وکړي ، ددې څخه وروسته بلال رضي الله عنه د لمانځه لپاره اذان وکړ

فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صَلَّى الْغَدَاةَ وَرَكِبَ وَرَكِبْنَا

او رسول الله ﷺ دوه رکعته لمونځ وکړ بيا يې د سهار فرض لمونځ دوه رکعته ادا کړ ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ هم سپور سو او موږ هم ،

مَعَهُ فَانْتَهَيْنَا إِلَى النَّاسِ حِينَ امْتَدَّ النَّهَارُ وَحَمِيَ كُلُّ شَيْءٍ وَهُمْ يَقُولُونَ يَا

او کله چي لمر بنه تود سو او په هر شي کي ګرمي پيدا سوه نو هغه وخت موږ هغه خلکو ته ورسيدو (کوم چي زموږ څخه مخکي روان سوي وه) د رسول الله ﷺ په ليدو سره هغه خلکو

رَسُولَ اللَّهِ هَلَكْنَا عَطِشْنَا فَقَالَ لَا هُلْكَ عَلَيْكُمْ ثُمَّ دَعَا بِالْمِيضَأَةِ فَجَعَلَ يَصُبُّ

عرض وکړ اې دالله رسوله ! موږ خو د ګرمۍ او تندي څخه هلاک سوو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: پر تاسو هلاکت نسته، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د اوداسه لوښی را وغوښتی

وَأَبُو قَتَادَةَ يَسْقِيهِمْ فَلَمْ يَعْدُ أَنْ رَأَى النَّاسُ مَاءً فِي الْمِيضَأَةِ تَكَابُّوا عَلَيْهَا فَقَالَ

، رسول الله ﷺ به د لوښي څخه اوبه اچولې او ابو قتاده به په خلکو اوبه څيښلې ، خلکو چي په لوښي کي اوبه وليدلې نو يو دم را ولويدل ګڼه ګوڼه پر جوړه سوه ، رسول الله ﷺ وفرمايل :

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسِنُوا الْمَلَأَ كُلُّكُمْ سَيَرْوَى قَالَ فَفَعَلُوا فَجَعَلَ

د مخلوق سره نيکي او ښېګڼه کوئ (يعني يو بل ته تکليف مه ورکوئ) تاسو ټول به په دغه اوبو اوبه سئ ، د ابو قتاده رضي الله عنه بيان دی خلکو همداسي وکړل ،

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُبُّ وَأَسْقِيهِمْ حَتَّى مَا بَقِيَ غَيْرِي وَغَيْرُ رَسُولِ

بيا رسول الله ﷺ اوبه را اچولې او ما به په خلكو څښلې تر دې چې زما او رسول الله ﷺ څخه پرته هيڅوک پاته نه سو ،

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ صَبَّ فَقَالَ لِي اشْرَبْ فَقُلْتُ لَا أَشْرَبُ حَتَّى تَشْرَبَ

رسول الله ﷺ بيا اوبه را واچولې او ما ته يې وويل وه يې څښه، ما عرض وكړ اې د الله رسوله ! تر څو پورې چې تاسو اوبه ونه څښئ زه يې نه څښم،

يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَالَ إِنَّ سَاقِيَ الْقَوْمِ آخِرُهُمْ شُرْبًا قَالَ فَشَرِبْتُ وَشَرِبَ قَالَ فَأَتَى

رسول الله ﷺ راته وفرمايل د ډلې اوبه كونكې د ډلې څخه وروسته څښې، ابو قتاده رضي الله عنه وايي ما هم اوبه وڅښلې او رسول الله ﷺ هم، د ابو قتاده بيان دى ددې څخه وروسته

النَّاسُ الْمَاءَ جَامِّينَ رِوَاءً. رواه مسلم هكذا في صحيحه وكذا في كتاب الحميدي وجامع الاصول و زاد في المصابيح بعد قوله اخرهم لفظة شربا.

خلک اوبو ته ورسيدل په داسې حال كې چې هغوئ په اوبو ماړه او په آرام سره وه، مسلم او دا ډول د حميدي په كتاب او په جامع الاصول كې هم دي خو په مصابيح كې (آخرهم) لفظ او د شربا لفظ زيات راوړل سوى دى.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۴۷۲، رقم: ۳۱۱- ۶۸۱.

**د لغاتو حل**: ابهار: اي انتصف و توسط. بميضاة: مطهرة كبيرة يتوضا منها. جامين: مستريحين.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د ويښېدو سمدستي وروسته قضاء لمونځ ونه كړ بلكه د هغه په ځنډولو سره د هغه ځاى څخه روان سول ، نو ددې وجه داوه چې رسول الله ﷺ يو داسې ځاى ته په رسېدو سره لمونځ كول غوښتل چې هلته اوبه وي، يا دا وجه وه چې كله رسول الله ﷺ راويښ سو نو هغه د لمانځه د كراهت وخت وو ځكه رسول الله ﷺ د هغه د كراهت د وخت د ايستلو لپاره لمونځ وځنډوى او د هغه ځاى څخه روان سو لكه چې د لومړني روايت الفاظ (فركبنا فسرنا حتى اذا ارتفعت الشمس) دلالت كوي، ددې څخه دا هم معلومه سوه چې د هغه ځاى څخه سمدستي تلل پكار دي چيري چې د الله جل جلاله د حكم په تعميل كې ځنډ پيدا سوى وي، يا د يو

منع خبري کار سوی وی، که څه هم د هغه کېدل په قصد سره نه وي، او رسول الله ﷺ د سهار قضاء لمونځ ادا کولو څخه مخکې چې کوم رکعتونه وکړل هغه سنت وه،

او مسئله داده که د خوب څخه د راوېښېدو یا په یو بل سبب د سهار لمونځ ادا نه کړي او بیا د هغه قضاء د لمر د زوال څخه مخکې ادا کړل سي د هغه سره د سنت دوه رکعته هم کول پکار دي، مګر که فرض لمونځ فوت سوی نه وي بلکه یوازې سنت فوت سوي وي نو د هغه قضاء نسته مګر د امام محمد رحمه الله علیه قول دی چې د لمر راختلو څخه وروسته د لمر تر زوال مخکې د قضاء سوي سنتو قضاء راوړل پکار دي، یعني د هیڅ امام په مذهب کې د لمر د زوال څخه وروسته د هغه قضاء نسته.

د سهار قضاء لمونځ یې په جماعت ادا کړ، ددې څخه دا نتیجه اخیستل کیږي چې د صحابه کرامو سره هم خپل لوښي وه چې په هغو کې یې دومره اوبه درلودلې چې هغه وخت په اودس کولو سره په لمانځه کې ګډون وکړي، او دا هم کېدای سي چې د صحابه کرامو سره دومره اوبه هم نه وي چې د رسول الله ﷺ په ډول مختصر اودس یې کړی وای نو هغوئ په تیمم وهلو سره په لمانځه کې ګډون وکړ، په هر حال په دې اړه د حدیث الفاظ بالکل ساکت دي چې د رسول الله ﷺ څخه ماسوا پاته خلکو اودس وکړ که یې تیمم وهلی وو،

پر تاسو هلاکت نسته، ددغه ارشاد په ذریعه رسول الله ﷺ خلکو ته ډاډ او زیری ورکړ چې مه بېرېږئ، ستاسو لپاره هیڅ هلاکت نسته، الله جل جلاله به ستاسو لپاره د غیبو څخه اوبه راواستوي، په دې اعتبار دغه جمله خبریه سوه یا دا چې دغه ارشاد په اصل کې دعائیه جمله وه یعني رسول الله ﷺ دا وفرمایل چې الله جل جلاله دې تاسو نه هلاکوي او د غیبو څخه دې ستاسو د اوبه کولو بندوبست وکړي.

## په تبوک کې د خوراک د برکت معجزه

﴿۵۶۶۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَمَا كَانَ يَوْمَ غزوة تَبُوكَ أَصَابَ النَّاسَ مَجَاعَةٌ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې د تبوک د غزا په ورځ خلک د لوږې څخه ډیر تنګ سول

فقال عمر يَا رَسُولَ اللّٰهِ ادْعُهُمْ بِفَضْلِ أَزْوَادِهِمْ ثُمَّ ادْعُ اللّٰهَ لَهُمْ عَلَيْهَا

حضرت عمر رضي الله عنه عرض وکړ اې د الله رسوله! د خلکو څخه پاته سوې توښه راوغواړم، چې خدای پاک ته پر هغه توښه باندې د برکت دعاء وکړې،

بِالْبَرَكَةِ فَقَالَ نَعَمْ فَدَعَا بِنِطَعٍ فَبَسَطَهُ ثُمَّ دَعَا بِفَضْلِ أَزْوَادِهِمْ فَجَعَلَ الرَّجُلُ

رسول الله ﷺ وفرمایل هو، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د پوست دسترخوان راوغوښتی وه یې غوړوی او بیا پاته سوی خوراک یې راوغوښتی، نو خلکو شیان راوړل،

يَجِيءُ بِكَفِّ ذُرَةٍ وَيَجِيءُ الْآخَرُ بِكَفِّ تَمْرٍ قَالَ وَيَجِيءُ الْآخَرُ بِكَسْرَةٍ حَتَّى

چا یو موټ لوبیا راوړل، چا یو موټ خرما راوړل چا د ډوډۍ ټوټه راوړل تردې چې پر

اجْتَمَعَ عَلَى النِّطَعِ شَيْءٌ يَسِيرٌ فَدَعَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبَرَكَةِ ثُمَّ

دسترخوان لږ شیان جمع سول، رسول الله ﷺ د برکت دعاء وکړل بیا یې وفرمایل: څومره چې مو

قَالَ خُذُوا فِي أَوْعِيَتِكُمْ فَأَخَذُوا فِي أَوْعِيَتِهِمْ حَتَّى مَا تَرَكُوا فِي الْعَسْكَرِ وِعَاءً إِلَّا

زړه غواړي ددې څخه خپل لوښي ډک کړئ، خلکو لوښي ډک کړل تردې چې په لښکر کي کوم یو لوښي موجود وو هغه ډک کړل سو،

مَلَئُوهُ قَالَ فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا وَفَضَلَتْ فَضْلَةٌ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

ابوهریره وایي خلکو په ماړه نس خوراک وکړ او پاته هم سول ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ لَا يَلْقَى اللَّهَ بِهِمَا عَبْدٌ غَيْرَ شَاكٍّ فَيُحْجَبَ عَنِ الْجَنَّةِ. رواه مسلم.

وفرمایل: زه شاهدي ورکوم چې د الله جل جلاله څخه پرته بل څوک د عبادت وړ نسته او دا چې زه د الله جل جلاله رسول یم، څوک چې د دغه دوو خبرو سره یو ځای سي او په دې کي شک نه کوي هغه به جنت نه سي منع کولای. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱\ ۶۵، رقم: ۴۵- ۲۷.

**د لغاتو حل**: نطع: کعنب بسلط من الادیم.

**تشریح**: تبوک د یو ځای نوم دی چې ذ مدینې منورې څخه تقریبا پر ۴۶۵ میله فاصله باندي واقع دی، د رجب په میاشت د هجرت په ۹ کال رسول الله ﷺ د غزا لپاره هلته اسلامي لښکر بېولی وو، ویل کیږي چې په هغه لښکر کي یو لک مجاهدین وه او د رسول الله ﷺ دغه آخري غزا وه.

کوم لږ خوراک چي د خلګو سره پاته سوی وو...الخ: په دې سره د حضرت عمر رضي الله عنه دا مراد وو چي په عامه توګه د لښکر خلک د خوراکي سامان د لږ والي سره مخامخ وي او ډېر خلک وږي پاته سوي دي، بیا هم ځیني خلک داسي دي چي د هغوئ سره تر اړتیا زیات سامان وي نو (اې دالله رسوله!) تاسو خلکو ته هدایت وکړئ چي هغوئ د پاته سوي سامان په راوړلو سره تاسو ته راسي، په دغه روایت کي د اختصار څخه کار اخیستل سوی دی ، پوره روایت داسي دي چي کله د لښکر خلک د خوراک د لږ والي سره مخامخ سول او خلک وږي پاته سول نو هغوئ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړ: اې دالله رسوله! که تاسو اجازه وکړئ نو موږ به اوښان ذبح کړو او خپل خوراکي ضرورت به پوره کړو ، رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوئ ته اجازه ورکړل ، مګر کله چي حضرت عمر رضي الله عنه ته دا معلومه سول نو هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ چي اې دالله رسوله! که تاسو خلکو ته د اوښانو د ذبح کولو حکم ورکړی نو په دې سره به لښکر ته د سپرلیو د لږوالي پریشاني رامنځته سي، نو دغه خلکو ته د اوښانو د ذبح کولو پر ځای دا حکم ورکړئ چي د چا سره پاته سوی سامان وي نو هغه دي تاسو ته راوړي...الخ.

داسي هیڅکله نه سي کیدای چي یو سړی ...الخ: ددغه ارشاد په ذریعه رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حقیقت څرګند کړ چي کوم څوک په پوره یقین او اعتقاد سره د توحید او رسالت شاهدي ورکړي او بیا بېله شک و شبهې په دغه یقین او ایمان سره په داسي حالت کي وفات سي نو هغه به جنت ته د تللو څخه نه منع کیږي .

## د ام المؤمنین بي بي زینب په ولیمه کي د برکت معجزه

﴿۵۶۶۱﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرُوْسًا بِزَيْنَبَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د بي بي زینب (رض) سره نکاح وسول ،

فَعَمِدَتْ أُمِّي أُمُّ سُلَيْمٍ اِلٰى تَمْرٍ وَ سَمْنٍ وَاَقِطٍ فَصَنَعَتْ حَيْسًا فَجَعَلَتْهُ فِي تَوْرٍ

زما مور ام سلیم د خرما، غوړو او پینر حیس جوړ کړ، ډکه پیاله یې ما ته راکړه

فَقَالَتْ يَا اَنَسُ اذْهَبْ بِهٰذَا إِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْ بَعَثَتْ

او وه يې ویل اې انس ! دا رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یوسه، او عرض ورته وکړه چي زما مور دا معمولي

بِهٰذَا إِلَيْكَ أُمِّي وَهِيَ تُقْرِئُكَ السَّلَامَ وَتَقُولُ إِنَّ هٰذَا لَكَ مِنَّا قَلِيلٌ يَا رَسُولَ

تحفه ستاسو په خدمت کي رالیږلې ده ، او تاسو ته یې سلام عرض کړی دی او ویلي یې دي اې د الله رسوله ! دا لږ تحفه زموږ د لوري قبوله کړئ ،

اللّٰهِ فَذَهَبْتُ فَقُلْتُ فَقَالَ ضَعْهُ ثُمَّ قَالَ اذْهَبْ فَادْعُ لِي فُلَانًا وَفُلَانًا وَفُلَانًا

زه ورغلم او څه چي مور راته ویلي وه هغه مي عرض کړل ، رسول الله ﷺ وفرمایل دلته یې کښېږده او فلانی فلانی فلانی سړی را وغواړه

سَمَّاهُمْ وَادْعُ لِيْ مَنْ لَقِيتَ فَدَعَوْتُ مَنْ سَمَّى وَمَنْ لَقِيتُ فرجعت فَإِذَا

چي د هغوئ نومونه یې راته وښودل ، او په لاره کي چي کوم سړی درسره یو ځای سي هغه هم راوله، نو د چا نومونه چي رسول الله ﷺ ښودلي وه او څوک چي په لاره کي راسره یو ځای سوی

الْبَيْتُ غَاصٌّ بِأَهْلِهِ قِيلَ لِأَنَسٍ عَدَدُكُمْ كَمْ كَانُوا قَالَ زُهَاءَ ثَلَاثِ مِائَةٍ

وه هغه مي راویستل، چي د هغوئ ټول کور ډک سو ، د انس رضي الله عنه څخه پوښتنه وسوله چي تاسو څوک کسان واست ؟ هغه وویل درې سوو ته نژدې ،

فرايت النبي ﷺ وضع يده على تلك الحيسة وتكلم بما شاء الله ثم جعل

بیا ما ولیدل چي رسول الله ﷺ پر هغه خوراک مبارک لاس کښېښود او دعاء یې وکړه کومه چي خدای ته منظوره وه، بیا یې

يدعو عَشَرَةً عَشَرَةً ياكلون منه ويقول لهم اذكروا اسم الله وَلْيَأْكُلْ كُلُّ

لس لس کسان د خوراک لپاره را بلل او خوراک کونکو ته به یې ویل د الله جل جلاله په نوم اخیستو

رجل مِمَّا يَلِيهِ قَالَ فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا فَخَرَجَتْ طَائِفَةٌ وَدَخَلَتْ طَائِفَةٌ حَتَّى

سره یې خورئ، او د خپل خپل مخ څخه یې خورئ، کله چي خلکو خوراک وکړ او په نس ښه ماړه سول نو هغوئ ولاړ سول او بله ډله راغلل دغه ډول ټولو خلکو خوراک وکړ ،

أَكَلُوا كُلُّهُمْ قَالَ لِي يَا أَنَسُ ارْفَعْ فَرَفَعْتُ فَمَا أَدْرِي حِينَ وَضَعْتُ كَانَ أَكْثَرَ أَمْ

حِينَ رَفَعْتُ. متفق عليه.

ددې ځخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: اې انس! پياله را پورته کړه، ما را پورته کړه، زه نه سم ويلای چي کله ما پياله ايښې وه هغه وخت پکښي خوراک زيات وو يا هغه وخت چي ما را پورته کړه. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۲۲۶، رقم: ۵۱۶۳، ومسلم ۲\۱۰۵۱، رقم: ۹۴– ۱۴۲۸.

**د لغاتو حل**: اقط: اي لبن مجفف يابس (وچي شېدې). حيسا: مجموع التمر والسمن والاقط. (يو ډول خواړه)

**تشريح**: چي د هغوئ نومونه رسول الله ﷺ ښودلي وه، ددغه الفاظو په ذريعه حضرت انس رضي الله عنه دا بيان وکړ چي رسول الله ﷺ په متعين کولو سره د هغه درو کسانو نومونه ښودلي وه مګر اوس زما په ذهن کي هغه نومونه نسته، نو ما هغه درې سره کسان په فلان او فلان سره تعبير کړي دي، ددې ځخه ځرګندېږي چي د (رجالا سماهم) الفاظ خپله د حضرت انس رضي الله عنه دي چي په نحوي توګه د (فلانا او فلانا وفلانا) بدل دي، يا دا چي د دغه الفاظو ځخه مخکي اعني يا يعني لفظ محذوف دی.

او زه نه سم ويلای چي ...الخ: يعني د ظاهري صورت په اعتبار ما صحيح اندازه ونه لګولای سول چي هغه مالېده مخکي زياته وه يا کله چي د هغه ځای ځخه پورته سول، مګر حقيقت دادی چي په دې کي ځه شک نسته چي د رسول الله ﷺ د بابرکت لاس په اېښودو سره او د صحابه کرامو د پسخورده کېدو په وجه هغه مالېده هغه وخت هم کله چي پورته سول زياته بابرکته وه.

ځينو علماوو ليکلي دي چي د حديث د ظاهري مفهوم ځخه دا ثابتېږي چي د ام المؤمنين بي بي زينب رضي الله عنها وليمه په دغه ماليده سره وسول چي د حضرت انس رضي الله عنه مور د رسول الله ﷺ په خدمت کي را استولې وه مګر د نورو روايتو ځخه دا معلومېږي چي د هغې د وليمې ډوډۍ پر غوښو او ډوډۍ مشتمل وه لکه ځرنګه چي خپله د حضرت انس رضي الله عنه يو روايت دی چي رسول الله ﷺ د بي بي زينب رضي الله عنها په وليمه کي يو پسه حلال کړ او په دغه وخت کي زرو کسانو غوښي او ډوډۍ په ماړه نس وخوړل، نو په دغه دواړو روايتو کي په ظاهره چي کوم تضاد معلومېږي د هغه ليري کولو لپاره دا ويل سوي دي چي په اصل کي هغه ماليده د رسول الله ﷺ په خدمت کي هغه وخت رسېدلې وه کله چي رسول الله ﷺ د وليمې ډوډۍ چي پر غوښو او ډوډۍ مشتمل وه په خلکو خوړلې وه، همدارنګه په دغه وليمه کي دواړه شيان وخوړل سول يعني ماليده هم او

غوښي هم، او دا هم کېدای سي چي یوه ورځ د مالېدې واقعه رامنځته سوې وي او بله ورځ د غوښو او ډوډۍ خوړلو واقعه راپېښه سوې وي.

ملا علي قاري رحمة الله عليه ددغه حدیث په تشریح کي دا لیکلي دي چي ددغه حدیث څخه دا هیڅکله نه ثابتیږي چي د حضرت انس رضي الله عنه مور چي کومه مالیده د رسول الله ﷺ په خدمت کي را استولې وه، د هغې ولیمه سول، بلکه هغې مالېده د تحفې په توګه رسول الله ﷺ ته را استولې وه چي رسول الله ﷺ په درو سوه کسانو باندي خوړلې وه او بیا هغه مابنام ته یا په راتلونکي ورځ رسول الله ﷺ یو پسه ذبح کړ او ولیمه یې وکړل او د یوه پسه په غوښه او ډوډۍ کي الله جل جلاله دومره برکت واچوی چي زر کسان په ماړه سول، نه خو په دغه روایتو کي څه اختلاف سته او نه په دواړو معجزو کي څه اختلاف سته.

## د اوښ معجزه

﴿۵۶۶۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا عَلَى

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه رویت دی چي د رسول الله ﷺ په ملګرتیا کي مي غزاګاني وکړې، زه

نَاضِحٍ قَدْ أَعْيَا فَلَا يَكَادُ يَسِيرُ تتلاحق بي النبي صلى الله عليه وسلم فقال

پریو اوبو راکښونکي اوښ سپور وم چي ستړی سوی وو، پریو ځای رسول الله ﷺ زما سره یو ځای سو او پوښتنه یې وکړه

مَا لِبَعِيرِكَ فقُلْتُ قد عَيِيَ فَتَخَلَّفَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَزَجَرَهُ

ستا په اوښ څه وسول؟ ما عرض وکړ ستړی سوی دی، ددې اوریدو سره رسول الله ﷺ زما د اوښ تر شا ودریدی او هغه یې هله هله (یعني ژر روان سه) کړی

وَدَعَا لَهُ فَمَا زَالَ بَيْنَ يَدَيِ الْإِبِلِ قُدَّامَهَا يَسِيرُ فَقَالَ لِي كَيْفَ تَرَى بَعِيرَكَ

او د هغه لپاره یې دعاء وکړل، ددې څخه وروسته هغه اوښ تر ټولو اوښانو مخکي وو، بیا رسول الله ﷺ زما څخه پوښتنه وکړه چي اوس ستا اوښ څنګه دی؟

قَالَ قُلْتُ بِخَيْرٍ قَدْ أَصَابَتْهُ بَرَكَتُكَ قَالَ أَفَتَبِيعُنِيهِ بوقية فَبِعْتُهُ عَلَى أَنَّ لِي

ما عرض وکړ ستاسو د دعاء برکت وررسیدی، رسول الله ﷺ وفرمایل: په څلوېښت درهمه

فَقَارَ ظَهْرِهِ الى الْمَدِينَةِ فَلَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ غَدَوْتُ عَلَيْهِ بِالْبَعِيرِ فَأَعْطَانِي ثَمَنَهُ وَرَدَّهُ عَلَيَّ. متفق عليه.

يې خرڅوې ؟ ما په دې شرط اوښ خرڅ کړ چې تر مدينې پورې به زه پر سپور ځم ،. بيا چې رسول الله ﷺ مدينې ته راورسيدی نو سهار مې اوښ رسول الله ﷺ ته بوتلی، رسول الله ﷺ د اوښ بيه راکړل او اوښ يې هم ما ته راکړ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٣١، رقم: ٢٩٦٧، ومسلم ٣\١٢٢١، رقم: ١١٠- ٧١٥.

**د لغاتو حل**: ناضح: اي راكب على بعير يستقي عليه. فقار الظهر: هي عظام الظهر.

**تشريح**: ما په دې شرط دغه اوښ خرڅ کړ...الخ: د دې څخه دا معلومېږي چې د يو شي پلورلو په وخت کې داسې شرط لګول چې د هغه څخه پلورونکي ته ګټه وي، جائز دي، حال دا چې د مسئلې له موخې دا جائز نه دي يا خو په دغه مسئله کې دغه حديث د منسوخ په حکم کې دی يا دا چې د ذکر سوي شرط تعلق د عين عقد سره نه وو بلکه د رانيولو او پلورلو څخه وروسته يا خو د حضرت جابر ﷺ په غوښتنه باندې خپله رسول الله ﷺ د مهربانۍ له موخې دا فيصله وکړل چې تر مدينې پورې دغه اوښ به د جابر ﷺ د سپرلۍ لپاره وي بيا هم دا وضاحت د حديث د ظاهري عبارت سره تعلق نه لري.

## د تبوک د غزا په وخت کې درې معجزې

﴿٥٦٦٣﴾: وَعَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د ابو حميد ساعدي ﷺ څخه روايت دی چې زه د تبوک په غزا کې د رسول الله ﷺ سره روان

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزْوَةَ تَبُوكَ فَأَتَيْنَا وَادِيَ الْقُرَى عَلَى حَدِيقَةٍ لِامْرَأَةٍ فَقَالَ

سوم، او په وادي قرى کې د يوې ښځې باغ ته ورسيدو ، رسول الله ﷺ خلکو ته وفرمايل :

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخْرُصُوهَا فَخَرَصْنَاهَا وَخَرَصَهَا رَسُولُ اللّٰهِ

د دغه باغ ميوه اندازه کړئ ، موږ اندازه کړل ، او رسول الله ﷺ هم اندازه کړل، رسول الله ﷺ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشَرَةَ أَوْسُقٍ وَقَالَ أَحْصِيهَا حَتَّى نَرْجِعَ إِلَيْكِ إِنْ شَاءَ

وفرمايل: لس وسقه ميوه به وي، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ هغه ښځي ته وفرمايل: هر کله چي ميوه شکوې نو د وزن ياد ساته ترڅو پوري چي موږ بيرته راګرځو،

اللّٰهُ وَانْطَلَقْنَا حَتّٰى قَدِمْنَا تَبُوكَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَتَهُبُّ

ددې څخه وروسته چي موږ روان سوو نو تبوک ته ورسيدو، رسول الله ﷺ وفرمايل: نن شپه به

عَلَيْكُمُ اللَّيْلَةَ رِيحٌ شَدِيدَةٌ فَلَا يَقُمْ فِيهَا أَحَدٌ مِنْكُمْ فَمَنْ كَانَ لَهُ بَعِيرٌ

پر تاسو تيزه هواء چليږي هيڅوک دي نه دريږي او د چا سره چي اوښ وي د هغه پښې دي ټينګي

فَلْيَشُدَّ عِقَالَهُ فَهَبَّتْ رِيحٌ شَدِيدَةٌ فَقَامَ رَجُلٌ فَحَمَلَتْهُ الرِّيحُ حَتّٰى أَلْقَتْهُ

وتړي، نو سخت طوفاني باد راغلی يو سړی ودريدی هوا هغه پورته کړ او د طی د غرونو په

بِجَبَلَيْ طَيِّءٍ ثُمَّ أَقْبَلْنَا حَتّٰى قَدِمْنَا وَادِيَ الْقُرٰى فَسَأَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

منځ کي يې وغورځوی، بيا موږ د مديني په لور متوجه سو او وادی قری ته راورسيدو، رسول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَرْأَةَ عَنْ حَدِيقَتِهَا كَمْ بَلَغَ ثَمَرُهَا فَقَالَتْ عَشَرَةَ أَوْسُقٍ.

متفق عليه.

الله ﷺ د باغ والا ښځي څخه پوښتنه وکړه ستا په باغ کي څومره ميوه وسوه، هغې وويل لس وسقه (لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ ورته فرمايلي وه). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۴۳، رقم: ۱۴۸۱، ومسلم ۴\۱۷۸۵، رقم: ۱۱- ۱۳۹۲.

**د لغاتو حل**: وادي القرى: اسم موضع مشهور. اخرصوها: اي خمنوا.

**تشريح**: طی، په اصل کي د هغه مشهوري قبيلې د غټ مورث نوم دی چي د طی قبيله ورته وايي، او د پخواني جغرافيايي ويش سره سم په يمن کي اباده وه، د مشهور تاريخي شخصيت حاتم طائي تعلق ددغه قبيلې سره وو، هغه سيمه چيري چي د طی قبيله اباده وه او چي تلاوطي ورته ويل کيدل او د هغه ځای غرونه د جبال طی په نامه سره مشهور دي، په اوسنی جغرافيايي ويش کي د سعودي عرب په خطه نجد کي شامله ده او شمر ورته ويل کيږي.

په دغه حديث کي د رسول الله ﷺ درې معجزې ذکر سوي دي، يو دا چي رسول الله ﷺ پر

درختو باندي د لګېدل سوو مېوو صحيح وزن وښودى، دوهم د سخت باد معجزه چي رسول الله ﷺ د يو ظاهري علامې او اثر څخه ماسوا د سخت باد وړاندي وينه وکړل چي هغه صحيح ثابته سول، او دريمه معجزه چي کوم سړي د رسول الله ﷺ په هدايت عمل ونه کړ، نو باد هغه په هواء کړ او دومره ليري يې وغورځوى، دلته ددغه درو سره معجزو اظهار يا خو پر هغه منافقانو باندي د رسول الله ﷺ د نبوت د صداقت څرګندولو لپاره وسو چي د رسول الله ﷺ په لښکر کي شامل وه يا د مؤمنانو د يقين او عقيدې لپاره وو.

## د مصر د فتح پيشګوئي

﴿۵۶۶۳﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّكُمْ سَتَفْتَحُونَ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ډير ژر به تاسو فتح کړئ د

مِصْرَ وَهِيَ أَرْضٌ يُسَمَّى فِيهَا الْقِيرَاطُ فَإِذَا فَتَحْتُمُوهَا فَأَحْسِنُوا إِلَى أَهْلِهَا

مصر هيواد چي په هغه کي به د يو سکې نوم قيراط وي، هر کله چي تاسو هغه فتح کړئ نو د هغه اوسيدونکو سره ښه چلن کوئ

فَإِنَّ لَهُمْ ذِمَّةً وَرَحِمًا أَوْ قَالَ ذِمَّةً وَصِهْرًا فَإِذَا رَأَيْتَ رَجُلَيْنِ يَخْتَصِمَانِ فِيهَا

ځکه چي د مصر والاوو لپاره امان او قرابت دى، يا دا يې وفرمايل: چي مصر والاوو لپاره امان دى، او د هغوئ سره يې د خسرګنى قرابت وو، (د رسول الله ﷺ د زوى ابراهيم رضي الله عنه مور ماريه قبطيه د مصر څخه وه، او قرابت د بي بي هاجرې په سبب دى چي د اسماعيل عليه السلام مور وه) بيا هر

فِي مَوْضِعِ لَبِنَةٍ فَاخْرُجْ مِنْهَا قَالَ فَرَأَيْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ شُرَحْبِيلَ بْنِ

کله چي تاسو ووينئ چي دوه کسان د يوې خښتي پر ځاى جګړه کوي نو ته د هغه ځاى څخه وځه، ابوذر وايي ما عبدالرحمن بن شرحبيل بن

حَسَنَةَ وَأَخَاهُ رَبِيعَةَ يَخْتَصِمَانِ فِي مَوْضِعِ لَبِنَةٍ فَخَرَجْتُ مِنْهَا. رواه مسلم

حسنه او د هغه ورور ربيعه د يوې خښتي پر ځاى په جګړه وليدل، نو زه د مصر څخه راغلم. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۹۷۰/۴، رقم: ۲۲۶-۲۵۴۳.

**د لغاتو حل**: القيراط: نصف عشر دينار، لبنة: الآخر قبل طبخه. (اومې خښتي)

**تشريح**: قيراط د يوې سکې نوم وو چې د پنځه اوربشو سرو زرو برابر وو، او په هغه زمانه کې په مصر کې رواج وو، د مصر څخه ماسوا په نورو سيمو کې هم د قيراط رواج وو او مختلف وزنونه او ماليت يې درلود، دمثال په توګه په مکه معظمه او د هغه په شاوخوا سيمو کې يو قيراط د دينار د څلېرويشتمې برخې برابر او دعراق د دينار د شلمې برخې برابر وو.

چيرې چې قيراط ويل کيږي: ددغه جملې په ذريعه نه يوازې دا چې رسول الله ﷺ په دغه سکې سره د مصر تعارف وکړ بلکه دې ته يې هم اشاره وفرمايل چې ددغه هيواد خلک چې هغه وخت قبطي کافران وه سست مزاج يې درلود چې د هغه نښه داده چې د هغوئ پر ژبه د قيراط ذکر ډېر کېدی، ددې څخه معلومه سول چې کوم خلک لوړه حوصله او کريم النفس وي د هغوئ پر ژبه د حقير او سپک شيانو ذکر زيات نه وي.

د هغه ځای د خلکو سره ښه چلن کوئ، ددغه لارښووني مطلب دا وو که چيرې د مصر خلک د خپل خاص کيفيت په اعتبار تاسو ته تکليف درکونکي وي مګر ددې سربېره تاسو له هغوئ سره نيک چلن کوئ که تاسو د هغوئ داسې افعال او اعمال ووينئ چې ستاسو په نزد خراب وي او د هغوئ څخه تاسو ته ذهني يا بدني تکليف رسيږي نو د هغوئ سره په هر حال د عفو او بخښنې معامله کوئ، داسې نه وي چې د هغوئ په يوه خبره يا کار سره تاسو هغوئ ته تکليف رسول پيل کړئ، او هدايت ځکه دی چې د مصريانو سره زموږ دوه خاص تعلقات دي يو خو د هغوئ د امان او حرمت په سبب زموږ د زوی ابراهيم ابن محمد په نسبت سره مصريانو ته حاصل دی، د ابراهيم د مور نوم ماريه قبطيه وو، او د مصري قوم سره يې تعلق درلودی او د هغوئ سره دوهم تعلق دادی چې زموږ د نيکه حضرت اسماعيل عليه السلام په نسبت سره د مصريانو سره زموږ قرابت هم دی، د حضرت اسماعيل عليه السلام مور بي بي هاجره مصري النسل وه، يا دا يې وفرمايل: هغوئ ته امان دی او د هغوئ سره د خسرګنۍ قرابت دی، دلته د او لفظ د شک لپاره دی چې د هغه په ذريعه راوي دا ظاهره کړې ده چې رسول الله ﷺ يا خو د (فان لها ذمة ورحما) الفاظ فرمايلي وه، يا د (فان لها ذمة وصهرا) الفاظ فرمايلي وي، ددغه دوهم روايت په صورت کې د امان تعلق به د بي بي هاجرې په نسبت سره وي او د د مصاهرت (خسرګنۍ) تعلق د بي بي ماريه قبطيه په نسبت سره دی.

کله چې تاسو ووينئ چې هلته دوه کسان ...الخ: ددغه الفاظو په ذريعه رسول الله ﷺ د اهل مصر بې زړه توب بيان کړ چې هغه خلک د يوې خبنتې د ځای لپاره جګړه کوي، په دغه جمله کې چې (رايتم) يعني تاسو ووينئ، د جمع په صيغه فرمايل سوی دی، په دغه مناسبت

سره مخته د جمع صيغه (فاخرجوا) نو تاسو د هغه ځاى څخه ووځئ، لفظ استعمالول پكار وه، مګر رسول الله ﷺ د واحد صيغه (واخرج) په استعمالولو سره يوازي ابوذر رضي الله عنه ته خطاب وفرمايه چي د حضرت ابوذر رضي الله عنه په اړه د رسول الله ﷺ خاص تعلق او شفقت باندي دلالت كوي، مګر دا هم كيداى سي چي ددې څخه عمومي خطاب مراد وي.

مصر د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه كي فتح سو او حضرت ابوذر رضي الله عنه هلته د خپل قيام په دوران كي دوه كسان د يوې خښتي پر ځاى په جګړه وليدل نو سمدستي د مصر په پرېښودو سره راغلى، دا د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت د زمانې واقعه ده، نو رسول الله ﷺ ته د غيبو څخه علم سوى وو چي د يوې خښتي پر ځاى جنګ كول په اصل كي د مصريانو خصومت او فتنې هغه علامه ده چي د هغه وروسته به د فتنې او فساد يوه اوږده لړۍ پېته وي، چي د هغه په نتيجه كي به مسلمانان او اسلام د سخت تاوان سره مخامخ سي، وروسته د مصريانو د عثماني خلافت څخه په بغاوت كولو سره پر مدينه حمله كول، حضرت عثمان رضي الله عنه شهيد كول او بيا په مصر كي د حضرت علي رضي الله عنه له خوا د حاكم حضرت محمد ابن ابوبكر رضي الله عنه وژل، دا هغه پېښې دي چي د هغه علم رسول الله ﷺ ته د مخكي څخه سوى وو، ځكه رسول الله ﷺ حضرت ابوذر رضي الله عنه ته هدايت او وصيت وفرمايه چي كله په مصر كي پر معمولي خبره باندي د دوو كسانو په منځ كي جګړه رامنځته سي نو ته د هغوئ سره د يو ځاى كېدو، او په هغوئ كي د اوسېدو څخه پرهيز وكړه نو حضرت ابوذر رضي الله عنه همداسي وكړل.

## د منافقانو د سخت انجام پيشګوئي

﴿۵۶۶۵﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيْ اَصْحَابِيْ وفي

د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما په صحابه كرامو كي،

رواية قال وَ فِي أُمَّتِي اثْنَا عَشَرَ مُنَافِقًا لَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَلَا يَجِدُونَ رِيحَهَا

او په يوه روايت كي دي چي زما په امت كي دوولس منافقان دي، چي په جنت كي به نه داخلېږي، داخليدل خو څه چي د جنت بوى به هم پيدا نه كړي،

حَتَّى يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ ثَمَانِيَةٌ مِنْهُمْ تَكْفِيكَهُمُ الدُّبَيْلَةُ سِرَاجٌ مِنْ

ترڅو پوري چي د ستن په سوري كي اوښ تير نه سي، په دې كي به د اتو منافقانو شر او فتنه دبيله دفع كړي (دبيله د نس ناسي يا طاعون ناروغي ده)، دا به د

النَّارِ يَظْهَرُ فِي أَكْتَافِهِمْ حَتَّى تَنْجُمَ مِنْ صُدُورِهِمْ . رواه مسلم و سنذكر حديث سهل بن سعد لاعطين هذه الراية غدا في مناقب علي وحديث جابر من يصعد الثنية في جامع المناقب انشاء الله تعالى.

اوريوه شعله وي چي د هغوئ په اوږو كي به پيداسي او اثر به يې تر سينو پوري رسيږي ، مسلم او ډير ژر به د سهل بن سعد حديث لا عطين الخ ، به په مناقب علي كي او د جابر حديث من يصد .الخ، به انشاء الله په جامع المناقب كي بيان كړل سي.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲۱۴۳\۱۴، رقم: ۹- ۲۷۷۹.

**د لغاتو حل**: الدبيلة: الداهية. تنجم: اي تظهر وتطلع النار. (بلبدل).

**تشريح**: تر څو چي اوبن د ستني تر سوري تېر نه سي، دا مبالغه او تعليق بالمحال دی، مطلب دا چي څرنګه د ستني په سوري كي د اوبن تېرېدل محال او ناممكن دي، همدارنګه ددغه منافقانو جنت ته تلل هم محال او ناممكن دي، په قرآن كريم كي دغه الفاظ راغلي دي:

وَلاَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ

او هغه كافران به په جنت كي نه داخليږي تر څو چي د ستني په سوري كي اوبن تېر نه سي .

څرګنده دي وي چي د امت اطلاق پر منافقانو كېدای سي كه د امت څخه مراد امت دعوت وي نو زما په امت كي دولس منافقان دي، په دې كي زما د امت څخه د رسول الله ﷺ مراد امت دعوت وو يعني انسانيت عامه چي د رسول الله ﷺ د دعوت مخاطب دي او هغوئ اسلام ته رابلل د رسول الله ﷺ د پيغمبرۍ مقصد دی، مګر پر منافقانو باندي د صحابه كرامو اطلاق نه سي كيدای نو زما په صحابه كرامو كي دوولس منافقان دي، ددې به دا تاويل كيږي چي رسول الله ﷺ پر هغه منافقانو باندي د صحابه كرامو اطلاق د هغوئ د ظاهري حال په اعتبار وكړ ، كه څه هم په هغوئ كي منافق وو مګر په ظاهره په هغوئ كي كلمه ويونكي هم وه او د خپل ظاهري حيثيت په وجه هغوئ د صحابه كرامو د جماعت سره ګډ سوي وه ، په هغوئ كي به او سېدل ، مطلب دا چي د هغوئ د ظاهري حال په اعتبار او د صحابي سره د هغوئ ګډېدل د رسول الله ﷺ هغوئ ته مجازا صحابه وفرمايل، په دې اعتبار د امت په اړه هم ويل كيږي چي امت دعوت نه بلكه امت اجابت مراد دی .

د حضرت حذيفه رضي الله عنه په روايت كي منقول دي چي د هغه منافقانو شمېر څورلس وو، مګر په هغوئ كي دوو توبه كړې وه او دوولس پر نفاق باندي قائم وه او څرنګه چي مخبر صادق ﷺ خبر وركړى وو هغه بدبخت په هغه حالت كي مړه سول، په هر حال رسول الله ﷺ خپل ځينو خاصو او مقربو صحابه كرامو ته د هغه منافقانو په اړه په تشخص سره ښوولي وه چي د هغوئ د مرګ او فريب څخه هوښيار وي، ، دغه منافقانو چي د اسلام او مسلمانانو پر خلاف د خپل عناد پر بنسټ كومه فتنه خپره كړل د هغه د ذكر څخه اسلامي تاريخ ډك دى ددغه بدبختو د مكروه عزائمو نقطه عروج هغه وخت مخته راغلى كله چي هغوئ د تبوک د غزا څخه د ستنېدو په دوران كي پر لاره د رسول الله ﷺ د وژلو اراده كړې وه مګر الله جل جلاله رسول الله ﷺ خوندي كړ.

دبيلة د دبل يا دبلة تصغير دى چي د هغه معنى د هغه دانې ده چي په نس كي وي او د هغه په سبب زيات وختونه مرګ واقع كيږي، ځينو حضراتو ويلي دي چي د دبيله څخه د طاعون يا ړسوب مراد دى چي په انګريزي كي پليګ ورته وايي، د دبل يوه معنى د آفت او مصيبت هم ده.

چي د هغوئ په اوږو كي به پيدا كيږي...الخ: ددغه الفاظو په ذريعه د دبيله وضاحت سوى دى او په ظاهره دا معلوميږي چي دغه الفاظ د رسول الله ﷺ د ارشاد جز نه دى بلكه د حضرت حذيفه رضي الله عنه خپل الفاظ دي او ددغه الفاظو څخه دا هم ثابته سول چي د دبيله څخه د طاعون يا ړسوب مراد دى، د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه يو روايت دا منقول دى چي رسول الله ﷺ ددغه منافقانو په اړه ما ته په پوره توګه ښودلي وه چي هغه كوم كوم خلک دي او څرنګه به مړه كيږي نو هغوئ ټول هم هغسي مړه سول لكه څرنګه چي ما ته رسول الله ﷺ ښودلي وه.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د بحيرا د راهب واقعه

﴿٥٦٦٦﴾: عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ خَرَجَ أَبُو طَالِبٍ إِلَى الشَّامِ وَخَرَجَ مَعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى

د حضرت ابو موسى رضي الله عنه څخه روايت دى چي (د رسول الله ﷺ اكا) ابو طالب د شام په لور ولاړى، نبي كريم ﷺ هم ورسره وو

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أَشْيَاخٍ مِنْ قُرَيْشٍ فَلَمَّا أَشْرَفُوا عَلَى الرَّاهِبِ هَبَطُوا فَحَلُّوا

او د قريشو يو څو سرداران هم، كله چي راهب ته ورسيدل نو هلته كښته سول او بارونه يې

رِحَالَهُمْ فَخَرَجَ إِلَيْهِمُ الرَّاهِبُ وَكَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ يَمُرُّونَ بِهِ فَلَا يَخْرُجُ إِلَيْهِمْ

خلاص کړل راهب دوئ ته راووتی او دا لومړنی موقع وه، ددې څخه مخکي هغه هيڅ يو قافلې والا ته چي دلته به تيريدل د ملاقات لپاره نه راتلی، د راوي بيان دی چي خلکو خپل کجاوې

قَالَ فَهُمْ يَحُلُّونَ رِحَالَهُمْ فَجَعَلَ يَتَخَلَّلُهُمُ الرَّاهِبُ حَتَّى جَاءَ فَأَخَذَ بِيَدِ

کښته کړې او راهب په هغو کي يو څوک لټوئ تر دې چي هغه رسول الله ﷺ ته راغلی، د رسول

رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هٰذَا سَيِّدُ الْعَالَمِينَ هٰذَا رَسُولُ رَبِّ الْعَالَمِينَ

الله ﷺ مبارک لاس يې ونيوی او وه يې فرمايل: دا ددې ټولو قومونو سردار، ددې ټولو قومونو د پروردګار رسول

يَبْعَثُهُ اللّٰهُ رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ فَقَالَ لَهُ أَشْيَاخٌ مِنْ قُرَيْشٍ مَا عِلْمُكَ فَقَالَ إِنَّكُمْ

چي الله تعالی د نړيوالو لپاره رحمت راليږلی دی، د قريشو ځيني سردارانو پوښتنه ځيني وکړه تا ته دده حال د کوم ځای څخه معلوم دی، راهب ورته وويل: کله چي تاسو

حِينَ أَشْرَفْتُمْ مِنَ الْعَقَبَةِ لَمْ يَبْقَ شَجَرٌ وَلَا حَجَرٌ إِلَّا خَرَّ سَاجِدًا وَلَا يَسْجُدَانِ

د دوو غرونو د منځ څخه وتلي واست ما وليدل چي هيڅ يو ډبره او درخته داسي نه وه چي هغو ورته سجده نه وې کړې، او دا شيان نبي ته سجده کوي،

إِلَّا لِنَبِيٍّ وَإِنِّي أَعْرِفُهُ بِخَاتَمِ النُّبُوَّةِ أَسْفَلَ مِنْ غُضْرُوفِ كَتِفِهِ مِثْلَ التُّفَّاحَةِ ثُمَّ

او بيا ما د مهر نبوت څخه و پيژندی چي د رسول الله ﷺ د اوږو د هډوکي لاندي د سيب په ډول

رَجَعَ فَصَنَعَ لَهُمْ طَعَامًا فَلَمَّا أَتَاهُمْ بِهِ وَكَانَ هُوَ فِي رِعْيَةِ الْإِبِلِ قَالَ أَرْسِلُوا إِلَيْهِ

واقع دی، ددې څخه وروسته راهب ولاړی، او د قافلې والاوو لپاره يې خوراک تيار کړ، کله چي يې خوراک راوړ هغه وخت رسول الله ﷺ اوښان پيول، راهب وويل په هغه پسي څوک

فَأَقْبَلَ وَعَلَيْهِ غَمَامَةٌ تُظِلُّهُ فَلَمَّا دَنَا مِنَ الْقَوْمِ وَجَدَهُمْ قَدْ سَبَقُوهُ إِلَى فَيْءِ

وليږی، نو رسول الله ﷺ تشريف راوړ په داسي حال کي چي د وريځي يوه ټوټې پر رسول الله

درختو خلکمد چي لیدل وه یې نو رسیدی او را ته خلکو ﷺ الله رسول چي كله ،وه کړې سایه ﷺ

الشَّجَرَةِ فَلَمَّا جَلَسَ مَالَ فَيْءُ الشَّجَرَةِ عَلَيْهِ فقال انظروا الى فئ الشجرة مال

سایې ته ناست دي، کله چي رسول الله ﷺ کښېنستی نو د درختو ښاخونو پر رسول الله ﷺ
راکښته سول، دده لیدو سره راهب وویل ددې درختي سایې ته وګورئ چي پر نبي ﷺ راکوږ

عليه فَقَالَ أَنْشُدُكُمُ اللّٰهَ أَيُّكُمْ وَلِيُّهُ قَالُوا أَبُو طَالِبٍ فَلَمْ يَزَلْ يُنَاشِدُهُ حَتَّى رَدَّهُ

سو زه تاسو ته په خدای ﷻ قسم درکولو سره پوښتنه کوم دا راته وواياست چي په تاسو کي دده
سرپرست څوک دی ؟ خلکو ورته وویل : ابوطالب، راهب هغه پوه کړ

أَبُو طَالِبٍ وَبَعَثَ مَعَهُ أَبُو بَكْرٍ بِلَالًا وَزَوَّدَهُ الرَّاهِبُ مِنَ الْكَعْكِ وَالزَّيْتِ. رواه الترمذي.

باعث یې کړ او ورته وه یې ویل دی مکې ته بیرته بوځه، نو ابوطالب مکې ته بیرته ولیږی او
حضرت ابوبکر رضی الله عنه د رسول الله ﷺ سره بلال ولیږی، او راهب رسول الله ﷺ ته ډوډۍ او زیتون
د ناشتې لپاره ورسره ورکړل. ترمذي..

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۵۰، رقم: ۳۶۲۰.

**تشريح**: او ما دغه سړی د مهر نبوت په ذریعه هم پېژندلی دی...الخ: په ځینو روایتو کي دا هم راغلي دي چي راهب د قافلې خلکو ته ددغه جواب ورکولو وروسته ولاړ سو او رسول الله ﷺ یې تر غاړې ونیوی او بیا یې د قافلې دخلکو څخه د رسول الله ﷺ د ذاتي ژوند په اړه ډېر سوالونه وکړل چي د رسول الله ﷺ شپه او ورځ څرنګه تېرېږي، د اوسېدو، ولاړي او ناستي، خوب او خوراک څه انداز دی او د خلکو سره یې اخلاق او معاملات څرنګه دي، د قافلې خلکو چي کوم جوابونه ورکړل هغه یې په خپلو کتابو کي د ویلو خبرو او د خپل معلومات بالکل مطابق تر لاسه کړل.

د درختو ښاخونه په راکښته کېدو سره پر رسول الله ﷺ سایه وکړل، په دې اړه شارحینو لیکلي دي که څه هم هغه وخت د رسول الله ﷺ پر سر مبارکه د وریځي د هغه ټوټې سایه موجود وه کوم چي په لاره کي پر رسول الله ﷺ باندي سایه کوونکې را روانه وه مګر ددې سربېره د درختو په راکښته کېدو سره پر رسول الله ﷺ سایه کول د رسول الله ﷺ د امتیازي حیثیت او

عزت د اظهار لپاره وو، او دا هم كېداى سي چي هغه وخت د وريځي سايه ليري سوې وي ځكه درختي په راكښنته كېدو سره سايه وكړل چي په هغه كي د رسول الله ﷺ د معجزې اظهار وو، په هر حال پر سر مبارك باندي دوريځي سايه كول د رسول الله ﷺ د معجزاتو څخه دي، مګر علماؤ ليكلي دي چي دغه صورت به تل نه وو بلكه كله نا كله به د ضرورت او اړتيا په وخت كي دغه معجزه څرګندېدل.

د درختي سايې ته وګورئ چي پر هغه راكښنته سوې ده، ددې څخه د راهب مطلب دا وو كه تاسو د وريځي په صورت كي د آسمان سايه نه سئ ليدلاى نو د مځكي دغه سايې ته وګورئ چي د درختي د ښاخونو په صورت كي پر دغه ذات باندي راكښنته سوې ده.

صحيح خبره داده چي د راهب مراد د قافلې د خلكو د سر په سترګو سره بلكه د زړه په سترګو سره لېدو ته متوجه كول وو، ځكه چي د سر په سترګو خو يې خپله لېدل مګر حقيقت دادى چي كومو خلكو د خپل فطرت سليم په مسخ كولو سره د جهل او انكار په تياره كي ګمراه كېدل خپل مقصد ګرځولى وو، د هغوئ د زړه ستركي خو د تعصب په وجه داسي بندي سوي دي چي هغوئ د پيغمبر ﷺ د آسماني صداقت هغه لوى نښي په خلاصو سترګو سره د لېدو سربېره د نور هدايت هيڅ كړنه تر لاسه نه كړه، هغوئ د رسول الله ﷺ د نبوت او رسالت ټولي نښي د ستر په سترګو سره لېدلې مګر د زړه د سترګو داسي لېدل هغوئ ته په برخه نه سول چي د هغوئ په كار راغلي واى او هغوئ يې پر سېده لار راوستلى واى لكه چي په قرآن كي فرمايي:

وَتَرَاهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ وَهُمْ لاَ يُبْصِرُونَ ، او دغه كافران ته وينې چي ګويا تا ويني حال دا چي هغوئ هيڅ نه ويني.

په پاى كي ابو طالب، رسول الله ﷺ مكې ته بېرته واستوى، اصل خبره دا وه چي بصرى د رومي پاچاهۍ لاندي وه هلته د عيسائي پاچا بېرغ ولاړ وو او هلته لوى لوى عيسايان د خپل علم او قيافې په بنياد د نبي آخر الزمان ﷺ د پيغمبرۍ خبر وركړى وو چي په هغه سره يو ډول پريشاني پر هغه عيسائي پاچا خپره سوې وه، او ددې خبري پراخ انتظام سوى وو چي څرنګه ممكن دي هغه نبي د خپل اثر خپرولو څخه مخكي ددغه دنيا څخه ختم كړل سي، راهب بحيرا د آسماني كتابو رېښتونى عالم وو او د نبي ﷺ عقيده يې درلودل ځكه هغه رسول الله ﷺ په پېژندلو سره پر حضرت ابو طالب باندي زور واچوى چي رسول الله ﷺ مكې ته بېرته استوي، هغه ته بېره وه كه د رومي پاچاهۍ سپاهيانو ته په لاس ورغلى نو په نيولو سره به يې بوځي او

قتل به یې کړي، ترمذي او حاکم دغه روایت هم نقل کړی دی چي یوې خوا ته د ابوطالب د تجارتي قافلې سره د رسول الله ﷺ سفر پیل سو او بلي خوا ته د رومي پاچاهۍ سپاهیانو چي د هغوئ شمېر اووه وو، په رسول الله ﷺ پسي ولګېدل چي چیري یې پیدا کړي او قتل یې کړي، په دغه پلټنه کي هغوئ بحیرا راهب ته هم ورسېدل، بحیرا د هغوئ په لېدو سره وویل: تاسو دلته د څه لپاره راغلي یاست، هغوئ وویل: موږ ته معلومه سوې ده چي پیغمبر نبي آخر زمان ﷺ په دغه میاشت کي د خپل هیواد څخه په سفر روانېدونکی دی، نو پر هره لار باندي خلک ولګول سول چي کله هغه زموږ د پاچهي په حدودو کي داخل سي نو سمدستي دي ووژل سي، بحیرا وویل: ما ته دا ووایاست که الله ﷻ یو شی مقدر کړی وي نو ایا یو سړی هغه بدلولای سي، هغه سپاهیانو جواب ورکړ: یا، بیا بحیرا وویل: زه تاسو ته رښتیا خبره ښیم چي تاسو د کوم چا په پلټنه کي یاست هغه یقینا د الله ﷻ تر ټولو لوی پیغمبر کېدونکی دی، د دنیا هیڅ طاقت هغه ته تاوان نه سي رسولای نو تاسو د خپل دغه خیال څخه منع سئ چي هغه به قتل کړئ او غوره داده چي تاسو د هغه د اطاعت په قبلولو سره د هغه سره عقیده او مینه ولرئ.

د غنمو د ډوډۍ او د زیتون د تیلو توښه یې د رسول الله ﷺ سره ملګري کړل، کنک لوی ډوډۍ ته وایي او ځینو حضراتو ویلي دي چي کنک هغه خاص ډوډۍ ته وایي چي د اوړه شېدو او بورې په یو ځای کولو سره جوړېږي، د ډوډۍ سره یې د زیتون تېل ددې لپاره ورکړي وه چي په ډوډۍ باندي موږلو سره د خوراک په کار ورسي، جزري رحمة الله علیه د دغه حدیث په اړه لیکلي دي چي د دغه حدیث اسناد صحیح دي او د دغه حدیث رجال د بخاري او مسلم یا دواړو کي د یوې لړۍ سره تعلق لري مګر په دغه حدیث کي د حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت بلال رضي الله عنه چي کوم ذکر دی هغه خوندي نه دی (یعني د اصل روایت څخه نه دی) یا د یو راوي په سهوه سره دا جز نقل سوی دی ځکه چي هغه وخت خپله د رسول الله ﷺ عمر دوولس کاله او د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه دوه نیم کاله کشر وو، او حضرت بلال رضي الله عنه کیدای سي په هغه ورځو کي پیدا سوی هم نه وو، نو دا ویل چي ابوبکر رضي الله عنه، بلال رضي الله عنه د رسول الله ﷺ ملګری کړی وو، نو دا څه معنی نه لري، ځکه ذهبي رحمة الله علیه دا روایت ضعیف ګرځولی دی که څه هم ځینو حضراتو د ذهبي رحمة الله علیه دا قول مسترد کړی دی،

حافظ ابن حجر رحمة الله علیه د دغه حدیث په اړه لیکلي دي چي د دغه حدیث راوي باوري دی او په دې کي هیڅوک منکر نسته، پرته د دغه برخي څخه چي په هغه کي دا مذکور دي چي حضرت ابوبکر رضي الله عنه، بلال رضي الله عنه د رسول الله ﷺ ملګری کړی وو، په هر حال دا خبره خو ثابته ده چي دا

حديث صحيح دی مګر د دغه ذکر سوي برخي په اړه دا ويل کيدای سي چي دا په اصل کي د روايت جزء نه دی بلکه د يو راوي شخه په سهوه نقل سوی دی.

## د درختو او ډبرو سلام

﴿۵۶۶۷﴾: وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ فَخَرَجْنَا فِي بَعْضِ نَوَاحِيهَا فَمَا اسْتَقْبَلَهُ جَبَلٌ وَلَا شَجَرٌ إِلَّا وَهُوَ يَقُولُ السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ. رواه الترمذي والدارمي.

د حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه شخه روايت دی چي زه د نبي کريم ﷺ سره په مکه کي وم، موږ چي به د رسول الله ﷺ سره شاوخوا تلو نو غرونه، ډبري او درختي چي به مخته راغلې نو هغوئ به دا ويل السلام عليک يارسول الله. ترمذي او دارمي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۵۳، رقم: ۳۶۲۶، والدارمي ۱\۲۵، رقم: ۲۱

**تشريح**: صحيح دا معلوميږي چي کومي ډبري او درختي رسول الله ﷺ ته سلام کوی د هغه آواز حضرت علي رضي الله عنه هم اورېدی، په دې اعتبار سره دغه واقعه معجزه او کرامت دواړه ظاهروي، معجزه د رسول الله ﷺ په نسبت سره او کرامت د حضرت علي رضي الله عنه په نسبت سره مګر دا هم احتمال لري چي د هغوئ د سلام کولو آواز خپله حضرت علي رضي الله عنه نه وي اورېدلي بلکه هغه ته رسول الله ﷺ ښودلي وي.

## د براق معجزه

﴿۵۶۶۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِالْبُرَاقِ لَيْلَةَ أُسْرِيَ

د حضرت انس رضي الله عنه شخه روايت دی چي د معراج په شپه براق راوستل چي هغه زين سوی او

بِهِ مُلْجَمًا مُسْرَجًا فَاسْتَصْعَبَ عَلَيْهِ فَقَالَ لَهُ جِبْرِيلُ أَبِمُحَمَّدٍ تَفْعَلُ هٰذَا فَمَا

واګي پر اچول سوي وې، کله چي رسول الله ﷺ د سپرتيا اراده وکړه نو هغه شوخي پيل کړل او رسول الله ﷺ ته سپرتيا مشکل سول، جبرائيل عليه السلام براق ته وويل ايا ته د محمد ﷺ

رَكِبَكَ أَحَدٌ أَكْرَمُ عَلَى اللّٰهِ مِنْهُ قَالَ فَارْفَضَّ عَرَقًا. رواه الترمذي وقال هذا

حديث غريب.

سره شوخي کوې او تر ننه پوري پر تا تر ده غوره سړی نه دی سپور سوی چي عزت ناک وي الله ﷻ ته، د راوي بيان دی ددې اوريدو سره براق خوله خوله سو. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۲۸۱، رقم: ۳۱۳۱.

**د لغاتو حل**: فارفض: اي انصب البراق.

**تشريح**: دا هغه ذات دی...الخ: ددغه بين السطور عبارت څخه دا معلوميږي چي پر هغه براق باندي مخکي نور انبياء عليهم السلام هم سپاره سوي وه، په دې اړه تفصيلي تحقيق په باب المعراج کي تېر سوی دی.

براق خولې خولې سو، په دې اړه شارحينو ليکلي دي چي هغه براق د هغه خوشحالۍ په وجه ټوپونه وهل چي د رسول الله ﷺ د سپرلۍ شرف ما ته تر لاسه کيږي مگر حضرت جبرائيل ﷺ دا گمان وکړ چي د هغه ټوپونه د شوخۍ په وجه دي، کله چي حضرت جبرائيل ﷺ براق خبردار کړ او براق ته د حضرت جبرائيل ﷺ د هغه گمان احساس وسو نو د شرم څخه خولې خولې سو.

## د معراج يوه معجزه

﴿۵۶۶۹﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ لَمَّا انْتَهَيْنَا إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ قَالَ جِبْرِيلُ بِإِصْبَعِهِ فَخَرَقَ بِهِ الْحَجَرَ وَشَدَّ بِهِ الْبُرَاقَ. رواه الترمذي.

د حضرت بريده رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د معراج په شپه چي کله موږ بيت المقدس ته ورسيدو نو جبرائيل ﷺ د گوتي په اشاره سره په ډبره کي سوری وکړ او په هغه سوري پوري يې براق وتړی. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۲۸۱، رقم: ۳۱۳۲.

**تشريح**: په باب المعراج کي د حضرت انس رضي الله عنه دغه روايت تېر سوی دی چي براق يې په هغه کړۍ وتړی چي په هغه سره به ټولو نبيانو عليهم السلام خپل براقونه تړل، ددغه روايت او هغه روايت په منځ کي چي کوم تضاد معلوميږي د هغه رفع کولو لپاره شارحينو ليکلي دي چي د حضرت انس رضي الله عنه په روايت کي د کړۍ څخه مراد کيدای سي هغه ځای وي چيري چي حلقه

(سورى) وو او بيا بند سوى وو، د معراج په شپه حضرت جبرائيل عليه السلام د خپلې ګوتې په اشاره سره هغه سورى خلاص كړ، په دواړو روايتو كي فرق داده چي د حضرت انس رضي الله عنه په روايت كي د حلقې (سوري) خلاصولو يادونه نه ده سوې او دلته د حضرت بريده رضي الله عنه په روايت كي د هغې يادونه سوې ده.

**د اوښ شكايت، د درختي سلام او د يو هلك د بد اثر څخه د خلاصون معجزې**

﴿۵۶۷۰﴾: وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مُرَّةَ الثَّقَفِيِّ قَالَ ثَلَاثَةُ أَشْيَاءٍ رَأَيْتُهَا مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى

: حضرت يعلي بن مره ثقفي رضي الله عنه څخه روايت دى چي دري شيان ما د رسول الله ﷺ د معجزو

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا نَحْنُ نَسِيْرُ مَعَهُ إِذْ مَرَرْنَا بِبَعِيْرٍ يُسْنٰى عَلَيْهِ فَلَمَّا رَآهُ

څخه وليدل: يو خو دا چي موږ د رسول الله ﷺ سره په سفر روان وو چي موږ يو څكيدونكى اوښ وليدى چي د رسول الله ﷺ په ليدو سره يې فرياد وكړى

الْبَعِيْرُ جَرْجَرَ فَوَضَعَ جِرَانَهُ فَوَقَفَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَيْنَ

او يې خپل غاړه پر مځكه كښېښودل، رسول الله ﷺ د هغه اوښ سره ودرېدى او پوښتنه يې

صَاحِبُ هٰذَا الْبَعِيْرِ فَجَاءَهُ فَقَالَ بِعْنِيْهِ فَقَالَ بَلْ نَهَبُهُ لَكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَإِنَّهُ

وكړه د دې اوښ مالك چيري دى؟ هغه مالك حاضر سو، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ته دا اوښ پر ما خرڅ كړه، هغه عرض وكړ اى د الله رسوله!

لِأَهْلِ بَيْتٍ مَا لَهُمْ مَعِيْشَةٌ غَيْرُهُ قَالَ أَمَا إِذَا ذَكَرْتَ هٰذَا مِنْ أَمْرِهِ فَإِنَّهُ شَكَا

ته سو ته يې په بخښنه دركوم، كه څه هم دا اوښ د داسي كورنۍ دى چي د هغوئ سره ددې پر ته بل هيڅ نشته، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل هر كله چي دا حالت دى كوم چي تا بيان كړ نو اوښ

كَثْرَةَ الْعَمَلِ وَقِلَّةَ الْعَلَفِ فَأَحْسِنُوْا إِلَيْهِ ثُمَّ سِرْنَا حَتّٰى نَزَلْنَا مَنْزِلاً فَنَامَ النَّبِيُّ

ذكر د زيات كار او د خوراك د كمى څخه فرياد وكړ، نو تاسو ده سره ښه چلن كوئ، دوهمه معجزه دا ده موږ مخته ولاړو تر دې چي موږ پر يوځاى تم سوو او نبي كريم ﷺ بيده سو

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَتْ شَجَرَةٌ تَشُقُّ الْأَرْضَ حَتّٰى غَشِيَتْهُ ثُمَّ رَجَعَتْ إِلٰى

يوه درخته په مخکه څيرلو سره راغلل او رسول الله ﷺ يې پټ کړ، او ددې ځخه وروسته بيرته

مَكَانِهَا فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرْتُ لَهُ فَقَالَ هِيَ شَجَرَةٌ

خپل ځاى ته ولاړل، كله چي رسول الله ﷺ راويښ سو نو ما ورته دا يادونه وکړه، رسول الله ﷺ وفرمايل: دا يوه درخته ده چي

اِسْتَأْذَنَتْ رَبَّهَا عَزَّ وَجَلَّ فِي أَنْ تُسَلِّمَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَذِنَ

د خپل پروردګار ځخه يې اجازه غوښتې وه چي هغه د خداى پيغمبر ﷺ ته سلام وکړي، الله

لَهَا قَالَ ثُمَّ سِرْنَا فَمَرَرْنَا بِمَاءٍ فَأَتَتْهُ امْرَأَةٌ بِابْنٍ لَهَا بِهِ جِنَّةٌ فَأَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

تعالى اجازه ورکړه هغه د سلام لپاره راغلې وه، د يعلي بيان چي دريمه معجزه، بيا موږ پر مخ ولاړو او د اوبو سره نژدې تيريدو، يوې ښځي رسول الله ﷺ ته خپل زوى را وستى چي پر هغه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَنْخِرِهِ ثم قَالَ اخْرُجْ فَإِنِّي مُحَمَّدٌ رَسُوْلُ اللّٰهِ ثُمَّ سِرْنَا فَلَمَّا رَجَعْنَا

پيريان وه نبي كريم ﷺ د هغه هلک پزه ونيول او وه يې ويل: ووځه زه محمد د خداى رسول (ﷺ) يم، ددې ځخه وروسته موږ پر مخ روان سوو او كله چي را ستانه سو او پر هغه اوبو

مَرَرْنَا بِذٰلِكَ الْمَاءِ فَسَأَلَهَا عَنِ الصَّبِيِّ فَقَالَتْ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا رَأَيْنَا مِنْهُ رَيْبًا بَعْدَكَ . رواه في شرح السنة.

تيريدو نو د هغه هلک د مور ځخه رسول الله ﷺ د هلک دحال پوښتنه وکړه، هغې ورته وويل په هغه ذات دي مي قسم وي چي تاسو يې په حقه راليږلى ياست بيا موږ پر دغه هلک هيڅ د پريشانى خبره ونه ليدل. شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ١٣\ ٢٩٥، رقم: ٢٧١٨.

**د لغاتو حل**: يسنى: اي يستقى: جرجر: اي صاح من الجرجرة. جرانية: اي مقدم عنقه.

## د يو بل هلک د شيطاني اثر ځخه د خلاصون معجزه

﴿۵٦٧١﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّ امْرَأَةً جَاءَتْ بِابْنٍ لَهَا إِلٰى رسول الله صَلَّى

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ځخه روايت دى چي يوه ښځه د خپل زوى سره د نبي كريم ﷺ په خدمت

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَارَسُوْلَ اللهِ إِنَّ ابْنِيْ بِهِ جُنُوْنٌ وَإِنَّهُ لَيَأْخُذُهُ عِنْدَ

کي حاضره سوه او عرض يې وکړ اې د الله رسوله! زما زوی ته ليونتوب دی چې سهار او ماښام

غَدَائِنَا وَعَشَائِنَا فَمَسَحَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدْرَهُ وَدَعَا فَثَعَّ ثَعَّةً وَخَرَجَ مِنْ جَوْفِهِ مِثْلَ الْجِرْوِ الْأَسْوَدِ يَسْعٰى. رواه الدارمي.

دوره پر راځي، رسول الله ﷺ د هغه هلک پر سينه خپل لاس مبارک را تير کړ او دعا يې وکړه، هغه هلک قی وکړ او يو تور شی د کوترې په مثل راووتی چې ځغاستی. ترمذي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۱\ ۲۴، رقم: ۱۹.

**د لغاتو حل**: فثع: اي قاء

### د درختي معجزه

﴿۵۶۷۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ جَاءَ جِبْرِيْلُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ غمگين ناست وو په وينو لړلی، ځکه چې

جَالِسٌ حَزِيْنٌ وَقَدْ تَخَضَّبَ بِالدَّمِ مِنْ فِعْلِ أَهْلِ مَكَّةَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ

مکې والاوو ورته زخمونه رسولي وه، په دغه حال کې جبرائيل عليه السلام راغلی او وه يې فرمايل:

هَلْ تُحِبُّ أَنْ نُرِيَكَ آيَةً قَالَ نَعَمْ فَنَظَرَ إِلَى شَجَرَةٍ مِنْ وَّرَائِهِ فَقَالَ ادْعُ بِهَا

اې د الله رسوله! ايا تاسو خوښوئ چې زه درته يوه معجزه وښيم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هو، نو جبرائيل عليه السلام د هغه درختي په لور وکتل چې د هغه شا ته وه، بيا يې رسول الله ﷺ ته وويل: دا درخته را وغواړه،

فَدَعَا بِهَا فَجَاءَتْ فَقَامَتْ بَيْنَ يَدَيْهِ فَقَالَ مُرْهَا فَلْتَرْجِعْ فَأَمَرَهَا فَرَجَعَتْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَسْبِيْ حَسْبِيْ. رواه الدارمي.

رسول الله ﷺ هغې ته اشاره وکړه هغه درخته راغلل او د رسول الله ﷺ مخته ودريدل، بيا جبرائيل عليه السلام ورته وويل اوس دې ته حکم وکړه چې بيرته ولاړه سي، رسول الله ﷺ هغې ته حکم وکړ نو هغه بيرته

ولاړل، ددي په ليدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل: زما لپاره دا بس دي، زما لپاره دا بس دي. دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۱\۷٦۱، رقم: ۲۳.

**تشريح**: چي د مكې اوسېدونكو ورته رسولي وه، ددې څخه د مكې د كفارو هغه بد چلن او تكليف رسول مراد دي چي د هغوئ له خوا رسول الله ﷺ ته د احد په غزا كي رسېدلي وه چي د هغه په نتيجه كي د رسول الله ﷺ غابن مبارك شهيد سو او باړخو مبارك ئې زخمي سوى وو.

زما لپاره بس ده، زما لپاره بس ده، ددې څخه د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي يوازي دغه مهرباني د الله ﷻ زما لپاره كافي ده، ددغه معجزې په صورت كي د الله ﷻ په دربار كي د خپلي لوړي مرتبې او خپل عظمت په لېدو سره ما ته نه د خپلو زخمونو احساس پاته سوى دى او نه غم پاته سوى دى، ددې څخه معلومه سوه چي د خارق عادت (يعني معجزه يا كرامت) ظهور د يقين او اعتقاد ټينګوالي او د غم په دفع كي مؤثر كردار ادا كوي او دا هم ثابته سول چي كوم بندګان د الله ﷻ په دربار كي د تقرب او عظمت مقام ته رسېدلي وي، كه هغوئ ته د دښمن او مخالف له خوا بدني يا روحاني تكليف او غم ورسيږي نو پر هغه باندي صبر كول پكار دي ځكه چي د دين په معامله كي څومره تكليف او پريشاني پېښيږي، هغومره اجر زياتيږي.

## د رسول الله ﷺ د رسالت شاهدي د درختي په ژبه

﴿۵۶۷۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه رويت دى چي موږ د رسول الله ﷺ سره په سفر كي وو چي يو

فَأَقْبَلَ أَعْرَابِيٌّ فَلَمَّا دَنَا قَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَشْهَدُ أَنْ لاَّ

صحرايي راغلى، كله چي هغه رسول الله ﷺ ته نژدې سو نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ايا ته ددې خبري شاهدي وركوي چي

إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ قَالَ وَمَنْ يَّشْهَدُ

د يوه خداى ﷻ څخه پرته بل څوك د عبادت وړ نه سته او محمد ﷺ د خداى بنده او د هغه رسول دى؟ صحرايي وويل: بل څوك ددې شاهدي وركوي

عَلٰى مَا تَقُوْلُ قَالَ هٰذِهِ السَّلَمَةُ فَدَعَاهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ

كوم چي تا وويل؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل دا د سلمه درخته به شاهدي وكړي، ددې

فرمايلو سره رسول الله ﷺ هغه درختي ته نعري كړي ، رسول الله ﷺ

بِشَاطِئِ الْوَادِيْ فَأَقْبَلَتْ تَخُدُّ الْأَرْضَ حَتَّى قَامَتْ بَيْنَ يَدَيْهِ فَاسْتَشْهَدَهَا ثَلَاثًا أَنَّهُ كَمَا قَالَ ثُمَّ رَجَعَتْ إِلَى مَنْبَتِهَا . رواه الدارمي.

د شيلې پر غاړه وو هغه درخته په مځكه پرې كولو سره رسول الله ﷺ ته راغلل او مخته يې ودريدل، رسول الله ﷺ د هغې څخه درې واره شاهدي وغوښتل او هغه درختي درې واره شاهدي وركړه ، ددې څخه وروسته هغه درخته خپل ځاى ته ولاړل . دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۱\۲۲، رقم: ۱٦.

**د لغاتو حل**: السلمة: شجرة من البادية.

## د خرما دوانبكي شاهدي

﴿۵٦٧٤﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دى چې يو صحرايي د نبي كريم ﷺ په خدمت كې حاضر

وَسَلَّمَ قَالَ بِمَ أَعْرِفُ أَنَّكَ نَبِيٌّ قَالَ إِنْ دَعَوْتُ هٰذَا الْعِذْقَ مِنْ هٰذِهِ النَّخْلَةِ

سو وه يې ويل په كومه علامه به زه پوه سم چې تاسو نبي ياست؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : زه د خرما دغه وانبكى را غواړم

أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللّٰهِ فَدَعَاهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ يَنْزِلُ

هغه به شاهدي ووايې چې زه د خداى رسول يم، رسول الله ﷺ هغه وانبكى را وبلى او هغه د

مِنَ النَّخْلَةِ حَتَّى سَقَطَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ ارْجِعْ فَعَادَ فَأَسْلَمَ الْأَعْرَابِيُّ. رواه الترمذي.

درختي څخه په راكښته كيدو سو ، د رسول الله ﷺ نژدې پر مځكه را ايله سو ، بيا رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : بيرته ولاړ سه ، هغه وانبكى بيرته ولاړى ، ددې معجزې ليدو سره هغه صحرايي مسلمان سو . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۵۴، رقم: ۳۶۲۸.

## د شرموښ خبري کول

﴿۵۶۷۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَ ذِئْبٌ إِلَى رَاعِي غَنَمٍ فَأَخَذَ مِنْهَا شَاةً فَطَلَبَهُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو شرموښ راغلی او د شپانه د رمې څخه يې يو پسه

الرَّاعِي حَتَّى انْتَزَعَهَا مِنْهُ قَالَ فَصَعِدَ الذِّئْبُ عَلَى تَلٍّ فَأَقْعَى وَاستنفرو وَقَالَ

پورته کړ، شپانه ورپسي ورغلی او پسه يې ځيني ونيوی، دا بوهريره بيان دی چي بيا هغه شرموښ يوې غونډۍ ته وختی او هلته د اقعاء په ډول کښينستی وه يې ويل:

قَدْ عَمَدْتُ إِلَى رِزْقٍ رَزَقَنِيهِ اللهُ أَخَذْتُهُ ثُمَّ انْتَزَعْتَهُ مِنِّي فَقَالَ الرَّجُلُ تَاللهِ إِنْ

ما د خپل رزق اراده کړې وه چي الله جل جلاله راکړ، ما پر هغه قبضه وکړه مګر تا زما څخه هغه په زور واخيست، شپانه ورته وويل: قسم په خدای

رَأَيْتُ كَالْيَوْمِ ذِئْب يَتَكَلَّمُ فَقَالَ الذِّئْبُ أَعْجَبُ مِنْ هٰذَا رَجُلٌ فِي النَّخْلَاتِ بَيْنَ

داسي عجيبه کار ما هيڅکله نه دی ليدلی کوم چي نن مي ليدلی دی چي شرموښ خبري کوي، شرموښ ورته وويل د دې څخه زيات عجيبه د هغه سړي حال دی چي په درختو کي دی، د

الْحَرَّتَيْنِ يُخْبِرُكُمْ بِمَا مَضَى وَبِمَا هُوَ كَائِنٌ بَعْدَكُمْ فَكَانَ الرَّجُلُ يَهُودِيًّا فَجَاءَ

خرماوو هغه درختي چي دوو ډبرينو ځمکو په منځ کي واقع دی (يعني مدينه طيبه)، هغه سړی د تيرو خبرو خبر ورکوي او کومي پېښي چي ستاسو څخه وروسته کيدونکي دي هغه هم ښيي، د ابو هريره رضي الله عنه بيان دی چي هغه شپانه يهودي وو،

إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ وَأَسْلَمَ فَصَدَّقَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د شرموښ څخه د دا خبري په اوريدو سره هغه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په خدمت کي حاضر سو او پېښه يې

وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهَا أَمَارَاتٌ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ قَدْ

ورته بيان کړل او مسلمان سو، رسول الله صلی الله علیه وسلم دا خبره تصديق کړه، او بيا يې وفرمايل: دا د قيامت تر مخه علامې دي هغه وخت نژدې دی

أُوشَكَ الرَّجُلُ أَنْ يَخْرُجَ فَلَا يَرْجِعُ حَتّٰى يُحَدِّثَهُ نَعْلَاهُ وَسَوْطُهُ بِمَا أَحْدَثَ أَهْلَهُ بَعْدَهُ. رواه في شرح السنة.

چي سړی به د کور څخه ووځي کور ته به لا نه وي راغلی چي د هغه څپلی او د هغه د غمچيني تسمه هغه ته ټولي خبري بيان کړي چي د هغه په نه شتون کي د ده اهل کړي وي. شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۵\۸۷، رقم: ۴۲۸۲.

**د لغاتو حل**: استثفر: اي ادخل ذنبه بين رجليه.

**تشريح**: توربشتي رحمة الله عليه ليکلي دي، د هغه شپانه نوم چي وروسته په اسلام او صحابيت مشرف سو، اهبار ابن اوس خزاعي وو، ددغه ښځي په نسبت هغه ته (مکلم الذئب) ويل کېدل پيل سول، مګر د روايت دغه الفاظ چي هغه يهودي وو، ددې خبري ترديد کوي چي اهبار ابن اوس خزاعي وو ځکه چي د خزاعه قبيلې خلک يهوديان نه وه مګر دا ويل کيدای سي چي د اهبار ابن اوس تعلق د خزاعه قبيلې سره وو او هغه د خپلي قبيلې پر خلاف د يهوديت مذهب اختيار کړی وو، په دغه صورت کي د توربشتي رحمة الله عليه پر قول باندي دغه اعتراض نه کيږي.

د خرماوو د درختو شاته د دوو ډبرينو مځکو د منځ څخه مراد د مدينې ښار وو او دوه غرونه په اصل کي د حرتينو ترجمه ده چي د حرتين تثنيه ده، د حره معنی د ډبريني مځکي ده، د مدينې ښار په يو داسي ميدان کي اباد دی چي د لويديځ او ختيځ له خوا د دوو ډبرينو مځکو په منځ کي واقع دی.

د تېرو خبرو څخه د تېرو امتونو حال مراد دی او د وروسته واقع کېدونکو خبرو څخه مراد د راتلونکو زمانو کومي پېښي رامنځته کيږي د هغه وړاندي وينه هم ده او د آخرت حقائق او کوائف ښودل هم دي.

## برکت به د کوم ځای څخه راتلی؟

﴿۵۶۷۶﴾: وَعَنْ أَبِي الْعَلَاءِ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النبي صَلَّى اللهُ

حضرت ابو العلاء رضي الله عنه د حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه څخه روايت کوي موږ خلکو به د ديوې

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَتَدَاوَلُ فِي قَصْعَةٍ مِنْ غَدْوَةٍ حَتَّى اللَّيْلِ يَقُومُ عَشَرَةٌ وَيَقْعُدُ

کاسې څخه د سهار څخه آن تر ماښام پوري نوبت په نوبت خوراک کوی لس کسه به ولاړېدل او

عَشَرَةٌ قُلْنَا فَمَا كَانَتْ تُمَدُّ قَالَ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ تَعْجَبُ مَا كَانَتْ تُمَدُّ إِلَّا مِنْ هَاهُنَا وَأَشَارَ بِيَدِهِ إِلَى السَّمَاءِ. رواه الترمذي والدارمي.

لس كسه به كښېنستل، موږ د سمره څخه پوښتنه وكړل د كاسې سره به په څه شي سره مرسته كيدل، (يعني په كاسه كي به د خوراک زياتوب څنګه كيدی)، هغه وويل : تاسو پر څه شي تعجب كوئ په هغه كي به آسماني بركت ګډيدی او خوراک به زياتيدی او په لاس سره يې اسمان ته اشاره وكړه، ترمذي او دارمي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۵۵۳، رقم: ۳۶۲۵، والدارمي ۱\ ۴۳، رقم: ۵۶.

**د لغاتو حل**: عدوة: اي من اول النهار.

**تشريح**: ستا لپاره په دې كي د تعجب څه خبره ده، سوال خو د ټولو تابعينو له خوا وو چي د هغوئ په وړاندي حضرت سمره رضي الله عنه بيان وكړ مګر حضرت سمره رضي الله عنه په جواب كي يوازي ابو العلاء مخاطب كړ ځكه چي لومړی خو هغه هم د سوال كونكو څخه وو، دوهم دا چي په هغه مجلس كي د حضرت ابو العلاء رحمة الله عليه حيثيت د جليل القدر تابعينو څخه د كېدو په وجه تر ټولو ډېر ګند وو، يا دا چي حضرت سمره رضي الله عنه يو سړی يا يوازي د هغه مجلس خلک مخاطب نه كړل بلكه د هغه خطاب په عمومي توګه هر هغه سړي ته دی كوم چي دغه حديث واوري يا يې روايي، په هر حال د حضرت سمره رضي الله عنه مطلب دا وو چي په دې كي د تعجب څه خبره ده چي هغه په يوې پياله كي موجود لږ خوراک څخه دومره زياتو خلكو ټوله ورځ وخوړل، سره د دې چي په ظاهره توګه داسي يو ذريعه نه وه چي په هغه سره د هغه پيالې په خوراک كي زياتوب وسو ځكه چي دا خو د معجزې خبره ده، د الله جل جلاله او د هغه د رسول معامله وه، د الله جل جلاله رسول به دعاء كول او په خپل لاس مبارک به يې هغه پياله مسه كول چي د هغه په سبب الله جل جلاله د آسمان څخه بركت نازلوی او په هغه پياله كي د آسمان څخه خوراک نازلېدی، دلته د قرآن كريم دغه آيت كريمه (وفي السماء رزقكم) ته اشاره ده.

## د بدر په غزا كي د قبوليت دعاء

﴿۵۶۷۷﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دی چي د بدر په ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم

بَدْرٍ فِيْ ثَلَاثِمِائَةٍ وَخَمْسَةَ عَشَرَ قَالَ اَللّٰهُمَّ إِنَّهُمْ حُفَاةٌ فَاحْمِلْهُمْ اَللّٰهُمَّ

د درو سوو پنځلس (۳۱۵) کسانو سره ووتی او دا دعاء يې وکړه اې الله! دا خلک پر پښو دي دوئ ته سپرلۍ ورکړې، اې الله!

إِنَّهُمْ عُرَاةٌ فَاكْسُهُمْ اَللّٰهُمَّ إِنَّهُمْ جِيَاعٌ فَأَشْبِعْهُمْ فَفَتَحَ اللّٰهُ لَهُ فَانْقَلَبُوْا

دوئ لوڅ دي جامه ورکړې، اې الله! دوئ وږي دي په ماړه نس ډوډۍ ورکړې، نو الله تعالی مسلمانانو ته فتح ورکړه او هغوئ په داسي حال کي راستانه سول چي

وَمَا مِنْهُمْ رَجُلٌ إِلاَّ وَقَدْ رَجَعَ بِجَمَلٍ أَوْ جَمَلَيْنِ وَاكْتَسَوْا وَشَبِعُوْا. رواه أبو داود

په هغوئ کي يو سړی هم داسي نه وو چي يو يا دوه اوښه به ورسره نه وه، په جامو پټ او په نس ماړه هم سول. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۱۸۰، رقم: ۲۷۴۷.

**تشريح**: مطلب دا چي د ماته خوړونکو دښمنانو کوم اوښان، جامې او خوراکي سامان د غنيمت په توګه اسلامي لښکر ته په لاس ورغلی د هغه په وجه مجاهدينو ته اوښان هم تر لاسه سول، جامې هم تر لاسه سوې، په نس هم ماړه سول نو د رسول الله ﷺ هره دعاء قبوله سول.

له دې څخه معلومه سول چي د دعاء قبلېدل او بيا دومره ژر او په پوره توګه قبلېدل خارق عادت (يعني د معجزې او کرامت) له قبيل څخه دي او دا نتيجه ده د هغه صبر چي د هغه څرګندونه د الله ﷻ په لاره کي پر پيښېدونکو ټولو مصيبتو او پريشانيو باندي د رسول الله ﷺ او د اسلام د مجاهدينو له خوا وسول لکه څرنګه چي په يو حديث کي راغلي دي: ان الصبر على ما يكره فيه خير كثير، پر ناخوښو او پريشانه کوونکو کارو باندي صبر کول په حقيقت کي د ډېرو شيانو او ګټو تر لاسه کول دي، او د دغه صبر ثمره وه چي په دنيا کي تر لاسه سول، او اصل ثمره خو پاته ده چي په آخرت کي به تر لاسه کيږي (والاخرة خير وابقى).

## يو زيری او يو هدايت

﴿۵۶۷۸﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّكُمْ مَنْصُوْرُوْنَ وَمُصِيْبُوْنَ وَمَفْتُوْحٌ لَّكُمْ فَمَنْ أَدْرَكَ ذٰلِكَ مِنْكُمْ فَلْيَتَّقِ اللّٰهَ

وَلْيَأْمُرْ بِالْمَعْرُوْفِ وَلْيَنْهِ عَنِ الْمُنْكَرِ . رواه أبو داود.

د حضرت ابن مسعود ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ستاسي سره به (د الله ﷻ له طرفه) مرسته وکړل سي او تاسي به غنیمتونه پیدا کړئ او تاسي ته به فتحه نصرت درکړل سي نو په تاسي کي چي څوک دغه حال تر لاسه کړي نو وه دي درېږي او امر بالمعروف او نهي عن المنکر دي کوي . ابوداؤد .

**تخريج**: مسند ابي داود الطيالسي ص: ۴۴– ۴۵، رقم: ۳۳۷.

**د لغاتو حل**: مصيبون: اي مصيبون للغنام.

**تشريح**: د دغه ارشاد په ذریعه رسول الله ﷺ د اعتدال او توازن د لاري لارښوونه وفرمایل چي هیڅوک دي د فتح او کامیابۍ او د مال په زیاتوب سره د خپل حیثیت او خپل منصب او مقصد څخه نه غافل کیږي او د غرور، تکبر ، اصراف او ظلم پر لاره باندي په تللو سره د الله ﷻ د غضب مورد دي نه جوړیږي .

په اصل کي د دغه ارشاد په ذریعه رسول الله ﷺ ، مسلمانان د قرآن کریم دغه آیت ته متوجه کړل چي په هغه کي فرمایل سوي دي :

(الَّذِينَ إِن مَّكَّنَّاهُمْ فِي الأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلاَةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ)،

دغه (رینښتوني مسلمانان) داسي دي که موږ دوئ ته په دنیا کي حکومت او امارت ورکړو نو دا خلک د لمانځه پابندي کوي او زکوة ورکوي او نورو خلکو ته هم د نیکو کارو تلقین او هدایت کوي او د خرابو کارو څخه یې منع کوي .

## په زهر لړلو غوښو د شاهدۍ معجزه

﴿۵۶۷۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ يَهُودِيَّةً مِنْ أَهْلِ خَيْبَرَ سَمَّتْ شَاةً مَصْلِيَّةً ثُمَّ أَهْدَتْهَا

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دی چي د اهل خیبر یوې یهودي ښځي د یو وریې په غوښه کي زهر ګډ کړي وه بیا یې د تحفې په توګه

لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخَذَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الذِّرَاعَ

رسول الله ﷺ ته هغه غوښه راوړل، رسول الله ﷺ د هغې څخه ورون واخیست ، خپله یې هم

فَأَكَلَ مِنْهَا وَأَكَلَ رَهْطٌ مِنْ أَصْحَابِهِ مَعَهُ فقال رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وخوړل او صحابه کرامو هم، (د خوراک په دوران کي) رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وويل

ارْفَعُوا أَيْدِيَكُمْ وَأَرْسَلَ إِلَى الْيَهُودِيَّةِ فَدَعَاهَا فَقَالَ لَهَا أَسَمَمْتِ هَذِهِ الشَّاةَ

لاسونه پورته کړئ (يعني مه يې خورئ)، بيا يې په هغه يهودۍ پسي څوک وليږۍ او را وه يې غوښتله او هغې ته يې وفرمايل: ايا تا په دغه (غوښه) کي زهر ګډ کړي دي؟

فَقَالَتِ الْيَهُودِيَّةُ مَنْ أَخْبَرَكَ قَالَ أَخْبَرَتْنِي هَذِهِ فِي يَدِي لِلذِّرَاعِ قَالَتْ نَعَمْ قُلْتُ

هغې ورته وويل: تاسو ته چا وويل؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ما ته (د غوښو) دغه ورون وويل کوم چي زما په لاس کي دی، هغې وويل: هو ما پکښي ګډ کړي دي، او په ذې خيال مي

إِنْ كَانَ نَبِيًّا فَلَنْ يَضُرَّهُ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ نَبِيًّا اسْتَرَحْنَا مِنْهُ فَعَفَا عَنْهَا رَسُولُ اللَّهِ

پکښي اچولي وه که تاسو نبي ياست نو هيڅ تاوان به درته ونه رسوي او که نه ياست نو موږ به در څخه خلاص سو، رسول الله ﷺ هغه يهودۍ معاف کړه

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يُعَاقِبْهَا وَتُوُفِّيَ بَعْضُ أَصْحَابِهِ الَّذِينَ أَكَلُوا مِنَ الشَّاةِ

او سزا يې ورنه کړل، او په صحابه کرامو کي چي کومو کسانو هغه غوښه خوړلې وه هغوئ مړه

وَاحْتَجَمَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ عَلَى كَاهِلِهِ مِنْ أَجْلِ الَّذِي أَكَلَ مِنَ الشَّاةِ حَجَمَهُ أَبُو هِنْدٍ

سوه، او د دغه غوښو خوړلو له جهته رسول الله ﷺ د خپلو اوږو په منځ کي (د ويني کښلو لپاره) ښکر ولګوی، او ابو هند

بِالْقَرْنِ وَالشَّفْرَةِ وَهُوَ مَوْلًى لِبَنِي بَيَاضَةَ مِنَ الْأَنْصَارِ. رواه ابوداؤد والدارمي.

ښکر و لګوی په ښکر او په چاړه سره او ابو هند د بني بياضه ازاد کړل سوی غلام وو. ابوداؤد او دارمي

**تخريج:** سنن ابي داود ۴\۶۴۸، رقم: ۴۵۱۰، وسنن الدارمي ۱\۴۶، رقم: ۶۸.

**د لغاتو حل:** مصلية: اي مشوية. (ايشول سوې)

**تشريح:** د هغه يهودۍ نوم زينت حارث وو او د سلام بن مشکم ښځه وه، په يو بل روايت کي دا هم منقول دي چي هغه ښځي د خلکو څخه معلومه کړې وه چي رسول الله ﷺ ته کومه برخه د غوښو خوښه وه، هغې يو ورى ذبح کړ او د هغه په ايشولو سره يې پکښي داسي ژر اثر کونکي زهر يو ځای کړل چي د خوړلو سمدستي مړ سي، په ورانه کي يې زيات زهر ګډ کړل او بيا يې

هغه وری رسول الله ﷺ او صحابه کرامو ته راوړ،

نو دغه په زهرو لړل سوی وری به هیڅکله تاوان ونه رسوي، یعني یا خو په دې وجه پر انبیاؤ باندي زهر اثر نه کوي چي د هغوئ ژوند ختم کړي یا په دې وجه چي د دعوت اسلام د اتمام او دین د تکمیل څخه مخکي د رسول الله ﷺ مرګ واقع کېدای نه سو، د لومړي احتمال په صورت کي هغه روایت د سوال باعث کیدای سي چي په هغه کي یې ویلي دي چي د رسول الله ﷺ وفات د هغه زهرو د تاثیر په وجه وسو کوم چي په خیبر کي رسول الله ﷺ ته په خوراک کي ورکړل سوي دي مګر محققینو لیکلي دي چي دا روایت صحیح نه دی، د دغه سوال هیڅ شبه نه پیدا کیږي بلکه په یوه روایت کي خو دا راغلي دي چي یو چا له رسول الله ﷺ څخه د مرګ په ناروغۍ کي پوښتنه وکړل چي په تاسو کي د هغه زهرو اثر تاثیر کوي کوم چي په خیبر کي تاسو ته درکړل سوي وه، رسول الله ﷺ وفرمایل: ما ته تر دې هیڅ تکلیف نه سي رسېدلای کوم چي زما په مقدر کي لیکلی دی او څه چي الله جل جلاله غواړي.

هغه ښځه یې معاف نه کړل او هیڅ سزا یې ور نه کړل، په دې اړه ځینو حضراتو ویلي دي چي هغه ښځه نه ووژل سول او نه بله سزا ورکړل سول او هغې اسلام قبول کړی وو، سلیمان تیمي په خپل کتاب، المغازي کي د دغه روایت په نقل کولو سره د (فلن یضره) څخه وروسته دا نقل کړي دي (وان کنت کاذبا ارحت الناس منک وقد استبان لي انک صادق وانا اشهدک ومن حضر علی دینک ان لااله الاالله وان محمدا عبده ورسوله) یعني هغه ښځي وویل: ما فکر کړی وو که محمد ﷺ نبي وي نو دغه زهر به هغه ته هیڅ تاوان ونه رسوي او که (نعوذبالله) درواغجن وي نو زه به خلکو ته له هغه څخه خلاصون ورکړم، مګر اوس ما ته څرګنده سول چي رسول الله ﷺ په حقیقت سره رسول دی زه د رسول الله ﷺ او هغه چا چي د هغه پر دین قائم وي، په شاهد ګرځولو سره اقرار کوم چي د الله جل جلاله څخه ماسوا بل معبود نسته او بېله شکه محمد (ﷺ) د الله جل جلاله بنده او د هغه رسول دی، مګر طیبي رحمة الله علیه لیکلي دي چي په دې اړه اختلاف دی لکه څرنګه چي په ځینو روایتو کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ هغه ښځه معاف کړل او هیڅ سزا یې ور نه کړل، همدارنګه په یوه روایت کي دا هم راغلي دي چي رسول الله ﷺ د هغه ښځي د وژلو حکم وکړ نو هغه قتل کړل سول، نو د دغه دواړو روایتو په منځ کي تطبیق دا دی چي په پیل کي رسول الله ﷺ هغه ښځه معاف کړې وه او سزا یې ور نه کړل په دې اعتبار په ځینو روایتو کي د معافی ذکر سوی دی مګر بیا وروسته کله چي د هغه زهرجنو غوښو په خوړلو سره د رسول الله ﷺ یو صحابي حضرت بشر ابن براء ابن معرور مرګ د هغه زهرو په وجه وسو چي

هغه د رسول الله ﷺ د منع کولو څخه مخکې د غوښو یوه ټوټه خوړلې وه ، رسول الله ﷺ د هغه یهودي ښځې د قتل حکم صادر کړ نو هغه ښځه د حضرت بشر رضي الله عنه په قصاص کې قتل کړل سول او په دې وجه په ځینو روایتو کې د هغه ښځې د وژل کېدو او سزا ورکول کېدو یادونه ده .

## د حنین په غزا کې د فتح وړاندوینه

﴿۵۶۸۰﴾ : وَعَنْ سَهْلِ ابْنِ الْحَنْظَلِيَّةِ أَنَّهُمْ سَارُوا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت سهل بن حنظلیه رضي الله عنه څخه روایت دی چې صحابه کرام د رسول الله ﷺ سره روان سول

وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ فَأَطْنَبُوا السَّيْرَ حَتّٰى كَانَتْ عَشِيَّةً فَجَاءَ فَارِسٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ

د حنین په جنګ کې او اوږد سفر یې وکړ تر هغو چې شپه سول، یو سپور حاضر سو او عرض یې

اللّٰهِ إِنِّي طلعت طَلَعْتُ جَبَلَ كَذَا وَكَذَا فَإِذَا أَنَا بِهَوَازِنَ عَلٰى بَكْرَةِ آبَائِهِمْ بِظُعُنِهِمْ

وکړ اې د الله رسوله ! زه پر داسې او داسې غره ختلی وم (د غره کیفیت یې ورته بیان کړ) ما ولیدل چې د هوازن قبیله د خپل پلار پر اوښ راغلې ده (دا یو محاوره ده یعنې د دې قبیلې

وَنَعَمِهِمْ اجْتَمَعُوا إِلٰى حُنَيْنٍ فَتَبَسَّمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ تِلْكَ

خاوندانو په خپلو کې خبرې اترې کولې چې مراد ځیني ټوله قبیله ده) د هغه قبیلې سره د هغوئ ښځې او اوښان هم وه او دا ټول د حنین په لور روان سوي دي، ددې اورېدو سره رسول الله ﷺ په مسکا سو او وه یې فرمایل :

غَنِيمَةُ الْمُسْلِمِينَ غَدًا إِنْ شَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ قَالَ مَنْ يَحْرُسُنَا اللَّيْلَةَ قَالَ أَنَسُ بْنُ أَبِي

که الله جل جلاله ته منظور وي نو سبا به دا ټول شیان د مسلمانانو غنیمت وي، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ و فرمایل : نن شپه به زموږ چوکیداري څوک کوي ؟ انس بن ابي

مَرْثَدٍ الْغَنَوِيُّ أَنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ ارْكَبْ فَرَكِبَ فَرَسًا لَهُ فَقَالَ اسْتَقْبِلْ هٰذَا

مرثد غنوي رضي الله عنه عرض وکړ اې د الله رسوله ! دا خدمت به زه تر سره کړم، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ښه دی سپور سه، حضرت انس رضي الله عنه پر خپل آس سپور سو ، رسول الله ﷺ ورته

الشِّعْبَ حَتّٰى تَكُونَ فِي أَعْلَاهُ فَلَمَّا أَصْبَحْنَا خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

و فرمایل : دغه درې ته مخ کړه تر هغو چې د غره سر ته ورسېږې ، کله چې سهار سو نو رسول الله

إِلَى مُصَلَّاهُ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ قَالَ هَلْ أَحْسَسْتُمْ فَارِسَكُمْ فقال رجل يَا

ﷺ د لمانځه لپاره تشريف يوور، دوه ركعته لمونځ يې وكړ بيا يې وفرمايل ايا تاسو خپل سپور ليدلی دی يو سړي عرض وكړ چي

رَسُولَ اللَّهِ مَا أَحْسَسْنَاهُ فَثُوِّبَ بِالصَّلَاةِ فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نه مو دی ليدلی، ددې ځخه وروسته اقامت وسو (لمونځ پيل سو) رسول الله ﷺ (په لمانځه كي)

يُصَلِّي وَهُوَ يَلْتَفِتُ إِلَى الشِّعْبِ حَتَّى إِذَا قَضَى صَلَاتَهُ وَسَلَّمَ قَالَ أَبْشِرُوا فَقَدْ

د درې خوا ته كتل كله چي رسول الله ﷺ د لمانځه ځخه فارغ سو نو وه يې فرمايل: خوشحاله سئ

جَاءَكُمْ فَارِسُكُمْ فَجَعَلْنَا نَنْظُرُ إِلَى خِلَالِ الشَّجَرِ فِي الشِّعْبِ فَإِذَا هُوَ قَدْ جَاءَ

ستاسو سپور را روان دی، موږ د درختو په منځ كي د غره د شيلې خوا ته وكتل چي سپور را

حَتَّى وَقَفَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ فَقَالَ إِنِّي انْطَلَقْتُ حَتَّى

روان وو، سپاره د رسول الله ﷺ مخكي د حاضريدو سره عرض وكړ چي زه ددې ځای ځخه روان

كُنْتُ فِي أَعْلَى هَذَا الشِّعْبِ حَيْثُ أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا

سوم او د غره سر ته ورسيدم كوم ځای ته چي تاسو د ورتلو حكم كړی وو، كله چي سهار سو نو

أَصْبَحْتُ اطَّلَعْتُ الشِّعْبَيْنِ كِلَيْهِمَا فَلَمْ أَرَ أَحَدًا فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

پر دواړو درو باندي وختلم هلته مي هيڅوك ونه ليدل، رسول الله ﷺ هغه سپور ته وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ نَزَلْتَ اللَّيْلَةَ قَالَ لَا إِلَّا مُصَلِّيًا أَوْ قَاضِيًا حَاجَةً قَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا عَلَيْكَ أَنْ لَا تَعْمَلَ بَعْدَهَا. رواه ابوداؤد.

ايا ته د شپې د آس ځخه كښته سوی وې هغه وويل يوازي دلمانځه يا حاجت انساني لپاره كښته سوی وم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل كه چيري ته ددې ځخه وروسته يو عمل ونه كړي نو هم هيڅ پروا نه سته. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\ ۲۰۱۳، رقم: ۲۵۰۱.

**د لغاتو حل**: هوازن: قبيلة كبيرة. (يوه لويه قبيله). بظعنهم: الرجال والنساء الذين يرتحلون. (كوچ كوونكي). فثوب: اي اقيم. (هستوګنه)

**تشريح**: بكرة، ځوان اوښ ته وايي، او (على بكرة ابيهم) د عربو يوه محاوره ده چې د هغه چا په اړه استعماليږي چې يو ځاى ته راسي او ټول يو ځاى راسي او په هغوئ كې هيڅوک پاته نه سي، دغه محاوره د هغه وخت څخه رواج وه چې په يوه زمانه كې په يو ځاى كې د عربو د يوې ډلې خلک يو ځاى ته دتللو لپاره تيار سول، هغوئ كوچ وكړ، نو كوم چا چې چيري ولاړ اوښ پيدا كړ هغه يې ونيوى او پر هغه سپور روان سو، هغه اوښ خپله د هغه خلكو ملكيت نه وو بلكه د هغوئ د پلار وه چې څرېدل، همدارنګه هغه ټول خلک پر اوښانو سپاره روان سول نو په هغوئ كې هيڅوک داسې پاته نه سو چې پر اوښ دې سپور نه وو، نو ددې وروسته دا محاوره رواج سول چې كله د يو قوم يا ډلې خلک ټول يو ځاى تلل نو د هغوئ د اجتماعيت بيانولو لپاره به ويل كېدل چې (جاءوا على بكرة ابيهم) يعني هغه خلک د خپل پلار پر اوښانو راغلل.

قاضي رحمة الله عليه ليكلي دي چې په (على بكرة ابيهم) كې د على لفظ د مع په معنى كى دى او دغه جمله د ضرب الامثال په توګه استعماليږي او دا متل د هغه څخه رواج وو چې د عربو يوې كورنۍ د يوې پېښې په وجه د خپلې سيمې پرېښودلو ته مجبور سول نو هغه ټولو خلكو د هغه ځاى څخه كوچ وكړ، هغه خلكو به هيڅ شى تر خپل شا پرېښودل نه غوښتل ځكه هر شى له ځان سره واخيست تر دې چې يو اوښ چې د هغوئ سره وو، هغه يې هم د ځان سره بوتلى، له دې كبله ځينو خلكو وويل: (جاءوا على بكرة ابيهم) يعني دغه خلكو هر څه له ځان سره يووړل، تر دې چې د خپل پلار اوښ يې هم راوست، ددې څخه دغه جمله د خلكو ضرب المثال وګرځېدل، كه څه هم له هغوئ سره اوښ وو يا نه وو، او ځينو حضراتو دا ليكلي دي چې يو سړى خپل ټوله كورنۍ پر اوښ سپاره كړل او ګرځېدى، د هغه په لېدو سره يو چا دغه جمله وويل او له هغه وخت څخه دغه جمله متل وګرځېدل.

چې د هغه شپې څخه وروسته يې هيڅ عمل ونه كړ، ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ هغه سپاره، يعني حضرت انس ابن مرثد رضي الله عنه ته زيرى وركړ چې ستا لپاره د الله جل جلاله په نزد نن شپه كافي ده، ستا په عملنامه كې ددغه شپې د خدمت په بدله كې دومره اجر او ثواب جمع سوى دى او تا ته دومره فضيلت دركړل سوى دى كه ته د فضائلو او نفلو څخه بل هيڅ عمل ونه كړې نو په آخرت كې به تا ته لوړې درجې دركړل سي، په دغه جمله كې د عمل څخه نوافل او نيک كارونه مراد دي نه فرائض، ځكه چې فرائض په هيڅ حالت كې نه ساقط كيږي او ځينو

حضراتو دا ويلي دي چي په دغه ارشاد كي د عمل څخه جهاد مراد دی مطلب دا چي تا نن شپه د الله ﷻ په لار كي زموږ د ساتني ذمه داري په تكليف او قرباني سره تر سره كړل نو تر دې وروسته كه ته په جهاد كي ګډون ونه كړې نو پر تا باندي هيڅ نيوكه نسته .

## په خرماوو كي د بركت معجزه

﴿۵٦٨١﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمَرَاتٍ فَقُلْتُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ ته لږ خرماوي راوړلې او عرض مي

يَا رَسُولَ اللهِ ادْعُ اللهَ فِيهِنَّ بِالْبَرَكَةِ فَضَمَّهُنَّ ثُمَّ دَعَا لِي فِيهِنَّ بِالْبَرَكَةِ

وكړ اې د الله رسوله! د خدای ﷻ څخه په دې كي د بركت دعاء وغواړه، رسول الله ﷺ هغه خرماوي په خپل لاس مبارك كي واخيستې او بيا يې د بركت دعاء وكړه،

فَقَالَ خُذْهُنَّ فَاجْعَلْهُنَّ فِي مِزْوَدِكَ كُلَّمَا أَرَدْتَ أَنْ تَأْخُذَ مِنْهُ شَيْئًا فَأَدْخِلْ

بيا يې وفرمايل : دا يوسه او په خپل لوښي كي يې واچوه هر كله چي ته د دې څخه يو څه اخيستل غواړې نو په لوښي كي لاس ور دننه كړه

فِيهِ يَدَكَ فَخُذْهُ وَلَا تَنْثُرْهُ نَثْرًا فَقَدْ حَمَلْتُ مِنْ ذَلِكَ التَّمْرِ كَذَا وَكَذَا مِنْ

او را كاږه يې مګر لوښي په خالي كولو سره مه څنډه، د ابو هريره رضي الله عنه بيان دی چي ما د هغه خرماوو څخه دومره دومره پيمانې د الله ﷻ په لاره كي مصرف كړې

وَسْقٍ فِي سَبِيلِ اللهِ فَكُنَّا نَأْكُلُ مِنْهُ وَنُطْعِمُ وَكَانَ لَا يُفَارِقُ حِقْوِي حَتَّى كَانَ يَوْمُ قَتْلِ عُثْمَانَ فَإِنَّهُ انْقَطَعَ. رواه الترمذي.

موږ به دغه خرماوي خوړلې او خلكو ته مو هم وركولې او دا لوښي به هيڅكله زما څخه بيل نه وو ، تر دې چي د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت په ورځ هغه لوښی ضائع سو . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\٦٤٣، رقم: ٣٨٣٩.

**تشريح**: د روايت د آخري الفاظو څخه معلومه سول چي كله په ټولنه كي فتنه او فساد خپور سي او په خلكو كي انتشار زيات سي نو خير او بركت له منځه ځي، په يوه روايت كي منقول دي

چي د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت په ورځ حضرت ابوهريره رضي الله عنه خپل درد او غم په دغه شعر کي ظاهر کړ:

للناس هم ولي اليوم همـان بينهم هم الجراب وهم الشيخ عثمانا

ژباړه: نن ورځ نورو خلکو ته يو غم دى او پر ما دوه غمونه دي، يو غم د لوښي د ضائع کېدو او بل غم د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

### د هجرت واقعه او د غار ثور معجزه

﴿۵۶۸۲﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ تَشَاوَرَتْ قُرَيْشٌ لَيْلَةً بِمَكَّةَ فَقَالَ بَعْضُهُمْ إِذَا

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي يوه شپه قريشو په مکه کي مشوره وکړه، ځينو وويل

أَصْبَحَ فَأَثْبِتُوهُ بِالْوَثَاقِ يُرِيدُونَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بَعْضُهُمْ بَلْ

په سهار کيدو سره هغه (يعني رسول الله صلى الله عليه وسلم) په رسۍ سره ټينګ و تړئ، ځينو دا مشوره ورکړه

اقْتُلُوهُ وَقَالَ بَعْضُهُمْ بَلْ أَخْرِجُوهُ فَأَطْلَعَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ نَبِيَّهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

چي مړيې کړئ او ځينو وويل جلا وطنه يې کړئ، الله جل جلاله خپل نبي د کفارو د دغه مشورې څخه

وَسَلَّمَ عَلَى ذٰلِكَ فَبَاتَ عَلِيٌّ عَلَى فِرَاشِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ اللَّيْلَةَ

خبر کړ، هغه شپه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم پر بستره حضرت علي رضي الله عنه تيره کړه

وَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى لَحِقَ بِالْغَارِ وَبَاتَ الْمُشْرِكُونَ يَحْرُسُونَ

او نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مکې څخه ووتی په غار ثور کي يې شپه تېره کړه، دلته کفارو ټوله شپه د

عَلِيًّا يَحْسَبُونَهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا أَصْبَحُوا ثَارُوا عليه فَلَمَّا رَأَوْا

حضرت علي رضي الله عنه چوکيداري کول په دې ګمان چي دا نبي صلى الله عليه وسلم دى، هغوئ پر رسول الله صلى الله عليه وسلم راغلل مګر د رسول الله صلى الله عليه وسلم پر ځای يې حضرت علي رضي الله عنه وليدى

عَلِيًّا رَدَّ اللّٰهُ مَكْرَهُمْ فَقَالُوا أَيْنَ صَاحِبُكَ هٰذَا قَالَ لَا أَدْرِي فَاقْتَصُّوا أَثَرَهُ فَلَمَّا

، نو الله ﷻ د هغوئ مکر او چم هم پر هغوئ واچوئ او هغوئ حيران پاته سول، بيا هغوئ د حضرت علي رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي ستا دوست څه سو؟ حضرت علي رضي الله عنه ورته وويل نه يم خبر، ددې اوريدو سره کفارو

بَلَغُوا الْجَبَلَ اختلط عَلَيْهِمْ فَصَعِدُوا الْجَبَلَ فَمَرُّوا بِالْغَارِ فَرَأَوْا عَلَى بَابِهِ نَسْجَ

د رسول الله ﷺ پر قدم باندي د لټولو لپاره روان سول جبل ثور ته چي ورسيدل نو پل ورته مشتبه سو، بيا هغوئ پر غره سربيره وختل او د غار ثور خولې ته ورسيدل د غار پر خوله يې د

الْعَنْكَبُوتِ فَقَالُوا لَوْ دَخَلَ هَاهُنَا لَمْ يَكُنْ نَسْجُ الْعَنْكَبُوتِ عَلَى بَابِهِ فَمَكَثَ فِيهِ

ثَلَاثَ لَيَالٍ. رواه احمد.

جولاګي (عنکبوت) جاله وليدل نو په خپلو کي يې وويل که هغه په دغه غار کي ننوتلی وي نو د جولاګي جاله به دلته نه وای، رسول الله ﷺ په دغه غار کي درې شپې دننه وو. احمد

**تخريج**: احمد في مسنده ۱\۳۴۸.

**د لغاتو حل**: الوثاق: وهو ما يشد به.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د هجرت مختصر حالات دادي چي د مکې مشرکينو ته دا معلومه سول چي د محمد (ﷺ) د اسلام دعوت تر مدينې پوري رسېدلی دی او د هغه ځای ډېر غټ خلک په اسلام کي داخل سوي دي، نو هغوئ سخت پريشانه سول، پر دغه مسئله باندي د غور او فکر او د رسول الله ﷺ په اړه د يوې حتمي فيصلې کولو لپاره د هغوئ ټول سرداران او مشران راجمع سول، کله چي د مکې د سردارانو او مشرانو مشوره پيل کېدونکې وه نو ابليس د يو سپين ږيري او تجربه لرونکي سړي په صورت کي هغه مجلس ته ورسېدی او هغه وويل: زه د نجد څخه راغلی يم، ما ته چي ستاسو د مشورې خبر وسو نو زما خواهش سو چي زه هم ستاسو په دغه مشوره کي په ګډون کولو سره مناسبه رايه وړاندي کړم، بېله شکه په عقل او پوهه کي هيڅوک تر ما زيات نه دی، د مجلس حاضرين د ابليس په دغه خبره ډېر متاثر سول او په عزت او احترام يې په منځ کي هغه ته ځای ورکړ، ددې څخه وروسته د هغه مجلس کاروايي پيل سول او د مختلفو خلکو له خوا د خپل رايي بيانولو لړۍ پيل سول، ابو البختري وويل: زما رايه داده چي دغه سړی (محمد ﷺ) بندي کړل سي او په يوه داسي تاريکه خونه کي بند کړل سي چي په هغه کي د تګ راتګ هيڅ ذريعه او هيڅ دروازه خلاصه نه سي، يوازي يو داسي

سوری دي پاته سي چي په هغه کي د خوراک او څښاک شیان ورکول کیږي، او په هغه خونه کي دي تر هغه وخته پوري بندي وساتل سي تر څو چي په هغه کي مړ نه سي.

د دې په اورېدو سره هغه نجدي سړی (یعني ابلیس) وویل: دغه رایه نامناسب ده ځکه که تاسو هغه بندي کړئ نو د هغه د کورنۍ خلک به پر تاسو حمله وکړي او د جګړې په ذریعه به هغه بوځي، بیا هشام ابن عمرو دا رایه ورکړه چي دغه سړی ښه ذلیل او خوار کړل سي او پر اوښ باندي سپور کړل سي او ددغه مځکي څخه وایستل سي، هغه ددغه ځای څخه په جلا وطنه کولو سره بل ځای ته و ایستل سي ، ابلیس ددغه رایي هم مخالفت وکړ او هغه وویل: په داسي کولو به دغه سړي ته د خپل مقصد پوره کولو ښه موقع په لاس ورسي او ددغه ځای څخه په تللو سره به د خپل مظلومیت قصې کوي او خلک به ځان ته متوجه کوي، که څه هم ددغه ځای خلک به د هغه د دعوت څخه خوندي سي مګر هغه به د بل ځای خلک تیار کړي او بیا د هغه خلکو په مرسته به پر تاسو حمله وکړي، په پای کي ابوجهل لعین وویل: تاسو د هري قبیلې او کورنۍ څخه یو سړی وټاکئ او هغوئ ټولو ته توري ورکړئ او بیا ورته ووایاست چي ټول په یو وار په خپلو تورو سره پر دغه سړي حمله وکړئ نو په داسي کولو سره به د هغه وژنه په ټولو قبیلو کي خپره سي یعني د هغه د قتل به یو خاص قبیله او کورنۍ ذمه داره نه وي ، او په دغه صورت کي به بني هاشم د ټولو قریشو قبیلو او کورنیو سره په یو وار د جګړې کولو او دهغه سړي د وژني د بدلې اخیستلو څخه عاجز وي، او په مجبورۍ کي به پر دیت اخیستلو راضي سي ، کله چي هغوئ دیت وغواړي نو موږ به ټول یو ځای دیت ورکړو او قصه به ختمه سي، ابلیس ددغه رایي ډېر تعریف وکړ او هغه وویل: دغه زلمي بالکل صحیح خبره وکړل ، بیا ټول خلک د ابوجهل پر رایه متفق سول او دا فیصله وسول چي نن شپه دي د محمد (ﷺ) کور محاصره کړل سي او تر سهار پوري دي پر هغه حمله وکړل سي او قصه دي ختمه کړل سي، مګر الله ﷻ د حضرت جبرائیل علیه السلام په رالېږلو سره د قریشو په دغه فلان رسول الله ﷺ خبر کړ چي تاسو پر خپله بستره باندي د حضرت علي رضی الله عنه په پرې ایستلو سره د ابوبکر صدیق رضی الله عنه سره د هجرت په اراده د شپې له مکې څخه ووځئ، د قرآن کریم په دغه آیت کي دې ته اشاره سوې ده:

وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِينَ كَفَرُواْ لِيُثْبِتُوكَ أَوْ يَقْتُلُوكَ أَوْ يُخْرِجُوكَ

او کله چي د مکې کافرانو ستاسو په اړه دا فلان جوړ کړ چي تاسو بندي کړي یا مو قتل کړي یا تا د هیواد څخه وباسي.

نو رسول الله ﷺ پر خپله بستره باندي حضرت علي ؓ پرې ایستی او خپله د حضرت ابوبکر ؓ سره د شپې د مکې څخه په وتلو سره د جبل ثور په یو غار کي پټ سول، هغه وخت د قریشو یوې خطرناکه ډلي د رسول الله ﷺ د کور محاصره کړې وه، د رسول الله ﷺ د کور څخه وتل او د هغه کافرانو د رسول الله ﷺ د کور څخه وتونکی لیدل بیا له هغوئ سره د رسول الله ﷺ خبري کول او د هغوئ په مخ کي تېرېدل یوه حیرانوونکې قصه او لویه معجزه وه چي د هغه تفصیل د تاریخ او سیرت په کتابو کي ذکر سوی دی.

په هر حال د مکې قریشو د خپل ګمان سره سم چي محمد ﷺ په کور کي ښده دی، ټوله شپه د رسول الله ﷺ د کور څارنه کول، د هغوئ اراده وه چي یوه شپه د رسول الله ﷺ د کور څارنه وکړل سي او د سهار په وخت کي کور ته دننه ورسي او کار یې خلاص کړي، نو په سهار کېدو سره هغوئ په کور کي دننه حمله وکړل نو هلته د حضرت علي ؓ په لېدو سره حیران سول او سمدستي د رسول الله ﷺ په پلټنه پسي ووتل، هغوئ د رسول الله ﷺ د قدمونو د نښو په لېدو سره جبل ثور ته ورسېدل او د بیا د هغه غار خولې ته ورسېدل چیري چي رسول الله ﷺ او ابوبکر صدیق ؓ پټ سوي وه، د هغه غار خوله یوه لویښت پلنه او یو لاس اوږده ده، الله ﷻ هغه وخت دوې کوترې را واستولې چي د غار په خوله کي یې هګۍ واچولې او د الله ﷻ په حکم سره یو جولاګی راغلی او د غار په خوله کي یې ځاله جوړه کړه، په دغه صورت کي د قریشو د سپاهیانو دا خیال هم نه سو چي په دغه غار کي دوه انسانان پټ دي نو د هغه ځای څخه په ناامیده کېدو سره ستانه سول، په یوه روایت کي دا هم راغلي دي چي که چیري د قریشو هغه سپاهیانو خپلو پښو ته کتلي وای نو په ډېره اساني به یې رسول الله ﷺ او ابوبکر صدیق ؓ لیدلي وای، حضرت ابوبکر صدیق ؓ په غار کي دننه هغه لېدل، هغه ته د رسول الله ﷺ په اړه سخته پریشانه پیدا سول او د خپل بیري اظهار یې وکړ، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: د هغه دوو کسانو په اړه ستا څه خیال دی چي د هغوئ دریم ملګری الله ﷻ دی، نو الله ﷻ هغه کافران داسي ړانده کړل چي هغوئ د غار څلورو خواوو ته په کتلو سره ګرځېدل مګر په غار کي دننه رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر صدیق ؓ یې ونه لېدل.

په بحر العلوم تفسیر کي د دغه آیت (اذ یقول لصاحبه لاتحزن ان الله معنا) په اړه لیکلي دي چي په دغه آیت کي د صاحب (ملګري) څخه مراد حضرت ابوبکر صدیق ؓ دی چي د هجرت په شپه، کله چي کفارو د رسول الله ﷺ د وژني پخه اراده وکړل نو له رسول الله ﷺ سره د مکې څخه روان سو او دواړه د ثور په غار کي پټ سول، کله چي حضرت ابوبکر صدیق ؓ ولېدل

چي د مکې کفار د غار خولې ته را رسېدلي دي نو رسول الله ﷺ ته يې وويل: که چيري کفار خپلو پښو ته وګوري نو هغوئ به يقينا موږ ووينې، په دغه وخت کي رسول الله ﷺ، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ته په ډاډ ورکولو سره وفرمايل چي د فکر او پريشانۍ خبره نسته، (الله جل جلاله زموږ سره دی) او رسول الله ﷺ وفرمايل: اې ابوبکر! د هغه دوو کسانو په اړه ستا څه خيال دی چي د هغوئ دريم ملګرى الله جل جلاله وي، له دې څخه دا ثابتيږي چي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د صحابيت منکر د نص قرآن د انکار په سبب کافر دی حال دا چي د نورو صحابه کرامو منکر ته کافر نه بلکه مبتدع ويل کيږي.

د هجرت د پېښي په اړه چي کوم روايت د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه منقول دی په هغه کي دا بيان دی چي زما مور او پلار د عقل او بلوغ له وخت څخه ديندار وه او هيڅ ورځ به داسي نه تېرېدل چي رسول الله ﷺ به سهار او ماښام زموږ کره نه راتلی، کله چي پر مسلمانانو باندي د مکې د کفارو ظلم او ستم زيات سو نو رسول الله ﷺ يوه ورځ زما پلار ابوبکر رضي الله عنه ته وفرمايل: ستا دار الهجرت ما ته ښودل سوی دی، هغه د دوو ډبرينو مځکو په منځ کي د خرماوو د باغو يو کلی دی، ددې څخه وروسته د رسول الله ﷺ په حکم سره مدينې ته د مسلمانانو د هجرت لړۍ پيل سول او حبشې ته هجرت کونکي هم مدينې ته راغلل، له دې کبله حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه هم مدينې ته د هجرت تياري پيل کړل مګر رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: اې ابوبکر! ته اوس ودرېږه، زه اميد لرم چي ما ته هم د هجرت اجازه تر لاسه کېدونکې ده، د هغه ورځي څخه د حضرت ابوبکر رضي الله عنه دا حال سو چي هغه به هر وخت د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر وو چي هيڅکله به نه ور څخه بېلېدی، ددې څخه ماسوا هغوئ دوه اوښان تيار کړي وه چي د روانېدو څخه څلور مياشتي مخکي په کور کي تړلي وه تر دې چي يوه ورځ د غرمې په وخت کي رسول الله ﷺ د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه کور ته راغلی او و يې فرمايل: د الله جل جلاله له خوا ما ته د هجرت اجازه سوې ده نو ابوبکر صديق رضي الله عنه يو اوښ د رسول الله ﷺ په خدمت کي وړاندي کړ، په عائشې او اسماء باندي يې د لاري توښه تياره کړل او بيا په هغه ورځ چي د ربيع الاول ثورلسم نبوي کال لومړی تاريخ وو او د پنجشنبې ورځ وه د شپې رسول الله ﷺ د خپل کور څخه ووتی او د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه کور ته ورغلی، او د هغه ځای څخه دواړه روان سول او په جبل ثور کي پټ سول، د الله جل جلاله په قدرت سره په هغه شپه کي د هغه غار په خوله کي د کيکر درخته شنه سول، ځنګلي کوتري د غار په خوله کي په ځالي جوړولو سره هګۍ واچولې او جولاګي ځاله جوړه کړه، د مکې کفار چي غار ته نژدې ورسېدل نو هلته د داسي نښنو په لېدو

سره چي په غار کي دننه د يو چا موجودتيا نفي يې کول، محروم او مايوس ستانه سول.
کله چي رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د شپې په تياره کي د مکې څخه روان سول نو په ټوله لاره کي کله به حضرت ابوبکر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه مخکي تلی او کله به تر شا روان وو، او د هغه مقصد دا وو چي يو کافر د شا څخه يا د مخ له خوا څخه حمله ونه کړي، بيا کله چي غار ته نژدې ورسېدل نو رسول الله ﷺ يې دباندي ودروی او خپله غار ته دننه ورغلی او هغه يې پاک کړ، بيا رسول الله ﷺ غار ته دننه سو، دواړه تر درو شپو پوري په هغه غار کي پټ وه، هغوئ خپل دواړه اوښان د بني الدئل يو سړي ته سپارلي وه او هغه يې په دې پوه کړی وو چي د درو شپو تېرېدو وروسته اوښان غار ته نژدې راولي او هغه ته معقول معاوضه ورکړل سول، او ددې لپاره يې هم اماده کړی وو چي هغه تر مدينې پوري د لارښوونې دنده تر سره کړي، د غار ثور د قيام په دوران کي په درو سره شپو کي حضرت عبدالله ابن ابوبکر رضي الله عنه د مکې د کفارو ټول حالات او د ټولي ورځي دکړنو څخه د شپې په راتللو سره خبرول، بيا د درو شپو وروسته دواړه پر خپل خپل اوښ سپاره سول او د هغه لارښوونکي په مرسته د عامي لاري پر ځای د درياب د غاړي د لاري په ذريعه مدينې ته روان سول، کله چي د بني مدلج سيمو ته ورسېدل نو تر شا سراقه ابن مالک راورسېدی چي د مکې د قريشو له خوا د رسول الله ﷺ او ابوبکر رضي الله عنه او يا د دواړو څخه د يوه د ژوندي يا مړه نيولو په بدله کي د غټ انعام قول ورکړی وو، کله چي هغه دواړو ته نژدې راغلی نو ناڅاپه د هغه آس نوک ووهی او هغه پر مځکه را ولوېدی، هغه بيا را پورته سو او پر آس سپور سو او دومره نژدې را ورسېدی چي د رسول الله ﷺ خبري يې اورېدلې، او عين هغه وخت چي هغه حمله کول غوښتل نود هغه د آس دواړي پښې تر زنګنو پوري په مځکه کي ننوتلې او سراقه پوړموخی پر مځکه ولوېدی، اوس هغه ته خبرداری وسو او هغه په زاری او عاجزی سره امان غوښتل پيل کړ، رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د هغه د آواز په اورېدو سره ودرېدل، سراقه هغه ته صورت حال بيان کړ او د مکې د قريشو په اړه يې تفصيلي حالات ورته بيان کړل، هغه په توبې کولو سره د هغوئ دواړو په خدمت کي د لاري د توښې وړاندي کول وغوښتل مګر رسول الله ﷺ هغه قبول نه کړ مګر د هغه په معافولو سره يې دا حکم ورته وکړ چي زموږ په اړه چا ته مه وايه نو سراقه د هغه ځای څخه ولاړی او په لاره کي کوم کافر چي به يې د رسول الله ﷺ په پلټنه کي لېدی نو هغه به يې په تدبير سره ستنوی، همدارنګه رسول الله ﷺ او ابوبکر صديق رضي الله عنه په حفاظت سره مدينې منورې ته ورسېدل.

## د خیبر د یهودیانو سره اړوند معجزه

﴿۵۶۸۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا فُتِحَتْ خَيْبَرُ أُهْدِيَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي د خیبر د فتح څخه وروسته رسول الله ﷺ ته په تحفه کي ورکړل سول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاةٌ فِيهَا سَمٌّ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجْمَعُوا لِي مَنْ

د پسه غوښه چي په هغه کي زهر ګډ سوي وه، رسول الله ﷺ وویل چي په خیبر کي د ننه څومره

كَانَ هَا هُنَا مِنَ الْيَهُودِ فَجُمِعُوا لَهُ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي

یهودیان دي هغوئ دي ټول ما ته راوستل سي، کله چي ټول یهود جمع کړل سول نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: زه

سَائِلُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَهَلْ أَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْهُ فَقَالُوا نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ فَقَالَ لَهُمْ

ستاسو څخه د یوې خبري پوښتنه کوم د هغې جواب راکړئ، او ورسره دا هم درته وایم که تاسو غلط جواب راکړئ او ما د هغه رد وکړ نو ایا تاسو به زما د اطلاع تصدیق وکړئ؟ هغوئ وویل هو اې ابو القاسم! نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَبُوكُمْ قَالُوا فُلَانٌ قَالَ كَذَبْتُمْ بَلْ أَبُوكُمْ

ستاسو پلار څوک دی؟ هغوئ ورته وویل فلانی سړی، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل تاسو دروغ وویل ستاسو پلار فلانی سړی دی

فُلَانٌ فَقَالُوا صَدَقْتَ وَبَرِرْتَ قَالَ هَلْ أَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُكُمْ عَنْهُ

هغوئ وویل هو تا ریښتیا وویل او ښه دي وویل، بیا هغوئ ته رسول الله ﷺ وفرمایل: که زه ستاسو څخه د یوې خبري پوښتنه وکړم

فَقَالُوا نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ وَإِنْ كَذَبْنَاكَ عَرَفْتَ كَذِبَنَا كَمَا عَرَفْتَهُ فِي أَبِينَا فَقَالَ

نو تاسو به زما د اطلاع تصدیق وکړئ؟ هغوئ وویل هو، که موږ دروغ وویل نو ته به زموږ دروغ معلوم کړئ، څرنګه چي زموږ د پلار په باره کي دي زموږ دروغ معلوم کړل نو رسول الله

لَهُمْ مَنْ أَهْلُ النَّارِ فَقَالُوا نَكُونُ فِيهَا يَسِيرًا ثُمَّ تَخْلُفُونَنَا فِيهَا قَالَ رَسُولُ اللهِ

ﷺ هغوئ ته وفرمايل: دوږخي څوک دی؟ هغوئ وويل په دوږخ کي به لږ ورځي موږ يو او بيا تاسو به زموږ جانشين ياست، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخْسَئُوا فِيهَا وَاللهِ لَا نَخْلُفُكُمْ فِيهَا أَبَدًا ثُمَّ قَالَ لَهُمْ

زيان کاره به او سئ پکښي قسم په خدای موږ به هيڅکله په دوږخ کي ستاسو جانشين نه يو، بيا ورته رسول الله ﷺ وفرمايل: که زه ستاسو څخه د يوې خبري پوښتنه وکړم

فَهَلْ أَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُكُمْ عَنْهُ قَالُوا نَعَمْ فَقَالَ هَلْ جَعَلْتُمْ فِي

نو ايا تاسو به زما د بيان تصديق وکړئ؟ هغوئ وويل هو، اې ابو القاسم، نو رسول الله ﷺ

هَذِهِ الشَّاةِ سَمًّا فَقَالُوا نَعَمْ فَقَالَ مَا حَمَلَكُمْ عَلَى ذَلِكَ فَقَالُوا أَرَدْنَا إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا نَسْتَرِيحُ مِنْكَ وَإِنْ كُنْتَ صَادِقًا لَمْ يَضُرَّكَ. رواه البخاري، متفق عليه.

پوښتنه څيني وکړه ايا تاسو په دغه غوښه کي زهر ګډ کړي دي؟ هغوئ وويل هو، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه په کوم خيال مو پکښي زهر اچولي وه؟ هغوئ وويل: زموږ دا خيال وو که ته دروغجن يې نو موږ به در څخه خلاص سو او که ته رېښتونی يې نو زهر ضرر درونه رسوي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٧٣، رقم: ٣١٦٩.

**تشريح**: هو، اې ابو القاسم، د رسول الله ﷺ د مخاطب کولو د يهوديانو دغه خاص طرز وو، هغه بدبختو د محمد ﷺ په ويلو سره رسول الله ﷺ نه مخاطب کوی ځکه چي دغه نوم په تورات او انجيل کي مذکور او مشهور وو، چي د رسول الله ﷺ د نبوت د دعوې څرګند دليل وو، د تعصب او دښمنۍ په وجه هغوئ ته دا خوښه نه وه چي هغوئ په خپله ژبه سره د دغه نوم اظهار وکړي چي خپله د هغوئ د آسماني کتابونو له موخي د پيغمبر آخر زمان ﷺ د صداقت علامه وه

بيا زما همنشين به تاسو ياست، يهوديانو به مسلمانانو ته دا ويل چي د جنت اصل مستحق موږ يو که موږ د خپل بدعملۍ په وجه په دوږخ کي داخل سو نو هغه به د څو ورځو سزا وي، کله چي موږ د خپلي سزا پوره کولو وروسته د دوږخ څخه وايستل سو نو بيا به تاسو مسلمانان په دوږخ کي واچول سئ تاسو به هلته تل ياست، د هغوئ دغه خبره په قرآن کريم کي

هم داسي نقل سوې ده : (لَن تَمَسَّنَا النَّارُ إلاَّ أَيَّاماً مَّعْدُودَةً) ، يعني يهوديان داسي وايي چي موږ ته به يوازي تر څو ورځو پوري د دوږخ اوروي .

دا د هغه يهودو عقيده وه چي د حقيقت په اعتبار د باطلي عقيدې او فاسد گمان څخه پرته بل ارزښت نه درلود ، بيا هم هغوئ دخپلي عقيدې سره سم چي كومه خبره صحيح گڼل او د رسول الله ﷺ د سوال كوم جواب چي د هغوئ په نزد صحيح وو هغه يې بيان كړ .

نو دغه زهر تاسو ته هيڅ تاوان نه سي رسولای، د يهوديانو ددغه جواب مطلب دا وو چي موږ خو محض د امتحان په وجه په غوښو كي زهر گډ كړي وه ، كه تاسو دخپل نبوت په دعوه كي درواغجن ياست نو ددغه زهري په خوړلو سره به هلاک سئ او په دغه صورت كي به موږ ستاسو څخه خلاصون تر لاسه كړو او كه تاسو په خپل نبوت كي ريښتوني ياست نو دغه زهر به پر تاسو اثر ونه كړي، په دغه صورت كي به موږ تا نبي ومنو ، دا خو د يهوديانو خبره وه او هغوئ په خپل دغه قول كي تر كومي درجې ريښتوني وه ، ددې اندازه خو ددې څخه لگېدای سي چي زهرو په رسول الله ﷺ اثر ونه كړ نو د هغوئ د خپلي وينا سره سم د رسول الله ﷺ نبي كېدل ريښتيا ثابت سول مگر هغه خلكو په رسول الله ﷺ ايمان نه راوړ او نه د اسلام او مسلمانانو له دښمنۍ څخه منع سول .

## تر قيامته پوري د ټولو واقعو خبر وركولو معجزه

| |
|---|
| ﴿۵۶۸۴﴾ : وَعَنْ عَمْرِو بْنِ أَخْطَبَ الانصاري قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ |
| د حضرت عمرو بن اخطب انصاري رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه ورځ نبي كريم ﷺ لمونځ راكړ . |
| عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوما الْفَجْرَ وَصَعِدَ على الْمِنْبَرِ فَخَطَبَنَا حَتَّى حَضَرَتْ الظُّهْرُ |
| موږ ته د سهار بيا منبر ته وختی او وعظ يې وكړ چي دا لړۍ د ماپښين د لمانځه تر وخته پوري |
| فَنَزَلَ فَصَلَّى ثُمَّ صَعِدَ الْمِنْبَرَ حَتَّى حَضَرَتْ الْعَصْرُ ثُمَّ نَزَلَ فَصَلَّى ثُمَّ صَعِدَ |
| جاري وه، بيا رسول الله ﷺ د منبر څخه راكښته سو او د ماپښين لمونځ يې راكړ نو بيا يې منبر ته تشريف يووړ او بيان يې راته وكړ تر دې چي د مازديگر د لمانځه وخت سو بيا رسول لله ﷺ د منبر څخه راكښته سو او لمونځ يې راكړ او بيا يې |
| الْمِنْبَرَ فَخَطَبَنَا حَتَّى غَرَبَتْ الشَّمْسُ فَأَخْبَرَنَا بِمَا هُوَ كَائِنٌ الى يوم القيامة |

قال فَأَعْلَمُنَا أَحْفَظُنَا. رواه مسلم.

منبر ته تشریف یوور، تر دې چې لمر ولویدی، په دغه وعظ کي رسول الله ﷺ د هغه ټولو خبرو ذکر وکړ کومي چې تر قیامته پوري راتلونکي دي، د عمرو بن اخطب رضي الله عنه بیان دی چې په موږ کي (نن) تر ټولو زیات علم والا سړی هغه دی چې هغه خبري یې په یاد کړي وي. مسلم

**تخریج:** صحیح مسلم ۴\۲۲۱۷، رقم: ۲۵- ۲۸۹۲.

**تشریح:** حضرت عمرو ابن اخطب رضي الله عنه چي یو انصاري صحابي دي په خپل کنیت ابوزید اعرج سره زیات مشهور وو، د رسول الله ﷺ په غزاوو کي یې ګډون کوی، نقل سوی دی چې په دیارلس غزاوو کي یې ګډون په برخه سوی دی، یوه ورځ رسول الله ﷺ د هغه پر سر خپل مبارک لاس را تیر کړ او د ښکلا دعاء یې ورته وکړل، د هغه برکت هغه ته داسي ښکلا تر لاسه سول چي سلو کالو د هغه عمر زیات سو او تر پایه یې مخ د ګلاب په ډول تازه وو، د سر او ږیري وېښتان یې هم یو څو دانې سپین سوي وه.

په هغه ورځ رسول الله ﷺ د ماپښین او مازدیګر د لمونځو څخه ماسوا نور ټول وخت په وعظ کي تېر کړ او ددې تفصیلي وعظ په دوران کي رسول الله ﷺ د هغه ټولو مهمو دیني او ملي پېښو تفصیلي او اجمالي بیان وفرمایه چي په راتلونکې زمانه کي تر قیامته پوري پېښېدونکي دي، دا د رسول الله ﷺ لویه معجزه وه چي رسول الله ﷺ د واقع کېدو څخه مخکي دومره خبري بیان کړلې.

### د یهودیانو د راتګ خبر د درختي په ذریعه

﴿۵۶۸۵﴾: وَعَنْ مَعْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي قَالَ سَأَلْتُ مَسْرُوقًا

د حضرت معن بن عبدالرحمن رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د خپل پلار څخه دا اوریدلي دي چي ما د مسروق څخه پوښتنه وکړه چي

مَنْ آذَنَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْجِنِّ لَيْلَةَ اسْتَمَعُوا الْقُرْآنَ فَقَالَ حَدَّثَنِي

نبي کریم ﷺ ته چا په هغه شپه د پیریانو خبر ورکړی وو کوم وخت چي هغوئ قرآن کریم ته غوږ

أَبُوكَ يَعْنِي عَبْدَ اللهِ ابن مسعود أَنَّهُ قال آذَنَتْ بِهِمْ شَجَرَةٌ. متفق عليه.

نیولی وو مسروق وویل ما ته ستا پلار یعني عبدالله بن مسعود رضي الله عنه بیان وکړ چي رسول الله ﷺ

ته د پیریانو د راتلو خبر یوې درختي ورکړې وو. بخاري او مسلم

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري): ۷\۱۷۱، رقم: ۳۸۵۹، ومسلم ۱\۳۳۳، رقم: ۱۵۳-۴۵۰.

**د لغاتو حل:** آذن: اي من اعلم.

**تشریح:** یعني د معجزې په توګه یوې درختي خبر ورکړ چي اې د الله رسوله! پیریانو ایمان راوړ او د قرآن کریم د اورېدو لپاره راغلي دي، نو نبي کریم ﷺ د ښار څخه د باندي ولاړ او یو ځای ته په رسېدو سره یې پیریان ولېدل او د هغوئ په وړاندي یې قرآن کریم وواییه.

## د جنګ څخه مخکي د مړ کېدونکو کافرانو نومونه او ځایونه ښودل

﴿۵۶۸۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كُنَّا مَعَ عُمَرَ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ فَتَرَاءَيْنَا الْهِلَالَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي موږ د عمر بن خطاب رضي الله عنه سره په مینځ د مکه او مدینه کي وو چي موږ د میاشتي د لیدو کوښښ وکړ

وَكُنْتُ رَجُلًا حَدِيدَ الْبَصَرِ فَرَأَيْتُهُ وَلَيْسَ أَحَدٌ يَزْعُمُ أَنَّهُ رَآهُ غَيْرِي فَجَعَلْتُ

زه په ټولو خلکو کي تیز نظره وم، ما میاشت ولیدل او په موږ کي یو سړی هم داسي نه وو چي هغه میاشت لیدلې وای،

أَقُولُ لِعُمَرَ أَمَا تَرَاهُ فَجَعَلَ لَا يَرَاهُ قَالَ يَقُولُ عُمَرُ سَأَرَاهُ وَأَنَا مُسْتَلْقٍ عَلَى

ما عمر بن خطاب رضي الله عنه ته میاشت ور ښودله او ورته وه مي ویل: ایا تاسو میاشت نه وینئ مګر هغه ته په نظر رانغله هغه وویل کله چي زه پر

فِرَاشِي ثُمَّ أَنْشَأَ يُحَدِّثُنَا عَنْ أَهْلِ بَدْرٍ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خپله بستره پریوځم نو ضرور به یې ووینم، د دې څخه وروسته عمر بن خطاب رضي الله عنه د بدر پېښي بیانولې او وه یې فرمایل چي رسول الله ﷺ

كَانَ يُرِينَا مَصَارِعَ أَهْلِ بَدْرٍ بِالْأَمْسِ يَقُولُ هَذَا مَصْرَعُ فُلَانٍ غَدًا إِنْ شَاءَ اللَّهُ

د جنګ څخه یوه ورځ مخکي موږ ته هغه ټول ځایونه ښودلي وه په کومو ځایو کي چي به مشرکان قتلیدل، نو رسول الله ﷺ وفرمایل: سبا به دلته انشاء الله فلانی سړی مړ کیږي

هَذَا مَصْرَعُ فُلَانٍ غَدًا إِنْ شَاءَ اللَّهُ قَالَ عُمَرُ وَالَّذِي بَعَثَهُ بِالْحَقِّ مَا أَخْطَئُوا

او سبا به دلته انشاء الله د فلاني سړي مړي پروت وي، او سبا به انشاء الله پر دغه ځای فلانی مشرک مړ پروت وي، د حضرت عمر رضي الله عنه بیان دی قسم په هغه ذات چي هغه رسول د خدای په

الْحُدُودَ الَّتِي حَدَّهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَجُعِلُوا فِي بِئْرٍ بَعْضُهُمْ

حق سره رالیږلی دی کوم ځایونه چي رسول الله ﷺ ښودلي وه د هغه څخه د ذرې په اندازه هم تجاوز ونه سو، بیا هغه کافران په څاه کي یو پر بل سربیره وغورځول سول،

عَلَى بَعْضٍ فَانْطَلَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى انْتَهَى إِلَيْهِمْ فَقَالَ يَا

بیا رسول الله ﷺ هغه څاه ته ورغلی او وه یې فرمایل: اې فلانی

فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ وَيَا فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ هَلْ وَجَدْتُمْ مَا وَعَدَكُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ حَقًّا

د فلاني زویه! اې فلانی د فلاني زویه! ایا تاسو هغه شی حق او درست ولیدی چي د هغه وعده خدای او د هغه رسول در سره کړې وه،

فَإِنِّي قَدْ وَجَدْتُ مَا وَعَدَنِي اللَّهُ حَقًّا فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ تُكَلِّمُ أَجْسَادًا

ما خو هغه شی حق او درست ولیدی چي د هغه وعده خدای راسره کړې وه، ددې اورېدو سره حضرت عمر رضي الله عنه عرض وکړ اې د الله رسوله! تاسو د چا سره خبري کوئ؟

لَا أَرْوَاحَ فِيهَا فَقَالَ مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ لِمَا أَقُولُ مِنْهُمْ غَيْرَ أَنَّهُمْ لَا يَسْتَطِيعُونَ أَنْ يَرُدُّوا عَلَيَّ شَيْئًا. رواه مسلم.

دا خو داسي بدنونه دي چي روح پکښي نسته، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل څه چي زه وایم هغوئ یې ستاسو څخه زیات اوري مګر په دوی کي د جواب ورکولو قدرت نسته. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۲۲۰۲، رقم: ۷۶- ۲۸۷۳.

**تشریح**: زه خو د هر ژر پر خپله بستره باندي ...الخ: د دغه الفاظو په ذریعه حضرت عمر رضي الله عنه د هغه میاشتي د لېدو لپاره زیاته هڅه کول غیر ضروري وګڼل، د هغوئ دا مطلب وو چي کومو خلکو په خپلو سترګو سره میاشت لیدلې ده د هغوئ پر شاهدي به روایت ثابت سي یا دا چي زه به خپله نوې میاشت وینم، نو څو ورځي وروسته یا بله ورځ چي میاشت لویه او ځلانده سي او په

اساني سره به معلومه سي نو زه به يې هم ووينم، دا وخت چي زه میاشت نه وینم نو ددې لپاره د زيات کوښښ کولو ضرورت نسته، ددې څخه معلومه سول چي کوم شی ضروري نه وي د هغه په پلټنه کي خپل وخت او خپل طاقت ضائع کول په یو بې معنی شي کي وخت او توان برباد ول دي.

## يوه پشګوئي او د هغې صداقت

﴿۵۶۸۷﴾: وَعَنْ أُنَيْسَةَ بِنْتِ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ عَنْ أَبِيهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

حضرت بي بي انيسه لور د زيد بن ارقم (رض) د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَى زَيْدٍ يَعُوْدُهُ مِنْ مَرَضٍ كَانَ بِهِ قَالَ لَيْسَ عَلَيْكَ مِنْ مَّرَضِكَ

د زيد بن ارقم رضی الله عنه د ناروغۍ پوښتني ته راغلی او وه يې فرمايل: ستا ناروغي خطرناکه نه ده

بَأْسٌ وَلٰكِنْ كَيْفَ لَكَ إِذَا عُمِرْتَ بَعْدِيْ فَعَمِيْتَ قَالَ أَحْتَسِبُ وَأَصْبِرُ قَالَ

مګر هغه وخت به ستا څه حال وي چي زما څخه وروسته ستا عمر اوږد وي او ته ړوند سې، زيد بن ارقم رضی الله عنه عرض وکړ زه به د الله جل جلاله څخه د ثواب غوښتونکی يم او صبر به کوم، رسول الله ﷺ

إِذَنْ تَدْخُلُ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابٍ قَالَ فَعَمِيَ بَعْدَ مَا مَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ رَدَّ اللهُ بَصَرَهُ ثُمَّ مَاتَ.

ورته وفرمايل بيا خو به ته بې حسابه جنت ته ځې، د راوي بيان دی چي د نبي کريم ﷺ د وفات څخه وروسته د زيد بن ارقم بينايي ختمه سوه او څه وخت وروسته بيا الله تعالى هغه ته بينايي ورکړه او د هغه وروسته هغه مړ سو. بيهقي

**تخريج:** رواه البيهقي في دلائل النبوة.

**تشريح:** د رسول الله ﷺ ذکر سوې وړاند وينه ټکي په ټکي رېښتونې سول چي په کومه ناروغۍ کي رسول الله ﷺ د زيد بن ارقم رضی الله عنه پوښتني ته ورغلی وو په هغه سره هغه روغ سو، بيا د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته د هغه بينائي ختمه سول، بيا هم رسول الله ﷺ ددغه وړاندي ويلو پر وخت د زيد بن ارقم رضی الله عنه په مخکي د هغه د بينائي بيا راتللو چي ذکر ونه فرمايه نو ددې وجه کيدای سي د رسول الله ﷺ دا خواهش وو چي په دغه صورت کي زيد بن ارقم رضی الله عنه په صبر کي زيات تکليف وزغمي او بيا تر دې وروسته هغه ته زيات اجر او ثواب تر لاسه سي

كه هغه ته دا خبره مخكې هم معلومه سوې وې چې د بينائي تللو څخه وروسته به بيا ورته راسي نو هغه ته به دومره زياته پريشاني نه واى او د كامل صبر هغه مقام به يې نه په برخه كېدلاى چې د هغه په سبب د الله ﷻ تعالیٰ له مرسته او نصرت ورته ترلاسه سو .

## پر نبي ﷺ د درواغ ويلو عذاب

﴿۵۶۸۸﴾ : وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چې

تَقَوَّلَ عَلَيَّ مَالَمْ أَقُلْ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ وَذٰلِكَ أَنَّهُ بَعَثَ رَجُلاً فَكَذَبَ

ما ته يو داسې خبره منسوبه كړي چې ما نه وي كړې نو هغه ته پكار ده چې خپل ځاى په دوږخ كې تيار كړي او د رسول الله ﷺ دا فرمايل پر يو پېښه مبني دي چې رسول الله ﷺ يو سړى ليږلى

عَلَيْهِ فَدَعَا عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَ مَيِّتًا وَقَدِ انْشَقَّ بَطْنُهُ وَلَمْ تَقْبَلْهُ الْأَرْضُ . رواهما البيهقي في دلائل النبوة.

وو هغه د رسول الله ﷺ د طرف څخه د درواغ خبره وكړل ، رسول الله ﷺ هغه ته ښيرا وكړل بيا هغه مړ وليدل سو په داسې حال كې چې د هغه نس چاودلى وو او ځمكې قبول كړى نه وو . بيهقي.

**تخريج:** رواه البيهقي في دلائل النبوة.

**تشريح:** د روايت آخري الفاظ ددې خبرې علامه ده چې هغه سړى د تل لپاره دوږخي وګرځېدى، په دې اعتبار دغه روايت د هغه قول تائيد كوي چې د هغه خلاصه داده: په قصد سره رسول الله ﷺ ته د درواغ د خبرې نسبت كونكى كافر كيږي .

## د بركت معجزه

﴿۵۶۸۹﴾ : وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَهُ رَجُلٌ يَسْتَطْعِمُهُ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ ته يو سړى راغلى او خوراک يې

فَأَطْعَمَهُ شَطْرَ وَسْقِ شَعِيْرٍ فَمَا زَالَ الرَّجُلُ يَأْكُلُ مِنْهُ وَامْرَأَتُهُ وَضَيْفُهُمَا حَتّٰى

وغوښتى، رسول الله ﷺ ورته نيم وسق اوربشې وركړې ، چې د هغه څخه به هغه د هغه ښځې او

د هغه میلمنو همیشه خوراک کوی تر دې چې

كَالَهُ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَوْ لَمْ تَكِلْهُ لَأَكَلْتُمْ مِنْهُ وَلَقَامَ لَكُمْ . رواه مسلم.

یوه ورځ هغه سړی اوربشي پیمانه کړې نو بیا هغه ژر ختمي سوې ، هغه سړی د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : که تا هغه نه وای پیمانه کړې نو تاسو خلکو به همیشه د هغه څخه خوړلای او هغه اوربشي به هم هغسي پر خپل حال وای . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۱۷۸۴، رقم: ۹- ۲۲۸۱.

**د لغاتو حل**: لقام: اي علی وجه الدوام ببركة.

## مشتبه خوراک تر حلق کښته نه سو

﴿۵۶۹۰﴾: وَعَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ قَالَ خَرَجْنَا

عاصم بن کلیب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او د هغه د یو انصاري سړي څخه روایت کوي چي موږ

مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةٍ فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د رسول الله ﷺ سره د یو جنازې لمانځه ته ولاړو بیا ما ولیدل چي نبي کریم ﷺ د قبر سره ولاړ

وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الْقَبْرِ يُوصِي الْحَافِرَ يقول أَوْسِعْ مِنْ قِبَلِ رِجْلَيْهِ أَوْسِعْ مِنْ قِبَلِ

دی او قبر کښونکی ته وصیت کوي یعني دا چي د سر خوا ته قبر پراخ کړه،

رَأْسِهِ فَلَمَّا رَجَعَ اسْتَقْبَلَهُ دَاعِي امْرَأَةٍ فاجاب ونحن معه فَجِيءَ بِالطَّعَامِ فَوَضَعَ

کله چي رسول الله ﷺ راوګرځېدی نو د ښځي د لوري یو سړی رسول الله ﷺ ته د دعوت ورکولو لپاره راغلی ، رسول الله ﷺ یې دعوت قبول کړ او موږ د رسول الله ﷺ سره د خوراک لپاره ولاړو ،

يَدَهُ ثُمَّ وَضَعَ الْقَوْمُ فَأَكَلُوا فنظرنا الى آباؤنا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خوراک چي د رسول الله ﷺ مخته کښېښودل سو نو لاس مبارک یې ور وړاندي کړ او نورو خلکو هم خوراک پیل کړ ، ناڅاپه په خوړلو خوړلو کي خلکو وکتل چي رسول الله ﷺ

يَلُوكُ لُقْمَةً فِي فَمِهِ ثُمَّ قَالَ أَجِدُ لَحْمَ شَاةٍ أُخِذَتْ بِغَيْرِ إِذْنِ أَهْلِهَا فَأَرْسَلَتْ الْمَرْأَةُ

په خوله کي دننه کوله کرځوي را کرځوي او تيروي يې نه، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: ما ته دا د داسي پسه غوښه ښکاريږي چي د مالک د اجازې څخه پرته اخيستل سوې وي، د کور مالکي د رسول الله ﷺ په خدمت کي يو سړی وليږی

تقول يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي أَرْسَلْتُ إِلَى الْنَقِيعِ وهو موضع يُبَاعُ فِيْهِ الْغَنَم يَشْتَرِي

او وه يې ويل اې د الله رسوله! ما نقيع ته يو سړی د پسو اخيستلو لپاره ليږلی وو په نقيع کي به

لِي شَاةً فَلَمْ توجد فَأَرْسَلْتُ إِلَى جَارٍ لِي قَدْ اشْتَرَى شَاةً أَنْ يرسل بِهَا بِثَمَنِهَا فَلَمْ

پسونه خرڅېدل مګر هلته يې نه کړه پيدا بيا ما خپل همسايه ته يو سړی وليږی چي يو پسه يې اخيستی وو چي دا را وليږه ما ته په قيمت سره يې

يُوجَدْ فَأَرْسَلْتُ إِلَى امْرَأَتِهِ فَأَرْسَلَتْ إِلَيَّ بِهَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَطْعِمِيهِ هذه الطعام الْأَسْرٰى. رواه ابوداؤد والبيهقي في دلائل النبوة.

مګر هغه همسايه هم پر خپل کور نه وو بيا ما د خپل همسايه ښځي ته سړی واستوی هغې هغه پسه ما ته را وليږی، ددې اوريدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل: دا خوراک بنديانو ته ورکړئ. بيهقي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\ ۶۲۷، رقم: ۳۳۳۲.

**د لغاتو حل**: داعي امراته: اي زوجة المتوفي. (مړه مېرمن).

**تشريح**: ملا علي قاري رحمه الله ليکلي دي د مړي د ډوډۍ ورکولو په اړه د فقهاؤ چي کوم قولونه نقل سوي دي په ظاهره دغه حديث د هغه خلاف دی، د مثال په توګه په بزازيه کي ليکلي دي چي د مړي د وارثانو له خوا په لومړنۍ ورځ يا دريمه ورځ او اوومه ورځ خلکو ته ډوډۍ ورکول مکروه دي، همدارنګه په خلاصه کي مذکور دی، په دريمه ورځ ناسته کي څه پروا نسته په شرط ددې چي منع شيان پېښ نه سي لکه کوربچې غوړول او ددعوت او مېلمستيا بندوبست کول او ابن همام هم ليکلي دي چي د اهل ميت مېلمستيا کول مکروه دي، فقهاؤ دا علت بيان کړی دی چي مېلمستيا په خوشحالۍ کي جائز ده نه په غم کي، او ابن همام دا هم ويلي دي چي د اهل ميت مېلمستيا بدعت دی او امام احمد او ابن ماجه په صحيح سند سره د حضرت جرير ابن

عبد الله رضي الله عنه څخه دا روايت نقل کړی دی چې د مړي په کور کې د خلکو په جمع کېدو او د مړي د کورنۍ له خوا خوراک ورکول موږ په نوحه کې شمېرو، چې د هغه سخته منع منقول ده، نو د عاصم ابن کليب روايت سوی مذکوره حديث د فقهاؤ د هغه اقوالو خلاف ګرځي، ضروري دي چې د فقهاؤ اقوال يا خو خاص نوعيت سره مقيد کړل سي مثال دا وويل سي چې د فقهي روايتونو مطابق د مړي په کور کې د خلکو راجمع کولو چې کومه منعه ده، هغه په دغه صورت کې ده کله چې خلک محض په رسمي توګه سره يا په ظاهره د مړي په کور کې راجمع سي او اهل ميت د هغوئ د خوراک بندوبست کولو باندې مجبور کړل سي، يا هغه فقهي روايتونه پر هغه صورت باندې محمول کړل سي چې په هغه کې د خوراک بندوبست د مړي د ميراث څخه وي او په وارثانو کې يو کم عمره وي يا موجود نه وي يا د هغوئ اجازه او رضا معلومه نه وي يا دا چې د خوراک بندوبست يو سړی د خپل ذاتي مال څخه نه وي کړی بلکه د مړي د مال څخه يې کړی وي چې د وارثانو په منځ کې تر اوسه ويشل سوی نه وي،

ددې څخه ماسوا څه نور صورتونه هم سته چې په هغه کې د مړي خوراک د مختلفو اسبابو په وجه مکروه دی لکه څرنګه چې زموږ په ځينو مقاماتو کې رواج دی چې پر ځينو ټاکل سوو تاريخو باندې يا د هغه څخه لږ مخکې يا وروسته خوراک پخېږي او په خلکو خوړل کېږي يا ويشل کېږي او ځيني خلک په پور کولو سره داسې کار کوي او د قاضي خان دغه قول هم پر دغه صورتو باندې محمول دی چې د غم او مصيبت په ورځو کې د مېلمستيا بندوبست کول مکروه دي ځکه چې هغه ورځې د غم د اظهار دي او کوم شی چې د خوشحالۍ او مسرت په موقع غمازوي هغه د غم پر موقع اختيارو نامناسب دي، مګر که مړي ته د ثواب رسولو په نيت په فقيرانو باندې د خوراک کولو لپاره د خوراک بندوبست وکړل سي نو دا به ښېله ښکه ښه کار وي، او کوم چې ددغه صورت تعلق دی که يو سړی دا وصيت وکړي چې د هغه د مرګ څخه وروسته د هغه د مال څخه دې د خوراک بندوبست وکړل سي او په خلکو دې تر درو ورځو پورې خوراک وکړل سي نو د زيات صحيح روايت سره سم دغه وصيت باطل ګرځول کېږي، که څه هم ځينو حضراتو ويلي دي چې وصيت به په دريمه برخه مال کې جائز وي او دا قول زيات مناسب معلومېږي، تر دغه ځايه چې څه نقل سوي دي هغه د ملا علي قاري رحمة الله عليه د خبرو خلاصه ده مګر ددې څخه دا ګټل نه دي پکار چې هغوئ د فقهي روايتو پر څو صورتو باندې په محمول کولو سره په پاته نورو صورتو کې د اهل ميت له خوا د خوراک بندوبست کول مطلق جائز ګرځولي دي بلکه په هغه صورتو کې دي غور وکړل سي کوم ته چې مکروه او ممنوع ويل سوي

دي نو حقيقت به څرګند سي چي د مړي د خوراک کوم صورتونه او ډولونه په موږ کي رواج دي هغه د يو شي سره او په يو سبب د منع او مکروه صورتونو د دائرې څخه وتلي نه دي چيري چي د منع او کراهت يو سبب تر لاسه سي او چيري چي زيات اسباب تر لاسه سي نو د دغه حقيقت په خپله دغه حديث کي د فکر څخه وروسته څرګنديږي او هغه دا چي په حديث کي د خوراک ورکولو د هغه صورت ذکر دی چي د هغه په اړه قاضي خان رحمة الله عليه ليکلي دي : که د مړي د ثواب رسولو په نيت په فقيرانو باندي خوراک وکړل سي نو دا به ښه عمل وي نو په ظاهره دا خبره زياته صحيح معلوميږي چي په دغه حديث کي د کوم خوراک ذکر دی هغه د مړي د ښځي د ايصال ثواب په نيت سره فقيرانو او مسکينانو ته د صدقې په توګه ورکول دي او د رسول الله ﷺ په خدمت کي هغه خوراک د تحفې په توګه وړاندي کړل سو په دې وجه خپله هغه د صحابه کرامو سره چي ضرورتمند او مفلس وه د مړي کور ته د هغه خوراک لپاره بوتلل،

ددې څخه ماسوا ځينو فقهاؤ دا ليکلي دي چي کوم خلک په تجهيز او تکفين کي شريک وي د هغوئ لپاره د اهل ميت له خوا وړاندي کېدونکي خوراک صحيح دی يوازي دا نه بلکه کوم فقهاء چي د مصيبت خوراک ته مکروه وايي هغوئ هم دا صورت مستثنی کړی دی نو د مړي کور ته د خوراک لپاره در سول الله ﷺ او صحابه کرامو تلل پر دغه صورت باندي هم محمول کيدای سي چي هغوئ ټول په تجهيز او تکفين کي شريک وه ځکه د اهل ميت پر دعوت خوراک کولو ته ورغلل ، ددغه بحث په رڼا کي دا څرګنده سول چي په دغه حديث کي او فقهي روايتو کي هيڅ تضاد نسته ،

وهو موضع يباع فيه الغنم، هغه د يو ځای نوم دی ي هلته د څارويو رانيول او پلورل کيږي، دغه الفاظ د اصل روايت نه دي بلکه يو راوي د نقيع د وضاحت لپاره ويلي دي، څرګنده دي وي چي نقيع د مدينې منورې څخه د عقيق د شيلې خوا ته تقريبا پر شل ميله فاصله باندي د يو ځای نوم دی چي په پخوانی زمانه کي د څارويو رانيولو او پلورلو لپاره وو ، نقيع د هغه بقيع څخه ماسوا دی چي د هغه اول حرف ب دی او هلته د مدينې منورې مشهوره هديره ده .

او هغې هغه پسه ما ته را واستوی، د مړي ښځي چي د پسه کوم تفصيل بيان کړ د هغه څخه ثابته سول چي هغه پسه په صحيح توګه اخيستل سوی نه وو ځکه د هغه همسايه چي د پسه اصل مالک وو د هغه پسه د پلورلو لپاره صريحا اجازه نه وه تر لاسه کړل سوې د هغه پسه د پلورلو او رانيولو په مذکوره معامله کي دا ويل کيدای سي چي ددې صورت نژدې وو چي فقهاؤ په بيع فضولي سره تعبير کړی وای او په دغه صورت کي د بيع صحيح کېدل د مالک پر

اجازې باندې موقوف دي، په هر حال دا خبره فیصله وه چې د هغه پسه غوښه مشبه مال وو او په دې وجه الله ﷻ د معجزې په توګه د رسول الله ﷺ نس ته د تللو څخه منع کړ.

دغه خوراک په بندیانو خورئ، په دې کې د بندیانو څخه مراد جنګي بندیان دي او د هغوئ په اړه غالب ګمان دادی چې هغوئ مفلس وه او څرنګه چې طیبي رحمة الله علیه لیکلي دي چې هغوئ کافران هم وه، مطلب دا چې هغه وخت د پسه اصلي مالک موجود نه وو چې د هغه د اجازې په تر لاسه کولو سره د پسه اخیستل صحیح ګرځول سوي وای او د هغه د غوښو څخه تیار سوی خوراک د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو لپاره روا سوی وای او که د مالک د راتللو انتظار یې کړی وای نو د هغه خوراک د خرابېدو په وجه د خوراک او مصرف څخه پاته کېدی، بلي خوا ته د هغه بندیانو د خوراک بندوست کول هم وو ځکه رسول الله ﷺ هغه ټول خوراک په بندیانو د خوړلو حکم وکړ بیا هم د هغه پسه د ضائع کېدو په وجه مالک ته د هغه پوره قیمت ادا کول د هغه ښځي پر ذمه ضروري ګرځي چې هغې ادا کړ نو د هغې خوراک په هغه بندیانو د خوړلو د هغه ښځي له خوا د صدقې په حکم کې سو.

## د ام معبد د میړې اړوند یوه معجزه

﴿۵۶۹۱﴾: وَعَنْ حِزَامِ بْنِ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ حُبَيْشِ بْنِ خَالِدٍ وَهُوَ أَخُ أُمِّ

حضرت حزام بن هشام رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه هغه د نیکه څخه چې جیش ابن خالد وو او دی ورور وو د

مَعْبَدٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ أُخْرِجَ مِنْ مَكَّةَ خَرَجَ مُهَاجِرًا

ام معبد روایت کوي چې کله رسول الله ﷺ د مکې څخه په هجرت مدینې ته روان سو نو

إِلَى الْمَدِيْنَةِ هُوَ وَأَبُوْ بَكْرٍ وَّمَوْلٰى أَبِيْ بَكْرٍ عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ وَدَلِيْلُهُمَا عَبْدُ اللهِ

ورسره ابوبکر رضي الله عنه او د ابوبکر رضي الله عنه ازاد سوی غلام عامر بن فهیره او عبدالله لیثي لار ښودونکي د دواړو وو،

اللَّيْثِيُّ مَرُّوْا عَلٰى خَيْمَتَيْ أُمِّ مَعْبَدٍ فَسَأَلُوْهَا لَحْمًا وَتَمْرًا لِيَشْتَرُوْا مِنْهَا فَلَمْ

د مدینې په لاره کې د ام معبد د دوو خیمو سره تېرېدل هغوئ د خیمو والا څخه پوښتنه وکړه که د هغوئ سره غوښه او خرماوې وي نو د هغوئ څخه به رانیول سي

يُصِيبُوا عِنْدَهَا شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ وَكَانَ الْقَوْمُ مُرْسِلِيْنَ مُسْنِتِيْنَ فَنَظَرَ رَسُوْلُ اللهِ

مګر د هغوئ سره هيڅ شی نه وو، دغه قوم لوږي او وچ کالی وهلي وه، ناڅاپه د رسول الله ﷺ

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى شَاةٍ فِيْ كَسْرِ الْخَيْمَةِ فَقَالَ مَا هٰذِهِ الشَّاةُ يَا أُمَّ مَعْبَدٍ

نظر پر يوې ميږې ولويدی چې د خيمې يو خوا ته ولاړه وه، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه اې ام معبد! دا

قَالَتْ شَاةٌ خَلَّفَهَا الْجُهْدُ عَنِ الْغَنَمِ قَالَ هَلْ بِهَا مِنْ لَبَنٍ قَالَتْ هِيَ أَجْهَدُ مِنْ

ميږه څنګه ده؟ام معبد وويل د ډيري کمزورۍ له کبله د رمې سره نه سي تللای، رسول الله ﷺ
پوښتنه ځيني وکړه ايا دا شيدې کوي؟ ام معبد وويل په کوم مصيبت کې چې دا اخته ده

ذٰلِكَ قَالَ أَتَأْذَنِيْنَ لِيْ أَنْ أَحْلُبَهَا قَالَتْ بِأَبِيْ أَنْتَ وَأُمِّيْ إِنْ رَأَيْتَ بِهَا حَلَبًا فَاحْلُبْهَا

د هغې په وجه په دې کې شيدې چيرې دي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ايا ته اجازه کوې چې زه يې
شيدې ولويشم؟ ام معبد وويل: زما مور او پلار دې پر تاسو قربان وي که تاسو ته ددې په تيانو کې
شيدې معلومېږي نو وه يې لويشئ،

فَدَعَا بِهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَسَحَ بِيَدِهِ ضَرْعَهَا وَسَمَّى اللهَ تَعَالٰى

رسول الله ﷺ د هغه پر تيانو لاس مبارک را تيرولو سره بسم الله وويل او د برکت دعاء يې وکړل

وَدَعَا لَهَا فِيْ شَاتِهَا فَتَفَاجَّتْ عَلَيْهِ وَدَرَّتْ وَاجْتَرَّتْ فَدَعَا بِإِنَاءٍ يُرْبِضُ الرَّهْطَ

نو د شيدو ورکولو لپاره ميږې خپل پښې خلاصي کړې او شخوند يې شروع کړ، رسول الله ﷺ يو لوی
لوښی وغوښتی چې ډير خلک ماړه کړي

فَحَلَبَ فِيْهِ ثَجًّا حَتّٰى عَلَاهُ الْبَهَاءُ ثُمَّ سَقَاهَا حَتّٰى رَوِيَتْ وَسَقٰى أَصْحَابَهُ حَتّٰى رَوُوْا

او په هغه کې يې شيدې ولويشلې چې لوښي ډک سو او د هغه سربيره ځګ راغلی، ددې څخه وروسته يې هغه
شيدې لومړی په ام معبد وڅښلې چې ښه ماړه سول بيا يې په اصحابو باندې و چيښلې تر هغو چې ښه اوبه سول

ثُمَّ شَرِبَ آخِرَهُمْ ثُمَّ حَلَبَ فِيْهِ ثَانِيًا بَعْدَ بَدْءٍ حَتّٰى مَلَأَ الْإِنَاءَ ثُمَّ غَادَرَهُ

او تر ټولو اخر کې يې په خپله وڅښلې، لږ وخت وروسته دوهم وار هغه بيا په هغه لوښي کې
شيدې ولويشلې چې لوښی د شيدو څخه ډک سو نو بيا رسول الله ﷺ

عِنْدَهَا وَبَايَعَهَا وَارْتَحَلُوا عَنْهَا . رواه في شرح السنة وابن عبد البر في الإستيعاب وابن الجوزي في كتاب الوفاء وفي الحديث قصة.

هغه شيدې ام معبد ته پرېښودلې او بيعت يې ورسره وکړ او ځيني ولاړل. شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ١٣\ ٢٦١، رقم: ٣٧٠٤.

**د لغاتو حل**: مسنتين: اي اصابهم القحط (وچ کالي وهلي). ثجا: اي حلبا ذا سيلان. البهاء: اي الرغوة.

**تشريح**: د ام معبد اصلي نوم عاتکه بنت خالد خزاعيه دی، رسول الله ﷺ د خپل هجرت د سفر په دروان کي د هغې خيمې ته تشريف راوړی وو او هغه يې په اسلام مشرفه کړې وه ، ام معبد د ډېرو ټينګو عصابو او قوي زړه څښتنه وه او په هغه دښت کي اوسېدل ، هغه به دخپلي خيمې څخه دباندي کښېنستل او پر لاره تلونکي هر ضرورتمند او مسکين د خوراک او څښناک بندوبست به يې کوی.

په دغه حديث کي د پېښي نور تفصيل هم سته او هغه دادی چي کله رسول الله ﷺ د ام معبد ﷺ د خيمې څخه مخکي په سفر روان سو او ام معبد خپل خاوند ابومعبد ته ټوله پېښه بيان کړل او په ډېر فصيح او بليغ الفاظو کي يې د رسول الله ﷺ د اوصافو او فضائلو په بيانولو سره وويل چي يو ډېر برکتمن ذات زموږ خيمې ته راغلی وو او دغه شيدې د هغه مبارک د راتګ په طفيل دی ، ابومعبد ددغه خبرو په اورېدو سره وويل: يقينا هغه ذات د قريشو څخه هغه سړی دی چي د هغه ډېر صفتونه ما په مکه کي اورېدلي دي که زما د تللو توان وسي نو زه به د هغه ذات په خدمت کي خامخا حاضر سم.

په يوه روايت کي منقول دي چي کله رسول الله ﷺ د هجرت په شپه د حضرت ابوبکر صديق ﷺ په روانېدو سره دمکې څخه روان سو ، او د مکې کفار د رسول الله ﷺ په معلومات کولو کي ناکام سول چي رسول الله چيري دی او کومي خوا ته تللی دی نو يو مسلمان پيري د ابو قيس غره ته په ختلو سره په زوره اشعار ويل پيل کړل ، دمکې خلکو په حيرت سره د هغه آواز اورېدی چي د هغوئ غوږو ته راتلی مګر هغه آواز چي د کومي خوا څخه راتلی هلته هيڅوک نه معلومېدی ، په هغه اشعارو کي دوه شعرونه دادي :

جزى الله رب الناس خير جزائه	رفيقين حلا خيمتى ام معبد

هما نزلا بالهدى واهتديت به	فقد فاز من امسى رفيق محمد

=============